تفسیر

# معارف القرآن

تالیف


حضرۃ مولانا مفتی محمد شفیع صاحب رحمہ اللہ

مفتی اعظم پاکستان



تاج کتب خانہ

محلہ جنگی قصہ خوانی

پشاور








# تفسیر معارف القران پښتو

## دریم ټوک

لیکوال : مفتي محمد شفیع رحمة الله علیه

بربښنا يي کوونکی: عزت الله سلطانزی

باور کتابتون

## دکتاب ځانګړني

دکتاب نوم تفسير معارف القران پښتو دريم ټوک

مؤلف مُفتي محمد شفيع رحمة الله عليه

ټوک دريم ټوک(اوومه، اتمه ،نهمه ،پاره)

خپرندويه تاج کتب خانه محله جنګي قصه خوانی پشاور

پر ليکه کوونکي عزت الله سلطانزي

زمونږ سره اړيکه


0093706912702

www.facebook.com/Ezatullah.sultanzai

http://ezatullahsultanzai.blogspot.com

http://T.me/ezatullah_sultanzai

# تفسیر
# معارف القرآن
## پښتو

تالیف

حضرة مولینا مفتی محمد شفیع صاحب رحمة الله علیه

مفتیٔ اعظم پاکستان





تاج کتب خانه
محله جنگی قصه خوانی
پشاور

# تفسیر معارف القرآن پښتو

## پاره
## ۷

**تالیف : مولانا مفتي محمد شفیع** رحمة الله علیه

**مجلس ترجمه ونظر ثانی**

(1) **ډاکټر قاضي محمد مبارک** سابق مدرس دارالعلوم سرحد وپروفیسر شعبه عربی پېښور یونیورستی

(2) **ابو حسین مولانا ګل برخان سواتی**: فاضل علوم اسلامیه عربیه

(3) **مولانا سیف الحنان حقانی** فاضل حقانیه ووفاقالمدارس جامعه بهاورلپور تلمیذ علامه شمس الحق افغانی ومولانا احمد علی لاهوري

**باهتمام : ډاکټر محمددین** : فاضل وفاق المدارس ایم اي عربی ایم اي اسلامیات

برېښناي کوونکی : عزت الله سلطانزي

داتفسیر د باور کتابتون څخه ښکته شوی

وَإِذَا سَمِعُوا مَا أُنْزِلَ إِلَى الرَّسُولِ تَرَى

او هر کله چه واوری هغهٔ چه نازل شوی دی په رسول ﷺ تو ته وینې

أَعْيُنَهُمْ تَفِيضُ مِنَ الدَّمْعِ مِمَّا عَرَفُوا مِنَ الْحَقِّ

سترګې د دوی چه بهیږی د اوښکو نه په دے وجه چه دوی اوپیژندو حقه خبره

يَقُولُونَ رَبَّنَا آمَنَّا فَاكْتُبْنَا مَعَ الشَّاهِدِينَ ﴿٨٣﴾ وَمَا

وائی اے ربه زمونږ مونږ ایمان راوړے پس ته اولیکه مونږ د منونکو سره - او

لَنَا لَا نُؤْمِنُ بِاللَّهِ وَمَا جَاءَنَا مِنَ الْحَقِّ وَنَطْمَعُ

مونږ له څهٔ شوی دی چه یقین نه راوړو په الله او په هغه شیز چه راورسیدو مونږ ته حق نه او طمع کوو

أَنْ يُدْخِلَنَا رَبُّنَا مَعَ الْقَوْمِ الصَّالِحِينَ ﴿٨٤﴾ فَأَثَابَهُمُ

د دے چه داخل به کړی رب زمونږ مونږه لره سره د نیک بختانو نه - بیا دوی له په بدله کښې

اللَّهُ بِمَا قَالُوا جَنَّاتٍ تَجْرِي مِنْ تَحْتِهَا الْأَنْهَارُ

ورکړو الله په دے وینا د دوی داسے باغونه چه بهیږی لاندې د هغوی نهرونه

خَالِدِينَ فِيهَا ۚ وَذَٰلِكَ جَزَاءُ الْمُحْسِنِينَ ﴿٨٥﴾

اوسی به په دے کښې همیشه او دا ده بدله د نیکی کوونکو -

وَالَّذِينَ كَفَرُوا وَكَذَّبُوا بِآيَاتِنَا أُولَٰئِكَ أَصْحَابُ

او کوم خلق چه منکر شو او دروغ ئے کړه زمونږ ایاتونه دغه دی د دوزخ

الْجَحِيمِ ﴿٨٦﴾

اوسیدونکی -

## دَ آیاتو نوټرون

وړاندې دَ یهودو دَ مشرکانو سره دَ دوستۍ ذکر وُه او س دَ دوی دَ مشرکانو سره دَ مسلمانانو دَ دشمنۍ ذکر دے
کوم چه دَ دے دوستۍ اصل سبب وُه - او چونکه قرآن مجید په هره معامله کښې دَ عدل او انصاف دَ تولو نه لوئې دعوت ورکوونکے دے په دے وجه یهود او نصاراې ئې په یوه درجه کښې شمار نه کړو، په چا کښې چه کومه خو بي وه هغه ئې هم ښکاره کړه - مثلاً دَ نصاراؤ په یو خاص جماعت کښې په نسبت دَ یهودو تعصب کم وُه - او په دے نصاراؤ کښې کوم چه حق قبول کړے وُه دَ دوی ئې صفت او کړو او ښهٔ جزاء ئې ورلره ذکر کړه - او دا خاص جماعت دَ حبشو نصاراو دی کوم چه پخپل ملک کښې هغې مسلمانانو ته هیڅ تکلیف نه وُه ورکړے کوم چه دَ مدینې منوّرے دَ هجرت نه وړاندې حبشې ته تلی وُو - او کوم نور نصارا چه داسے وی هغوی هم په دے کښې حکماً داخل دی - او په دوی کښې کوم چه حق قبول کړے وُه هغه نجاشی بادشاه او دَ دهٔ ملګری وُو - چه په حَبُشه کښې ئې قرآن واوُرید وے جړل او مسلمانان شو - بیا دیرش کسان دَ نبی کریم صلے الله علیه وسلم په خدمت کښې حاضر شو او قرآن ئې واوُرید و وے جړل او مسلمانان شوُ - دا دَ دے آیاتو شانِ نزول دے -

## لنډ تفسیر

او (بعضې په دوی کښې کوم چه په آخر کښې مسلمانان شوی وُو داسے دی چه) کله دوی دے (کلام) لره آوري کوم چه په رسول (صلے الله علیه وسلم) باندې نازل شوے دے (یعنې قرآن) نو تهٔ دَ دوی سترګے وینې چه اوښکے ترې بهیږي په دے سبب سره چه دوی (دینِ) حق (یعنې اسلام) لره پیژندلے دے (مطلب دا دے چه کله حق آوري نو اثر پرې کیږي او) داسے وائي چه اے زمونږ ربه مونږ مسلمانان شو نو مونږ هم دَ هغې خلقو سره اُولیکے (یعنې په هغو کښې مونږ شمار کړے) کوم چه (دَ محمّد صلے الله علیه وسلم او دَ قرآن دَ حقّوالی) تصدیق کوی او مونږ سره څهٔ عذر دے چه مونږ په الله

تعالیٰ (د محمد صلے الله علیه وسلم د شریعت د خوږ نه مطابق) او کوم (دین) حق چه مونږ ته (اوس) را رسیدلے دے په دے ایمان راونه وړو او دبیا) کږے خبرے (امید رحم) لرو چه زمونږ رب به مونږ لره په نیکو (مقبولو) خلقو کښے داخل کړی (بلکه دا امید په اسلام پورے تړلے دے په دے د ځه مسلمانید ل ضروری دی) پس دوی (خلقو) لره الله تعالیٰ د دوی د (دے) وینا (سره د عقیدے نه) په بدل کښے به داسے باغونه (د جنت) ورکړی چه د هغوی (د محلونو) لاندے به نهرونه بهیدی (او) دوی به په هغې کښے همیشه همیشه اوسی - او د نیکانو دا جزاده او (د د دوی په خلاف) کوم خلق چه کافر شوا و زمونږ ا یاتونو او حکمونو ته ئے دروغ او وے دغه خلق دوزخیان دی (په دوزخ کښے به اوسی) -

# معلومات او مسئلے

**د بعض اهل کتابو حق پرستی**

په دے ا یاتونو کښے د مسلمانانو سره د دشمنۍ یا دوستۍ په معیار سره د هغې اهل کتابو ذکر شوے دے، چه د خپلے حق پرستۍ او د خدائے نه د یرے په وجه سره ئے د مسلمانانو سره بغض او دشمنی نه لرله، لیکن د دے صفتونو خلق په یهودو کښے ډیر کم بلکه نیشت وو - لکه حضرت عبد الله بن سلام وغیره، په نصاراؤ کښے نسبتاً د داسے خلقو شمار زیات وو- خاص کر د نبی کریم صلے الله علیه وسلم په مبارک وخت کښے د حبشو د ملک بادشاه نجاشی او د دغه ځائے په حاکمانو او عوامو کښے د داسے خلقو شمار زیات وو - او په دے سبب سره چه کله د مکے مکرمے مسلمانان د قریشو د ظلمونو نه تنګ شو، نو نبی کریم صلے الله علیه وسلم دوی ته د حبشو طرف ته د هجرت مشوره ورکړه - او اوئے فرمائیل چه ما آوریدلی دی چه د حبشو بادشاه نه پخپله ظلم کوی او نه بل څوک ظلم کولو ته پریدی، په دے وجه د مسلمانان د څه وخت د پاره هلته لاړ شی-

په دے مشوره عمل کولو کښے اول وار یولس حضرات حبشے طرف ته

او وتل، چه په دوی کښې حضرت عثمان غنیؓ او د هٔ محترمه بی بی د نبی کریم صلی الله علیه وسلم لور حضرت رقیهؓ هم شامل وُو۔

د دے نه پس د حضرت جعفرؓ (د ابی طالب د ځوئی) په مشری کښې د مسلمانانو یوه لویه قافله چه د ښځونه علاوه په کښې دوه اتیا سړی وُو حبشې ته اورسیده۔ د حبشو بادشاه او د هغه ځائے خلقو د دوی شریفانه استقبال اوکړو او دا خلق په امن او عافیت سره هلته پاتے شو۔

د مکے د قریشو غُصے او غضب دوی ځنے هم په آرام پاتے کول نه غوښتل چه دا خلق دِ په بل ملک کښې خپل ژوند په آرام سره تیر کړی۔ دوی خپله یوه ډله د ډیرو تحفو سره د حبشو بادشاه ته اولیګله۔ او دا درخواست ئے اوکړو چه دا مسلمانان دِ د خپل ملک نه اُوباسی۔ لیکن د حبشو بادشاه د حالاتو تحقیق اوکړو۔ او د حضرت جعفرؓ او د هٔ د ملګرو نه ئے د اسلام او د اسلام د پیغمبرؐ حالات معلوم کړل۔ دا حالات او د اسلام تعلیمات ئے د حضرت عیسیٰ علیه السلام او د انجیل د پیشین ګویو عین مطابق اُو موندل پکوموکښې چه د حضرت خاتم الانبیاء صلی الله علیه وسلم د را تلو ذکر وُه۔ او د دوی د تعلیماتو لنډه شان نقشه او د دوی او د دوی د اصحابو شکل شباعت وغیره پکښې ذکر وُو۔ نو د دے اثر پړا وشو او د حبشو بادشاه د قریشو ټولې هغه تحفے او ډالئ واپس کړے۔ او دوی ته ئے صاف جواب ورکړو چه زهٔ د خپل ملک نه د دا سے خلقو د ویستلو حکم نه شم کولے۔

د حضرت جعفرؓ د تقریر د حبشو په بادشاه اثر | حضرت جعفرؓ د نجاشی په دربار کښې د اسلام او د اسلامی تعلیماتو یو لنډه شان نقشه پیش کړه

او بیا د دے حضراتو هلته ټیکاوید و یواځے نه د دهٔ په زړهٔ بلکه د هغه ځائے د حاکمانو او عوامو ټولو په زړهٔ کښې د اسلام او د اسلام د پیغمبر حضرت محمد صلی الله علیه وسلم رشتونے محبت او لوئی پیدا کړه۔ چه د دے نتیجه دا شوه چه هرکله نبی کریم صلی الله علیه وسلم مدینے منورے ته هجرت اوفرمایه او هلته د دوی او د اصحابو کرامو په اطمینان سره پاتے کیدل

معلوم شو۔ او دَ حبشو نه مدینې منوّرې ته دَ تلو قصد منها جرینو او کړو. نو دَ حبشو بادشاه نجاشي دَ دوی سره دَ خپل مذهب دَ منبرانو لوئے لوئے عالمان مشائخ دَ حضور صلی الله علیه وسلم په خدمت کښې او لیګل چه تهو لا اوویا کسان وُو په دوی کښې دوه شپیته دَ حبشو وُو او اته دَ شام وُو۔

**دَ حبشو دَ بادشاه دَ تولی دَ پیغمبرؐ په دربار کښې حاضری**

دا ټول لګے دَ نبی کریم صلی الله علیه وسلم په خدمت کښې په فقیرانه او راهبانه جامو کښې حاضر شو۔ نبی کریم صلی الله علیه وسلم دوی ته سورتِ یٰسٓ او لوستو۔ دے خلقو به آورید او آواوُ بنګے به ئے بهیدے۔ ټولو اُووے چه دا کلام دَ هغے کلام سره ډیر مشابه دے کوم چه په حضرت عیسیٰ علیه السلام نازل شوے وُه۔ او دا ټول مسلمانان شو۔

دَ دوی دَ واپسئ نه پس دَ حبشو بادشاه نجاشي هم دَ اسلام اعلان اوکړو۔ او خپل یو خط ئے خپل ځوئی له ورکړو او دَ دهٔ په مشرئ کښې ئے یو ټولے مدینې ته اولیګه۔ لیکن دَ بد قسمتئ نه دَ دوی کشتئ په دریاب کښې غرقه شوه۔ غرض دا دے چه دَ حبشو بادشاه او حاکمانو او عوامو دَ اسلام او مسلمانانو سره نه صرف دَ شریفانو او عادلانو سلوک اوکړو۔ بلکه آخر پخپله هم مسلمانان شو۔

جمهور تفسیر لیکونکی فرمائی چه دا ذکر شوی آیاتونه دَ دغې حضراتو په باره کښې نازل شوی دی: وَلَتَجِدَنَّ اَقْرَبَهُمْ مَّوَدَّةً لِّلَّذِیْنَ اٰمَنُوا الَّذِیْنَ قَالُوْٓا اِنَّا نَصٰرٰی: او په روستو آیاتونو کښې دَ دوی دَ الله تعالیٰ دَ ویرې نه ژړل او حق قبلول بیان شوی دی۔ په دے هم دَ جمهورو تفسیر لیکونکو اتفاق دے چه اګر که دا آیاتونه دَ نجاشي او دَ دهٔ دَ لیګلے ډلے په باره کښې نازل شوی دی۔ لیکن الفاظ عام دی په دے وجه دَ دے حکم دَ ټولو نصاراؤ دَ پاره عام او ټولو له شامل دے۔ کوم چه دَ حبشو دَ خلقو په شان حق پرست او انصاف کوونکی وی۔ یعنی دَ اسلام نه اول دَ انجیل تابعدار وُو او دَ اسلام راتلو نه پس دَ اسلام پیروکار شو۔

په یهودو کښې هم اګرچه یو څو حضرات دَ دے شان موجود وُو۔

کوم چه د موسیٰ علیه السلام په زمانه کښې په تورات عمل کونکی وُو، بیا د اسلام راتلو نه پس مسلمانان شو- مګر دا دومره کم وُو چه د امتونو او قومونو د ذکر کولو په وخت کښې دوی نه شی ذکر کولے- د باقی یهودو حال بنکاره وُو چه دوی د مسلمانانو په دشمنئ او بغض کښې د ټولو نه وړاندې وُو- په دے وجه ئے په ایت کښې د دوی حال ذکر کړو-

"لَتَجِدَنَّ اَشَدَّ النَّاسِ عَدَاوَةً لِّلَّذِيْنَ اٰمَنُوا الْيَهُوْدَ" یعنی د مسلمانانو په دشمنئ کښې د ټولو نه زیات سخت یهود دی"

د کلام نچوړ دا شو چه په دے ایت کښې د نصارا د یو خاص جماعت صفت شوے دے چه د خدائے نه یریدل او حق پرست وُو- په دوی کښې نجاشی او د ده ملګری هم داخل دی او نور نصارا هم په کومو کښې چه دا صفتونه وی- یا په راتلونکے زمانه کښې پیدا کیږی- لیکن د دے دا معنیٰ نه د ایت نه ووځی او نه کیدے شی چه نصارا خواه هرڅومره چه ګمراه وی او د اسلام په دشمنئ کښې هرڅومره چه سخت وی دوی به په هرحال د مسلمانانو دوستان ګنړلے شی او مسلمانان به دوی ته د دوستئ د پاره لاس ور اوږدوی- ځکه چه دا غلط ده او د واقعاتو نه قطعًا خلاف ده- امام ابو بکر جصاصؒ په احکام القرآن کښې فرمائی- چه بعض جاهلان چه دا خیال کوی چه په دے ایاتونو کښې مطلق د نصارا و صفت دے، او دوی مطلق د یهودو نه غوره دی دا سراسر جهالت دے- ځکه چه که په عام طور سره د دواړو ډلو د مذهبی عقیدو موازنه اوکړے شی- نو د نصاراؤ شرک زیات واضحه دے- او که د مسلمانانو سره د دوی معاملوته اوکتے شی نو د نن صباعامو نصاراؤ هم په اسلام دشمنئ کښې د یهودو نه کم حصه نه ده اغستے- البته دا صحیح ده چه په نصاراؤ کښې داسے خلق ډیر تیر شوی دی چه خدا ترس او حق پرست وُو- نو په دے وجه د دوی توفیق د اسلام د قبلولو شوے دے- او دا ایتونه د دے دواړو ډلو په مینځ کښې د دے فرق بنکاره کولو د پاره نازل شوی دی- په خپله د دے ایت په اخر کښې قرآن کریم دا حقیقت په دے الفاظو سره بنکاره کړے دے:-

ذٰلِكَ بِاَنَّ مِنْهُمْ قِسِّيْسِيْنَ وَرُهْبَانًا وَّاَنَّهُمْ لَا يَسْتَكْبِرُوْنَ؛ یعنی دَ کو مو نصاراؤ صفت چه په دے آیا تو نوکښې شوے دے دَهغې وجه داده چه په دوی کښې عالمان او دَخدائے نه یریدونکی تارِکان دَ دُنیا حضرات موجود دی او په دوی کښې تکبّر نیشته چه دَ نورو په خبره غَوَر کولو ته تیار نه وی. دَ مقابلے نه معلومه شوه چه دَیهودو دا حالت نه وُو. په دوی کښې دَ خدائے نه یَره او دَحق تابعداری نه وَه. دَدوی عالمانو هم دَدُنیا دَ ترک کولو په ځائے خپل علم لره صرف دَمعاش ذریعه جوړ کړے وَه، او دَدُنیا په طلب کښې داسے مست شوی وُو چه دَ حق او ناحق او حلال حرام بیلتون ئے نه کولو

| دَ قوم او ملّت اصلی روح حق پرست عالمانٌ او مشائخ دی |
|---|

دَ ذکر شوی آیت دَ بیان نه یو اهمه خبره دا معلومه شوَه چه دَ قوم او ملّت اصل روح حق پرست او خدا ترس عالمان او مشائخ دی. دَ دوی وجود دَپو رَه قوم ژوندون دے. ترڅو پورے چه په یو قوم کښې داسے عالمان او مشائخ موجود وی چه دَ دنیا په خواهشاتو پسے نه ځی دَ خدائے یَره دَ دوی مقام وی، نو دغه قوم دَ خیر او برکت نه نهٔ شی محرومه کیدے.

دالله تعالیٰ دِ زمونږ عالمانو ته دَ صحیح دینداری خدا ترسیٔ او دَملك و ملّت دَ خیر خواهیٔ جذبه نصیب کړی چه دوی دَپارتی بازونه ځان اوکړی او دَقوم صحیح رهنمائی ثابت شی.

يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا لَا تُحَرِّمُوْا طَيِّبٰتِ مَآ اَحَلَّ

اے ایما نداراو! مَه حراموئ هغه مزیدار څیزونه کوم چه الله ستاسو

اللّٰهُ لَكُمْ وَلَا تَعْتَدُوْا ۚ اِنَّ اللّٰهَ لَا يُحِبُّ

دَپاره حلال کړی دی او دَحد نه مه تیریږئ. بے شکه الله نه خوښوی

الْمُعْتَدِيْنَ ﴿۸۷﴾ وَكُلُوْا مِمَّا رَزَقَكُمُ اللّٰهُ حَلٰلًا

دَحد نه تیریدونکی. او خورئ دَ الله درکړی شوی هغه څیزونه چه حلال

طَيِّبًا ۖ وَّاتَّقُوا اللّٰهَ الَّذِيْٓ اَنْتُمْ بِهٖ مُؤْمِنُوْنَ ﴿۸۸﴾

پاک وی- او یره کوئ د الله نه په کوم چه تاسو ایمان لرئ -

**د آیاتونو ترون**

ترڅې ځائې پورې د اهلِ کتابو متعلق خبرې اترې وې دپاسې بیا واپسی ده فرعی احکامو طرف ته- چه د دوی څه ذکر د سورت په شروع کښې او څه په مینځ کښې هم شوې وو. او د مقام د خصوصیت په اعتبار سره یو خاص ترون هم نقل دې- هغه دا چه بره د صفت په مقام کښې د رهبانیت ذکر راغلې دې نو کوم یا چه دغه د دُنیا د ترک کولو یو خاص جز دې- لیکن دا احتمال وُه چه هسې نه چرې ته څوک د رهبانیت برابر خاصیتونه د صفت قابل اوګنړي- په دې وجه په دې مقام کښې د حلالو د حرامولو منع زیاته مناسب معلومه شوه-

(بیان القرآن په اختصار سره)

# لنډ تفسیر

اے ایماندارو! الله تعالیٰ چه کوم خیزونه ستاسو دپاره حلال کړی دی (خواه د خوراک سکاک او اغستو د قسم نه وی یا د نکاح د قسم نه وی) په دې کښې مزیدار او د خوښې) خیزونو لره (په قسم او وعده کولو په خپلو نفسونو باندې) مه حراموئ او د (شرعی) حدونو نه ...... (کوم چه د حلالو او حرامو په باره کښې مقرر دی) مه اوځئ بے شکه الله تعالیٰ د (شرعی) حد نه د تونکو لره نه خوښوی- او خدائے تعالیٰ چه کوم خیزونه تاسو لره درکړی دی په دوی کښې حلال او د خوښې خیز ونه خورئ (استعمالوئ) او د الله تعالیٰ نه یره کوئ پکوم چه تاسو ایمان لرئ- (یعنی د حلالو خیزونو حرامول د الله تعالیٰ د رضا نه خلاف دی- نو د الله تعالیٰ نه اُویریګئ او دا سے کار مه کوئ)-

# معلومات او مسئلے

د دنیا پاتے کول که د الله تعالی په حدونو کښے دننه وی نو جائز ورنه حرام دی

په ذکر شوو آیاتو کښے دا خودلے شوے ده چه که د دُنیا ترک کول او د خوندونو او مزو پاتے کول په یوه درجه کښے بند او غوره دی مګر په دے کښے هم د الله تعالی د حدونو نه تجاوز کول بند او حرام دی، چه تفصیل ئے دا دے:-

یو حلال شی لره د حرام مقرر کولو درے درجے

یو حلال شی لره د حرام مقرر کولو درے درجے دی یوه دا چه په عقیده سره دے لره حرام او ګنړی۔ دوئم دا چه په وینا سره دغه شے د ځان د پاره حرام کړی، مثلاً قسم او خوری چه یخے اوبه به اُو نه سکم یا فلانے قسم حلال خوراک به او نهٔ خورم، یا فلانے جائز کار به او نه کړم۔ دریم دا چه عقیده او وینا هیڅ نوی شوی محض عملاً د همیشه د پاره یو حلال شی لره د پاتے کولو قصد او کړی۔

په اوّلنی صورت کښے که د دغه شی حلالوالے په قطعی دلیلونو سره ثابت وی نو د دے حرام ګنړونکے د الله د قانون په ډاګه د خلاف کولو په وجه سره به کافر شی۔

او په دوئم صورت کښے که د قسم الفاظو په وئیلو سره ئے دغه شے په ځان حرام کړے وی۔ نو قسم به ئے اُوشی د قسم ډیر الفاظ دی چه د فقه په کتابونو کښے ذکر دی۔ په دوی کښے یو مثال دا دے چه مثلاً په ډاګه اووائی چه په الله مے دے قسم وی چه دا فلانے شے به او نه خورم، یا فلانے کار به او نه کړم۔ یا اووائی چه فلانے شے یا فلانے کار دِ په ما حرام وی۔ د دے حکم دا دے، چه بے ضرورته داسے قسم خوړل ګناه دے۔ په دهٔ لازم دی چه دا قسم مات کړی او د قسم کفاره ادا کړی؛ چه د دے تفصیل به وړاندِ راشی۔

دریم قِسم چه په هغے کښے ئے په عقیده یا قول سره څه شے نه وی حرام کړے بلکه په عمل کښے داسے کار کوی لکه د حرامو سره چه کولے شی چه د همیشه د پاره ئے پاتے کول لازم کړی۔ د دے حکم دا دے چه که دغه حلال پاتے کول ثواب ګنړی نو دا بدعت او رهبانیّت دے چه عظیم ګناه ئے په قرآن او حدیث سره ثابت دے۔

دَدے خلاف کول واجب دی او په داسے پابندئ بانډِ پاتے کیدل گناه دے۔ البته که داسے پابندی په نیت دَ ثواب نه وی بلکه په څهٔ بَله وجه وی مثلاً دَ څهٔ بدنی یا روحانی بیمارئ په سبب سره څهٔ خاص شے دَ همیشه دَپاره پاتے کړی نو په دے کښے هیڅ گناه نیشته۔ دَ بعض صوفیانو او بزرگانو نه دَحلالو څیزونو دَپاتے کولو کوم روایاتونه نقل دی هغه ټول دَ دے قسمه نه دی چه هغوی دَخپل نفس دَپاره دَغه څیزونه مُضِر گنړلی وُو۔ یا ورته چا بزرگ مُضر خودلی وُو۔ په دے وجه په طور دَ علاج ئے پاتے کړل۔ په دے کښے هیڅ باک نیشته۔

دَ ایت په اخر کښے ئے او فرمائیل : وَلَا تَعۡتَدُوۡا اِنَّ اللّٰهَ لَا یُحِبُّ الۡمُعۡتَدِیۡنَ : یعنی دَ الله تعالیٰ دَحدونو نه وړاندِ مهٔ ځئ۔ ځکه چه الله تعالیٰ داسے وړاندِ تلونکو لره نه خوښوی۔

دَحد نه دَ وړاندِ تلو مطلب دا دے چه یو حلال شی لره بے دَ څهٔ عذره ثواب او گنړی پاتے ئے کړی۔ چه نا پوهه سړے ئے تقویٰ گنړی او دَ الله تعالیٰ په نزد بانډِ دَحد نه تجاوز او ناجائز دی۔ په دے وجه په بل ایت کښے ارشاد دے۔

وَاتَّقُوا اللّٰهَ الَّذِیۡۤ اَنۡتُمۡ بِهٖ مُؤۡمِنُوۡنَ : یعنی کوم رزق حلال او پاک چه الله تعالیٰ تاسو لره درکړے دے دغه خورئ او دَ الله تعالیٰ نه چه کوم ستاسو ایمان دے یره کوئ۔

په دے ایت کښے ئے په ډاګه او فرمائیل چه حلالو پاکو څیزونو لره ثواب گنړل او پاتے کول تقویٰ نه ده بلکه تقویٰ په دے کښے ده چه دغه دَ الله تعالیٰ نعمت وگنړی او استعمال ئے کړی او شکر ادا کړی۔ البته دَ څهٔ جسمانی یا روحانی مرض په وجه سره ئے په طور دَ علاج پاتے کړی نو دا په دے کښے نه دی داخل۔

لَا یُؤَاخِذُکُمُ اللّٰهُ بِاللَّغۡوِ فِیۡۤ اَیۡمَانِکُمۡ وَلٰکِنۡ

نه نیسی تاسو لره الله پاک ستاسو په عَبثو قسمو نو بانډِ او لیکن

يُؤَاخِذُكُمْ بِمَا عَقَّدْتُّمُ الْاَيْمَانَ ۚ فَكَفَّارَتُهٗٓ

نیسی تاسو په هغې قسم چه تاسو مضبوط کړې وی - پس دَدې کفاره

اِطْعَامُ عَشَرَةِ مَسٰكِيْنَ مِنْ اَوْسَطِ مَا تُطْعِمُوْنَ

خوراک ورکول دی لسو محتاجانو ته دَ اوسط درجې هغه خوراک چه تاسو ورکوئ

اَهْلِيْكُمْ اَوْ كِسْوَتُهُمْ اَوْ تَحْرِيْرُ رَقَبَةٍ ۗ فَمَنْ

خپلو کوروالوته یا جامې ورکول لسو محتاجانوته یا یو غلام آزادَول دی - بیا چه چا ته

لَّمْ يَجِدْ فَصِيَامُ ثَلٰثَةِ اَيَّامٍ ۗ ذٰلِكَ كَفَّارَةُ

دا حاصل نه وی نو روژې نیول دی درې ورځې - دا کفاره ده

اَيْمَانِكُمْ اِذَا حَلَفْتُمْ ۗ وَاحْفَظُوْٓا اَيْمَانَكُمْ ۗ

ستاسو دَ قسمونو کله چه قسم اوخورئ - او حفاظت کوئ دَ خپلو قسمونو -

كَذٰلِكَ يُبَيِّنُ اللّٰهُ لَكُمْ اٰيٰتِهٖ لَعَلَّكُمْ تَشْكُرُوْنَ ﴿٨٩﴾

داسې بیانوئ الله تاسو ته خپل حکم چه تاسو احسان اُومنئ -

| دَ ایاتو نوتړون | بره دَ پاکو څیزونو دَ حرامولو ذکر وُه او دا چونکه بعض وخت په قسم خوړلو سره وی - په |
|---|---|

دې وجه اوس ورپسې دَ قسم خوړو دَ حکم ذکر دې -

# لنډ تفسير

الله تعالیٰ ستاسو ریه دُنیا کښې) مؤاخذه نه کوی ریعنی کفاره نه واجب کوی) ستاسو په لغوه قسم رما تولو) بانې لیکن (داسې) مؤاخذه په هغې فرمائی چه تاسو قسمونو لره ریه راتلونکې خبره) محکم کړئ را وبیا دغه قسمونه مات کړئ)

پس دَدے (قسم ماتولو) کفاره (داده چه) لسو محتاجانو ته خوراک ورکول دَ اوسط درجے کوم چه خپل کوروالو ته (دَ معمول مطابق) خوراک ورکوئ یا دوی (لسو محتاجانو) ته کپړه ورکول (دَ اوسط درجے) یا یو غلام یا وینځه آزادول (یعنی په دے درے خبرو کښے چه کومه کَولے شی هغهٔ دے اوکړی) او دَچا چه (دَ دے درے واړو) طاقت نه وی نو (دَ دهٔ کفاره) درے ورځے (پرلے پسے) روژے نیول دی دا (چه ذکر شو) کفاره ده ستاسو دَ (دا سے) قسمونو کله چه تاسو قسم اوخورئ (او بیائے مات کړئ) او (چونکه دا کفاره واجب دهٔ په دے وجه) دَخپلو قسمونو خیال ساتئ (چه ته دا سے او نه شی چه قسم مات کړئ او کفاره ورنه کړئ) او الله تعالیٰ چه لکه څنګه دا حکم ستاسو دَ دُنیوی رعایت او دینی مصلحتونو بیان کړے دے) دغه شان الله تعالیٰ ستاسو دَپاره خپل (نور) حکمونه (هم) بیانوی چه تاسو (دَ دے نعمت یعنی دَ خلقو دَ مصلحتونو دَ رعایت) شکر ادا کړی۔

## معلومات او مسئلے

**دَ قسم خوړو دَ یو څو صورتونو او دَدے متعلق حکمونه**

په دے ایت کښے دَ قسم خوړو دَ یو څو صورتونو بیان دے۔ دَ بعضے بیان په سورت بقره کښے هم تیر شوے دے۔ او څو ړو دَ تهولو دَ ا دے۔ چه که چا په تیره واقعه باندِ قصدًا په دروغه قسم اوخوړ دے ته دَ فقهاؤ په اصطلاح کښے "یمین غموس" وائی۔ مثلاً یو سړی یو کار کړے دے او دے پو هیږی چه ما دا کار کړے او بیا هم قصدًا قسم اوخوری چه ما دا کار نه دے کړے۔ دا دَ دروغو قسم سخت ګناه کبیره او دَ دنیا او اٰخرت دَ وبال سبب دے۔ مګر په دے څهٔ کفاره نه واجبیږی توبه او استغفار لازم دی۔ په دے وجه دے ته دَ فقهاؤ په اصطلاح کښے "یمین غموس" وائی ځکه چه "غموس" معنیٰ دَه " ډوبوونکے" دا قسم بندهٔ لره په ګناه او وبال کښے ډوبوی۔

دَ دویم صورت دا دے چه په تیره واقعه باندِ چه دے ئے پخپل نزد رشتونے ګنړی قسم اوخوری او په واقع کښے هغه غلط وَی، مثلاً په څهٔ

ذریعه سره معلومه شوې وې چه فلانے سړے راغلے دے او دے په دے خبره یقین اوکړو قسم اوُخوړو چه هغه راغلے دے او بیا معلومه شي چه دا قسم دَ واقع خلاف دے هغه نه دے راغلے دیته "یمین لغوه" وائي دغه شان بے اراده دَ ژبے نه دَ قسم لفظ اوځي نو دے ته هم "یمین لغوه" ویلے شي - دَ دے حکم دا دے چه په دے نه کفاره شته او نه ګناه -

دریم صورت دَ قسم دا دے چه په راتلونکي زمانه کښے دَ څه کار کولو یا دَ نه کولو قسم اوخوری دے ته "یمین منعقده" وائي - دَ دے حکم دا دے چه دَ دے قسم دَ ماتولو په صورت کښے کفاره واجبیږي - او په بعضو صورتونو کښے ورسره ګناه هم وي او په بعضو کښے ګناه نه وي - صرف کفاره وي -

دلته دَ قرآن کریم په ذکر شوي ایت کښے په ظاهره دَ لغوه نه هغه قسم مراد دے چه په هغے کفاره نه وي - خواه ګناه وي او که نه وي ځکه چه په مقابل کښے ئے "عَقَّدْتُّمُ الْاَیْمَانَ" ذکر دے - چه دَ دے نه معلومه شوه چه دلته دَ مؤاخذے نه مراد صرف دَ دُنیا مؤاخذه ده چه دَ کفارے په صورت کښے وي -

او دَ سورتِ بقره په ایت کښے ارشاد دا دے "لَا یُؤَاخِذُکُمُ اللّٰهُ بِاللَّغْوِ فِیْٓ اَیْمَانِکُمْ وَ لٰکِنْ یُّؤَاخِذُکُمْ بِمَا کَسَبَتْ قُلُوْبُکُمْ" په دے کښے دَ لغوه نه مراد هغه قسم دے چه بے دَ قصد او اراده دے دَ ژبے نه اوځي - یا څیز نزد یو خبره رښتیا ګڼري او قسم پرے اوکړي - مګر په واقع کښے هغه غلطه شي دَ دے په مقابل کښے هغه قسم ذکر دے چه په قصد سره ئے دروغ ویلي وي چه "یمین غموس" ورته ویلے شي - په دے وجه دَ دے ایت حاصل دا شو چه په "یمین لغوه" باندے خو هیڅ ګناه نیشته، بلکه ګناه په "یمین غموس" کښے دے چه قصدًا ئے دروغ ویلي وي - نو په سورتِ بقره کښے حکم دَ اخرت دَ ګناه دے - او دَ سورتِ مائده په ایت کښے کوم چه دا اوس ذکر شوے دے دَ دُنیوي حکم یعني کفارے بیان دے - چه دَ دے نه هم دا شو چه په لغوه قسم باندے الله تعالیٰ تاسو نه نیسي یعني کفاره نه واجبوي - بلکه کفاره صرف په هغه قسم لازموي چه په راتلونکي زمانه کښے دَ څه کار کولو یا نه کولو په

باره کښې ئې خبرې شوی دی، او بیائې مات کړې وی - د دې نه پس د کفارې تفصیل دا ارشاد فرمائی :-

فَكَفَّارَتُهٗٓ اِطْعَامُ عَشَرَةِ مَسٰكِيْنَ مِنْ اَوْسَطِ مَا تُطْعِمُوْنَ اَهْلِيْكُمْ اَوْ كِسْوَتُهُمْ اَوْ تَحْرِيْرُ رَقَبَةٍ ؕ: یعنی په دې درې کارونو کښې د یو یعنی په یو څیز اختیار سړه او کړی - اول دا چه لسو مسکینانو له د متوسط درجې خوراک سحر ماښام ورکړی دوه وخته - یا دې لسو مسکینانو له په قدر د ستر پټید و کپړه ورکړی مثلاً یو پرتوګ یا او کمیس - یا د یو غلام چه د ده په مِلک کښې وی آزاد کړی -

---

د دې نه پس ارشاد دے : فَمَنْ لَّمْ يَجِدْ فَصِيَامُ ثَلٰثَةِ اَيَّامٍ ؕ: یعنی که د قسم ماتوونکی د دې مالی کفارې اداکولو قدرت نه وی چه لسو مسکینانو له نه خوراک ورکولے شی او نه کپړه او نه غلام آزادولے شی - نو بیا د ده کفاره دا ده چه درې ورځې روژې ږدی او نیسی - په بعض روایتونو کښې دلته د درې ورځو پرلپسې د نیولو حکم راغلے دے - په دې وجه د امام اعظم ابوحنیفهؒ او بعض نورو اماما نو په نزد کفاره د قسم درې ورځې روژې نیول پرلپسې ضروری دی -

په ذکر شوی آیت کښې د کفارې د قسم متعلق لفظ د : اِطْعَامُ : را غلے دے - او د اطعام معنی د عربی لغت په اعتبار سره د خوراک ورکولو هم ده - او په چائې د خوړولو هم ده - په دې وجه فقهاؤ د آیت مطلب مقرر کړے دے چه کفاره ورکوونکی ته د دواړو خبرو اختیار دے چه لس مسکینان میلمانه کړی خوراک پرې او خوری - یا خوراک د دوی په ملکیت کښې ورکړی - مګر په اول صورت کښې دا ضروری ده چه د متوسط درجې خوراک کوم چه عادةً دوی پخپله کور کښې خوری ( یعنی دا کفاره ورکوونکی ) د غه شان خوراک د دواړه وخته لسو مسکینانو ته په مړه خیټه ورکړی - او په دویم صورت کښې د یو مسکین ته په قدر د یو سړی سا په ورکړی او یا د هغې قیمت په دې درې واړو کښې چه ورته کومه اسانه وی هغه د او کړی - لیکن روژه نیول صرف په هغه صورت کښې کافی

کیدے شی کله چه په دے دریواړو کښے په یو هم قدرت نه وی۔

| دَ قسم ماتیدو نه اول کفاره درکول جائز نه دی | دَ آیت په آخر کښے دَ خبردار کولو دَ پاره دوه کاروَنه ارشاد اوفرمائیل اوّل: ذٰلِكَ كَفَّارَةُ |
| --- | --- |

اَیْمَانِكُمْ اِذَا حَلَفْتُمْ: یعنی دا کفاره ده ستاسو دَ قسم کله چه تاسو قسم اوخوړ امام اعظم ابوحنیفه اودَ نورو اکثرو اماما نو په نزد دَ دے مطلب دا دے چه کله تاسو دَ یو داتلو نکی کار په کولو یا نه کولو قسم اوکړئ او بیا دغه قسم مات شی نو دَ دے کفاره هغه ده کومه چه بره ذکر شوه۔ دَ دے مطلب دا دے چه کفاره دَ قسم ماتیدو نه پس پکار ده۔ دَ قسم ماتیدو نه اوّل که کفاره ورکړے شوه نو هغه به معتبره نه وی۔ وجه دا ده چه دَ کفّارے دَلازمیدو سبب قَسم ماتول دی خو کله چه قسم مات نه وی نو کفاره واجب نه ده۔ نو لکه څنګه چه دَ وخت نه وړاندِ مونځ نه کیږی۔ دَ رمضان نه وړاندِ دَ رمضان روژه نه کیږی۔ دغه شان دَ قسم ماتیدو نه وړاندِ دَ قسم کفاره هم نه اداکیږی۔

دَ دے نه پس ارشاد فرمائی: وَاحْفَظُوْٓا اَیْمَانَكُمْ: یعنی دَ خپلو قسمونو حفاظت کوئ۔ مطلب دا دے چه کوم شی قسم تاسو خوړلے وی نو بے دَشرعی یا طبعی ضرورت نه قَسم مَه ماتوئ۔ او بعض حضرات فرمائی چه دَ دے نه مراد دا دے چه په قَسم خوړو کښے تلوار مَه کوئ۔ خپل قسمونه محفوظ ساتئ تر څو پورے چه سخته مجبوری نه وی هسے قَسمُو نه مه خورئ۔ (مظهری)

---

یٰٓاَیُّهَا الَّذِیْنَ اٰمَنُوْٓا اِنَّمَا الْخَمْرُ وَالْمَیْسِرُ وَالْاَنْصَابُ

اے ایماندارو! دا چه کوم شراب او جواری او بُتان

وَالْاَزْلَامُ رِجْسٌ مِّنْ عَمَلِ الشَّیْطٰنِ فَاجْتَنِبُوْهُ

او پانسے (غشی) دی ټول ګنده کاروَنه دی دَشیطان، پس دَ دے نه ځان ساتئ

لَعَلَّكُمْ تُفْلِحُوْنَ ﴿٩٠﴾ اِنَّمَا يُرِيْدُ الشَّيْطٰنُ اَنْ

چه تاسو نجات بیا موئ - شیطان خو داغواړي چه

يُّوْقِعَ بَيْنَكُمُ الْعَدَاوَةَ وَالْبَغْضَآءَ فِي الْخَمْرِ

واچوي په تاسو کښې دُشمني او بُغض په ذریعه د شرابو

وَالْمَيْسِرِ وَيَصُدَّكُمْ عَنْ ذِكْرِ اللّٰهِ وَعَنِ

او جوارئ او منع کړي تاسو له د الله د یادونه او د

الصَّلٰوةِ ۚ فَهَلْ اَنْتُمْ مُّنْتَهُوْنَ ﴿٩١﴾ وَاَطِيْعُوا

مانځه نه پس اوس هم تاسو به منع شئ؟ - او حکم منئ

اللّٰهَ وَاَطِيْعُوا الرَّسُوْلَ وَاحْذَرُوْا ۚ فَاِنْ

د الله او حکم منئ د رسول ﷺ او ځان ساتئ - بیا که تاسو

تَوَلَّيْتُمْ فَاعْلَمُوْٓا اَنَّمَا عَلٰى رَسُوْلِنَا الْبَلٰغُ الْمُبِيْنُ ﴿٩٢﴾

واپس شوئ نو پوهه شئ چه زموږ د رسول ﷺ په ذمه صرف رسَوَل دی بنکاره -

**د ایاتو تړون** بره د حلالو څیزونو د یاتے کولو خاص ممانعت وه اوس دلته د بعض حرامو څیزونو د استعمال ممانعت بیانیږي -

## لنډ تفسیر

اے ایماندارو! خبره داده چه شراب او جواري او بُت وغیره او د خسته‌ړی اچولو غشي دا ټول گنده خبرے شیطاني کارونه دي، پس د دے نه بالکل جُدا اوسئ چه تاسو په وجه د دے د نقصانونو نه بچ کیدو

چه وړاندې ذکر کیږی) نجات بیا مومئ (او دغه نقصانونه دینوی هم دی او دَ آخرت هم چه بیان ئې داده چه) شیطان خو دا غواړی چه دَ شرابو او جوارئ په ذریعه ستاسو په منځ کښې (په روزګار کښې) دُشمنی او (په زړونو کښې) بُغض واچوی (او دا ښکاره خبره ده چه په شرابو کښې عقل په ځائې نه وی کنټرولول هلو او فساد ته خبره رسی چه دَدې نه پس بیا هم په طبیعتو نو کښې ځمې والې باقی وی. او په جوارئ کښې چه کوم سړې اُوبائیلی دې کټونکی ته غُصّه وی او دَ دې غصّې اثر په هغه بل باندې هم کیږی دا خو ئې دَ دُنیا نقصان او ضرر شو) او (شیطان دا غواړی چه دَ دې شرابو او جوارئ په سبب سره) دَ الله تعالیٰ دَ یادو او دَ مانځهٔ (کومه چه دَ الله تعالیٰ دَیادو دَ ټولو نه غوره طریقه ده) تاسو له بیرته اوساتی (او دا هم ښکاره خبره ده ځکه چه په شرابو کښې خو دَ دهٔ هوش په ځائې نه وی. او په جوارئ کښې خو دَ ګټونکی خوشحالی او مستی تر دې حده پورې وی چه دې پکښې غرق وی او بائیلات کونکے انتهائی خفه او پریشانه او دَ بیا غالب او ګټو ز راتلو په کوششی کښې دومره غرق وی چه فراغت ورته نه وی، دا خو دینی نقصان او ضرر شو. نو هر کله چه دومره ناکاره څیزونه دی پس او وایئ؟ چه) آیا اوس به هم تاسو منع شئ؟ او تاسو په ټولو حکمونو کښې) دَ الله تعالیٰ حکم منئ او دَ رسول (صلے الله علیه وسلم) حکم منئ او (دَ حکم دَ مخالفت نه) احتیاط ساتئ او که (دَ حکم منلو نه) مخ واړوئ نو پوهه شئ چه زمونږ دَ رسول په ذمه صرف صاف صاف (دَ حکم) رسول دی (او هغهٔ دا کار په ښهٔ طریقه سره پوره کړو. او تاسو ته ئې حکمونه اُورسول اوس ستاسو هیڅ عذر باقی پاتې نه شو)۔

## معلومات او مسئلې

**دَ کائناتو پیدا کول دَ انسان دَ نفع دَپاره دی**

په دې آیاتو نو کښې دَ دې خبرې خودل منظور دی، چه دَ کائناتو مالک دا ټول کائنات دَ انسان دَ خدمت دَپاره پیدا کړی دی او هر یو شے ئې دَ انسان په خاص خدمت باندې لګولے دے۔ او انسان ئې دَ دې کائناتو مخدوم جوړ کړے دے۔ په انسان ئې

صرف یوه پابندی لګولې ده چه ځما د مخلوق نه د نفعې اخستو چه کوم حدونه مقرر کړیدی د هغې نه به وړاندې نه تیریږئ - کوم څیزونه چه مونږ تاسو لره پاک او حلال کړی دی د دغو نه ځان ساتل بې ادبي او ناشکری ده او د کومو څیزونو چه یو خاص استعمال مونږ حرام کړے دے په دے کښې خلاف ورزی کول نافرمانی او بغاوت دے - د بنده کار دا دے چه د مالکِ حقیقي د هدایت مطابق د هغهٔ د مخلوقاتو استعمال اوکړی - د دے نوم عبدیّت یعنی بندګی ده -

په اولنی آیت کښې د شرابو، جوارئ، بُت او د جوارئ د غشو د حرامولی بیان دے - دا مضمون د سورتِ بقره په یو آیت کښې تقریبًا هم په دا سے الفاظو سره تیر شوے دے:- يَاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْآ اِنَّمَا الْخَمْرُ وَالْمَيْسِرُ وَالْاَنْصَابُ وَالْاَزْلَامُ رِجْسٌ مِّنْ عَمَلِ الشَّيْطٰنِ : په دے کښې ئې دے څلور څیزونو ته رِجْسٌ وئیلی دی "رِجْسٌ" په عربئ ژبه کښې دا سے ګنده څیز ته وئیلے شی د کوم نه چه د انسان په طبیعت کښې کرکه او نفرت پیدا کیږی - دا څلور څیزونه دا سے دی چه که انسان لږ هم برابر عقل او سلیم طبع لری نو یقیناً به د ده د دے څیزونو نه کرکه او نفرت وی

| د ازلام تشریح | په دے څلورو څیزونو کښې یو اَزْلَام دے چه د زَلَمٌ جمع ده - اَزْلَام هغه غشو ته وئیلے شی پکوم چه په عربو کښې د خسنړی

کولو په طور د جوارئ رسم جاری وه - چه د دے صورت دا وه چه لسو کسانو به په شریکه یو اوښ ذبح کړو - بیا به ئې د دے د غوښو د تقسیم د پاره په ځائے د دے چه لس حصے ئې کړی په دے کښې به ئې دا سے جواری کوله چه په لسو غشو کښې به ئې په اووه غشو د ځۀ مقررو حصو نښې جوړے کړے وے په چا یوه په چا دوه یا درے او درے غشی به ئې ساده پاتے کړی وو - دا غشی به ئې په ترکش کښې واچول او خوزول به ئې بیا به ئې د یو یو شریک د پاره یو یو غشے د ترکش نه راویستلو - او د څومره حصو غشے چه به د چا په نوم راووتلو دے به د دغو حصو مستحق ګڼلے کیده - او د چا په نوم چه به ساده غشے راووتلو هغهٔ به د حصے نه محروم وه -

لکه نن صباچه ډیر قسمونه د لاټرۍ په طریقه په بازارونو کښې جاری دی دغه شان داسې خسنړې جواری د قرآن په رُو سره حرام دی۔

**د خسنړی جائز صورت**

البته یو قسم خسنړے جائز او د نبی کریم صلے الله علیه وسلم نه ثابت دے۔ هغه داچه کله حقونه د ټولو برابر وی او حصې ئے هم برابر تقسیم کړی وی بیا د دے حصو مقرر کول په ذریعه د خسنړی اوکړے شی۔ مثلاً یو مکان په څلورو شریکانو کښې تقسیمول وی۔ نو د قیمت په لحاظ سره څلور حصې برابر جوړے کړی او بیا دا مقرر کول چه کومه حصه به د کوم شریک شی دا تعین که په رضامندئ او مصلحت سره نه شو کیدے۔ نو دا هم جائز ده چه خسنړے اوکړی او د چا په نوم چه د کوم طرف حصه راوځی هغهٔ حصه هغهٔ له ورکړے شی۔ یا د یو شی خواهشمند هزارګسان دی او د ټولو حقونه برابر دی مګر کوم شے چه تقسیم کول وی هغه ټول شل وی، نو په دے کښې په خسنړی سره فیصله کولے شی۔

د اَزْلَامْ د خسنړی په ذریعه د غوښو د تقسیمولو د جاهلانه رسم حراموالے د سورتِ مائدہ په یو آیت کښې وړاندې راغلے دے؛ وَاَنْ تَسْتَقْسِمُوْا بِالْاَزْلَامِ؛

لنډه داده چه په دے ذکرشوی آیت کښې چه د کومو څلورو څیزونو حراموالے ذکر دے په دوی کښې دوه یعنی؛ مَیْسِرْ او؛ اَزْلَامْ؛ د نتیجے په اعتبار سره یو شے دے۔ په باقی دریو کښې یو اَنْصَاب؛ دے چه د نُصُبٌ؛ جمع ده۔ داسې شی ته نُصُبٌ وئیلے شی چه د عبادت د پاره اودرولے شوے وی خواه بُت وی یا وُنه کټه وغیره۔

**د شرابو او جوارئ بدنی او روحانی فسادونه**

د آیت د شانِ نزول او کړے نه د ورُوستو راتلونکی آیت نه معلومیګی۔ چه په دے آیت کښې اصل مقصود د دوه څیزونو د حراموالی او فسادونو بیان کول دی۔ یعنی شراب او جواری۔ اَنْصَابٌ یعنی د بتانو ذکر ئے د دے سره په دے وجه ملاؤ کړے دے چه آورید و کے پوهه شی چه د شرابو

او جوارئ معامله داسے سخت جُرم دے لکه بُت پرستی -

دَ ابن ماجه په یو حدیث کښې نبی کریم صلے الله علیه وسلم فرمائی : شَارِبُ الْخَمْرِ كَعَابِدِ الْوَثَنِ : "یعنی دَ شرابو سکونکے داسے مجرم دے لکه دَ بُت عبادت کوونکے" او په بعضے روایاتو کښې دی چه : شَارِبُ الْخَمْرِ كَعَابِدِ اللَّاتِ وَالْعُزّٰى : "یعنی دَ شرابو سکونکے داسے دے لکه دَ لات او عزیٰ عبادت کونکے"

پخو په دَ خبرے داشو چه دلته دَ شرابو او جوارئ دَ سخت حرمت، او دَوی دَ روحانی او جسمانی خرابو بیان دے - اول ئې روحانی او معنوی خرابئ دَ : رِجْسٌ مِّنْ عَمَلِ الشَّيْطٰنِ : په الفاظو کښې بیان کړے - چه مطلب ئې دا دے چه دا څیزونه دَ فطرت سلیمه په نزد گنده قابلِ نفرت څیزونه او شیطانی جالونه دی - چه په دے کښې دَ نښتلو نه پس انسان په بے شماره فسادونو او هلاکونکو خرابو کښې غورځوی - دَ دے روحانی فسادونو فرمائیلو نه پس ئې حکم او کړو : فَاجْتَنِبُوْهُ : چه هر کله دا څیزونه داسے دی نو دَ دینه ځان او ساتئ او پرهیز ترا و کړئ -

په اخر کښې ئې او فرمائیل : لَعَلَّكُمْ تُفْلِحُوْنَ : په دے کښې ئې او خودله چه ستاسو دَ دُنیا او اخرت کامیابی په دے کښې ده چه دَ دے څیزونو نه پرهیز او کړئ -

دَ دے نه پس په دویم ایت کښې دَ شرابو او جوارئ دَ دُنیوی او ظاهری فسادونو بیان ئې داسے او فرمایه : اِنَّمَا يُرِيْدُ الشَّيْطٰنُ اَنْ يُّوْقِعَ بَيْنَكُمُ الْعَدَاوَةَ وَالْبَغْضَآءَ فِي الْخَمْرِ وَالْمَيْسِرِ : " یعنی شیطان دا غواړی چه تاسو په شرابو او جوارئ کښې اخته کړی ستاسو په مینځ کښې دَ بُغض او دشمنئ بنیادونه واچوی "

دَ دے ایاتونو نزول هم څهٔ دَ داسے واقعاتو په باره کښې شوے دے چه دَ شرابو په نشه کښې داسے حرکتونه صادر شوی وو - چه دَ یو بل په مینځ کښې دَ غصّے او غضب او بیا دَ جنګ جګړے سبب جوړ شو او دا یو اتفاقی حادثه نه وه - بلکه دَ شرابو په نشه کښې چه کله دَ سړی

عقل لاړ شي نو دَ دهٔ نه خاځا داسې حرکتونه کیږي۔

دغه شان دَ جوارئ معامله ده چه بیلو ټکے اګرچه خپل بیلا د اوُمنيٰ او دغه وخت ئے نقصان اوشي لیکن خپل مقابل ته غصه او غضب او دشمنی دَ دے لازمي نتیجه وي۔ حضرت قتادهٔ دَدے ایت په تفسیر کښے فرمائي چه دَ بعضے عربو عادت وُ، چه په جوارئ کښے به ئے خپل اهل و عیال او مال سامان هرڅه او بیلو دل انتهائي دَ غم او تکلیف ژوند به ئے تیرو لو۔

دَ ایت په اخر کښے بیا دَ دے خیز و نو یوه بله خرابي په دے الفاظو کښے ارشاد فرمائي: وَيَصُدَّكُمْ عَنْ ذِكْرِ اللهِ وَعَنِ الصَّلٰوةِ ۔ "یعنی دا خیزونه تاسو دَ الله تعالیٰ دَ یاد او مانځهٔ نه غافل کوي"۔

دا خرابي په ظاهره روحاني او دَ اخرت خرابي ده چه دَ دنیا وي خرابئ نه پس ئے مکرر ذکر کوي۔ په دے کښے اشاره کیدے شي چه اصل قابل دَ نظر او قابل دَ فکر هغه ژوند دے کوم چه همیشه پاتے کیدونکے دے۔ دَ عقلمند په نزد دَ دغې ژوند خائسته کول پکار دي او دَ دغے ژوند دَ خرابید و نه بچ کول پکار دي، دَ دُنیا دَ دے څو ورځے ژوند خائسته کیدل څهٔ دَ فخر شے نه دے۔ او نه دَ دے خرابي زیاته دَ غم کولو قابله ده ځکه چه دَ دے دواړه حالتونه په یو څو ورځو کښے ختمید ونکي دي ۔

دورانِ بقاچو بادِ صحرا بگذشت تلخی و خوشی و زشت و زیبا بگذشت

(یعني دَ دُنیا ژوند دَ صحرا دَ باد پشان تیر شو، غم، خوشحالي، ناکاره او ښائسته هرڅه ئے په یو دم کښے تیر شو)

او دا هم وئیلے شي چه دَ الله تعالیٰ دَ ذکر او مانځه نه غفلت دا دَ دُنیا او اخرت، جسم او روح دواړو دَ پاره مرض دے۔ دَ اخرت او دَ روح دَ پاره خو ئے مرض واله ښکاره دے۔ چه دَ الله تعالیٰ نه دَ غافل او دَ بے نمازه اخرت تباه او روح ئے مړ دے۔ او که لږ په غور سره اوُکتے شي نو دَ الله تعالیٰ نه دَ غافل دُنیا هم وبالِ جان وي۔ چه کله دَ الله تعالیٰ نه غافل شي نو دَ دهٔ انتهائي مقصود مال دولت، عزت او مرتبه جوړ شي نو دا دومره چنجالونه دَ ځان سره راوړي چه بیا جُدا یو مستقل غم جوړ شي

او په دے کښے اخته شوے انسان بیا دَ خپل هغې لوئے مقصد یعنی آرام راحت اطمینان او سکون نه هم محرومه شي - او په دے اسبابو دراحت کښے دا سے مست شي چه پخپله راحت تر هم هیر شي - او که په څهٔ وخت کښے دا مال دولت عزت او مرتبه ترِ لاسه شي یا پکښے کمي راشي نو دَ غم او خفګان ئے بیا انتها نه وي - غرض دا دے چه دا خالص دُنیا دار انسان په دواړو حالتو نو کښے په غم فکر او خفګان کښے ګیر وي - ؎

اگر دُنیا نباشد دردمندیم
وگر باشد بمهرش پائے بندیم

(یعنی که دنیا نه وي نو هم خفه او دردمند یو، او که وي نو په غم کښے ئے اخته او پریشانه یو)

په خلاف دَ هغې سړي نه چه زړهٔ ئے دَ الله په یاد دروښانه او دَ مانځه په نورُ سره منوّر وي - دَ دُنیا مال دولت مرتبے او منصبو نه دَ دهٔ په خپو پریوځي - او دهٔ ته صحیح راحت او آرام دَ سړي - او که دا خیز ونه ترِ ځي نو دَ دهٔ په زړه هیڅ نه کیږي دَ دوي دا حال وي چه ؎

نه شادی داد سامانے نه غم آورد نقصانے
به پیشِ همتِ ما هرچه آمد بود مهمانے

(یعنی نه خوشحالي مالو څه زیات کړهٔ او نه راله غم څهٔ نقصان راکړ وځکه دَ همت په وړاندې هر څهٔ چه راغلل په طور دَ میلمنو وُو)

لنډه دا ده چه دَ الله تعالیٰ دَ ذکر او دَ مانځه نه غفلت ته که په غور سره اُوکتے شي نو دَ آخرت او دُنیا دواړو خرابي ده - په دے وجه ممکنه ده چه: رِجْسٌ مِّنْ عَمَلِ الشَّيْطٰنِ: نه خالص دَ رُوحاني او آخرت دَ ضررونو بیانول مقصود وي - او په: يُوْقِعَ بَيْنَكُمُ الْعَدَاوَةَ وَالْبَغْضَاءَ: سره خالص دَ دُنیا او جسماني خرابو خودل مقصود وي - او په: يَصُدَّكُمْ عَنْ ذِكْرِ اللّٰهِ وَعَنِ الصَّلٰوةِ: سره دَ دین دُنیا شریکے تباهي او بربادي ذکر کول مقصود وي -

دلته دا خبره هم دَ نظر کولو قابله ده چه دَ الله په ذکر کښے خو مونځ هم

داخل دے- بیا دَ مانځه په ځانله ذکر کولو کښے څۀ حکمت دے؟ وجه داده چه په دے کښے دَ مانځه اهمیّت او دَ الله دَ ذکر په ټولو اقسامو کښے دَ غوره والی او شرافت طرف ته اشاره دَه په دے وجه ئے مونځ ځانله ذکر کړو-

او دَ ټولو دینی او دُنیوی بَدَنی او روحانی خرابو دَ تفصیل خودَلو نه پس ئے دَ دے څیزونو نه دَ منع کیدو هدایت په یو عجیبه او زړهٔ پورے انداز کښے اوفرمایه- ارشاد دے: وَهَلْ اَنْتُمْ مُّنْتَهُوْنَ: یعنی هر کله چه دا ټولے خرابئ ستاسو په علم کښے راغلے نو اوس به هم دَ دے نه منع شئ؟-

په دے دواړو آیاتو کښے دَ شرابو او جوارئ وغیره دَ حراموالی او سختے منع بیان وَه- چه دا دَ الله تعالیٰ دَ قانون یو دفعه ده- په دریم آیت کښے ئے دے حکم لره دَ آسانولو او په دے عمل کولو لره دَ آسان جوړولو دَ پاره قرآن کریم دَ خپل بیان دَ یو خاصے طریقے لاندِ ارشاد اوفرمایه:

وَاَطِيْعُوا اللّٰهَ وَاَطِيْعُوا الرَّسُوْلَ وَاحْذَرُوْا فَاِنْ تَوَلَّيْتُمْ فَاعْلَمُوْا اَنَّمَا عَلٰى رَسُوْلِنَا الْبَلٰغُ الْمُبِيْنُ:

چه دَ دے مطلب دا دے چه دَ الله تعالیٰ او دَ هغهٔ دَ رسول دَ حکم منل ستاسو دَ فائدے دَ پاره دی- که تاسو او نهٔ منئ نو نهٔ دَ الله جلّ شانهٔ څۀ نقصان دے او نۀ دَ هغهٔ دَ رسول ﷺ- دَ الله تعالیٰ دَ دے نفع نقصان نه بالاتر کیدل خوښکاره وَه- البته دَ رسول ﷺ متعلق دا خیال کیدے شو چه هر کله دَ دهٔ خبره او نه منلے شی نو دَ دهٔ په اجر او ثواب یا قدر او مرتبے کښے به شاید څۀ فرق راشی دَ دے شُبهِ دَ لرے کولو دَ پاره ئے ارشاد اوفرمایه: فَاِنْ تَوَلَّيْتُمْ فَاِنَّمَا عَلٰى رَسُوْلِنَا الْبَلٰغُ الْمُبِيْنُ:

"یعنی که په تاسو کښے هیڅوک هم زمونږ دَ رسول ﷺ خبره او نه منئ نو بیا هم دَ دوی په قدر و منزلت کښے څۀ فرق نه راځی- ځکه چه څومره کار دوی ته سپارلے شوے وَه هغه ئے اوکړو- (یعنی صاف صاف او په واضح طور سره دَ الله تعالیٰ احکام رَسَول-) دَ دے نه پس څوک چه نهٔ منی هغه خپل نقصان کوی- زمونږ دَ رسول ﷺ په دے سره هیڅ نه وړانیږی-

---

لَيْسَ عَلَى الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا وَعَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ جُنَاحٌ

کوم خلق چه ایمان را وړی دی او نیک عمل ئے اوکړی دی په دوی څه گناه نیشته

فِيْمَا طَعِمُوْٓا اِذَا مَا اتَّقَوْا وَّاٰمَنُوْا وَعَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ

په هغې کښې چه وړاندې ئې خوړلې دی چه ورته منع نه وه کله چه تقوی اختیار کړی او ایمان راوړی او نیک عمل کړی

ثُمَّ اتَّقَوْا وَّاٰمَنُوْا ثُمَّ اتَّقَوْا وَّاَحْسَنُوْا ۭ وَاللّٰهُ

بیا تقوی اختیار کړی او یقین اوکړی بیا تقوی اختیار کړی او نیکی اوکړی۔　او الله

يُحِبُّ الْمُحْسِنِيْنَ ﴿۹۳﴾ يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا لَيَبْلُوَنَّكُمُ

دوست ساتی نیکی کونکو لره۔　اے ایماندارو! خامخا به ستاسو آزمائش اوکړی

اللّٰهُ بِشَيْءٍ مِّنَ الصَّيْدِ تَنَالُهٗٓ اَيْدِيْكُمْ وَرِمَاحُكُمْ

الله په یو څیز　په هغه ښکار باندې چه اورسی ورته لاس ستاسو او نیزې ستاسو

لِيَعْلَمَ اللّٰهُ مَنْ يَّخَافُهٗ بِالْغَيْبِ ۚ فَمَنِ اعْتَدٰى

چه معلوم کړی الله چه څوک د هغه نه یریګی په نالیدلی۔　بیا چا چه زیاتے اوکړو

بَعْدَ ذٰلِكَ فَلَهٗ عَذَابٌ اَلِيْمٌ ﴿۹۴﴾ يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ

پس د دے نه، پس د دهٔ د پاره عذاب دردناک دے۔　اے ایماندارو!

اٰمَنُوْا لَا تَقْتُلُوا الصَّيْدَ وَاَنْتُمْ حُرُمٌ ۭ وَمَنْ

مه وژنئ ښکار کوم وخت چه تاسو په احرام کښې یئ۔　او څوک

قَتَلَهٗ مِنْكُمْ مُّتَعَمِّدًا فَجَزَاۗءٌ مِّثْلُ مَا قَتَلَ مِنَ

چه ستاسو نه د ګره قتل کړی قصداً　پس په دهٔ بدله　د هغه قتل شوی برابر

النَّعَمِ يَحْكُمُ بِهٖ ذَوَا عَدْلٍ مِّنْكُمْ هَدْيًا

خارويو نه چه حکم به کوي په دے دوه معتبر سړي ستاسو نه داسے چه دغه خاروے د بدلے

بٰلِغَ الْكَعْبَةِ اَوْ كَفَّارَةٌ طَعَامُ مَسٰكِيْنَ اَوْ عَدْلُ

به طور د نیاز د ورسولے شي کعبے ته یا به دۀ کفاره ده څو محتاجانو ته خوراک یا د دے برابر

ذٰلِكَ صِيَامًا لِّيَذُوْقَ وَبَالَ اَمْرِهٖ ۭ عَفَا اللّٰهُ عَمَّا

روژے د دے د پاره چه سزا اوڅکي د خپل کار - الله معاف کړه څۀ چه

سَلَفَ ۭ وَمَنْ عَادَ فَيَنْتَقِمُ اللّٰهُ مِنْهُ ۭ وَاللّٰهُ عَزِيْزٌ

اوشو - او څوک چه بیا اوکړي الله به بدل واخلي د دۀ نه - او الله زبردست دے

ذُو انْتِقَامٍ ﴿۹۵﴾ اُحِلَّ لَكُمْ صَيْدُ الْبَحْرِ وَطَعَامُهٗ

بدله اغستونکے - حلال شو ستاسو د پاره د دریاب ښکار او د دریاب خوراک

مَتَاعًا لَّكُمْ وَلِلسَّيَّارَةِ ۚ وَحُرِّمَ عَلَيْكُمْ صَيْدُ

ستاسو د فائدے د پاره او د ټولو مسافرانو - او حرام شو په تاسو ښکار د

الْبَرِّ مَا دُمْتُمْ حُرُمًا ۭ وَاتَّقُوا اللّٰهَ الَّذِيْٓ اِلَيْهِ

ځنګل تر څو چه تاسو په احرام کښے یئ - او ویره کوئ د الله نه د چا خوا ته چه به تاسو

تُحْشَرُوْنَ ﴿۹۶﴾

جمع شئ -

**د ایاتونو تړون**

په لباب کښے د مسند احمد نه په روایت د ابو هریرهؓ نقل دے چه کله په بره ایت کښے د شرابو او جوارئ

حرامولو نازل شو نو بعض خلقو عرض اوکړو چه یا رسول الله ﷺ ډیر خلق کوم چه شراب سکل او د جوارۍ مال ئے خوړ او د حرامولو نه وړاندې مړهٔ شوی دی۔ او اوس معلومه شوه چه دغه حرام دی د دوی به څهٔ حال وی۔ په دې باندې دا آیت نازل شو: لَيْسَ عَلَى الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا الخ:

او په وروستو آیت: يٰۤاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا لَا تُحَرِّمُوْا طَيِّبٰتِ: کښې د پاکو څیزونو د حرامولو د ممانعت ذکر وه۔ او س په آیت: يٰۤاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا لَيَبْلُوَنَّكُمُ اللّٰهُ بِشَيْءٍ الخ: کښې بیان فرمائی چه الله تعالیٰ ته مکمل اختیار حاصل دے چه په خاصو حالاتو کښې خاص څیزونه حرام کړی۔ (بیان القرآن)

## لنډ تفسیر

په داسے خلقو چه ایمان لری او نیک کارکوی په هغے شی کښے هیڅ ګناه نیشته کوم چه دوی خوری او څښی (او دغه وخت هغه حلال وی اګر چه روستو حرام شی او دوی لره به ګناه ولے وی) هرکله چه (دغه کار د ګناه مقتضی نه وی بلکه یو منع کونکے کار مو جو د وی هغه دا چه) دغه خلق (د خدائے د یرے نه د دغه وخت د ناجائزه څیزونو نه) پرهیز کوی او (د دلیل د دے یرے دا وی چه دغه خلق) ایمان لری (کوم چه د خدائے د یرے سبب دے) او نیک کارکوی (کومه چه د خدائے د یرے نښه ده او په دے حالت تهول عمر پاتے شی، نو که چرے دوی هغه حلال شے کوم چه ئے د هغه نه خوړلو سکلو او بیا وروستو هغه حرام شی نو) بیا (د دے نه هم د دغے خدائے د یرے په سبب) پرهیز کونکی شوی وی او (د دے یرے هم دلیل د تیر پشان دا وی چه دغه خلق) ایمان لری او ښهٔ نیک عمل کوی (کوم چه موقوف دے په ایمان پس دلته هم سبب او علامت د خدائے په یره کښے جمع دی، مطلب دا دے چه په هر وار مکرر حرامولی کښے د دوی دا عمل دوام وی، د څهٔ دوه درے پیر و خصوصیت نیشته، پس سره د وجود د مانع او همیشه مانع نه ذهمونږ د فضل نه لرے نه ده چه دے دې ګناه ګار وی) او (د دوی دا خاص طریقه ذکر شوے د نیکوکارۍ

صرف دَ ګناه لازمولو مانع نه ده بلکه دَ ثواب دَ وجود او دَ الله دَ محبوبيت هم
مقتضي ده ځکه چه) الله تعالیٰ دَ داسے نيکانو سره محبت ساتی (پس په دوی
کښے دَ مبغوض کيدو دهيڅ احتمال نيشتے دا خو دَ محبوبيت درجه لري) -
اے ايمان دارو! الله تعالیٰ به په لږ ښکار سره ستاسو امتحان کوی کوم ته
(چه ستاسو نه دَ لوے تختيدو په وجه) ستاسو لاسونه او ستاسو نيزے
رسيدے شی (دَ امتحان مطلب دا چه په حالت دَ احرام کښے دَ وحشي جانورانو
ښکار کول به تاسو حراموی، لکه چه وړاندے په وضاحت سره راځی دا وحشي
جانوران به ستاسو خوا ته ګرځی) دَ دے دَ پاره چه الله تعالیٰ (په
ظاهري طور هم) معلوم کړی چه کوم سړے دَ ده نه (يعنی دَ ده دَ عذاب
نه) بے دَ نه ليدو ونه يريږي (او دَ حرام کړی کولو نه چه دَ عذاب سبب دے
ځان ساتی، دَ دينه لازمي طور دا هم معلومه شوه چه دا ښکار حرام دے)
پس څوک چه دَ دے (حرمت) نه پس (چه آزمائښت پرے هم دلالت
کوی) دَ حد (شرعي) نه اوځی (يعنی دا منع شوے ښکار وکړی) دَ ده
دَ پاره دردناکه سزا (مقرر) ده (نو ښکاری جانوران به دغه شان خوا
خوا ته ګرځيدل، او په صحابه وو کښے اکثر دَ ښکار شوقيان وو په دے کښے
دَ دوی دَ فرمانبرداری امتحان کيدو چه دوی پکښے پوره اوختل وړاندے
دَ ذيات ممانعت وضاحت دا دے چه) اے ايماندارو وحشي ښکار لره
(دَ هغے نه سوا کوم چه تورے شريعت مستثنیٰ کړی دی) مه قتلوئ کله چه
تاسو په احرام کښے يئ (داسے کله چه ښکار په حرم کښے وی اګر چه ښکاری
په احرام کښے نه وی دَ دے هم دغه حکم دے) او څوک چه په تاسو
کښے دے لره قصداً قتل کړی نو په ده باندے دَ دے کار) بدل لره
واجب وی کوم چه (په اعتبار دَ قيمت) به برابر وی دَ هغه جانور کوم چه
ده قتل کړے وی چه (دَ اندازے) فيصله به ئے په تاسو کښے دوه معتبر
سړی کوی (چه په دينداری کښے هم قابلِ اعتبار وی، او په تجربه او پوهه
کښے هم، پس دے قاتل لره دَ قيمت دَ اندازے مقرر کولو نه پس اختيار دے)
خواه (په دے قيمت داسے جانور واخلی چه) دغه دَ بدلے (جانور) دَ خانه صو

جا نوران نه وی (یعنی اوښ، غوا، میښه، ګډه، بیزه نروی او که ماده)
په دې شرط چه د نیاز په طور سره چه کعبې (ته) ورسیږی (یعنی حرم ته دننه)
او د رسولے شي او خواه که (د دے) قیمت برابر غله په طور د کفاره مسکینانو
له ورکړے شي (یعنی یو مسکین ته به قدر د یوے سرسائے د واړه اختر
ورکړے شي) او خواه که د دغے (غلے) برابر روژے او نیسی (د برابرئ
صورت دا دے چه د هر مسکین د حصے یعنی د یوے سرسائے په بدله کښے
یوه روژه او نیسی - او دا بدله مقرر شوے ده) د دے د پاره چه د
خپل کړی کار مزه او څکی (په خلاف د دغه سړی نه چه چا قصدًا ښکار
نه وی کړے نو دے خو به هم اګر چه بدله هم دغه ور کوی مګر دا د دهٔ د
کار سزا نه ده بلکه د دغه حرم احترام دے یعنی د حرم ښکار چه د حرم په
وجه سره محترم وُه یا د احترام په وجه سره د محترم پښان شوے وُه
د دغے تاوان او بدله ده او د دے بدلے په ادا کولو سره) الله تعالیٰ تیر
معاف کړو او کوم سړے چه بیا داسے حرکت او کړی (چونکه په دوباره
د یو کار کولو کښے د اوّل نه جرأت زیات وی) نو (په دے وجه د ذکر شوے
بدلے نه علاوه چه د اصل کار یا ځائے بدله ده په آخرت کښے) الله تعالیٰ به
د دهٔ نه (د دے جرأت) بدله اخلی (البته که توبه او باسی نو د انتقام
سبب به ختم شي) او الله تعالیٰ زبردست دے بدله اخستے شي ستا سو
د پاره (په حالت د احرام کښے) د دریاب (یعنی اوبو) ښکار کول او د دے
خوړل (تیول) حلال شوی دی ستا سو د نفع اخستو د پاره (او
ستا سو) د مسافرانو د پاره (چه په سفر کښے تر نفع واخلی او توښه ئے
کړی) او د اوچے ښکار (اګر چه په بعض صورتو نو کښے ئے خوړل
حلال دی مګر) نیول ئے (یا پکښے مدد کول رجوع به یه ل) ستا سو د پاره حرام
شوی دی ترڅو چه تاسو په حالت د احرام کښے یئ او د الله تعالیٰ د
مخالفت) نه یره کوئ کوم ته چه به تاسو جمع کړے شئ (او د هغهٔ
وړاندې به حاضر کړے شئ) -

# معلومات او مسئلے

تحقیق کوونکو لیکلی دی چه دَ تقوىٰ (یعنی دَ ضرَرُونو دَ دِین نه دَ ځان ساتلو) څو درجے دی، او دَ ایمان او دَ یقین مرتبے هم په لحاظ دَ قوّت او ضُعف په تفاوت سره دی. دَ تجربے او شرعی دَ لیلو نو نه ثابته ده چه څومره بنی آدم په ذکر، فکر، نیک عمل او دَ الله تعالیٰ په لاره کښے په جهاد کښے ترقی کوی دومره دَ خدائے نه یره او دَ هغهٔ دَ لویئی او جلال په تصوّر سره زړهٔ آباد او ایمان او یقین مضبوط او محکم کیږی. الله تعالیٰ طرف ته دَ رسیدو دَ مرتبو دے ترقئ او عروج طرف ته په دے آیت کښے دَ تقوىٰ او ایمان په بیا بیا مکرر کولو سره اشاره فرمائی، او دَ سلوک په آخری مقام ,, احسان " او دَ دے په فائده خبردارے فرمائی. (تفسیر عثمانیؒ)

**مسئله:** ښکار کوم چه په حرم او اِحرام کښے حرام دے داعام دے خواه داسے جانوروی چه غوښے څخو ئے شی حلال وی او که غوښے ئے نهٔ شی خوړے حرام وی. ځکه چه حکم دَ آیت مطلق دے.

**مسئله:** ښکار (یعنی صید) هغه جانورانو ته وئیلے شی چه وَحشیان وی عادتاً دَ بنی آدمو په خوا کښے نهٔ اوسی. پس کوم جانوران چه پیدائشی دَ کورونو دَ ساتنے وی لکه کړے بیزے، غوا، کاڼے او ښان دَ دوی ذبح کول او خوړل جائز دی.

**مسئله:** البته کوم چه په دلیل سره مستثنیٰ شوی دی او دَ هغوی نیول او قتلول حلال دی لکه دَ دریاب جانورانو ښکار، په دے قول دَ الله تعالیٰ سره: اُحِلَّ لَکُمْ صَیْدُ الْبَحْرِ: او بعض دَ وَچوبے جانوران لکه کاغه، تپوس، شرمخ، مار، لړم او چیچوڼکے سپے دغه شان هغه دَرِنده چه پخپله حمله کوی دَ دوی قتل هم جائز دے. په حدیث کښے دَ دوی استثناء ذکر ده. دَ دے نه معلومه شوه چه په: الصَّیْد: کښے الف لام عهدی دے.

**مسئله:** کوم حلال ښکار چه دَ احرام نه بغیر او دَ حرم نه باهر اُوشی

دَ دے خو پہ ل محرم لہ جائز دی هر کله چه دے دَ دهٔ په قتل وغیره کښے مدد کوی نکے یا اشاره کوی نکے یا خو دونکے نه وی ۔ په حدیث کښے دا سے راغلی دی۔ او دَ آیت په الفاظو ؛ لَا تَقْتُلُوا ؛ کښے هم دے طرف ته اشاره ده ځکه چه د لته لَا تَقْتُلُوا ؛ فرمائی ؛ لَا تَأْكُلُوا ؛ نه فرمائی۔

**مسئله:** دَ حرم په ښکار لکه ځنګه چه قصداً په قتل کولو سره جزاء واجب ده ۔ دغه شان په خطاء او په هیره سره هم جزاء واجب ده۔ (اخرجه الروح)

**مسئله:** لکه ځنګه چه په اوّل وار سره جزاء واجب ده دغه شان په دویم او دریم وار قتل کولو سره هم واجب ده ۔

**مسئله:** دَ جزاء مطلب دا دے چه پکوم وخت او کوم ځائے کښے دا جانور قتل شوے دے غوره خو دا ده چه په دوه عادلانو سړو سره او جائز دا هم ده چه په یو عادل سړی سره دَ دغے جانور دَ قیمت اندازه اولګوی بیا په هغے کښے دا تفصیل دے چه دغه قتل شوے جانور که غیر ماکول وی یعنی غوښه ئے نه شی خوړے نو دا قیمت به دَ یوے بیزے دَ قیمت نه زیات نه واجبیږی او که دغه جانور دَ خوراک وه نو څومره اندازه چه اُو لګولے شوه هغه به ټوله واجب وی ۔ او په دواړو حالاتو کښے وړاندے لره په دریو صورتو نو کښے اختیار دے که غواړی نو په دغه قیمت دے یو جانور دَ قربانۍ دَ شرطونو مطابق واخلی او دَ حرم په حدود و ننه دِ دننه ذبح کړی او په فقیرانو دِ تقسیم کړی او یا دِ دَ دغے قیمت برابر غلّه دَ صدقے دَ شرطو نو مطابق دَ یوے یوے سرسائے په قدر مسکینانو لره ورکړی ۔ او یا دِ دَ دغے غلے په اندازه چه دا څومره مسکینانو ته رسی دَ هر مسکین دَ حصے په سر یوه یوه روژه اونیسی ۔ او دَ غلے په تقسیم او روژو کښے دَ حرم قید نیشته ۔ او که قیمت دَ نیم او ګی یعنی یوے سرسائے نه کم واجب شی نو دَ دهٔ اختیار دے چه دغه یو مسکین لره ورکړی او یا دَ دے په ځائے یوه روژه اونیسی ۔ دغه شان که هر مسکین یوه یوه سرسائے یعنی نیم نیم او ګے ورکړی او دَ نیم او ګی نه کم باقی پاتے شی نو هم دغه اختیار دے

خواه دغه باقی پاتے یو مسکین له ورکوی او که یوه روژه نیسی۔ دَ نیم اوُ گی وزن زمونږ دَ وزن (انګریزی سیر) په اعتبار سره پاؤ کم دوه سیره دے ۔

**مسئله:** په ذکر شوے اندازه کښے چه دَ څو مره مسکینا نو حصّے جوړے شی که دغه هومره مسکینا نو ته دوه وخته خوراک په مړه خیټه ورکړی نو هم جائز دی۔

**مسئله:** که دَ دغه قیمت برابر ئے دَ ذبح کولو دَ پاره جانور تجویز کړو مګر څهٔ قیمت ترے بچ پاتے شو نو په دے باقی کښے اختیار دے چه یل جانور پرے اخلی او که غلّه ورکوی یا که دَ غلّے په حساب سره روژے نیسی۔ لکه څنګه چه په قتل کښے جزاء واجب ده دغه شان دَ داسے جانور په زخمی کولو کښے به هم اندازه کولے شی چه په دے سره دَ جانور څومره قیمت کم شوے دے په دغے مقدار قیمت کښے بیا هم دغه درے واړه ذکر شوی صورتونه به جائز وی۔

**مسئله:** مُحرِم لره چه دَ کوم جانور ښکار کول حرام دی دَ هغے ذبح کول ورلره هم حرام دی که دے ئے ذبح کړی نو حکم به ئے دَ مُردار پشان وی (او په لَا تَقْتُلُوْا: کښے اشاره ده دیته چه ذبح دَده په شان دَ قتل ده)

**مسئله:** که جانور ئے په ځنګل کښے قتل کړے وی نو کومه آبادی چه ورته نژدے وی دَ هغے ځائے په اعتبار سره به اندازه کولے شی۔

**مسئله:** اشاره، دلالت او اعانت په ښکار کښے په مثل دَ ښکار کولو حرام دی۔

---

جَعَلَ اللّٰهُ الْكَعْبَةَ الْبَيْتَ الْحَرَامَ قِيٰمًا لِّلنَّاسِ

جوړه کړه یعنی الله کعبه کوم چه کور دے دَ عزت قائم پاتے کیدنکے دَ پاره دَ خلقو

وَالشَّهْرَ الْحَرَامَ وَالْهَدْيَ وَالْقَلَآئِدَ ذٰلِكَ

او میاشتو دَ عزت لره او قربانئ لره چه نیاز دَ کعبے وی او دَ کومو غاړه کښے چه پټه وی یا دی کښے

لِتَعْلَمُوْٓا اَنَّ اللّٰهَ يَعْلَمُ مَا فِي السَّمٰوٰتِ وَمَا فِي الْاَرْضِ

دا په دے وجه چه تاسو پوهه شئ چه بے شکه الله تعالیٰ ته معلوم دی څه چه په آسمانونو او زمکه کښے دی

وَاَنَّ اللّٰهَ بِكُلِّ شَيْءٍ عَلِيْمٌ ﴿۹۷﴾ اِعْلَمُوْٓا اَنَّ اللّٰهَ

او الله د هر څیز نه ښه خبر دے - پوهه شئ چه بے شکه د الله

شَدِيْدُ الْعِقَابِ وَاَنَّ اللّٰهَ غَفُوْرٌ رَّحِيْمٌ ﴿۹۸﴾ مَا

عذاب سخت دے او بے شکه الله بخښونکے والا مهربان دے - د

عَلَى الرَّسُوْلِ اِلَّا الْبَلٰغُ ؕ وَاللّٰهُ يَعْلَمُ مَا تُبْدُوْنَ

رسول په ذمه نه دی مګر رسول - او الله ته معلوم دی هغه چه تاسو په ښکاره کوئ

وَمَا تَكْتُمُوْنَ ﴿۹۹﴾ قُلْ لَّا يَسْتَوِي الْخَبِيْثُ وَالطَّيِّبُ

او هغه چه تاسو ئے په پټه کوئ - ته او وایه چه برابر نه دی ناپاک او پاک

وَلَوْ اَعْجَبَكَ كَثْرَةُ الْخَبِيْثِ ۚ فَاتَّقُوا اللّٰهَ يٰٓاُولِي

اګرچه تا ته ښه لګی د ناپاکو ډیر والے - پس یره کوئ د الله نه اے هوښیارانو

الْاَلْبَابِ لَعَلَّكُمْ تُفْلِحُوْنَ ﴿۱۰۰﴾

چه تاسو فلاح (نجات) بیاموئ -

# لنډ تفسیر

خدائے تعالیٰ کعبے لره چه د ادب مکان دے د خلقو د مصلحتونو د قائم پاتے کیدو سبب مقرر کړے دے او (دغه شان) د عزت میاشتو لره هم او (دغه شان) په حرم کښے قربانید ونکے جانورلره هم او (دغه شان) هغه

جانورانو لره هم دَ کومو په غاړه کښې چه (دَ دې نښې دَپاره) پټې وی (چه دا دَ
الله نیاز دے په حرم کښې به ذبح کیږی) دا (قرار ورکول) علاوه دَ نورو دُنیوی
مصلحتونو) دَ دے (دینی مصلحت) دَپاره (هم) دے دَ دے دَپاره چه (ستاسو
عقیده برابره او پخه شی په دے شان سره چه تاسو به دے مصلحتونو دلیل
او نیسئ) دَ دے خبرے یقین (دَ اول نه یا دَ اخر نه) اوکړئ چه بے شکه الله تعالیٰ
دَ ټولو اسمانونو او زمکے د ننه څیزونو علم (کامل) لری (ځکه چه دا سے
حکم مقرر کول چه په هغې کښې دَ اٰئنده دَپاره دَ دا سے مصلحتونو رعایت
وی دَ بنی اٰدمو عقلونه نه شی سوچ کولے دا دلیل دے دَ الله تعالیٰ دَ کامل
علم) او (په دے ذکر شوو معلوماتو سره دَ علمِ کامل نه دلیل او نیسئ یقین
اوکړئ چه) بے شکه الله تعالیٰ هرڅهٔ لره ښهٔ پیژنی (ځکه چه دَ دے معلوماتو
په علم باندِ څه شی اطلاع نه ده کړے، معلومه شوه چه دَ علمِ ذاتی نسبت
دَ ټولو معلوماتو سره یو شان وی) تاسو به یقین سره پوهه شئ چه
الله سزا هم سخته ورکوونکے دے او الله تعالیٰ لوئے مغفرت او رحمت
والا دے (نو دَ دهٔ دَ حکمونو خلاف مه کوئ او که چرته درنه او شی نو دَ شریعت
دَ قاعدے موافق توبه کوئ) دَ رسول (صلے الله علیه وسلم) په ذمه خو صرف
رَسَوَل دی (پس هغه ئے ښهٔ اورَسَوَل اوس ستاسو سره څه عذر او حیله
پاتے نه شوه) او الله تعالیٰ په هرڅهٔ پوهه دے څهٔ چه تاسو (په ژبه یا په
اندامونو سره) په ډاګه کوئ او څهٔ چه (په زړهٔ کښې) پټ ساتئ (پس تاسو
لره پکار دی چه په ظاهر او باطن دواړو سره اطاعت کوئ) تاسو را اے
محمد صلے الله علیه وسلم دوی ته دا هم) اووایئ چه ناپاک او پاک
(یعنی ګناه او فرمانبرداری، یا ګناه کوونکے او حکم منوونکے) برابر نه دی (بلکه
خبیث مبغوض دے او پاک مقبول دے پس فرمانبرداری کول او مقبول جوړیدل
پکار دی په ګناه کولو سره مبغوض جوړیدل نه دی پکار، اګرچه اے لیدونکیه)
تا ته دَ ناپاکو ډیروالے (ځکه چه اکثر په دنیا کښې دا سے وی) په تعجب کښې اچوی
(چه سره دَ ناکاروالی نه دا ډیر ولے دی مګر پوهه شه چه ډیروالے په څهٔ
حکمت سره دے دلیل دَ غوره والی نه دے. نو هرکلهٔ چه ډیروالے غوره والے نه دے

یا دا چه هر کله د الله تعالیٰ په علم او عذاب باندې خبر شوئ، نو زړه ته مه کوي بلکه د خدائے تعالیٰ د حکم د خلاف کولو نه تېره کوئ چه تاسو د پوره طور سره کامیاب شئ (چه هغه جنت او د حق رضا ده) -

# مَعلومَات او مَسئلے

**د امن او اطمینان ذریعے**

په اولنۍ آیت کښې الله تعالیٰ څلور څیزونه د خلقو د قیام او بقاء او امن او اطمینان سبب خودلی دی.

اول: کعبه: لفظ د کعبې په عربۍ ژبه کښې داسې مکان ته وئیلې شي چه څلور گوټیز وي، په عربو کښې د قبیلهٔ خثعم جوړ کړے یو بل مکان هم په دے نوم سره یادیدو. چه کعبه یمانیه به ئې ورته وې - په دے وجه بیت الله لره د دغې کعبې نه د ممتاز کولو د پاره ئې د لفظ د کعبې سره د: اَلْبَیْتَ الْحَرَامَ: لفظ زیات کړو -

لفظ د قیام او قوام اسم مصدر دے هغه شي ته وئیلې شي یکوم چه د څۀ شي قیام او بقاء موقوفه وي په دے وجه د: قِیٰمًا لِّلنَّاسِ: معنیٰ داشوه چه کعبه او د دے متعلقات د خلقو د قیام او بقاء سبب او ذریعه ده -

او لفظ د: نَاسٌ: په لغت کښې عامو خلقو ته وئیلې شي دلته د قرینې د مقام په وجه سره خاص مکے والا یا اهل عرب هم مراد کیدے شي، او د عام دُنیا خلق هم - او بنکاره خبره دا ده چه د ټولے دنیا انسانان په دے کښې داخل دی - البته مکه او عرب والا یو خاص اهمیت او خصوصیت لري - په دے وجه مطلب د آیت داشو چه الله تعالیٰ کعبه بیت الله او د کومو څیزو نو ذکر چه وړاندې راځي دوي لره د ټول عالم انسانیت د پاره د بقاء قیام او امن او سکون ذریعه جوړه کړې ده - تر څو چه د دُنیا د هر مُلک هرے خطے او هر طرف خلق دے بیت الله طرف ته مخ کوي او مونځ کوي او د بیت الله حج کیږي، یعنی په چا چه حج فرض وي هغوي حج اداکوي تر هغه وخته پورے به پوره دُنیا قائمه او محفوظه وي - او که یو کال هم داسے اوشي چه هیڅوک حج او نه کړي یا څوک بیت الله طرف ته مخ نه کړي او مونځ او نه کړي

نو په ټوله دُنیا باندې به عام عذاب راشي۔

بیت الله د ټول عالم عمود یعنې ستنْ ده

دے مضمون لره د تفسیر امام حضرت عطاءؒ په دے الفاظو کښې بیان کړے دے: لَوْ تَرَكُوْهُ عَامًا وَّاحِدًا لَّمْ يُنْظَرُوْا وَلَمْ يُؤَخَّرُوْا (بحر محیط) د دے نه معلومه شوه چه په معنوی طور سره بیت الله د ټولے دُنیا ستنْ ده ترڅو پورے چه دے ته څوک کیږی اود دے حج کیږی دُنیا به قائمه وی۔ او که څهٔ وخت د بیت الله دا احترام ختم شو نو دُنیا به هم ختم کړے شي۔

پاتے شوه دا معامله چه د دُنیا په نظام او بیت الله کښې جوړه او تړون څهٔ دے؟ نو د دے حقیقت معلومول ضروری نه دی۔ لکه څنګه چه د مقناطیس او سپینے او کهرُبا او خزلو (تیلو وغیره) په مینځ کښې د تړون څهٔ حقیقت چاته معلوم نه دے مګر دغه یو داسے حقیقت دے چه لیدے شي، او څوک تر انکار نه شي کولے۔ د بیت الله او د دُنیا د نظام د یو بل سره د تړون حقیقت معلومول هم د انسان په قبضه کښې نه دی۔ دا د کائناتو د خالق په خودلو سره معلومیدے شي، د بیت الله د ټولے دُنیا د پاره د بقاء سبب کیدل یو معنوی شے دے، په ظاهری سترګو دا نه شي مُوندے۔ لیکن د عربو او اهلِ مکّهٔ د پاره د امن او سلامتۍ سبب کیدل په لویو تجربو او مشاهدو سره ثابت دی۔

د بیت الله وجود د دُنیا د امنْ سبب دے

په عامه دُنیا کښې د امن قائمولو صورت د حکومتونو قوانین او د دوی قبضه وی۔ په دے وجه سره د اکو، غل، قتلونه او لوټ مار کونکے جُرأت نه شي کولے۔ لیکن د عربو په جاهلیّت کښې نه څهٔ باقاعده حکومت قائم وَهٔ او نه د عام امن د پاره څهٔ قانون وَهٔ۔ سیاسی نظام صرف په قبائلی بُنیادونو باندې قائم وَهٔ۔ یو قبیلے به د بلے قبیلے په جان مال عزت او آبرو ټولو څیزونو چه کله به غوښته حمله کولے شوه۔ په دے وجه یوے قبیلے ته هم په هیڅ وخت کښې د امن او اطمینان موقع نه وه۔ الله تعالیٰ پخپل قدرتِ کامل سره په مکه مکرّمه کښې بیت الله لره د حکومت په ځائے د امن ذریعه جوړه کړه۔ څنګه چه د

حکومت د قانون خلاف ورزی یو پوهه انسان نه شی کولے۔ دغه شان د
بیت الله شریف د حرمت او تعظیم حق تعالیٰ د جاهلیت په زمانه کښے هم د عامو
خلقو په زړونو کښے داسے پیوست کړے وه چه د دوئ د احترام د پاره به ئے
خپل ټول جذبات او خواهشات شا ته غورځول۔

جاهلان عرب چه پخپل جنګیالی توب او د قبیلو په دشمنتو کښے په ټوله دنیا
کښے بے مثله وو۔ الله تعالیٰ د بیت الله او د دے د متعلقاتو دومره حرمت او
تعظیم د دوی په زړونو کښے پیوست کړے وه چه که د دوی به هر څومره جانی
دشمن او د سختو نه سخت مجرم وه او په حرم شریف کښے به داخل شو نو د
ډیر غم او غصے باوجود به ئے دهٔ ته هیڅ هم نه وے۔ د پلار قاتل به په
حرم کښے څوئ ته مخامخ شو، نو څوئ به سترګے خکته کړے او تیر به شو۔

دغه شان کوم سړے چه به د حج او عمرے د پاره اوو نو یا کوم جانور چه به
په حرم شریف کښے د قربانئ د پاره راوستے شو د دهٔ هم دومره احترام
په عربو کښے عام وه چه د یو ونه یو سړی به هم دهٔ ته څهٔ ازار نه رسولو
او که دغه به جانی دشمن هم وه نو په داسے حالت کښے چه دهٔ به د حج او د
عمرے څه نښه احرام یا پټه تړلے وه قطعاً به ئے ورته څهٔ نه وے۔

په شپږمه هجری کښے چه کله نبی کریم صلے الله علیه وسلم د صحابه کرامو
د یو خاص جماعت سره د عمرے احرام او تاړهٔ د بیت الله شریف په قصد
روان شو، او د حرم حدونو ته نزدے د حدیبیے په مقام کښے ئے قیام
اوفرمایه حضرت عثمان غنی ئے د یو څو ملګرو سره مکے ته اولیږه
چه د مکے سردارانو ته اووائی چه مسلمانان دا وخت د څهٔ جنګړه په نیت
سره نه دی بلکه د عمرے ادا کولو د پاره راغلی دی په دے وجه دِ دوئ ته
لاره نه شی بندولے۔

د قریشو سردارانو د ډیر بحث مباحثے نه پس خپل یو نمائنده د نبی کریم
صلے الله علیه وسلم په خدمت کښے اولیږه۔ نبی کریم صلے الله علیه وسلم
چه هغهٔ لره اولیدو، نو اووئے فرمائیل چه دا سړے د بیت الله شریف د
حرمتونو خاص خیال ساتونکے دے، په دے وجه خپل د قربانئ جانوران

يکو موچه دَ قربانۍ نيټے شوے دی دَه ته ئے مخامخ کړی. دَ ه چه کله داقربانۍ اولیدے نو اقرار ئے اوکړو چه بے شکه داخلق دَ بیت الله نه هرګز منع کول نه دی پکار-

لنډه دا ده چه دَ حرم محترم احترام دَ جاهلیت په زمانه کښے هم الله تعالیٰ دَ دوی په زړونو کښے اچولے وو ده چه دَ دے په وجه امن و آمان قائم وو. دَ دے احترام په وجه صرف حرم شریف ته دَ ننه راتلونکی او هغه خلق به په امن وو څوک چه به دَ حج او عمرے دَ پاره اُووَتل او دَ حج څه نښنه به په دوی موجوده وه- دَ دُنیا دَ اطرافو خلقو ته به دَ دے نه څۀ نفع امن او اطمینان حاصل نه وو- لیکن په عربو کښے چه څنګه دَ بیت الله مکان او دَ دۀ دَ کیرچاپیره حرم احترام عام وو، دَ غه شان دَ حج دَ میاشتو هم خاص احترام وو، چه دے میاشتو ته به ئے دَ حرمت میاشتے (اَشْهُرِ حُرُم) ویلے- دَ دے میاشتو سره دَ رجب میاشت هم بعضو شامله کړے وه- په دے میاشتو کښے به دَ حرم نه بهر هم قتل و قتال ټولو عربو حرام ګڼړه او پرهیز به ئے ترے کولو-

په دے وجه قرآن کریم په؛ قِيَامًا لِّلنَّاسِ؛ کښے دَ کعبے سره درے نور څیزونه هم شامل کړی دی اوّل؛ اَلشَّهْرَ الْحَرَامَ؛ یعنی دَ عزت او عُظمت میاشت دلته چونکه لفظ دَ شهر مفرد راوړے شوے دے په دے وجه عام تفسیر لیکونکی فرمائی چه دلته دَ شهرِ حرام نه مراد میاشت دَ ذی الحجه ده چه په دے کښے دَ حج ارکان او کارونه ادا کولے شی- او بعض فرمائی چه لفظ اګر چه مفرد دے مګر مراد دَ دے نه جنس دے په دے وجه ټولے دَ عزت او حرمت میاشتے په کښے داخلے دی-

دویم شے؛ هَدْيَ؛ ده- هَدْيِ هغه جانور ته ویلے شی دَ کوم چه قربانی په حرم شریف کښے کیږی- داسے جانور چه به دَ چا سره وو دَ عامو عربو دستور وو چه هغۀ ته به ئے څۀ نه وئے- دۀ به په امن او اطمینان سره سفر کولو او خپل مقصدونه به ئے پوره کولے شو- په دے وجه هَدْيِ هم دَ امن قائمولو سبب شو-

دریم شے: قَلَائِد: دے- قلائد دَ قلاده جمع ده- دَ غاړے هار ته وئیلے شی- دَ عربو په جاهلیت کښے دا رسم وه- چه څوک به دَ حج دَ پاره تلو، نو په خپله غاړه کښے به ئے یو هار په طور دَ نښے اچولو، چه خلق ئے وپیژنی چه دے حج له ځی نو څه تکلیف به ورته نۀ رسوی- دغه شان دَ قربانۍ دَ جانورانو په غاړه کښے به ئے هم هار اچولو، دوی ته به ئے هم قلائد وئیل- په دے وجه قلائد هم دَ امن او سکون یوه ذریعه جوړه شوه-

او چه غور پرے اوکړے شی نو دا درے واړه څیزونه: شهر حرام، هدی او قلائد: ټول دَ بیت الله دَ متعلقاتو نه دی- دَ دوی احترام هم دَ بیت الله دَ احترام یو شاخ دے-

لنډه دا ده چه بیت الله او دَ دے متعلقات الله تعالیٰ دَ ټولے دُنیا دَ مخلوق دَ پاره په عام طور سره او دَ عربو او اهلِ مکه وُو دَ پاره په خاص طور سره دَ دے ټولو کارونو دین دُنیا دواړو دَ پاره قِیَام او قوام جوړ کړے دے-

دَ: قِيَامًا لِّلنَّاسِ: په تفسیر کښے بعض تفسیر لیکونکی فرمائی چه دَ دینه مراد دا دے، چه بیت الله او حرم محترم دَ ټولو دَ پاره ځائے دَ امن جوړ شوے دے، بعض فرمائی چه دَ دے نه مراد دَ مکے دَ خلقو دَ پاره دَ رِزق فراخی ده- چه سره دَ دے چه په دے زمکه کښے هیڅ شے نه پیدا کیږی لیکن الله تعالیٰ دَ ټولے دُنیا څیزونه حلته رسوی-

بعضِ وائی چه دَ مکے خلق کوم ته چه به ئے دَ بیت الله خادمان او محافظان وے دوی لره به خلقو الله والا یعنی خدائی خلق کنړل دَ دوی سره به ئے همیشه دَ تعظیم معامله کوله دَ: قِيَامًا لِّلنَّاسِ: نه دَ دوی دا خاص اِعزاز مراد دے-

امام عبد الله رازیؒ فرمائی چه په دے ټولو خبرو کښے هیڅ اختلاف نیشته دے دَ: قِيَامًا لِّلنَّاسِ: په مطلب کښے دا ټول څیزونه داخل دی- چه الله تعالیٰ بیت الله لره دَ ټولو خلقو دَ بقاء، قیام، معاش او معاد

دَ دروغوالی او نجات ذریعه جوړه کړے ده - او عرب والو مکے والو لره ئے په خصوصیت سره دَ دے په ظاهري او باطني برکتونو نمائخلي دي -

په دريم ايت کښے ارشاد فرمائي: ذٰلِكَ لِتَعْلَمُوٓا اَنَّ اللّٰهَ يَعْلَمُ مَا فِي السَّمٰوٰتِ وَمَا فِي الْاَرْضِ وَاَنَّ اللّٰهَ بِكُلِّ شَيْءٍ عَلِيْمٌ: "يعني موږ بيت الله لره او دَ دۀ متعلقا تو لره دَ خلقو دَ پاره ذريعه دَ اَمن و آمان او قيام او بقاء جوړه کړے ده چه اهلِ عرب ئے په خصوصيت سره وينئ دا په دے وجه او وئيلے شو چه ټول خلق پوهه شي چه الله تعالىٰ دَ ز مکے او اسمان هر شي لره پوره پوره پيژني او هغه دَ دے انتظام کوَلے شي"

په دريم ايت کښے ارشاد فرمائي: اِعْلَمُوٓا اَنَّ اللّٰهَ شَدِيْدُ الْعِقَابِ وَاَنَّ اللّٰهَ غَفُوْرٌ رَّحِيْمٌ: "يعني پوهه شئ چه الله تعالىٰ سخت عذاب ورکوونکے دے او دا چه الله تعالىٰ ډير بخنے والا او رحم کوونکے دے" په دے کښے ئے او خوده چه کوم حکمونه ئے دَ ملا لوا و دَ حرامو کړی دی دا عينِ حکمت او مصلحت دے دَ دے منلو کښے ستاسو دَ پاره خير دے - او دَ دے په خلاف کوَلو کښے سخت وبال او عذاب دے - دَ دے سره ئے دا هم او خوده چه دَ انسان نه په هيره او غفلت سره څۀ ګناه او شي نو الله تعالىٰ فوراً عذاب نه ورکوي - بلکه دَ توبه کوونکو او شرمنده کيدونکو دَ پاره ئے دَ مغفرت دروازه پرانستے ده -

په دريم ايت کښے ارشاد او فرمايه: مَا عَلَى الرَّسُوْلِ اِلَّا الْبَلٰغُ ۚ وَاللّٰهُ يَعْلَمُ مَا تُبْدُوْنَ وَمَا تَكْتُمُوْنَ: "يعني زموږ دَ رسول ؐ په ذمه خو دومره کار دے چه زموږ حکمونه مخلوق ته او رسوي بيا دوی مَني او که نه مَني دَ دے نفع او ضرر دوی ته رسيږي - دَ دوی په نا فرمانئ سره زموږ دَ رسول ؐ هيڅ نقصان نيشته - او په دے هم پوهه شئ چه الله تعالىٰ لره څوک فريب نه شي ورکولے هغه ستاسو په ظاهر او باطن او پټ او ښکاره هر يو کار خبر دے -

په څلورم ايت کښے ئے ارشاد او فرمايه: قُلْ لَّا يَسْتَوِي الْخَبِيْثُ وَالطَّيِّبُ: په عربئ ژبه کښے طيّب او خبيث دوه متقابل لفظونه دي - طيّب

دَ هر شي ښهٔ اوګوره ته وائي او خبيث دَ هر شي رَدّي او خراب ته وائي - په دے ايت کښے دَ اکثرو تفسير ليکونکو په نزد دَ خبيث نه مراد حرام يا ناپاک دي او دَ طيّب نه مراد حلال او پاک دي - دَ ايت معنیٰ دا شوه چه دَ الله تعالیٰ په نزد بلکه دَ هر روغ عقل په نزد پاک اوناپاک يا حلال او حرام برابر يدے نه شي -

دلته لفظ دَ خبيث او طيّب دَ خپل عام والي په لحاظ سره حرام حلال مال دولت لره هم شامل دے، او ښهٔ بد انسانانو لره هم، او ښهٔ بد عملونو او اخلاقو لره هم - مطلب دَ ايت واضح دے چه دَ يو عقلِ سليم په نزد نيک او بد، ښهٔ او ناکاره برابر نه وي - دَ دے فطري قانون مطابق دَ الله تعالیٰ په نزد حلال حرام يا پاک اوناپاک څيزونه برابر نه دي دغه شان ښهٔ او بد عملونه او اخلاق برابر نه دي، دغه شان نيک او بدٌ انسان برابر نه دي -

وړاندې ارشاد فرمائي: وَلَوْ اَعْجَبَكَ كَثْرَةُ الْخَبِيْثِ : يعني اګرچه بعض وخت ليدونکو ته دَ خرابو او خبيثو څيزونو ډيروالے څهٔ عجيبه معلوميږي او کيرچا پيره دَ خرابو او خبيثو څيزونو خوريدل او دَ غالب راتللو په سبب دوي ته ښه لږي - مګر دا دَ انساني علم او شعور بيماري او دَ احساساتو قصور وي -

دَ ايت شانِ نزول | دَ ايت دَ شان نزول متعلق په بعضو روايتونو کښے دي چه کله په اسلام کښے شراب حرام شو، او اعِستعل خرڅول ئے منع شو نو يو سړي چه دَ حضهٔ کاروبار شراب خرڅول ؤو او دَ دے په ذريعه دهٔ څهٔ مال جمع کړے ؤه دَ نبي کريم صلے الله عليه وسلم نه تپوس او کړو چه يا رسول الله صلے الله عليه وسلم، دا مال کوم چه دَ شرابو په تجارت کښے ځما سره جمع شوے دے که دا په څهٔ نيک کار کښے او لګوم نو ايا ځما دَ پاره به فائده مند وي؟ نبي کريم صلے الله عليه وسلم او فرمائيل چه که ته دا په حج يا جهاد وغيره کښے خرچ کړے نو دا به دَ الله په نزد دَ ماشي دَ يو وزر په قدر هم قيمت او نه لري - الله تعالیٰ دَ پاک او حلال څيز نه سوا بل هيڅ هم نه قبلوي -

دَحرام مال دا بے قدری خو دَ آخرت په لحاظ سره شوه - او که په ځَوَرْ نظر سره اوکتے شی او دَ ټولو کارونو آخری انجام مخے ته راوستے شی نو معلومه به شی چه دَ دنیا په کاروبار کښے هم حلال او حرام مال برابر نه وی - په حلال مال سره چه څومره فائدے او ښے نتیجے او حقیقی آرام او راحت نصیب کیږی هغه چرته په حرام مال سره نهٔ نصیب کیږی -

په تفسیر درمنثور کښے په حواله دَ ابن ابی حاتم نقل دی - چه په زمانه دَ تابعینو کښے خلیفه راشد حضرت عمر بن عبد العزیزؒ چه کله دَ تیرو امیرانو دَ زمانے ناجائز ټیکسونه بند کړهٔ او دَ کومو خلقو نه چه ئے په ناجائزه سره مالونه اَخستی وُو هغه ئے واپس کړهٔ او سرکاری بیت المال خالی شو او آمدنی ډیره کمه شوه ، نو دَ یو صوبے گورنر دَوی ته په خدمت کښے خط اولیکه چه دَ بیت المال آمدنی ډیره کمه شوے ده ، نو فکر دے چه دَ حکومت کاروبار به څنګه اوچلیګی - حضرت عمر بن عبد العزیزؒ ورته په جواب کښے دا آیت اُولیکه: لَا يَسْتَوِي الْخَبِيثُ وَالطَّيِّبُ وَلَوْ أَعْجَبَكَ كَثْرَةُ الْخَبِيثِ : او ورته ئے اولیکل چه ستاسو نه وړاندې خلقو چه په ظلم زیاتی سره څومره خزانه ډکه کړے وه تاسو دَ هغے په مقابله کښے عدل او انصاف قائم کړئ خپله خزانه کمه کړئ او هیڅ پرواه مکوئ زمونږ دَ حکومت کاروبار به په دے کم مقدار سره پوره شی -

دا آیت اګرچه په یو خاصه واقعه کښے نازل شوے دے چه دَ شمار کمے زیاتے څهٔ شے نه دے په لږ والی او ډیر والی سره دَ یو شی ښهٔ والے او بد والے نه شی معلومولے دَ خلقو په سرونو لاس ایخودل یو ښځو ته لاسونه دَ یو کم څلویښتو په مقابله کښے دَ حق او صداقت معیار نه شی جوړ وَلے -

بلکه کَه دَ دنیا دَ هرے طبقے په حالاتو باندې لږ هم نظر واچولے شی نو به ټول دنیا کښے به دَ ښو او نیکو مقدار او شمار کم او دَ بدو شمار زیات په نظر راشی ، دَ ایمان په مقابله کښے کفر ، دَ تقوی او پاکئ او دینداری او آمانتداری په مقابله کښے فسق فجور ، دَ عدل او انصاف په مقابله کښے ظلم او زیاتے ، دَ علم په مقابله کښے جهل دَ عقل په مقابله کښے بے عقلی به زیاته او لیدے شی - چه په دے سره دا یقین لازمی کیږی چه دَ یو شی یا یو ے دَلے دَ شمار ډیر والے دَ دے په ښهٔ والی یا حق والی

بانډې قطعاً دليل نه شي جوړيدے - بلکه ډيوشي بنۀ والے او غوړ والے د دغه څيز او د دغې د لے په ذاتي حالاتو او اندازو باندې کيدے شي - که حالات او اندازے ئے ښے وي نو ښۀ به وي او که بدے وي نو بد به وي -

قرآن حکيم دے حقيقت لره: وَلَوْ أَعْجَبَكَ كَثْرَةُ الْخَبِيثِ: په الفاظو کښے واضحه کړے دے -

البته د شمار ډيروالي لره اسلام هم په بعض موقعو باندې فيصله کونکے مقرر کړے دے خو دغه هغه ځائے کښے کوم ځائے چه د قوت دليل او ذاتي خوبو د موازنے فيصله کونکے څوک د اقتدار خاوند حاکم نه وي - په داسے موقع باندې د دعواو د جګړے ختمولو د پاره د شمار ډيروالي لره ترجيح ورکولے شي - لکه د امام د مقررکولو مسئله ده، چه هلته څوک امام او امير فيصله کونکے موجود نه وي په دے وجه کثرت د رائے له ترجيح ورکولے شي چه جګړه ختمه شي دا هم ګمان نه ده چه کوم شي لره په زياتو شمار سره خلقو اختيار کړو هغه شے حلال او جائز او حق دے -

---

د آيت په آخر کښے ارشاد او فرمايه: فَاتَّقُوا اللَّهَ يَا أُولِي الْأَلْبَابِ: يعني اے عقل خاوندانو د الله نه يره کوئ" چه په دے کښے ئے اشاره او فرمائيله چه ډيو شي د شمار د ډيروالي نه مه يريږئ - يا ډيرو لره په مقابله د لږو کښے د حق او صحيح معيار مقررکول د عاقلانو کار نه دے - په دے وجه ئے عاقلانو ته خطاب او کړو د دوي لره ئے د دے غلطے روئيے نه د منع کولو د پاره د : فَاتَّقُوا اللَّهَ : حکم ورکړو -

---

يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا لَا تَسْأَلُوا عَنْ أَشْيَاءَ إِنْ

اے ايماندارو! تپوس مه کوئ د داسے خبرو چه که تاسو ته

تُبْدَ لَكُمْ تَسُؤْكُمْ ج وَإِنْ تَسْأَلُوا عَنْهَا حِينَ

ښکاره کړے شي نو تاسو به خفه کړي - او که تپوس کوئ د دے خبرو په داسے وخت کښے

يُنَزَّلُ الْقُرْاٰنُ تُبْدَ لَكُمْ ؕ عَفَا اللّٰهُ عَنْهَا ؕ وَاللّٰهُ

چه قرآن نازلیږی نو تاسو ته به ښکاره کړے شي - الله تعالیٰ د دینه معافی کړے ده - او الله

غَفُوْرٌ حَلِيْمٌ ﴿١٠١﴾ قَدْ سَاَلَهَا قَوْمٌ مِّنْ قَبْلِكُمْ

بخښنے والا برداشت کونکے دے - د دا سے خبرو تپوسونه کړی دی یو قوم ستاسو نه وړاندې

ثُمَّ اَصْبَحُوْا بِهَا كٰفِرِيْنَ ﴿١٠٢﴾ مَا جَعَلَ اللّٰهُ مِنْ

بیا د دغے خبرو نه منکر شو - نه دی مقرر کړی الله پاک

بَحِيْرَةٍ وَّلَا سَآئِبَةٍ وَّلَا وَصِيْلَةٍ وَّلَا حَامٍ

بحیره او نه سائبه او نه وصیله او نه حامی

وَّلٰكِنَّ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا يَفْتَرُوْنَ عَلَى اللّٰهِ

او لیکن کافران جوړه وی په الله پاک باندې

الْكَذِبَ ؕ وَاَكْثَرُهُمْ لَا يَعْقِلُوْنَ ﴿١٠٣﴾

دروغ - او په دوی کښے اکثر بے عقله دی

# لنډ تفسیر

اے ایماندارو! د دا سے (فضول) خبرو تپوسونه مه کوئ (یکومو کښے چه د دا احتمال وی چه) که تاسو ته ښکاره کړے شي نو تاسو به خفه کړی (یعنی د دا احتمال پکښے وی چه جواب به ئے ستاسو د منشاء خلاف را شي نو ستاسو به خوښ نه شی) او (په کومو کښے چه د دا احتمال وی چه) که تاسو په زمانه د نزول د قرآن (او وحئ) کښے د دا سے خبرو تپوسونه کوئ نو تاسو ته به ښکاره کړے شي (یعنی په سوال کولو کښے د دوېم احتمال وی چه

جواب ملاؤ شی او په جواب ملا وید وکښې دغه اوّل لے احتمال دی چه بندهٔ به
دربانږ اونه لګی او دا دواړه احتمالونه په مجموعی طور سره چه د سوال کولو
دی واقعی دی، پس دا سے سوال منع دے، خیر) تیر سوالونه (کوم چه تر
دے وخته پورے شوی دغه خو) الله تعالیٰ معاف کړل (لیکن ائنده مه
کوئ) او الله تعالیٰ لوئے مغفرت والا دے (په دے وجه تیر سوالونه
معاف کړے شو او) لوئے حلم والا دے (په دے وجه په ائنده خلاف
ورزئ کولو په دنیا کښې چه سزا درنه کړی نو په دوکه کښې مه پریوځئ
چه ورانږ به هم څه عذاب او سزا نه وی) دا سے خبرے ستاسو نه
وړانږ (زمانه کښې) د نورو (امتونو) خلقو هم (د خپلو پیغمبرانو نه) تپوس کړے
دی بیا (دوی ته جواب ملاؤ شو نو) د دغے خبرو حق ئے په ځائے نه کړو
(یعنی په دغے جوابونو کښې چه کوم د احکامو متعلق وُو د هغې موافق عمل
ئے اونکړو، او کوم چه د واقعاتو متعلق وُو د هغې نه متأثره نه شو
نو هسے نه چه په تاسو کښې نوبت دے ته اورسی، په دے وجه بندهٔ دا
ده چه دا سے سوالونه کول پرېږدئ) الله تعالیٰ نه بحیره روا کړے ده
او نه سائبه او نه وصیله او نه حامی لوه لیکن کوم خلق چه کافران دی
دوی (د دے رسمونو په باره کښې) په الله تعالیٰ باندې دروغ جوړوی
(چه خدائے تعالیٰ په دے کارونو خوشحاله دے) او اکثر کافران (د دین
عقل نه لری (او کار ترے نه اخلی بلکه محض د خپلو مشرانو لیدلی شوی دا سے
د جهالت کارونه کوی)۔

## مَعلومَات او مَسئلے

**د بے ضرورته تپوس کولو نه مَنع**

په دے آیاتونو کښې په دے خبره خبردار ے ورکړے شوے دے چه د بعضو خلقو د الله تعالیٰ
په حکمونو کښې بے ضرورته د باریکاتو لټولو او د ویښته نه د څرمنې ویستو
شوق وی او کوم حکمونه چه ورکړے شوی نه وی د هغې متعلق بغیر د
څه حاجت او ضرورت نه سوالونه کوی۔ په دے آیت کښې دوی ته دا خو د

ورکړے شوے ده چه دوی دِ داسے سوالونه نهٔ کوی چه په جواب کښې ئے په دوی څه سختنه راځی- یا دَ پټو رازونو په ښکاره کیدو سره دَ دوی رسوائی اوشی۔

**شانِ نزول** دَ دے آیا تونو شانِ نزول دَ مسلم دَ روایت مطابق دا دے چه کله دَ حج فرضیت نازل شو نو اقرع بن حابسؓ تپوس اوکړو چه آیا هر کال حج زمونږ په ذمه فرض دے؟ نبی کریم صلے الله علیه وسلم دَ دے سوال جواب ورنه کړو نو هغه بیا بیا سوال اوکړو نبی کریم صلے الله علیه وسلم خاموش وُو چه دهٔ په دریمه پیره بیا سوال اوکړو نو دغه وخت نبی کریم صلے الله علیه وسلم په زور نے سره ده ته خبردارے اوفرمایه چه که ما ستا په جواب کښې هاں وئیلے نو بیا به داسے شوے وه او په تاسو به هر کال حج فرض وهٔ- او بیا به تاسو دا حکم نه شو پوره کولے۔ دَ دے نه پس ئے ارشاد اوفرمایه چه دَ کومو څیزونو متعلق زهٔ تاسو ته څهٔ حکم اونه کړم نو هغه هم دغه شان پریدئ په هغے کښې لټون او تپوس نه مهٔ کوئ ستاسو نه وړاندې بعضې اُمتونه دَ دے ډیرو سوالونو په وجه هلاک شوی دی چه کوم څیزونه الله او دَ هغهٔ رسولؐ نه وُو فرض کړی په سوالونو کولو به ئے هغه فرض کړل او بیا به دَ هغے په خلاف ورزئی کښې اخته شو۔ ستاسو کار دا دے چه دَ کوم کار زهٔ حکم اوکړم دَ خپل طاقت مطابق دَ هغے دَ پوره کولو کوشش کوئ او دَ کوم شی نه چه منع اوکړم هغه پریدئ (مطلب دا دے چه دَ کومو کارونو نه خاموشی شوی وی دَ هغے متعلق لټون مه کوئ)

**دَ نبی کریم صلے الله علیه وسلم نه پس نبوّت او دَ وحئ سلسله ختمه ده** په دے آیت کښې یو ضمنی جمله دا هم ارشاد اوفرمائیلے شوه چه: اِنْ تَسْـَٔلُوْا حِيْنَ يُنَزَّلُ الْقُرْاٰنُ تُبْدَ لَكُمْ: "یعنی دَ قرآن دَ نزول په زمانه کښې که تاسو داسے سوالونه کوئ نو په وحئ سره به دَ هغے جواب راشی په دے کښې ئے دَ قرآن نزول زمانے سره اُوتا په دے طرف ته ئے اشاره اوفرمائیله چه دَ قرآن دَ نزول دَ مکمّل کیدو نه پس به دَ نبوّت او وحئ سلسله بند کړے شی۔

دَ نبوّت ختمیدو او دَ وحئ دَ سلسلے ختمیدو نه پس دَ داسے سوالونو به

اګر چه دا اثر نه وي چه نوي احکام به راشي کوم څيزونه چه فرض نه وي هغه به فرض شي يا به په ذريعه د وحئ د چا څهٔ پټ راز ښکاره شي ليکن بې ضرورته سوالونه چو په ول او په لټون کښې ئې پريوتل د بې ضرورته څيزونو متعلق سوالونه کول پس د قطع کيدو د نبوّت نه هم بند او منع دي- ځکه چه په دې کښې خپل او د نورو وخت ضائع کول دي، د نبي کريم صلے الله عليه و سلم ارشاد دے: مِنْ حُسْنِ إِسْلَامِ الْمَرْءِ تَرْكُهُ مَا لَا يَعْنِيهِ: "يعنې د مسلمانئ يو ښهٔ والے دا دے چه سړے فضول خبرے پاتے کړي:" د دينه معلومه شوه چه ډير مسلمانان چه بالکل د فضول څيزونو په تحقيق کښې لګيدلي وي چه د موسئ عليه السلام د مورخهٔ نوم وُه، او د نوح عليه السلام د کشتئ پلنوالے او اُوګس والے څومره وُه، چه د دے هيڅ اثر د انسان په عمل با ندينشتے دا سے تپوسونه او سوالونه کول يده خبره ده- خاصکر چه بيا دا هم معلومه وي چه د دا سے سوالونو کونکي خلق اکثر د دين د ضروري او اهمو مسئلو نه بې خبره وي- په فضولو کارونو کښې د پريوتو نتيجه دا وي چه بندهٔ د ضروري کارونو نه محرومه شي- پاتے شوه دا مسئله چه فقهاؤ حضراتو پخپله فرضي صورتونه د مسئلو راويستلي دي او سوالونه ئې جوړ کړي دي د هغې حکمونه ئې بيان کړي دي- نو دا بې ضرورته څيز نه وُه- راتلونکو واقعاتو دا او خوده چه آئنده نسلونو ته د دے ضرورت وُه- په دے وجه دغه فضول او بې مطلبه سوالونه نهٔ وُو- د اسلام په تعليماتو کښې دا هم يو تعليم دے چه علم وي او که عمل څهٔ کار وي او که خبره ترڅو پورے چه په دے کښې څه ديني يا دُنيوي فائده پيش نظر نه وي په دغے کښې وخت ضائع کول نه دي پکار-

## د بحيرے، سائبے وغيره تعريف

بحيره، سائبه، وصيله حامي، دا ټول د جاهليّت د زمانے رسمونه او نښے لښانے دي- تفسير ليکونکو د دوي په تفسير کښې ډير اختلاف کړے دے- ممکنه ده چه په دوي کښې د هر يو لفظ اطلاق په مختلفو صورتونو کيږي- مونږ صرف د سعيد بن المسيّبؒ تفسير د صحيح بخاري نه نقل کړو:-

بحیره: هغه ځناور چه پئ به ئے د بُتانو په نوم وقف کول چا به پئ نه راوستل۔

سائبه: کوم ځناور چه به ئے د بتانو په نوم زموږ د زمانے د سانډانو پشان پریخودلو۔

حامی: نر اُوښ چه په یو خاص شمار سره به ئے اُوښے بلاربے کړے دا به ئے هم د بتانو په نوم پریخودلو۔

وصیله: دکومے اوښے چه به مسلسل ماده بچی راوړل په مینځ کښے نر بچے پیدا نه شو دا به ئے هم د بتانو په نوم پریخودلو۔

علاوه د دے نه چه دا څیزونه د شرک نښے وے د کومو ځناورانو د غوښو پیئو یا سورلئ وغیره نه چه الله نفع اخستل جائز کړی وُو د دوی په حلالوالی او حرامولی به ئے هم د خپل طرف نه قیدونه لګول ګویا د خپل طرفنه به ئے شریعت جوړ ولو۔ او لوئے ظلم بیا دا وُه چه دا خپل مشرکانه رسمونه به ئے الله تعالیٰ ته منسوب کول د هغهٔ د خوشحالئ او نزدیکت ذریعه به ئے ګنړل۔ د دے جواب ورکړے شو چه الله تعالیٰ هرګز دا رسمونه نه دی مقرر کړی د دوی مشرانو دا په خدائے پورے دروغ جوړ کړی دی۔ او اکثر بے عقلو عوامو دغه قبول کړل۔

غرض دا دے چه دلته دا خبره دا رے ورکړے شوے دے چه لکه څنګه په فضول او بے کاره سوالونو کولو سره د شریعت په حکمونو کښے تنګی او سختی کول جرم دے دغه شان د دے نه زیات جرم دا دے چه پیغمبر د شارع د حکم نه محض پخپله رائے او خواهش سره حرام او حلال تجویز کړے شی (فوائد عثمانیؒ)

وَاِذَا قِيْلَ لَهُمْ تَعَالَوْا اِلٰى مَآ اَنْزَلَ اللّٰهُ وَاِلَى الرَّسُوْلِ

او کله چه دوئیلے شی دوی ته چه راشئ هغے ته کوم چه الله نازل کړی دی او رسولؐ طرف ته

قَالُوْا حَسْبُنَا مَا وَجَدْنَا عَلَيْهِ اٰبَآءَنَا ؕ اَوَلَوْ كَانَ

نو وائی چه موږ لره کافی دی هغه یکوم چه موند لی دی موږ پلار نیکه خپل اګر که د دوی پلار

اٰبَآؤُهُمْ لَا يَعْلَمُوْنَ شَيْئًا وَّلَا يَهْتَدُوْنَ ﴿۱۰۴﴾ يٰٓاَيُّهَا

وَه نوبیا به هم دوی د هغو پسې ځي - اے

نیکه نه څه علم لاره او نه ورته لار معلومه

الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا عَلَيْكُمْ اَنْفُسَكُمْ ۚ لَا يَضُرُّكُمْ مَّنْ

ایمان دارو! په تاسو لازم دے فکر د خپل ځان - ستاسو هیڅ نه شي ورانولے څوک

ضَلَّ اِذَا اهْتَدَيْتُمْ ۭ اِلَى اللّٰهِ مَرْجِعُكُمْ جَمِيْعًا

چه گمراه شو کله چه تاسو په لاره باندې یئ - الله ته واپس تلل دي ستاسو ټولو

فَيُنَبِّئُكُمْ بِمَا كُنْتُمْ تَعْمَلُوْنَ ﴿۱۰۵﴾

بیا به هغه خبر کړي تاسو لره په هغې چه تاسو کول-

## د آیاتونو تړون

بره د رسم پرستو کفارو د یو جهالت ذکر وه او د اسے د اسے جهالتونه د دوی چیر زیات وُو - چه د دے په اوریدو به مسلمانانو ته خفکان او افسوس کیده - په دے وجه وړاندې مونږ منا نو ته د دے متعلق ارشاد دے چه تاسو ولے په دے غم کښے پریوتي یئ، تاسو ته د خپلے اصلاح او د نورو په اصلاح کښے په قدر د طاقت او قدرت د کوشش کولو حکم دے، باقي په کوشش باندې فائده مرتب کیدل ستاسو د اختیار نه باهر ده، په دے وجه "خپل کار کوئ په دے غم مکوئ" باندې عمل کوئ-

## لنډ تفسير

کله چه دوی ته او ویلے شي چه الله تعالیٰ چه کوم حکمونه نازل کړي دي د هغې طرف ته او د رسول (صلی الله علیه وسلم) طرف ته راشئ چه دغه حکمونه نازل شوي دي) رجوع اوکړئ (کوم کار چه په دے سره حق ثابت شي هغه حق اوګڼئ او کوم چه باطل وي هغه باطل اوګڼئ) نو وائي چه مونږ ته خو (د دے حکمونو او رسول ضرورت نیشته مونږ لره خو) هغه (طریقه) کافي ده

په کومه چه مومنِ خپل مشرانو ته لی دی (الله تعالیٰ فرمائی چه) آیا (دغه طریقه دوی لره په هر حال کښې کافی ده) اګرچه (د دوی مشرانو (د دین) نه پوهه لرله او نه (د څه آسمانی کتاب) هدایت ئې لرلو، اے ایمان والو خپل (د اصلاح) فکر کوئ (اصل کار ستاسو په ذمه دادے، باقی د نورو د اصلاح متعلق دا خبره ده چه کله تاسو د خپل طرف نه د خپل قدرت مطابق د اصلاح کوشش کوئ مګر په بل اثر نه کیږی نو تاسو د اثر نه کیدو فکرمه کوئ ځکه چه) کله تاسو (د دین) په لاره چلیږئ (او د دین واجبات ادا کوئ، دا سے چه خپله هم اصلاح کوئ او د نورو په اصلاح کښې هم کوشش کوئ) نو کوم سړے چه (سره ستاسو د اصلاح د کوشش نه هم) ګمراه وی نو د دهٔ (د ګمراهئ) نه ستاسو هیڅ نقصان نیشته (او لکه څنګه چه په اصلاح وغیره کښې د حد نه د زیات فکر او غم نه منع کولے شی، دغسے د هدایت نه د نا امیده کیدو په صورت کښې د غصّے نه په دُنیا کښې په دوی د سزا نازلیدو آرزو کول هم منع دی، ځکه چه د حق او باطل مکمل فیصله خو به په آخرت کښې وی نو) د الله پاک خوا ته ستاسو ټولو تلل دی بیا به هغهٔ تاسو ټولو ته اُوبنائی څهٔ چه تاسو کول (او د خوړ لو سره به په حق د ثواب او په باطل د عذاب حکم نافذ او فرمائی) -

## معلومات او مسئلے

**د آیاتو نو شانِ نُزول**

د جاهلیت په رسمونو کښې یو د پلار نیکه تقلید هم وهٔ چه دوی لره ئې په هر یو نا کار والی کښې اخته کړی وهٔ او د هرے نیکئ نه ئې محرومه کړی وهٔ - په تفسیر دُرِّ منثور کښې په حواله د ابنِ ابی حاتم نقل دے چه په دوی کښې که به چا ته یو خوش نصیبه حق خبره او منله او مسلمان به شو نو هغهٔ ته به ئې دا پیغور کاوه چه تا خپل پلار نیکه بے وقوفان اوګنړل چه د هغو لار دِ پاتے کړه بله لار دِ اختیار کړه د دوی په دے ګمراهئ د پاسه په ګمراهئ باندِ دا آیت نازل شو -: وَاِذَا قِيْلَ لَهُمْ تَعَالَوْا اِلٰى مَآ اَنْزَلَ اللّٰهُ وَاِلَى الرَّسُوْلِ قَالُوْا حَسْبُنَا.

مَا وَجَدْنَا عَلَيْهِ اٰبَآءَنَا: " يعنې كله چه په دوى ته اوويلے شو چه تاسو د الله تعالىٰ نازل كړو حقيقتونو او حكمونو او د رسول طرف ته رجوع اوكړئ چه په هر حيثيت سره د حكمت او مصلحت او ستاسو د پاره د اصلاح او نجات ضامن دى - نو دوى سره د دے نه سوا بل څۀ جواب نه وى چه مونږ لره خو هغه طريقه كافى ده په كومه چه مونږ خپل پلار نيكه ليدلى دى "

دا هغه شيطانى استدلال دے چه په لاكونو خلقو لره ئے سره د معمولى پوهے او علم وصنولو لو ګمراه كړل - قرآن كريم د دوى په جواب كښے اُو فرمائيل : اَوَلَوْ كَانَ اٰبَآؤُهُمْ لَا يَعْلَمُوْنَ شَيْئًا ؛ غور او فكر كوونكو لره د قرآن كريم دے يو جملے د يو كس يا يو جماعت د پيشوا جوړيدلو يو صحيح اُصول بيان كړل ړ ند ولره ئے نظر او جاهلانو او غافلانو ته ئے د حقيقت ښكاره كولو مكمل سامان اوكړو - هغه دا چه دا خبره خو عقل منى چه نا پوهه د پوهو، ناخبره د خبردارو پيروى كوى ، جاهل سړے دے د عالم اقتداء كوى - ليكن دا خو د عقل خبره نه ده ، چه د علم عقل او هدايت د معيار نه واوړى د خپل پلار نيكه يا رود ولئ اقتداء كول د خپله طريقه جوړه كړى - او په دے دے هم ځان نه پوهه كوى چه دا پيشوا پخپله چرته روان دے او مونږ كوم ځائے ته د رسوى - خوبس ورپسے شى -

دغه شان بعضے خلق د يو سړى تابعدارى او اقتداء ځكه كوى چه په ده پسے خلق ډيروى نو چه كوم طرفته دے ګڼړه وينى نو هم هغه طرف ته ځى ، دا هم يو عقل نه منونكے حركت دے - ځكه چه ډيروالے خو اكثر په دُنيا كښے د بے وقوفو يا كم عقلو يا د بے عملو خلقو وى - نو په دے وجه د خلقو ګڼړه د حق او ناحق يا ښۀ بد د پيژند و معيار نۀ شى جوړ يد ے -

| ناا هل لره پيشوا جوړول هلاكت لره بُلنه وركول دى | د قرآن كريم د جملے تولو ته د ښكاره حكمت سبق وركړو - چه په دوى كښے هيڅ شے د |
|---|---|

ورپسے كيدواو د پيشوا جوړ ولو د پاره هر ګز كافى نه دے - بلكه په هر انسان د تولونه اوّل دالازم ده ، چه د خپل ژوند مقصد او د خپل سفر خ

معلوم کړی، بیا دَ دے مقصد حاصلَولو دَپاره دا اُوګوری چه څوک دا سے سړے دے، چه دَ دے مقصد لاره هم پیژنی او په دے لاره باندِ روان هم وی، نوکله چه ورته څوک دا سے سړے ملا ؤ شی نوبے شکه چه په دهٔ پسے وَرُپسے کیدل دهٔ لوه منزلِ مقصودته دَ رسَوَلے شی. دا حقیقت دے دَ مجتهد ینو اماما نو دَ تقلید، چه دوی په دین پوهید ونکی هم دی او په دے عمل کوونکی هم، په دے وجه ناپوهه چه دَ دوی تابعداری اوکړی. نو دَ دین مقصد یعنی دَ خدائے او دَ رسولؐ تابعداری حاصلَولے شی. اوچا چه لاره دکه کړی وی، منزلِ مقصود پخپله نه پیژنی یائے پیژنی خو قصدًا په غلطه لارروان وی په دهٔ پسے تلل دَ هرعقلمند په نزد خپل کوشش او عمل لوه ضائع کول دی بلکه خپل هلاکت لوه بلنه ورکول دی. دَ دے علم اوحکمت اوروشن خیالئ په زمانه کښے هم افسوس دے چه تعلیمیا فته دَ عقل او پوهے خاوندا نو هم دے حقیقت لوه نظر انداز کړے دے اود دے نتیجه تباهیٔ او بربادیٔ دَ ټولو نه لوئے سبب په نا اهلو او غلطو پیشوا یا نو اولیډ را نو پسے کیدل دی.

دا اقتدا معیار | دَ قرآن کریم دے جملے دَ اقتدا (یعنی په چاپسے دَ وړاندے کیدو) دپاره دَ عقل او واضع معیار دوه څیزونه جوړ کړی دی. علم او په هدایت کیدل، دَ علم نه مراد منزلِ مقصود او هغهٔ ته دَ رسیدو طریقے پیژندل دی. او دَ هدایت موندو نه مراد دَ دغے مقصد په لاره تلل دی یعنی په صحیح علم باندِ برابر عمل کول.

لنډه دا شوه چه کوم سړے پیشوا جوړ وے نو اول دا اوګوره چه دَ کوم مقصد دَ پاره دِ دے پیشوا کړے دے، دے دَ دغے مقصد او او دَ دغے مقصد دَ لارے نه په پوره ډول سره واقف هم دے او کنهٔ؟ بیا دا اوګوره چه دے په دغه لارے ځی هم او که نه؟ او دَ دهٔ عمل دَ خپل علم مطابق هم دے او که نه؟

غرض دا دے چه چا لوه دَ پیشوا جوړ ولو دَ پاره دَ صحیح علم او دَ برابر عمل په معیار سره ګوره کول ضروری دی، محض پلار نیکه کیدل او یا دَ

ډېرو خلقو لېره رکېدل، یا د مال دولت خاوند کېدل د حکومت او بادشاهت خاوند کېدل، په دې کښې یو شے هم داسے نه دے چه د پېشواکېدلو معیار او ګڼړلے شي او اقتداُ ورپسے او شي۔

**په چا د تنقید کولو اثرناکه طریقه**

قرآن کریم دلته د پلار نیکه تقلید کوُنکو خلقو غلطي ښکاره کړهٔ، او د دے سره ئے په بل باندِ تنقید کول او د هغهٔ د غلطۍ ښکاره کولو یو خاصه اثر کوُنکے طریقه هم او خودله چه په دے سره د مخاطب زړهٔ هم نه آزارېګی او په غُصّه کښې هم نه راځي۔ ځکه چه د پلار نیکه د تقلید کوُنکو په جواب کښې ئے داسے او نه فرمائیل چه ستاسو پلار نیکه جاهلان یا ګمراهان وُه۔ بلکه د سوال کولو په طریقه ئے اشاره اوکړه چه آیا د پلار نیکه پیرَوِیُ په داسے حالت کښے هم ځهٔ د عقل خبره کېدے شي کله چه پلار نیکه نه عِلم لري او نه عمل۔

**د خلقو د اصلاح فکر کوُنکوته یوَه تسلّي**

په دویم ایت کښې ئے د خلقو د اصلاح په فکر کښې خپل هرڅهٔ قربانوُنکو ته تسلّي ورکړے شوے ده۔ چه کله تاسو د تبلیغ او تعلیم په حق اداکولو کښې په خپل طاقت سره کوشش اوکړهٔ، او د نصیحت او خیرخواهي حق مُو اداکړو۔ نو بیا هم که څوک په ګمراهۍ پاتے شي نو تاسو د دهٔ فکر مکوئ، په دے حالت کښې د نورو د ګمراهۍ یا غلط کارئ به ستاسو هیڅ نقصان نه وي۔ ارشاد فرمائي:۔

يَآ أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا عَلَيْكُمْ أَنفُسَكُمْ لَا يَضُرُّكُم مَّن ضَلَّ إِذَا اهْتَدَيْتُمْ ؕ "یعنی اے مسلمانانو تاسو خپل فکر کوئ، کله چه تاسو په نیغه لارے یئ نو څوک چه ګمراه دے د هغهٔ نه ستاسو هیڅ نقصان نیشته"

د دے ایت د ظاهري الفاظو نه خو داسے ګڼړلے شي۔ چه هر یو انسان لره خو صرف د خپل عمل او د خپلے اصلاح فکر پوره دے، نور خلق چه هرڅه کوی هغے ته د فکر کولو ضرورت نیشته، او دا خبره د قرآن کریم د بے شماره وضاحتونو نه خلاف ده، چه په هغے کښې ئے امر بالمعروف او نهي عن المنکر لره د اسلام اهمه فریضه او د دے اُمّت یو امتیازي خصوصیّت مقرر کړے دے۔ په دے وجه د دے ایت په نازلېدو ډېرو خلقو ته شبهات راوړاندے شو،

د نبي كريم صلے الله عليه وسلم نه ئے تپوس نه اوكړل. او دوئ ورته وضاحت اوفرمايه چه دا آيت د امر بالمعروف اونهي عن المنكر نه منافي نه دے - كه امر بالمعروف پاتے كړے نو د مجرمانو سره به تهٔ هم اونيولے شے - په دے وجه په تفسير بحر محيط كښے د حضرت سعيد ابن جبيرؓ نه د آيت دا تفسير نقل دے چه په تاسو چه د شريعت د طرف نه كوم كارونه واجب دي هغه آدا كوئ چه په دے كښے جهاد اوامر بالمعروف هم داخل دے. د دے هرڅهٔ كولو نه پس بيا هم چه كوم خلق گمراه پاتے شو نو پتاسو څهٔ نقصان نيشتے د قرآن كريم په الفاظو: إِذَا اهْتَدَيْتُمْ، چه غور اوكړے شي نو دا تفسير به ښكاره واضحه شي. ځكه چه د دے معنیٰ دا ده چه كله تاسو په نيغه لار بانډې يئ نو د نورو گمراهي ستاسو د پاره ضررناكه نهٔ ده. او ښكاره خبره ده چه څوك امر بالمعروف نه كوي. نو دے بيا په نيغه لاره بانډې نه دے -

په تفسير درمنثور كښے د حضرت عبد الله بن عمرؓ واقعه نقل كړے ده چه د دوئ نه چا داتپوس اوكړو چه د فلانی فلانی حضراتو د يو بل سره سخته جګړه ده يو بل ته مشرك وائی، نو ابن عمرؓ اوفرمائيل چه آيا ستا داخيال دے چه تا ته اووايم چه لاړ شه د دغو خلقو سره قتال اوكړه، هرګز نه، لاړ شه او دوی په نرمئ سره پوهه كړه كه قبوله ئے كړه نو ډيره غوره ده او كه قبوله ئے نه كړه نو د دوی فكر پريده خپل فكر كوه، بيا دا آيت دوئ د خپل جواب په شهادت كښے تلاوت كړو -

د كنا هونو د بندولو په باره كښے د حضرت صديق اكبرؓ يو خطبه

د آيت د ظاهري الفاظو نه چه په سرسري نظر سره كومه شُبُهَهٔ پيدا كيدله د دے په باره كښے حضرت صديق اكبرؓ يو خطبه ارشاد او فرمائيله چه؛ تاسو خلق دا آيت لولئ او د دے بے موقع استعمال كوئ چه د امر بالمعروف ضرورت نيشتے، ښه پوهه شئ چه ما د نبي كريم صلے الله عليه وسلم نه آورېدلی دي چه كوم خلق څهٔ گناه كيدل وينی او د خپل طاقت په مناسب د دے د منع كولو

کوشش نه کوی نو نزدے دَه چه الله تعالیٰ دَدغه مجرمانو سره دے نورو خلقو لره هم په عذاب کښے اونیسی:-

دا روایت په ترمذی ابن ماجه کښے موجود دے - او دَ ابوداؤد په الفاظو کښے دی چه کوم خلق چا ظالم لره په ظلم کولو اووینی او دهٔ لره دَ ظلم نه دَ خپل طاقت موافق) منع نه کړی، نو الله تعالیٰ به ټولو لره په عذاب با ندِ اونیسی۔

**دَ معروف او دَ منکر معنیٰ**

دَ تیر تفصیل نه دا خبره معلومه شوه چه په هر مسلمان دا لازم ده چه دے دَ مُنکر یعنی ناجائزو کارونو دَ ینددَولو کار کوی یا دَ کم نه کم دَ دے نه دَ نفرت اظهار اوکړی - اوس دا معلومه کړئ چه معروف او منکر څهٔ ته وائی؟ -

لفظ دَ: معروف: دَ معرفه نه - او: مُنکر: دَ انکار نه وتلے دے - په یو شی په غور فکر سره ځان پوهه کول او پیژندلو ته معرفه وائی - دَ دے په مقابله کښے مُنکر نه پیژندلو یا نه پوهیدلو ته وائی - دا دواړه لفظونه دَ یو بل مقابل ګڼړلے شی - په قرآن کریم کښے یو ځائے ارشاد دے: يَعْرِفُوْنَ نِعْمَةَ اللّٰهِ ثُمَّ يُنْكِرُوْنَهَا: یعنی دَ الله تعالیٰ دَ کامل قدرت نښے نښانے اووینی او دَ دهٔ نعمتونه اوپیژنی مګر بیا په وجه دَ عناد انکار کوی، ګویا چه هغوی دا نعمتونه پیژنی نه - دَ دے نه معلومه شوه چه دَ لغوی معنیٰ په اعتبار سره دَ معروف معنیٰ دَ پیژندلی شوی څیز ده - او دَ منکر معنیٰ ده دَ نهٔ پیژندلی شوی څیز - امام راغب اصفهانیؒ په مفردات القرآن کښے په دے مناسبت سره دَ شرع په اصطلاح کښے دَ معروف او منکر دا معنے بیان کړی دی چه معروف هر هغه کار ته وئیلے شی چه دَ هغے غوړولے او ښه والے په عقل یا شرع سره پیژندلے شوے وی - او منکر دَ هر هغه کار نوم دے چه په عقل او شرع سره هغه ناآشنا او نه پیژندونکے وی - یعنی بَدْ ګڼړلے شی - په دے وجه دَ امر بالمعروف معنیٰ ښه کار طرف ته بلَنه ده - او دَ نهی عن المنکر معنیٰ دَ بَدْ کار نه دَ منع کولو ده - (نو دَ امر بالمعرف او نهی عن المنکر مطلب شو دَ نیکو اَمر کول او دَ بد و نه منع کول)

| دَ مجتهد ينو امامانو په مختلفو اقوالو کښې هيڅ شرعي مُنکر نوی | ليکن په دے ځائے کښې دَ ګناه او ثواب يا فرمانبردارئ اونا فرمانئ په ځائے دَ معروف او منکر په لفظ راوړو |
| --- | --- |

کښې شايد دے طرف ته اشاره وی چه هغه باريکے او اجتهادی مسئلے په کومو کښې چه دَ قرآن او سنّت دَ اجمال يا ابهام ريښه ولړلی) په وجه دوه رائے کيدے شی او په دے بنا باندِ په دی کښې دَ اُمّت دَ فقهاؤ خبرے مختلفے دی هغه دَ دے دائرے نه خارج دی۔ دَ کومو مجتهد ينو امامانو چه دَ دوی اجتهاد دَ اُمّت عالمانو منلے دے که په يوه مسئله کښې دَ دوی دوه مختلفے وَينا ګانے وی. نو په دوی کښې يوے ته هم شرعی منکر نه شی ويلے۔ بلکه دَ دے دواړه جانبه په معروف کښې داخل دی۔ په داسے مسئلو کښې دَ يوے رائے غوره کوُنکی ته داحق نيشتے چه بلے رائے ته مُنکر اووائی داسے لکه چه دَ ګناه خبرے ته ويلے شی۔ هم دا وجه ده چه په صحابهؓ او تابعينوؒ کښې دَ ډيرو اجتهادی اختلافو او متضادو خبرو سره داچرته نه دی نقل شوی چه دوی په يو بل دَ فاسق يا ګناه ګار کيدو فتوای لګولے وی۔ بحث مباحثے او مناظرے هرڅه به کيدل او هريو به دَ خپلے خبرے دَ غوره والی وجه بيانولے او خپله رائے به ئے غوره کوَله او په بل به ئے اعتراض کولو ليکن هيڅ يو بل لره دَ اختلاف په وجه ګناه ګار نه ګنړلو۔

لنډه دا چه دَ اجتهادی اختلاف په موقع باندِ خو دا هر دَ علم خاوند لره اختيار دے چه کوم طرف لره غوره او ګنړی هغه اختيار کړی ليکن دَ بل کار لره منکر ګنړل او په ده باندِ دَ بد ګنړلو هيڅ ته حق نيشتے۔ دَ دے نه دا خبره معلومه شوه چه په اجتهادی مسئلو کښې دَ جنګ جګړے يا نفرت خورَولو والاخبارو مضامين په امر بالمعروف يا نهی عن المنکر کښې داخل نه دی۔ دَ دے مسئلو نه جنګ جګړه جوړه وَل صرف دَ نا پوهئ يا جهالت په وجه سره کيدے شی۔

يَآيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا شَهَادَةُ بَيْنِكُمْ اِذَا حَضَرَ

اے ايماندارو! ګواه په منځ ستاسو کښے کله چه اُودَ سی

أَحَدَكُمُ الْمَوْتُ حِينَ الْوَصِيَّةِ اثْنٰنِ ذَوَا عَدْلٍ

یو تن ته په تاسو کښې مرګ. په وخت د وصیت کښې دوه تنه سړي دي معتبر

مِّنْكُمْ أَوْ اٰخَرٰنِ مِنْ غَيْرِكُمْ إِنْ أَنْتُمْ ضَرَبْتُمْ

ستاسو نه یا دوه ګواهان نور دي ستاسو نه سوا او که تاسو سفر کوئ په

فِي الْأَرْضِ فَأَصَابَتْكُمْ مُّصِيبَةُ الْمَوْتِ تَحْبِسُونَهُمَا

ملک کښې بیا اورسي تاسو ته مصیبت د مرګ - نو او دروئ دې دواړه

مِنْ بَعْدِ الصَّلٰوةِ فَيُقْسِمٰنِ بِاللّٰهِ إِنِ ارْتَبْتُمْ

لره پس د مانځه نه دوي دواړه به قسم اوکړي په الله که تاسو په شک کښې یئ

لَا نَشْتَرِي بِهِ ثَمَنًا وَّلَوْ كَانَ ذَا قُرْبٰى ۙ وَلَا

چه مونږ نه اخلو د قسم په بدل کښې مال اګر که څوک زمونږ خپلوان هم وي او مونږ نه

نَكْتُمُ شَهَادَةَ ۙ اللّٰهِ إِنَّا إِذًا لَّمِنَ الْاٰثِمِينَ ﴿١٠٦﴾

پټوو د ګواهي د الله - ورنه مونږ به بې شکه چه ګناه ګار یو -

فَإِنْ عُثِرَ عَلٰى أَنَّهُمَا اسْتَحَقَّا إِثْمًا فَاٰخَرٰنِ

بیا که خبر شي چه دې دواړو وحقه خبره پټه کړې ده نو دوه ګواهان به نور

يَقُومٰنِ مَقَامَهُمَا مِنَ الَّذِينَ اسْتَحَقَّ عَلَيْهِمُ

او دریږي د دوی په ځائې د هغو نه د چا چه حق پټ شوې دې

الْأَوْلَيٰنِ فَيُقْسِمٰنِ بِاللّٰهِ لَشَهَادَتُنَا أَحَقُّ

چه د ټولو نه زیات نږدې وي مړي ته بیا به قسم اوکړي په الله چه زمونږ ګواهي زیاته حقه ده

مِنْ شَهَادَتِهِمَا وَمَا اعْتَدَيْنَآ ۖ إِنَّآ إِذًا لَّمِنَ الظّٰلِمِيْنَ ﴿١٠٧﴾

دَ اولنو دَ گواهئ نه او مونږ زياتے نه دے کړے - ورنه مونږ به بے شکه ظالمان يُو -

ذٰلِكَ أَدْنٰىٓ أَنْ يَّأْتُوْا بِالشَّهَادَةِ عَلٰى وَجْهِهَآ أَوْ يَخَافُوْٓا

په دے کښے اميد دے چه داکړی شهادت په ټيک طريقه سره اوويريږی چه واپس به

أَنْ تُرَدَّ أَيْمَانٌۢ بَعْدَ أَيْمَانِهِمْ ۗ وَاتَّقُوا اللّٰهَ وَاسْمَعُوْا ۗ

شی قسم زمونږ دَ دوی دَ قسم نه پس - او اوويريږئ دَ الله نه او واورئ

وَاللّٰهُ لَا يَهْدِى الْقَوْمَ الْفٰسِقِيْنَ ﴿١٠٨﴾ ع

او الله نه ښائی نيغه لار نا فرمانانو ته -

## دَ اياتونو تړون

بره دَ دينی اصلاح متعلق احکام وُه اوس وړاندِ دَ دُنيا متعلق دَ بعضِ احکامو ذکر دے - او په دے کښے ئے اشاره اوکړه چه الله تعالیٰ خپل رحمت سره دَ اخرت دَ اصلاح پشان دَ خپلو بندګانو دَ دُنيا دَ معاش اصلاح هم فرمائی (بيان القرآن) -

## شانِ نزول

دَ ذکر شوی ايت دَ نزول واقعه داده چه بُدَيل نوم يو سړے چه مسلمان وُه دَ دوؤو سړو تميم او عدی سره چه دغه وخت نصرانيان وُو دَ تجارت په غرض شام ته لاړل - چه شام ته اورسيدل نو بُديل بيمار شو - دهٔ دَ خپل مال فهرست او ليکه په اسباب کښے ئے کيخودو - او خپل دواړه ملګری ئے تر خبر نه کړل، چه مرض ئے زيات شو نو دهٔ دے دواړو نصرانی ملګرو ته وصيت اوکړو چه ټول سامان به زما وارثانو ته اورسوئ - دوی چه ټول سامان راوړو وارثانو ته ئے حواله کړو - خو دَ سپينو زرو يوه پياله چه دَ سرو زرو ملمع کاری پرِ شوے وه يا پرِ ګُل کاری شوے وه دَ دے اسباب نه اوويستله - وارثانو ته په اسباب کښے فهرست ملاؤ شو دوی دَ دغه سړو نه تپوس اوکړو چه مړی خو تر څه مال خرچ کړے نه دے يائے خپل علاج خونه دے کړے؟

دے دواړه وړوے چه تا ، اخر دامعامله د نبی کریم صلے الله علیه وسلم عدالت ته پیش شوه ، چونکه د وارثانو سره ګواهان نه وُو۔ نو دواړه ونصرانیانو قسم او کړو چه مونږ د مړی په مال کښے د هیڅ قسم نه خیانت نه دے کړے او نه ترِ مونږ څهٔ شے پټ کړے دے۔ اخر په قسم باندِ فیصله د دوی په حق کښے اوشوه څهٔ موده پس خبره په ډاګه شوه چه هغه پیاله دوی په مکه کښے په یو زرګر باندِ خرڅه کړے وه۔ هرکله چه د دوی نه تپوس اوشو نو دوی اووے چه دامونږ د دغه مړی نه اغستے وه۔ خو چونکه زمونږ سره د اغستو ګواهان موجود نه وُو نو مخکښے مونږ څکه د دے ذکر نه وه کړے۔ چه هسے نه مونږ دروغژن شو۔

د مړی وارثانو بیا نبی کریم صلے الله علیه وسلم ته رجوع اوکړه او س د دواړه انڍ نئ معاملے نه برعکس د اغستو دعوه کوُنکی مدعیان او وارثان منکر وُو او شهادت پکښے موجود نه وُو په دے وجه د وارثانو نه دوه سړو چه مړی ته نزیات نزدے وُو قسم او خوړو چه پیاله د مړی ملکیت وه۔ او دواړه نصرانیان پخپل قسم کښے دروغژن دی۔ نو پکوم قیمت (یعنی یو زر درهمه) چه دوی پیاله خرڅه کړے وه هغه ئے وارثانو ته ورکړه۔

# لنډ تفسیر

اے ایماندارو ستاسو د منځ (په معاملو) کښے (مثلاً وارثانو د مال سپارلو د پاره) دوه تنه د وصیان جوړول پکاردی (اګرچه بالکل د وصی نه جوړول هم جائز دی) کله چه په تاسو کښے چاته مرګ راشی (یعنی) کله چه د وصیت کولو وخت شی (او دغه دوه سړی به داسے وی چه دیندار وی او ستاسو (یعنی مسلمانانو) نه وی یا د غیر قوم دوه سړی وی کوچرے (مسلمانان نه ملاو یګی مثلاً) تاسو چرته په سفر تلی یئ بیا په تاسو باندِ واقعه د مرګ راشی (او دا تهول کار ونه واجب نه دی۔ مګر مناسب او غوره دی۔ ورنه لکه څنګه چه بالکل د وصی نه جوړول جائز دی د غه شان که یو وصی وی یا عادل نه وی یا په کلی کښے وی او غیرمسلم لره وصی جوړ کړی تهولے خبرے جائز دی ، بیا د دے وصیانو دا حکم دے چه) که چرے (په څهٔ وجه سره په دوی باندِ) تاسو لره (اے وارثانو) شبه وی نو (اے د مقدمے حاکمانو مقدمه

داسے فیصله کړئ چه اول دَ وارثانو نه چونکه چه دوی دعوه کونکی دی په دے خبره بانډې ګواهان طلب کړئ چه دوی فلانے شے مثلاً جام اغستے دے او که هغوی ګواه نه شی پیش کولے نو وصیانو نه (چه په دعوه شوے ده) داسے قسم واخلئ چه دے دواړو (وصیانو) لره پس دَ مانځه دَ مازیګر نه (مثلاً) بند کړئ (ځکه چه اکثر دے وخت کښے ګنړه زیاته وی نو په دروغه قسم کونکے به څه نه څه شرمیګی دا رنګ دَ دے وخت قدر هم لوئے دے څه دَ دے خیال به هم وی او مقصود دَ دے نه دَ قسم سخت والے دے چه وخت مبارک او موقع دَ ګنړے دَ خلقو ده) بیا به دواړه (داسے په خدائے قسم اوخوری چه (دَ صیغے دَ قسم سره به داسے او وائی چه) مونږ دَ دے قسم په بدله کښے څه (دَ دنیا) نفع اغستل نه غواړو (چه دَ دنیاوی نفع اغستلو دَ پاره به په قسم کښے رشتیا پاتے کړو) اګرچه (په دے واقعه کښے زمونږ) څوک خپلوان هم (وَلے نه) وی (چه دَ هغوی مصلحت مونږ خپل مصلحت ګنړو قسم خوړو او اوس خوځه داسے هم نه ده، کله چه دَ دو چند و مصلحتو نو په وجه سره هم مونږ دروغ نه وایو، نو دَ یو مصلحت دَ پاره به څنګه دروغ وایو) او دَ الله خبره (دَ کومے چه دَ هغه دَ طرف نه دَ ویلو حکم دے دے) لره به مونږ ه پټه نه کړو (ورنه) مونږ (که داسے اوکړو نو) په دے حالت کښے به سخت ګناه ګار یو (دَ دا سخت والے دَ دُنیا دے چه دهٔ ته داخبره مخ ته راشی چه رشتیا ویل واجب دی او دروغ ویل حرام دی او دَ الله تعالیٰ لوئی ورته حاضره شی نو دا به دے دَ دروغو دَ قسم نه منع کړی، او س دَ دے دواړو سختو نه پس که دَ حاکم رائے او وی نو بے دَ سختوالی دَ اصل مضمون نه قسم اوخوری - مثلاً مونږ لوه مړی پیاله نه ده راکړے او په دے مقدمه فیصله کول په کار دی - نو دَ دے ایت په واقعه کښے هم داسے اوشوه) بیا (دَ دے نه پس) که څرګنده (په څهٔ ښکاره طریقے سره) دَ دے اطلاع اوشی چه دغے دواړو وصیانو څه ګناه کړے دے (مثلاً دَ ایت په واقعه کښے چه وړاندے ذکر شوے دے کله چه پیاله په مکه کښے بیا مونده شوه او دَ دواړو وصیانو نه دَ تپوس په کید و سره دوی دَ مړی نه دَ اغستو دعوه اوکړه چه په دے سره دَ مړی نه دَ اغستوا قرار لاز میګی او دا دَ دوی دَ اولے خبرے نه مخالف دے چه په هغے کښے ئے مطلق دَ اغستو نه انکار کړے وو،

چونکه اقرار په مَحض حُجّت دے په دے وجه دَ دوی خیانت او دروغ په ډاګه معلوم شو
نو رپه دا سے صورت کښې دَ مقدمے رُخ به بدل شی وَصِی چه اول پرِ دعوه شوے
وَه اوس دَ اَغستو دعوه کوُونکے شو او وارثان چه اول ئے دعوه کړے وه دَ خیانت
اوس په دوی دعوه اوشوه په دے وجه اوس دَ فیصلے دا صورت شو چه
اول به دَ وصیانو نه دَ ګواهانو طلب اوشی دَ اغستو او کله چه دوی ګواهان دَ
اَغِستو پیش نه کړی نو) دَ دے (وارثانو) خلقونه دَ چا په مقابله کښې چه (دَ دے
وصیانو دَ طرف نه) ګناه (دغه ذکر شوے) ګناه شوے وَه او (کوم چه په شریعت
کښې دَ میراث مستحق وی مثلاً په صورت دَ واقعے دَ آیت کښې) دوه سړی (دوه) کوم
چه په ټولو (وارثانو) کښې په اعتبار (دَ مستحق والی دَ میراث) زیات نزدے وی
کوم ځائے چه (دَ قسم دَ پاره) دغه دواړه (وصیان) او دریدلی وُو (اوس
دا دواړه (دَ قسم دَ پاره) به او دریګی بیا دواړه به (دا سے) په خدائے قسم اُو
خوری چه (دَ صیغے دَ قسم سره دا اووائی چه) په یقین سره زمونږ دا قسم (په
وجه دَ دے چه بالکل دَ اشتباه نه ظاهراً او حقیقتاً پاک دے) دَ دے دواړو
(وصیانو) دَ دے قسم نه زیات رښتیا دے (ځکه چه دَ دغے دَ حقیقت اګرچه مونږ
ته علم نیشتے لیکن ظاهراً خو دغه مشتبه شو) او مونږه (دَ حق نه) یوه ذره
تجاوز نه دے کړے (ورنه) مونږ به (که دا سے اوکړو نو) په دغه حالت کښې
سخت ظالمان یو (ځکه چه پردے مال قبضتاً او بے اجازته اَغِستل ظلم دے
دا هم سختول دَ قسم دی، چه دَ حاکم په رائے بانډِ دی، بیا به په اصل مضمون
سره ترے قسم واغستے شی چه صیغه ئے په وجه دَ دے چه په فعل (کار)
دَ بل بانډِ دے دا سے وی، چه په خدائے قسم دے زمونږ په علم کښې مړی
دَ دے دعوه کوُونکو په لاس جام نه دے خرڅ کړے، او چونکه دَ علم دَ واقعی
کیدو او نه واقعی کیدو څۀ ظاهری لار نه شی جوړیدے په دے وجه
دَ دے په واقعی والی بانډِ زیات سخت قسم ورکړے شو چه لفظ دَ "اَحَقُّ"
په دے دلالت کوی چه حاصل ئے دا شو چه دَ دے مدار چونکه په ما بانډِ
دے په دے وجه قسم خورم چه څنګه په دے کښې دَ ظاهری دروغو څۀ
ثبوت نه شی کیدے دغه شان په حقیقت کښې دروغ هم نه دی، او دا قرینه

فائده کوی چه دلته قسم په علم باندې دے، او چونکه دے دروغژن والي بغیر د اقرار نه چرته نه شي ثابتیدے په دے وجه په دے کښې چه کوم حق وهلے شوے وی دا به ډیر سخت ظلم وی. نو عجیبه نه ده چه دلته کښې "ظالمین" په دے وجه وئیلي شوی وی) دا ز قانون چه په دوه ا لیتونو کښې تهول ذکر شو) ډیره نزدے ذریعه ده د دے کار چه دغه (وصیان) خلق واقعه په ټهیک طور سره ښکاره کړی، (که زیاتي مال نه وی نسپارلے شوے قسم اوخوری، او که شوے وی نو د گناه نه اویرېګی انکار اوکړی دا حکمت خو په قسم د وصیانو کښې دے) یا د دے خبرے نه اویریګی ر د قسم خوړ ونه پاتے شي) چه د دوی د قسم کولو نه پس (وارثانو ته) قسمونه متوجه کړے شي دبیا به زمونږ سپکا وے اوشي، دا حکمت په قسم د وارثانو کښې دے. او دا تهول اُنهخونه د دے د پاره دی چه حقدارانو ته د دوی حق اورسولے شي چه کوم روا شوے او غو ښتلے شوے دے. ځکه چه که وصیانو لره قسم نه وے روا او وصیان د مال په سپارلو کښې رشتونی وے نو د دوی نه به تهمت په څهٔ لرے کیدو. او اوس چه دوی رشتونی وی نو د الزام نه خلاص شوا وکه دروغژن وی نو شاید چه د دروغو د قسم نه اویریګی انکار اوکړی د قسم نه نو د وارثانو حق به ثابت شي. او که د وارثانو قسم روا نه وے اوشرعًا د حق نه انکار وے نو د حق ثابتولو به هیڅ صورت نه وو او که شرعًا د حق انکار نه وے نو د وصیانو د حق ثابتولو به هیڅ طریقه نه وه او اوس د وارثانو د حق والي په وخت کښې د دوی حق ثابتیدے شي او د حق د نشتوالي په وخت کښې د قسم نه په انکار سره به د وصیانو حق ثابت شي. پس د وصیانو د قسم په حکمت کښې دوه شقونه دی او: يَأْتُوْا بِالشَّهَادَةِ: دواړو ولره شامل دے، او دوه شقونه د وارثانو د قسم په حکمت کښې دی چه په دوی کښې دویم شق د وصیانو د قسم په اول شق کښې داخل دے، او اول شق د: اَوْ یَخَافُوْا: مدلول دے. پس په مجموعه دواړو قسمونو کښې د ټولو شقونو رعایت دے) او د الله تعالیٰ نه یره کوئ (او په معاملو او حقونو کښې دروغ مه وایئ) او (د دے حکمونو لره) واؤرئ (یعنی اومنئ) او (که خلاف

او کړې ئې نو فاسقان به شي) الله تعالی فاسقانو خلقو ته د د قیامت په ورځ د فرمانبردارو د درجو طرف ته) د رهنمائی نه کوی (بلکه د نجات موندو په وخت کښې به هم د دوی نه کم وی نو داسې تا وان د لے قبلوئې) -

# معلومات او مسئلې

مسئله[۱]: مړے چه چاته خپل مال او سپاری او د او رته او وائی چه دا به چا فلانی وغیره له ورکړے - دغه سړے وَصِی دے یعنی وصیت ورته کړے شوے دے او دا یو سړے هم کیدے شی او زیات هم -

مسئله[۲]: د وَصِی مسلمان والے او عادل والے که په سفر کښې وی او که په کلی کښې غوره دے لازم نه دے -

مسئله[۳]: په جګړه کښې چه کوم سړے د زیاتی ثابتونکے وی دے مدعی یعنی دعوه کونکے دے او هغه بل مُدّعیٰ علیه یعنی دعوه پرې کړے شوے دے -

مسئله[۴]: اوّل ګواهان د مدعی نه اغستے شی نو که دے د شرعی ضابطے مطابق ګواهان پیش کړی مقدمه به دے اوګټي - او که پیش نه کړے شی نو د مدعی علیه نه به قسم اغستے شی او مقدمه به دے اوګټي - البته که دے د قسم نه انکار او کړی نو مقدمه به بیا مدعی اوګټي -

مسئله[۵]: د قسم سختول د وخت یا د ځائے په مناسبت سره لکه چه په ذکر شوی ایت کښې شوے دے دا د حاکم په رائے بانډ ده لازمه نه ده - د دے ایت نه هم لازموالے نه ثابتیږی - او د نورو ایاتونو او روایتونو نه ئے اطلاق ثابت دے -

مسئله[۶]: که مدعا علیه د خپل ځان کار متعلق قسم خوری نو الفاظ دے داوی چه زه د دے کار نه خبر نه یم -

مسئله[۷]: که د میراث په مقدمه کښې وارث مدعا علیه وی نو چاته چه په شریعت کښې میراث رسی قسم به په هغو راځی - خواه که هغه یو وی او که ډیر وی - او کوم چه وارثان نه وی یعنی میراث ورته نه رسی په هغو به قسم نه وی (بیان القرآن)

| دَ يو کافر شهادت دَ بل کافر په معامله کښې قابلِ قبول دے | ردَ الله تعالیٰ قول دے ﴿یَآ اَیُّهَا الَّذِیْنَ اٰمَنُوْا شَهَادَةُ بَیْنِکُمْ﴾ تر دے قول پورے: ﴿اَوْ اٰخَرٰنِ مِنْ |
|---|---|

غَیْرِکُمْ﴾: په دے ایت کښې مسلمانانو ته حکم ته ورکړے شوے دے۔ چه کله په تاسو کښې دَ چا مرګ راشی نو دوه داسے سړو لره وصیان جوړ کړئ چه ستاسو نه وی او نیکان وی او که دَ خپل قوم سړی نه وی نو دَ غیر قوم یعنی کافرانو نه مُجوړ کړئ۔

دَ دے نه امام ابو حنیفهؒ دا مسئله را و یستلے ده چه دَ کفارو شهادت دَ بعضو په بعضو باندِ جائز دے ځکه چه په دے ایت کښې ئے دَ کفارو ګواهی په مسلمانانو باندِ جائز کړے ده۔ لکه چه دَ ﴿اَوْ اٰخَرٰنِ مِنْ غَیْرِکُمْ﴾ نه ښکاره ده۔ نو دَ کفارو ګواهی دَ بعضو په بعضو باندِ په طریقِ اولیٰ جائزه ده۔

لیکن روستو په ایت: ﴿یَآ اَیُّهَا الَّذِیْنَ اٰمَنُوْآ اِذَا تَدَایَنْتُمْ بِدَیْنٍ اِلٰٓی اَجَلٍ مُّسَمًّی﴾ تر دے قول پورے: ﴿وَاسْتَشْهِدُوْا شَهِیْدَیْنِ مِنْ رِّجَالِکُمْ﴾: سره ئے دَ کفارو شهادت په مسلمانانو باندِ منسوخ کړو۔ لیکن دَ کفارو دَ بعضو په بعضو باندِ هم دغه شان باقی دے (قرطبی، احکام القرآن للجصاص)

دَ امام صاحبؒ دَ مذهب تائید دَ دے حدیث نه هم کیږی چه یو یهودی زنا اوکړه نو نورو یهودیانو ورلره ځ تورکړو دَ نبی کریم صلے الله علیه وسلم په حضور کښې ئے پیش کړو۔ دوی چه دَ دهٔ دا حالت اولید نو دَ وجهِ تپوس ئے اوکړو، نو دغو خلقو ورته اووے چه دهٔ زنا کړے ده، نو دوی دَ ګواهانو دَ شهادت نه پس په دهٔ دَ رجم حکم اوکړو۔ (جصاص)

| په کوم سړی چه دَ چا څه حق وی هغه دِ قید کولے شی | ردَ الله تعالیٰ قول) ﴿تَحْبِسُوْنَهُمَا﴾: دَ دے ایت نه یو اصول معلوم شو چه دَ کوم سړی |
|---|---|

په چا څه حق واجب وی دهٔ لره دَ دغے حق دَ پاره دَ ضرورت په وخت کښې قید کولے شی (قرطبی)

(دَ الله تعالیٰ قول) ﴿مِنْ بَعْدِ الصَّلٰوةِ﴾: دَ صلوٰة نه دَ مازیګر مونځ مراد دے۔ دَ دے وخت دَ غوره کولو وجه دا ده چه دَ دے وخت تعظیم په

اهلِ کتابو چه یي کوَلو- دروغ ویئیل په داسے وخت کښے خاص کړے شوی دی په نزد منع وُو- دَ دے نه معلومه شوه چه په قسم کښے دَ یو خاص وخت یا خاص مقام وغیره قید لګوَل او قسم لوړه سخْتوَل جائز دی-

( قرطبی )

---

يَوۡمَ يَجۡمَعُ اللّٰهُ الرُّسُلَ فَيَقُوۡلُ مَاذَاۤ اُجِبۡتُمۡ‌ؕ

په کومه ورځ چه جمع کړی الله تعالیٰ پیغمبران بیا به اووائی تاسو لوره څهٔ جواب ورکړے شوے وُو؟

قَالُوۡا لَا عِلۡمَ لَنَا‌ؕ اِنَّكَ اَنۡتَ عَلَّامُ الۡغُيُوۡبِ ﴿۱۰۹﴾ اِذۡ

دوی به اووائی چه موږ ته علم نیشتے- ته ئے په پټو خبرو پوهیدونکے - کله چه

قَالَ اللّٰهُ يٰعِيۡسَى ابۡنَ مَرۡيَمَ اذۡكُرۡ نِعۡمَتِىۡ عَلَيۡكَ

اووائی الله اے عیسیٰ دَ مریمؑ ځویه یاد کړه زما احسان چه پټا شوے دے

وَعَلٰى وَالِدَتِكَ‌ۘ اِذۡ اَيَّدْتُّكَ بِرُوۡحِ الۡقُدُسِ قف

او ستا په مور بانْدِ - کله چه مدد اوکړو ما ستا په روح پاک سره

تُكَلِّمُ النَّاسَ فِى الۡمَهۡدِ وَكَهۡلًا‌ ۚ وَاِذۡ عَلَّمۡتُكَ

تا به خبرے کوَلے دَ خلقو سره په غیږ کښے او په لوئے عمر کښے - او کله چه اوخودو ما تا ته

الۡكِتٰبَ وَالۡحِكۡمَةَ وَالتَّوۡرٰٮةَ وَالۡاِنۡجِيۡلَ‌ ۚ وَاِذۡ

کتاب او دَ پوهے خبرے او تورات او انجیل - او کله چه

تَخۡلُقُ مِنَ الطِّيۡنِ كَهَیۡـئَةِ الطَّيۡرِ بِاِذۡنِىۡ فَتَنۡفُخُ

تا به جوړاوَهٔ دَ خټے نه دَ مارغه صورت زما په حکم سره بیا به پُوکے کوَلو تا

فِيْهَا فَتَكُوْنُ طَيْرًا بِإِذْنِيْ وَتُبْرِئُ الْأَكْمَهَ وَ

په دے کښے نو شو به الوتونکے ځناور په حکم سره، او جوړاوه به دِ ډموړندِ پروند پیدا ئشی او

الْأَبْرَصَ بِإِذْنِيْ ۚ وَإِذْ تُخْرِجُ الْمَوْتٰى بِإِذْنِيْ ۚ وَإِذْ

برګی لره ځما په حکم سره۔ او کله چه به تا ژوندی را ویستل مړو لره ځما په حکم سره۔ او کله

كَفَفْتُ بَنِيْٓ إِسْرَآءِيْلَ عَنْكَ إِذْ جِئْتَهُمْ بِالْبَيِّنٰتِ

چه منع کړه ما بنی اسرائیلو لره ستا نه کله چه ته راغلے دوی ته په ښکاره نښو سره

فَقَالَ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا مِنْهُمْ إِنْ هٰذَآ إِلَّا سِحْرٌ

نو اووے کافرانو د دوی نه نور هیڅ نه دی دا خو جادو دے

مُّبِيْنٌ ﴿۱۱۰﴾

ښکاره ۔

**د آیاتو تړون** پره د مختلفو احکامو ذکر او شو او په مینځ کښے په دوی د عمل ترغیب او په مخالفت ئے پرو ډل او فرمائیلے شو نو اوس د دے د تاکید د پاره په راتلونکی آیت کښے د قیامت هیبت ناک واقعات رایاد وی چه د خلقو فرمانبرداری طرف ته زیاته مینه پیدا شی او د مخالفت نه منع شی۔ او د قرآن مجید طرز هم اکثر داسے دے۔ بیا د سورت په آخر کښے د اهل کتابو مکالمه ذکر شوے ده چه په تیرو چیرو آیاتو نو ذکر شوه۔ چه د دے مقصد اهل کتابو ته د حضرت عیسیٰ علیه السلام متعلق بعض مضامین اوروول دی۔ چه په دے سره د هغهٔ بندګی ثابته شی او د الوهیت تردید اوشی (یعنی دا معلومه شی چه دے بنده دے خدائے نه دے) اګر چه د دے خبرو واقع کیدل به په قیامت کښے وی۔ (یعنی دا خبرے آترے به په قیامت کښے کیدے شی) ۔

# لنډ تفسیر

(دغه ورځ به څومره هیبت ناکه وي) په کومه ورځ چه الله تعالیٰ ټولو پیغمبرانو لره (سره د دوی د امتونو) جمع کړي بیا (په دے امتونو کښے چه کوم ګناه ګاروي دوی ته د زورنے او اوړولو د پاره به دے پیغمبرانو ته) ارشاد اوفرمائي چه تاسو ته (د دے امتونو د طرف نه) څۀ جواب ملاؤ شوے وۀ دوی به عرض اوکړي چه (ظاهري جواب خو موږ ته معلوم دے او دغه به بیان هم کړو لیکن د دوی په زړونو کښے چه څۀ وو د هغې) موږ ته هیڅ خبر نیشته (دغه به تا ته معلوم وي ځکه چه) تاسو بے شکه چه د پټو خبرو پوره علم لرئ (مطلب دا دے چه یوه ورځ به داسے وي او د عملونو او حالاتو تپوس به کیږي په دے وجه تاسو له د مخالفت او نافرمانئ نه یدیدل پکار دي. او په دغه ورځ به د عیسیٰ علیه السلام سره خاص خبرے اترے وي) کله چه الله تعالیٰ ارشاد اوفرمائي چه اے عیسیٰ ځویه د مریم ځما انعام یاد کړه (د دے د پاره چه مزه زیاته شي) کوم چه ستا باندې او ستا په مور باندې (په مختلفو وختونو کښے په مختلفو صورتونو سره شوے دے مثلاً) کله چه ما تا له په روح القدس (یعنی جبرائیل علیه السلام) سره امداد او تائید اوکړو (او) تا به د خلقو سره (په دواړو حالتونو کښے یو شان) خبرے کولے (د مور) په غیږ کښے هم او په لوئے عمر کښے هم (په دواړو خبرو کښے څه فرق نه وۀ) او کله چه ما تا ته (آسماني) کتابونه او د پوهے خبرے او (خاص کر) تورات او انجیل اوخودل او کله چه به تا د خټے نه یو شکل جوړ وۀ لکه د مرغۍ شکل چه وي ځما په حکم سره بیا به تا په دے (جوړ کړي شکل) کښے د ننه پوکے کا وۀ چه د هغې نه به (بالکل ژوندے) مارغه جوړ یده ځما په حکم سره او تا به جوړ ول د مورنه پیدا ړاندۀ او د برګي (جذام) بیماران ځما په حکم سره او کله چه به تا مړو لره (د قبرونو نه) راویستل (ژوندي کول) او ژوندي کول ځما په حکم سره او کله چه ما بني اسرائیلو (کوم چه ستا نه مخالف وو) لوه ستا نه (یعني ستا د قتل او هلاکت نه)

بَیِّنَةٌ او لَرَلُ کله چه (دوی تا ته ضرور رَسُولُ او غو ښتل کله چه) تا دوی ته (د خپل نبوّت) دلیلونه (معجزې) راوړې وُه بیا چه په دوی کښې کوم کافران وُو هغوی وئیلی وُو چه دا (معجزې) بغیر د ښکاره جادو نه نور هیڅ هم نه دی۔

# مَعلومَات او مَسَئلے

**په قیامت کښې به د انبیاء علیهم السلام نه د ټولو نه اول تپوس کیږي**

(د الله تعالیٰ دا قول) : یَوْمَ یَجْمَعُ اللّٰهُ الرُّسُلَ : په قیامت کښې به اګرچه د اوّل نه تر اخره پورې پیدا شوې ټول مخلوقات په یو داګ میدان کښې ولاړ وی او د هر ځائے د هر ملک د هرې زمانے بنی اٰدم چه وی هغه به په دے میدان کښې حاضر وی۔ او د ټولو نه به د دوی د تمام عمر د عملونو حساب اغستے شی لیکن په بیان کښې ئے په خصوصیت سره د انبیاؤ علیهم السلام ذکر اوکړو۔ یَوْمَ یَجْمَعُ اللّٰهُ الرُّسُلَ : یعنی هغه ورځ یاده کړه په کومه ورځ چه الله تعالیٰ ټولو رسولانو لره د حساب د پاره جمع کړی۔ مراد دا دے چه جمع خو به ټول عالم کړی مګر د ټولو نه اوّل سوال به د انبیاء علیهم السلامو نه وی، چه ټول مخلوق ئے او وینی چه نن ورځ هیڅوک د حساب او سوال جواب نه مستثنیٰ نه دی، بیا د رسولانو نه چه کوم سوال کولے شی هغه دا دے چه : مَاذَآ اُجِبْتُمْ : یعنی کله چه تاسو خلقو خپلو خپلو امتونو ته د الله تعالیٰ او د هغه د دینِ حق طرف ته راوبللو نو دغه خلقو تاسو لره څۀ جواب درکړے وُه؟ او آیا دوی ستاسو په خوله لوشو د حکمونو باندې عمل اوکړو؟ او که انکار او مخالفت ئے اوکړو؟

د دے سوال مخاطب به اګرچه انبیاء علیهم السلام وی، لیکن په حقیقت کښې او ره ول ئے د دوی امتونو ته مقصود دے چه امتونو کوم نیک او بد عملونه کړی وی د هغے ګواهی د ټولو نه اوّل د انبیاؤ نه واغستے شی۔ د امتونو د پاره به دا وخت ډیر نازک وی چه دوی به په دے بے هوشه کونکے هنګامه کښې د پیغمبرانو د شفاعت په طمع وی۔ او دے طرفته به د دوی په باره کښې د پیغمبرانو نه دا سوال اوشی۔ نو ښکاره خبره ده چه رسولان به غلطه

یا دَ واقعې نه خلاف خبره خو کولے نه شي، په دے وجه ګناه ګارانو او مجرمانو سره به دا یېره شي چه هر کله پخپله پیغمبران زمونږ دَ جرم ګواهان جوړ شي نو اوس پاتے څوک شو چه زمونږ مدد یا سفارش به اوکړے شي۔

پیغمبران علیهم السلام به دَ دے سوال داجواب ورکړی: قَالُوۡا لَا عِلۡمَ لَنَاۤ اِنَّکَ اَنۡتَ عَلَّامُ الۡغُیُوۡبِ: یعنی مونږ ته دَ دوی دَ ایمان او عمل هیڅ علم نیشته، ته پخپله په ټولو پټو څیزونو ښهٔ خبر یې۔

**دَ یو شک لرے کول**

دَ لته سوال دا دے چه دَ هر رسول دَ اُمت هغه خلق چه کوم دَ دهٔ دَ وفات نه پس پیدا شوی دی دَ دوی په باره کښے خو دَ پیغمبرانو علیهم السّلام داجواب صحیح او صاف دے چه دَ دوی دَ ایمان او عمل دغه پیغمبران ع خبر نه دی. ځکه چه دَ غیبو علم دَ الله تعالیٰ نه سوا بل چا لره نیشته، لیکن یو ډیر لوئے شمار دَ اُمت خو دَ هغو خلقو هم دے چه پخپله دَ پیغمبرانو علیهم السلامُ په کوششونو سره دَ دوی په لاسونو مسلمانان شوی دی او بیا دَ دوئی دَ احکامو پیروی یې دَ دوئی دَ وړاندې کړے ده، دغه شان هغه کافران چا چه دَ دوئی خبره نه دَه منلے او مخالفت او دشمنی یې کړے ده دَ دوی په باره کښے به دا وَینا څنګه صحیح شي چه مونږ ته دَ دوی دَ ایمان او عمل علم نیشته۔ په تفسیر بحرِ محیط کښے دی چه امام عبد الله رازیؒ دَ دے په جواب کښے فرمائي چه دلته دوه څیزونه جدا جدا دی یو علم دے چه معنی یې کامل یقین دے او دویم ظَنّ یعنی غلبه دَ ګمان ده۔ او ظاهره خبره ده چه یو انسان که دَ بل انسان په مخ کښے هم وی خو دَ دهٔ دَ ایمان او عمل ګواهی که ورکولے شي نو محض دَ غالب ګمان په اعتبار سره ورکولے شي، ورنه دَ زړونو رازا و حقیق. ایمان چه تعلق یې دَ زړهٔ سره دے هغه خو هیچا ته بغیر دَ الله تعالیٰ دَ وحی نه نهٔ شي معلومیدے په یقینی طور سره۔ په صراحت کښے دَ منافقانو چلے پاتے شوی دی چه په ظاهره به یې ایمان ګډاوَړو او دَ حکمونو پیروی به یې هم کوَله مګر په زړونو کښے یې ایمان نه وَه او نه دَ تا بعدارئ څه جذبه وَه.

دغلته چه څهٔ وی هغه تول ریا کاری وه، البته د دُنیا ټول احکام په ظاهرو کارونو باندې بنا کیږی - کوم سړے چه خپل ځان ته مسلمان وائی او د خدائے د حکمونو تابعداری کوی، او د اسلام او ایمان نه خلاف د دهٔ نه څهٔ قول او فعل ثابت نه وی، انبیاء علیهم السلام او د دوی امتونه دهٔ ته په مؤمن صالح وئیلو باندې مجبور دی، خواه دے په زړهٔ کښې مؤمن مخلص وی یا منافق په دے وجه نبی کریم صلے الله علیه وسلم فرمائی:

| نَحْنُ نَحْكُمُ بِالظَّوَاهِرِ وَاللّٰهُ مُتَوَلِّي السَّرَائِرِ - | یعنی مونږ په ظاهرو عملونو باندې حکمونه جاری کوو د زړونو د پټو |
|---|---|

رازونو متولی صرف یخپله الله جلّ شانهٔ دے"

د دے ضابطے لاندې په دنیا کښې خو انبیاء علیهم السلام او د دوی نائبین خلفاء، او علماء به په ظاهری عملونو د نیک ګمان په مطابق د نیک مؤمن کید وګواهی ورکولے شوه - لیکن ننځغه د دُنیا عالم چه ټول دار مدار ئے په ظن او ګمان وهٔ ختم شو، دا د محشر میدان دے چه دلته اوس د څرمنے نه ویخته ویستلے شی - حقیقتونه به ښکاره کړے شی - د مجرمانو په مقابله کښې به اوّل د نورو خلقو نه شهادتونه واغستے شی، په دے سره که مجرمان مطمئن نه شی او د خپل جُرم اعتراف اونه کړی - نو د خاص قسم سرکاری ګواهانو نه به کار واغستے شی - د دوی په خولو ژبو به مُهرا ولګولے شی او چپ به شی او د مجرم د لاسو خپو او څرمنے نه به ګواهی اغستے شی، دوی به د هرڅیز کار پوره حقیقت بیان کړی: اَلْيَوْمَ نَخْتِمُ عَلٰٓى اَفْوَاهِهِمْ وَتُكَلِّمُنَآ اَيْدِيْهِمْ وَتَشْهَدُ اَرْجُلُهُمْ بِمَا كَانُوْا يَكْسِبُوْنَ ؛ دغه وخت به انسانانو ته معلومه شی چه ځما ټول اندامونه د ربّ العٰلمین خفیه (یعنی پټ) پولیس وهٔ - د دوی د بیان نه پس به د انکار هیڅ صورت باقی پاتے نه شی -

لنډه دا چه د دغے عالم هیڅ حکم محض په ګمان او اندازه سره نهٔ شی چلیدے بلکه په علم او یقین به د هرشی دار مدار وی، او دا خو اوس معلومه شوه چه د یوسړی د ایمان او عمل حقیقی او یقینی علم سوا د الله تعالیٰ نه

بد هیڅ پاته نیشتے - په دے وجه دَ انبیاء علیهم السلام نه چه کله په محشر
کښے دا تپوس اوشی چه: مَاذَآ اُجِبْتُمْ؛ نو دَ دے سوال حقیقت به دوی
اوپیژنی چه دا سوال زمونږ نه په دنیا کښے نه کیږی چه جواب ئے دَ ګمان
په بنیاد سره ورکړو، بلکه دا سوال په محشر کښے کیږی چه دلته دَ یقین
نه سوا بل خبره نه شی چلیدے، په دے وجه به دَ دوی دا جواب وی
چه مونږ ته دَ دوی متعلق هیڅ علم نیشتے، یعنی یقینی علم نیشتے - دا بالکل
په ځائے او درست دے -

**یو سوال او دَ هغے جواب، دَ انبیاؤ دَ انتهائی شفقت اظهار**

دلته دا سوال پیدا کیږی چه دَ امتونو دَ قبول او نه قبول، فرمانبرداری او نافرمانئ
کوم واقعات چه دَ دوی په وړاندې شوی دی دَ دے نه چه په غالب ګمان
دوی ته کوم علم حاصل شوے وَه دَ دے سوال په جواب کښے خو یکار
وَه چه هغه ئے بیان کړے وے، صرف دَ دے علم دَ یقین دَ درجے حواله
په الله تعالیٰ باندې کیدے شی، مګر دلته انبیاء علیهم السلامو دَ خپلو
معلوماتو او دَ پیښو واقعاتو هډو څۀ ذکر او نه کړو - خبره ئے دَ
الله تعالیٰ علم ته حواله کړه او خاموش شو -

حکمت په دے کښے دا وَه چه انبیاء علیهم السلام پخپلو امتونو او
دَ خدائے په عام مخلوق بے انتها شفقت کونکی وی دَ دوی متعلق به داسے
څه خبره دَ خولے نه ویستل او نه غواړی چه دا خلق پرے په ګرفت کښے
راشی - البته که څۀ مجبوری وی نو بیا به وائی - دلته دَ یقینی علم دَ
نشتوالی عذر موجود وَه، دَ دے عذر نه ئے کار واخست پخپلو ژبو ئے
دَ خپلو اُمتونو خلاف دَ څۀ ویلو نه بچ کیدے شو - نو په دے شان
سره دَ دے نه بچ شو -

**په محشر کښے دَ پنځه وو څیزونو تپوس**

لنډه دا چه په دے آیت کښے دَ قیامت دَ هیبتناک منظر یو لږه شان ښندار او خودے
شوه چه دَ حساب کتاب په میدان کښے دَ الله تعالیٰ دَ ټولو نه زیات غوره
او مقبول رسولانؑ ولاړ دی او لړزیږی نو چه دَ نورو به څۀ حال وی -

په دے وجه د دغے ورځے فکر د نن نه پکار دے، او د عمر فرصت د دغے ورځے د تیاری د پاره غنیمت گنړل په کار دی۔

د ترمذی شریف په یو حدیث کښے دی چه نبی کریم صلے الله علیه وسلم فرمائیلی:

| | |
|---|---|
| لَاتَزُوْلُ قَدَمَا ابْنِ اٰدَمَ يَوْمَ الْقِيٰمَةِ حَتّٰى يُسْئَلَ عَنْ خَمْسٍ عَنْ عُمُرِهٖ فِيْمَا اَفْنَاهُ وَ عَنْ شَبَابِهٖ فِيْمَا اَبْلَاهُ وَعَنْ مَالِهٖ مِنْ اَيْنَ اِكْتَسَبَهٗ وَاَيْنَ اَنْفَقَهٗ وَمَا ذَا عَمِلَ بِمَا عَلِمَ۔ | "یعنی د یو سړی قدم به په محشر کښے ترهغه وخته پورے ورا نه اوړ نه شی تر څو چه د ده نه د پنځه وُسوالونو تپوس نه وی شوے یو دا چه خپل لوے عمر او شپے ورځے دِ په څهٔ کښے خرچ کړے دویم دا چه خاص کر د ځوانئ زمانه چه د |

قوت او طاقت زمانه وَه په کوم کوم کا رونو کښے دِ خرچ کړه، دریم دا چه په ټول عمر کښے کوم مال دهٔ ته ملاوُ شوے دے دا کوم ځائے وه او په کومو حلالو یا حرامو طریقو سره ئے گټلے وَه۔ څلورم دا چه مال ئے پکومو جائز و یا ناجائز و کارونو کښے خرچ کړے وَه۔ پنځم دا چه په خپل دے تر کومه حده پورے عمل کړے وَه۔"

الله تعالیٰ د خپل انتهائی رحمت او شفقت په بنا سره د دے امتحان د سوالونو پرچه هم اوّل د نبی کریم صلے الله علیه وسلم په ذریعه امّت ته اوخودَله، او س د دوی کار صرف دو مره پاتے شو چه د دے سوالونو حَل او پیژنی او محفوظ ئے کړی، د امتحان نه اوّل د سوالونو خودو نه پس هم که څوک په دے کښے فیل شی نو د دهٔ نه زیات محرومه څوک کید ے شی؟

**د حضرت عیسیٰ علیه السلام سره خصوصی سوال وجواب**

په اوّلنی آیت کښے ئے د عامو پیغمبرانو حال او د دوی نه د سوال جواب ذکر اوکړو په دویم آیت کښے او د دے نه پس د سورت ختمیدو پورے په لسو آیاتونو کښے په خصوصیت سره د بنی اسرائیلو د آخری پیغمبر حضرت عیسیٰ علیه السلام ذکر او په دهٔ د الله تعالیٰ د خاصو انعامو نو د څهٔ تفصیل بیان دے، او په محشر کښے د دهٔ نه د یو خصوصی

سوال او دَ هغې دَ جواب ذکر دے، چه په راتلونکو آیاتو کښې راځي -

دَ دے سوال او جواب مطلب بنی اسرائیلو او ټول مخلوق ته هم دَ دغې هیبتناک منظر ښودل دي - چه په دغې میدان کښې کله دَ روح الله او کلمة الله نه تپوس کیږي چه ستا امت چه ستا نه دَ خدائے سره شریک جوړ کړے وَو، نو دے به سره دَ ټول عزّت لوئي او پاک امنئ او نبوّت ښو مره او یریږي خپله پاکي به دَ الله جلّ شانهٔ په دربار کښې پیش کړي چه یو وار نه بار بار به مختلفو بیا نو نو سره به دَ دے نفي اوکړي چه ما دوی ته دا خو دَ نه نهٔ وو کړے اوّل به عرض اوکړي چه: سُبۡحٰنَكَ مَا يَكُوۡنُ لِيۡۤ اَنۡ اَقُوۡلَ مَا لَيۡسَ لِيۡ بِحَقٍّ ؕ یعني پاک ئے ته، څما څهٔ مجال وَو چه ما به داسے خبره کَوَله چه ما ته دَ هغې حق نه وُو"

دَ خپلې وِیُزارئ دویم اړخ داسے اختیار وي چه پخپله الله تعالیٰ لوره خپل ګواه جوړه وي فرمائي چه که ما داسے وئیلي وے نو تا ته به ئے خامخا علم وُو ځکه چه ته څما دَ زړهٔ دَ رازونو نه هم خبر ئې دَ قول او فعل به څهٔ وایم ته خو: عَلَّامُ الۡغُيُوۡبِ: یعني په پټو رازونو خبر دار ئې -

دَ دے ټولو ابتدائي خبرو نه پس دَ اصل سوال جواب ورکوي:-

**دَ حضرت عیسیٰ علیه السلام جواب دَ الله پاک په دربار کښې**

یعني دا چه ما دوی ته هغه خو دَ نه کړے ده دَ کوم چه تا ما ته حکم فرمائیلے وَو: اَنِ اعۡبُدُوا اللّٰهَ رَبِّيۡ وَرَبَّكُمۡ ؕ یعني دَ الله تعالیٰ عبادت کوئ چه څما هم رب دے او ستاسو هم، بیا دَ دے تعلیم نه پس تر څو چه زهٔ په دے خلقو کښې وَم نو زهٔ دَ دوی دَ خبرو او کارونو ګواه وَم (دغه وخت په دوی کښې چا داسے نه وُو وئیلي) بیا چه کله تا زهٔ اوچت کړم نو بیا دا خلق ستاسو په نګرانئ کښې وُو تاسو دَ دوی دَ خبرو او کارونو نه ښه خبر دار یئ -

**په حضرت عیسیٰ علیه السلام دَ شو څا صو انعامونو ذکر**

په دے آیاتو کښې چه کوم دَ حضرت عیسیٰ علیه السلام دَ سوال جواب ذکر شوے دے"

ذدے نه وہا ندِ دَ هغو خاصو انعامو نو ذکر دے - چه په خاص طور سره په حضرت عیسیٰ علیه السلام باندِ شوی وُو، او دَ معجزو په شکل کښے دهٔ ته ورکړی شوی وُو، په دے ټولو کښے یو طرف ته دَ خاصو انعاماتو او بل طرف ته دَ جواب طلبئ منظر او خودو دَ بنی اسرائیلو دے دواړو قومونو ته ئے خبردارے ورکړو یکوموکښے چه یو دَ دهٔ سپکاوے اوکړو او قسم قسم تهمتونه ئے پرِا و لګول آزار ئے ورته اُورسا وُه - او دویم قوم دهٔ لره خدائے یا دَ خدائے ځوئ جوړ کړو - دَ انعاماتو په ذکر کولو سره ئے اوّل قوم او په سوال جوا ب ذکر کولو سره ئے دویم قوم لره خبردارے ورکړو - دلته چه ئے دَ کوم انعامونو په تفصیل سره ذکر په خوؤه اایا تو نو کښے کړے دے په دے کښے یوه جمله زیاته دَ غور قابله ده چه په دے کښے ارشاد شوے دے: تُکَلِّمُ النَّاسَ فِی الْمَهْدِ وَكَهْلًا ؕ یعنی یو خاصه معجزه کومه چه حضرت عیسیٰ علیه السلام لره ورکړے شوه هغه دا ده چه تهٔ په دَ خلقو سره دَ وړوکوالی په حالت کښے هم خبرے کوے او دَ زوړ عمر په حالت کښے هم -

په دے کښے اوله خبره خو معجزه کیدل او خاص انعام والے ئے ښکاره دے دَ پیدا کیدو په اوّلنی حالت کښے بچے دَ خبرو کولو قابل نه وی، کوم بچے چه دَ مور په غیږه یا زانګو کښے خبرے اوکړی نو دا به دَ دهٔ خاص امتیاز وی - په زوړ حالت کښے چه دَ خبرو کولو کوم ذکر دے نو دا خو څهٔ دَ ذکر قابله خبره نه ده هر سړے په دے عمر کښے خبرے کوی - لیکن چه دَ حضرت عیسیٰ علیه السلام په خصوصی حالت باندے غور اوکړے شی نو دا به هم معجزه ثابته شی ځکه چه عیسیٰ علیه السلام دَ زوړ والی عمر ته دَ رسید ونه اوّل دَ دنیانه پورته کړے شو - اوس دَ دے ځائے دَ بنی آدمو سره دَ دهٔ خبرے کول زوړ عمر ته دَ رسید ونه پس هله کیدے شی کله چه دے دوباره دے دنیا ته تشریف را وړی لکه چه دَ مسلمانانو په جمع سره عقیده ده او دَ قرآن او حدیثو نه ثابته ده - دَ دے نه معلومه شوه چه څنګه دَ حضرت عیسیٰ علیه السلام په ورکوتوالی کښے خبرے کول معجزه وه، دغه شان په زوړ عمر کښے ئے خبرے کول هم دے دنیا ته دَ دویاره راتلو په وجه معجزه ده -

وَاِذْ اَوْحَيْتُ اِلَى الْحَوَارِيّٖنَ اَنْ اٰمِنُوْا بِيْ وَبِرَسُوْلِيْ

او کله چه ما په زړه کښې واچول حواریانو ته چه ایمان راوړئ په ما او زما په رسول

قَالُوْٓا اٰمَنَّا وَاشْهَدْ بِاَنَّنَا مُسْلِمُوْنَ ﴿۱۱۱﴾ اِذْ قَالَ

نو اُوئې وې موږ ایمان راوړو او ته ګواه شه چه موږ فرمانبرداریو - کله چه اُووے

الْحَوَارِيُّوْنَ يٰعِيْسَى ابْنَ مَرْيَمَ هَلْ يَسْتَطِيْعُ

حواریانو اے عیسیٰ ځویه د مریم ستا رب کولے شی

رَبُّكَ اَنْ يُّنَزِّلَ عَلَيْنَا مَآئِدَةً مِّنَ السَّمَآءِ ؕ قَالَ

چه نازل کړی په موږ باندې خوانچه ډکه د اسمان نه - اُوئې وې

اتَّقُوا اللّٰهَ اِنْ كُنْتُمْ مُّؤْمِنِيْنَ ﴿۱۱۲﴾ قَالُوْا نُرِيْدُ

اُویریږئ د الله نه که تاسو ایماندار یئ - دوی اُووے چه موږ غواړو

اَنْ نَّاْكُلَ مِنْهَا وَتَطْمَئِنَّ قُلُوْبُنَا وَنَعْلَمَ اَنْ

چه او خورو د دے نه او مطمئن شی زموږ زړونه او موږ پوهه شو چه تا

قَدْ صَدَقْتَنَا وَنَكُوْنَ عَلَيْهَا مِنَ الشّٰهِدِيْنَ ﴿۱۱۳﴾

موږ ته رشتیا اووے، او شو موږ په دې باندې ګواه -

الربع

قَالَ عِيْسَى ابْنُ مَرْيَمَ اللّٰهُمَّ رَبَّنَآ اَنْزِلْ عَلَيْنَا

اووے عیسیٰ د مریم ځوئی اے الله ربه ز موږ نازل کړے په موږ

مَآئِدَةً مِّنَ السَّمَآءِ تَكُوْنُ لَنَا عِيْدًا لِّاَوَّلِنَا

خوانچه ډکه د آسمان نه چه شی دغه ورځ اختر زموږ د وړوند

وَاٰخِرِنَا وَاٰيَةً مِّنْكَ ۚ وَارْزُقْنَا وَاَنْتَ خَيْرُ الرّٰزِقِيْنَ ﴿۱۱۴﴾

او د ورستو د پاره او نښه دې ستا د طرفه - او رزق راکړې مونږ ته او هم ته غوره رزق ورکونکے يې -

قَالَ اللّٰهُ اِنِّيْ مُنَزِّلُهَا عَلَيْكُمْ ۚ فَمَنْ يَّكْفُرْ بَعْدُ مِنْكُمْ

او وې الله زه بې شکه نازلوم هغه خوانچه په تاسو - بيا چه څوک په تاسو کښې ناشکري اوکړي د دينه

فَاِنِّيْٓ اُعَذِّبُهٗ عَذَابًا لَّآ اُعَذِّبُهٗٓ اَحَدًا مِّنَ الْعٰلَمِيْنَ ﴿۱۱۵﴾

پس نو زه به ده له عذاب ورکړم داسې عذاب چه چا له به ئې ورنه کړم په جهان کښې -

# لنډ تفسير

او کله چه ما حواريانو ته (په انجيل کښې ستا په ژبه) حکم اوکړو چه تاسو په ما او زما په رسول (عيسىٰ عليه السلام) ايمان راوړئ نو دوی (په جواب کښې تا ته) اووې چه مونږ (په خدائے او رسول يعنې په تا) ايمان راوړو او ته ګواه شه چه مونږ (د خدائے او ستا) پوره فرمانبردار يو. هغه وخت د ياد ولو قابل دے کله چه حواريانو (حضرت عيسىٰ عليه السلام ته) عرض اوکړو چه اے عيسىٰ ځويه د مريم (عليك السلام) آيا ستا رب داسې کولے شي (يعنې څه د حکمت وغيره پشان کار خو د دے منع کونکے نيشتے) چه په مونږ د آسمان نه خوراک (پوخ کړے) نازل کړي تاسو ورته اووې چه د خدائے نه اويريږئ که تاسو ايماندار يئ (مطلب دا دے چه تاسو خو ايماندار يئ په دے وجه د خدائے نه اُويريږئ او د معجزو د فرمائيش چه ضرورت ورته نيشتے نو د ادب نه خلاف ده په دے وجه ترجمان اوساتئ) دوی اووې چه (زمونږ مقصود بے ضرورته فرمائش کول نه دی بلکه د يو مصلحت په وجه د دے درخواست کوو هغه دا چه) مونږ (يو څو) دا غواړو چه (د برکت حاصلولو د پاره) د دے نه اوخورو او (دويم دا غواړو چه) زمونږ زړونو ته (په ايمان) پوره اطمينان راشي او (مطلب د اطمينان دا دے چه) زمونږ دا يقين نور زيات شي چه تاسو

(په دعوه د رسالت کښې) مونږ ته رښتیا ویلي دي (ځکه چه څومره دلیلو نه
زیاتیږي نو هومره په دعوه یقین زیاتیږي) او (د دریم دا غواړو چه) مونږه
(د هغې خلقو په وړاندې چا چه دا معجزه نه ده لیدلې) د ګواهي کونکو نه شو
(چه مونږ دا سې معجزه لیدلې ده چه د دوی په وړاندې د رسالت اثبات اوکړے شو
او د دوی د هدایاتو دا ذریعه جوړه شي) عیسیٰ د مریم ځوئي (علیه السلام چه
کله اولیدل چه د دوی په درخواست کښې د دوی غرض صحیح دے نو د الله تعالیٰ
نه ئې) سوال اوکړو چه اے الله ځما پروردګاره په مونږ د آسمان نه خوراک
نازل کړے چه دغه (خوراک) زمونږ د پاره یعنې په مونږ کښې چه کوم اوّل
(یعنې په موجوده زمانه کښې) دي او کوم چه وروستو (زمانه کښې را تلونکي)
دي د ټولو د پاره یوه د خوشحالۍ خبره شي (د موجوده حاضرو خلقو خوشحالي
په خوراک سره او په درخواست قبلیدو سره او د وروستو راتلونکو خلقو
خوشحالي په خپلو مشرانو د انعام کیدو په وجه، او دا عنایت خاص دے د
مؤمنانو سره) او (ځما په پیغمبرئ) ستا د طرف نه یوه نښه شي (چه د مؤمنانو
یقین زیات شي او په حاضرو منکرو یا غائبو باندې دلیل شي، او دا مقصد د
مؤمنانو وغیره ټولو د پاره عامه ده) او تاسو مونږ ته (دغه خواږه) راکړې
او تاسو د ټولو عطاء کوُنکو نه زیات ښهٔ یې (ځکه چه نور ټول د خپلې نفعې
د پاره څهٔ ورکوي او ستاسو ورکول د مخلوق د نفع د پاره وي په دے وجه
مونږ خپلې نفع پیش کوُو ستاسو نه د خوراک درخواست کوُو) الله تعالیٰ (په
جواب کښې) ارشاد اوفرمایه چه (تاسو خلقو ته اوفرمایئې چه) زهٔ به دغه خوراک
(د آسمان نه) په تاسو خلقو نازلوُنکے یم بیا چه کوم سړے په تاسو کښې
د دے نه پس (د دے) ناشکري اوکړي (یعنې واجب حقوق ئې عقلاً او نقلاً
ادا نه کړي) نو زهٔ به دهٔ له داسې سزا ورکړم چه دغه سزا به (د دغه وخت)
جهان والو کښې چا لره ور نه کړم۔

# معلومات او مسئلې

**مؤمن لره د معجزو مطالبه نه دي کول پکار**

(د اقول د الله تعالیٰ) قَالَ اتَّقُوا اللّٰهَ اِنْ كُنْتُمْ مُّؤْمِنِيْنَ: کله چه حواریانو د عیسیٰ علیه السلام نه د آسمان نه د خوانچې نازلیدو مطالبه اوکړه نو دوی په جواب کښې او فرمائیل چه که تاسو ایماندار یئ نو د الله تعالیٰ نه اویرېږئ. د دې نه معلومه شوه چه ایماندار بنده لره لائق نه دي چه دې دا قسم فرمائښ اوکړي خدائې پاک لره وازمائي او د الله تعالیٰ نه د خرقِ عادت شیزونو مطالبه اوکړي، بلکه دهٔ لره پکار دي چه رزق وغیره په هغه ذریعه او غواړي کوم طریقې چه الله تعالیٰ مقرر کړي دي.

**کله چه نعمت په غیرمعمولي طور سره زیات وي نو د ناشکرئ وبال ئې هم زیات وي**

(د الله تعالیٰ قول) فَاِنِّیْٓ اُعَذِّبُهٗ عَذَابًا لَّآ اُعَذِّبُهٗٓ اَحَدًا مِّنَ الْعٰلَمِيْنَ: د دې آیت نه معلومه شوه چه کله نعمت غیرمعمولي او عجیبه قسم وي نو ځکه شکریه هم د معمولي قسم نه ډیره زیاته پکار ده. او په ناشکرئ کولو به ئې عذاب هم غیرمعمولي او عجیبه قسم کښې راځي.

مائده (خوانچه) د آسمان نه نازله شوې وه او که نه؟ په دې باره کښې د تفسیر لیکونکو اختلاف دې. جمهور د نزول قائل دي یعني چه نازله شوې وه. د ترمذي په حدیث کښې د عمار بن یاسرؓ نه نقل دي چه مائده د آسمان نه نازله شوه په دې کښې روټئ او غوښه وه. او په دې حدیث کښې دا هم دي چه دې خلقو (یعني بعضو) خیانت اوکړو او د راتلونکې ورځې د پاره ئې ترې کیخوده پس د شادوګانو او خنزیرانو په شکل کښې مسخ شو (نعوذ بالله من غضب الله)

او د دې حدیث نه دا هم معلومیږي چه دوی ته د دې نه خوړلے هم وه لکه چه په: نَاْكُلُ کښې د دوی دا غرض هم ذکر دې. البته د ورانو د پاره ایخودل منع وُو. (بیان القرآن)

وَإِذْ قَالَ اللّٰهُ يٰعِيسَى ابْنَ مَرْيَمَ ءَاَنْتَ قُلْتَ لِلنَّاسِ

او هغه وخت چه اووائی الله اے عیسی د مریم ځویه آیا تا ووئیلی وُو خلقو ته

اتَّخِذُوْنِيْ وَاُمِّيَ اِلٰهَيْنِ مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ ؕ قَالَ سُبْحٰنَكَ

چه اونیسئ ما لره او ځما مور لره دوه معبودان سوا د الله نه - اُوبه وائی چه پاک ئے ته

مَا يَكُوْنُ لِيْٓ اَنْ اَقُوْلَ مَا لَيْسَ لِيْ بِحَقٍّ ؕ اِنْ كُنْتُ

څۀ لایق نه دی ما لره چه او وایم داسے خبره چه ما لره د هغے حق نیشته - که ما داسے ووئیلی وے

قُلْتُهٗ فَقَدْ عَلِمْتَهٗ ؕ تَعْلَمُ مَا فِيْ نَفْسِيْ وَلَآ اَعْلَمُ

نو تا ته به خامخا معلومه وه - ته پوهیږے په هغې چه ځما په زړۀ کښے دی او زۀ نۀ پوهیږم

مَا فِيْ نَفْسِكَ ؕ اِنَّكَ اَنْتَ عَلَّامُ الْغُيُوْبِ ﴿١١٦﴾ مَا

په هغې چه ستا په زړۀ کښے دی - بے شکه ته پوهیږے په پټو خبرو - ما هیڅ نۀ

قُلْتُ لَهُمْ اِلَّا مَآ اَمَرْتَنِيْ بِهٖٓ اَنِ اعْبُدُوا اللّٰهَ

دی ووئیلی دوی ته مګر هغه چه تا ئے ما ته حکم کړے دے چه بندګی کوئے د الله

رَبِّيْ وَرَبَّكُمْ ۚ وَكُنْتُ عَلَيْهِمْ شَهِيْدًا مَّا دُمْتُ

چه رب ځما او رب ستا سو دے او زۀ د دوی نه خبر وُم تر څو پورے

فِيْهِمْ ۚ فَلَمَّا تَوَفَّيْتَنِيْ كُنْتَ اَنْتَ الرَّقِيْبَ

چه په دوی کښے وُم بیا کله چه تا زۀ پورته کړم نو ته خبر لرونکے د

عَلَيْهِمْ ؕ وَاَنْتَ عَلٰى كُلِّ شَيْءٍ شَهِيْدٌ ﴿١١٧﴾ اِنْ

دوی وے - او ته د هر څیز نه خبردار ئیے - که ته

تُعَذِّبْهُمْ فَإِنَّهُمْ عِبَادُكَ ۚ وَإِنْ تَغْفِرْ لَهُمْ

دوی لره عذاب ورکوے نو دوی ستا بندګان دی- او که ته دوی معاف کوے

فَإِنَّكَ أَنْتَ الْعَزِيزُ الْحَكِيمُ ﴿١١٨﴾

نو بے شکه چه ته ئے زبردست حکمت والا -

# لنډ تفسير

او هغه وخت هم د یاد ولو قابل دے کله چه الله تعالیٰ (په قیامت کښے حضرت عیسیٰ علیه السلام ته کفارو نصاراؤ ته د آورولو د پاره) او فرمائی چه اے عیسیٰ څوئیه د مریم (په دے خلقو کښے چه د چا عقیده د در یو خدایا نو وه یعنی د الله تعالیٰ سره به ئے عیسیٰ علیه السلام او حضرت مریم علیها السلام لره په خدائیئ کښے شریک منل نو) آیا تا دے خلقو ته ویلی وو چه ما لره (یعنی عیسیٰ علیه السلام لره) او زما مور (حضرت مریم) لره هم علاوه د خدائے نه معبود ان جوړ کړئ نو عیسیٰ (علیه السلام) به عرض او کړی چه (توبه توبه) زه خو (پخپله عقیده کښے) تا لره (د شریک نه) پاک ګنړم (لکه چه ته په واقع کښے هم پاک ئے نو په داسے حالت کښے) ما لره څنګه ښائیده چه داسے خبره به م کوله د کومے د وئیلو چه ما ته هیڅ حق نیشتے (نه په اعتبار د خپلے عقیدے چه زه د یو خدائے قائل یم او نه په اعتبار د الله د پیغام رسولو نه چه ما ته داسے څه پیغام نه دے راکړے شوے او دلیل زما د دے نه وئیلو د دے چه) که چرے ما (په واقع کښے) وئیلی وی نو تا ته به د هغے (یقیناً) علم وی (مګر کله چه ستا په علم کښے هم ما نه دی وئیلی او که ما وئیلی وے نو تا سو ته به څکه معلومه وه چه) ته زما د زړه د ننه خبره هم پیژنے (نو چه به ژبه م وئیلی وے د هغے علم به در ته ولے نه وو او) او زه (خو په مثل د نور مخلوقات د ومره عاجز یم چه) ستا په علم کښے چه څه دی دے لره (بغیر ستا د خود ولو نه) نه پیژنم (لکه چه د نور مخلوقات هم دا حال دے

پس) دَ ټولو غیبو پوهید ونکے خاص ته ئے (پس کله چه ماته خپل دومره عاجز والے اوستا دومره لوئے کمال ماته معلوم دے نو په خدائے کښې دَشوکت دعوه څنګه کولے شم، تر دے ځائے پورے خو دَ دے خبرے نفی اوکړے شوه، وړاندِ اوس دَ دے په مقابله کښې دَ خدائے دَ یو والی ثابتول دی چه) ماخو دوی ته نور هیڅ نه دی وئیلی صرف دا (خبره) کومه چه تا ما ته دوی ته دَ وئیلو دَ پاره فرمائیلی وه چه تاسو دَ الله تعالیٰ بندګی اختیار کړئ کوم چه ځما هم رب دے او ستا سو هم رب دے او (تر دے ځائے پورے خو عیسیٰ علیه السلام دَ خپل حالت ذکر اوکړو، وړاندِ دَ هغې خلقو دَ حالت متعلق عرض کوی څنګه چه په: ءَأَنْتَ قُلْتَ لِلنَّاسِ اتَّخِذُونِي: کښې خو په دا که سوال دَ دے خبرے دے چه تا دا سے کلمه وئیلے ده او که نه ده، لیکن اِشارةً دَ دے هم سوال معلومیږی چه دا دَ درے خدایانو عقیده دَ کوم ځائے نه پیدا شوه پس عیسیٰ علیه السلام به په دے باره کښې دا سے عرض اوکړی چه) زهٔ په (حال) دَ دوی خبر وُم ترڅو چه زهٔ په دوی کښے (موجود) وُم (پس تر دغې وخته پورے دَ دوی حال خوما لیدلے دے دَ دغې متعلق زهٔ بیان کولے شم) پس کله چه تا زهٔ اوچت کړم (یعنی اول وار زهٔ ژوند ے آسمان طرف ته او دویم وار زهٔ دَ وفات په طور) نو (دغه وخت صرف) تهٔ دَ دوی (په حال) خبر وے (دَ دغه وخت خبر ما ته نیشتے چه دَ دوی دَ ګمراهئ سبب څهٔ وُه او څنګه اوشو) او تهٔ دَ هر څهٔ پوره خبر لرے (تر دے پورے خو ئے خپله او دَ دوی معامله عرض کړه وړاندِ اوس دَ دوی او دَ الله دَ معاملے نو متعلق عرض کوی چه) که تهٔ دوی لره (په دے عقیده) سزا ورکوے نو (هم ستا اختیار دے څکه چه) دوی ستا بندګان دی (او تهٔ دَ دوی مالک ئے او مالک ته حق دے چه بندګانو لره دَ دوی په جرم باندِ سزا ورکړی) او که تهٔ دوی معاف کړے نو (هم ستا اختیار دے څکه چه) تهٔ زبردست (قدرت والا) ئے (نو په معافئ هم قادر ئے او) حکمت والا (هم) ئے (نو ستا معافی به هم دَ حکمت موافق وی په دے وجه به دے کښے هم څهٔ بَدْ والے نه شی کیدے، مطلب دا دے چه په

دوام و حالتو نو کبنې ستا اختيار دے زۀ هيڅ دخل نۀ شم کولے)

رغرض دا چه عيسیٰ عليه السلام په اوّلنی عرض: سُبْحٰنَكَ الخ: کښې خپله پاکی دَدرے خدايانو دَ عقيدے لرونکونه او دَ دوی دَ تعليم نه - او په دويم عرض : وَكُنْتُ عَلَيْهِمْ الخ: کښې خپله پاکی دَ دوی دَ دے عقيدے دَ مفصّل سبب دَ پيژندونه - او په دريم عرض: اِنْ تُعَذِّبْهُمْ الخ: کښې خپله پاکی دَ دوی په باره کښې دَ څۀ تحريک کولو نه ظاهر کړه، او دا مقصود وُه دَ الله تعالیٰ دَ عيسیٰ عليه السلام سره دَ دے خبرو اترو، پس په دے کښې دے کفارو ته پوره زور نه وو دَ دوی په نا پوهئ چه حسرت به کوی په خپله نا کامئ) -

## مَعْلُوْمَاتْ اَوْمَسٰئِلے

**اَهَمْ فائدے** :وَاِذْ قَالَ اللهُ يٰعِيْسٰی الخ: الله تعالیٰ په هرڅه پوهه دے نو دَ عيسیٰ عليه السلام نه سوال دَ دے دَپاره نه کوی چه معلومه ورته نه ده، بلکه دَ دے مقصود دَ دۀ قوم نصاراؤ لره ملامته کول او زورنه ورکول دی، چه چا لره تاسو الله مَنئ هغه پخپله ستاسو دَ عقيدے خلاف دَ خپلے بندگئ اقرار کوی او ستاسو دَ بهتان نه هغه پاک دے (ابن کثير)

:فَلَمَّا تَوَفَّيْتَنِیْ كُنْتَ اَنْتَ الرَّقِيْبَ عَلَيْهِمْ : دَ حضرت مسيح عليه السلام دَ مرگ يا آسمان ته دَ پورته کولو وغيره بحث دَ سورتِ آلِ عمران په آيت: اِنِّیْ مُتَوَفِّيْكَ وَرَافِعُكَ: کښې تير شوے دے هلته ئے اوگورئ - :

:فَلَمَّا تَوَفَّيْتَنِیْ: په دے آيت سره دَ عيسیٰ عليه السلام دَ مرگ او آسمان ته دَ پورته کولو نه په انکار باندے دليل نيول صحيح نه دی - ځکه چه دا خبرے دَ قيامت دَ ورځے دی - او دغه وخت به دَ آسمان نه دَرا کوز يے وو نه پس دوئ ته حقيقی مرگ حاصل شوے وی - لکه چه ابن کثير په روايت دَ ابوموسیٰ اشعریؓ يو حديث نقل کړے دے چه نبی کريم صلے الله عليه وسلم فرمائيلی دی، چه کله دَ قيامت ورځ شی نو پيغمبران عليهم السلام او دَ دوی امتونه به را او غوښتے شی، بيا به عيسیٰ عليه السلام را او غوښتے شی، بيا به الله تعالیٰ

دهٔ ته خپل نعمتونه وریاد کړی، اونزدے به ئے کړی او به فرمائی ورته چه اے عیسیٰ ځویه د مریمے: اُذْكُرْ نِعْمَتِيْ عَلَيْكَ وَعَلٰى وَالِدَتِكَ: تر دے چه اُو به فرمائی: يٰعِيْسَى ابْنَ مَرْيَمَ ءَاَنْتَ قُلْتَ لِلنَّاسِ اتَّخِذُوْنِيْ وَاُمِّيَ اِلٰهَيْنِ مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ: عیسیٰ علیه السلام به انکار اوکړی چه پروردګاره ما نه دی وئیلی بیا به د نصاراؤ نه پښتوس اوشی نو دا خلق به اووائی چه هاں ده موږ ته دا حکم کړے وهٔ.. د دے نه پس به دوی دوزخ ته راښکودے شی۔

:اِنْ تُعَذِّبْهُمْ فَاِنَّهُمْ عِبَادُكَ: "یعنی ته خپلو بندګانو ظلم او بے ځایه سختی نه کوے، په دے وجه که دوی لره سزا ورکړے نو په عین عدل او حکمت به مبنی وی، او فرض کړه که معاف ئے کړے نو دا معافی به هم د عجز په وجه نوی ځکه چه ته غالب او زبردست ئے په دے وجه یو مجرم ستا د قبضے نه نه شی بهر کیدے چه کوند دے ستانه او تختی او ته پرے قابو بیا نه موے او چونکه حکمت والا هم ئے په دے وجه دا هم ممکنه نه ده چه یو مجرم لره هم د غسے بے موقعے پریدے، په هر حال کومه فیصله چه ته د مجرمانو په حق کښے اوکړے هغه به بالکل حکیمانه او قادرانه وی۔ د حضرت مسیح علیه السلام دا خبرے به چونکه په محشر کښے وی کوم ځائے چه به د کفارو په حق کښے د څخهٔ شفاعت او د رحم دُعا نه شی کیدے په دے وجه حضرت مسیحؑ د: عَزِيْزٌ حَكِيْمٌ: په ځائے: غَفُوْرٌ رَّحِيْمٌ: وغیره صفتونه اختیار نه کړل، په خلاف د دے نه چه حضرت ابراهیم علیه السلام په دُنیا کښے خپل پروردګار ته عرض کړے وه: رَبِّ اِنَّهُنَّ اَضْلَلْنَ كَثِيْرًا مِّنَ النَّاسِ فَمَنْ تَبِعَنِيْ فَاِنَّهٗ مِنِّيْ وَمَنْ عَصَانِيْ فَاِنَّكَ غَفُوْرٌ رَّحِيْمٌ: "اے پروردګاره دے بتانو ډیرو خلقو لره ګمراه کړل نو څوک چه په دوی کښے ځما تابع شو هغه ځما سړی دی او چا چه ځما نا فرمانی اوکړه نو بیا ته غفور رحیم ئے" یعنی اوس موقع ده چه ته خپل رحمت سره ائینده دوی لره توبے او حق ته د واپس کیدو توفیق ورکړے، او تیر ګناهونه ئے معاف کړے (فوائد عثمانیؒ)

ابن کثیر په روایت د ابوذرؓ نقل کړے دے چه نبی کریم صلی الله

عليه وسلم يو وار ټوله شپه يو ايت لوستلو او هغه ايت: إِنْ تُعَذِّبْهُمْ فَإِنَّهُمْ عِبَادُكَ... دے. بيا چه کله سحر شو نو ما عرض اوکړو چه يا رسول الله تاسو دا ايت لوستو رکوع مو په دے سره او سجده مو په دے سره کوله تر دے چه سحر شو، نو او ئے فرمائيل چه ما خپل پروردګار ته د خپل ځان د شفاعت درخواست اوکړو نو ما لره راکړے شو او هغه انشاء الله تعالیٰ چه ما ته ملاويدونکے دے د داسے سړی د پاره چا چه د الله تعالیٰ سره څه شی لره شريک کړے نه وی.

په بل روايت کښے راځی چه دوئ دا ذکر شوے ايت اولوستو اسمان طرف ته ئے لاس اوچت کړه او اوئے ويے: اَللّٰهُمَّ اُمَّتِيْ: يعنی پروردګاره خما په اُمّت نظر د رحمت اوکړے او دوی په ژړا شو، نو الله تعالیٰ تر په ذريعه د جبرئيل امين پتوس اوکړو چه ژاړے ولے؟ نو دوی جبرئيل امين ته د دے خبرے نه خبر کړو نو الله تعالیٰ حضرت جبرئيل ته او فرمائيل چه بيا لاړ شه او حضرت محمد (صلے الله عليه وسلم) ته او وايه چه زه به تا يو زر ستا د اُمّت په باره کښے تا لره رضامند کړم او تا به خفه نه کړم.

قَالَ اللّٰهُ هٰذَا يَوْمُ يَنْفَعُ الصّٰدِقِيْنَ صِدْقُهُمْ ۭ لَهُمْ

او فرمائيل الله پاک دا ورځ ده چه ګټه به رسوی رشتينو ته رشتيا د دوی - د دوی د پاره

جَنّٰتٌ تَجْرِيْ مِنْ تَحْتِهَا الْاَنْهٰرُ خٰلِدِيْنَ فِيْهَآ

دی باغونه چه بهيږی به ترلاندې نهرونه اوسی به په دے کښے همیشه

اَبَدًا ۭ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمْ وَرَضُوْا عَنْهُ ۭ ذٰلِكَ الْفَوْزُ

همیشه - الله راضی شو د دوی نه او دوی به راضی شی د هغهٔ نه - دا ده لويه

الْعَظِيْمُ ﴿١١٩﴾ لِلّٰهِ مُلْكُ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ وَمَا فِيْهِنَّ ۭ

کاميابی - د الله د پاره دے حکومت د اسمانونو او د زمکے او څه چه د دوا په مينځ کښے دی

ع ۶ ۵ ۶

وَهُوَ عَلٰى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيْرٌ ﴿۱۲۰﴾

او هغهٔ په هر څهٔ باندې قادر دے ۔

**د آیاتو نوتړون** ترمه په دواړو رکوع کانو کښې د قیامت د ورځې د عملونو او حالاتو د حساب کتاب او سوال جواب ذکر دے اوس ورپاندے د دغه لتهون او حساب د نتیجې ذکر کولے شی ۔

# لنډ تفسیر

(د دے ټولو خبرو اتر و نه پس) الله تعالیٰ به ارشاد اوفرمائی چه دا (د قیامت ورځ) هغه ورځ ده چه کوم خلق (په دنیا کښې په عقیدو او عملونو او قولونو کښې) رشتونی وُه (چه هغه رشتونوالے ئے اوس ښکاره کیږی پکو مو کښې چه انبیاء علیهم السلام کوم چه ورسره اوس خطاب کیږی، او هغه مؤمنان د کو مو د ایمان چه انبیاء او ملائک ټول ګواهی ورکړی، دا ټول په دے صادقانو کښې داخل دی' او په دے کښې اشاره تصدیق د رسولانو او تصدیق د عیسیٰ علیه السلام طرف ته هم او شوه 'غرض دا ټول حضرات کوم چه په دنیا کښې رشتونی وُو) د دوی رشتونوالے به (نن) د دوی پکار راشی او هغهٔ په کار را تلل دادی چه) دوی لره به (د جنت) باغونه (د اوسیدو د پاره) ورکړے شی چه لاندې (د محلونو) د هغو نه به نهرونه بهیږی چه دوی به پکښې...... همیشه همیشه اُوسی او دا نعمتونه به دوی ته د لے نه ملاویږی څکه چه) الله تعالیٰ د دوی نه راضی او خوشحاله دے او دوی د الله تعالیٰ نه راضی او خوشحاله دی (او څوک چه راضی او کړ دهٔ نه راضی وی هغهٔ ته داسے نعمتونه ملاویږی) دا (څهٔ چه ذکر شو) ډیره لویه کامیابی ده (چه د دنیا هیڅ یو کامیابی د دے سره نه شی برابریدے) ۔

# معلومات او مسئلے

**فائده** : قَالَ اللّٰهُ هٰذَا يَوْمُ يَنْفَعُ الصّٰدِقِيْنَ صِدْقُهُمْ : په عام طور سره

د واقعې مطابق خبرې ته صدق (رښتيا) ويلې شي او د واقعې نه خلاف ته كذب (دروغ) ويلې شي - ليكن د قرآن او سُنّت نه معلوميږي چه دروغ او رښتيا عام دي د وينا او كاردواو ولره شامل دي لكه چه په يو حديث كښې د واقعې نه خلاف كارته دروغ ويلې شوي دي؛ مَنْ تَحَلّٰى بِمَا لَمْ يُعْطَ كَانَ كَلَابِسِ ثَوْبَيْ زُوْرٍ؛ (مشكوٰة) " يعني كه څوك ځان په داسې كالي سره ښائسته كړي چه دهٔ لره نه وي وركړې شوې، يعني د څهٔ داسې صفت يا عمل دعوه اوكړي چه په دهٔ كښې نهٔ وي نو ګويا دهٔ د دروغو دوه كپړې واغوستې ؛؛

په يو بل حديث كښې ئې په دا كه او په پټه يو شان ښهٔ مونځ كوُنكي ته رښتونې بنده ويلې دې - ارشاد دې :-

اِنَّ الْعَبْدَ اِذَا صَلّٰى فِي الْعَلَانِيَةِ فَاَحْسَنَ وَصَلّٰى فِي السِّرِّ فَاَحْسَنَ قَالَ اللّٰهُ تَعَالٰى هٰذَا عَبْدِيْ حَقًّا (مشكوٰة)

" يعني څوك چه په ښكاره ښهٔ مونځ كوي او دغه په پټه هم دغه شان اداكوي نو د داسې كس په باره كښې الله تعالىٰ فرمائي دا زما رښتونې بنده دې ؛؛

رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمْ وَرَضُوْا عَنْهُ : يعني الله د دوي نه راضي شو او دوي د الله نه - په يو حديث كښې راځي چه د جنت ملاويدو نه پس به الله تعالىٰ اوفرمائي چه لوئې نعمت دا دې چه زهٔ ستاسو نه راضي شوم او س به چرته ستاسو نه خفه نه شم -

ذٰلِكَ الْفَوْزُ الْعَظِيْمُ : يعني دا لويه كاميابي ده - ښكاره خبره ده چه د دينه زيا ته به بله څهٔ كاميابي وي چه مالك او خالق جَلَّ جَلَالُهٗ راضي وي ؛

؛ الله لره ثنا ده اول او آخر ؛

# سورتِ مائده تمام شو

# سُوْرَةُ الْاَنْعَامِ

سُوْرَةُ الْاَنْعَامِ مَكِّيَّةٌ وَّهِيَ مِائَةٌ وَّخَمْسٌ وَّسِتُّوْنَ اٰيَةً وَّعِشْرُوْنَ رُكُوْعًا

سورت انعام په مکه کښې نازل شوې ده دې کښې یو سل پنځه شپیته ۱۶۵ آیاتونه دي او شل رکوع ګانې

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ ○

شروع کوم د الله په نوم سره چه بے حد مهربان نهایت رحم والا دے

اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ الَّذِيْ خَلَقَ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضَ وَ

ټول صفتونه خاص الله لره دي چا چه پیدا کړل آسمانونه او زمکه او

جَعَلَ الظُّلُمٰتِ وَالنُّوْرَ ؕ ثُمَّ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا بِرَبِّهِمْ

جوړې کړې تیاره او رڼا - بیا هم دا کافران د خپل رب سره نورو لره

يَعْدِلُوْنَ ① هُوَ الَّذِيْ خَلَقَكُمْ مِّنْ طِيْنٍ ثُمَّ

برابر وي - هغه دے چا چه پیدا کړه تاسو لره د خاورو نه بیا ئې

قَضٰٓى اَجَلًا ؕ وَاَجَلٌ مُّسَمًّى عِنْدَهٗ ثُمَّ اَنْتُمْ

مقرر کړه یو وخت لره - او یو موده مقرره ده په نزد د الله بیا هم تاسو

تَمْتَرُوْنَ ② وَهُوَ اللّٰهُ فِي السَّمٰوٰتِ وَفِي الْاَرْضِ ؕ

شک کوئ - او هغه الله دے په آسمانونو کښې او په زمکه کښې -

يَعۡلَمُ سِرَّكُمۡ وَجَهۡرَكُمۡ وَيَعۡلَمُ مَا تَكۡسِبُونَ ﴿٣﴾

پوهيږي ستاسو په پټو او په ښکاره وو او پوهيږي په هغه څه چه تاسو کوئ -

وَمَا تَأۡتِيهِم مِّنۡ ءَايَةٖ مِّنۡ ءَايَٰتِ رَبِّهِمۡ إِلَّا كَانُواْ

او نه دی راغلی دوی ته څه نښې د نښو د رب د دوی نه مګر دوی ترې

عَنۡهَا مُعۡرِضِينَ ﴿٤﴾ فَقَدۡ كَذَّبُواْ بِٱلۡحَقِّ لَمَّا جَآءَهُمۡ

غفلت کوی - پس بے شکه دروغژن کړو دوی حق لره هرکله چه ورته راغے -

فَسَوۡفَ يَأۡتِيهِمۡ أَنۢبَٰٓؤُاْ مَا كَانُواْ بِهِۦ يَسۡتَهۡزِءُونَ ﴿٥﴾

پس اوس به راشی دوی ته حقيقت د هغې خبرے چه دوی ورپسے خندل -

# لنډ تفسير

تول صفتونه خاص الله لره لائق دی چا چه اسمانونو او زمکے لره پيدا کړل او تيارے او رڼا کانے ئے جوړے کړے بيا هم کافر خلق (په عبادت کښے نورو لره) د خپل رب سره برابر وی هغه (الله) داسے دے چا چه تاسو (ټولو) لره (په واسطه د آدم عليه السلام سره) د خاورے نه جوړ کړې بيائے (ستاسو د مرګ) يو نيټه مقرر کړه او بل وخت معين (د دوباره ژوندی کيدو) پوره کيدو (خاص د الله په نزد معلوم) دے بيا هم تاسو (بعض په تاسو کښے) شک لرئے (چه قيامت محال ګڼړئ حال دا دے چا چه اول ژوندے کړے دے دوباره ژوندے کول هغه ته څه ګران دی) او هغه دے لائق د عبادت په حقه په اسمانونو کښے هم او په زمکه کښے هم (يعنی نور ټول معبودان باطل دی) هغه ستاسو په پټو حالاتو هم او ستاسو په ښکاره وو حالاتو هم (پوهه دے او (خاص کر) تاسو چه کوم ظاهر يا باطن) عمل کوئ (چه د جزا يا سزا مدار دے پرے) هغه لره پيژنی

او دوی (کفارو) ته څه نښه هم د دوی د رب د نښو نه نه ده راغلې مګر دوی د هغې نه د ډه کوی پس (چونکه دا د دوی عادت جوړ شوے دے) پس دوی دے رشتونی کتاب (قرآن) لره هم دروغ ګڼړو کله چه هغه دوی ته راغے پس (د دوی دا دروغژن کول به خالی نه ځی بلکه) ډیر زر به دوی ته خبر ملاؤ شی د هغه شی د کوم سره چه دے خلقو ټوقے کولے (مراد د دے نه عذاب دے چه خبر ئے په قرآن کښے آو ریدو نو خندل ئے، او د دے د خبر ملاویدو مطلب دا دے چه کله عذاب نازل شی نو د دے خبر رشتونوالے به دوی په سترګو اووینی)۔

## مَعلومَاتْ اومَسَائِلے

حضرت عبد الله بن عباسؓ فرمائی چه د سورتِ انعام یو خصوصیت دا دے چه دا ټول سورت پیغمبر ته یو ځل راغلو په یو وخت په مکه کښے نازل شوے دے چه اویا زره فرشتے ورسره تسبیح لوستونکے راغلے وے۔ د تفسیر په اماماتو کښے د مجاهدؒ، کلبیؒ، قتادهؒ وغیره هم تقریباً دا وینا ده۔

ابو اسحٰق اسفرائنیؒ فرمائی چه دا سورت د توحید په ټولو اصولو او قاعدو مشتمل دے۔ دا سورت د اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ نه شروع شوے دے چه په دے کښے ئے دا خبر ورکړے دے چه ټول صفتونه خاص الله تعالیٰ لره دی۔ او مراد د دے خبر نه خلقو ته د حَمْد تعلیم ورکول دی، او د تعلیم په دے خاص طرز کښے دے طرفته اشاره ده چه هغهٔ د چا د حمد او صفت محتاج نه دے، که څوک حَمْد یعنی ثنا صفت کوی او که نهٔ کوی هغه د خپلو ذاتی کمالونو په اعتبار سره خود بخود صفت کړے شوے یعنی محمود دے، د دے جملے نه پس ئے د آسمان او زمکے تیرے او رنړا د پیدا کولو ذکر اوفرمایه د هغه د صفتونو ستائینے دلیل ئے هم او خودلو چه کوم ذات د دومره لوئے قدرت او حکمت خاوند دے هم هغه د حَمْد و ثنا مستحق کیدے شی۔

په دے ایت کښے ئے سموٰت جمع او ارض مفرد ذکر کړی دی۔ اګرچه په بل ایت کښے د اسمان پشان د اوو زمکو ذکر هم موجود دے۔ شاید چه په دے کښے دے طرف ته اشاره وی چه اوو اسمانونه د خپل تش صورت او نورو صفتونو په اعتبار سره د یو بل نه فرق لری او اووه زمکے د یو بل هم شکل او یو شان دی په دے وجه ئے دوی لره د یوے په شان مقرر کړے (مظهری)

دغه شان ظُلُمٰتِ جمع او نُوْرٌ واحد ذکر کولو کښے دے طرف ته اشاره ده چه نُور تعبیر دے د صحیح لارے او صراطِ مُستقیم نه او هغه یو ده او ظُلُمٰت تعبیر دے د غلطے لارے نه چه هغه ئے بے شمیره دی۔ (مظهری و بحر محیط)

د لته دا خبره هم د غور قابله ده چه د اسمانونو او زمکے جوړولو ئے په لفظ د خَلَقَ سره تعبیر کړی دی او د تیرے او رڼا جوړولو لره ئے په لفظ د جَعَلَ سره۔ په دے کښے دے طرف ته اشاره ده۔ چه تیاره او رڼا د زمکے او اسمان په شان په خپل ذات سره قائم څیز و نه نه دی، بلکه عارضی څیزونه او صفتونه دی۔ او ظُلُمٰت ئے په نور سره شاته د دے د پاره وړاندے ذکر کړو چه اصل په دے دنیا کښے ظُلُمٰت دے نور خو د خاصو خاصو څیزونو سره تړلے شوے دے کله چه هغه مخ شی نُور رڼا پیدا شی او کله چه هغه نه وی نو تیاره وی۔ د دے ایت مقصود د توحید حقیقت او د دے واضح دلیل بیا نول او د دنیا هغه ټول قومونه په دے خبر وَل دی کوم چه یا د سره نه د توحید قائل نه دی او یا د قائلید و با وجود د توحید حقیقت ئے پاتے کړے دے۔

مجوسیان د دُنیا دوه خالقان مَنی یَزدان او آهرمن۔ یزدان خالق د خیر او آهرمن خالق د شر مَنی۔ او د دے دواړو تعبیر په نور او ظُلمت سره هم کوی۔ د هندوستان مشرکان دری دیرش کروړه دیوتاګان د خدائے شریکوی۔ آریه سماج د توحید قائلید و با وجود روح او مادے لره قدیم او د خدائے د قدرت او پیدا کولو نه ئے آزاد مقرر کړه

دَ توحید دَ حقیقت نه واپس شو- دغه شان نصارا دَ توحید دَ قائلید و سره حضرت عیسیٰ علیه السلام او دَ هغهٔ مور دَ خدائے تعالیٰ سره شریک گنړی او بیا دَ توحید دَ عقیدے راتېنګولو دَپاره ئې دوی لره یو په درېو او درے په یو کښے عقل نه منونکے نظریه اختیاره کړه، او دَ عربو مشرکانو خو دَ خدائے په تقسیم کښے دومره سخاوت ښکاره کړو چه هر یو غر، اوهره یوه ګټه دَ دوی په نزد دَ بنی آدمو معبود جوړ یدے شو- غرض هغه انسان چه الله پاک دهٔ لره اشرف المخلوقات او دَ کائنات توحٔد وم جوړ کړے وهٔ کله چه دے بے لارے شو، نو دهٔ نه صرف نمر، سپوږمئ او ستورو لره بلکه اور، اوبه، وُنے، غر، ګټه تردے چه چینجو مینجو لره ئې هم خپل معبودان جوړ کړل او سجدے ئې ورته او کړے او حاجت روا مشکل کشا ئې او ګڼړل-

قرآن کریم په دے ایت کښے الله تعالیٰ لره دَ آسمانونو او زمکے پیدا کونکے او دَ تیارے او رڼړا جوړه ونکے اوخودو، دَ دغے ټولو غلطو خیالا تو رَدْ ئے او کړو چه رڼړا او تیاره او آسمانونه او زمکه او په دوی کښے پیدا شوی ټول څیزونه دَ الله تعالیٰ پیدا کړی شوی او جوړ شوی دی نو بیا دوی لره څنګه دَ الله تعالیٰ سره شریک او حصه دار کولے شی-

په اوّل ایت کښے ئې دَ لوئے عالم یعنی ټولے دنیا دَ ټولو نه لوئے څیزونه دَ الله تعالیٰ مخلوق او محتاج ښکاره کړل دَ توحید دَ صحیح عقیدے خودنه ئې انسان ته او کړه- دَ دے نه پس ئې په دویم ایت کښے انسان ته او خودل چه ستا وجود پخپله یو وړکوټے عالم دے که دَ دے ابتداء او انتهاء او ترونده نظر او کړے نو دَ توحید عقیده به یو ښکاره حقیقت ستا مخے ته راشی- په دے کښے ارشاد فرمائی:-

هُوَ الَّذِیْ خَلَقَکُمْ مِّنْ طِیْنٍ ثُمَّ قَضٰۤی اَجَلًا: یعنی الله تعالیٰ هغه ذات دے چه تاسو ئې دَ خټے نه پیدا کړئ- چه آدم علیه السلام ئې دَ خټے دَ خمیرے نه پیدا کړو بیا ئې په کښے روح واچولو، او دَ عامو انسانانو نو خوراک دَ خاورے نه پیدا کیږی- دَ خوراک نه نطفه او دَ نطفے نه دَ انسان پیدائش په عمل کښے راځی-

حضرت ابوموسیٰ اشعری فرمائی چه ما د نبی کریم صلے الله علیه وسلّم نه آوریدلی دی چه الله تعالیٰ آدم علیه السلام د خاورے د یو خاص مقدار نه پیدا کړو چه د ټولے زمکے اجزاء په کښے شامل کړی شوی وُو- دغه وجه ده چه د آدم اولاد په رنګ شکل او اخلاق او عاداتو کښے مختلف دی- څوک توردے څوک سپین، څوک سره، څوک سخت، څوک نرم، څوک پاکیزه خوئی، څوک بد خویه، څوک خبیث. (مظهری په روایت د ابن عدی په سندِ حسن سره)

دا خو د ابتدائی پیدا کید و ذکر وُه، د دے نه پس د انتها د دوه و منزلونو ذکر دے، یو د یو بنده خاص انتها چه مرګ ورته ویلے شی، دویمه د ټولے نوعِ انسانی او د کائناتی خادمانو ټولو انتها، چه قیامت ورته ویلے شی- د انسان د شخصی انتها د پاره فرمائی: ثُمَّ قَضٰٓى اَجَلًا: یعنی د انسان د پیدائش نه پس الله تعالیٰ د ده د بقاء او ژوند د پاره یو میعاد مقرر کړه، د دے میعاد ته د رسید و نوم مرګ دے، کوم لره چه اګر که انسان ته نه دے معلوم مګر د الله فرشتے ئے پیژنی، بلکه پخپله انسان هم په دے حیثیت سره خپل مرګ لره پیژنی چه هر وخت په هر ځائے کښے خپل کیر چاپیره د آدم اولاد لره مړ کید و نکی وینی-

د دے نه پس د پوره عالم د انتها یعنی قیامت ذکر داسے فرمائی: وَاَجَلٌ مُّسَمًّى عِنْدَهٗ: یعنی یو بل میعاد مقرر دے، چه علم ئے صرف الله تعالیٰ ته دے، د دے میعاد پوره علم نه چا فرشتے ته شته، نه چا انسان ته-

پخو پر د خبرے دا دے چه په اول آیت کښے د لوئے عالم یعنی پوره دنیا حال دا او خودے شو چه دغه د الله تعالیٰ پیدا کړی شوی او جوړ شوی دی- او په دویم آیت کښے دغه شان د ورو کی عالم یعنی چه انسان د خدائے مخلوق دے بیان کړو، بیائے انسان لره د غفلت د خوبه د بیدارولو د پاره دا او خودل چه د هر انسان یو خاص عمر دے چه د هغے نه پس د ده مرګ یقینی دے- او دا داسے شے دے چه هر یو انسان ئے خپل کیر چاپیره هر وخت وینی: وَاَجَلٌ مُّسَمًّى عِنْدَهٗ: کښے دا هدایت ورکړے شوے دے چه د انسان د شخصی مرګ نه د ټول عالم په عام مرګ یعنی قیامت باندے دلیل

نیول یو فکری او طبعي امر دے - په دے وجه دَ قیامت په راتلو کښے دَ چا دَ څهٔ شک ځائے نیشته، په دے وجه په اخر دَ ایت کښے ئے او فرمائیل : ثُمَّ اَنۡتُمۡ تَمۡتَرُوۡنَ ۝ ; یعنی دَ داسے واضحو دلیلو نو با وجود تاسو دَ قیامت په باره کښے شکونه شیُهے را اُوباسئ -

په دریم ایت کښے دَ اولو دوه وُوایا تو نو دَ مضمون نتیجه بیانوی، چه الله څهٔ ذات دے چه په اسمانونو او زمکو کښے دَ عبادت او فرمانبرداری لائق دے او هغه ستاسو دَ ظاهر او باطن دَ هر حال او هرے خبرے او هر کار نه پوره خبردار دے -

په څلورم ایت کښے دَ غافل انسان دَ غفلت او دَ حق نه خلاف دَ ضد کولو شکایت داسے فرمائی چه : وَمَا تَاۡتِيۡهِمۡ مِّنۡ اٰيَةٍ مِّنۡ اٰيٰتِ رَبِّهِمۡ اِلَّا كَانُوۡا عَنۡهَا مُعۡرِضِيۡنَ ; یعنی دَ الله تعالیٰ دَ یو والی دَ واضحو دلیلو نو او ښکاره نښو با وجود مُنکرو خلقو دا طریقه اختیار کړے ده چه دَ الله تعالیٰ دَ طرف نه کومه نښه دَ دوی دَ هدایت دَ پاره راولیګلے شی نو دوی ترې مخ اړوی او دیته ذره غور کښے نه کوی -

په پنځم ایت کښے دَ دے غفلت اختیار دولو زیات تفصیل بعضِ واقعاتو طرف ته اشاره کوی بیان فرمائی چه : فَقَدۡ كَذَّبُوۡا بِالۡحَقِّ لَمَّا جَآءَهُمۡ ; یعنی کله چه حق دَ دوی مخے ته راغے نو دوی حق دروغژن کړو - دَ حق نه مراد قرآن هم کیدے شی او دَ نبی کریم صلی الله علیه وسلم پاک ذات هم -

ځکه چه نبی کریم صلی الله علیه وسلم دَ عمر دَ اوّل وخت نه تر اخره پورے دَ دے عربو قبیلو په مینځ کښے پاتے شوے دے - دَ ورکوالی نه ځوانئ او دَ ځوانئ نه زوړ والے ئے دَ دوی دَ سترګو په وړاندے راغلے دے - دوی ته دا هم پوره شان سره معلومه وه چه نبی کریم صلی الله علیه وسلم دَ یو انسان نه مطلقاً څهٔ تعلیم نه وُه حاصل کړے تر دے چه خپل نوم ئے هم پخپله نه شو لیکلے په تولو عربو کښے دَ دوی لقب اُمّی مشهور وُه څلویښت کاله عمر ئے په دے حال سره دَ دوی دَ وړاندے تیر شو، چه نه ئے چرته دَ شعر و شاعرئ سره دلچسپی راغلے ده، او نه ئے دَ څهٔ علم او تعلیم سره مناسبت دے

بیا دَغلو بینتو کالو په پوره کیدو ناخاپا به دَ دوئ دَ ژبې مبارکې نه هغه حقیقتونه، معلومات، علمونه او فنونه جاري شو چه دَ دُنیا لوئې لوئې ماهران فلاسفران دَ دې په وړاندې عاجزان شو، دَ عرب تو لو فصیحانو او بلیغانو ته ئې دَ خپل راوړې کلام دَ مقابلې دَ پاره چیلنج ورکړو. دغه خلق چه دَ نبي کریم صلی الله علیه وسلم لره دَ شکست ورکولو دَ پاره دَ خپل جان ومال عزت او آبرو اولاد او خاندان هر څهٔ قربانولو دَ پاره هر وخت تیار وُو په دوی کښې هیچا دا زړهٔ اونهٔ کړے شو چه دے چیلنج لره قبول کړی دَ قرآن کریم دَ یو آیت مثال پیش کړی۔

دغه شان دَ نبي کریم صلی الله علیه وسلم او دَ قرآن کریم خپل وجود دَ بچپله دَ حقانیت لوئې نښې وے، دَ دے نه علاوه دَ نبي کریم صلی الله علیه وسلم په لاسو په زرګونو معجزے او ښکاره ښکاره نښې داسې ښکاره شوے چه دَ دے نه هیڅ دَ صحیح عقل والا انسان انکار نه شي کولے۔ مګر دے غلقو دے ټولو نښو لره دَ سره دروغژنے کړے۔ په دے وجه په دے آیت کښې ئې ارشاد اوفرمایه: فَقَدْ كَذَّبُوا بِالْحَقِّ لَمَّا جَآءَهُمْ ؛۔

دَ آیت په آخر کښې ئې دَ دوی دَ کفر او انکار او دروغژن کولو دَ بد انجام طرف ته دَ اشارے کولو دَ پاره اوفرمائیل، فَسَوْفَ يَأْتِيهِمْ أَنْبَٰٓؤُا مَا كَانُوا بِهِ يَسْتَهْزِءُونَ ؛ یعني نن خو دا دَ بد انجام نه غافله خلق دَ نبي کریم صلی الله علیه وسلم په معجزو او دَ دوی په راوړې شوو هدایتونو او قیامت او آخرت ټولو پورے خندا کانے او ټوقے کوی لیکن ډیر زر هغه وخت راتلونکے دے کله چه به دا ټول حقیقتونه دَ دوی دَ سترګو دَ وړاندې ښکاره شي، قیامت به قائم شي، دَ ایمان او عمل حساب ورکول به وی، او هر څوک به دَ خپلو کړو سزا او جزا بیا مومي، مګر دَ دغې وخت یقین او اقرار به دَ دوی پکار را نه شي، ځکه چه دغه ورځ بیا دَ عمل نه ده بلکه ورځ دَ جزا به وی، او س الله پاک دَ غور او فکر کولو فرصت ورکړے دے۔ دے لره غنیمت ګنړل دَ الله تعالی په آیاتو ایمان راوړل، دَ دُنیا او آخرت کامیابي ده۔

أَلَمْ يَرَوْا كَمْ أَهْلَكْنَا مِن قَبْلِهِم مِّن قَرْنٍ مَّكَّنَّاهُمْ

آیا دوی نه وینی چه څومره هلاک کړی دی مونږه د دوی نه وړاندې امتونه کوم لره چه مونږه

فِي الْأَرْضِ مَا لَمْ نُمَكِّن لَّكُمْ وَأَرْسَلْنَا السَّمَاءَ

اباد کړی وو په ملک کښے دومره چه تاسو لره تونه دی آباد کړی او رالیږلے مونږه په دوی د اسمان

عَلَيْهِم مِّدْرَارًا وَجَعَلْنَا الْأَنْهَارَ تَجْرِي مِن

نه پرلپسے باران - او جوړې کړې مونږه بهیدونکی نهرونه د دوی

تَحْتِهِمْ فَأَهْلَكْنَاهُم بِذُنُوبِهِمْ وَأَنشَأْنَا

لاندې بیا هلاک کړل مونږه دوی لره د دوی په ګناهونو او پیدا کړه مونږه

مِن بَعْدِهِمْ قَرْنًا آخَرِينَ ⑥ وَلَوْ نَزَّلْنَا

د دوی نه روستو نور قومونه - او که نازل کړو مونږه

عَلَيْكَ كِتَابًا فِي قِرْطَاسٍ فَلَمَسُوهُ بِأَيْدِيهِمْ

په تا لیکلے شوے په کاغذ کښے بیا ئے اونیسی دوی په خپلو لاسونو کښے

لَقَالَ الَّذِينَ كَفَرُوا إِنْ هَٰذَا إِلَّا سِحْرٌ مُّبِينٌ ⑦

نو خامخا به او وائی کافران چه دا نه دے مګر ښکاره جادو دے -

وَقَالُوا لَوْلَا أُنزِلَ عَلَيْهِ مَلَكٌ ۖ وَلَوْ أَنزَلْنَا

او وائی ولے نه نازلیږی په ده باندې فرشته - او که مونږه نازله کړو

مَلَكًا لَّقُضِيَ الْأَمْرُ ثُمَّ لَا يُنظَرُونَ ⑧ وَلَوْ

فرشته نو کار به فیصله شی بیا به دوی ته مهلت ملاؤ نه شی - او که

جَعَلْنٰهُ مَلَكًا لَّجَعَلْنٰهُ رَجُلًا وَّ لَلَبَسْنَا عَلَيْهِمْ مَّا

موږ رسول ليږلے فرښتے لره نو هغه به هم د سړي په شکل وه او دوی به ئے په دغه شک کښے اچول

يَلْبِسُوْنَ ﴿۹﴾ وَ لَقَدِ اسْتُهْزِئَ بِرُسُلٍ مِّنْ قَبْلِكَ

په کوم کښے چه اوس دوی پریوځي - او بے شکه خندا کړے شوے ده په رسولانو پورے وړاندِ ستا نه

فَحَاقَ بِالَّذِيْنَ سَخِرُوْا مِنْهُمْ مَّا كَانُوْا بِهٖ

بيا او ښول خندا کوونکو لره هغے شی چه ئے کوو م پورے ئے

يَسْتَهْزِءُوْنَ ﴿۱۰﴾ قُلْ سِيْرُوْا فِي الْاَرْضِ ثُمَّ انْظُرُوْا

خندا کوله - ته ئے او وايه چه اوګرځئ په ملک کښے بيا اوګورئ چه

كَيْفَ كَانَ عَاقِبَةُ الْمُكَذِّبِيْنَ ﴿۱۱﴾

څه انجام شو د دروغژن کونکو -

# لنډ تفسير

آيا دوی نه دی ليدلی چه موږ د دوی نه وړاندِ څومره امتونه (په عذاب) هلاک کړی دی کوم لره چه موږ په دنيا کښے داسے قوت (بدنی او مالی) ورکړی وُو چه تاسو ته هغه قوت نه دے درکړے شوے او موږ په دوی بندُ بارانونه او وَرول او موږ د دوی (د پټو او باغونو) نه لاندِ نهرونه جاری کړه (چه په دے سره ئے فصلونو او ميوو بندُ ترقی اوکړه او دوی د خوشحالئ ژوند تيرول شروع کړه) بيا (د دے قدرت او طاقت او سامان سره) موږ دوی لره د دوی د ګناهونو په سبب (په قسمونو عذابونو سره) هلاک کړل او د دوی نه پس موږ نور امتونه پيدا کړل (نو که په تاسو باندِ هم عذاب نازل کړی نو څهٔ تعجب دے او د دے خلقو د غنا د

داحال دے چه) که موږ په کاغذ لیکلے څۀ کتاب په تا نازل کړے وے بیا دے خلقو په
لاسونو کښے بیولے هم وے (ځکه چه د دوی دا مطالبه کړے ده چه لیکلے شوے کتاب د
د آسمان نه دا شی، او په لاسونو سره د نیولو ذکر ئے اوکړو د نظر بندئ شبه ئے
هم لرے کړه) بیا به هم دے کافرو خلقو وے چه دا نور هیڅ هم نه دی خو ښکاره
جادو دے (ځکه چه کله ئے د خبرے منلو اراده نه وی نو په هر دلیل کښے څۀ نه څۀ
نوے خبره را ویستل څۀ مشکل دی) او دا خلق داسے هم وائی چه د ده (پیغمبر) ته
څۀ فرښته (چه موږ ئے او وینو او خبرے ئے واورو) ولے نه شی را لیږلے (حق تعالیٰ
فرمائی) او که موږ څۀ فرښته (دغه شان) را لیږلے نو ټول قصه به ختمه شوے
وه بیا (د د فرښتے نازلیدو نه پس) به دوی ته یوه ذره مهلت نه شو ورکیدے
(ځکه چه د الله تعالیٰ عادت دا دے چه کو موخلقو ته غوښتلے شوے معجزه اوخودے
شی او بیا هم دوی د ایمان نه انکار اوکړی نو فوراً بے مهلته په عذاب نیولے
شی او هلاکولے شی او ترڅو چه دغه غوښتلے شوے معجزه ورته نه وی خودلے شوے
په دنیا کښے دوی ته مهلت وی) او که موږ د ده (پیغام رسونکی) لره فرښته مقرر
کولے نو (چه په شکل د فرښتے مو لیږلے نو هیبت به ئے بنی آدمو نه شو برداشت کولے
په دے وجه) موږ به دے (فرښتے) لره (بنی آدم (په شکل) جوړه کړله نو په دے
باندِ به هم دوی شبه کوله لکه چه اوس کوی (یعنی دے فرښتے لره به ئے بنی آدم
گنړلو بیا به ئے هم اعتراض کولو- غرض دا دے چه د فرښتے نازیلیدل کوم چه
ئے دوی مطالبه کوی که دا پوره کړے شی نو په دے سره دوی ته فائده
ځکه نه شی رسیدے چه فرښته پخپل شکل سره د لیدو د دوی طاقت نیشته او
په شکل د انسان سره ئے په را لیږلو کښے به بیا هم د دوی شک لرے نه شی- او بل
طرفته به دوی ته نقصان دا اورسیږی چه په نه منلو به ئے د عذاب مستحق شی)
او (تاسو د دوی په دے عبثو مطالبو غم مه کوئ ځکه چه) ستا نه وړاندِ چه کوم
پیغمبران راغلی دی د دوی سره هم (د مخالفینو د طرف نه) مسخرے شوے دی بیا
کوم خلقو چه په دوی پورے مسخرے کړے وے دوی لره هغے عذاب اونیول
د کوم چه دوی مسخرے کولے (د دے نه معلومه شوه چه د دوی په دے طرز عمل
سره پیغمبرانو ته هیڅ نقصان نه رسی بلکه دا پخپله د دوی د پاره عذاب او

مصیبت دے. او که دا خلق دَ تیرو امتونو دَ عذاب نه انکار کوی) نو ته (ددی ته)
اووایه چه لګ په زمکه کښې لا ړشئ او ګورئ، بیا اوګورئ چه دَدروغژن ګڼونکو
څۀ انجام شو۔

# مَعلومَات او مَسئلې

په تیرو ایاتونو کښې دَ الله تعالیٰ دَ حکمونو او دَ رسولانو دَ تعلیما تو
نه دَ تیر ته کوونکو یا مخالفت کوونکو دَپاره دَ سخت عذاب ذکر وو۔ په دے ایاتونو
کښې دَ دغې منکرانو رُخ خپل کیرچا پیره حالاتو او دَ تیرے زمانے تاریخي واقعاتو
طرف ته را اوګرځاوه دوی ته ئے دَ عبرت او نصیحت حاصلو موقع ورکړے ده
بے شکه دَ دُنیا تاریخ دَ عبرتونو یو کتاب دے چه که دے ته دَ عبرت په ستړګو
اُوکتے شی نو دَ زړګونو وعظونو نه زیات اثر کوونکے وعظ دے، دَ یو حکیم دا
جمله ډیره غوره ده چه: دُنیا یو بهترین کتاب دے، او زمانه یو بهترین
اُستاذ دے؛ دا وجه ده چه دَ قرآن کریم یو ډیر لوئے بیان قصے او تاریخ
دے - لیکن په عام طور سره غافله انسان دَ دنیا تاریخ ته هم دَ یو وخت
تیرَولو او تفریحي شغل نه زیات حیثیت او مقام نه دے ورکړے - بلکه دے
دَ وعظ او حکمت غوره کتاب لره ئے هم دَ خپل غفلت او ګناه یو ذریعه
جوړه کړه - تیرے قصے او واقعات یا خواوس دَ خوب راوستونکے دوائی
په ځائے استعمالولے شی او یا دَ خالی وخت تیرَولو او زړۀ لوبولو یو مشغله
ترے جوړه شوے ده۔

شاید په دے وجه قرآن کریم دَ دُنیا تاریخ لره دَ عبرت او نصیحت دَ
پاره راغستلے دے - مګر دَ عامے دُنیا دَ تاریخي او قصو دَ کتابونو په شان
نۀ - چه په هغوی کښې قصه وئیل یا تاریخ بیانول یو مقصد وی په دے
وجه تاریخي واقعات پر لَیَسے دَ قصے په شکل کښې نه بیانوی - بلکه دَ قصے ټوټه
ټکړه چه دَ کومے معاملے او دَ کوم حال سره متعلق وی - هلته هم دغه هومره
ټکړه بیانوی - بیا بل ځائے کښې دَ دغه قصے دویمه ټکړه دَ هغۀ ځائے دَ
مناسبت سره بیانوی - په دے کښې دے حقیقت طرف ته اشاره کیدے شي۔

چه څهٔ خبر یا قصه چې ته بچپله مقصود نه وی بلکه دَ هر خبر او واقعې نه څهٔ عملی نتیجه را ویستل مقصد وی - په دے وجه دَ دغې قصې چه څومره حقه دَ دغې مقصد دَ پاره ضروری وی هغه لوَل او وړاندې څه - او دَ خپلو حالاتو جائزه اَخله' او دَ تیرو واقعاتو نه عبرت حاصلوَه خپله اصلاح کوَه -

دَ ذکر شوو آیاتو نه په اوّلنی آیت کښے ئے دَ نبی کریم صلے الله علیه وَ سلم مخاطبو یعنی مکے والو ته دا ارشاد فرمائیلے دے، چه آیا دے خلقو دَ خپل ځان نه دَ وړاندې قومونو حال نه دے لیدَلے چه دوی ترِ عبرت او نصیحت واخلی - او دَ لید ونه مراد دَ دوی په حال غور او فکر کول دی ځکه چه دغه قومونه دَغه وخت دَ دوی دَ وړاندې نه وُو چه دوی لید لی وے، دَ دینه پس ئے دَ وړاندې قومونو دَ هلاکت او بربادئ ذکر او فرمایه.

وَكَمْ اَهْلَكْنَا مِنْ قَبْلِهِمْ مِّنْ قَرْنٍ: یعنی مونږ دَ دوی نه وړاندې څومره قومونه هلاک کړی دی -

لفظ دَ قَرْنٌ: هغه جماعت ته هم وئیلے شی چه په یو وخت او یو زمانه کښے په جمع مو جود وی - او دَ زمانے یوے اُوګدے حصّے ته هم، چه دَ دے په باره کښے دَ لسو کالو نه واخله تر سلو کالو پورے مختلف قولونه دی - مګر دَ بعضے روایاتو دَ حدیث او واقعاتو نه تائید دَ دے خبرے کیږی چه لفظ دَ قَرْنٌ سلو کالو ته وئیلے شی - ځکه چه په یو حدیث کښے دی چه نبی کریم صلے الله علیه وسلم عبدالله بن بُسْر مازنی ته فرمائیلی وُو چه تهٔ به یو قرن ژوندے یئے. او هغه پوره سل کاله ژوندے پاتے شو - او نبی کریم صلے الله علیه وسلم یو بچی ته دُعا او کړه چه یو قرن ژوندے اُوسے، نو هغه پوره سل کاله ژوندے وَه - اکثر عالمانو حضراتو دَ حدیث: خَیْرُ الْقُرُوْنِ قَرْنِیْ ثُمَّ الَّذِیْنَ یَلُوْنَهُمْ ثُمَّ الَّذِیْنَ یَلُوْنَهُمْ: نه دا مطلب اغستے دے - چه هر قرن ئے سل کاله منلے دے -

په دے آیت کښے دَ تیرو قومونو دَ دُنیا په باره کښے اوّل دا خودلی دی چه دوی لره الله تعالیٰ په زمکه کښے هغه قرَئی او قوت او دَ ژوند سامان

ورکړے وه چه ورستو خلقو ته نه دے نصیب شوے - لیکن کله چه دوی رسولانو دروغژن کړل او د الله تعالیٰ د حکمونو مخالفت ئے اختیار کړو - نو دغه ټول جاه و جلال او مال ومنال ئے د الله تعالیٰ د عذاب په وړاندې بےکاره ثابت شو - او ټول نیست نابوده شو، نو دا ننني مخاطب اهلِ مکه چه نه ورته د عادیانو او ثمودیانو پشان قوت او طاقت حاصل دے او نه ورته د شام او یمن د خلقو پشان خوشحالي، دوی له د تیرو قومونو د واقعاتو نه عبرت حاصلول او د خپلو کارونو جائزه اخستل پکار دي - چه هغوی مخالفت او کړو نو څه انجام ئے شو -

د آیت په آخر کښې فرمائي: وَاَنْشَاْنَا مِنْۢ بَعْدِهِمْ قَرْنًا اٰخَرِيْنَ ؛ یعني د الله جل شانه د کامل قدرت تصرف صرف دا نه دے چه د لوئے لوئے جاه و جلال حکومت او بادشاهئ مالکان او د ډول ډول او قوت او طاقت والا قومونه د سترګو په رپ کښې هلاک او برباد کړي، بلکه د دوی د هلاکولو سره ئے د دوی په ځائے نور قومونه پیدا کړل او داسے ئے آباد کړل چه کتونکی په دے هم پوهه نه شو چه د دے ځائے نه څوک کم شوی هم دي -

او د الله جل شانه د دے قدرت او حکمت لیدل خو دغسے په هره زمانه هر وخت کښې کیږي چه روزانه په لاکونو زرګونو انسانان هلاک کیږي، مګر چرته هم خالي والے په نظر نه راځي - چرته هم دا احساس نه کیږي چه د دے ځائے خلق هلاک شو او اوس د دے ځائے اوسیدونکی نیشته -

خدا جانے یہ دنیا جلوہ گاہِ ناز ہے کس کی ؟
ہزاروں اٹھ گئے رونق وہی باقی ہے مجلس کی

(خدائے پوهیږي چه دا دُنیا د چا د ناز جلوه ګاه ده، په زرګونو تیر لاړل
خو د دُنیا رونق هم هغسے په خپل ځائے باقي پاتے دے)

یو وار په میدان د عرفات کښې کوم ځائے چه تقریباً د لسو لاکو خلقو مجمع وه، دے طرف ته نظر لاړ شو چه د نن نه تقریباً اویا اتیا کاله وړاندې په دے ټول مجمع کښې د یو انسان وجود هم نه وو، او په دے ځائے کښې تقریباً دومره خلق نور موجود وو چه نن د هغوی نوم نښنه نیشته - دغه شان د انسانانو

دے جمع او دَ خلقو هم جو په چه هر کله دَ تیر وخت او را تلونکی سره یو ځائے اوکتے شی نو یو چیرا اثر کوونکے واعظ ښکاره کیږی ، رپس مبارک دے الله پاک غوږ ېید اکوونکے)

دویم ایت په یو خاصه واقعه کښے نازل شوے دے - چه عبدالله بن اُمیه دَ نبی کریم صلے الله علیه وسلم په وړاندې یوه معاندانه مطالبه پیش کړه ، او وائے وئے چه زهٔ پتا تر هغے ایمان نه شم راوړلے تر څو پورے چه زهٔ دا واقعه اونه وینم چه ته اسمان ته او خیژے او دَ هغهٔ ځائے نه زمونږ په وړاندې یو کتاب راوړے چه په هغے کښے ئے زما نوم اغستے وی داسے وی چه زهٔ ستا تصدیق اوکړم او دَ دے تولو خبرو سره ئے دا هم اووے چه که ته دا تول هر څه اوښائے هم خو زهٔ مسلما نید و نکے نه ښکارم -

او عجیبه اتفاق دا هم دے چه بیا هم دغه صاحب مسلمان شو او داسے شو چه دَ اسلام غازی جوړ شو دَ طائف په غزا کښے شهید شو -

دَ قوم داسے بے ځایه معاندانه مطالبو او دَ مسخرو په رنګ کښے خبرو دَ مورو پلار نه زیات شفیق نبی کریم صلے الله علیه وسلم په زړهٔ مبارک څهٔ اثر کړے وی - دَ دے صحیح اندازه مونږ نه شو کولے صرف هغه خوک په دے پوهیدے شی دَ چا سره چه دَ قوم دَ اصلاح او نجات فکر دَ نبی کریم صلے الله علیه وسلم په شان وی -

په دے وجه په دے ایت کښے دوئ لره دَ تسلیٔ ورکولو دَ پاره ارشاد او فرمایه چه دَ دوی دا مطالبات دَ څهٔ غرض او مقصد دَ پاره نه دی او نه دَ دوی مقصد څهٔ کار کول دی - دَ دوی حال خو دا دے چه څهٔ دوی طلب کوی که دَ دے نه زیات هم ښکاره صورتونه دَ دوی په وړاندې ستا دَ رشتونوالی راشی خو بیا هم دوی نه قبلوی - مثلاً که مونږ دَ دوی دَ وینا مطابق دَ اسمان نه په کاغذ لیکلے شوے کتاب نازل کړو او صرف دا نه چه دوی ئے په سترګو اووینی ، چه دَ نظر بندئ یا جادو احتمال وی په کښے

بلکه دوی دغه کتاب پخپلو لاسو کښې هم او نیسی او گوری چه محض خیال نه دے' حقیقت دے، مګر چونکه دَدوی خبرے تولے دَعناد دی نو بیا به هم داسے اووائی چه: اِنْ هٰذَآ اِلَّا سِحْرٌ مُّبِیْنٌ، "یعنی دا خو ښکاره جادو دے".

دَ دریم الیت دَ نزول هم یو واقعه ده، چه دغه عبدالله بن اُمیه ' او نضر بن حارث، او نوفل بن خالد، یو وار جمع شو دَ نبی کریم صلی الله علیه وسلم په خدمت کښې حاضر شو، او دا مطالبه ئے پیش کړه چه مونږ به په تا هله ایمان راوړو کله چه تهٔ دَ آسمان نه یو کتاب راوړے او دَ دے سره څلور فرښتے راشی چه دَ دے خبرے ګواهی ورکړی چه دا کتاب دَ الله تعالیٰ دَ طرف نه راغلے دے او دا چه تهٔ دَ الله رسول یے۔

دَ دے جواب یو خو الله تعالیٰ دا ورکړو چه دا په غفلت کښې پروت دا سے مطالبے کوی چه خپل مرګ او هلاکت ته بلنه ورکوی۔ ځکه چه دَ الله قانون دا دے چه کله یو قوم دَ یو پیغمبر نه څهٔ خاصه معجزه اوغواړی او دَ الله تعالیٰ دَ طرف نه دَ دوی غوښتلے شوے معجزه او خودے شی نو که دوی بیا هم په منلو او په اسلام راوړو کښې ذره قدرے تاخیر اوکړی نو بیا دوی دَ عام عذاب په ذریعه سره هلاک کولے شی۔ دے قوم اهل مکهٔ ووهم دا مطالبه دَ نیک نیتیٔ نه نهٔ کوله چه دَ منلو توقع تری اوکړے شی په دے وجه فرمائی۔

: لَوْ اَنْزَلْنَا مَلَكًا لَّقُضِيَ الْاَمْرُ ثُمَّ لَا يُنْظَرُوْنَ : یعنی که مونږ دَ دوی غوښتلے شوے معجزه اوښایو چه فرښته راواُ لیګو او دا قوم منو نکے خو دے نهٔ نو دَ دے معجزے دَ لید و نه پس هم کله چه خلاف ورزی اوکړی نو دَ الله حکم به دَ دوی دَ هلاکولو دَ پاره جاری شی - او دَ دینه پس به دوی ته یوه ذرہ هم مهلت ورنه کړے شی - په دے وجه دوی لره یو هیڅ دل پکار دی چه دَ دوی غوښتلے شوے یوه نښه هم که ښکاره نه کړے شی، نو په دے کښې دَ دوی خیر دے۔

دَ دے خبرے یو دویم جواب ئے په څلورم الیت کښې په بل انداز سره داسے ورکړو چه دا سوال کوُنکی عجیبه بے وقوفه دی چه دَ فرښتو دَ ناز لید و مطالبه کوی ځکه چه دَ فرښتو دَ نازلید و دوه صورتونه دی - یو خو دا

چه فرښته په خپل اصلي شکل کښې را ښکاره شي نو دا دې د هیبت برداشت خو یو انسان نه شي کولے بلکه د یرې نه ئې فورًا د مرکیدو ویره ده -

دویم صورت دا دے چه فرښته په شکل د انسان راشي لکه جبرئیل آمین چه نبي کریم صلے الله علیه وسلم ته څو ځل په شکل د انسان راغلے دے نو په دے صورت کښې د دے سوال کوُنکو چه کوم اعتراض په تا دے هغه به ئې په دغه فرښتے هم وي - چه دوي به دغه فرښته یو انسان ګنړي -

د دے ټولو معاندانه سوالو نو د جواب ورکولو نه پس په پنځم ایت کښې نبي کریم صلے الله علیه وسلم ته د تسلّي د پاره ارشاد فرمائي چه دا د مسخرو ټوقو او آزار رسولو معامله چه ستا قوم ستا سره کوي دا په تا پورے خاص خبره نه ده ستا نه وړاندِ هم د ټولو رسولانو سره دا سے کار و نه شوي دي، مګر هغوي همت نه دے بائللے او انجام ئے دا سے شوے دے چه ټوقو او مسخرو کوُنکي قوم لره هغے عذاب نیولي دي په کوم پورے چه دوي مسخرے کولے -

لنډه دا چه ستا کار د حکمونو رسول دي هغه چه او کړے خپل زړهٔ فارغ کړے نو کا اثر ئې په چا اوشي یا نه د دغې سا تنه ستا په ذمه نه ده. نو په دے وجه په دے کښې په مشغولید و خپل زړهٔ مه غم ژن کوه -

قُلْ لِّمَنْ مَّا فِي السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ ۭ قُلْ لِّلّٰهِ ۭ كَتَبَ

تپوس او کړه چه د چا دي څهٔ چه دي په اسمانونو او په زمکه کښې - او وایه چه د الله دي - لیکلې ئې

عَلٰي نَفْسِهِ الرَّحْمَةَ ۭ لَيَجْمَعَنَّكُمْ اِلٰى يَوْمِ الْقِيٰمَةِ

ده په خپله ذمه مهرباني - خامخا به تاسو راجمع کړي د قیامت ورځے ته

لَا رَيْبَ فِيْهِ ۭ اَلَّذِيْنَ خَسِرُوْٓا اَنْفُسَهُمْ فَهُمْ

چه هیڅ شک پکښې نیشتے - کوم خلق چه په نقصان کښې واچوي خپل ځانونه نو دوي

لَا يُؤْمِنُوْنَ ﴿۱۲﴾ وَلَهٗ مَا سَكَنَ فِي الَّيْلِ وَالنَّهَارِ ۭ وَ

نه راوړي. او خاص د الله د پاره دي څه چه آرام کوي په شپه کښے او په ورځ کښے. او

هُوَ السَّمِيْعُ الْعَلِيْمُ ﴿۱۳﴾ قُلْ اَغَيْرَ اللّٰهِ اَتَّخِذُ وَلِيًّا

هغه ښه اورېدونکے ښه پوهېدونکے دے. ته اووایه چه د الله نه سوا بل چا لره جوړه کړم خپل مددګار

فَاطِرِ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ وَهُوَ يُطْعِمُ وَلَا يُطْعَمُ ۭ

(او هغه) جوړ‌ونکے د آسمانونو او د زمکے او هغه ټولو له خوراک ورکوي او هغه له څوک خوراک ورکوي

قُلْ اِنِّيْٓ اُمِرْتُ اَنْ اَكُوْنَ اَوَّلَ مَنْ اَسْلَمَ وَلَا

اووایه چه ماته حکم شوے دے چه د ټولو نه اول زه حکم اومنم او ته

تَكُوْنَنَّ مِنَ الْمُشْرِكِيْنَ ﴿۱۴﴾

هرګز مه کیږه د مشرکانو نه.

# لنډ تفسیر

تاسو (دے مخالفینو ته په طور د الزام د حجت) اووایئے چه څه په آسمانونو او زمکه کښے موجود دي دا ټول د چا ملکیت دے (اول خو به دوی هم دغه جواب ورکړي چه توحید به ترې ثابت شي او که په څه وجه سره لکه یره یا مغلوبیت شو جواب ورنه کړي نو) تاسو اووایئ چه ټول د الله تعالیٰ ملکیت دے (او دوی ته دا هم اووایئ چه) الله تعالیٰ ربه خپل فضل سره په توبه کوونکو بانو) مهربانی فرمائیل په خپله ذمه لازم فرمائیلی دی (او دا هم اووایئ چه که تاسو توحید قبول نه کړو نو بیا به ئے سزا هم تاسو له ملګل وی ځکه چه) تاسو لره به خدائے تعالیٰ د قیامت په ورځ د د قبرونو نه ژوندی را پورته کړی په میدان د حشر کښے) جمع کړی را او د قیامت حالت دا دے چه) د دے

په را تلو کښې هیڅ شک نیشته (مګر) کوم خلقو چه خپل ځانونه (یعنې خپل عقلونه او نظرونه) ضائع (یعنې بےکاره) کړې دی پس دغه ایمان نه راوړی او دوی ته په طور د تماموولو د حجت دا اووایئ چه) چه خاص د الله تعالیٰ ملکیت دے څه چه په شپه او په ورځ کښې اوسی (د دے او د دینه د اوّلنی آیت: قُلْ لِّمَنْ مَّا فِي السَّمٰوٰتِ: د مجموعے حاصل دا را اووتو چه څومره څیزونه په څه مکان کښې دی یا په څه زمان کښې دی ټول د الله تعالیٰ په ملکیت کښې دی) او هغه د ټولو لوئ آورېدو نکے پوهیدونکے دے (بیا د توحید ثابتولو نه پس دوی ته اووایئ چه آیا د الله تعالیٰ نه سوا کوم چه د آسمانونو او زمکې پیدا کوونکے دے او کوم چه (ټولو ته) خوراک ورکوونکے دے او دۀ ته هیڅوک خوراک نه ورکوی (ځکه چه هغه د خوراک سکاک د حاجت نه بے پروا دے نو آیا د داسے الله نه سوا) بل چا لره خپل معبود مقرر کړم (تا سو د دے انکاری استفهام په تشریح کښې پخپله) او فرمایئ (چه زۀ غیر الله لره معبود څنګه جوړ کولے شم چه دا خو د عقل او نقل نه خلاف دے) ما ته دا حکم شوے دے چه د ټولو نه وړاندې اسلام قبول کړم (چه په دے کښې د توحید عقیده هم راغله) او (ما ته دا وئیلی شوی دی چه) ته د مشرکانو څخه هرګز مه کیږه ۔

## مَعلومات او مَسئلے

آیت: قُلْ لِّمَنْ مَّا فِي السَّمٰوٰتِ: کښې د کفارو نه سوال شوے دے چه د اسمان او د زمکے او د دوی د ټولو کائناتو مالِک څوک دے؟ بیا په خپله د نبی کریم صلے الله علیه وسلم په ژبه مبارکه سره دا جواب ارشاد فرمائی چه د ټولو مالک الله دے ۔ د کفارو د جواب د انتظار کولو په ځائے په خپله د جواب ورکولو وجه دا ده چه دا جواب د مکے د کفارو په نزد هم منلے شوے دے دوی اګر چه په شرک او بت پرستۍ کښې اخته وُو مګر د زمکے او آسمان او د ټولو کائناتو مالک ئې خاص الله تعالیٰ لره ګڼړلو ۔

لَيَجْمَعَنَّكُمْ إِلٰى يَوْمِ الْقِيٰمَةِ: کښې لفظ د: إِلٰى: یا خو د: فِي: په معنیٰ دے

او مراد دا دے چه الله تعالیٰ به ټول اولین اٰخرین دَ قیامت په ورځ جمع کړی او یا جمع کول په قبرونو کښے ترے مراد دے نو مطلب به داشی چه تر قیامته پورے به الله تعالیٰ ټولو انسانانو لره په قبرونو کښے جمع کړی نو دے چه په قیامت کښے به ټول ژوندی را پورته کړی (قرطبی)

: کَتَبَ عَلٰی نَفْسِهِ الرَّحْمَةَ : په صحیح مسلم کښے دَ حضرت ابو هریرهؓ نه روایت دے چه نبی کریم صلی الله علیه وسلم فرمائیلی دی چه کله الله تعالیٰ مخلوقات پیدا کړل نو یوه لیکلے نامه ئے پخپله ذمه دَ وعدے او لیکله کومه چه الله تعالیٰ سره ده چه دَ دے مضمون ئے دا دے: اِنَّ رَحْمَتِیْ تَغْلِبُ عَلٰی غَضَبِیْ : یعنی زما رحمت زما په غضب غالب وی (قرطبی)

اَلَّذِیْنَ خَسِرُوْٓا اَنْفُسَهُمْ : په دے کښے اشاره ده چه دَ اٰیت په شروع کښے کوم چه دَ الله تعالیٰ دَ عام رحمت ذکر دے کفارا ومشرکان که دَ دینه محروم شو نو دوی پخپله په خپل عمل سره محروم شو دوی دَ رحمت دَ حاصلولو طریقه اختیار نه کړه (قرطبی)

لَهٗ مَا سَکَنَ فِی الَّیْلِ وَالنَّهَارِ : دلته یا دَ سکون نه مراد قرار نیول دی یعنی کوم شے چه دَ دُنیا په شپه ورځ کښے موجود دے دغه ټول دَ الله ملکیت دے او دا هم کیدے شی چه مراد ترے دَ سکون او حرکت مجموعه وی یعنی: مَا سَکَنَ وَمَا تَحَرَّکَ : او ذکر ئے صرف دَ سکون کړے دے حرکت چه دَ دے مقابل دے هغه ترے په خپله معلومیدے شی۔

---

قُلْ اِنِّیْٓ اَخَافُ اِنْ عَصَیْتُ رَبِّیْ عَذَابَ یَوْمٍ عَظِیْمٍ ﴿۱۵﴾

ته او وایه زه یریږم که نافرمانی اوکړم دَ خپل رب نه دَ لوئے ورځے دَ عذاب نه۔

مَنْ یُّصْرَفْ عَنْهُ یَوْمَئِذٍ فَقَدْ رَحِمَهٗ ؕ وَذٰلِکَ

دَ چا نه چه لرے شو دغه عذاب په دغه ورځ نو په ده رحم اوکړو الله۔ او دا دَ ه

الْفَوْزُ الْمُبِينُ ﴿۱۶﴾ وَإِن يَمْسَسْكَ اللَّهُ بِضُرٍّ فَلَا كَاشِفَ

لو یه کامیابي - او که اورسوي تا ته الله سختي نو هیڅوک ددے لرې کوونکے

لَهُ إِلَّا هُوَ ۖ وَإِن يَمْسَسْكَ بِخَيْرٍ فَهُوَ عَلَىٰ كُلِّ

نشته سوا د هغه نه - او که اورسوي تا ته څه خیر نو هغه په هر څه

شَيْءٍ قَدِيرٌ ﴿۱۷﴾ وَهُوَ الْقَاهِرُ فَوْقَ عِبَادِهِ ۚ وَهُوَ

قادر دے - او هغه غالب دے پخپلو بندګانو باندې - او هغه دے

الْحَكِيمُ الْخَبِيرُ ﴿۱۸﴾ قُلْ أَيُّ شَيْءٍ أَكْبَرُ شَهَادَةً ۖ

لوئے حکمت والا د ټولو نه خبردار - ته تپوس اوکړه چه د ټولو نه لوئے ګواه څوک دے؟

قُلِ اللَّهُ ۖ شَهِيدٌ بَيْنِي وَبَيْنَكُمْ ۚ وَأُوحِيَ إِلَيَّ

او وایه چه الله ګواه دے زما او ستاسو په مینځ کښے - او نازل شوے دے ما ته

هَٰذَا الْقُرْآنُ لِأُنذِرَكُم بِهِ وَمَن بَلَغَ ۚ أَئِنَّكُمْ

دا قرآن چه تاسو د دینه خبردار کړم او چا ته چه دا اورسي - آیا تاسو

لَتَشْهَدُونَ أَنَّ مَعَ اللَّهِ آلِهَةً أُخْرَىٰ ۚ قُل لَّا

ګواهي کوئ چه د الله سره بل معبود هم شته ؟ ته او وایه چه زه خو

أَشْهَدُ ۚ قُلْ إِنَّمَا هُوَ إِلَٰهٌ وَاحِدٌ وَإِنَّنِي بَرِيءٌ

ګواهي نه کوم - او وایه چه هغه دے معبود یو او زه بیزاره یم

مِّمَّا تُشْرِكُونَ ﴿۱۹﴾ الَّذِينَ آتَيْنَاهُمُ الْكِتَابَ

ستاسو د شرک نه - چا لره چه موږ ورکړے دے کتاب

يَعْرِفُوْنَهٗ كَمَا يَعْرِفُوْنَ اَبْنَآءَهُمْ اَلَّذِيْنَ

دوی پیژنی دۀ لره لکه چه پیژنی خپلو ځامنو لره - هغه خلق چه

خَسِرُوْٓا اَنْفُسَهُمْ فَهُمْ لَا يُؤْمِنُوْنَ ﴿۲۰﴾ وَ مَنْ

په نقصان کښے واچوی ځانونه خپل پس دوی ایمان نه راوړی - او څوک دے

اَظْلَمُ مِمَّنِ افْتَرٰى عَلَى اللّٰهِ كَذِبًا اَوْ كَذَّبَ

زیات ظالم د هغه نه چه جوړوی په الله باندې دروغ یا دروغژن کړی

بِاٰيٰتِهٖ ؕ اِنَّهٗ لَا يُفْلِحُ الظّٰلِمُوْنَ ﴿۲۱﴾

آیاتونه د هغه - بے شکه فلاح نه شی مونده ظالمان -

# لنډ تفسير

ته او وایه چه که زۀ د خپل رب خبره او نه منم (چه د اسلام او ایمان د حکم تعمیل او نه کړم یا په شرک کښے اخته شم) نو زۀ د یو لوئے ورځے (یعنی قیامت) د عذاب نه یریګم (دا بنکاره خبره ده چه نبی کریم صلے الله علیه وسلم معصوم دے، د اسلام او ایمان خلاف د شرک او ګناه صادریدل د دوینه ممکن نه دی مګر دلته اوړول عام اُمت ته دی، چه نبی معصوم هم د الله د عذاب نه یره لری، بیا فرمائی چه دغه عذاب داسے دے چه) د کوم سړی نه د دغه ورځے عذاب لرے کړے شو په ده الله تعالیٰ لوئے رحم او کړو او د ا (د عذاب لرے کیدل او د الله د رحمت متوجه کیدل) بنکاره کامیابی ده (په دے کښے د صفت رحمت بیان هم او شو د کوم ذکر چه د دے نه وړاندې په كَتَبَ عَلٰى نَفْسِهِ الرَّحْمَةَ : کښے راغلے دے) او (رتا سو دوی ته دا هم واوروئی چه ے انسانه) که تا ته الله تعالیٰ څۀ تکلیف (په دنیا یا آخرت کښے) او رسوی نو د دے لرے کوونکے سوا د الله تعالیٰ نه هیڅوک نیشته (که هغه غوښی لرے کوی

یائے لرے نه کړی او کړ زړ ئے او کړی او که پس) او که تا ته رد غه شان) څه نفع او رسوی ر نو دَ دے هم څوک لرے کوُونکے نیشته لکه چه بد ځائے دی: لَارَآدَّ لِفَضْلِهٖ ، ځکه چه) هغه په هرڅه پوره قدرت لرونکے دے را و دَ ذکرشوی مضمون دَ تاکید دَ پاره دا هم او فرمایئ چه) هغه الله تعالیٰ ردَ قدرت په اعتبار سره) پخپلو بندګا نو غالب او برتر دے او (دَعلم په اعتبار سره) هغه لوئے حکمت والا او پوره خبر لرونکے دے رپس دے په علم سره دَ ټولو حال پیژنی او په قدرت سره به ټولو له جمع کړی او په حکمت سره به مناسب جزاء او سزا ورکړی) تاسو ردے منکرا نو دَ رسالت ته) او وایئ چه رښئ نو دا او ښایئ چه) دَ ټولو نه لوئے شے دَ ګواهئ ورکولو دَ پاره څوک دے رچه دَ هغهٔ په ګواهئ ورکولو دَ ټولو اختلاف رفع شی ، دَ دے جواب ښکاره دے چه دا به وی چه الله تعالیٰ دَ ټولو نه لوئے دے بیا) تاسو او وایئ چه ځما او ستاسو په مینځ کښے رپه کومه مسئله کښے چه اختلاف دے په دے کښے هغه) الله تعالیٰ ګواه دے رچه دَ هغهٔ ګواهی دَ ټولو نه زیاته دَ ۀ) او ردَ هغهٔ ګواهی داده چه) ماته دا قرآن په طور دَ وحی ردَ الله تعالیٰ دَ طرف نه) را لیګلے شوے دے دَ دے دَ پاره چه زهٔ دَ دے قرآن په ذریعه تاسو ته او څانه چه دا قرآن او رسی دے ټولو لره رپه دے وعدو دَ عذاب سره) اُویرَ ؤم رکوم چه دَ توحید او رسالت په انکار بانِدِ په دے کښے ذکر دی ځکه چه دَ قرآن دَ اعجاز او دَ دے دَ مثل جوړولو نه دَ ټولے دنیا عاجزه کیدل دَ الله تعالیٰ تکوینی شهادت دَ نبي کریم صلے الله علیه وسلم په رشتو نوالی بانِدِ اوشه او دَ قرآن دَ مضامینو نه ئے تشریعی شهادت اوشو) آیا تاسو ردَ دے لوئے شهادت نه پس هم کوم چه توحید لره شامل دے) دَ توحید په باره کښے په رشتیا سره به دا سے ګواهی ورکړئ چه دَ الله تعالیٰ سره دَ عبادت په لائقوالی کښے) څهٔ بد معبود هم رشریک) دے - را و که دوی دَ ضد دَ وجه نه دا هم او وائی چه هاں مونږ دا ګواهی ورکوُو نو دغه وخت بیا دَ دوی سره بحث کول فضول دی ، بلکه صرف) تا سو ردَ خپلے عقیدے ظاهر دَ لو دَ پاره) او وایئ چه زهٔ خو دَ دے ګواهی نه ورکوُم او بے شکه

زهٔ ستاسو دَ شرک نه ویزاره یَم (او ستا دَرِسالت په باره کښې چه کوم داخلق
وائي چه مونږ دَ یهود او نصاراؤ نه تپوس اوکړو او مُونږ لیدل، نو دَ دې معاملې
تحقیق دا دے چه) کومو خلقو لره مونږ کتاب (تورات او انجیل) ورکړے دے
هغه ټول خلق رسول (صلے الله علیه وسلم) لره (داسے) پیژنی لکه څنګه
چه خپلو ځامنو لره پیژنی (لیکن کله چه دَ لوئے شهادت په موجودګئ کښې دَ
اهلِ کتابو دَ شهادت ضرورت نیشتے نو که دا نه وی نو دَ دینه هم دلیل
نه شی نیوے او دَ داسے لوئے شهادت په موجودګئ کښې هم) کومو خلقو
چه خپل ځان لره ضائع کړے دے دوی به ایمان را نه وړی (عقل لره دَ ضائع
کولو مطلب دا دے چه دا ئے بے کاره کړو دَ عقل نه ئے کار وا نهٔ خستو)
دَ دهٔ نه به ظالم زیات څوک وی چه په الله دروغ جوړ کړی، یا دَ الله تعالیٰ
آیاتونو لره دروغژن کړی دَ داسے بے انصافو (حال به دا وی چه) دوی لره
به (دَ قیامت په ورځ) خلاصے نه وی (بلکه په دائمی عذاب کښې به ګرفتار وی)۔

## مَعلومَات او مَسَئلے

په تیرو آیاتونو کښې دَ الله جلّ شانهٔ دَ کامل قدرت ذکر ئے اوکړو په
دهٔ دَ ایمان راوړو او دَ شرک نه دَ ځان ساتلو حکم ئے ورکړے وه په ذکر
شوِو آیاتونو کښې په اولنی آیت کښې ئے دَ دے حکم په خلاف ورزئ کَوَلو
دَ عذاب یو خاص انداز بیان کړے دے، چه نبی کریم صلے الله علیه وسلم ته
حکم ورکړے شو، چه تهٔ خلقو ته اووایه چه که فرض کړه زهٔ هم دَ خپل
ربّ دَ حکم خلاف اوکړم نو ما له هم په قیامت کښې دَ عذاب یره ده دا ښکاره
خبره ده چه نبی کریم صلے الله علیه وسلم دَ هر ګناه نه معصوم دے، دَ دوی
نه نافرمانئ دَ سره نه شی کیدے، لیکن دوی ته ئے په نِسبت کولو سره امّت ته
دا خودل مقصود دی چه دَ دے حکم په خلاف ورزئ کولو بانې چه هر کله
دَ انبیاؤ نبیؑ لره نه شی معاف کولے نو دَ بل څهٔ مجال دے۔

دَ دے نه پس فرمائی: مَنْ يُصْرَفْ عَنْهُ يَوْمَئِذٍ فَقَدْ رَحِمَهُ : یعنی دَ محشر
دَ ورځ عذاب ډیر هیبتناک او سخت دے. دَ کوم سړی نه چه دا عذاب

لوے کوے شو نو پوهه شئ چه په دهٔ د الله لوئے رحمت او شو: وَذٰلِكَ الْفَوْزُ الْمُبِيْنُ . يعنى دا لويه او ښکاره کاميابى ده. دلته د کاميابۍ نه مراد جنت ته داخليدل دى. دا دے نه معلومه شوه چه د عذاب نه خلاصے او د جنت داخله لازم او ملزوم دى.

په دويم آيت کښے د اسلام د يوے بنيادى عقيدے بيان شوے دے چه د هر نفع او نقصان مالک په حقيقت کښے صرف الله جلّ شانهٗ دے، حيثوک چه ته د حقيقت په اعتبار سره نه څهٔ معمولى شان نفع رسولے شى او نه څهٔ معمولى شان نقصان، او په ظاهر کښے چه چا ته د چا د لاس نه نفع يا نقصان رسيدل ښکاريږى دا صرف يو ظاهرى صورت او د حقيقت په وړاندې د يوے پردے نه زياتى هيڅ حقيقت نه لرى ؎

کارِ زلفِ تست مشک افشانی اما عاشقاں

مصلحت را تہمتے برآہوئے چیں بستہ اند

(د مشکو خوشبو چه په جهان کښے خوريږى نو دا ستا د زلفو خوشبو ده خو عاشقان د څه مصلحت په وجه د تهمت د چين په هوسئ باندې لګوى).

دا عقيده د هم د اسلام د هغه انقلابى عقيدو نه ده کومے چه مسلمانانو لره د ټول مخلوق نه بے حاجته او صرف د خالق حاجتمند ئے جوړ کړل د دوى يو د بے مثاله ټولے تے تيار کړو چه په لوګه تنده او تنګدستئ کښے هم په ټوله دنيا خوارد شوى د چا په وړاندې سر خکته کول ئے نهٔ پيژندل ؎

فقر میں بھی سر بسر فخر و غرور و ناز ہوں

کس کا نیاز مند ہوں سب سے جو بے نیاز ہوں

(په فقيرئ کښے هم د مالدارو نه کم نه يم که دے فخر غرور او ناز کوى زهٔ هم کوم ځکه هيچا ته حاجت نيشته نو زهٔ د چا حاجتمند کيدے نه شم).

په قرآن مجيد کښے ځائے په ځائے دا مضمون په مختلفو عنوانانو سره بيان شوے دے. په يو آيت کښے ارشاد دے:

| | |
|---|---|
| مَا يَفْتَحِ اللّٰهُ لِلنَّاسِ مِنْ رَّحْمَةٍ فَلَا مُمْسِكَ لَهَا وَمَا يُمْسِكْ | يعنى الله تعالىٰ چه کوم رحمت د خلقو د پاره اوسيږى د دے څوک بند د ونکے نيشته |

فَلَا مُرْسِلَ لَهٗ مِنْۢ بَعْدِهٖ ۔

او په چا چه بند کړی څوک ئې سپړ دونکې نیشته"

په صحیح حدیث کښې دی چه نبی کریم صلے الله علیه وسلّم به په خپلو دعاګانو کښې اکثر دا سے فرمائیل:

اَللّٰهُمَّ لَا مَانِعَ لِمَا اَعْطَیْتَ وَلَا مُعْطِیَ لِمَا مَنَعْتَ وَلَا یَنْفَعُ ذَا الْجَدِّ مِنْكَ الْجَدُّ ۔

" یعنی اے الله څه چه ته ورکوے دَ هغې منع کوونکے هیڅوک نیشته، او څهٔ چه ته منع کوے دَ هغې څوک ورکوونکے نیشته، او دَ یو کوشش کوونکی کوشش ستا په مقابله کښې نفع نه شی ورکولے"۔

امام بغویؒ دَ دے ایت لاندِ دَ حضرت عبد الله بن عباسؓ نه نقل کړے دے چه یو وارے نبی کریم صلے الله علیه وسلم په یوه سوارلئ سور شوا و څهٔ ئے خپلے شا ته (ردِیف) جوړ کړم، دَ څهٔ ځائے یورے دَ تلو نه پس ما ته متوجه شو او ئے فرمائیل چه اے هلکه! ما عرض او کړو چه حاضریم څهٔ حکم دے؟ دوئ او فرمائیل چه ته الله یاد دَ وه! الله به تا یا دساتی، چه ته الله تعالیٰ لره یاد ساتے نو ته به هغهٔ لره په هر حال کښې په خپل مخ کښې موے۔ ته دَ امن عافیت او خوشحالئ په وخت کښې الله تعالیٰ لره او پیژنه، نو ستا دَ مصیبت په وخت کښې به الله تعالیٰ تا لوه او پیژنی، کله چه ته څه غواړے نو صرف دَ الله تعالیٰ نه ئے غواړه۔ او چه مد د غواړے نو صرف دَ الله نه مد د غواړه۔ هر څهٔ چه په دُنیا کښې کیدُونکی دی دَ تقدیر قلم هغه لیکلی دی، که ټول مخلوقات یو ځائے شی او دَ دے کوشش او کړی چه تا ته څهٔ داسے نفع او رسوی چه الله تعالیٰ ستا په حصه کښې نه وی راوستے نو دوی هرګز دغه نفع تا ته نه شی رسولے۔ او که دوی ټول یو ځائے شی دَ دے کوشش او کړی چه تا ته داسے نقصان اورسوی چه ستا په قسمت کښې نه وی نو هرګز به په دے قدرت بیا نه مومی۔ که ته کولے شے چه دَ یقین سره په صبر عمل او کړے نو داسے خامخا کوه، که په دے قدرت نه لرے نو صبر کوه ځکه چه په داسے څیزونو چه ستا طبیعت ئے نه غواړی صبر کولو کښې لوئے خیر او برکت دے۔ او ښهٔ پوهه شه چه دَ الله تعالیٰ مد د دَ صبر سره دے، او دَ مصیبت سره راحت او دَ تنګئ سره فراخی ده۔ (دا حدیث په ترمذی، و مسند احمد کښې په صحیح سند سره ذکر دے)۔

افسوس دے چه دَ قرآن دَ دے واضح اعلان او دَ نبی کریم صلے الله علیه وسلّم دَ ټول عمر دَ تعلیماتو با وجود دا اُمّت بیا په دے معامله کښے بے لارے شو۔ ټول دَ خدائے پاک اختیارات ئے په مخلوق تقسیم کړه۔ نن دَ دا سے مسلمانانو ډیر لوئے شمار دے چه دَ مصیبت په وخت کښے دَ خدائے تعالیٰ په ځائے دَ مختلفو پیرانو فقیرانو نوم ونه اخلی شکرانے ورکوی او مدد ترې غواړی، خدائے تعالیٰ ته ئے هډو فکر نه وی، دَ انبیاؤ او اولیاؤ په وسیله سره دُعا غوختل بله خبره ده او جائز دی، او پخپله دَ نبی کریم صلے الله علیه وسلم په تعلیماتو کښے دَ دے ګواهئ موجود دے دی۔ لیکن نیغ په نیغه چا مخلوق لره دَ حاجت پوره کولو دَ پاره دا بلل او دَ دوئ نه خپل حاجتونه غوښتل دَ قرآن دَ دے حُکم خلاف ښکاره بغاوت دے۔ الله تعالیٰ دِ مونږ ټول مسلمانان په صراطِ مستقیم برابر او قائم لری۔

دَ آیت په آخر کښے فرمائی: وَهُوَ الْقَاهِرُ فَوْقَ عِبَادِهِ ۚ وَهُوَ الْحَكِيمُ الْخَبِيرُ؛ یعنی خاص الله تعالیٰ په خپلو ټولو بندګانو غالب او قادر دے او ټول دَ دهٔ دَ قدرت لاندِ او محتاج دی۔ دغه وجه ده چه دَ دُنیا دَ لوئیو نه لوئے انسان خواه دَ الله رسول او مقرّب ولے نه وی یا دَ دُنیا دَ لوئیو نه لوئے بادشاه ولے نه وی، په خپله هر یوه اراده کښے نهٔ شی کامیابیدے، او هر مراد ئے نهٔ شی پوره کیدے۔

هغهٔ حکیم هم دے چه دَ دهٔ ټول کارونه عینِ حکمت دے او هر شی لره پیژندونکے هم دے۔ په دے کښے په لفظ دَ ‹ قاهر › سره دَ الله تعالیٰ دَ کامل قدرت او په لفظ دَ ‹ حکیم › سره دَ دهٔ دَ احاطه کوُنکی علم بیان ئے اوکړو دا ئے او خوده چه ټول دَ کمال صفتونه په علم او قدرت کښے راګیر دی او الله تعالیٰ په دے دواړو کښے بے مثله دے۔

دَ پنځم آیت دَ نزول یو خاصه واقعه عامو تفسیر لیکونکو نقل کړے ده چه یو وارے دَ اهلِ مکه وفد یو وفد نبی کریم صلے الله علیه وسلم لره راغلو، او ورته ئے اوُ وے چه ته کوم دعوه کوے چه زهٔ دَ الله رسول یم په دے ستا ګواه څوک دے؟ ځکه چه مونږ دا سے یو سړے اونهٔ موندو چه ستا تصدیق کوی حال دا دے چه مونږ دَ یهودو او نصارا وُ نه دَ دے په تحقیق کښے پوره کوشش اوکړو۔

په جواب کښے دا آیت نازل شو: قُلْ اَیُّ شَیْءٍ اَکْبَرُ شَهَادَةً: یعنی ته اووایه چه د الله تعالیٰ نه زیات د چا شهادت دے - چه د هغهٔ په قبضه کښے ټول جهان او د ټولو نفع او ضرر دے، بیا تاسو اووایئ چه ځما او ستاسو په مینځ کښے الله تعالیٰ ګواه دے، او د الله تعالیٰ د ګواهئ نه مراد هغه معجزے او بنکاره آیاتونه دی چه الله تعالیٰ د نبی کریم صلی الله علیه وسلم د برحق رسول کیدو متعلق ښکاره کړی دی - په دے وجه د دے نه پس اهلِ مکه ؤ ته خطاب کوی ارشاد فرمائی: ءَاِنَّکُمْ لَتَشْهَدُوْنَ اَنَّ مَعَ اللّٰهِ اٰلِهَةً اُخْرٰی: یعنی آیا د الله تعالیٰ د دے ګواهئ نه پس هم تاسو د دے خلاف د دے خبرے ګواهی ورکوئ چه د الله تعالیٰ سره بل معبود هم شته کہ داسے وی نو تاسو یو هشئ او ستاسو انجام، زهٔ خو داسے ګواهی نه شم ورکولے: قُلْ اِنَّمَا هُوَ اِلٰهٌ وَّاحِدٌ: یعنی ته اووایه چه الله تعالیٰ یو بے مثله معبود دے د دهٔ سره هیڅوک شریک نیشته -

او ارشاد فرمائی: وَاُوْحِیَ اِلَیَّ هٰذَا الْقُرْاٰنُ لِاُنْذِرَکُمْ بِهٖ وَمَنْۢ بَلَغَ: یعنی په ما باندے په طور د وحئ سره قرآن رالیږلے شوے دے چه د دے په ذریعه زهٔ تاسو لره د الله تعالیٰ د عذاب نه اُویرَوُم، او هغه خلقو لره او یرَوُم چا ته چه تر قیامته پورے دا قرآن رسی -

د دے نه ثابته شوه چه نبی کریم صلی الله علیه وسلم خاتم النبیین او آخری پیغمبر دے او قرآن کریم د الله تعالیٰ آخری کتاب دے تر قیامته پورے د دے تعلیم او تلاوت باقی دے - او په خلقو باندے د دے تابعداری لازم ده -

حضرت سعید بن جبیرؓ فرمائی چه چا ته قرآن اورسی هغهٔ داسے شو لکه دے چه د محمد صلی الله علیه وسلم زیارت اوکړی - او په یو حدیث کښے دی چه کوم سړی ته قرآن اورسید و زهٔ د هغهٔ نذیر یم -

په دے وجه نبی کریم صلی الله علیه وسلم صحابه کرامو ته تاکید فرمائیلے دے: بَلِّغُوْا عَنِّیْ وَلَوْ اٰیَةً: یعنی ځما حکمونه او تعلیمات خلقو ته

اوډ سوئ اګو که یو ایت ولے نه وی -

او حضرت عبد الله ابن مسعودرض فرمائي چه نبی کریم صلے الله علیه وسلم فرمائیلی دی چه الله تعالیٰ دے هغه سړی لره تروتازه او صحت مند ساتي چا چه زما یوه مقاله واورید ه بیائي دے لره یاده کړه بیائے اُمت ته اوډ سوَل ، ځکه چه ډیر کرته داسے کیږی چه یو سړے په خپله د یوے خبرے په مطلب دومره نه پوهیږی څومره چه وروستو راتلونکي پرے پوهیګی کوموته چه دغه کلام ده رسولے وی -

په اخری ایت کښے د دغے خلقو د دے قول تردید دے چه مونږ د یهودو او نصاراؤ تحولونه تحقیق اوکړو هیڅوک هم ستا د رشتو والی او نبوّت ګواهی نه کوی د دے متعلق ارشاد فرمائي :- اَلَّذِيْنَ اٰتَيْنٰهُمُ الْكِتٰبَ يَعْرِفُوْنَهٗ كَمَا يَعْرِفُوْنَ اَبْنَآءَهُمْ : یعنی یهودا ونصارا لحو محمّد صلے الله علیه وسلم لره داسے پیژنی لکه خپل اولاد چه پیژنی -

وجه داده چه په تورات او انجیل کښے د نبی کریم صلے الله علیه وسلم پوره حلیه شریف ددوی اصلی وطن بیا د هجرت وطن او د دوی عادتونه او خویونه او د دوی د کارنامو داسے تفصیلی ذکر دے چه د دے نه پس د چا د څه شك شبهے ځائے نه پاتے کیږی ، بلکه یوازے د نبی کریم صلے الله علیه وسلم ذکرنه بلکه د دوی د صحابه کرامو په تفصیل سره ذکر په تورات او انجیل کښے موجود دے - په دے وجه د دے خبرے هیڅ امکان نیشتے چه کوم سړے تورات او انجیل لوَلی او ایمان پرِ لری او هغه دے نبی کریم صلے الله علیه وسلم لره نه پیژنی -

د لته الله تعالیٰ د تشبیه په موقع دا ارشاد اوفرمایه چه څنګه خلق خپلو بچو لره پیژنی ، دائے اونه فرمائید چه څنګه بچے خپل مورو پلار لره پیژنی ، وجه داده چه د مورو پلار د پیژندل خپلو بچو لره د تحولونه تفصیلی او یقینی وی ، د بچو د بدن هره حصه د مور و پلار د په وړاندِ وی - د ورکو تحوالی نه ترځوانئ پورے د دوی په لاس نواو غیره کښے پرورش موی په دے وجه دوی چه څومره خپل اولاد پیژنی هغه شی

هو مره اولاد دوی لره نه شي پيژندلے.

حضرت عبد الله بن سلام رضی الله عنه چه اوّل يهودی وه بيا مسلمان شو، حضرت فاروق اعظم رضی الله عنه د ده نه تپوس اوکړو چه الله تعالیٰ په قرآن شريف کښې خبر ورکړے دے چه تاسو خلق زموږ رسول الله صلی الله عليه وسلم داسې پيژنئ لکه خپل اولاد د دے څۀ وجه ده؟ عبد الله بن سلام رضی الله عنه اوفرمائيل چه هاں موږ نبی کريم صلی الله عليه وسلم د الله تعالیٰ په بيان کړو صفتونو سره پيژنو کوم چه الله تعالیٰ په تورات کښې نازل کړی دی، په دے وجه د دے علم موږ ته يقينی او قطعی طور سره دے، په خلاف د خپل اولاد چه په دے کښې شبه کيدے شي چه دا زموږ اولاد دے هم اوکه نه دے.

حضرت زيد بن سعنة رضی الله عنه چه د اهلِ کتابو نه دے. دۀ نبی کريم صلی الله عليه وسلم د تورات او انجيل په بيان کړو صفتونو سره پيژندلے وه. صرف يو صفت داسې وه چه د هغې تصديق دۀ ته ځکښې نه وه شوے د امتحان کولو نه پس ئې تصديق اوشو. هغه دا چه د دوی حلم به په غصه باندې غالب وی. نو دے د نبی کريم صلی الله عليه وسلم په خدمت کښې حاضر شو او تجربه ئې اوکړه نو دا صفت د حلم يعنی بُردبارئ ئې هم په دوی کښې بيا مُوند نو دغه وخت مسلمان شو.

د آيت په آخر کښې فرمائی چه دا اهلِ کتاب کوم چه نبی کريم صلی الله عليه وسلم لره په ښۀ شان سره د پيژندو باوجود نۀ مسلما نيږي دوی ځپلو لاسو نو خپل ځانونه برباد وی او په تاوان کښې پريوځی: اَلَّذِيْنَ خَسِرُوْٓا اَنْفُسَهُمْ فَهُمْ لَا يُؤْمِنُوْنَ؛

وَيَوْمَ نَحْشُرُهُمْ جَمِيْعًا ثُمَّ نَقُوْلُ لِلَّذِيْنَ

او يکومه ورځ چه موږ جمع کړو دے ټولو لره بيا به اووايو هغو خلقو ته چا چه

اَشْرَكُوْٓا اَيْنَ شُرَكَاۤؤُكُمُ الَّذِيْنَ كُنْتُمْ تَزْعُمُوْنَ ﴿۲۲﴾

شرک کړے وه کوم ځائے دی شريکان ستاسو د کومو چه تاسو دعوه کوله.

ثُمَّ لَمْ تَكُنْ فِتْنَتُهُمْ إِلَّآ أَنْ قَالُوا وَاللّٰهِ رَبِّنَا

بیا به پاتے نه شی د دوی سره څه بهانه مګر دا چه او به وائی قسم دے په الله چه زمونږ رب دے

مَا كُنَّا مُشْرِكِينَ ﴿٢٣﴾ اُنْظُرْ كَيْفَ كَذَبُوا عَلٰٓى أَنْفُسِهِمْ

نه وُو مونږ شرک کوُونکی - اوګوره څنګه دروغ وائی په خپلو ځانو نو

وَضَلَّ عَنْهُمْ مَّا كَانُوا يَفْتَرُونَ ﴿٢٤﴾ وَمِنْهُمْ مَّنْ

او ورکے شوے د دوی نه هغه خبرے چه دوی به جوړولے - او بعضے په دوی کښے

يَّسْتَمِعُ إِلَيْكَ ۚ وَجَعَلْنَا عَلٰى قُلُوبِهِمْ أَكِنَّةً أَنْ

غوږ کیدی تا ته - او مونږ د دوی په زړونو باندِ غورزولی دی پردے چه دوی

يَّفْقَهُوهُ وَفِيٓ اٰذَانِهِمْ وَقْرًا ۚ وَإِنْ يَّرَوْا كُلَّ

پوهه نه شی او په غوږو نو د دوی کښے بوُجه دی - او که اووینی ټولے

اٰيَةٍ لَّا يُؤْمِنُوا بِهَا ۚ حَتّٰٓى إِذَا جَآءُوكَ يُجَادِلُونَكَ

نښے نو هم ایمان نه راوړی په دے - تر دے چه راشی تا ته ستا سره د جګړے کولو د پاره

يَقُولُ الَّذِينَ كَفَرُوٓا إِنْ هٰذَآ إِلَّآ أَسَاطِيرُ

وائی کافران نه دی دا مګر قصے دی

الْأَوَّلِينَ ﴿٢٥﴾ وَهُمْ يَنْهَوْنَ عَنْهُ وَيَنْـَٔوْنَ عَنْهُ ۚ

د ډیرو خلقو - او دوی حلق منع کوی د دے نه او تختی د دے نه -

وَإِنْ يُّهْلِكُونَ إِلَّآ أَنْفُسَهُمْ وَمَا يَشْعُرُونَ ﴿٢٦﴾

او نه هلاکوی مګر خپل ځانونه او دوی نه پوهیګی -

# لنډ تفسير

### دَمشرکانو دَفلاح نهٔ موندو وَجه

او هغه وخت هم دَیادَولو قابل دے په کومه ورځ چه مونږ ټولو خلقولره (په میدان دَحشر کښې) جمع کړو، بیا به مونږ مُشرکانو ته (په واسطه یا بے واسطے په طور دَزجراو زورَنے) اووایو چه (راوښائی) ستا سو هغه شریکان دَکوم چه به تا سو دَمعبود والی دعوه کوله چرته لاړل (چه ستا سو سفارش نه کوی په کوم چه ستا سو بهروسه وه) بیا به دَدوی دَشرک انجام دَدے نه سوا بل هیڅ هم (ظاهر) نهٔ شی چه دوی به (دَدے شرک نه پښیله دَویزاره کیدو او نفرت اظهار اوکړی او په بدحواسئ کښې به) داسے اووائی قسم دے په الله چه زمونږ رب دے مونږه مشرکان نه وُو (الله تعالیٰ دَتعجب په نظر سره فرمائی) لږ اوګورئ چه څنګه (صریح) دروغ ئے اووے پښپلو ځانونو او په هغو څیزونو چه دوی به دروغو جوړَوَل (یعنی دَدوی بهتان او هغه چه دوی به دَخدائے سره شریک جوړَول) هغه ټول ورک شو (دَقرآن نه په انکار دَدوی ملامته کول وَمِنۡهُمۡ مَّنۡ يَّسۡتَمِعُ اِلَيۡكَ) او په دوی (مشرکانو) کښې بعض داسے دی چه (ستادَ قرآن لوستو په وخت کښې دَدے اَوریدو ته) ستا طرفته غوږ کوږ نه کړی (مګر دَدوی دا اَوریدل دَحق طلب کولو دَپاره نه دی بلکه محض دَتماشے یا مسخرے په نیت سره دی په دے وجه دَدے نه دوی ته هیڅ نفع نه رَسی نو) مونږه دَدوی په زړونو پردے اچولی دی دَدے نه چه دوی په دے (قرآن) باندے پوهه شی او دَدوی په غوږونو کښې بوجے دی (چه دوی ئے دَهدایت دَپاره وانه اَوری - دا خو دَدوی دَزړونو او غوږونو حالت وُه اوس دَدوی سترګو او نظر ته اوګورئ) که دغه خلق (ستا دَنبوّت دَتصدیق) ټول دلیلونه (هم) اووینی په دے هم ایمان نه راوړی او دَدوی عناد دے حد ته رسیدلے دے) تر دے چه کله دا خلق ستا خواته راځی نو ستا سره خامخا جګړه کوی (په دے شان چه) دا خلق کوم چه کافران دی داسے وائی چه دا (قرآن)

نور هيڅ نه دے صرف بے سنده خبرے دی چه د تیرو خلقونه (په نقل) را روانے دی (یعنی مذهب والا د وړاندې نه دا سے خبرے کوی چه معبودیو دے او دا چه انسان د خدائے پیغمبر کید ے شی، په قیامت کښے بیا ژوندی کیدل دی چه د دے مطلب عناد او دروغژن کول دی، وړاندې د دے نه نوره ترقی کوی جګړے ته او نورو لره د هدایت نه منع کولو ته تیاریږی) او بیا دا خلق د دے (قرآن) نه نورو خلقو لره هم منع کوی او پخپله هم رد د دے نه د نفرت ظاهرولو د پاره) لرے لرے اوسی او (په دے حرکتونو سره) دا خلق خپله تباهی کوی او (د حماقت او ډیر بغض نه) هیڅ خبر نه لری (چه مونږ د چا نقصان کوو زمونږ په دے کار سره خو د رسول او قرآن هیڅ نه ورانیږی) -

# معلومات او مسئلے

په تیرو ایت کښے دا ذکر دے چه د ظالمانو او کافرانو به فلاح نصیب نه شی په دے ذکر شوو ایاتونو کښے د دے تفصیل او تشریح ده- په اولنی او دویم ایت کښے د هغې د تهولونه لوئے امتحان ذکر دے کوم چه په محشر کښے د رب العلمین په وړاندې کیدونکے دے- ارشاد فرمائی ، وَيَوْمَ نَحْشُرُهُمْ جَمِيعًا : یعنی هغه ورځ د یاد ولو قابله ده په کومه کښے چه به مونږ دے تهولو یعنی دے مشرکانو لره او د دوی جوړ شوو معبودانو لره جمع کړو : ثُمَّ نَقُولُ أَيْنَ شُرَكَاؤُكُمُ الَّذِينَ كُنْتُمْ تَزْعُمُونَ : یعنی بیا به مونږ د دوی نه تپوس اوکړو چه تاسو کوم معبودان زمونږ حصه دار جوړ کړی وو او شریکان مو جوړ کړی وو او خپل حاجت روا مشکل کشا به مو ګڼړل نن هغه کوم ځائے دی ؟ ستاسو مدد ولے نه کوی ؟

په دے کښے د لفظ د : ثُمَّ : اختیار کړے دے چه د فراخئ او ساعت د تیرولو د پاره استعمالیږی- د دے نه معلومه شوه چه په محشر کښے به د جمع کیدو نه فورًا پس سوال جواب نه وی، بلکه د ډیرے زمانے پورے به د حیرانئ او پریشانئ په حالت کښے ولاړ وی- یوه موده پس به حساب کتاب او سوالونه شروع شی -

په یو حدیث کښې د نبي کریم صلی الله علیه وسلم ارشاد دے چه څه وخت به ستاسو څهٔ حال وی کله چه الله تعالیٰ تاسو لره په میدان د حشر کښې داسې جمع کړی لکه غشي چه په ترکش کښې جمع کولے شي او پنځوس زره کلونه به دغه شان تیرې - او په یو روایت کښې دی چه د قیامت په ورځ به یو زر کاله تول په تیاره کښې وی، د یو بل سره به خبرې هم نه شي کولے (دا روایت حاکم په مستدرک کښې او بیهقي ذکر کړے دے)

په دے روایت کښې چه کوم د پنځوسو زرو او یو زر کلونو فرق دے دا فرق د قرآن په دوه آیاتونو کښې هم ذکر دے یو ځائے ارشاد دے: كَانَ مِقْدَارُهٗ خَمْسِيْنَ اَلْفَ سَنَةٍ : یعنی د هغې ورځې مقدار به پنځوس زره کلونه وی - او بل ځائے ارشاد دے: اِنَّ يَوْمًا عِنْدَ رَبِّكَ كَاَلْفِ سَنَةٍ : یعنی یوه ورځ به ستاسو د رب سره یو زر کاله وی" او وجه د دے فرق دا ده چه دا ورځ به د سخت تکلیف او مشقت په اعتبار سره اوږده وی او د محنت او مشقت درجې به مختلف وی، په دے وجه د بعضو د پاره به دا ورځ پنځوس زره کاله او د بعضو د پاره یو زر کاله وی، په احساس کښې۔

لنډه دا ده چه په دے د تولونه په لوئے امتحان کاه کښې به اول یوه اوږده موده داسې تیریګی چه امتحان به نهٔ شروع کیږی - تر دے چه دا خلق به ارزوګانے شروع کړی چه په څهٔ جوړ دے دا امتحان او حساب زر وا غستے شی، انجام هر څهٔ چه وی دا پریشانی تردد او تکلیف خو به لرے شي دے اوګدو او دریدوا و لوئے زمانے ته د اشارے کولو د پاره ئې د لفظ د ثُمَّ سره اوفرمائیل : ثُمَّ نَقُوْلُ : - دغه شان په دویم آیت کښې چه د مشرکانو د طرف نه کوم جواب ذکر دے هغه هم د لفظ د: ثُمَّ : سره راغلے دے - د دے نه معلومه شوه چه دغه خلق به هم د ډیر وخت نه پس په ډیر غور او فکر او سوچ سمج اوکړی دا جواب به ورکړی چه ؛ وَاللّٰهِ رَبِّنَا مَا كُنَّا مُشْرِكِيْنَ : یعنی په الله رب العلمين به قسم او خوری او به وائی چه مونږ خو مشرکان نه وو۔ په دے آیت کښې ئې د دوی جواب لره په لفظ د ، فِتْنَةٌ ، سره تعبیر فرمائیلے دے او دا لفظ امتحان او آزمائش ته هم وئیلے شی، او په چا عاشق او مفتون کیدو ته هم،

او دلته دواړه معنے مراد کیدے شي، په اول صورت کښې ئے دَ دوی دَامتحا ن
جواب لره په امتحان سره تعبیر کړے دے او په دویم صورت کښې به مراد داوي
چه دا خلق په دنیا کښې په دے بتانو او دَځا ن نه په جوړ کړ و معبودا نو پاندِ عاشقا ن
وُو، خپل ځانو نه او مالونه به ئے په دوی قربانول مګر نن هغه ټول محبتونه
او عشقونه ختم شو او دَ دوی جواب بغیر دَ دے نه بل هیڅ او نه شـو
چه دَ دوی نه ئے دَ ویزارئ او جدائۍ دَعوه اوکړه۔

دَ دوی په جواب کښې یو عجیبه شے دا دے۔ چه دَ قیامت دَ میدان هیبتناک
منظرونه او دَ ربّ العٰلمین دَ کامل قدرت عجیبه او نا اشنا واقعاتو لیدو
نه پس به دَ دوی دا ذهن ورتیا ځنګه اوشي چه دَ ربّ العٰلمین په وړاندِ به
ولاړ وي او دروغ به اووائي، او هغه هم دَ دومره سختوالی سره چه
دَ هغه په لوئے ذات به قسم هم اوخوري او وائي به چه مونږه مشرکان
نه وُو۔

عام تفسیر لیکونکي دَ دے په جواب کښې فرمائي چه دَ دوی دا جواب
دَ څۀ عقل هوش او انجام لیدو په بنا باندِ نه دے، بلکه دَ ډیر هیبت
او حیرانۍ په بنا باندِ دے۔ او په داسے حالت کښې دَ بنده په خولے چه
هرڅۀ راشي وائي۔ لیکن دَ حشر دَ میدان په عامو حالاتو او واقعاتو کښې
دَ غور کولو نه پس دا هم ویلے شي۔ چه الله تعالیٰ دَ دوی پوره حالات او
اندازه لره دَ مخامخ راوستو دَپاره دوی لره دا قدرت هم ورکړی چه دوی
په ازادۍ سره څۀ غواړي اووائي لکه ځنګه چه به ئے په دُنیا کښې ویل، چه
دَ دوی دَ کفر او شرک دَ لوئے ګناه سره دا عیب هم دَ دوی دَ اهلِ محشر په
وړاندِ راشي چه دوی په دروغو ویلو کښې بے مثله دی، چه په دے هیبتناکه
موقع باندِ هم دَ دروغو نه یره نه کوي۔ دَ قرآن کریم دَ یو بل ایت: وَيَحْلِفُوْنَ
لَهٗ كَمَا يَحْلِفُوْنَ لَكُمْ؛ نه هم دے طرف ته اشاره کیدے شي۔ چه معنا ئے دا
ده چه دا خلق لکه ځنګه چه دَ مسلمانانو په وړاندِ دَ دروغو قسمو نه خوري
دغه شان به مخپله دَ ربّ لعٰلمین په وړاندِ هم دَ دروغو دَ قسمونو نه
نه په شا کیږي۔

په محشر کښې چه کله دوی دا قسمونه اوکړی دَ خپل شرک او کفر نه انکاری شي نو دغه وخت به قادر مطلق دَ دوی په خولو باندې دَ سکوت مُهر اولګوی، او دَ دوی اندامونو او لاسونو خپو ته به حکم اوکړی، چه تاسو ګواهي اوکړئ چه دے خلقو به څۀ کول. دغه وخت به ثابته شي چه نمونځ لاسو نه خپې ستر کے او غوږونه دَ الله تعالیٰ پټ پولیس وو. هغه ټول عملونه او کارونه به یو یو مخې ته راوَلی. دَ دے متعلق په سورت یٰسٓ کښې ارشاد دے: اَلْيَوْمَ نَخْتِمُ عَلٰٓى اَفْوَاهِهِمْ وَتُكَلِّمُنَآ اَيْدِيْهِمْ وَتَشْهَدُ اَرْجُلُهُمْ بِمَا كَانُوْا يَكْسِبُوْنَ؛ دَ قدرت دَ دے واقعے لیدلو نه پس به دَ هیچا نه دا زړه ورتیا اونه شي چه بیا څۀ خبره پټه کړی یا دروغ اووائی.

په قرآن کریم کښې بل ځائے ارشاد دے: وَلَا يَكْتُمُوْنَ اللّٰهَ حَدِيْثًا؛ یعنی به دغه ورځ به دوی دَ الله تعالیٰ نه څۀ خبره پټه نۀ کړے شي". دَ دے مطلب حضرت عبدالله بن عباسؓ داخودلے دے چه اوّل اوّل به دوی بنۀ دروغ اووائی او په دروغه به قسمونه اوخوری لیکن کله چه پخپله دَ دوی لاسونه او خپې دَ دوی خلاف ګواهي ورکړی نو دغه وخت به بیا دوی دَ یو ے غلطے خبر ے زړه ورتیا اونۀ کړے شي.

غرض دادے چه دَ احکم الحاکمین په دربار کښې به مجرم ته دَ خپل بیان ورکولو پوره موقع په ازادئ سره ورکړے شي، او لکه څنګه چه دَه په دنیا کښې دروغ وئیل دغه وخت به هم دَ دۀ دا اختیار دَ دۀ نه وانۀ اغستے شي ځکه چه قادر مطلق به دَ دۀ دَ دروغو پرده پخپله دَ دۀ دَ لاسو خپو په حواله سره څیری کړی.

دغه وجه ده چه دَ مرګ نه پس کوم اوّلنے امتحان په قبر کښې دَ منکر نکیر فرشتو په وړاندې وی. کوم ته چه دَ داخلے امتحان وئیلے شي. دَ دے متعلق په حدیث کښې دی چه منکر نکیر کله دَ کافر نه سوال کوی: مَنْ رَّبُّكَ وَمَا دِيْنُكَ؛ یعنی ستا رب څوک دے او ستا دین څۀ دے؟ نو کافر به اووائی: هَاهْ هَاهْ لَا اَدْرِیْ؛ یعنی هائے هائے زه په هیڅ نه پو هیږم. دَ دے په خلاف مؤمن به په: رَبِّيَ اللّٰهُ وَدِيْنِيَ الْاِسْلَامُ؛ سره جواب ورکړی. معلومیږی

چه په دے امتحان کښے به څوک دَ دروغو وئیلو زړه وَرُتیا نه شي کولے۔ که داسے نه وے نو کافرهم دغه جواب ورکولے شي کوم چه مسلمان ور کوي۔ وجه دا ده چه دَ دے امتحان اَخستونکے به فرښتے وي، دوی نه دَ غیبو علم لري او نه دَ لاسو خپو نه ګواهي اخستے شي۔ که چرته دَ دروغو وئیلو اختیار بنده ته وے نو فرښتو به دَ دهٔ دَ جواب مطابق کار کولو او نظام به وران وُو۔ په خلاف دَ میدان دَ حشر دَ امتحان نه چه هلته سوال جواب نیغ په نیغه دَ عالمُ خبیر او قادر مطلق سره به وي. هلته که څوک دروغ هم اووائي خو او به نه چلیږي۔

په تفسیر بحرِ محیط او مظهری کښے دَ بعضِ حضراتو دا قول هم نقل دے چه دَ دروغو قسمو نه خوړونکي دَ خپل شرک نه انکار کوونکي به هغه خلق وي چه په ښکاره کے چا مخلوق ته خدائے یا دَ خدائے نائب نه وئیلے۔ مګر دَ دوی عمل دا وُه چه دَ خدائي ټول اختیارات ئے په مخلوق باندِ تقسیم کړي وُو۔ او دَ دوی نه به ئے خپل حاجتونه غوښتل۔ دے خلقو به خپل ځان مشرک نه ګڼړلو۔ په دے وجه به په میدان دَ حشر کښے هم قسمو نه خوري دا به وائي چه مونږ مشرکان نه وُو۔ بیا به الله تعالیٰ دَ دوی رُسوائي ښکاره کړي۔

دویم سوال په دے آیت کښے دا کیږي، چه دَ بعضِ آیاتو نو دَ قرآن نه معلومیګي، چه الله جلّ شانهٗ به دَ کافرانو فاجرانو سره خبرے او نه کړي او دَ دے آیت نه صافه دا معلومیګي چه دَ دوی سره به خطاب او خبرے وي۔

جواب دا دے چه کلام او خبرے په طور دَ عزت او اکرام یا قبُولَوا لی دَ دُعا به نه وي دَ زجر او زورَنے دَ خبر و نفي یعني نیشتوالے په دے آیت کښے مراد نه دے۔ او دا هم وئیلے شي چه دا خبرے کومے چه په دے آیت کښے ئے ذکر دے په واسطه دَ ملائکو وي۔ او پکوم آیت کښے چه دَ الله تعالیٰ دَ خبرو نیشتوالے راغلے دے دَ دِینه مراد بے دَ واسطے نه خبرے دي۔

دَ آیت په آخر کښے ارشاد فرمائي: اُنْظُرْ كَيْفَ كَذَبُوْا عَلٰٓى اَنْفُسِهِمْ وَ ضَلَّ عَنْهُمْ مَّا كَانُوْا يَفْتَرُوْنَ: په دے کښے نبی کریم صلے الله علیه وسلّم ته خطاب

دے چه ته اوګوره چه دا خلق په خپلو ځانونو څومره دروغ وائي، او څه چه دوی په الله تعالیٰ پورے جوړ وَل هغه ټول وُرک شو - په خپلو ځانونو دَدروغو وئیلو نه مراد دا دے چه دُیال دَ دے دروغو وئیلو په دوی با ندِ پورے وتړُونکے دے - او دَ دروغو نه مراد دا هم کیدے شی چه په دنیا کښے دَ دوی دَ الله سره شریک او حصّه دار جوړ وَل یو دروغ وُو - نن حقیقت ښکاره شو دَ دوی دَ دروغو نه پرده پورته شوه - او دا هم کیدے شی چه دَ دے اِفتراء نه مراد دَ دروغو قسم دے کوم چه په محشر کښے خوړے شی بیا به دَ لاسو خپو او اندامونو په ګواهئ هغه دروغ ښکاره شی -

او بعض تفسیر لیکونکی حضرات فرمائی چه دَ افتراء نه مراد دَ مشرکانو هغه تاویلونه دی کوم چه به ئے دَ خپلو باطلو معبودانو په باره کښے په دنیا کښے کول مثلاً : مَا نَعْبُدُهُمْ اِلَّا لِيُقَرِّبُوْنَآ اِلَى اللّٰهِ زُلْفٰى : "یعنی مونږ دَ دے بتانو عبادت په دے نه کوُو چه خدایان ئے ګڼو بلکه په دے وجه کوُو چه الله تعالیٰ ته به زمونږه سفارش اوکړی مونږ به ورته نږدے کړی" په محشر کښے دَ دوی دا دروغ دا سے ښکاره شو چه دَ ټولو نه دَ لوئے مصیبت په وخت کښے نه چا دَ دوی سفارش اوکړو او نه ئے په عذاب کښے دَ کمی څه ذریعه جوړه شوه -

دلته یو سوال دا دے، چه دَ دے ائیت نه خو دا معلومیګی چه څه وخت دا سوال جواب وی باطل معبودان به ټول غائب وی یو به هم مخامخ نه وی - او دَ قرآن مجید په یو ائیت کښے ارشاد دے : اُحْشُرُوا الَّذِيْنَ ظَلَمُوْا وَاَزْوَاجَهُمْ وَمَا كَانُوْا يَعْبُدُوْنَ : "یعنی په قیامت کښے به دَ الله تعالیٰ حکم دا وی چه جمع کړئ ظالمانو لره او دَ دوی ملګرو لره او هغو لره چه دے خلقو ئے عبادت کولو" دَ دے نه معلومیګی چه په محشر کښے به باطل معبودان هم حاضر او موجود وی -

جواب دا دے چه په دے ائیت کښے دَ دوی دَ غائب کیدو نه مراد دا دے چه په حیثیت دَ حصّه دار او شریک یا سفارش کونکی به دوی غائب وی چه دے خلقو ته به څۀ نفع نه شی رَسَوَلے، هسے خو به حاضر او موجود وی - دغه شان په دواړو ایاتونو کښے څۀ تعارض پاتے نه شو - او دا هم

کیدے شي چه په یو وخت کښې دوی تول په یو ځائے جمع کړے شي، بیا جُدا
کړے شي، او دا سوال تر دَ جدا کولو نه پس اوکړے شي-
په دے دوا یو وا یا تو نو کښې دا خبره په خصوصیت سره دَ یاد دَ ولو قابل
ده، چه الله جلّ شانهٗ مشرکا نو ته دَ حشر په هیبتناک میدان کښې
دا اختیار ورکړو چه دوی په ازادئ سره څهٔ غواړی او وائی، تر دے چه
په دروغه ئے قسم او خوړ دَ شرک نه ئے انکار او کړو، په دے کښې شاید دے
طرف ته هم اشاره ده، چه دَ دروغو وئیلو عادت یو داسے خبیث عادت دے
چه بیا نه پاتے کیږی، تر دے چه دے خلقو کوم چه په دنیا کښې دَ مسلمانانو
سره په دروغه قسمو نه خوړل دلته ئے هم خوړل او دَ خدائے دَ تول مخلوق
په وړاندې ئے رسوائي اوشوه - په دے وجه په قرآن او حدیث کښې په
دروغو وئیلو باندې دَ سخت عذاب وعده او زورَ نه راغلے ده - په قرآن کښې
ځائے په ځائے په دروغژن دَ لعنت الفاظ راغلی دی - او نبی کریم صلے الله علیه
وسلم فرمائی چه دَ دروغو نه ځان ساتئ ځکه چه دروغژن دَ فاجرانو ملګرے
دے، او دروغژن او فاجر به دوا په جهنّم ته ځی (ابن حبان فی صحیحه)
او دَ نبی کریم صلے الله علیه وسلم نه تپوس اوشو چه هغه عمل څهٔ دے چه
په هغے سره بنده دوزخ ته ځی؟ دوئ اوفرمائیل چه هغه عمل دروغ دی.
(مسند احمد)

او دَ معراج په شپه نبی کریم صلے الله علیه وسلم یو سړے اولیدو چه
دَ دهٔ دوا په دَ ښکلی ځیرَ لے شی او بیا روغو لے شی او بیا ځیرَ لے شی دغه شان
دا کار په دهٔ سره تر قیامته پورے کیږی - دوئ دَ جبرئیل امین نه تپوس اوکړو
چه دا څوک دے؟ نو هغوئ ورته اوفرمائیل چه دا دروغژن دے -
او دَ مسند احمدؒ په یو روایت کښې دی چه نبی کریم صلے الله علیه وسلم
فرمائیلی دی چه بنده تر هغه وخته پورے پوره مؤمن نه شی کیدے
تر څو پورے چه دروغ بالکل پاتے نه کړی تر دے چه په ټوقو او مذاق
کښې هم دروغ نه وائی -
دارنګې په بیهقی وغیره کښې په صحیح سند سره راغلی دی چه دَ

مسلمان په طبیعت کښے نور ناکاره خویُونه خو کیدے شي مګر خیانت او دروغ نه شي کیدے۔

او په یو حدیث کښے دي چه دروغ دَ انسان رزق کموي۔

دَ هُمْ يَنْهَوْنَ عَنْهُ: عام تفسیر لیکونکي ضحاکؒ، قتادهؒ، او دَ محمد بن حنفیه په نزد دا ایت دَ مکے دَ عامو کفارو په باره کښے نازل شوے دے کومو چه به خلق دَ قرآن آؤریدو او دَ ده دَ تابعدارئ کولو نه منع کول، او پخپله به تر هم لرے لرے اوسیدل۔ او دَ حضرت عبدالله بن عباسؓ نه دا هم نقل دے چه دا ایت دَ نبی کریم صلے الله علیه وسلم دَ تره حضرت ابوطالب او نورو هغو ترونو متعلق دے کوموچه به خلق دوئ ته دَ آزار دَ رسولو نه منع کول او دَ دوئ مرسته به ئے کوله، مګر نه به ئے په قرآن ایمان راؤړو او نه به ئے پرے عمل کولو۔ په دے صورت کښے به دَ: يَنْهَوْنَ عَنْهُ: ضمیر دَ قرآن په ځائے نبی کریم صلے الله علیه وسلم ته راجع وي۔ (مظهري په روایت دَ ابن ابی حاتم دَ سعید بن ابی هلال نه)

---

وَلَوْ تَرَىٰ إِذْ وُقِفُوا عَلَى النَّارِ فَقَالُوا يَا لَيْتَنَا

او که ته اووینے کله چه اُودَرَولے شي دوي په دوزخ باندې پس اُوبه وائي چه اے کاش

نُرَدُّ وَلَا نُكَذِّبَ بِآيَاتِ رَبِّنَا وَنَكُونَ

مونږ بیا اولیږلے شوے او دروغژن نه کړے مونږ ایاتو نه دَ رب خپل او شو مونږ

مِنَ الْمُؤْمِنِينَ ﴿٢٧﴾ بَلْ بَدَا لَهُمْ مَا كَانُوا

دَ ایماندارو نه - نه ده داسے بلکه ښکاره شوه دوی ته هغه چه دوی

يُخْفُونَ مِنْ قَبْلُ ۖ وَلَوْ رُدُّوا لَعَادُوا لِمَا

پټول له دَ مخکښے نه - او که بیا اولیږلے شي نو بیا به هم هغه کار کوي دَ کوم نه

نُهُوْا عَنْهُ وَاِنَّهُمْ لَكٰذِبُوْنَ ﴿۲۸﴾ وَقَالُوْٓا اِنْ

چه منع کړی شوی وُو او دوی بے‌شکه دروغژن دی - او وائی زمونږ دپاره ژوند

هِیَ اِلَّا حَیَاتُنَا الدُّنْیَا وَمَا نَحْنُ بِمَبْعُوْثِیْنَ ﴿۲۹﴾

نیشته مګر دا د دُنیا دے او نه یُو مونږ بیا ژوندی کیدُونکی -

وَلَوْ تَرٰٓی اِذْ وُقِفُوْا عَلٰی رَبِّهِمْ قَالَ اَلَیْسَ هٰذَا

او کاش چه ته او وینے کله چه دوی اُودروَلے شی دَ خپل ربّ په وړاندې - او به فرمائی چه آیا دا

بِالْحَقِّ قَالُوْا بَلٰی وَرَبِّنَا قَالَ فَذُوْقُوا الْعَذَابَ

رښتیا نه دی؟ او به وائی دوی ولے نه، قسم دے زمونږ په ربّ - اُو به فرمائی نو اوڅکئ عذاب په

بِمَا كُنْتُمْ تَكْفُرُوْنَ ﴿۳۰﴾ قَدْ خَسِرَ الَّذِیْنَ

بدله کښے دَ خپل کفر کولو - تباه شو هغه خلق چاچه

كَذَّبُوْا بِلِقَآءِ اللّٰهِ حَتّٰٓی اِذَا جَآءَتْهُمُ السَّاعَةُ

دروغ اوګڼل ملاویدل دَ ربّ - تر دے چه کله راشی په دوی قیامت

بَغْتَةً قَالُوْا یٰحَسْرَتَنَا عَلٰی مَا فَرَّطْنَا فِیْهَا

ناڅاپه نو او به وائی اے افسوس! څومره کوتاهی مونږ اوکړه په دے کښے

وَهُمْ یَحْمِلُوْنَ اَوْزَارَهُمْ عَلٰی ظُهُوْرِهِمْ

او پورته به کړی دوی خپل بوجه په خپلو شاګانو -

اَلَا سَآءَ مَا یَزِرُوْنَ ﴿۳۱﴾ وَمَا الْحَیٰوةُ الدُّنْیَا

خبردار نا کاره بوجه دے کوم چه دوی اوچتوی - او نه دے ژوند د دُنیا

ع ۹

إِلَّا لَعِبٌ وَّلَهْوٌ ۖ وَلَلدَّارُ الْآخِرَةُ خَيْرٌ لِّلَّذِينَ

مګر لوبې او عبث دی - او دَ آخرت کور غوره دے دَ پر هیزګارانو

يَتَّقُونَ ۗ أَفَلَا تَعْقِلُونَ ﴿٣٢﴾

دَ پاره - آیا تاسو نه پوهیږئ -

# لنډ تفسیر

او که تاسو (دوی لوی) هغه وخت اووینئ (نو ډیره حیبتناکه واقعه به په نظر درشي) کله چه دوی (منکرین) دَ دوزخ په خوا کینے او دَرَوَلے شي (او نزدے وی چه دوزخ ته ئے واچوی) نو (په زړګو نو آرزوګانو سره) به او وائي چه افسوس څه ښه خبره به وی چه که موږ بیا (دُنیا ته) او لیږلے شو او که داسے اوشي نو موږ به (بیا) دَ خپل رب آیاتو نه (لکه قرآن وغیره) چرته دروغژن نه کړو او موږ به (خامخا) دَ ایماند ارو نه شو (الله تعالیٰ فرمائي چه دَ دوی دا آرزو او وعده رښتونے قصد او اراده دَ حکم منلو نه ده) بلکه (دا وخت په یو مصیبت کینے نختي دی چه) کوم شي لره چه دَ دینه وړاندے (په دنیا کینے) پټاوه هغه اوس دَ دوی په مخ کینے راغلے دے (مراد دَ دے څیز نه دَ آخرت عذاب دے چه په دنیا کینے دَ کفر او نا فرمانئ په وجه ئے دَ دوی سره وعده کیده - او دَ پټولو نه مراد انکار دے - مطلب دا دے چه دا وخت دوی عذاب وینی په دے وجه دَ ځان خلاصولو دَ پاره دا تولے وعدے کوی او په زړه و نو کینے ئے هرګز دَ وعدے پوره کولو اراده نیشته تر دے چه) که (بالفرض) دا خلق بیا واپس او لیږلے شي نو هم به هغه کار کوی دَ کوم نه چه دوی منع کړی شوی وُو (یعنی کفر او نا فرمانی) او یقیناً دوی (په دغه وعده کینے) بالکل دروغژن دی (یعنی نه ئے دا وخت دَ وعدے پوره کولو قصد شته او نه که دنیا ته لاړ شي نو دَ وعدے پوره کولو احتمال تر شته) او دوی (منکرین) دا ئي چه ژوند

بل یو هم نیشتے صرف دا دَ دُنیا ژوند دے او مونږ به رَ دے ژوند دَ ختمیدو نه پس بیا) ژوندی نه کړے شو (لکه پیغمبران چه فرمائی) او که تا سو (دوی لوه) هغه وخت اووینئ (نو ډیره عجیبه واقعه به اووینئ) کله چه دوی دَ خپل رب په وړاندِ دَ حساب دَ پاره او دَرَوَلے شی او الله تعالیٰ دوی ته او فرمائی چه (اُووایئ) آیا دا (دَ قیامت ورځ دوباره ژوندی کیدل) واقعی کار نه دے؟ دوی به اووائی چه بے شکه (روا قعی دے) قسم دے په خپل ربّ الله تعالیٰ به او فرمائی نو اوس دَ خپل کفر مزه او څکئ (دَ دے نه پس به دوزخ ته اولیګلے شی) بے شکه په (رسختہ) خساره کښے پریوَ اته هغه خلق چا چه دَ الله تعالیٰ سره مِلاویدل (یعنی دَ قیامت په ورځ ژوندی کیدل او دَ خدائے په وړاندِ پیش کیدل) دروغژن کړل را او دا دروغژن کول به لږے درِےَ دی) تردے چه کله هغه په مقرروخت (یعنی دَ قیامت ورځ دَ خپلو مقدماتو سره) په دوی ناڅاپه (ربے دَ اطلاع نه) راشی (دغه وخت به دَ دوی ټولے دعوے او دروغژن کول ختم شی او) دوی به اووائی هائے افسوس دے زمونږ په کوتاهئ (او غفلت) چه دَ دے (قیامت) په باره کښے (زمونږ نه) اوشوه او حالت به دَ دوی دا وی چه دوی به خپل (دَ کفر او نافرمانئ) بار په خپله شا بار کړے وی بنئ وا وَرئ چه نا کاره به وی هغه شے کوم چه دوی په خپله شا بار کړے وی او دَ دُنیا ژوند نور هیڅ نه دے بغیر دَ لوبو او عبثو نه (په وجه دَ دے چه غیر نافع او غیر باقی پاتے کیدونکے دے) او بیا دَ آخرت کور دَ پرهیزګارانو دَ پاره غوره دے آیا تاسو سوچ نه کوئی؟ -

# مَعلومَات اومَسئلے

دَ اسلام درے بنیادی اُصول دی، توحید، رسالت، دَ آخرت عقیدہ باقی ټولے عقیدے دَ دے درے وَرِلانِدِ داخلے دی - او دا هغه اُصول دی کوم چه انسان لره دَ دهٔ دَ خپل حقیقت او دَ ژوند دَ مقصد نه خبردار کړی دَ دهٔ په ژوند کښے انقلاب راولی او دهٔ لره په یوه نیغه

او صاف لاره اُوډه وی - په دوی کښې هم په عملی طور سره دَ اٰخرت عقیده او په دے کښې دَ حساب جزاء او سزا عقیده یو داسے انقلابی عقیده ده چه دَ انسان دَ هر یو عمل رُخ یو خاص طرف ته راګرځوی. دغه وجه ده چه دَ قراٰنِ کریم ټول مضامین دَ دے درے واړو عقیدو نه ګیر چاپیره ګرځی - په ذکر شوو اٰیاتونو کښې په خصوصیت سره دَ اٰخرت دَ سوال جواب هلته دَ اوګدو سختو دَ ثواب عذاب او دَ دُنیا دَ ناپایداری حقیقت بیان شوے دے۔

په اوّلنی اٰیت کښې دَ مجرمانو انکار کوونکو دا حال بیان شوے دے چه په اٰخرت کښې هر کله دوی لره دَ دوزخ په غاړه یا ندِ او درَولے شی او دوی هغه عذاب اووینی کوم چه دَ وهم او خیال نه هم زیات هیبتناک دے نو دا آرزو به اوکړی چه کاش مونږ بیا دُنیا ته اولیږلے شوے نو مونږ به دَ خپل رب دَ را لیږلو شوو اٰیاتونو او حکمونو دروغژن کول او نه کړو بلکه مونږ به پورے ایمان راوړو ، او په مؤمنانو کښې به داخل شوی وُو۔

په دویم اٰیت کښې علیم او خبیر احکم الحاکمین دَ دوی دَ پورے دَ دے آرزو راز داسے ښکاره کړو چه ارشاد ئے اوفرمایه دا خلق لکه چه همیشه په دروغو وئیلو باندِ عادت شوی دی دوی په دے خپله خبره او آرزو کښې هم دروغژن دی او خبره دَ دے نه سوا بله نه ده چه دَ پیغمبرانو علیهم السلام په ذریعه چه کوم حقیقتو نه دوی ته راوړی شوی وُو او دے خلقو هغو لره دَ پیژنده وبا وجود محض دَ ضد یا دَ دنیا دَ لالچ په بے کاره طمع سره په دغه حقیقتو نو دَ پردے اَچولو کوشش کاوه نن هغه ټول یو یو دَ دوی مخے ته راغلل - دَ الله جلّ شانهٗ دَ یو والی او دَ کامل قدرت نښے ئے په سترګو سره اولیدے ، دَ پیغمبرانو علیهم السلام ' رشتونوالے ئے اولیدو - دَ اٰخرت دَ دوباره ژوندی کیدو مسئله چه همیشه به ترِ دوی انکار کاوه اوس دوی حقیقت اولیدو ، جزا او سزا ئے مخامخ اولیدل دوزخ ئے پخپلو سترګو اولیدو ، نو اوس دَ دوی سره دَ مخالفت څه دلیل باقی پاتے نه شو - په دے وجه اوس داسے وائی چه کاش مونږ دنیا ته واپس

کیدے شوے۔ نو مؤمنان به واپس شوی وُو۔

لیکن دَ دوی پید اکوُنکی علیم او خبیر مالک او فرمائیل چه اوس خو داسے وائی لیکن فرض کړه که دوی دوباره دنیا ته او لیږلے شی نو دوی به بیا داخپل قول او اقرار هیر کړی او بیا به هم هغه هرڅهٔ کوی کوم چه دوی محکینے کړل۔ او دَ کوم حرامو څیزونو نه چه دوی منع شوی وُو دوی به بیا هم په هغوی کښے اخته شی۔ په دے وجه دَ دوی دا وینا هم یو دروغ او فریب دے۔

دَ دوی دے قول ته دروغ وئیل دَ کار دَ انجام په لحاظ سره هُم کیدے شی۔ چه دوی کومه وعده چه اوس کوی چه که دوی دوباره دُنیا ته واپس شی نو دروغژن کول به نه کوی، مګر داسے کیدے نه شی، دوی که هلته لاړل هم خو بیا به دروغژن کول کوی، او دَ دروغژن کولو دا مطلب هم کیدے شی چه دا وخت هم چه کوم خاق دا وائی په رشتو ئے اراده سره ئے نه وائی بلکه محض دَ دے وخت دَدهٔ کولو او دَ عذاب نه دَ بچ کید و دَ پاره وائی، په زړهٔ کښے اوس هم دَ دوی اراده نیشته۔

په دریم ایت کښے چه کوم دا ارشاد فرمائی: وَقَالُوٓا اِنۡ هِیَ اِلَّا حَیَاتُنَا الدُّنۡیَا: دَ دے عطف په: عَادُوۡا: باندے دے۔ چه معنیٰ ئے دا ده چه که دوی لره دوباره هم دُنیا ته واپس کړے شی نو بیا به هم دُنیا ته په رسید و دا وائی چه مونږ خو دَ دے دُنیا دَ ژوند نه سوا بل ژوند نه منو، بس دا ژوند دے دوباره مونږ لره نه شی ژوندی کولے۔

دلته یو سوال دا کیدے شی چه کله په قیامت کښے دوباره ژوندی کیدل او بیا دَ حساب کتاب او جزا سزا نظاره په سترګو اووینی۔ نو دا څنګه ممکنه ده چه بیا دلته راشی او انکار به کوی۔

جواب دادے چه دَ انکار کولو دَ پاره دا لازمه نه ده چه په واقع کښے دوی ته دَ دے واقعاتو او حقیقتونو پته نه وی او یقین ئے پرِنه وی بلکه لکه څنګه چه نن چیرَ کفار او مجرمان په اسلامی حقیقتونو پوه ده

یقین لری او بیا هم محض دَ عنادا و ضد په وجه په انکار او دروغژن کولو بانډ قائم ولاړ دی. دغه شان به دا خلق دنیا ته دَوا پس راتلو نه پس دَ قیامت قائم کیدو او په دوباره ژوندا اودَ آخرت په ټولو حالاتو دَ پوره یقین لرلو باوجود محض دَ شرارت او عناد په وجه بیا هم دروغژن کول کوی - لکه چه قرآن کریم په دے موجوده ژوند کښے دَ بعض کفارو متعلق ارشاد فرمائی :-

| وَجَحَدُوْا بِهَا وَاسْتَيْقَنَتْهَآ اَنْفُسُهُمْ ظُلْمًا وَّ عُلُوًّا ۔ | " یعنی دا خلق زمونږ دَ ایاتو نه خو انکار کوی مګر په زړونو کښے ئے دَ دے دَ حقوالی پوره یقین دے " |
| --- | --- |

لکه چه دَ یهودو په باره کښے ئے ارشاد فرمائیلے دے چه دوی خاتم الانبیاء صلی الله علیه وسلم لره داسے پیژنی لکه خپلو ځامنو لره چه پیژنی - مګر بیا هم دَ دے سره ئے مخالفت کوی -

لنډه دا ده چه دَ کائناتو خالق په خپل اَزَلی علم سره پیژنی چه دَ دے خلقو دا دَ وینا چه که دوباره دنیا ته او لیګلے شی نو مؤمنان صالحان به شی بالکل دروغ او فریب دے - که دَ دوی دَ وینا مطابق دوباره دُنیا پیدا کړے شی او دوی پکښے پریخودے شی نو دوی به بیا هم هغه حرکتونه کوی کوم ئے چه په اولنی ژوند کښے کول -

په تفسیر مظهری کښے په حواله دَ طبرانی دا روایت دَ نبی کریم صلی الله علیه وسلم نه نقل شوے دے - چه دَ حساب کتاب په وخت کښے به الله تعالیٰ حضرت آدم علیه السلام دَ میزانِ عدل په خوا کښے او دَرَوی او به فرمائی چه دَ خپل اولاد عملونه پخپله اووینه او دَ کوم سړی نیک عملونه چه دَ دهٔ دَ ګناهونو نه یوه ذره هم زیات شی نو دهٔ لره تهٔ جنت ته رَسَولے شے - او دَ الله تعالیٰ ارشاد به او شی چه زهٔ به دَ جهنم عذاب ته صرف هغه سړے داخلوم دَ چا په باره کښے چه زهٔ پوهیګم چه که دے دوباره دنیا ته اولیګلے شی نو بیا به هم هغه حرکتونه کوی کوم چه ئے وړاندِ کول -

وَهُمْ يَحْمِلُوْنَ اَوْزَارَهُمْ : دَ حدیث په روایتونو کښے دی چه دَ قیامت په ورځ به دَ نیکو خلقو عملونه دَ دوی سورلی جوړه شی، او دَ بد کارو بد عملونه

به د دروند بوج په شکل کښې د دوی په سرونو بار کړے شي۔
دلته دا خبره په خاص طور سره د ذکر قابل ده، چه کافران او فاجران به د حشر په میدان کښې د خپل ځان بچ کولو د پاره د دروغو او بد حواسئ سره مختلفې خبرے او کړی۔ کله به په دروغه قسمونه خوری، کله به آرزو کانے کوی چه مونږ بیا دُنیا ته واپس شوے، مګر دا به هیڅوک نه وائی چه مونږ اوس ایمان راوړو او اوس به نیک عمل کوو ځکه چه حقیقت به بدیهی طور دوئ ته ښکاره شي چه د آخرت کور د عمل کور نه دے، او دا چه د ایمان صحیح والے هغه وخت وی چه ایمان په غیبیه باندې وی۔ د لیدو نه پس تصدیق خو د خپلو لیدو د عمل تصدیق وی، د خدائے او د رسول تصدیق نه وی د دے نه معلومه شوه چه د الله تعالیٰ رضاء، د دے فائده یعنی د همیشه عیش او راحت، په دنیا کښې د امن او اطمینان ژوند، او په آخرت کښې د جنت نعمتونه حاصلول صرف د دنیا د ژوند په ذریعه کیدے شي نه د دے نه وړاندې په عالم اَرواح کښې د دے حاصلول ممکن دی او نه د دے د تیریدو نه پس په عالم آخرت کښې دا حاصلیدے شي۔
د دے نه په ډاګه شوه چه د دُنیا ژوند ډیر لوئے نعمت او د ټولو نه زیات قیمتی شے دے پکوم کښې چه دا عظیم الشان سودا اخستلے شي۔
په دے وجه په اسلام کښې ځان مړ کول حرام او د مرګ دُعا یا آرزو کول منع دی۔ په دے کښې د خدائے تعالیٰ د یو لوئے نعمت ناشکری ده۔ د بعض بزرګانو په حالاتو کښې دی چه د وفات په وخت کښې د مولانا جامیؒ دا شعر د دوی په ژبه وو ے

باد و روزِ زندگی جامی نشد سیر غمت
وه چه خوش بودے که عمرِ جاودانی داشتیم

(جامی رحمة الله علیه فرمائی چه اے جامی په دے دوه ورځے ژوند ستا زړهٔ هیڅ یو نه شو ځهٔ به ښه وے که د همیشه ژوند م موندلے وے)
د دے نه دا هم په ډاګه شوه چه کوم ذکر شوو آیاتو نو په آخری آیت کښې او په نورو ډیرو قرآنی آیاتو کښې چه کوم د دنیا ژوند ته لهو لعب

فرمائیلے دے، یا په دیرو احادیثو کښې چه دَ دنیا کوم بَد والے راغلے دے - دَ دینه مراد دَ دنیا هغه لَځے او وختونه دی کوم چه دَ الله دَ ذکر او فکر نه په غفلت کښې تیر شی، ورنه کوم وخت چه دَ الله تعالیٰ په عبادت او ذکر کښې تیر یګی دَ دے برابری دَ دُنیا یو نعمت او دولت نشی کولے ؎

دن وہی دن ہے شب وہی شب ہے
جو تری یاد میں گذر جائے

(دورځ هغه ورځ او شپه هغه شپه ده، کومے چه ستا په یاد و کښې تیر شی)

په یو حدیث شریف کښې هم دَ دے تائید کیږی په کوم کښې چه ارشاد دے:

| | |
|---|---|
| اَلدُّنْیَا مَلْعُوْنٌ وَّمَلْعُوْنٌ مَّا فِیْهَا اِلَّا ذِکْرُاللهِ اَوْ عَالِمٌ اَوْ مُتَعَلِّمٌ - | " یعنی دنیا هم ملعونه ده او څه چه په دے کښې دی ټول ملعونان دی مګر دَ الله یاد او عالم یا شاګرد " |

او که په غور سره او کتے شی نو عالم او طالب علم هم په ذکرالله کښې داخلیږی، ځکه چه دَ علم نه هغه علم مراد دے کوم چه دَ الله تعالیٰ دَ رضا سبب جوړ شی - نو داسے علم اِزده کول او بل ته خودل دواړه چه ذکرالله کښې داخل دی - بلکه دَ امام جزریؒ دَ وضاحت مطابق دَ دُنیا هرهغه کار کوم چه دَ الله تعالیٰ دَ فرمانبرداریٔ یعنی دَ شریعت دَ احکامو مطابق کولے شی هغه ټول په ذکرالله کښې داخل دی - دَ دے نه معلومه شوه چه دَ دنیا دَ ټولو نه ضروری کار دَ کسبِ معاش ټولے جائزے طریقے او نور ضرورتونه چه دَ شریعت دَ حدونو نه باهر نه وی دا ټول په ذکرالله کښې داخل دی - دَ اهل وعیال، خپلوانو، دوستانو کانو ویا نوا و میلمنو وغیره دَ حقو نو اداکولو ته په صحیح احادیثو کښې صدقه او عبادت وئیلی دی -

بحرحال دَ خبرے دا شو چه په دے دنیا کښې دَ الله تعالیٰ دَ اطاعت او ذکرالله نه سِوا بل هیڅ شے دَ الله تعالیٰ په نزد غوره نښنتے - محترم استاذ حضرت مولانا انورشاه صاحب قدس سرهٔ څهٔ بنهٔ فرمائیلی دی ؎

بگذر از یادِ گل و گلبن که هیچم یاد نیست
در زمین و آسمان جز ذکر حق آباد نیست

(د گل او د گل بوټي خبرې پرېږده چه دا ځما هیڅ نه یادیږي، په زمکه او آسمان کښې بغیر د الله تعالیٰ د یاد و نه نور هیڅ شے آباد نیشته)

پخوانۍ د خبرې دا شو چه په دې دنیا کښې دا سې شے کوم چه هر یو انسان ته حاصل دے او د ټولو نه زیات قیمتي او محبوب یعنې خوږ دے، هغه د ده ژوند دے- او دا هم معلومه ده چه د هر یو انسان د ژوند یو محدود وخت دے، او دا هم معلومه ده چه د خپل ژوند صحیح حد هیچا ته معلوم نه دے چه او یا کاله به وي او که ګنټې او که یو سیکنډ مهلت به هم نه وي-

بل طرفته دا معلومه شوه چه د الله تعالیٰ د رضا بیش قیمته ځکه چه د دُنیا او د آخرت د راحتونو او خوشحالو او د همیشه آرام ضمانت دے هغه صرف د دُنیا په دے محدود ژوند کښې حاصلولے شي- او س هر یو انسان چالره چه الله تعالیٰ عقل او هوش ورکړے دے پخپله فیصله کولے شي- چه د ژوند دا محدود ساعتونه او سیکنډونه پکوم کار کښې خرچ کول پکار دي- بے شکه د عقل خواهش به دا وي چه دے قیمتي وختونو لوه د زیاتو نه زیات په هغه کار کښې خرچ کړي د کوم نه چه د الله تعالیٰ رضا حاصلیږي- باقي هغه کار کوم چه د دے ژوند د برقرار ساتلو د پاره ضروري دے هغه په قدر د ضرورت اختیار کړے شي-

په یو حدیث کښې د نبي کریم صلے الله علیه وسلم ارشاد دے:

| ٱلْكَيِّسُ مَنْ دَانَ نَفْسَهُ وَرَضِيَ بِالْكَفَافِ وَعَمِلَ لِمَا بَعْدَ الْمَوْتِ- | یعني عقل مند هغه دے چه د خپل نفس محاسبه کوي او په قدر د کفایت په معاش راضي شي او د مرګ د پس ژوند د پاره کار کوي" |
|---|---|

قَدْ نَعْلَمُ إِنَّهُ لَيَحْزُنُكَ الَّذِي يَقُولُونَ فَإِنَّهُمْ

موږ ته معلومه ده چه تا لره په غم کښے اچوي د دوی خبرې پس دوی

لَا يُكَذِّبُوْنَكَ وَلٰكِنَّ الظّٰلِمِيْنَ بِاٰيٰتِ اللّٰهِ

تا لوه نه دروغژن کوی او لیکن دا ظالمان خو دَ الله دَ ایاتو نو نه

يَجْحَدُوْنَ ﴿۳۳﴾ وَلَقَدْ كُذِّبَتْ رُسُلٌ مِّنْ قَبْلِكَ

انکار کوی - او دروغژن کړی شوی دی ډیر پیغمبران ستانه وړاندې

فَصَبَرُوْا عَلٰى مَا كُذِّبُوْا وَاُوْذُوْا حَتّٰٓى اَتٰىهُمْ

پس صبر ئے کړے دَے په دروغژن کولو او آزار رَسید لو ترد ے چه راغے دوی ته

نَصْرُنَا ۚ وَلَا مُبَدِّلَ لِكَلِمٰتِ اللّٰهِ ۚ وَلَقَدْ جَآءَكَ

مدد زمونږ - او هیڅوک نه شی بدلولے دَ الله خبرے - او تا ته دَ رَسیدلی دی

مِنْ نَّبَاِیٔ الْمُرْسَلِيْنَ ﴿۳۴﴾ وَاِنْ كَانَ كَبُرَ عَلَيْكَ

څه حالات دَ پیغمبرانو - او که په تا باندې گران وی

اِعْرَاضُهُمْ فَاِنِ اسْتَطَعْتَ اَنْ تَبْتَغِيَ نَفَقًا

دَ دوی مخ اړول، نو که ستانه کیدے شی نو او لټوه څه سُرنګ

فِي الْاَرْضِ اَوْ سُلَّمًا فِي السَّمَآءِ فَتَاْتِيَهُمْ بِاٰيَةٍ ؕ

په زمکه کښے یا څه اَنډَرْپایه په آسمان کښے بیا راوړه دوی ته څهٔ معجزه -

وَلَوْ شَآءَ اللّٰهُ لَجَمَعَهُمْ عَلَى الْهُدٰى فَلَا تَكُوْنَنَّ

او که الله غوښتلے نو جمع کړی به ئے وُو ټول په نیغه لارے پس ته مه کیږه

مِنَ الْجٰهِلِيْنَ ﴿۳۵﴾ اِنَّمَا يَسْتَجِيْبُ الَّذِيْنَ

دَ نایوهو نه - منی هغهٔ کوُم چه

يَسْمَعُوْنَ ؕ وَالْمَوْتٰى يَبْعَثُهُمُ اللّٰهُ ثُمَّ اِلَيْهِ

آوري - او مړو لره به ژوندي کړي الله بيا به د هغه طرف ته

يُرْجَعُوْنَ ﴿۳۶﴾ وَقَالُوْا لَوْ لَا نُزِّلَ عَلَيْهِ اٰيَةٌ مِّنْ رَّبِّهٖ

راوستلے شي - او وائي ولے نه نازليږي په ده څه نښه د ده د رب د طرف نه-

قُلْ اِنَّ اللّٰهَ قَادِرٌ عَلٰٓى اَنْ يُّنَزِّلَ اٰيَةً وَّلٰكِنَّ

او وايه چه د الله قدرت شته په دے خبره چه نازل کړي نښه و لکن

اَكْثَرَهُمْ لَا يَعْلَمُوْنَ ﴿۳۷﴾ وَمَا مِنْ دَآبَّةٍ فِى الْاَرْضِ

په دوي کښے اکثر نه پوهيږي - او نشته يو تلونکے په زمکه

وَلَا طٰٓئِرٍ يَّطِيْرُ بِجَنَاحَيْهِ اِلَّآ اُمَمٌ اَمْثَالُكُمْ ؕ

او نه څه مرغۍ چه الوزي په دوه ښانکو نو خپلو مګر هر يو اُمّت دے ستاسو په شان-

مَا فَرَّطْنَا فِى الْكِتٰبِ مِنْ شَىْءٍ ثُمَّ اِلٰى رَبِّهِمْ

مونږ نه دے پاتے کړے په ليکلو کښے څه شے بيا به ټول د خپل رب په وړاندې

يُحْشَرُوْنَ ﴿۳۸﴾ وَالَّذِيْنَ كَذَّبُوْا بِاٰيٰتِنَا صُمٌّ

جمع وي - او کوم چه دروغژن کوي زمونږ اياتونو لره هغه کاڼه

وَّبُكْمٌ فِى الظُّلُمٰتِ ؕ مَنْ يَّشَاِ اللّٰهُ يُضْلِلْهُ ؕ

او چاړه ګونګان دي په تيرو کښے - چا لره چه غواړي الله ګمراه ئے کړي -

وَمَنْ يَّشَاْ يَجْعَلْهُ عَلٰى صِرَاطٍ مُّسْتَقِيْمٍ ﴿۳۹﴾ قُلْ

او چا لره چه غواړي او ئے ګرځوي په نيغه لاره باندې - ته او وايه

أَرَءَيْتَكُمْ إِنْ أَتَٰكُمْ عَذَابُ اللَّهِ أَوْ أَتَتْكُمُ

اوګورئ که راشي پتاسو عذاب د الله تعالیٰ یا راشي په تاسو

السَّاعَةُ أَغَيْرَ اللَّهِ تَدْعُونَ إِنْ كُنْتُمْ صَٰدِقِينَ ﴿٤٠﴾

قیامت نو آیا د الله نه سوا بل چا لره به رابلئ- او وایئ که تاسو رشتو نی یئ-

بَلْ إِيَّاهُ تَدْعُونَ فَيَكْشِفُ مَا تَدْعُونَ إِلَيْهِ إِنْ

بلکه خاص هغهٔ لره به رابلئ پس لرې کوي به هغه مصیبت د کوم د پاره چې ئې رابلئ که

شَاءَ وَتَنْسَوْنَ مَا تُشْرِكُونَ ﴿٤١﴾

او غواړي او تاسو هیر دئ چا لره چې شریک جوړوئ-

# لنډ تفسیر

د کفارو په بې هوده خبرو نبي کریم صلی الله علیه وسلم ته تسلّي

مونږ ښهٔ پوهه یُو چې تا لره به د دوی (د کفارو) خبرې غمژن کوي پس رتهٔ غم مه کوه بلکه د دوی معامله الله تعالیٰ ته او سپاره ځکه چې) دا خلق ربنیغ په ښیغه) تا تهٔ دروغژن نه وائي لیکن دا ظالمان د الله تعالیٰ د آیاتونو نه (قصدًا) انکار کوي راکوچه په دې سره ستا دروغژن کول هم لازمیږي مګر د دوی اصل مقصود د الله د آیاتونو دروغژن کول دي- لکه چې په دوی کښې بعض مثلًا ابو جهل ددې اقرار کوونکي هم دې- او کله چې د دوی اصل مقصود د الله تعالیٰ د آیاتونو دروغژن کول دي، نو د دوی دا معامله په خپله د الله تعالیٰ سره شوه هغه به په خپله د دوی سره پوهه شي تهٔ ولې غم کوې) او د کفارو دا دروغژن کول څهٔ نوې خبره نه ده بلکه) ډیر پیغمبران چې ستا نه وړاندې راغلي دي هغوی هم دروغژن کړې شوي دي چې په دغې هغو صبر او کړو چې دوی دروغژن کړې شو او دوی ته رنګ رنګ) تکلیفونه د دې وې ستوی دي تر دې

چه زموږ امداد دوی ته اورسيد و (چه مخالف پرې مغلوب شو، تر دغه وخته
پورې دوی صبر کاوه) او (دغه شان د صبر کولو نه پس به تاته هم د الله
امداد دراورسي ځکه چه) د الله تعالیٰ خبرو (وعدو) لره څوک بدلونکې نيشته
(او د امداد وعده ستاسره شوې ده لکه فرمائي: لَاَغْلِبَنَّ اَنَا وَرُسُلِىْ) او تا ته
د پيغمبرانو بعضې قِصے (په قرآن کښې) دررسيدلې دي (په کومو سره چه د الله امداد
او د مخالفينو په اخر کښې مغلوب والے ثابتيږي، او بچو په کړے تسلیٔ دادے
چه د الله تعالیٰ وعده ده چه د اوّلنو څو ورځو د صبر کولو نه پس هغه خپلو
رسولانو ته امداد ورکوي، په کوم سره چه په دُنيا کښې هم حق غالب
کيږي او باطل مغلوب کيږي، او په اخرت کښې هم دوی ته عزت او نجات
ملاويږي، ستاسره هم دا معامله کيدونکې ده ته غم مه کوه، او د رسول
الله صلى الله عليه وسلم شفقت او محبت چونکه د ټولو انسانانو نه زيات ؤ
دوی سره د دے تسلیٔ داغو بيشتل، چه دا مشرکان که په دے موجوده
معجزو او د نبوّت په دليلونو مطمئن نه دي او ايمان پرې نه راوړي- نو
د څه قسم معجزو چه دوی مطالبه کوي هغه معجزات که واقع شي شائد چه
دوی ايمان راوړي، او په دے وجه چه د دوی کفر به ئے ليدو نو صبر يدو
به نه، نو په راتلونکو آيا تونو کښې الله تعالیٰ دا او خوده چه د خدائي حکمت
په تقاضا سره د دوی فرمائشي معجزے نه شي واقع کيدے تاسو لږ صبر
کوئ او د دوی د واقع کيدو فکر مه کوئ چنانچه فرمائي: (وَاِنْ كَانَ كَبُرَ عَلَيْكَ) او
که په تاسو (د منکرانو) د دوی مخ اړه ول (او انکار) گران وي (او په دے وجه
ستا زړه غواړي چه د دوی فرمائشي معجزے ظاهرے شي) نو که ستا دا قدرت
وي چه په زمکه کښې (د تلو) څه سرنګ يا آسمان ته (د تلو) څه اَندَرباني او
لټوے (بيا د هغې په ذريعه زمکے يا آسمان ته لاړشے د هغه ځائے نه) معجزه
(د دوی د فرمائشي معجزو) راوړے نو (غوره ده ته داسے) اوکړه (يعنی موږ ه
خو دوی دا فرمائشونه په وجه د نشتوالي د ضرورت او په مقتضا د حکمت نه
پوره کوو، که ته دا غواړے چه په څه نه څه شان دِ دوی مسلمانان شي، نو
ته پخپله د دے انتظام اوکړه) او الله ته (په تکويني طور) که منظوره وے نو دا

ټول به ئې په (تبلیغه) لاډجمع کړی وُو (لیکن چونکه دوی پخپله خپله خیګړه نه
غواړی په دے وجه تکوینًا الله تعالیٰ ته دا منظوره نه شوه، نو بیا سخا په
غوښتو به څهٔ اوشی) پس ته (دا فکر پریده او) په ناپوهانو کښې مه کیږه
(حق خبره او هدایت خو) هغه خلق قبلوی کوم چه (حق خبره د حق د طلب
کولو په اراده سره) آوری او (که د دے انکار او اعراض پوره سزا دوی ته
په دنیا کښې ملاؤ نه شی نو څهٔ اوشو آخر یوه ورځ) مړو لره به الله تعالیٰ د
قبرونو نه ژوندی راپورته کړی بیا به دوی ټول د الله طرف ته
(د حساب د پاره) راوستلے شی او دا (منکر) خلق (په عناد سره) وائی
چه که دا نبی وی نو په ده (زمونږ د فرمائشی معجزو نه) یوه معجزه ولے
نازله نه کړے شوه ته او وایه چه الله تعالیٰ لره بے شکه قدرت شته
په دے باندے چه هغه (هم د غسے) معجزه نازله کړی لیکن په دوی کښې
اکثر (د دے د انجام نه) ناخبره دی (په دے وجه دا سے درخواست کوی
او هغه انجام دا دے چه که بیا هم ایمان رانه وړی نو ټول به فورًا
هلاک کړے شی لکه دا قول د الله تعالیٰ: وَلَوْ اَنْزَلْنَا مَلَكًا لَّقُضِیَ الْاَمْرُ؛ مطلب
دا دے چه د دوی د فرمائشی معجزے ظاهر ولو ضرورت څو ځکه نیشته چه
ډیرے معجزے پوره دی؛ لکه دا قول د الله تعالیٰ: اَوَلَمْ یَكْفِهِمْ الخ؛ او دویم
یو هیڅ وجه په فرمائشی معجزه تهم ایمان نه راوړی نو د عذاب مستحق به
شی- په دے وجه د حکمت تقاضا دا ده چه د دوی فرمائشی معجزه ظاهره
نه شی- او د آیت په آخر کښې: وَلَا تَكُوْنَنَّ مِنَ الْجٰهِلِیْنَ؛ فرمائیل د محبت او
شفقت په طور دی- لفظ د جهالت په عربئ ژبه کښې د دے عام معنیٰ د پاره
هم استعمالیګی په خلاف د اردو ژبے نه، په دے وجه د دے ترجمه به لفظ د
جهل یا جهالت سره کول د ادب نه خلاف ده، په راتلونکی آیت کښې د خبردارۍ
د پاره د قیامت او د ټولو مخلوقاتو د حشر ذکر دے) او څومره قسمه جانوران
چه په ځمکه (که په وچو به دی او که په اوبو کښې) ګرځید ونکی دی او څومره
قسمونه چه د مرغو جانوران دی چه پخپلو دوه څانګو نو آلوزی په دوی
کښې یو قسم دا سے نیشته کوم چه د قیامت په ورځ به ژوندی راپورته کیدونکی

ستاسو په شان ټولی نه وی. او (اګرچه دا ټول د خپل ډیروالی په وجه بې
شماره به وی لیکن زمونږ په حساب کښې ټول لیک دی ځکه چه) مونږ په (خپل
کتاب (لوح محفوظ) کښې هیڅ شے (کوم چه د قیامته پورې کیدونکے دے
بې لیکه) نه دے پاتے کړے (اګرچه الله تعالیٰ ته د لیکلو هیڅ ضرورت نه وهٔ
د دهٔ علم ازلی او هرڅه لره ګیرَ ووُنکے کافی دے لیکن د لیکلو په ذریعه په
ضبط کښې راوستل عام فهم او پوهے ته ډیر نږدے دی) بیا (ګردے نه
پس په خپل مقرر وخت به) ټول (انسانان او ځناوران) د خپل رب مخے ته
جمع کړے شی (دوړاندے بیا نبی کریم صلے الله علیه وسلم ته د تسلّی مضمون
دے) او کوم خلق چه زمونږ آیاتونه دروغژن ګڼی دغه خو (د حق آورېدهٔ
نه) کاڼهٔ (شان) او (د حق وئیلو نه) چاړاګان (شان) کیږی (او ګړدے
په وجه سره) په قسم قسم تیرو کښې (ګرفتار) دی (ځکه چه هر یو کفر یوهٔ
تیارهٔ ده او په دوی کښې مختلف قسم کفرونه جمع دی بیا د دے اقسامو
د کفر بیا بیا مکرر کول جُدا جُدا تیرے دی) الله تعالیٰ چا لره چه غواړی
(په وجه د ضِد او د لوړ حق نه) بے لارے کوی او هغهٔ چه چا لره غواړی
(په خپل فضل سره) په نیغه لار لګوی تهٔ (دے مشرکانو ته) او وایه چه
(ربنه ده نو) دا خو او ښایئ چه که په تاسو باندِ د خدائے عذاب راشی
یا په تاسو قیامت راشی نو آیا (د دے عذاب او هیبت د قیامت د لرے
کولو د پاره به) د خدائے نه سِوا چا بل ته آواز و نه کوئ که تاسو (د
شرک په دعوه کښې) رشتونی یئ (نو پکار دی چه دغه وخت هم غیر الله
لره رااوبلئ لیکن داسے به هرګز نه وی) بلکه (دغه وخت خو) خاص هغهٔ
لره رابلئ بیا د کوم (آفت د لرے کولو د پاره چه تاسو (هغهٔ لره)
رااوبلئ که هغه او غواړی نو دغه لرے هم کړی راو که نه غواړی نو
نهٔ ئے لرے کوی) او کوم لره چه تاسو (اوس د الله) شریک جوړوئ
(دغه وخت) هغو ټولو لره هیر کړئ - (نو چه د سختے په وخت کښې
دغه خپل باطل معبودان هیرَ وئ نو په راحت کښې دوی څه پکار دی)

---

# معلومات او مسئلے

په ذکر شوو آیاتو کښې په اولنی آیت کښې چه کوم فرمائیلی دی: فَإِنَّهُمْ لَا يُكَذِّبُونَكَ: یعنی داکفار په حقیقت کښې تا نه دروغژن کوی بلکه د الله تعالیٰ آیاتو نه دروغژن کوی، د دے واقعه په تفسیر مظهری کښې په روایت د سُدّی دا سے نقل کړے ده چه یو وارے د قریشو کافرانو دوه سرداران اخنس بن شریق او ابوجهل یو ځائے شو نو اخنس د ابوجهل نه تپوس اوکړو چه اے ابوالحکم (په عربو کښې ابوجهل د ابوالحکم په نوم سره یادیدو په اسلام کښې د ده د کفر او عناد په سبب ورته ابوجهل لقب ورکړے شو) دلته مونږ دوا په یو ځائے یو څما او ستا خبرے بل دریم نه اوري ماته د محمد بن عبدالله (صلی الله علیه وسلم) متعلق خپل صحیح صحیح خیال اُوخایه چه ته ئے رشتونے ګڼړے که دروغژن.

ابوجهل په الله قسم اوخوړلو ئے وے چه بے شکه محمدؐ رشتونے دے ده په ټول عمر کښې چرته دروغ نه دی وئیلی لیکن خبره دا ده چه د قریشو د قبیلے په یو شاخ بنو قصی کښې ټولے خوبۍ جمع کیږی باقی قریش خالی پاتے کیږی نو دا مونږ څنګه برداشت کولے شو؟ جنډه د بنی قصی په لاس کښې ده په حرم کښې حاجیانو له د اوبو ورکولو اهم خدمت د دوی په لاس کښې دے، د بیت الله دربانی او د ده کُنجی د دوی په لاس کښې ده، اوس که نبوّت هم په دوی کښې اُومنلے شی نو د باقی قریشو سره به څه پاتے شی.

یو بل روایت د ناجیه ابن کعب نه نقل دے چه ابوجهل یو وارے پخپله نبی کریم صلے الله علیه وسلم ته او وے چه زمونږ په تا د دروغو هیڅ ګمان نیشتے او نه مونږ تا دروغژن ګڼو البته مونږ دغه کتاب یادین دروغژن ګڼو کوم چه تا راوړے دے (مظهری)

د دے روایتونو په بنا باندِ آیت په خپله حقیقی معنیٰ کښې هم اَغِستے شی چه دا کفار تا نه بلکه د الله آیاتو نه دروغژن کوی.

او دَدې ایت دا مطلب هم کیدې شي چه دا کفار اګرچه په ظاهره کښې تا دروغژن کوي خو په حقیقت کښې ستا دَ دروغژن کولو انجام په خپله دَالله تعالیٰ او دَ هغه دَ ایتونو دروغژن کول دي - لکه چه په حدیث کښې دي چه نبي کریم صلے الله علیه وسلم فرمائیلي دي چه کوم سړے ما ته آزار رسوي دغه په حقیقت کښې الله تعالیٰ ته دَ آزار رسولو په حکم کښې دي -

او دَ شپږم ایت: وَمَا مِنْ دَآبَّةٍ: نه معلومه شوه چه دَ قیامت په ورځ به دَ بني آدم سره ټول جانوران هم ژوندي کولے شي، او ابنِ جریرؒ، ابن ابي حاتمؒ او بیهقي دَ حضرت ابوهریرهؓ نه روایت نقل کړے دے چه دَ قیامت په ورځ به ټول جانوران ښاروي او مرغۍ هم دوباره ژوندي کولے شي، او دَ الله تعالیٰ انصاف تردے حده پورې دے چه که یو ښکرور ښاروي بے ښکره ښاروي په دُنیا کښې وهلے وي نو نن به دَ هغه بدل دَ دهٔ نه اغستے شي (دغه شان به دَ نورو جانورانو دَ یو بل سره دَ ظلم بدل اغستے شي) او کله چه دَ دوی دَ یو بل نه حقونه او دَ ظلمونو بدلے واغستے شي نو حکم به ورته او شي چه ټول خاورې شئ نو ټول جانوران به دغه وخت دَ خاورو ډیرې شي - دا به هغه وخت وي چه کافران به اووائي: یٰلَیْتَنِیْ کُنْتُ تُرٰبًا: یعني کاش چما سره هم دا معامله اوشوے او زهٔ خاورې شوے او دَ جهنم دَ عذاب نه بچ شوے -

او امام بغويؒ په یو بل روایت کښې دَ حضرت ابوهریرهؓ نه نقل کړے دے چه نبي کریم صلے الله علیه وسلم فرمائیلي دي چه دَ قیامت په ورځ به ټولو دَ حقونو خاوندانو ته دَ دوی حقونه اَدا کړے شي تردے چه دَ بے ښکرو بیزے بدل به دَ ښکرورې بیزے نه واغستے شي -

| دَ خلقو دَ حقونو انتهائي اهمیّت | دا ټولو ته معلومه ده چه جانوران دَ ځه شریعت او احکامو مکلّف نه دي، مکلّف صرف انسانان او |
|---|---|

او پیریان دی - او ښکاره خبره داده چه دَ غیر مکلف سره دَ جزاء او سزا معامله نه شی کیدے - په دے وجه علماء فرمائی چه په محشر کښے دَ جانورانو نه بدله اغستل په دے وجه نه دی چه دوی مکلف دی ، بلکه دَ ربّ العٰلمین دَ انتهائی عدل او انصاف په وجه دی - چه یو جاندار په بل جاندار څهٔ ظلم او کړی نو بدله به تړې اخستے شی' باقی دَ دوی په بل هیڅ عمل به جزا سزا نه وی - دَ دے نه معلومه شوه چه دَ الله تعالیٰ دَ مخلوق په مینځ کښے دَ حقونو او ظلمونو معامله دومره سخته ده چه غیر مکلف جانوران تړې هم نه دی آزاد مګر افسوس چه ډیر دیندار ان تړې غفلت کوی -

وَلَقَدْ اَرْسَلْنَآ اِلٰٓى اُمَمٍ مِّنْ قَبْلِكَ فَاَخَذْنٰهُمْ

او مونږ رسولان لیږلی وُو ډیرو اقتو نو ته ستا نه وړاندې بیا دوی لره او نیول مونږه

بِالْبَاْسَآءِ وَالضَّرَّآءِ لَعَلَّهُمْ يَتَضَرَّعُوْنَ ﴿۴۲﴾ فَلَوْلَآ

په سختئ کښے او په تکلیف کښے دَ دے دَ پاره چه دوی عاجزی او کړی - بیا دوی عاجزی

اِذْ جَآءَهُمْ بَاْسُنَا تَضَرَّعُوْا وَلٰكِنْ قَسَتْ قُلُوْبُهُمْ

وَلے او نه کړه هر کله چه راغے په دوی عذاب زمونږ لیکن سخت شو زړونه دَ دوی

وَزَيَّنَ لَهُمُ الشَّيْطٰنُ مَا كَانُوْا يَعْمَلُوْنَ ﴿۴۳﴾ فَلَمَّا

او ښائسته کړو دوی ته شیطان هغه کارونه چه دوی کول - بیا کله چه

نَسُوْا مَا ذُكِّرُوْا بِهٖ فَتَحْنَا عَلَيْهِمْ اَبْوَابَ كُلِّ

دوی هیر کړو هغه نصیحت لره چه دوی ته شوے وه پرانستے مونږ په دوی دروازے دَ هر

شَيْءٍ ؕ حَتّٰٓى اِذَا فَرِحُوْا بِمَآ اُوْتُوْٓا اَخَذْنٰهُمْ

شی - تر دے چه دوی خوشحاله شو په هغو څیزونو چه دوی ته ورکړے شوی وُو او نیول مونږه دوی لره

بَغۡتَةً فَاِذَا هُمۡ مُّبۡلِسُوۡنَ ﴿۴۴﴾ فَقُطِعَ دَابِرُ الۡقَوۡمِ

ناڅاپه پس دغه وخت دوی نااُمیده شو - بیا پریکړے شوے ذیلے

الَّذِيۡنَ ظَلَمُوۡا ؕ وَالۡحَمۡدُ لِلّٰهِ رَبِّ الۡعٰلَمِيۡنَ ﴿۴۵﴾

دَ دغو ظالمانو - او ټول صفتونه الله لره دی چه پالونکے دَ ټول جهان -

# لنډ تفسیر

او مونږ ستاسو نه وړاندې امتونو ته هم پیغمبران لیږلی وُو (لیکن هغوی دوی او نه منل) نو مونږ دوی په تنګسئ او بیماری سره او نیول چه دوی عاجزی اوکړی او دَ خپل کفر او ګناه نه توبه اوباسی) پس کله چه دوی ته زمونږ سزا ګانے اورسیدے دوی عاجزی ولے اونه کړه (چه جُرم ئې معاف شوے وے) لیکن دَ دوی زړونه خو (دَ سختونه) سختې شو او شیطان دَ دوی بد عملونه دَ دوی په خیال کښې (رسم دَ غسے) ښائسته کړل، بیا چه کله دغه خلقو (رسم دغسے) هغه څیزونو لره هیر کړه (او بائے کړل) دَ کوم چه دوی ته (دَ پیغبرانو دَ طرف نه) نصیحت کولے شو (یعنی ایمان او حکم منل) نو مونږ په دوی باندې (دَ عیش عشرت) دَ هرشی دروازے پرانستے تردے چه کله دوی په هغه څیزونو کوم چه دوی ته ملاؤ شوی وُو ښئه بندمسته شو (او په غفلت او سُستئ کښې دَ دوی کفر نور زیات شو دغه وخت) مونږ دوی لره ناڅاپه (بے دَ ګمان دَ عذاب نه) او نیول (او سخت عذاب پرِ مونږ نازل کړو چه ذکر ئے ځائے په ځائے په قرآن شریف کښې راغی) بیا (په دغے عذاب سره) دَ ظالمانو خلقو ذیلے کټ شوے او دَ الله تعالیٰ شکر دے چه دَ ټول عالم پروردګار دے (چه دَ داسے ظالمانو بنیاد ئے او ویستلو دَ کوم په وجه چه په دُنیا کښې بدعمل خوره شوے وه)

---

# معلومات او مسئلے

په دې ذکر شوو آیاتو نو کښې د شرک او کفر د باطل والی او د توحید ثابتولو
ذکر په یو خاص انداز کښې کړې دې، چه اول ئې د مکې د مشرکانو نه تپوس
کړې دې چه که په تاسو نن څهٔ مصیبت راشي مثلاً د الله تعالیٰ عذاب
د دنیا نه په دې دُنیا کښې راشي، یا مرګ یا د قیامت هیبتناکه هنګامه را
پورته شي نو په خپلو زړونو کښې فکر اوکړئ او اووایئ چه تاسو به
دغه وخت د ځان د مصیبت لرې کولو د پاره چا له را بلئ او د چا نه به
اُمید ساتئ چه څوک به ستاسو نه عذاب او مصیبت لرې کړي - آیا دا
د کاڼو بُتان چه پخپله تاسو جوړ کړي دي یا په مخلوق کښې څوک خلق
چه تاسو ورله د خدائۍ حیثیت ورکړې دې، دغه وخت به ستاسو
په کار راشي؟ او تاسو به دوی ته فریاد اوکړئ؟ او که صرف یو الله جل
شانهٔ به دغه وخت را بلئ؟

د دې جواب د یو هوښیار لیونکی انسان نه بغیر د دې نه نهٔ شي
کیدے کوم چه پخپله الله تعالیٰ د دوی د طرف نه ذکر کړو، چه د دې
عام مصیبت په وخت کښې د لوئیو نه لوئے مشرک هم ټول بُتان او خپل
جوړ کړی معبودان هیر وی او صرف یو الله تعالیٰ له را بلي - نو اوس
نتیجه ښکاره ده چه دا ستاسو بُتان او معبودان کوم له چه تاسو
د خدائۍ حیثیت ورکړے دے او دوی له خپل مشکل کُشا او حاجت
روا ګنړئ او وایئ، نو هرکله چه د دے لوئے مصیبت په وخت کښې ستاسو
په کار را نهٔ شي، او ستاسو هم دا زړه ورتیا او همت نه وی چه دوی د
خپل امداد د پاره را اوغواړئ، نو بیا د دوی عبادت او مشکل کشائي به
په کومه ورځ په کار راځي؟ -

دا مضمون د تیرو آیاتو نو نچوړ دے په دے کښې ئې په طور د
فرض کولو سره دا خوده چه ستاسو د کفر او شرک او نافرمانۍ په سزا
کښې په تاسو د دے دُنیا په ژوند کښې هم عذاب راتلے شي او فرض کړه

په ژوند کښې عذاب رانشي نو دَ قيامت راتلل خو يقيني دی په کوم کښې چه به دَ انسان دَ ټولو عملونو او کارونو جائزه اغستې شي او دَ جزا او سزا حکمونه به کولے شي۔

دلته دَ قيامت نه مراد خاص معلوم قيامت هم کيدے شي، او دا هم کيدے شي چه دَ لفظ دَ سَاعَةُ نه دلته دې وخت ته قيامت مراد وی کوم چه دَ هر يو انسان په مرګ باندې قائميږی لکه چه مشهوره ده: مَنْ مَّاتَ فَقَدْ قَامَتْ قِيَامَتُهٗ؛ يعنې کوم سړے چه مړشو دَ هٔ قيامت دَ هغه وخت نه قائم شو، ځکه چه دَ قيامت دَ حساب او کتاب او دلئ نمونه به په قبر او برزخ کښې مخے ته راځي۔ او دَ قيامت دَ جزا او سزا نمونے به دَ هغه ځائے نه شروع کيږی۔

لنډه دا خبره دَه چه نا فرمانی کونکو له ئې په دے ايا تونو کښې خبردارکړی دی چه دَ دے خپلے نا فرمانئ سره بے فکره کيږئ مه، کيدے شي چه دَ دے دُنيا په ژوند کښې په تاسو دَ الله تعالیٰ څخه عذاب راشي لکه چه په تيرو امتونو راغلے دے۔ او که دا هم نه وی نو بيا دَ مرګ يا قيامت نه پس حساب کتاب خو يقيني دے۔

ليکن دَ خپل ژوند محدودو وختونو او په دے کښې دَ را پيخو محدودو تجربو په بنا خو دوی دَ پيغمبرانو عليهم السلام پرَوَل او خبرَوَل يو وهمی خيزونه په خيال کښې راوستے شي او ښاته ئې اچوی۔ او خاص بيا چه دا سے حالات هم په هره زمانه کښې مخے له راځي چه ډير خلق دَ الله تعالیٰ او دَ هغهٔ دَ رسول ﷺ دَ ښکاره نافرمانو کولو باوجود بنهٔ دَ عيش ژوند تيرَوی، په دنيا کښې مال، دولت، عزت، او شوکت ورته حاصل وی۔ بوطرف ته دا ليدل بل طرف ته دَ الله تعالیٰ دَ پيغمبر ﷺ دا پرَوَل چه په نا فرمانی کونکو به عذاب راځي، کله چه دا دواړه خبرے يو ځائے کړی، او اُوګوری نو دَ دوی پهانے لټونکے طبيعت او شيطان دوی ته دا ښائی چه دَ پيغمبر دَ بنا يو هسے غولول او وهمی خيال دے۔

دَ دے خبرے دَ جواب دَ پاره په منځ کښې ذکر شوی ايا تونو کښې

الله تعالیٰ دَ تیرو امتونو واقعات او په دوی جاری کیدونکے دَ قدرت قانون بیان کړے دے، ارشاد فرمائی: وَلَقَدْ اَرْسَلْنَآ اِلٰٓى اُمَمٍ مِّنْ قَبْلِكَ فَاَخَذْنٰهُمْ بِالْبَاْسَآءِ وَالضَّرَّآءِ لَعَلَّهُمْ يَتَضَرَّعُوْنَ: یعنی مُونږ ستاسو نه وړاندِ هم خپل رسولان نورو اُمتونو طرف ته او لیګل او په دوه قسمه مُو دَ دوی امتحان واغستو، اول مو پرِ سختئ او تکلیف واچولَ چه کړ دے نه او ویریګی الله تعالیٰ طرف ته را او ګرځی، کله چه هغوی په دے کښے فیل شو او په ځائے دَ دے چه الله طرف ته راګرځیدلی وے او دَ سرکشئ نه وا پس شوی وے دوی بنهٔ په نافرمانئ او سرکشئ کښے بوُخت شو، نو اوس مونږ دَ دوی بل قسم امتحان شروع کړو او په دوی مُو دَ دُنیا دَ عیش وعشرت دروازے پرانستے او دَ دُنیا دَ ژوند متعلق مو دوی لره هر څه ورکړل، چه شاید دا خلق نعمتونه اووینی او خپل نعمت ورکونکے او احسان کوُونکے او پیژنی او په دے شان سره دوی ته خدائے را یاد شی، لیکن دوی په دے امتحان کښے هم ناکام ثابت شو- دَ خپل احسان کوُونکی او انعام کوُنکی دَ پیژندو په ځائے او دَ هغهٔ دَ شکر ادا کولو په ځائے دوی په عیش عشرت کښے داسے بوُخت شو چه دَ الله او رسول پیغامونه ئے دَ سره هیر کړل او دَ دے څو ورځو په ژوند بانِدِ مَست شو، نو په دوه قسمه آزمائش او امتحان کښے دَ فیل کیدو نه پس په دوی دَ هر قسم دلیلونه تمام شو، نو دَ الله تعالیٰ عذاب ناڅاپه او نیول او داسے ئے ورکړل چه سلسله دَ نسب ئے هم په دُنیا کښے پاتے نه شوه- دا عذاب په تیرو امتونو اکثر داسے راغے چه کله پرِ دَ آسمان نه کله دَ زمکے نه کله په بل صورت سره یو عام عذاب راغے او ټول قوم پکښے ایره شو- دَ نوح علیه السلام ټول قوم دَ اوبو داسے طوفان راګیر کړل چه دَ غرونو سرونه تر هم محفوظ پاتے نه شو- په قوم عاد دَ هوا طوفان اته ورځے مسلسل راغے چه یو تن تر هم باقی پاتے نه شو، دَ ثمود قوم دَ یو هیبتناک آواز په ذریعه سره تباه کړے شو، دَ قوم لوط علیه السلام پوره کلے اپوته کړے شو چه تر ننه پورے دَ اُردن په علاقه کښے دَ یو عجیبه قسمه اوبو په صورت کښے موجود دے،

چه یو دَ ساه خاوند چندخ، مَهی وغیره هم په کښې ژوندی نهٔ شی پاتے کیدے په دے وجه دهٔ ته بحرمیّت (یعنی مړه دریاب) وائی - او بحرِ لوط (یعنی دَ لوط علیه السلام دریاب) ورته هم وائی -

غرض دا دے چه دَ تیرو امتونو دَ نافرمانو سزا اکثر خو دَ دے مختلف قسم عذابونو په شکل کښې راغلی ده چه په یو وخت په کښې ټول قوم تباه او برباد شوے دے، او کله داسے هم شوے ده چه په ظاهر په خپل طبعی مرګ مړهٔ دی او داسے مړهٔ دی چه وړاندِ بیا دَ دوی څوک نوم اخستونکے هم نه دے پاتے شوے -

په ذکر شوی آیت کښې دا هم او خودے شوه چه دَ الله رب العٰلمین عذاب په یو قوم باندِ داسے ناڅاپه نه راځی بلکه په طور دَ خبردار کولو لږ دے لږ دے سزا ګانے نازِلَوی - چه دَ دے په ذریعه سره نیک بخته خلق دَ خپل غفلت نه واپس شی په صحیح لاره روان شی - او دا هم معلوم شوه ...... چه کوم تکلیف او مصیبت په دنیا کښې په طور دَ سزا ورکولے شی دَ دے صورت اګر چه دَ سزا وی لیکن په حقیقت کښې دا سزا نه وی بلکه دَ غفلت نه دَ بیدارولو دَ پاره وی چه داعیِ تقاضا دَ رحمت ده -

دَ قرآن کریم په یو بل آیت کښې ارشاد دے: وَ لَنُذِيقَنَّهُمْ مِّنَ الْعَذَابِ الْاَدْنٰى دُوْنَ الْعَذَابِ الْاَكْبَرِ لَعَلَّهُمْ يَرْجِعُوْنَ: یعنی مونږ دوی ته دَ لوئے عذاب ورکولو نه وړاندِ یو وړوکے عذاب او څکوو چه که دوی اوس هم حقیقت او پیژنی دَ خپلے غلطی لارے نه واپس شی -

په دے آیا تونو سره کا شبُهَ لرے شوه چه دا دُنیا خو دَ جزاء کور نه دے بلکه دَ عمل کور دے دلته خو نیک بد او خیر و شر په یو چا بری تللی شی - بلکه بدان دَ نیکانو نه بنهٔ وی - بیا په دے دُنیا کښې دَ سزا جاری کولو څهٔ مطلب دے؟ جواب ښکاره دے چه اصل جزاء او سزا خو به په هغه ورځ دَ قیامت کښې وی چه دَ هغې نوم: يَوْمُ الدِّيْنِ: یعنے دَ بدلے ورځ ده - لیکن څهٔ تکلیفونه به په طور دَ نمونے دَ عذاب، او څهٔ راحتونه په طور دَ نمونے دَ ثواب په دے دُنیا کښې هم په مقتضاء دَ رحمت سره را لیګلے شی - او بعض عارفان خو دا فرمائی،

چه دَ دنیا څومره خوند وَنه او راحتونه دي دا هم ټول نمونے دي دَ جنّت دَ راحتونو، دَ دے دَپاره چه دَ انسان دَ دے طرف ته مینه پیدا شي - او څومره تکلیفونه پریشانئ او غمونه چه په دے دُنیا کښے دي دا هم ټولے دَ اخرت دَ عذاب نمونے دي، چه انسان دَ دے نه دَ ځان بچ کولو اهتمام اوکړي، ورنه په غیر دَ څه نمونے خودَلو نهٔ یو شي ته مینه پیدا کیدے شي او نهٔ تر ے یَریدے شي -

غرض دا دے چه دَ دُنیا راحت او تکلیف په حقیقت کښے جزا او سزا نه دي بلکه دَ جزاء او سزا نمونے دي - او دا ټول دنیا دَ اخرت شوروم (یعنی دَ نمائش کمره) ده چه سوداګر په کښے دَ خپل مال نمونے دَ خودلو دَ پاره دَ دکان په مخ کښے ایښودے وي - چه دَ دے په لیدو سره دَ اخستو نکي مینه پیدا شي - معلومه شوه چه دَ دُنیا غم او راحت په حقیقت کښے جزاء او سزا نه دي بلکه دَ خالق نه دَ کټ شوي مخلوق رِشته بیا دَ خالق سره دَ تړلو یو تدبیر دے ؎

خلق را با تو چنین بد خو کنند

تا ترا ناچار، رو آن سو کنند

(مخلوق چه کله ستا سره دا سے بد خوئی را او اخلي (نو غم او تکلیف پرِ راولي) چه ناچاره شي او دوباره ستا طرف ته را اوګرځي)

په خپله دَ ذکر شوي ایت په اخر کښے هم دَ دے حکمت ذکر دے : لَعَلَّهُمْ يَتَضَرَّعُوْنَ : "یعني موږ چه په دنیا کښے په دوي کوم محنت او مصیبت اوغورزاوه دَ دے مَنشا په حقیقت کښے عذاب ورکول نه وُو بلکه دا وُو چه په مصیبت کښے په طبعي طور سره هر سړي ته خدائے یاد یګي - په دے وجه په دے محنت کښے دَ دوي غورزَول خپل طرف ته متوجّه کول وُو - دَ دے نه معلومه شوه چه په دُنیا کښے کوم تکلیف او مصیبت په طور دَ عذاب هم په چا یو کس یا ټولي با ندِ راځي په دے کښے هم په دَ الله تعالیٰ رحمت کارفرما وي -

دَ دے نه پس په دریم ایت کښے چه کوم دا ارشاد دے : فَتَحْنَا عَلَيْهِمْ

اَبْوَابَ كُلِّ شَيْءٍ: چه کله دَ دوی نا فرمانۍ دَ حد نه زیاتے شوے نو په یو خطرناک آزمائښت کښے دوی مُبتلا کړے شو چه په دوی دَ دنیا دَ نعمتونو راحتونو او کامیابو دروازے پرانستے شوے۔

په دے کښے ئے په دے باندِ عاموانسانانو لره خبردار کړل چه په دنیا کښے په یو سړی یا په یوه ډله باندِ دَ عیش عشرت دَ زیاتوالی په لید و باندِ دوکه مَه خورئ چه ګو ندِ دا خلق په نیغه لار باندِ دی او ددوی دَ کامیاب ژوند مالکان دی۔ بلکه چه یو کَرَته دا سے حالت په عذاب کښے دَ اَخته نا فرمانو هم وی، کومو لره چه ناڅا په په سخته سزا کښے نیو ل مقرر شوی وی۔

په دے وجه نبی کریم صلے الله علیه وسلم فرمائی چه کله تاسو دا اُووینئ چه په چا باندِ دَ نعمتنا و دولت باران دے، او حال دا وی چه دے په خپلو ګناهونو او نا فرمانو کښے بوخت وی، نو پوهه شئ چه دَ ده سره استدراج کیږی، یعنی دَ ده دا عیش عشرت ده لره په سخت عذاب کښے دَ نیولو یوه تمبنه ده ،رواروایت احمد دَ عقبة نه کوی، وارنډي په تفسیر ابن کثیر کښے دی)

او دَ تفسیر امام ابن جریرؒ په روایت دَ عبادة ابن صامتؓ نقل کړے دے چه نبی کریم صلے الله علیه وسلم فرمائیلی دی :-

"کله چه الله تعالیٰ یو قوم لره باقی پاتے کول او زیاتول او غواړی نو دوه صفتو نه په دوی کښے پیدا کړی یو په هر کار کښے اعتدال او میانه روی، دویم حیا او پاکدامنی، یعنی دَ خلافِ حق خیزونو دَ استعمال نه ځان ساتی، او کله چه الله تعالیٰ دَ یو قوم هلاکول او بربادول او غواړی نو په دوی باندِ دَ خیانت دروازے پرانیځی یعنی دوی دَ خپلو خیانتونو او بد عملونو با وجود په دنیا کښے کامیاب په نظر راځی"۔

په اخری ایت کښے فرمائی چه کله دَ الله تعالیٰ عام عذاب راغے نو دَ ظالمانو نسل ئے قطع کړو، او دَ دے په اخر کښے فرمائی ؟اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ رَبِّ الْعٰلَمِيْنَ: په دے کښے اشاره ده چه په مجرمانو او ظالمانو کله دَ الله تعالیٰ عذاب او مصیبت راشی نو دادَ ټول عالم دَ پاره یو نعمت دے چه په دے دَ الله شکر ادا کول پکار دی۔

قُلْ اَرَءَيْتُمْ اِنْ اَخَذَ اللّٰهُ سَمْعَكُمْ وَاَبْصَارَكُمْ

ته ووایه اوګورئ که چیرې واخلي الله ستا سو غوږونه او سترګې

وَخَتَمَ عَلٰى قُلُوْبِكُمْ مَّنْ اِلٰهٌ غَيْرُ اللّٰهِ يَاْتِيْكُمْ

او مُهر او وهي ستاسو په زړونو، نو څوک دے داسې رب د الله نه سوا چې تاسو ته به دا خیزونه

بِهٖ ۭ اُنْظُرْ كَيْفَ نُصَرِّفُ الْاٰيٰتِ ثُمَّ هُمْ يَصْدِفُوْنَ ﴿۴۶﴾

درکړي - اوګوره مونږ څنګه بیانوو آیاتونه بیا هم دوی ځان ترې غاړه کوي -

قُلْ اَرَءَيْتَكُمْ اِنْ اَتٰىكُمْ عَذَابُ اللّٰهِ بَغْتَةً

ته ووایه اوګورئ که راشي په تاسو عذاب د الله ناڅاپه

اَوْ جَهْرَةً هَلْ يُهْلَكُ اِلَّا الْقَوْمُ الظّٰلِمُوْنَ ﴿۴۷﴾

یا په ښکاره نو څوک به هلاک شي د ظالمانو نه سوا -

وَمَا نُرْسِلُ الْمُرْسَلِيْنَ اِلَّا مُبَشِّرِيْنَ وَمُنْذِرِيْنَ

او مونږ رسولان نه لیږو مګر خوشحالي او یره آورونکي

فَمَنْ اٰمَنَ وَاَصْلَحَ فَلَا خَوْفٌ عَلَيْهِمْ وَلَا هُمْ

بیا چه چا ایمان راوړو او خپله اصلاح ئے اوکړه نو نه به یره وي په دوی او نه به

يَحْزَنُوْنَ ﴿۴۸﴾ وَالَّذِيْنَ كَذَّبُوْا بِاٰيٰتِنَا يَمَسُّهُمُ

غمژن وي - او چا چه دروغژن کړل زمونږ آیاتو نو لره دوی ته به اورسي

الْعَذَابُ بِمَا كَانُوْا يَفْسُقُوْنَ ﴿۴۹﴾

عذاب ځکه چه دوی نافرماني کوله -

# لنډ تفسير

ته (ردوی ته) دا هم) اووایه چه دا او ښنایئ چه که الله تعالیٰ ستاسو د
اوړید طاقت او لیدو طاقت بالکل واخلی (چه نه بیا تاسو څه آورئ
او نه وینئ) او ستاسو په زړونو مهر او لګوی (چه په زړه سره تاسو
بیا په څهٔ نه پوهیږئ) نو د الله تعالیٰ نه سوا بل کوم معبود دے چه دا
(څیزونه) تاسو له بیا در کړی (هر کله چه ستاسو په اقرار سره هم دا سے
نهٔ ده نو بیا څنګه چا بل له د عبادت لایق ګنړئ) ته اوګوره چه مونږه
څنګه څنګه دلیلونه په مختلفو اړخونو سره ښکاره کوو (بیا هم په دے
دلیلونو کښے غور او د دے د نتیجو منلو نه) دوی ځړه کوی، ته (ردوی
ته) دا هم اووایه چه دا او ښنایئ که په تاسو د الله عذاب راشی
خواه په بے خبرئ کښے یا په خبر سره نو آیا بغیر د ظالمانو نه (به دے
عذاب سره) به بل څوک هم هلاک کړے شی (مطلب دا دے چه که
عذاب راغے هو هغه به ستاسو د ظلم په وجه په تاسو پریوځی مومنا ن
به ترینه بچ وی، په دے وجه تاسو له پوهیدل په کار دی او د دے
اُمید مه کوئ چه کو ندِ که عذاب راشی نو مونږ سره به یکښے مسلمانا ن
هم اخته شی لکه چه متل دے "مرګ انبوه جشنے دارد" یعنی د شریکے او ګډے
مرګ جشن وی، دا خبره هیره کړئ عذاب به په تاسو یواځے وی
مسلمانان به ترے بچ وی) او مونږ پیغمبرانو له (د کوم پیغمبری چه
په قطعی دلیلونو سره ثابته شوی وی) صرف په دے وجه لیګو چه
دوی (ایمان اورواو حکم منونکو ته د الله تعالیٰ د رضا او د جنت د نعمتونو
زیرے ورکړی او (کفر او نافرمانی کونکی د الله تعالیٰ د ناراضه کیدو
نه) اویره وی (په دے د پاره ئے نه لیګو چه د حجت تمامیدو نه پس بیا
هم مخالفین د عناد په وجه چه کوم اړنګ دوړنګ فرمائشونه کوی هغه
ټول پوره کړی او ښنائی) بیا (د دغے پیغمبرانو د زیری ورکولو او د
یره ولو نه پس) کوم سړے چه ایمان راوړی او (خپل حالت عقیدتا او عملاً) اصلاح

او کړی نو په دغه خلقو (په آخرت کښې) حیځ پوره نیشتې او نه به حلته ځمړن

وی او کوم خلق چه زړه ئې زیږی او یړه ولونه پس هم (زمونږ آیاتو نو

لره دروغژن کوی دوی لره به (بعض وخت په دنیا کښې ورنه په آخرت کښې

خو به خامخا) عذاب وی په وجه د دې چه دوی د ایمان د دائرې نه

باهر ته اوځی -

قُلْ لَّآ اَقُوْلُ لَكُمْ عِنْدِىْ خَزَآئِنُ اللّٰهِ وَلَآ

ته او وایه چه زۀ نه وایم تاسو ته چه ځما سره خزانې د الله دی او نه

اَعْلَمُ الْغَيْبَ وَلَآ اَقُوْلُ لَكُمْ اِنِّىْ مَلَكٌ ۚ اِنْ

زۀ په غیبو خبرو پوهیګم او نۀ وایم تاسو ته چه زۀ فرښته یم - زۀ په هغې

اَتَّبِعُ اِلَّا مَا يُوْحٰٓى اِلَىَّ ؕ قُلْ هَلْ يَسْتَوِى الْاَعْمٰى

چلیږم کوم په ماته د الله حکم راځی - ته او وایه چه کله برابریدګشی ړوند

وَالْبَصِيْرُ ؕ اَفَلَا تَتَفَكَّرُوْنَ ﴿۵۰﴾ وَاَنْذِرْ بِهِ

او لیدونکے - پس آیا تاسو غور نه کوئ - او خبردار کړه په دې

الَّذِيْنَ يَخَافُوْنَ اَنْ يُّحْشَرُوْٓا اِلٰى رَبِّهِمْ

قرآن سره هغه خلق کوم چه یریګی د دې نه چه دوی به جمع شی د خپل رب په وړاندې داسې

لَيْسَ لَهُمْ مِّنْ دُوْنِهٖ وَلِىٌّ وَّلَا شَفِيْعٌ لَّعَلَّهُمْ

چه نه به وی دوی لره د الله نه سوا نۀ څوک حمایتی او نۀ سفارشکوونکے د دې د پاره

يَتَّقُوْنَ ﴿۵۱﴾

چه دوی ځان اوساتی (د ګناه نه)

ع ۵ / ۱۰

# لنډ تفسیر

ته (دې عنادګرو خلقوته) اُووایه چه نه خو زهٔ تاسو ته دا وایم چه ځما سره دَ الله تعالیٰ ټول خزانې دي (چه څهٔ ځما نه او غوښتلے شي نو په خپل قدرت سره یې ورکوم) او نه زهٔ ټول دَ غیبو خیزونه پیژنم (کوم چه دَ الله تعالیٰ خاصه ده) او نه زهٔ تاسو ته دا وایم چه زهٔ فرښته یم زهٔ خو صرف دَ هغې وحې تابعداري کوم کومه چه ماته راځي (چه په دې کښې په مقتضاءِ وحې باندې پخپله عمل کول هم داخل دي او نورو ته دعوت ورکول هم لکه چه دَ تیرو تمامو پیغمبرانو علیهم السلام هم دا حال وُه بیا) ته دوی ته اووایه چه روند او لیدونکے چه ته برابریدے شي (او هم کله چه دا خبره ټول مَني) نو آیا تاسو (دَ سترګو خاوندان جوړیدل نه غواړئ او په دې ذکر شوي تقریر کښې) غور (کامل په قصد دَ طلب دَ حق) نه کوئے! (چه حق ښکاره شي او تاسو په لیدونکو کښې داخل شئ) او که (په دې خبرو بیا هم دوی دَ عناد نه واپس کیږي نو دوی سره بحث مباحثه بنده کړئ او ستا چه کوم اصلي کار دے (دَ رسالت تبلیغ) په دې کښې مشغول شئ او) دا سې خلقو لره (په کفر او ګناه باندې دَ خدائے دَ عذاب نه په خاص طور سره) اویرَ ویَ (کوم چه په عقیده یا کم نه کم په احتمال سره) دَ دې خبرې یره لري (چه په قیامت کښې به) دَ خپل رب مخې ته به په دا سې حالت کښې جمع کړے شي چه (دَ الله تعالیٰ نه سوا کوموکومو لره چه مدد ګاران یا سفارشیان کفارو ګڼړل دغه وخت به په دوی کښې) نه به ئې څوک مدد ګار وي او نه (مستقل) شفاعت کوونکے، شاید چه دا خلق دَ عذاب نه اُویریږي (او دَ کفر او ګناه نه واپس شي) -

# مَعلومَات اومَسَئلے

دَ عربو دَ کفارو دَ طرف نه دَ فرمائشي معجزو معانـدانه مطالبه

دَ مکې دَ کفارو په وړاندې دَ نبي کریم صلی الله علیه وسلم بې شماره معجزې

او دَ الله تعالیٰ واضح دلیلو نه ښکاره شوی وُو، دَ نبی کریم صلے الله علیه وسلم په حالت دَ یتیمۍ کښے دُنیا ته تشریف راوړل، دَ لیکلو لوستلو نه بالکل یو اُمّی پاتے کیدل، په داسے زمکه پیدا کیدل دَ کوم چه خواوشا ته هم نه څوک عالم وُه او نه علمی مرکز، دَ عمر شریف څلویښت کلو نه ئے دغه شان محض دَ اُمّی والی په حالت کښے دَ ټولو مکے والو په وړاندے تیر یدل، بیا دَ څلویښتو کلو نو نه پس ناڅاپه دَ دوی په ژبه مبارکه دَ داسے عقل حیرانوونکی حکیمانه کلام جاری کیدل دَ کوم فصاحت او بلاغت چه دَ عرب ټولو بلیغانو لره چیلنج ورکړو دَ همیشه دَ پاره ئے دَ دوی په خولویانے مُهر او لګاوه- دَ کوم چه معنے دَ حکمت نه ډکے دی او دَ قیامته پورے دَ انسانی ضرورتونو خیال پکښے ساتلے شوے دے، دَ دے سره سره ئے دَ کامل انسان دَ ژوند یو داسے عملی نظام پیش کړو کوم لره چه دَ انسان عقل او دماغ هرګز پیش کولے او جوړ وَلے نه شی، بلکه په عملی طور ئے هم په دُنیا کښے په ډیره کامیابئ سره رائج کړو اَوئے خودلو، او هغه انسان کوم چه خپل انسانیت ئے هیر کړے وُه دَ څارووښان ئے دَ خپل ژوند مقصد صرف خوراک سکاک خواب او وِیښه مقرر کړی وُو- دَوُه ته ئے دَ صحیح انسانیت سبق ورکړو، دَ دے ځنے هغه لوئے مقصد طرف ته را اُوګرځولو دَ کوم دَ پاره چه دے پیدا کړے شوے وُه- دغه شان دَ نبی کریم صلے الله علیه وسلم دَ ژوند هر دَوَر او په دے کښے مخ ته راتلونکی لوئے واقعات هر یو مستقل معجزه او دَ الله تعالیٰ دَ قدرت یوه نښه وه- چه دَ دے نه پس یو انصاف خوښوونکی هوښیار لره دَ زیاتی نښے او معجزے غوښتلو هیڅ ګنجائش باقی پاتے نه وُه-

لیکن دَ قریشو کافرانو دَ دے سره سره دَ نورو قسمو معجزو دَ خپل خواهش مطابق طلب اوکړو، دَ دوی په غوښتلو شوو معجزو کښے بعضو لره خو الله تعالیٰ خودلے هم وے، دَ سپوږمئ دوه ټکړے کولو مطالبه ئے کړے وه، دَ شق القمر معجزه نه صرف قریشو بلکه دغه وخت په دنیا کښے دَ او سیدونکو لوئے شمار په خپلو سترګو سره اولیده-

لیکن دَ دوی دَ مطالبے موافق داسے لویه عظیم الشانه معجزه ظاهر یدو سره بیا هم دوی پخپل کفر گمراهئ او ضد باندے پاتے شو۔ او دَ الله تعالیٰ دے ښکاره ښنو ته ئے : اِنْ هٰذَآ اِلَّا سِحْرٌ مُّسْتَمِرٌّ : او وے نظر اندازئے کړے۔ او دَ دے تولو څیزونو دَلیدو او په دے دَ پوهیدو باوجود په هم دَ دوی دَ طرف نه روزانه نوے مطالبه دَ معجزو دَ نبی کریم صلے الله علیه وسلم نه کیده۔ او لکه څنګه چه په تیرو آیاتو نو کښے ذکر شوے دے : لَوْلَا نُزِّلَ عَلَيْهِ اٰيَةٌ مِّنْ رَّبِّهٖ قُلْ اِنَّ اللّٰهَ قَادِرٌ عَلٰٓى اَنْ يُّنَزِّلَ اٰيَةً وَّ لٰكِنَّ اَكْثَرَهُمْ لَا يَعْلَمُوْنَ ۝ :

"یعنی دا خلق وائی چه که محمد (صلے الله علیه وسلم) رشتیا دَ الله تعالیٰ رسول وی نو دَ ده څهٔ معجزه وَلے نه ښکاره کیږی، قرآن دَ دے په جواب کښے نبی کریم صلے الله علیه وسلم ته حکم اوکړو چه ته دے خلقو ته او وایه چه دَ الله تعالیٰ په قدرت کښے هرڅهٔ شته هغهٔ چه لکه څنګه ستا سو دَ غوښتلو نه بغیر بے شماره ښکاره ښکاره معجزے نازلے کړی دی۔ دغه شان هغه ستا غوښتلے شوے معجزے هم نازلولے شی، لیکن دوی دِ پوهه شی چه په دے باره کښے دَ الله تعالیٰ عادت دادے چه کله دَ یو قوم غوښتلے شوے معجزه او ښائی او بیا هغوی په دے هم ایمان رانه وړی نو په دوی باندِ فوراً عذاب رالوستلے شی، په دے وجه دَ قوم مصلحت په دے کښے وهٔ او دے چه دَ دوی غوښتلے شوے معجزے ښکاره نه کړی، لیکن ډیر خلق چه دَ دے باریک حکمت نه بے خبره او ناپوهه دی دوی په دے پورے غلتی دی چه زمونږ غوښتلے شوے معجزه دے ښکاره کړی۔

په ذکر شوو آیاتو نو کښے دَ دے خلقو دَ داسے سوالونو او مطالبو جواب په یو خاص انداز کښے ورکړے شوے دے۔

دَ مکے کفارو دَ نبی کریم صلے الله علیه وسلّم نه په مختلفو وختونو کښے درے مطالبے کړے وے۔ اوّل دا چه که ته واقعی دَ الله تعالیٰ رسول ئے، نو دَ معجزے په ذریعه زمونږ دَ پاره دَ ټولے دُنیا خزانے جمع کړه دوئیم دا چه که ته واقعی رښتونے رسول ئے نو مونږ ته دَ راتلونکو

تو لو فائده منو او نقصاني حالاتو او د
واقعاتو پته او ښايه چه مونږ د فائده منو خيزونو د حاصلولو او د
نقصاني خيزونو نه د ځان ساتلو انتظام د اول نه اوکړو۔ درېيم دا چه مونږ
په دے نه پوهيګو چه زمونږ د قوم يو سړے چه زمونږ په شان د مور او
پلار نه پيدا اوي او د بني آدمو تول صفتونه خو پهل شکل په بازارونو
کښے ګرځيدل وغيره زمونږ پشان کوي او هغه د الله رسول جوړشي، کوا
څوک فرشته وے چه په پيدائش او صفتونو کښے زمونږ نه غوره وے نو
مونږ به هغه د الله تعالیٰ رسول او خپل پيښوا منلے وے۔

د دے درے واړو سوالونو په جواب کښے ارشاد دے: قُلْ لَّآ اَقُوْلُ لَكُمْ
عِنْدِیْ خَزَآئِنُ اللّٰهِ وَلَآ اَعْلَمُ الْغَيْبَ وَلَآ اَقُوْلُ لَكُمْ اِنِّیْ مَلَكٌ ۚ اِنْ اَتَّبِعُ
اِلَّا مَا یُوْحٰۤی اِلَیَّ : يعني رسولِ کريم صلے الله عليه وسلم ته هدايت اوکړے
شو چه د دے خلقو د دے بے مطلبه سوالونو په جواب کښے ته دوی ته
صاف اووايه، چه تاسو ځما نه د دُنيا د خزانو مطالبه کوئ نو ما کله دا
دعوه کړے ده چه د الله تعالیٰ ټولے خزانے ځما په لاس کښے دی۔ او تاسو
چه دا مطالبه کوئ چه د راتلونکے زمانے د پيښيدونکو فائده منو او
نقصاني معاملو او واقعو نه زه تاسو خبر کړم نو ما کله دا دعوه کړے
ده چه د غيبو هر يو شے پيژنم، او تاسو چه کوم د فرشتو خاص صفتونه
په ما کښے ليدل غواړئ، نو ما کله وئيلي دی چه زه فرشته يم۔

لنډه دا چه ځما نه دليل د داسے شي غوښتے شئ د کوم چه ما دعوه
کړی وی۔ يعني دا چه زه د الله تعالیٰ رسول يم د هغهٔ را ليږلے شوے
هدايت خلقو ته رسوُم۔ او په خپله هم د دے تابعداری کوم، نو روته هم
د دے تاکيد کوم، نو چنانچه د دے د پاره يو دوه نه بے شماره واضح دليلونه
پيش شوی دی۔

د رسالت د دے دعوے د پاره نه دا ضروری ده چه د الله رسولِ دِ
د الله د ټولو خزانو مالک شي، او نه دا ضروري ده چه دے دِ د خدائے
تعالیٰ په شان د غيبو د هر يو لوئے وړو کي خيز نه خبر وی۔ او نهٔ دا

ضروري ده چه دے دَ انساني او بشري صفتونو نه جُدا څۀ فرشته وي، بلکه دَ رسول منصب صرف دومره دے چه دے دَ الله تعالیٰ دَ طرف نه دَ راليږلے شوے وحیٔ تابعداري اوکړي، چه په دے کښے په خپله هم په دے باندِ عمل کول داخل دي، او نورو لره هم په دے دَ عمل کولو دعوت ورکول دي،

په دے هدايت نامه سره دَ رسولؐ دَ منصب هم وضاحت اُوشو، او دَ رسولؐ په باره کښے چه کوم غلط تصورات دے خلقو قائم کړي وُو هغه پرِم لرے شو۔ او دَ دے په ضمن کښے مسلمانانو ته هم دا هدايت اوکړو چه دوی دَ عيسايانو په شان دَ خپل رسول نه خدائے جوړ نه کړي، او دَ خدائے مالک نے مقرر نه کړي۔ دَ دوئ دَ لوئي او دَ دوی سره دَ محبت تقاضا هم داده چه دَ دوی متعلق دَ يهودوا ونصاراؤ په شان په افراط او تفريط او غلو کښے اخته نۀ شي، چه يهودو خو دَ خپلو انبياؤ دَ قتل نه هم منع نۀ ده کړے او نصاراؤ خپل رسول لره خدائے جوړ کړو۔

دَ دے په اوله جمله کښے چه ئے دا ارشاد فرمائيلے دے چه دَ الله تعالیٰ خزانے ځما په لاس کښے نه دي۔ دَ دے خزانو نه څۀ مراد دے؟ دَ تفسير عالمانو دَ ډيرو څيزونو نومونه اَغستي دي، مګر په خپله قرآن کريم چه کوم ځائے دَ الله تعالیٰ دَ خزانو ذکر کړے دے نو په دے کښے فرمائيلي دي

: وَاِنْ مِّنْ شَيْءٍ اِلَّا عِنْدَنَا خَزَآئِنُهٗ ؛ "يعني يو شے په دُنيا کښے داسے نيشته چه دَ هغے خزانے زمونږ سره نه وي" دَ دے نه معلومه شوه چه دَ الله تعالیٰ دَ خزانو مطلب دَ دُنيا په ټولو څيزونو باندِ حاوي دے۔ څۀ خاص څيزونه نۀ شي مُتعين کولے۔ او کومو تفسير ليکونکو حضراتو چه دَ خاصو څيزونو نومونه اَغستي دي هغه هم په طور دَ مثال دي، په دے وجه اختلاف هيڅ نيشته۔ او هر کله چه دے آيت دا اوخودو چه دَ خدائے ټولے خزانے دَ سيد المرسلين صلے الله عليه وسلم په لاس کښے هم نيشته، نو بيا دَ اُمت دَ يو بزرګ يا وَلي متعلق دا خيال کول چه دے څۀ غواړي کولے شي، چا ته چه غواړي ورکولے شي بنکاره جهالت دے۔

په اخري جمله کښې فرمائي : وَلَآ اَقُوْلُ لَكُمْ اِنِّيْ مَلَكٌ ؛ يعنې زه تاسوته دا نه وايم چه زه فرښته يم چه د هغې په وجه تاسو په ما کښې بشري صفتو نه وينئ نو د رسالت نه انکار کوئ ؛

په مينځنۍ جمله کښې ئې د خبرې طرز بدل کړو په ځائې د دې چه : لَآ اَقُوْلُ لَكُمْ اِنِّيْ اَعْلَمُ الْغَيْبَ : ئې فرمائيلې وې ، يعنې دا سې چه زه تاسوته دا نۀ وايم چه زه په غيبو پوهيږم ، بلکه دا سې ئې اوفرمائيل چه : وَلَآ اَعْلَمُ الْغَيْبَ : يعنې زه په غيبو پوهه نه يم -

ابوحيان په تفسير بحر محيط کښې وې طرز د خبرې د په لوئيوه باريکه توجيه دا سې بيان کړې ده ، چه د ټولو خدائي خزانو مالک کيدل يا نه کيدل دغه شان د يوسړي فرښته کيدل يا نه کيدل ، دا خو د ليد وسره تعلق لري دغه مخاطب خلق ټول په دې پوهه وُو چه د الله تعالیٰ خزانې ټولې د دوي په لاس کښې نه دي او دوي فرښته هم نه دي - محض په عنا د سره به ئې دا مطالبې کولې - د دوي په جواب کښې دا ويل کافي وُو چه ما خو چرته د دې دعوه نه ده کړې چه زه د خزانو مالک يم يا زه فرښته يم -

ليکن د علم غيب مسئله دا سې نه وه ځکه چه دغو خلقو د خپلو نجوميانو او کاهنانو په باره کښې هم دا عقيده لرله چه دوي په غيبو باندې پوهيږي نو د الله د رسولﷺ په باره کښې دا سې عقيده لرل څۀ لرې خبره نه وه خاص بيا کله چه د نبي کريم صلی الله عليه وسلم د خولې مبارکې نه دوي ډير د غيبو خبرونه آوريدلي هم وُو او د هغو مطابق د واقعو کيدل ئې هم ليدلي وُو ، په دې وجه ئې د لته صرف د دعوې او خبرې نيشت کولو لوه کافي او نه گڼل بلکه د اصل کار نفئ ئې اوکړه - او اُو ئې فرمائيل : وَلَآ اَعْلَمُ الْغَيْبَ : يعنې زه په غيبو باندې نه پوهيږم - په دې کښې ئې د دوي دا غلط فهمي هم لرې کړه چه د الله تعالیٰ د طرف نه په ذريعه د وحئ يا الهام د کوموخيزونو علم يو فرښتې يا رسول يا ولي ته ورکړې شي د قرآن په اصطلاح کښې دې ته علم غيب يا د دې پوهيدونکی ته عالم الغيب نۀ شي ويلې -

د دے ایت نه دا هم واضحه شوه، چه په دے معامله کښے چا مسلمان
له خبره نه دی کول پکار، چه الله تعالی نبی کریم صلی الله علیه وسلم ته دَ غیبو
په ذرګونو لاکونو خیزونو علم ورکړے دَے - بلکه ټولو فرشتو او اولینو
اخرینو له چه څومره علم ورکړے شوے دے، دَ دے ټولو نه زیات نبی
کریم صلی الله علیه وسلم ته علم ورکړے شوے دے - دا دَ پوره امت
عقیده ده - البته دے سره دَ قرآن او سُنّت دَ بے شماره وضاحتونو
مطابق دَ ټولو ولیانو او رسولانو دا هم عقیده ده چه دَ ټولو
کائناتو محیط (ګیره کوونکے) علم صرف دَ الله تعالی جَلّ شانهٔ خاص صفت دے
لکه څنګه چه دَ دهٔ په خالقو الی رازقو الی او قادر مطلق کیدو کښے یو فرشته
یا رسول دهٔ سره برابر کیدے نه شی، دغه شان دَ دهٔ په علمِ محیط کښے
هم دهٔ سره څوک برابر کیدے نه شی - په دے وجه دَ الله تعالی نه
سوا یو فرشته یا یو پیغمبر ته که دَ غیبو په لاکونو خیزونو نه معلوم هم وی
خو عالم الغیب ورته نه شی ویلے -

لنډه دا ده چه دَ کائناتو دَ سردار سید دَ رسولانو امام دَ انبیاؤ محمد
مصطفی صلی الله علیه وسلم دَ کمالاتو په بار کښے لویه جامعه جمله دا ده
چه سه بعد از خدا بزرگ توئی قصه مختصر ؛

په علمی کمالونو کښے هم دا ده چه دَ خدائے تعالی پس دَ ټولو فرشتو انبیاؤ
او رسولانو نه دوی علم زیات دے، مګر دَ خدائے تعالی برابر نه دے، دَ
برابرئ دعوه کول دَ عیسائیت دَ غُلُوٌ لار ده -

دا ایت په اخر کښے فرمائی چه "ړوند او لیدونکے نه شی برابریدے" دَ
دے مطلب دا دے چه نفسانی جذبے او ضد او عناد پریده دَ حقیقت
په سترګو اوګوره چه په ړوندو کښے شمار نه شے، ته لیدونکے او کتونکے
شه او دا لیدل به تا ته په لږ شان غور او فکر سره حاصل شی -

په دویم ایت کښے نبی کریم صلی الله علیه وسلم ته دا هدایت ورکړے
شوے دے چه دَ دے واضحو او ښکاره بیانونو نه پس هم که دا خلق
دَ خپل ضد نه واپس نه شی، نو دَ دوی سره بحث مباحثه پریږده

اوکوم چه اصلی کار دے دَ رسالت یعنی تبلیغ په دے کښے مشغول شه - او دَ تبلیغ اویَرَدَلو رُخ هغے خلقو طرف ته را اُوګرځوئ کوم چه په قیامت کښے دَ الله په وړاندې دَ پیښی کیدو او حساب کتاب عقیده لری لکه مسلمانان، یا کم نه کم چه دَ دے نه منکرنه دی، په طور دَ احتمال خو کم نه کم دا خطره ورسره شته چه شاید زمونږ دَ عملونو زمونږ نه حساب واغستے شی -

لنډه دا ده چه دَ قیامت متعلق درے قسمه خلق دی یو هغه چه په یقینی طور دَ ئے عقیده لری، دوئم هغه چه په تردُد کښے دی - دریم هغه چه بالکل مُنکر دی - او دَ تبلیغ او یَرَ دَ لو حکم انبیاؤ علیهم السلام ته اګرچه دے درے واړو طبقو دَ پاره عام دے لکه چه دَ قرآن کریم دَ ډیر وارشاداتو نه ښکاره ده، لیکن په اوّلو دواړو فریقو کښے چونکه دَ اثر قبلولو اُمید زیات دے په دے وجه په دے آیت کښے خاص طور سره دوی طرف ته توجه کولو هدایت فرمائیلے شوے دے: وَاَنْذِرْ بِهِ الَّذِيْنَ يَخَافُوْنَ اَنْ يُّحْشَرُوْٓا اِلٰى رَبِّهِمْ :

---

وَلَا تَطْرُدِ الَّذِيْنَ يَدْعُوْنَ رَبَّهُمْ بِالْغَدٰوةِ

او مه لرے کوه هغه خلقو لره چه بلی ځیل رب لره سحر

وَالْعَشِيِّ يُرِيْدُوْنَ وَجْهَهٗ ؕ مَا عَلَيْكَ مِنْ

او مابنام غواړی دَ هغهٔ دَ رضا - په تا نیشته دے دَ دوی

حِسَابِهِمْ مِّنْ شَيْءٍ وَّمَا مِنْ حِسَابِكَ عَلَيْهِمْ

دَ حساب نه څهٔ شے او نه ستا دَ حساب نه په دوی باندِ

مِّنْ شَيْءٍ فَتَطْرُدَهُمْ فَتَكُوْنَ مِنَ الظّٰلِمِيْنَ ﴿۵۲﴾

څهٔ شے که تهٔ دوی لرے کړے نو شے په دَ بے انصافو نه -

وَكَذٰلِكَ فَتَنَّا بَعْضَهُمْ بِبَعْضٍ لِّيَقُوْلُوْٓا اَهٰٓؤُلَآءِ

او دا رنګ موږ آزمائیلي دي بعضو خلقو لره په بعضو سره د دے د پاره چه اووائي آیا دا

مَنَّ اللّٰهُ عَلَيْهِمْ مِّنْۢ بَيْنِنَا ؕ اَلَيْسَ اللّٰهُ بِاَعْلَمَ

خلق دي چه الله پر فضل کړے دے په موږ کښې - آیا نه دے الله ښهٔ پیژندونکے شکر

بِالشّٰكِرِيْنَ ﴿٥٣﴾ وَاِذَا جَآءَكَ الَّذِيْنَ يُؤْمِنُوْنَ

کوُونکو لره - او کله چه راشي تا ته زموږ د آیاتو نو

بِاٰيٰتِنَا فَقُلْ سَلٰمٌ عَلَيْكُمْ كَتَبَ رَبُّكُمْ عَلٰى نَفْسِهِ

منوُنکي نو اووایه سلام دے په تاسو لیکلې دے ستاسو رب په خپل ځان

الرَّحْمَةَ ۙ اَنَّهٗ مَنْ عَمِلَ مِنْكُمْ سُوْٓءًۢا بِجَهَالَةٍ

رحمت لره - چه څوک اوکړي په تاسو کښې بدي په ناپوهۍ سره

ثُمَّ تَابَ مِنْۢ بَعْدِهٖ وَاَصْلَحَ فَاَنَّهٗ غَفُوْرٌ رَّحِيْمٌ ﴿٥٤﴾

بیا د دے نه پس توبه اوکړي او نیک شي نو خبره داده چه هغه بخښَنے والا مهربان دے۔

وَكَذٰلِكَ نُفَصِّلُ الْاٰيٰتِ وَلِتَسْتَبِيْنَ سَبِيْلُ

او دغه شان موږ په تفصیل سره بیانوُو آیاتونه او چه ښکاره شي طریقه

الْمُجْرِمِيْنَ ﴿٥٥﴾

د ګناه ګارانو -

ع ٦ ١٤

# لنډ تفسیر

او دے خلقو له (دخپل مجلس نه) مه اوباسه کوم چه سحر ما ښام (یعنی همیشه په مناسب همیش والی) دخپل رب عبادت کوی چه په دے سره صرف د الله د رضا قصد لری را وبل څهٔ غرض د مال او مرتبے ئے نه وی یعنی په عبادت کښے ئے همیشوالے هم دے او اخلاص هم، او اخلاص اګرچه باطنی کار دے خو کښے نښانے ئے پیژندے هم شی، او هرکله چه د نهٔ اخلاص څهٔ دلیل نیشته نو د اخلاص ګمان پرِ کول ګکار دی) او د دوی (د باطن) حساب (راولتون) یوه ذره هم ستا په ذمه نه دے او (دا د باطن لتون ئے ستا په ذمه نه کیدل داسے یقینی دی لکه چه) ستا (د باطن) حساب (راولتون) یوه ذره هم د دوی په ذمه نه دے چه ته اوباسے دوی له (یعنی که د دوی د باطن د اخلاص لتون ستا په ذمه وے نو د دے خبرے ګنجائش به وه چه د چا د اخلاص تحقیق نه وی شوے هغه جدا کړے، مګر دا ستا په ذمه نه دے او بله څهٔ وجه د دوی د ویستلو د جائز کولو نیشته، او چونکه نبی کریم صلے الله علیه د امت مُربّی یعنی پالونکے او تربیت کونکے دے، او د تربیت کونکی د خپلو ماتحتانو د حالا تو د لتون کولو احتمال کیدے شو، مګر د دے برعکس چه دغه خلق به د خپل پیغمبر د باطنی حالا تو لتون کوی د دے هیڅ احتمال نه وه، په دے وجه دغه خو قطعًا نیشته، خو دلته ئے احتمالی خبره د یقینی سره برابر کړه او نفی ئے ورلره او کړه د دے د پاره چه د دے نیشتوالے هم یقینی شی) و رنه (د دوی په ویستلو سره) به ته په نامناسبه کار کونکو کښے شے او (موږ چه کوم مؤمنا نو له غریبانان، او کافرانو له رئیسان جوړ کړی دی چه په ظاهره د قیاس نه لرے خبره ده) نو (د دے وجه دا ده چه) په دے طور سره موږ ه (په دوی کښے) څنے (یعنی کفار) د نورو (یعنی مؤمنانو) په ذریعه سره په آزمائش کښے اچولی دی (یعنی په دے کار کښے د کفارو امتحان دے) د دے د پاره چه دا خلق (د مؤمنانو په باره کښے) او وائی چه آیا دا خلق دی چه په موږ تهولو کښے (غوره شو) په دوی الله تعالیٰ خپل فضل

کړے دے (یعنی دَخپل دین دَاسلام دَپاره ئے دَدوی انتخاب کړے دے) آیا
داخبره نه ده چه الله تعالیٰ حق پیژندونکو لره ښهٔ پیژنی (دے غریبو غلو دَ
خپل حقیقی نعمت او انعام کوُنکی حق او پیژندو، او دَحق په طلب کښے شروع
شو نو په حق دین او دَ الله تعالیٰ په نزد په قبول والی مشرف شو. او دَ
رئیسانو ناشکری او کفر اوکړو نو دَدے نعمت نه محروم پاتے شو) او کله چه
هغه خلق تا ته راشی چه زمونږ په آیاتو نو ایمان هم لری نو ته (دویته
دَ زیری آوَرولو دَپاره) داسے اووایه چه په تاسو دِ سلامتی وی (یعنی
په کفارو چه دَهر قسم آفتونه په آخرت کښے پریوځی دَدے نه دِ تاسو
په اَمن یئ) او دویم داچه) ستاسو رب (په خپل فضل و کرم سره) رحمت
کوَلَ را و تاسو لره نعمتونه ورکول) په خپله ذمه مقرر کړی دی (تر
دے) چه کوم سړے په تاسو کښے څهٔ ناکاره کار اوکړی (کوم چه) په
جهالت سره (وکیدے شی، ځکه چه دَحکم نه خلاف کول کار دَجهالت دے
ګکو) دے بیا دَدے نه پس توبه اوکړی او د آئنده دَپاره خپلو
عملونو) اصلاح اوکړی (په دے کښے دا هم راغله چه کر دغه توبه ماته
شی نو بیا توبه اوکړی) نو دَالله تعالیٰ شان دادے چه (په دے باندِ
هم) لوئے مغفرت کوُنکے دے (چه دَګناه سزا به هم معاف کړی) او
لوئے رحمت کوُنکے دے (چه قسم قسم نعمتونه به هم ورکړی) او (لکه
څنګه چه مونږ په دے مقام باندِ دَمؤمنانو او کفارو حال او انجام
په تفصیل سره بیان کړو) دغه شان مونږ آیاتونه (چه دَ دواړه
فریقو په حال او انجام باندِ مشتمل وی) په تفصیل سره بیانوو (چه دَ
مؤمنانو طریقه هم ښکاره شی) او چه دَمجرمانو طریقه (هم) ښکاره
کړے شی (او دَحق او باطل په واضح کولو سره دَحق طلب کوُنکی ته
دَحق پیژندل آسان شی) -

# مَعلومَات اَو مَسئلے

دَ تکبر او جاهلیت لوے کول او دَ عزت او ذلت اسلامی معیار په اسلام کښے دَ امیر او غریب هیڅ امتیاز او فرق نیشتے

کوم خلقو چه دَ دے سره چه انسانان دی او انسانیت ئے او نه پیژندو، بلکه انسان ئے دَ دنیا په مختلفو جانورو کښے یو هوښیار جانور او گنړلو، کوم چه نور جانوران خپل تابع او دَ خپل حکم لاندے راوستل خپل خدمت ئے ترے واغستو۔ دَ دوی په نزد دَ انسان دَ پیدائش منشاء دَ دے نه سوا نه شی کیدے۔ چه دے دَ یو جانور په شان خوړل څکل او ده کیدل ویخیدل او نور دَ حیوانانو جذبات استعمالول دَ خپل ژوند مقصد او گنړی، او کله چه دَ ژوند مقصد صرف دا وی، نو دا هم ښکاره خبره ده چه په دے دُنیا کښے دَ ښهٔ بدُ، لوئے وړوکی، عزت او بے عزتیٔ، شرافت او رذالت پیژندو معیار هم دا کیدے شی چه دَ چا سره دَ خوراک سکاک، اغوستلو استعمالولو سامان زیات وی هغه کامیاب او عزتمند او شریف دے، او دَ چا سره چه دا څیزونه کم وی هغه بے عزته ذلیل او نامراد او ناکام دے۔

دَ انصاف خبره دا ده چه په دے عقیده او نظریه دَ اخلاقو او نیکو عملو نو هیڅ بحث هم دَ انسان په شرافت او عزت کښے کیدے نه شی بلکه هغه عمل به ښهٔ عمل او هغه خوئی به ښهٔ خوئی وی دَ کوم په ذریعه چه دا حیوانی مقصد وته په ښهٔ شان سره پوره شی۔

په دے وجه دَ ټولو انبیاؤ علیهم السلامو او دَ دوی دَ راوړی دین او مذهب اولنی او اخری سبق دا جوړشوے دے چه دَ دے ژوندنه روستو یو بل ژوند دے چه همیشه او نهٔ قطع کیدونکے به وی۔ هلته به راحت هم مکمل او همیشه وی او تکلیف او عذاب به هم مکمل او همیشه وی، دَ دُنیا ژوند پخپله مقصد نه دے۔ بلکه په دویم ژوند کښے چه کوم سامان بکار دے، تلونکے دے دَ هغے جمع کول دَ دے ژوند اصل مقصد دے به

رہا مرنے کی تیاری میں مصروف
مرا کام اور اس دنیا میں کیا تھا

(پاتے شوے مرګ په تیارئ کو لو کښې مشغو لید ل ، نو ځما کار په دے دنیا کښې نور څهٔ وُه )

او په انسان او حیوان کښې فرق هم دغه دے ، چه د حیوانا تو سره د راتلونکی ژوند هیڅ فکر نه وی په خلاف د انسان نه چه د دهٔ د تولو نه لوئے فکر د هوښیارانو او پوهانو په نزد د دویم ژوند برابرول دی - په دے عقیده او نظر یه بانډ د شرافت او رذالت عزت او ذلت معیار ښکاره خبره ده چه زیات خوړل سکل یا زیات مال دولت جمع کول به نه وی ، بلکه ښهٔ خویونه او نیک عملونه به وی ، په کوموچه د آخرت د عزت دار مدار دے -

دُنیا چه د کوم وخت نه هم د انبیاء علیهم السلامو د هدایاتو او تعلیماتو او د آخرت د عقیدے نه غافله شوه ، نو د دے طبعی نتیجه مخے ته راغله چه د عزت او دولت او شرافت او رذالت معیار صرف روټئ او خیټه پاتے شو ، څوک چه په دے کښې کامیاب دے هغهٔ ته شریف او عزتمند وئیلے شی ، او څوک چه په دے کښې ناکامه او نیمګړے هغه غریب بے عزته رذیل او ذلیل ګنړلے شی -

په دے وجه په هره زمانه کښې صرف د دُنیا د ژوند په رنګینو کښې ګیر و انسانانو مالدارانو لره عزتمند شریفان ، او غریبو او فقیرانو لره بے عزته او رذیلان ګنړلی دی -

د حضرت نوح علیه السلام قوم ایمان راوړونکو غریبو خلقو ته په دے معیار سره د رذیلان او وے او اعتراض ئے اوکړو چه مونږه د دے رذیلا نو خلقو سره نه شو کیناستے ، که ته غواړے چه مونږ ته څهٔ پیغام واورو د دے نو دے غریبانو لره د خپلے خوانه لرے کړهٔ = قَالُوْٓا اَنُؤْمِنُ لَكَ وَاتَّبَعَكَ الْاَرْذَلُوْنَ ؛ یعنی داخنګه کیدے شی چه مونږه په تا په داسے حالت کښې ایمان راوړو چه ستا تابعداران

رَذِیل قسم خلق دی؟ حضرت نوح علیه السلام دَ دے زړه زخمي کونکي کلام دوی ته جواب په یو خاص پیغمبرانه انداز کښے داورکړو چه: وَمَا عِلۡمِیۡ بِمَا کَانُوۡا یَعۡمَلُوۡنَ اِنۡ حِسَابُهُمۡ اِلَّا عَلٰی رَبِّیۡ لَوۡ تَشۡعُرُوۡنَ: "یعنی زۀ دَ دوی دَ عملونو نه پوره خبر نه یم چه دا فیصله اوکړم چه دوی رَذِیلان دی او که شریفان او عزتمند، بلکه دَ هرسړی دَ عمل حقیقت او دَ دے حساب زمارب ته معلوم دے کوم چه دَ زړونو نه خبر دار دے"۔

نوح علیه السلام دَ دے جاهلانو متکبرانو او دَ انسانی شرافت اورذالت دَحقیقت نه آشنا خلقوخ یو شکاره حقیقت طرف ته راوګرځاوه دائے اُو خودَ له چه دَ شریف او رذیل الفاظ چه کوم تاسو خلق استعمالوئے، او دَ حقیقت نه ئے خبر نه یئ بس پیسے والا ته شریفان او غریب ته رَذِیل وائیٔ او حال دا دے چه دَ شرافت اورذالت معیار پیسه نه ده بلکه عمل او اخلاق دی، په دے موقع حضرت نوح علیه السلام دا فرمائیلے شو چه دَ عملونو او دَ اخلاقو په معیار سره دا خلق ستاسو نه زیات شریفان او معزز دی لیکن دَ تبلیغ پیغمبرانه طرز او اصلاح ورلوه دَ دے اجازت ورنه کړو چه دا سے الفاظ اووائی چه مخاطب پرِ په جوش کښے راشی - په دے وجه صرف دومره ئے او فرمائیل چه دَ رذالت دار مدار خو په کارونو او عملونو باندِ دے او زۀ دَ دوی دَ عملونو نه پوره خبر نه یم، په دے وجه دَ دوی دَ شریف کیدو او رذیل کیدو فیصله نه شم کولے -

دَ نوح علیه السلام نه پس هم په هره زمانه کښے دَ قوم غریبو خلقو ته خواه که دَ خپلو عملونو او اخلاقو په اعتبار سره څومره شریفان او عزتمند وُو مګر دُنیا پرستو مُتکبرانو خلقو حقیر او ذلیل وَئیلی دی- او دا هغه خلق دی چا چه دَ خپلے پوهے او نیکو خویونو په بنا په هره زمانه کښے دَ انبیاؤ علیهم السلام په دعوت قبلو لو کښے وړاندِ والے کړے دے - تر دے چه دَ من هبونو او مِلّتونو په تاریخ دَ نظر کونکو په نزد دَ یو پیغمبر دَ رشتونوالی او حقوالی یو دلیل دا جوړ شو چه دَ دۀ اوَلنی تابعداران به دَ قوم غریب خلق وی- هم دغه وجه وَه چه کله هرقل

باد شاه دَروم ته دَنبي کريم صلے الله عليه وسلم خط مبارک دَ دعوت دَاسلام دَ پاره اورَسيدو، او ده دَ دوئ دَ حقوالي او رشتوالي تحقيق کوَ لَ اَو غوښتل نو دَ آشنائ خلقو نه چه ئے دَنبي کريم صلے الله عليه وسلم په باره کښے کوم تپوسونه کړي دي په هغو کښے يو تپوس دا هم وَه چه دَ دوئ اکثر تابعداران غريبان عوام دي او که لوئے خلق؟ هرکله چه ده ته او وئيلے شو چه غريب خلق دي نو ده اُووے: هُمُ اَتْبَاعُ الرُّسُلِ. يعني دَرسولانو اَوَلني تابعداران هم دا خلق وي -

دَ نبي کريم صلے الله عليه وسلم په مبارکه زمانه کښے بيا دا سوال را پورته شو- په ذکرشوو اياتونو کښے دَ دے جواب دَخاصو هدايتونو سره ذکر دے -

ابن کثيرؒ دَ ابن جريرؒ دَ روايت نه نقل کړے دے چه دَ قريشو دَ کفارو څو سرداران، عُتبه، شيبه، ابن ربيعه، مطعم بن عدي او حارث بن نوفل وغيره دَ نبي کريم صلے الله عليه وسلم تره ابو طالب له راغلل، او اَو ئے وئيل چه ستا وراره محمد (صلے الله عليه وسلم) دَ خبرے آوريدلو او منلو نه مونږ ته يو دا بند يز دے چه دَ ده نه کيرچاپيره هر وخت هغه خلق دي کوم چه يا خو زمونږ غلامان وُو مونږ هغه آزاد کړل- او يا هغه خلق وي چه زمونږ په رحم وکرم باندے ژوند تيروَلو- دَ دے سپکو او ذليلو خلقو په موجودګئ کښے څنګه مونږ دَده په مجلس کښے شريک کيدے شو؟ ته اووايه چه که زمونږ دَراتلو په وخت کښے دغه خلق دَ مجلس نه لرے کړي نو مونږ به دَده خبره آورو او غور به پرِ کوو-

ابو طالب نبي کريم صلے الله عليه وسلم ته دا خبره اوکړه، نو فاروقِ اعظمؓ دا رائے ورکړه چه په دے کښے څه حرج نيشته - دَ څه ورځو دَ پاره تاسو دا هم اوکړئ او اُوګورئ- دا خلق خو هسے هم ستاسو سره مينه لري دَ دغے خلقو دَ راتلو په وخت کښے دِ دَ مجلس نه لرے کړے شي دوي دا خبره بده نه شي ګنړلے -

په دے باندِ دا ذکرشوے ايت نازل شو، چه په سختئ سره ئے

دَ داسے کو لونو نبی کریم صلے اللہ علیہ وسلم لرہ منع کړو۔ دَ آیت دَ نازلیدو نہ پس حضرت فاروقِ اعظمؓ معذرت او غوښتلو چہ زما خیال غلط وَہ۔

او دغو غریب خلق دَ کومو پہ بارہ کښے چہ دا خبرے شوے وے دغہ وخت، حضرت بلال حبشیؓ، صُهیب رومیؓ، عمار بن یاسرؓ، سالم مولیٰ ابی حذیفہؓ، صبیح مولیٰ اُسیدؓ، او حضرت عبد اللہ بن مسعودؓ، مقداد ابن عمروؓ، مسعود بن القاریؓ، ذوالشمالینؓ وغیرہ صحابہ کرام وُو۔ دَ کومو دَ عزت او شرافت پہ وانہ چہ دَ آسمان نہ نازلہ شوہ، او پہ قرآن کښے دَ دے متعلق بل ځائے کښے دَ دے تاکید پہ دے الفاظو کښے راغلے دے: وَاصْبِرْ نَفْسَكَ مَعَ الَّذِيْنَ يَدْعُوْنَ رَبَّهُمْ بِالْغَدٰوةِ وَالْعَشِيِّ يُرِيْدُوْنَ وَجْهَهٗ وَلَا تَعْدُ عَيْنٰكَ عَنْهُمْ تُرِيْدُ زِيْنَةَ الْحَيٰوةِ الدُّنْيَا وَلَا تُطِعْ مَنْ اَغْفَلْنَا قَلْبَهٗ عَنْ ذِكْرِنَا وَاتَّبَعَ هَوٰىهُ وَكَانَ اَمْرُهٗ فُرُطًا؛ چہ پہ دے کښے نبی کریم صلے اللہ علیہ وسلم تہ دا هدایت کړے دے "چہ تۂ خپل نفس دَ دَغے خلقو سرہ او تړہ کوم چہ سحر ما ښام یعنی هر وخت دَ خپل رب عبادت کوی پہ اخلاص سرہ تۂ خپل نظر ونہ دَ دوی نہ علاوہ پہ بل چا مَہ اړوَہ دَ کومو غرض چہ دا وی چہ دَ دنیا دَ ژوند ښائست ئے مقصود وی او دَ داسے خلقو خبرہ مہ منہ دَ کومو زړہ ونہ چہ ما دَ خپل ذکر نہ پہ غفلت کښے اچوَلی دی او کوم چہ دَ خپلو نفسانی خواهشاتو تابعدار شوی دی او دَ کومو کار چہ دَ حد نہ دَ وتلو دے"۔

پہ ذکر شوی آیت کښے ئے دَ دغے غریبو خلقو صفت دا او خودَہ چہ دوی سحر ما ښام دَ خپل رب عبادت کوی۔ پہ دے کښے دَ سحر ما ښام نہ مراد دَ محاورے مطابق دَ وُرځے او شپے ټول وختونہ دی۔ او دَ بعضو نہ مراد عبادت کول دی او دَ ورځے شپے دَ دے عبادت سرہ ئے دا قید هم لګولے دے چہ: يُرِيْدُوْنَ وَجْهَهٗ؛ پہ دے سرہ ئے دا خبرہ او خودہ چہ پہ عبادت کښے ترڅو پورے اخلاص نہ وی دَ دے هیڅ اعتبار نیشتے۔

دَ آیت پہ آخر کښے چہ کوم دا ارشاد فرمائیلے دے چہ دَ دوی حساب ستا پہ ذِمہ نہ دے او ستا حساب دَ دوی پہ ذِمّہ نہ دے۔ دَ ابنِ عطیہ او زمخشری

وَغیره دَ تحقیق مطابق په دے کښے دَ :حِسَابُهُمْ: او :عَلَيْهِمْ: ضمیر و نه دَ مشرکانو دغے رئیسانو طرف ته راجع دی کوم چه دَغریبو مسلمانانو دَ مجلس نه دَ لرے کولو فرمائیش کاوَه۔ نو الله تعالیٰ نبی کریم صلے الله علیه وسلم ته او خوده چه دا خلق که ایمان راوړی او که دانه وړی ته دَغریبا نو مسلمانانو په مقابله کښے دَدوی پرواه مه کوه۔ ځکه چه دَدوی دَحساب ذِمّواری په تا نه ده، لکه چه ستا دَ حساب ذِمّواری په دوی نیشتے۔ که دا ذِمّواری په تا وے، یعنی دَ دوی په نه مسلمانید وَته ښیوَلے شوے نو په دے صورت کښے به تا غریبان مسلمانان دَ دے سردارانو دَ پاره دَ مجلس نه لرے کولے شو، خو چه هرکله داسے نه ده نو دوی لره دَ مجلس نه لرے کول بښکاره بے انصافی ده۔ که ته داسے او کړے نو ستا شمار به بے انصافو خلقو کښے راشی۔

په دویم آیت کښے ارشاد فرمائی چه مونږ دغه شان ځنو لره دَ ځنو په ذریعه په آزمائیش کښے اچولی دی، چه سرداران دَ قریشو دَ خدائے تعالیٰ دَ دے زبردست قدرت تماشا اوکړی چه غریبان مسلمانان کوم لره چه دوی سپک او ذلیله گنړل دَ الله دَ رسولؐ په تابعداری کولو باندِ خومره اوچت مقام ته اورسیدل، او په دُنیا او آخرت کښے ورته خومره عزت حاصل شو۔ او دوی داوائی چه آیا داغریب خلق دَ الله تعالیٰ دَ انعام او اکرام مستحق وُو، چه مونږ تهول شریفان ئے پاتے کړو او دوی ئے په دے انعام او اکرام او نماغل۔ ے

هر دمی برمن دلسوخته لطفِ دگراست

این گدا بین که چه شائستهٔ انعام اُفتاد

(په ما باندِ چه زړه م غمونو سوے دے هروخت نوے نوے مهربانی کوی ځما په شان فقیر ته اوګوره چه څومره دَ انعام مستحق شو)

دَ کشاف وغیره دَ تحقیق مطابق دَ دوی دا خبره دَ دے آزمائیش او امتحان نتیجه ده کوم چه دَ دغو کمزورو مسلمانانو په ذریعه دَ دوی نه اغستے شوے وَه، دوی په دغه امتحان کښے ناکامه شو، په ځائے دَ دے چه دَ قدرت په دَغو

نښو باندې غور کړے وے، نو دے نتيجے ته به رسيدلی وئ چه شرافت او رذالت په مال دولت وغيره باندې موقوف نه دے بلکه د دے دارومدار په اخلاقو او عملونو باندې دے، نو دوی اُلټه په الله تعالیٰ باندې دا اِلزام لګول شروع کړل چه د عزت مستحق خو مونږه وُو مونږ ته ئې پاتې کړه دوی له ئې ولے عزت ورکړه؟ الله تعالیٰ د دے په جواب کښې بيا دوی له د اصل حقيقت طرف ته د متوجه کولو د پاره دا جمله اوفرمائيله: اَلَيْسَ اللّٰهُ بِاَعْلَمَ بِالشّٰكِرِيْنَ: يعنی الله تعالیٰ ښۀ پيژنی چه کوم خلق حق پيژندونکی او شکر کن اړدی۔ مطلب دا دے چه د حقيقت په اعتبار سره شريف او عزتمند هغه سړے دے چه د خپل احسان کوونکی حق او پيژنی او شکر کن اړشی او هم دغه مستحق د انعام او اکرام دے۔ نه چه هغه چه شپه او ورځ د خپل احسان کوونکی او انعام کوونکی په نعمتونو کښې د لوبو کولو باوجود د هغۀ نافرمانی کوی۔

**يو څو احکام او هدايات**

د ذکر شوو آياتونو نه څو حکمونه او هدايتونه معلوم شو:-

اول دا چه د چا خيرے کپړے او پريشان حالی ليدل او دۀ لره سپک او ذليل کتل لو د هيڅ حق نيشته۔ ډير کرته په دا سے جامو او کپړو کښې دا سے خلق هم وی چه د الله تعالیٰ په نزد ډير عزتمند او مقبول وی، په يو حديث کښې نبی کريم صلے الله عليه وسلم فرمائی چه ډير بد حاله او ګرد آلود خلق په خلق دا سے هم وی چه د الله تعالیٰ مقبول وی که د يو کار د پاره قسم او خوری چه دا سے به اوشی نو الله تعالیٰ د دوی قسم خامخا پوره کوی۔

دويم دا چه د شرافت او رذالت معيار محض د دُنيا دولت او مالداری ګنړل د انسانيت سپکوالے دے۔ د دے اصل دارومدار په ښو اخلاقو او ښۀ عمل باندې دے۔

دريم دا چه د يو قوم د اصلاح کوونکی او مبلغ د پاره اګرچه عام تبليغ هم ضروری دے په کوم کښې چه موافق مخالف، منونکی او نۀ منونکی ټول مخاطب وی۔ ليکن د هغه خلقو حق ورمبے دے کوم چه دغه تعليمات قبول کړی

په دے چلیږی۔ د نورو په خاطر دوی لره ورروستو کول یا نظر انداز کول جائز نه دی۔ مثلاً د غیر مسلمو د تبلیغ د پاره د ناپوهو مسلمانانو تعلیم او اصلاح وروستو کول نه دی پکار۔

خلورم دا چه د الله انعامات په قدر د شکرگذارئ زیاتیگی۔ څوک چه د الله تعالیٰ د انعاماتو د زیاتی طلب گار دی، په ده لازم دی چه په قول او عمل سره شکرگذاری خپل شعار جوړ کړی۔

د آیت: وَاِذَا جَآءَكَ الَّذِیْنَ یُؤْمِنُوْنَ الخ: متعلق د تفسیر د اماما نو دوه قولونه دی:- اکثر و حضرا تو دے آیا تونو لره د تیرو آیاتونو او د تیرے واقعے سره متعلق مقرر کړے دے۔ او د دے په تائید کښے دا روایت پیش کړے دے چه کله د قریشو سردارانو د ابو طالب په واسطه دا مطالبه اوکړه چه ستا په مجلس کښے غریبان او د ادنیٰ درجے خلق اوسی، د دوی په صف کښے کینا ستل ستا خبرے موږ نه شو اوریدے که موږ د دا تلو په وخت کښے دے خلقو لره تۀ د مجلس نه لرے کوے نو موږ به ستا خبرے واورو او غور به پرے اوکړو۔

په دے باند حضرت فاروق اعظمؓ دا مشوره ورکړه چه په دے کښے حیڅ باک نیشتے مسلمانان خو پخپله مخلص دوستان دی، دوی تر دے او وئیلے شی نو د څه وخت د پاره به دوی د مجلس نه بیرته شی ممکنه ده چه په دے شان دا د قریشو سرداران به قرآن واوری او مسلمانان به شی۔

لیکن په تیرو آیاتونو کښے د دے مشورے خلاف دا حکم نازل شو چه داسے دے هرگز اونه کړے شی داسے کول ظلم او بے انصافی ده۔ د دے حکم په نازلید و حضرت فاروق اعظمؓ تر د خپلے رائے او مشورے غلطی ښکاره شوه او اوژړیدو چه د الله تعالیٰ د رضا خلاف په رائے ورکولو گناه گار شو، د دے خبرے د معذرت پیش کولو د پاره حاضر شو۔

په دے باند ذکر شوی آیاتونه د ده د تسلی د پاره نازل شو،

چه څوک به ئې داسې- چه ته دوی نه په تيره غلطئ بانديٰ نه نيولو اطمينان نه اوفرمايه، بلکه صرف دا ئې دومره چه په تيره غلطئ بانديٰ به دوی نيسلې کيږي نه بلکه دَ ارحم الرّاحمين دَ بې شماره نعمتونو وعده ورته هم دا اؤروه، او دَ ارحم الرّاحمين دَ دربار دا قانون دوی ته اوښايه چه کله يو مسلمان په ناپوهئ سره ګناه اوکړي او بيا په خپله غلطئ پوهه شي توبه ترې اوباسي او ائنده دَ پاره خپل عمل برابر کړي نو الله تعالیٰ به دَ دۀ تيرګناهونه معاف کړي او په راتلونکې وخت کښې به ئې دَ دُنيا او اخرت دَ نعمتونو نه هم محروم نه کړي-

دَ دې تشريح مطابق دا اٰياتونه په هغه خاص واقعه کښې نازل شوي وي چه بيان ئې په تيرو اٰياتونو کښې شوې دې- او بعض تفسير ليکونکو حضراتو دَ دې اٰياتونو مضمون دَ يو مستقلې هدايت نامې په طور سره بيان کړې دې- کوم چه دَ هغو خلقو سره متعلق دې دَ کومو نه چه ګناه اوشي بيا خبر نه شي او توبه اوباسي خپل عمل برابر کړي-

او که غور پرې اوشي نو په دواړو خبرو کښې هيڅ تکراؤ نيشته ځکه چه په دې بانديٰ دَ ټولو اتفاق دې چه دَ قراٰن مجيد يو حکم چه په څۀ خاص واقعه کښې نازل شوې وي که الفاظ او مضمون ئې عام وي، نو دې بيا صرف دَ دغې واقعې دَ پاره خاص نه وي- بلکه دَ يو عام حکم حيثيت لري- په دې وجه که فرض کړه که دا ذکر شوې اٰيت په دغه خاص واقعه کښې نازل شوې وي خو بيا هم دا حکم دَ يو عامې ضابطې حيثيت لري چه هر هغه ګناه ګار لره شامل دې کوم چه دَ ګناه نه پس په خپله غلطئ بانديٰ پوهه شي او خپيمانه شي دَ ائنده دَ پاره خپل عمل برابر کړي -

اوس دَ دې اٰياتونو پوره تشريح اوکوري- په اوّلنی اٰيت کښې ارشاد دې: وَاِذَا جَآءَكَ الَّذِيْنَ يُؤْمِنُوْنَ بِاٰيٰتِنَا فَقُلْ سَلٰمٌ عَلَيْكُمْ كَتَبَ رَبُّكُمْ عَلٰى نَفْسِهِ الرَّحْمَةَ ؛ يعنی هر کله چه هغه خلق تا لره راشي کوم چه زمونږ په اٰياتونو ايمان لري، دَ اٰياتونو نه مراد دلته کښې دَ قراٰن اٰياتونه هم کيدې شي او دَ الله جلّ شانهٗ دَ کامل قدرت عامې نښې هم نو دَ داسې خلقو په باره کښې نبي کريم صلے الله عليه وسلم ته دا هدايت

ورکړے دے چه تۀ دوی ته په سَلَامٌ عَلَیْکُمْ : سره خطاب کوه- دلته دَ سلامٌ علیکم دوه معنے کیدے شي- یوه دا چه دوی ته دَ الله جلّ شانهٗ سلام دَ رسوه، چه په دے کښے دَ دے خلقو انتهائي عزت او اِکرام دے- په دے صورت کښے دَ دے غریبو مسلمانانو دَ زړۀ ما تید وغوره زړۀ ساتنه اوشوه- دَ کومو په باره کښے چه دَ قریشو سردارانو دَ مجلس نه دَ لرے کولو تجویز وړاندې کړے وه- او دا هم مراد کیدے شي چه تۀ دے خلقو ته دَ سلامتیٔ خوشخبري واوَروه چه که دَ دوی په عمل کښے کمے یا غلطي هم شوے وي خو هغهٔ به معاف شي، او دوي به دَ هرقسم اا فتونو نه سلامت وي-

په دویمه جمله کښے په : کَتَبَ رَبُّکُمْ عَلٰی نَفْسِهِ الرَّحْمَةَ : کښے ئے په دے احسان بانڼ زیات دَ نور احسان او انعام وعده داسے بیان اوفرمائیله چه تۀ دے مسلمانانو ته اووایه چه ستاسو ربّ رحمت کول په خپله ذمّه لیکلي دي- په دے وجه ډیره یَره تړۀهه مه کوئ- په دے جمله کښے ئے اوّل ربّ استعمال کړو دَ ایت مضمون ئے ښتۀ مدلّل کړو چه الله تعالیٰ ستاسو پالونکے دے- او ښکاره خبره ده چه یو پالونکے خپل پالَلِے شوے نه ضائع کوي- بیا لفظ دَ ربّ چه دَ کوم رحمت طرف ته اشاره کړے وه هغه ئے په ښکاره طور سره هم ذکر کړو- او هغه هم په داسے عنوان سره چه ستاسو ربّ رحمت کول په خپله ذمّه لیکلي دي- او ښکاره خبره ده چه دَ یو شریف او ښۀ انسان نه هم وعده خلاف نه کیږي نو دَ ربّ العٰلمین نه څنګه کیدے شي- او بیا کله چه وعده په صورت دَ معاهدے لیکلے شوي وي-

په صحیح بخاري، مسلم، مسند احمدؒ کښے په روایت دَ ابو هریرهؓ ذکر دي چه نبي کریم صلے الله علیه وسلم فرمائیلے دي چه کله الله تعالیٰ ټول مخلوقات پیدا کړل، او دَ هریو دَ تقدیر فیصله ئے اوکړه نو په یو کتاب کښے چه په عرش باندې دَ الله تعالیٰ سره دے دائے اولیکل چه : اِنَّ رَحْمَتِیْ غَلَبَتْ غَضَبِیْ :" یعني زما رحمت زما په غُصّه غالب دے"

او حضرت سلمانؓ فرمائی چه ما په تورات کښې دا لیکلی لیدلی دی چه کله الله تعالیٰ آسمان او زمکه او دَ دوی ټول مخلوقات پیدا کړل نو دَ رحمت صفت ئې سل حصې کړو، په دے کښې ئې یوه حصه په ټول مخلوق تقسیم کړه او په بنی آدمو خاروِو او نور مخلوقات کښې چه کوم ځائے هم څه دَ رحمت اثر موندے شي هغه دَ دغه یوے حصے تقسیم شوے اثر دے، په مور وپلار او لادکښې، خور رور کښې، خاوند ښځه کښې، په عامو رشته دارا نو خپلوانو کاوندیا نو او نورو دوستانو کښې، چه کوم دَ یو بل سره دَ همدردئ محبت او رحمت معاملے لیدے شي دا ټول دَ دغے یوے حصے دَ رحمت نتیجے دي۔ باقي یو کم سل حصے رحمت الله تعالیٰ ځان له ایخو دَ لے دے۔

او په بعضے روایتو نو کښې ئې دا دَ نبی کریم صلے الله علیه وسلم دَ حدیث په حیثیت سره هم روایت کړے دے۔ دَ دے نه یو بنی آدم اندازه لګولے شي چه دَ الله تعالیٰ رحمت په خپل مخلوق باندِ څنګه او په څومره درجه کښې دے"

او دا ښکاره خبره ده چه یو انسان بلکه فرښته هم دَ الله تعالیٰ دَ شان مناسب عبادت او فرمانبرداري خو کولے نه شي۔ او کوم اِطاعت چه دَ شان مناسب نه وي هغه دَ دُنیا دَ خلقو په نظر کښې په ځائے دَ دے چه دَ انعام سبب شي دَ ناراضه کیدو سبب جوړ شي دا حال خو زمونږ دَ حکم منلو او عبادات اَؤ دَ نیکو دے چه دَ الله جلّ شانهٗ دَ لوئے دربار که په نِسبت سره ورته اُوکتے شي نو دَ ګناهونو نه کمے نه دي، او بیا په دے دَ پاسه چه حقیقي ګناهونو او نافرمانو نه هم یو بنده خالي نه دے، اِلَّا مَنْ عَصَمَهُ اللهُ: "مګر هغه څوک چه الله تعالیٰ ئې اوساتي" په دے حالاتو کښې خو انصاف داغوښتلو چه یو کَس دِ هم دَ عذاب نه بچ نه شي۔ لیکن کیږي دا چه په هر یو بنده دَ الله تعالیٰ نعمتو نه هر وخت وَرِیږي۔ دا ټول دَ دغے رحمت نتیجه ده چه الله تعالیٰ په خپله ذِمّه لیکلے دے۔

**په توبه سره هر یو ګناه معاف کیږي**

دَ دے نه پس ئې دَ کامل رحمت وضاحت دَ یوے ضابطے په صورت کښې داسے بیان کړو: اَنَّهٗ مَنْ عَمِلَ مِنْكُمْ سُوْٓءًۢا بِجَهَالَةٍ ثُمَّ تَابَ مِنْۢ بَعْدِهٖ وَاَصْلَحَ فَاَنَّهٗ غَفُوْرٌ رَّحِیْمٌ؛

"یعنی کوم سړے چه په ناپوهئ سره څهٔ ګناه اوکړی او وروستو بیا توبه اوکړی او خپل عمل برابر کړی نو الله تعالیٰ ډیر بخښونکے دے ورته ګناه به معاف کړی، او ډیر رحمت کوونکے دے چه صرف په معاف کولو باندې به اکتفاء نهٔ کړی بلکه انعامات به پرې هم اوکړی"۔

په دے آیت کښې د لفظ دَ "جهالت" نه په ظاهره کچا دا خیال کیدے شی، چه د ګناه د معافئ وعده صرف په هغه صورت کښې ده چه په ناپوهئ او جهل سره څهٔ ګناه اوشی قصداً ګناه کول په دے حکم کښې داخل نهٔ دی لیکن حقیقت دا نهٔ دے، ځکه چه دَ جهالت نه مراد دلته کښې کار دَ جهالت دے یعنی داسے کار اوکړی چه جاهل او ناپوهه ئے کوی، دا ضروری نهٔ ده چه دے دے په واقع کښې جاهل وی۔ دَ دے خبرے تائید پخپله دَ لفظ دَ جهالت نه هم کیږی۔ چه دلته ئے دَ جهل دَ لفظ په ځائے باندې جهالت لفظ شاید دے طرف ته دَ اشارے کولو دَ پاره استعمال کړے دے ځکه چه جهل دَ علم مقابل دے او جهالت دَ حِلم او وقار مقابل دے۔ یعنی لفظ دَ جهالت په محاوره کښې عملی جهالت ته وئیلے شی۔ او که غور اوکړے شی نو ګناه هم چه دَچا نه کیږی نو دَ دے عملی جهالت په وجه سره کیږی۔ په دے وجه دَ بعضے بزرګانو وینا ده چه کوم سړے دَ الله او دَ رسولؐ دَ یو حکم خلاف ورزی کوی دے جاهل دے۔ مراد دَ دے نه دا عملی جهل دے ناپوهی او بے علمی ضروری نهٔ دی۔ ځکه چه دَ قرآن کریم او صحیحو حدیثونو بے شماره دلیلونه په دے باندې دلالت کوی چه په توبه کولو باندې هر یو ګناه معاف کیږی خواه دَ غفلت او جهل په وجه شوے وی یا قصداً دَ نفس په شرارت او په تابعداری دَ خواهش شوے وی۔

دلته دے خبرے ته په خاص طور سره نظر کول په کار دی چه په دے آیت کښې دَ ګناه ګارانو دَ بخښنے او دَ رحمت کولو کومه وعده شوے ده هغه په دوه څیزونو پورے تړلے شوے ده۔ یوه توبه، دویم دَ عمل اصلاح ده۔ دَ توبے معنی دَ په ګناه باندې خپیمانه کیدل، په حدیث کښې ارشاد دے: اِنَّمَا التَّوْبَةُ النَّدَمُ "یعنی توبه نوم دَے دَ خپیمانه کیدو"۔

دویم دا چه د اینده دپاره دخپل عمل اصلاح کول، دعمل په دے اصلاح کښے دا هم داخل ده چه د اینده دپاره دغے گناه ته دَ نهٔ نزدے کیدو قصد او پوره اهتمام اوکړی او دا په کښے هم شامل ده چه په تیرګناه سره کوم حقونه دَ دهٔ نه ضائع شوی وی دَ اختیار ترحده پورے هغه ادا کړی خواه دَ الله حقونه وی او که دَ بندګانو. دَ الله تعالیٰ حقونه لکه مونځ، روژه، زکوٰة، حج وغیره فرضو کښے کمے کول دی۔ او دَ بندګانو حقونه لکه دَ چا په مال کښے ناجائز قبضه او تصرف کول، دَ چا په عزت حمله کول، چا ته دَ کنځلو وغیره په ذریعه آزار رسول دی۔

په دے وجه دَ توبے دَ مکمّل کولو دَپاره لکه څنګه چه دا ضروری ده چه په تیر ګناه دَ خپیمانه کیدو سره دَ الله تعالیٰ نه بخانه اوغواړی او دَ اینده دَپاره خپل عمل برابر کړی دغے ګناه ته بیا نه نزدے کیږی دغه شان دا هم ضروری ده چه کوم مونځونه یا روژے په غفلت کښے دَ دهٔ نه پاتے شوی دی دَ هغے قضا راوړی، کوم زکوٰة چه تے نه دے ورکړے هغه اوس اَدا کړی، په قربانئ دَ واړهٔ اختر په صدقه واجباتو کښے تیرے کے شوے وی هغه اوس آداء کړی۔ حج پرِ فرض وهٔ خو نه ئے وی کړے اوس ئے اوکړی او که پخپله ئے اوس دَ ادا کولو طاقت نه وی نو چه حج بدل اوکړی۔ او که دَ خپلے مخے ورته دَ حج بدل او نورو قضا شوُو عبادتونو موقع ملاؤ نه شی نو چه وصیّت اوکړی چه دَ دهٔ وارث دَ دهٔ په ذِمّه دَ واجباتو فدیه ورکړی او حج بدل ورلوه اوکړی۔ لنډه دا ده چه دَ اصلاح دَ عمل دَپاره صرف دَ اینده عمل برابرَوُل پوره نه دی۔ دَ تیرو فرضو او واجباتو اداکوُل هم ضروری دی۔ چه هغه هم راواګرځوی۔

دغه شان دَ بندګانو په حقونو کښے که دَ چامال ئے په ناجائزه طریقه اغستے وی نو چه هغه واپس کړی، یا تے معافی اوغواړی۔ او که چا ته ئے په لاسونو یا ژبه آزار رسَولے وی نو چه دَ هغهٔ نه معافی اوغواړی او که اوس ئے دَ هغه نه معافی غوښتل په اختیار کښے نه وی، مثلاً هغه

مېړه وی یادا سے ځانځ ته تللے وی چه او س ئے ده ته پته نه وی- نو دے تد بیر دا دے چه د دغه سړی د پاره دِ د الله تعالیٰ نه د بخښنے غوښتنه کوی نو په دے شان سره اُمید دے چه د حق خاوند به راضی شی او د ده غاړه به آزاده شی -

---

قُلْ إِنِّي نُهِيتُ أَنْ أَعْبُدَ الَّذِينَ تَدْعُونَ

ته اُووایه چه زهٔ منع شوے یم د دینه چه بندگی اوکړم د هغو چه تاسو ئے بلئ

مِنْ دُونِ اللَّهِ ۚ قُلْ لَا أَتَّبِعُ أَهْوَاءَكُمْ ۙ قَدْ

سِوا د الله نه - ته اووایه زهٔ نه ځم ستاسو په خواهش که لا یم نو

ضَلَلْتُ إِذًا وَمَا أَنَا مِنَ الْمُهْتَدِينَ ﴿٥٦﴾ قُلْ

زهٔ به بے لارے شم او نهٔ به شم زهٔ د هدایت موندونکو نه ته اووایه

إِنِّي عَلَىٰ بَيِّنَةٍ مِنْ رَبِّي وَكَذَّبْتُمْ بِهِ ۚ مَا

ما سره دلیل راغلے دے د رب ځما نه او تاسو هغه دروغژن کړو - نیشته

عِنْدِي مَا تَسْتَعْجِلُونَ بِهِ ۚ إِنِ الْحُكْمُ إِلَّا

ما سره هغه شے چه تاسو ئے تلوار کوئ - نه دے حکم مګر د

لِلَّهِ ۖ يَقُصُّ الْحَقَّ ۖ وَهُوَ خَيْرُ الْفَاصِلِينَ ﴿٥٧﴾

الله سره دے - بیا نوی حقه خبره او هغه د ټولو نه ښهٔ فیصله کوُنکے دے -

قُلْ لَوْ أَنَّ عِنْدِي مَا تَسْتَعْجِلُونَ بِهِ لَقُضِيَ

ته اووایه که وے ځما سره هغه شے چه تاسو ئے تلوار کوئ نو ختم شوے به وه

الْاَمْرُ بَيْنِيْ وَبَيْنَكُمْ وَاللّٰهُ اَعْلَمُ بِالظّٰلِمِيْنَ ﴿۵۸﴾

جګړه په مینځ ځما او ستاسو کښې او الله ښه پیژنی ظالمانو لره -

# لنډ تفسیر

ته (دے عناد کروته) او وایه، چه ماته (د الله تعالیٰ د طرف نه) منع شوے ده د دینه چه د هغه (معبودانو) عبادت اوکړم د کومو چه تاسو خلق (الله تعالیٰ ریو والی) لوه پاتے کوئ عبادت ئے کوئ (او د دوی د ګمراهئ د طریقے ښکاره کولو د پاره) ته اُووایه چه زهٔ ستاسو د (باطلو) خیالاتو تابعداری نه کوم ځکه چه (که نعوذُ بالله زهٔ داسے اوکړم نو) په دغه حالت کښے به بے لارے شم او په (رنیغه) لار تلونکو کښے به نه شم، ته (ردوی ته داهم) اووایه چه ما سره خو (په دے دینِ اسلام د حقوالی) یو دلیل (کافی موجود) دے چه ځما د ربّ د طرف نه (ماته ملاؤ شوے دے، یعنی قرآن مجید چه ځما معجزه ده ځما رشتینوالے په کښے کیږی) او تاسو (بے وجهِ) دا دروغژن کوئ (او تاسو چه دا وایئ چه که دا دینِ اسلام حق وی نو په مونږ دِ د آسمان نه کانړی راووَرِیږی یا څهٔ بل سخت عذاب دِ راشی لکه چه بل ځائے په دے الفاظو سره ئے ذکر دے : اِنْ كَانَ هٰذَا هُوَ الْحَقَّ مِنْ عِنْدِكَ فَاَمْطِرْ عَلَيْنَا حِجَارَةً مِّنَ السَّمَآءِ اَوِ ائْتِنَا بِعَذَابٍ اَلِيْمٍ ؛ نو د دے جواب دا دے چه) د کوم شی چه تاسو خواهش کوئے (یعنی عذاب دردناک) هغه ځما سره (یعنی ځما په قدرت کښے) نه دے حکم د هیچا نه چلیږی بغیر د الله نه (او د الله حکم د عذاب د نازلولو نه دے شوے نو زهٔ څنګه عذاب ښکاره کړم) الله پاک حقه خبره (په دلیل سره) ښائی او د ټولو نه ښهٔ فیصله کوُنکے دے (نو هغهٔ ځما د رسالت ښکاره او قوی دلیل قرآن کریم را اولیږه او نورے واضحه معجزے ئے ښکاره کړے، او صحیح دلیل یو هم پوره وی نو ستاسو د فرمائشی دلیلو نو د ښکاره کولو ضرورت نیشته په دے وجه دا وخت ئے د عذاب د نازلولو په ذریعه فیصله اونه فرمائیله) ته اُووایه

چه که ځما سره (يعني ځما په قدرت کښې) هغه شے وے د کوم چه تاسو خواهش کوئ (يعني عذاب) نو رترا اوسه پورے به) ځما او ستاسو په مينځ کښې معامله (د ځکښې نه) فيصله شوے وَه او ظالما نو لوه الله تعالیٰ ډير ښهٔ پيژنی (چه د چا سره کومه معامله په کوم وخت کښې او کړی) -

**دَ اياتو نو تړون** په ذکر شوو اياتو نو کښې د کفارو د طرف نه د زر عذاب نازِلَوَلو فرمائيش او د هغې جواب په: خَيْرُ الْفَصِلِيْنَ: کښې او د الله تعالیٰ د کامل او تمام قدرت ذکر په: اَعْلَمُ بِالظّٰلِمِيْنَ: کښې ذکر وه - وړاندِ په تيرو معاملو او تقديرو نو باندِ د الله تعالیٰ د علم او قدرت د احاطے بيان کولے شی - يعنې چه دا معلومه شی چه د الله تعالیٰ په علم او قدرت کښې راګير دی يو شے ترِ باهر نيشتے -

---

وَعِنْدَهٗ مَفَاتِحُ الْغَيْبِ لَا يَعْلَمُهَآ اِلَّا هُوَ ؕ وَ

او د هغهٔ سره کنجيانے دی د غيبو چه هيڅوک يرِ نه پوهيګی د هغهٔ نه سِوا او

يَعْلَمُ مَا فِي الْبَرِّ وَالْبَحْرِ ؕ وَمَا تَسْقُطُ مِنْ وَّرَقَةٍ

هغه پوهيګی په هغو چه په اوچه دی او په دريا ب کښې دی او نه غورزيګی يو د پا ڼې د

اِلَّا يَعْلَمُهَا وَلَا حَبَّةٍ فِيْ ظُلُمٰتِ الْاَرْضِ وَلَا

مګر هغهٔ ته معلومه وی او نه غورزيګی يو دانه د زمکے په تيرو کښې او نه

رَطْبٍ وَّلَا يَابِسٍ اِلَّا فِيْ كِتٰبٍ مُّبِيْنٍ ﴿۵۹﴾ وَهُوَ

يو شين شے او نه اوچ شے مګر ټول په کتاب ښکاره کښې دی - او هغه

الَّذِيْ يَتَوَفّٰىكُمْ بِالَّيْلِ وَيَعْلَمُ مَا جَرَحْتُمْ

په قبضه کښې اخلی تاسو لره د شپے او پوهيګی په هغهٔ څهٔ چه تاسو کوئ

بِالنَّهَارِ ثُمَّ يَبْعَثُكُمْ فِيهِ لِيُقْضَىٰٓ أَجَلٌ مُّسَمًّى ج

دَ ورځې بیا تاسو لره پورته کوي په دے کښې چه پوره شي هغه وعده چه مقرر شوے ده

ثُمَّ إِلَيْهِ مَرْجِعُكُمْ ثُمَّ يُنَبِّئُكُم بِمَا كُنتُمْ

بیا به دَ هغهٔ طرف ته واپس کړے شئ بیا به خبردار کړي تاسو ته دَ هغې چه

تَعْمَلُونَ ﴿٦٠﴾ وَهُوَ الْقَاهِرُ فَوْقَ عِبَادِهِۦ وَيُرْسِلُ

تاسو کوَلَ - او هغه غالب دے په خپلو بندګانو او لیګي

عَلَيْكُمْ حَفَظَةً ط حَتَّىٰٓ إِذَا جَآءَ أَحَدَكُمُ الْمَوْتُ

په تاسو باندِ حفاظت کوونکے ، تر دے چه کله راشي په تاسو کښې چا ته مرګ

تَوَفَّتْهُ رُسُلُنَا وَهُمْ لَا يُفَرِّطُونَ ﴿٦١﴾ ثُمَّ رُدُّوٓا

نو په قبضه کښې اخلي دَهٔ لره زمونږ لیګلے شوے فرښتے او دوي کوتاهي نه کوي - بیا به او رسولے شي

إِلَى اللَّهِ مَوْلَىٰهُمُ الْحَقِّ ط أَلَا لَهُ الْحُكْمُ قف وَ

الله طرف ته چه مالک دَ دوي دے په حقه سره - واوَرِئ حکم دَ هغهٔ دے او

هُوَ أَسْرَعُ الْحَٰسِبِينَ ﴿٦٢﴾

هغه ډیر ذر حساب اِخِستو نکے دے -

# لنډ تفسیر

او دَ الله تعالیٰ سره (یعني دَ هغهٔ په قدرت کښې) دي خزانے دَ پټو څیزونو (ممکنه وو، دَ دے نه چه کوم شے په کوم وخت او څومره غواړي ښکاره کوي په دے څیزونو کښې دَ عذاب قسمونه هم راغلل ، مطلب دا دے چه بل چا لره

په دے خیزونو قدرت نیشته او لکه څنګه چه کامل قدرت دَ دهٔ خاصه ده دغه شان دَ دهٔ علم تام او کامل هم دے، چنانچه) دے پټو خزانو لره هیڅوک نه پیژنی بغیر دَ الله تعالیٰ نه، او دے هغه ټول څیزونه هم پیژنی کوم چه په اُوچه باندِ دی او کوم چه په دریاب کښے دی او یوه پاڼه (هم) رَقد رے دَ وُنے نه نهٔ غورزیګی مګر دے هغے لره هم پیژنی او نه څهٔ دانه رقد رے) دَ زمکے په تیږو حصو کښے نه غورزیګی او نه څهٔ اُوچ او لوُند شے (مثلاً میوه وغیره) غورزیګی مګر دا ټول په واضح کتاب (یعنی لوح محفوظ) کښے (لیک) دی او دغه (الله تعالیٰ) داسے دے چه (اکثر) په شپه کښے (دَ اُوده کید و په وخت) ستاسو روح (نفسانی) لره (دَ کوم سره چه احساس او ادراک متعلق دے) یو قسم لره قبض کوی (یعنی حصار وی) او کوم څهٔ چه تاسو دَ وَرځے کوے هغے لره (مُدامًا) پیژنی بیا تاسو لره په ورځ کښے ویښ را پورته کوی دَ دے دَ پاره چه (دَ دے اُوده کیدو ویخید و په دورونو سره) مقرر میعاد (دنیوی ژوند) تمام کړے شی بیا به دغه (الله) طرف ته (دَ مرګ نه پس) تاسو لره تلل وی بیا به تاسو ته اوښائی څهٔ چه تاسو (په دُنیا کښے) کول (او دَ دے مناسب جزا او سزا به جاری کړی) او هغه (الله تعالیٰ پخپل قدرت سره) په خپلو بندګانو غالب دے او زورآور دے او (اے بندګانو) په تاسو (ستاسو دَ عملونو او روحونو) نګرانی کونکے (فرښتے) رالیږی (چه ټول عمر ستاسو دَ عملونو هم نګرانی کوی او ستاسو دَ روح هم حفاظت کوی) تر دے چه کله په تاسو کښے دَ چا مرګ را اُورسی نو (دغه وخت) دَ هغهٔ روح زمونږ لیږلے شوے (فرښتے) قبض کوی او پوټے کوتاهی نهٔ کوی (بلکه څه وخت چه دَ حفاظت حکم وهٔ حفاظت ئے کاوهٔ، کله چه دَ مرګ حکم او شو نو دغه حفاظت کونکے دَ روح قبض کونکو سره یو ځائے شی) بیا به ټول دَ خپل حقیقی مالک خوا ته راوستلے شی، ښهٔ واورئ (دغه وخت) فیصله به دَ الله تعالیٰ وی (او بل هیڅوک به پکښے دخل مداخلت نهٔ شی کولے) او هغه به ډیر زر حساب واخلی -

# معلومات او مسئلے

**دَ گناهونو نه دَ بچ کیدو نسخهٔ اکسیر**

دَ ټولے دُنیا په مذ هبونو کښے دَ اسلام دَ ټولو لویه لښه او لوئے رُکن دَ خدائے پاک دَ یَو والی (توحید) عقیده ده- او دا هم ښکاره خبره ده چه صرف دَ الله تعالیٰ ذات لره یَو او تنها منلو نوم توحید نه دے بلکه دهٔ لره پخپلو ټولو کمالی صفتو نو کښے یَو او بے مثله منل او دَ دهٔ نه سوا بل هیڅ مخلوق لره په دے کمالی صفتو نو کښے دَ دهٔ حصه دارا و شریک نه ګنړل ته توحید وائی-

دَ الله تعالیٰ کمالی صفتونه، حیات، علم، قدرت، سمع یعنی اوریدل، بصر یعنی لیدل، اراده، مشیت یعنی غوښتل، خلق یعنی پیدا کول، رزق وغیره دے په دے ټولو صفتو نو کښے داسے کامل دے چه دَ دهٔ نه سوا هیڅ مخلوق په څهٔ صفت کښے دَ دهٔ برابر کیدے نه شی- بیا په دے صفتو نو کښے دوه صفتونه دَ ټولو نه زیات اُوچت او ممتاز دی:-

یو علم، دویم قدرت، دَ دهٔ علم هم په ټولو موجودو او ناموجودو په ظاهرو، پټو، لویو، وړو په هر یوه ذره ذره باندِ حاوی او کیر ونکے دے یعنی هیڅ ذره قدرے هم دَ دهٔ دَ علم نه باهر نیشته- او دَ دهٔ قدرت هم په دے ټولو پوره پوره حاوی او کیر ونکے دے، یعنی یوه ذره قدرے ئے هم دَ قدرت نه باهر نه ده-

په ذکر شوو دوه وړو ایاتو نو کښے هم دَ دے دوه وړو صفتو نو بیان دے- او دا دوه صفتونه داسے دی چه که انسان دَ الله تعالیٰ په دے دوه وړو صفتو نو مکمل یقین او هر وخت ئے په زړهٔ کښے دَ سا تلو کیفیت پیدا کړی نو دَ دهٔ نه به هیڅ جرم او ګناه بیا نه شی کیدے- ښکاره خبره ده چه که یو انسان ته په خپله هر وَینا او کار، ناسته پاسته کښے په هر قدم دا خبره په زړهٔ کښے حاضره وی چه یو پوهه او خبردار او قادرِ مطلق ما هر وخت وینی او زما دَ ظاهر او باطن او دَ زړهٔ دَ ارادے او خیال نه خبر دے نو دا حاضری به چرته هم دَ دے قادرِ مطلق نا فرمانئ طرف ته پو د ته

کید و ته پرے نهږدی - په دے وجه داد وایه ایا تو نه انسان لره دَ انسانِ کامِل جوړه دَ لو او دَ ده عملو نو او خوځیدو لره دَ برابر کو لو او دَ برابرسا تلو دَ پاره نسخه اکسیر ده -

په اوّلنئ ایت کښے ارشا د فرمائی: وَعِنۡدَهٗ مَفَاتِحُ الۡغَيۡبِ لَا يَعۡلَمُهَاۤ اِلَّا هُوَ:
لفظ دَ: مفاتح: جمع ده او مفرد ئے: مَفۡتَح: په زبر دَ میم سره هم کید ے شی چه خزانے ته وئیلے شی - او: مِفۡتَح: په زیر دَ میم سره هم کید ے شی چه معنیٰ ئے کنجیانے دی په لفظ دَ: مَفَاتِح: کښے دَ دواړو معنو گنجا ئش شته په دے وجه بعض تفسیر لیکونکو او ترجمه کونکو په خزانو سره ئے ترجمه کړے ده او بعضو په کنجیا نو سره - او مطلب دَ دواړو یو دے - ځکه چه دَ کنجیانو دَ مالک کیدو نه مراد هم دَ خزانو مالک کیدل دی -

دَ قرآن په اصطلاح کښے علمِ غیب او عام قدرت مطلقه صرف دَ الله تعالیٰ خاص صفت دے یو مخلوق په دے کښے دَ الله تعالیٰ سره شریک نیشته او دَ لفظ دَ غیب نه مراد هغه څیزونه دی چه لا ترا وسه په وجود کښے نه وی راغلی یا راغلی وی خو الله تعالیٰ یو چا لره نه وی خبر کړے (مظهری) دَ اول قسم مثال هغه ټول حالات او واقعات دی چه دَ قیامت سره تعلق لری، یا په کا ئنا تو کښے په راتلونکی وخت کښے مخے ته دَ راتلونکو واقعاتو سره تعلق لری، مثلاً دا چه څوک به څه وخت او کوم ځائے کښے پیدا شی څه څه کار به کوی، څو مره عمر به ئے وی، په خپل عمر کښے به څو مره ساه ونه اخلی څو مره قدمونه به پورته کوی، کوم ځائے به مړ شی کوم ځائے به دفن کیږی، رزق به چا ته څو مره او څه وخت ملاویږی - باران به څه وخت، کوم ځائے او څو مره کیږی -

او دَ دویم قسم مثال هغه حمل دے کوم چه دَ ښځے په رحم کښے ئے وجود خو نیولے دے مګر دا نه ده معلومه چه هلک دے او که جینئ، ښکلے دے او که بد شکله، نیک خو یه دے او که بد خو یه - دغه شان نور دا سے څیزونه چه په وجود کښے خو راغلی وی لیکن لا ترا وسه دَ خلقو دَ نظر نه غائب وی -

دَ: عِنۡدَهٗ مَفَاتِحُ الۡغَيۡبِ: معنیٰ دا شوه - چه دَ الله سره دی خزانے دَ غیبو

دَ دهٔ سره دَ کیدو نه مراد، دَ دهٔ په مِلک او قبضه کښې کیدل دی، مطلب دا شو چه دَ غیب دَ خزانو علم هم دَ دهٔ په قبضه کښې دے، او دی لره په وجود کښې راوستل او ښکاره کول هم دَ دهٔ په قدرت کښې دی چه کله او څومره به په وجود کښې راځی، لکه چه دَ قرآن کریم په یو بل آیت کښې دی: وَاِنْ مِّنْ شَیْءٍ اِلَّا عِنْدَنَا خَزَآئِنُهٗ وَمَا نُنَزِّلُهٗٓ اِلَّا بِقَدَرٍ مَّعْلُوْمٍ ؛ "یعنی زمونږ سره د هر شی خزانے دی لیکن مونږ هر شی لره په یو خاص انداز سره نازل کړو"۔

لنډه دا چه دَ دے جملے نه دَ حق جل شانهٗ تعالیٰ بے مثاله علمی کمال هم ثابت شو او دَ قدرت کمال هم، او دا هم چه دا هر شی لره راګیرونکے عِلم او قدرتِ مطلقه صرف دَ الله جل شانهٗ صفت دے، بل هیچا ته نه شی حاصلیدے۔ په آیت کښې دَ لفظ دَ: عِنْدَهٗ: په وړاندې کولو سره ئې دَ عربی لغت په مطابق هم دے خاص والی طرف ته اشاره کړے ده۔ او وړاندې دے اشارے لره دَ په څو اکه کولو دَ پاره او په پوره شان سره زړهٔ ته دَ پریوتو دَ پاره ارشاد فرمائی: لَا یَعْلَمُهَآ اِلَّا هُوَ؛ "یعنے دے دَ غیبو خزانو لره دَ الله تعالیٰ نه سوا بل هیڅوک نه پیژنی"۔

په دے وجه دَ دے جُملے نه دوه خبرے ثابتے شوے، یو دَ الله تعالیٰ جل شانهٗ دَ ټولو غیبو په خیز و نو عِلم محیط سره خبردار کیدل او په ټولو دَ کامل قدرت سره قادر یدل، دویم دَ ذاتِ حق جل شانهٗ نه سوا دَ هیڅ یو مخلوق یا خیز دا سے علم او قدرت نه کیدل۔

دَ قرآن کریم په اصطلاح کښې چه دَ لفظ دَ: غیب: کوم معنیٰ (په حواله دَ تفسیر مظهری) بره بیان شوے ده۔ یعنی هغه خیز و نه چه لا تر اوسه په وجود کښې نه دی راغلی یا راغلی دی مګر تر اوسه پورے چا مخلوق ته نه دی ښکاره شوی۔ که دے لره په نظر کښې او ساتلے شی نو په مسئله دَ غیبو چه په سرسری نظر کښې کومے شبُهے عوامو ته مخے ته راځی دا به بالکل ختمے شی۔

لیکن په عام طور سره خلق دَ لفظ دَ: غیب: نه لغوی معنیٰ مراد اخلی چه کوم شے زمونږ دَ علم او نظر نه غائب وی، خواه که دَ نورو په نیز دَ

دَدے دَ علم حاصلَولو ذریعے موجودے وی، خودے ته هم غیب وائی۔ دَ دے په نتیجه کښے قسم قسم شبُهے مخے ته راځی۔ مثلاً علمِ نجوم، رَمل، جفر، یا دَ لاس لکیرے وغیره چه دَ راتلوُنکو واقعاتو علم پرِ حاصلَولو شی، یا دَ کشف او الهام په ذریعه چا سرِی ته دَ راتلوُنکو واقعاتو علم اوشی، یا دَ موسم ماهران چه دَ کیدُونکی باد و باران متعلق دَ هَوا او موسم په رنړا کښے دَ باران کید یا نه کید وپیشین گویانے کوی، او په دے کښے ډیرے خبرے صحیح هم شی، دا ټول څیز ونه دَ عوامو په نظر کښے علمِ غیب وی۔ په دے وجه په ذکر شوی آیت باندِ دا شبُهے کوی چه قرآن حکیم خو علمِ غیب، دَ الله جلّ شانهٗ خصوصیت خودَلے دے او لیده ے شی چه نورو ته هم دَ حاصلید ے شی۔

جواب ښکاره دے چه دَ کشف او الهام یا وحیٔ په ذریعه که الله تعالیٰ خپل چا بنده ته دَ څهٔ راتلونکے واقعے خبر ورکړی نو دَ قرآن په اصطلاح کښے دا علمِ غیب نه شو، دغه شان دَ اسبابو او آلو په ذریعه چه کوم علم حاصل کړے شی هغهٔ هم دَ قرآن دَ اصطلاح په لحاظ سره علمِ غیب نه دے، لکه دَ موسم دَ محکمے خبرونه، یا دَ نبض په نیوَلو سره دَ مریض پټ حالات خودل، وجه دا ده چه دَ موسم محکمے ته یا حکیم ډاکټر ته دَ دا سے خبر ورکولو موقع په لاس راغله کله چه دَ دغے واقعاتو ماده پیدا شوه او ظاهر شوه۔ فرق صرف دومره دے چه لا تر اوسه دَ دغے شی ښکاره کیدل په عام طور سره نه وی شوی، دَ آلاتو په ذریعه ئے اهلِ فن ښکاره کوی۔ عوام ترِ نا خبره وی۔ او کله چه دغه ماده قوی شی نو عام ظهور ئے اوشی۔ دغه وجه ده چه دَ موسمونو محکمه میاشت دوه پس دَ کیدونکی باران خبر نه شی ورکولے ځکه چه لا تر اوسه دَ هغے ماده نه وی پیدا شوے۔ دغه شان یو حکیم یا ډاکټر کال دوه کاله مخکښے دَ خوړلی شوی یا دوه کاله یا کال پس دَ خوړونکے دوائی یا خوراک پته نن دَ نبض په کتو نه شی ورکولے ځکه چه دَ دغے آثار دا ننَ په نبض کښے نه وی۔

لټوَه داده چه دا ټول خیزونه هغه دی چه دَ څهٔ شی دَ نښو نښانو په لیده وسره دَدی دَ وجود خبر ورکوَلے شی - او کله چه دَدی نښے نښانے او ماده ښکاره شی نو اوس دغه غیب پاتے نه شو - بلکه په لیده ونکو کښے داغله البته دَ باریکوالی یا کمزوری والی په وجه ئے عام خلق لا تر اوسه نه شی لیدے څوکله چه طاقت او نیسی نو عام مشاهده (یعنی لیدو) کښے به راشی -

دَدے نه علاوه دَدے ټولو خیزونو دَ حاصلیدو باوجود بیا هم دا حُکم معلومات دَ تخمینے او اندازے حیثیت لری، عِلم کوم چه دَ یقین نوم دے هغه په دے ټولو کښے په یو شی کښے هم نه حاصلیګی - هم دا وجه ده چه دَ دے خبرونو دَ غلطیدو بے شماره واقع روزانه لیدے شی -

پاتے شو علمِ نجوم وغیره - نو په دوی کښے چه کوم خیزونه دَ حساب سره تعلق لری دَ هغوی علم خو علم دے، مګر غیب نه دی - لکه چه څوک حساب اوکړی او وائی چه نن به په پنځه بجے یو څلویښت منټه باندِ نمر راخیژی، یا په فلانے میاشتے فلانی تاریخ باندِ نمر یا سپوږمئ تنده نیسی - نو ښکاره خبره ده چه دا دَ یو معلوم شی دَ رفتار حساب لګول دَ تجربو داسے دی لکه چه مونږ دَ هوائی جهازونو یا ریل ګاډی خپل ستیشن یا اډے ته دَ رسیدو خبر ورکوو - دَدے نه علاوه په نجوم وغیره سره چه کوم دَ خبرونو معلومولو دعوه کوَلے شی هغه دَ دوکے نه سوا نور هیڅ نیشته - په سلو دروغو کښے یو رښتیا کیدل څهٔ علم نه دے -

په حمل کښے هلک دے او که جینئ دَدے په باره کښے هم ډیر دَ فن خاوندان خبرے کوی - لیکن تجربه ګواه ده چه دَدے درجه هم دَ تخمینے او اندازے ده یقینی نه ده، او په سلو کښے دوه څلور صحیح کیدل طبعی امر دے دغه دَ څهٔ علم او خبردارئ سره تعلق نه لری -

البته هر کله چه دَ ایکسرے آلات ایجاد شو، نو دَ بعض خلقو خیال وَه چه شاید دَدے په ذریعه به دَ حمل نر یا ماده کیدل معلومیدے شی - مګر تجربے ثابته کړه - چه دَ ایکسرے آلات هم دا نه شی متعین کوَلے چه په حمل کښے هلک دے او که جینئ -

لنډه دا چه کوم شے دَ قرآن حکیم په اصطلاح کښې غیب دے دَ هغې سوا دَ خدائے پاک نه بل هیچا ته علم نیشته - او دَ کوموخیزونو علم چه خلقو ته دَ بعضے اسبابو او آلاتو په ذریعه عادتًا حاصلیګی دغه په حقیقت کښې غیب نه دی - اګرچه په عام طور دَ نه ښکاریدو په وجه ورته غیب وائی.

دغه شان که یو رسول او نبی ته په ذریعه دَ وحیٔ یا یو ولی ته په ذریعه دَ کشف او الهام چه دَ غیبو دَ کومو خیزونو علم ورکړے شی نو دغه دَ غیبو دَ حد ونو نه او وتل - دے ته په قرآن کښې دَ غیبو په ځائے انباءِ الغیب وئیلی شوی دی، لکه چه په ډیرو آیاتو نو کښې ذکر دے.

: تِلْكَ مِنْ اَنْۢبَآءِ الْغَيْبِ نُوْحِيْهَآ اِلَيْكَ ؛ په دے وجه په ذکر شوی آیت کښې : لَا يَعْلَمُهَآ اِلَّا هُوَ ؛ یعنی دَ غیبو خزانو لره بغیر دَ الله تعالیٰ نه بل هیڅوک نه پیژنی - په دے کښې دَ څهٔ شبهے یا استثنا هیڅ ګنجائش نیشته.

په دے جمله کښې نو دَ حق جل شانه دا خاص صفت خودَلے شو چه دے عالم الغیب دے په هر غیب باندې پوهه دے؛ په وروستو جملو کښې دَ غیبو په مقابله کښې دَ علمِ شهادت یعنی دَ حاضرو او موجودو خیزونو دَ علم بیان دے چه په دے علم کښې هم دَ الله جل شانه دا خصوصیت دے چه دَ ده علم محیط یعنی هر شی لره راګیرونکے دے یوه ذره هم ترې باهر نه ده - ارشاد فرمائی چه، هغهٔ پیژنی هر هغه شی لره چه په وچه کښې دے او هغه شی لره چه په دریاب کښې دے او یوه پاڼه دَ ونے نه نه غورزیږی چه علم ئے هغهٔ ته نه وی، دغه شان یوه دانه چه دَ زمکے په تیاره حصه کښې پټه ده هغهٔ هم دَ ده په علم کښې ده - او په هر یو اوچ او لاوُنده کښې دَ ټولو کائناتو ذرّه ذرّه دَ ده په علم کښې ده او په لوحِ محفوظ کښې لیکلی شوی دی -

لنډه دا ده چه دَ علم متعلق دوه خیزونه دَ الله تعالیٰ دَ خصوصیاتو نه دی - چه په دوی کښې هیڅ فرښته یا رسول یا بل مخلوق شریک نیشته یو علم غیب، دویم دَ موجوداتو علم محیط چه یوه ذرّه ترې پټه نه ده. په اول آیت کښې دَ دے دوه وَو مخصوصو صفتو نو بیان دا سے ارشاد

فرمائیلي دي - چه ذ دې په اولنۍ جمله کښې د اوّلنۍ خصوصیت بیان دې: عِنْدَهٗ مَفَاتِحُ الْغَیْبِ لَا یَعْلَمُهَاۤ اِلَّا هُوَ: او په وروستو جملو کښې د ټولو کائناتو او موجوداتو د علمِ محیط ذکر په دې شان فرمائیلي دي چه اوّل ارشاد دې.

وَیَعْلَمُ مَا فِی الْبَرِّ وَالْبَحْرِ: یعنی الله تعالیٰ پیژني هر هغه شي لره کوم چه په وچه کښې دې او کوم چه په دریاب کښې دې - مراد د دې نه کُلْ کائنات او موجودات دي - لکه د سحر او شام لفظ چه او وائي ټول زمانه او د مشرق او مغرب لفظ او وائي نو ټول زمکه ترې مراد اغستې شي، دغه شان د اوچې او دریاب ذکر ئې اوکړو مراد ترې د ټول عالم کائنات او موجودات دي، د دې نه معلومه شوه چه د الله جلّ شانهٗ علم په ټول کائنات باندې محیط (یعنی گیر ونکې) دې -

وړاندې ئې د دې زیاته تشریح او تفصیل داسې بیان کړه چه د الله تعالیٰ په ټولو کائناتو باندې د علم احاطه صرف دا نه ده چه لوئې لوئې څیز و نه ئې په علم کښې دي - بلکه هر یو د وړو کی نه وړو کې د پټ نه پټ شي هم د ده په علم کښې دې، فرمائي: وَمَا تَسْقُطُ مِنْ وَّرَقَةٍ اِلَّا یَعْلَمُهَا: یعنی په ټوله دنیا کښې د یو ې وُنې یوه پاڼه هم داسې نه ده چه دا راغورزیګي او د ده په علم کښې نه وي - مراد دا دې چه د هرې وُنې هره پاڼه د غورزیدو نه اوّل او د غورزیدو په وخت کښې او د غورزیدو نه پس د ده په علم کښې ده - هغهٔ پوهیږي چه هره پاڼه په وُنه یو ې لګیدلې څو مره پیرې آوړي، او کله او کوم ځائې به غورزیګي، او بیا به دا د کوم کوم حال نه تیریګي، د غورزیدو ذکر ئې شاید ځکه کړې دې، چه د دې د ټولو حالاتو طرف ته اشاره او شي ځکه چه د پاڼې د وُنې نه غورزیدل د دې د نشونما او ژوند آخري حال دې - د آخري حال ذکر ئې اوکړو د دې ټولو حالاتو طرف ته ئې اشاره اوکړه -

د دې نه پس ارشاد فرمائي: وَلَا حَبَّةٍ فِیْ ظُلُمٰتِ الْاَرْضِ: یعنی هره هغه دانه چه د زمکې په لاندې تیاره کښې چرته پرته ده هغهٔ هم د ده په علم کښې ده - اوّل ئې د وُنې د پاڼې ذکر او کړو چه د عامو نظر و نو

په ویړاندې ورغورځیږي - دَ دې نه پس ئې دَ دانې ذکر اوکړو کومه چه کرونده کړے په زمکه کښې غورځولې شي یا پټیږي چرته دَ زمکې لاندې په تیاره کښې پټیږي دَ دې نه پس بیا په ټولو کائناتو دَ باری تعالیٰ دَ علم احاطه کول دَ اوچ او لوندې په عنوان سره ذکر کړو - او اوئې فرمائیل چه دا ټول څیزونه دَ الله جل شانهٔ په نزد په کتاب مبین کښې لیکلې شوي دي - دَ کتاب مُبین نه مراد دَ بعض تفسیر لیکونکو حضراتو په نزد لوح محفوظ دے، او بعض فرمائي دَ دې نه مراد علمِ اِلٰهي دے - او دَ دې نه ئې تعبیر په کتاب مبین سره ځکه اوکړو، چه لکه څنګه چه لیکلې شوې شے محفوظ وي دَ هیر او غلطئ امکان په کښې نه وي دغه شان دَ الله تعالیٰ دا علمِ محیط دَ ټولو کائناتو په ذرې ذرې صرف په اندازه سره نه دے بلکه یقیني دے -

دَ قرآن کریم ډیرا آیاتونه په دے باندې ګواه دي چه دا سے علمِ محیط چه دَ هغې نه دَ کائناتو یوه ذره او دَ دې هیڅ حال باهر نه وي دا صرف دَ الله جلّ شانهٔ سره خاص دے - په سورتِ لقمان کښې دي :-

اِنَّهَآ اِنْ تَكُ مِثْقَالَ حَبَّةٍ مِّنْ خَرْدَلٍ فَتَكُنْ فِيْ صَخْرَةٍ اَوْ فِي السَّمٰوٰتِ اَوْ فِي الْاَرْضِ يَاْتِ بِهَا اللّٰهُ ؕ اِنَّ اللّٰهَ لَطِيْفٌ خَبِيْرٌ -

" یعنې که یوه دانه دَ اوړي برابر وي بیا هغه دَ ګټې په مینځ کښې پیوست وي یا په اسمانونو کښې یا په زمکه کښې چرته وي الله تعالیٰ به ئې ټولو له جمع کړي بے شکه الله تعالیٰ باریک بین او خبردار دے"

په آیت الکرسي کښې دي :-

يَعْلَمُ مَا بَيْنَ اَيْدِيْهِمْ وَمَا خَلْفَهُمْ وَلَا يُحِيْطُوْنَ بِشَيْءٍ مِّنْ عِلْمِهٖٓ اِلَّا بِمَا شَآءَ ؕ

" یعنې الله تعالیٰ دَ ټولو بندګانو دَ وړاندې وروستو ټولو حالاتو نه خبر دے او که ټول بني آدم یو ځائې شي نو دَ دهٔ په علم کښې په یو شي هم احاطه نه شي کولې بغیر دَ هغې علم نه چه الله تعالیٰ ئې چالره ورکول اوغواړي"

په سورتِ یونس کښې دي :-

لَا يَعْزُبُ عَنْ رَّبِّكَ مِنْ

" یعنې دَ یوې ذرې برابر هم څهٔ شے

مِثْقَالِ ذَرَّةٍ فِي الْأَرْضِ وَلَا فِي السَّمَاءِ
او په سورتِ طلاق کښې : وَاَنَّ اللّٰهَ قَدْ اَحَاطَ بِكُلِّ شَيْءٍ عِلْمًا :

په زمکه او په آسمان کښې ګټا دَ رب دَ علم نه جدا نه دی"۔ "یعنی دَ الله تعالیٰ علم په هر شی باندې محیط دے"

دغه شان په بے شماره آیاتونو کښې دا مضمون په مختلفو عنوانونو سره راغلے دے - لنډه دا ده چه په دے آیاتونو کښې په لوئې وضاحت او تفصیل سره دا بیان فرمائیلے شوے دے چه دَ غیبو علم رکوم ته چه په قرآن کښې غیب وئیلے شوے دے او دَ دے تفسیر بره تیر شوے دے) یا دَ ټولو کائناتو ګیرووُنکے علم صرف دَ الله جلّ شانهٗ مخصوص صفت دے - دَ چا فرښتے یا رسول علم ته دغه شان په ذرے ذرے دَ کائناتو محیط کنټرول، دغه دَ عیسایانو په شان رسول لره دَ خدائی درجه ورکول دی - او دَ خدائے تعالیٰ سره برابرئے کنټرول دی چه دَ قرآن کریم په وضاحت سره شرک دے - په سورتِ شعراء کښې دَ شرک دا حقیقت بیان شوے دے :

تَاللّٰهِ اِنْ كُنَّا لَفِيْ ضَلٰلٍ مُّبِيْنٍ ۝ اِذْ نُسَوِّيْكُمْ بِرَبِّ الْعٰلَمِيْنَ ۝ :

" یعنی دَ قیامت په ورځ به مشرکان اووائی چه خدائے قسم دے موږ سخت په ګمراهئ کښې وُو چه تاسو لره (یعنی بتانو لره) موږ دَ ربّ العٰلمین سره برابر وَل"

بے شکه چه الله تعالیٰ خپلو انبیاؤ علیهم السلام ته او بیا خاص خاتم الانبیاء صلی الله علیه وسلم ته دَ غیبو په ذرګونو لاکونو خبرو نو علم ورکړے شوے دے او دَ ټولو فرښتو او انبیاؤ نه زیات دوی ته ورکړے شوے دے - لیکن دا ښکاره خبره ده چه دَ خدائے تعالیٰ برابر علم دَ هیچا نیشتے - او نه کیدے شی، که دا سے نه وی نو بیا به دا دَ رسول دَ تعظیم هغه غلو وی کوم چه عیسایانو اختیار کړه چه رسول ئے دَ خدائے سره برابر کړو، دَ دے نوم شرک دے (نعوذ بالله منها)۔

تر دے ځائے پورے دَ اوّلی آیت بیان وُه په کوم کښې چه دَ الله جلّ شانهٗ دَ علم دَ صفت دَ خصوصیاتو بیان وُه چه هغه په هر غیب او ښکاره او هره ذره دَ کائناتو حاوی دے - په دویم آیت کښې دغه شان دَ الله تعالیٰ دَ قدرت دَ صفت او دَ دهٔ دَ قادرِ مطلق کیدو بیان دے۔

کوم چه دَ دهٔ دَ ذات سره مخصوص دے - ارشاد دے :-

وَهُوَ الَّذِيْ يَتَوَفّٰكُمْ بِالَّيْلِ وَيَعْلَمُ مَا جَرَحْتُمْ بِالنَّهَارِ ثُمَّ يَبْعَثُكُمْ فِيْهِ لِيُقْضٰٓى اَجَلٌ مُّسَمًّى : "یعنی الله تعالیٰ په هره شپه ستا سو روح په قسم سره قبض کوی، او بیا سحر تا سو لره ژوندی راپورته کوی چه ستا سو مقرر ره عمر پوره کړی - او بیا تول ورځ چه تا سو څۀ کوئے دغه ټول دَ هغهٔ په عِلم کښے دی" دا دَ الله تعالیٰ کامل قدرت دے چه دَ انسان دَ ژوند، مرګ، او دَ مرګ نه پس دَ دوباره ژوندی کیدو یوه نمونه هره ورځ دَ دهٔ په مخ کښے راولی - په حدیث کښے ئے خوب ته دَ مرګ رور ویلے دے - او دا حقیقت دے چه مرګ دَ بنده ټول قوتونه داسے بے کاره کړی لکه مرګ -

په دے ایت کښے الله تعالیٰ دَ خوب او دَ دهٔ نه پس دَ بیداریٔ مثال پیش کړے دے انسان ئے په دے خبر کړے دے چه لکه څنګه هره شپه او هر سحر هر یو سړے په خپل ځان دَ مرګ او ژوندی کیدو یو مثال وینی دغه شان دَ دے ټول عالم په جمع مرګ او بیا په جمع سره ژوندی کیدل او کتل کوم ته چه قیامت ویلے شی - کوم ذات چه په دے باندِ قادر دے دَ هغهٔ دَ کامل قدرت نه دغه هم لرے نه ده - په دے وجه دَ ایت په اخر کښے فرمائی :-

ثُمَّ اِلَيْهِ مَرْجِعُكُمْ ثُمَّ يُنَبِّئُكُمْ بِمَا كُنْتُمْ تَعْمَلُوْنَ : "یعنی بیا به تا سو الله تعالیٰ طرف ته واپس کیږئ بیا به هغه تا سو ته او بنائی چه تا سو څۀ کول"

مراد دا دے چه دَ عملونو حساب به وی بیا به په دے باندِ جزا او سزا هم وی -

په دریم ایت کښے ئے دَ دے مضمون زیات تفصیل داسے بیان کړے دے چه الله تعالیٰ په خپلو ټولو بندګانو باندِ یو قاهر قوّت لری تر څو پورے چه دَ دوی ژوندی لرَل ورته منظور وی نو حفاظت کوونکے فرښتے دَ دوی دَ حفاظت دَ پاره لیګی دَ چا مجال نه وی چه دهٔ ته نقصان اورسوی او کله چه دَ یو بنده مقرر وخت دَ عمر پوره شی نو دا حفاظت کوونکے فرښتے دَ دهٔ دَ

مړی په اسبابو جمع کولو کښې هیڅ کوتاهي نه کوي - او بیا په مړیک سره هم د دۀ معامله ختم نه شي، بلکه : رُدُّوۡۤا اِلَى اللّٰهِ : یعني دوباره ژوندے شي بیا د الله تعالیٰ مخې ته حاضر کړے شي - دلته د احکم الحاکمین په وړاندے پیش کیږي او د ټول عمر د حساب تر چه کله خیال اوکړے شي، نو د چا مجال دے چه پوره به اوخیژي - او د عذاب نه به خلاص شي، په دے وجه ئې ارشاد او فرمایه: مَوۡلٰىهُمُ الۡحَقِّ : یعني الله تعالیٰ صرف حاکم او احکم الحاکمین نه دے هغه د خپلو بندګانو مولیٰ هم دے چه په هر موقع د دوی مدد هم کوي -

د دے نه پس ئې او فرمائیل: اَلَا لَهُ الۡحُكۡمُ : بے شکه فیصله او حکم صرف د هغۀ دے - دلته دا خیال کیدے شو چه یو ذات او د اربونو خلقو د ټولو عمرونو حساب کول به څنګه وي؟ په دے وجه ئې د دے نه پس او فرمائیل: وَهُوَ اَسۡرَعُ الۡحٰسِبِيۡنَ : یعني د الله تعالیٰ کارونو له په خپلو کارونو باندے قیاس کول جهالت دے - هغه به څو ذره پوره پوره حساب د ټولو واخلي -

قُلۡ مَنۡ يُّنَجِّيۡكُمۡ مِّنۡ ظُلُمٰتِ الۡبَرِّ وَالۡبَحۡرِ تَدۡعُوۡنَهٗ

ته ئې او وایه څوک تاسو لره بچ کوي د تیارو د اوچیے نه او د دریاب نه په هغه وخت کښې چه

تَضَرُّعًا وَّخُفۡيَةً ۚ لَئِنۡ اَنۡجٰىنَا مِنۡ هٰذِهٖ لَنَكُوۡنَنَّ

بللے تاسو هغه په عاجزۍ او پټه سره . چه که تا مونږ بچ کړو د دے بلا نه نو خامخا به مونږه

مِنَ الشّٰكِرِيۡنَ ﴿۶۳﴾ قُلِ اللّٰهُ يُنَجِّيۡكُمۡ مِّنۡهَا

ته او وایه چه الله تاسو لره بچ کوي د دے نه    احسان او منو -

وَمِنۡ كُلِّ كَرۡبٍ ثُمَّ اَنۡتُمۡ تُشۡرِكُوۡنَ ﴿۶۴﴾

او د هرے سختے نه بیا هم تاسو شرک کوئ -

# لنډ تفسیر

ته (دے خلقو ته) اووایه چه هغه څوک دے چه تاسو لره د وچے او د دریاب د تیرو (یعنی سختو) نه په دے حالت کښے نجات درکوی چه تاسو هغهٔ لره (د نجات درکولو د پاره) رابلئ (کله) عاجزی ښکاره کوئ او (کله) په پټه سرطاووایئ) چه (اے الله) که تا مونږ لره د دے (تیرو) نه (اوس) نجات راکړو نو (ربیا به) مونږ خامخا د حق پیژندونکو او په حق قائم پاتے کیدونکو) نه شو (یعنی ستا د یو والی قائل به شو چه دا د ټولو نه لوئے حق پیژندل دی، او د دے سوال جواب خو معلوم دے او دغه خلق به هم بل څهٔ جواب در نه کړی په دے وجه) ته اووایه چه خاص الله تاسو لره نجات درکوی (کله چه نجات ملا ویکی) او (د دے ذکر شوو تیرو څهٔ تخصیص دے بلکه) د هر غم نه (هغه نجات درکوی مګر) تاسو (دا سے یئ چه) بیا هم (پس د نجات موندونه په زړهٔ طریقه) شرک کوئے (چه د اعلیٰ درجے حق ناشناسی ده او وعده مو کړے وه د حق پیژندو، غرض په دا سے سختو کښے ستاسو د اقرار نه د توحید حق والے ثابتیږی نو بیا انکار ته نه شی کتلے) ۔

# معلومات او مسئلے

**د الله تعالیٰ د علم او د الله تعالیٰ د قدرت مطلقه څه نښے**

په تیرو ایاتونو کښے د الله تعالیٰ جل شانهٔ د علم او قدرت کمال او بے مثاله لوئے والے او فراخی ئے بیان شوے وه، په ذکر شوو ایاتونو کښے د دغه علم او قدرت د څه نښو بیان دے۔

په اولنی ایت کښے لفظ د ظلمات: د ظلمة جمع ده، چه معنیٰ ئے ده تیرے - د ظلمات البر والبحر: معنیٰ د اوچے او د دریاب تیرے دی، چونکه د تیرو مختلف قسمونه دی. د شپے تیرے، د وریځو تیرے، د ګردو غبار تیرے، په دریاب کښے د چپو تیرے، دے ټولو قسمونو لره د شاملولو د پاره ئے لفظ د ظُلُمٰت: جمع استعمال کړے دے۔

اګر چه د انسان د اوده کیدو او ارام کولو د پاره تیاره هم یو نعمت دے

لیکن په عامو حالاتو کښې د انسان کار په دنیا کښې چلیږی - او تیرے ټولو کارونو لره د بندَ ولو نه علاوه د ډیرو مصیبتونو او آفتونو سبب جوړیګی په دے وجه د عربو په محاوره کښې لفظ د: ظلمات: د مصیبتونو او آفتونو او حادثو د پاره استعمالیګی - په دے ایت کښې هم جمهورو تفسیر لیکونکو دا معنیٰ بیان کړے ده -

مطلب د ایت دا شو چه الله جلّ شانهٗ د مکے مشرکانو لره د دوی په غلطو کارونو باندِ د خبر ورکولو او دوی لره د خبردارکولو د پاره نبی کریم صلے الله علیه وسلم ته حکم اوکړو چه دے د دغے خلقو نه دا تپوس اوکړی چه په د وچو به او دریابی سفرونو کښې چه کله دوی په یو مصیبت کښې ګیرشی او دغه وخت ټول بُتان هیرکړی صرف الله تعالیٰ لره را بلی کله په ډاګه د خپل ذلت او عاجزئ اعتراف کوی او کله په زړه زړه کښې د دے اقرار کوی چه د دے مصیبت نه خوسوا د الله تعالیٰ نه بل هیڅوک نشی بچ کولے - او د دے خیال سره دا وعده هم کوی چه که الله تعالیٰ مونږ د دے مصیبت نه خلاص کړو نو مونږ به شکر او حق پیژندل اختیار کړو، یعنی د الله تعالیٰ شکرګذار به شو، او دے به خپل کارساز ګنړو - او بل هیچا لره به د ده سره نه شریکوو، ځکه چه کله زمونږ په مصیبت کښې دوی په کار رانه شی نو بیا د دوی عبادت ولے کوو، نو اوس ته د دوی نه تپوس اوکړه چه په دے حالاتو کښې څوک د دے مصیبتونو او هلاکتو نو نه نجات ورکوی؟ چونکه د دے جواب مقرر او معلوم وه چه دوی خو د دے نه اِنکار نشی کولے چه د خدائے تعالیٰ نه سوا څوک بُت یا دیوتا په دے حالت کښې د دوی په کار رانه غے - په دے وجه په دویم ایت کښې حق تعالیٰ جلّ شانهٗ پخپله نبی کریم صلے الله علیه وسلم ته ارشاد اوفرمایه، چه هم ته اووایه چه صرف الله تعالیٰ دے چه تاسو له د دے مصیبت نه نجات درکوی - بلکه ستاسو هر تکلیف او پریشانی لرے کوی - لیکن د دے ټولو ښکاره ونښو سره بیا هم چه کله تاسو ته نجات او آرام ملاویګی نو تاسو بیا په شرک کښې اخته کیږئ

او دَ بتانو په عبادت کښې لګیا کیږی نو دا څومره غداری او هلاکوونکې قسم جهالت دے۔

په دے دواړو آیاتونو کښې دَ الله تعالیٰ دَ کامل قدرت بیان هم دے چه هر یو انسان لره دَ هر مصیبت او تکلیف نه نجات ورکولو باندې دَ ده پوره قدرت دے۔ او دا هم چه دَ هر قسم مصیبتونو او تکلیفونو لرے کول صرف دَ الله تعالیٰ په لاس کښې دی۔ دا هم یو داسے ښکاره حقیقت دے چه ټول عمر دَ بتانو او دیوتاګانو عبادت کوونکی او بللونکی هم چه کله په څه مصیبت کښې اَخته کیږی دغه وخت دوی هم صرف خدائے تعالیٰ لره رابلی۔ او ده طرف ته متوجه کیږی۔

**عبرت** دَ مشرکانو دا کار دَ دوی دَ غدارئ په اعتبار سره که هر څومره لوئے جرم وی۔ خو مګر صرف دَ مصیبت اخته کیدو په وخت کښې صرف دَ دوی الله تعالیٰ طرف ته توجه او دَ حقیقت اقرار زمونږ مسلمانانو دَپاره دَ عبرت یو تازیانه ده۔ چه مونږ سره دَ دے چه په الله تعالیٰ ایمان لرو مګر دَ مصیبتونو په وخت کښې الله تعالیٰ نه یادوو۔ بلکه زمونږ ټول خیال او فکر مادی سامانونو ته وی۔ مونږ اګرچه بتان او تصویرونه خپل کارساز نه ګڼړو مګر دا مادی اسباب او آلات هم زمونږ دَپاره دَ بتانو نه کم نه دی۔ دَ کوموپه فکر کښې چه مونږ داسے ورک یو چه خدائے تعالیٰ او دَ هغهٔ کامل قدرت طرف ته چرته هم زمونږ خیال نه ځی۔

**دَحادثو او مصیبتونو اَصلی علاج** مونږ په هره بیمارئ کښې صرف ډاکټرانو او دوایانو لره، او دَ هر طوفان او سیلاب په وخت کښې صرف مادی سامانونو او اسبابو لره خپل کارساز ګڼړو دَ دے په فکر کښې داسے ورک شو چه دَ کائناتو دَ مالک طرف ته هډو زمونږ خیال او فکر نه ځی۔ حال دا دے چه قرآن کریم بار بار په ښکاره الفاظو کښې دا بیان فرمائیلے دے۔ چه دَ دُنیا مصیبتونه او حادثے په عام طور سره دَ بنی آدمو دَ بد و عملونو نتیجے او دَ آخرت دَ سزا سپکه شان

نمونه وي - او په دے لحاظ سره دا مصيبتونه د مسلمانانو د پاره يو قسم رحمت وي چه د دے په ذريعه غافلو انسانانو لره بيدارګول وي، چه دوی اوس د خپلو بدو عملو نو جائزه واخلي او د بدو نه د واپس کيدو فکر شروع کړي او د اٰخرت د لوئے او سختے سزا نه محفوظ پاتے شي - د دے مضمون بيا نو له د پاره د قرآن شريف ارشاد دے :-

| | |
|---|---|
| وَلَنُذِيۡقَنَّهُمۡ مِّنَ الۡعَذَابِ الۡاَدۡنٰى دُوۡنَ الۡعَذَابِ الۡاَكۡبَرِ لَعَلَّهُمۡ يَرۡجِعُوۡنَ ؕ | " يعني مونږ خلقو ته لږ شان عذاب نز دے په دُنيا کښے او څکوو د اٰخرت د لوئے عذاب نه مخکښے چه دوی د غفلت او بد ونه واپس شي " |

د قرآن کريم په يو ايت کښے ارشاد دے :-

| | |
|---|---|
| وَمَاۤ اَصَابَكُمۡ مِّنۡ مُّصِيۡبَةٍ فَبِمَا كَسَبَتۡ اَيۡدِيۡكُمۡ وَيَعۡفُوۡا عَنۡ كَثِيۡرٍ ؕ | " يعني کوم مصيبت چه خلقو ته د سی دا ستاسو د بدو عملو نو نتيجه ده او ډیر بد عملونه الله تعالیٰ معاف کوی " |

د دے ايت په بيان کښے نبی کريم صلے الله عليه وسلم فرمائيلي دی :-

چه " قسم دے په هغه پاک ذات د چا په قبضه کښے چه محمد روح دے چه يو انسان ته د لرګی څه معمولي خراش لګی، يا ئے چرته قدم خوئيږي يائے په څه رګ کښے نقصان لګی دا ټول د څهٔ ګناه اثر وی او کوم ګناهونه چه الله تعالیٰ معاف کوی هغه ډیر دی "

بيضاوی فرمائی چه مراد د دے نه دا دے چه په مجرمانو او ګناه ګارانو ته کوم مرضونه چه راځی دا ټول د ګناهونو نتيجه وی - او کوم خلق چه د ګناهونو نه پاک يا محفوظ وی - د هغوی مرضونه او آفتونه د دوی د صبر او ثابت قدمۍ امتحان او د جنت د او چتو درجو ورکولو د پاره وی -

لنډه دا ده چه عام انسانان کوم چه د ګناهونو نه خالي نه وی دوی ته چه کوم بيماری، حادثے، يا تکليفونه يا غمونه يا پريشانۍ راځی دا ټولے د ګناهونو نتيجے او نښے وی -

د دے نه دا هم معلومه شوه - چه د ټولو مصيبتونو او پريشانو

او هر قسم حادثو او آفتونو اصلي او حقيقي علاج دا دے چه د الله جل شانهٗ طرف ته رجوع اوشي، د تير وګنا هونو نه استغفار او د آئنده د هغې نه د پرهيز کولو پخه اراده اوکړی - او الله تعالیٰ ته د مصيبتو نو لرے کولو د پاره سوال کوی -

د دے دا معنیٰ نه ده چه مادی اسباب دوائی علاج او د مصيبتو نو نه د بچ کيدو مادی تدبيرونه بے کاره دی - بلکه مطلب دا دے چه اصل کارساز الله تعالیٰ ګنړی او مادی اسباب هم د هغه انعام ګنړی استعمالوی ئے - چه ټول اسباب او آلات د هغهٔ پيدا کړی شوی دی او د هغهٔ ورکړی نعمتونه دی، او د هغهٔ د حکم او رضا مند ئی لاندې د انسان خدمت کوی، اور، هوا او به، خاورے، او د دُنيا ټول طاقتونه د الله تعالیٰ جل شانهٗ د حکم تابعدار دی، بغير د هغهٔ د ارادے نه نه اور سيزل کوی، نه اوبه مړه کول کوی نه څهٔ دوائی نفع ورکولے شی، نه څهٔ خوراک نقصان رسولے شی، مولانا رومیؒ څهٔ ښهٔ فرمائيلی دی - ؎

خاک و باد و آب و آتش بنده اند

با من و تو مرده با حق زنده اند

(خاورے باد اوبه او اور د هغهٔ يعنی الله تعالیٰ فرمانبردار دی. ما او تا ته مړهٔ ښکاری خو د الله تعالیٰ په نز د ژوندی دی)

تجربه ګواه ده چه د کله نه انسان د الله تعالیٰ نه غافله شوے دے صرف په مادی اسبابونو او سامانونو پسے لګيد لے دے نو څومره څومره چه دا سامانونه زياتيګی پريشانئ او مصيبتونه نور زياتيګی - ع

؛ مرض بڑھتا گيا جوں جوں دوا کی ؛

(څومره چه علاج کوم مرض نور نور سوا کيږی)-

په شخصی طورسره څهٔ دوائی يا انجکشن په څهٔ وخت کښے فائده مند ثابتيدل يا د يو مادی تدبير کامياب کيدل د ګناه او غفلت سره هم ممکن دی، ليکن کله چه په مجموعی طور سره د ټول مخلوق د خدائے د حالاتو جائزه واغستلے شی، نو دا ټول څيزونه به ناکامه په نظر راشی.

په موجوده زمانه کښې انسان ته د راحت رسولو د پاره او د دغه نه د تکليف لرې کولو د پاره څنګه څنګه آلات او سامانونه ايجاد کړے شوي دي او کيږي چه د اوس نه د پنځوس کاله وړاندې انسان په وهم او ګمان کښې هم نه راتلل، د مرضونو د علاج د پاره نوے نوے زر زر اثر کوونکے دوايانې او انجکشنونه او لوئے لوئے ماهران ډاکټران او ځائے په ځائے د بے شماره شفاخانونه څوک نه دے خبر، چه د نن نه پنځوس شپيته کاله وړاندې انسان د دے هرڅه نه محروم وه - ليکن چه د مجموعي حالاتو جائزه واخستے شي، نو د دے هرڅه آلاتو او سامانونو نه محروم انسان دومره بيمار او کمزورے نه وه لکه څومره چه د نن انسان په بيمارو کښې ګير دے، د غه شان نن د عاموو باګانو د پاره قسم قسم تيکے موجود دي حادثو لره د انسان د بچ کولو د پاره د اور مړکولو انجنونه او د مصيبت په وخت کښې د فورًا خبرداري ورکولو او د فورًا امداد کولو ذريعے او سامانونه څومره زيات دي، ليکن څومره چه دا مادي سامانونه زيا تيګي انسان د وړاندې نه زيات د حادثو او آفتو نو ښکار کيږي - وجه نوره هيڅ نه ده خو داده چه په تير د ور کښې د خالق کائنات نه غفلت او ښکاره نافرمانۍ دومره نه وه څومره چه اوس ده - هغو به د راحت سامان د خدائے تعالیٰ انعام ګڼړلو او په شکر ګذارئ سره به ئے استعمالولو او د نن انسان ئے د بغاوت سره استعمالوي په دے وجه د دا آلاتو او سامانونو چړوالے دے د مصيبت نه نه شي بچ کولے -

لنډه داده چه مسلمانانو لره د مشرکانو د دے واقعے نه عبرت حاصلول پکار دي چه د مصيبت په وخت کښې به هغوي هم خدائے يادولو د مؤمن کار دادے چه د خپلو ټولو مصيبتونو او تکليفونو لرے کولو د پاره د مادي سامانونو او تدبيرونو نه زيات د الله تعالیٰ طرف ته رجوع کوي ورنه انجام به هم دغه وي کوم چه روزانه ليدے شي چه هر تدبير په مجموعي لحاظ سره اُلټه پريوځي - د سيلابونو بندولو او د دے د نقصانونو نه د بچ کيدو په زرګونو تدبيرونه کولے شي، مګر بيا هم هغه راځي او بار بار راځي، د مرضونو د علاج د پاره نوي نوي تدبيرونه کولے شي مګر مرضونو نه

ورځ په ورځ زیاتیګی، دَخیز ونو دَګرانئ ختمَو لودَپاره په زرګونو تدبیرونه کوَلے شی، او په سرسری طور سره اثر کونکی هم معلومیګی، لیکن په مجموعی حیثیت سره نتیجه داده چه ګرانی ورځ په ورځ زیاتیګی، غلا، ډاکے، رشوت چوربازارئ لوه دَ بندَ وَلو دَپاره څومره مادی تدبیرونه نن هر حکومت استعمالوی مګوکه حساب او لګوَلے شی نو روزانه په دے جرمونو کښے زیاتوالے راځی- افسوس چه دَ نن وخت انسان صرف دَ شخصی او سرسری نفع نقصان نه لیرې دَ اوچتو حالاتو جائزه واغستے نو دهٔ ته به ثابته شی چه په مجموعی حیثیت سره زمونږ مادی تدبیرونه تحول بے کاره دی بلکه داخو زمونږ په مصیبتونو کښے دَ کمی په ځائے زیاتوالے راوَلی او بیائے په دے قرآنی علاج نظر اوکړے چه دَمصیبتونو نه دَ بچ کیدو صرف یوه لار ده چه دَ خالق کائنات طرف ته رجوع اوکړے شی- مادی تدبیرونه هم دَ دهٔ دَ ورکړو شوو نعمتونو په طور سره په استعمال کښے راوستلے شی- دَ دے نه سِوا بله یوه لار دَ سلامتیٔ نیشته، او نه ئے څه صورت جوړیدے شی-

قُلْ هُوَ الْقَادِرُ عَلَىٰٓ اَنْ يَّبْعَثَ عَلَيْكُمْ عَذَابًا

تهٔ اووایه چه هغه قادر دے پر دے چه راولیګی په تاسو عذاب دَ

مِّنْ فَوْقِكُمْ اَوْ مِنْ تَحْتِ اَرْجُلِكُمْ اَوْ يَلْبِسَكُمْ

بره نه یا ستاسو دَ خپو دَ لاندے نه یا جوړ کړی تاسو لره

شِيَعًا وَّيُذِيْقَ بَعْضَكُمْ بَاْسَ بَعْضٍ ۗ اُنْظُرْ

مختلفے فریقے او اوڅکوی بعضو ته جنګ دَ بعضو - اوګوره

كَيْفَ نُصَرِّفُ الْاٰيٰتِ لَعَلَّهُمْ يَفْقَهُوْنَ ﴿٦٥﴾

څنګه مونږ قسم قسم بیانوو ایاتونه چه دوی پوهه شی -

وَكَذَّبَ بِهٖ قَوْمُكَ وَهُوَ الْحَقُّ ۭ قُلْ لَّسْتُ

او دے لره دروغژن کړو ستا قوم حال دا دے چه دا حق دے - ته او وايه چه زه نه يم

عَلَيْكُمْ بِوَكِيْلٍ ﴿٦٦﴾ لِكُلِّ نَبَاٍ مُّسْتَقَرٌّ ۡ وَّسَوْفَ

په تاسو باندې ذمه وار - د هر يو خبر يو وخت مقرر دے - او نزدے چه

تَعْلَمُوْنَ ﴿٦٧﴾

تاسو پوهه شئ -

# لنډ تفسير

ته (دا هم) او وايه چه (څنګه هغه په نجات ورکولو قادر دے دغه شان) په دے هم هغه قادر دے چه په تاسو (ستاسو د شرک او کفر په وجه) څه عذاب ستاسو د پاسه نه راولیږی (لکه کانړی یا هوا یا طوفانی باران) یا ستاسو د خپو د لاندې (چه زمکه ده د دے) نه (رښکاره کړی لکه زلزله یا غرقیدل او د دے عذابونو نزدے اسباب خود الله تعالیٰ نه سوا د بل چا په اختیار کښے نیشتے چه ته به داسے او شی خواه په دُنیا کښے یا په آخرت کښے) یا چه تاسو لره (د غرضونو په اختلاف سره په مختلفو) ډلو کښے تقسیم کړی او تولو لره (په خپل مینځ کښے) اوجنګوی (یعنی او جنګوی) او تاسو بعضو لره د بعضو جنګ (مزه) اوڅکوی (او دا دے نزدے سبب اختیاری کار دے، او یا ټول آفتونه جمع کړی، غرض تاسو لره نجات ورکول او په عذاب کښے اخته کول دواړه د هغهٔ په قدرت کښے دی،) اے محمد صلی الله علیه وسلم ته او ګوره چه مونږ څنګه دلیلونه (د توحید) په مختلفو اړخونو سره بيانوو، شائيد چه دوی (خلق) پوهه شی او (د الله تعالیٰ په عذاب ورکولو د قادر يدو او د کفر او شرک په سبب په عذابيدو د پوهيدو باوجود) ستا د قوم خلقو (قريشو او عربو هم) دے (عذاب) لره دروغژن کړو

(او دَ دے دَ نه واقع کیدو عقیده لری) حال دا دے چه هغه یقینی (واقع کیدونکے) دے (او چه دا واوری نو دوی وائی چه کله به وی نو) ته (دا سے) اووایه چه زهٔ په تاسو (دَ عذاب واقع کولو دَ پاره) نه یم مقرر شوے (چه ما ته به ئے خبر وی یا به ئے ما په اختیار کښے وی البته) دَ هر یو خبر دَ پاره دَ واقع کیدو یو وخت (دَ الله تعالیٰ په علم کښے مقرر) دے او ژر به تاسو ته معلومه شی (چه دا عذاب راځی)۔

# مَعْلُومَاتْ اَوْمَسْئِلے

په تیرو اٰیاتونو کښے دَ الله جل شانهٔ دَ لوئے علم او بے مثاله قدرت دا اثر ذکر ده۔ چه دَ هر انسان هر یو مصیبت هغه لرے کولے شی' او دَ مصیبت په وخت کښے چه څوک دهٔ لره رابلي دَ الله تعالیٰ امداد په خپلو سترګو سره وینی۔ ځکه چه دَ دهٔ په ټولو کائناتو کامل قدرت هم دے او په تمام مخلوق ئے کامل رحمت هم دے۔ دَ دهٔ نه سِوا نه چا ته کامل قدرت حاصل دے او نه په ټول مخلوق باندِ رحمت او شفقت۔

په دے ذکر شوو اٰیاتونو کښے دَ کامل قدرت دَ بل اړخ بیان دے چه لکه څنګه دَ الله تعالیٰ په قدرت دا دی چه څه عذاب څهٔ مصیبت او خومره دَ لویو نه لوئے اٰفت هغې لوه لرے کولے شی۔ دغه شان هغهٔ ته په دے هم قدرت حاصل دے چه کله یو سړے یا یوه ډله دَ هغهٔ نه دَ سرکشئ دَ سزا په عذاب کښے اخته کول او غواړی نو دَ هر قسم عذاب هغهٔ ته اسان دے دَ مجرم له دَ سزا ورکولو دَ پاره دَ دُنیا دَ حاکمانو په شان هغهٔ ته نه پولیس او فوج حاجت دے او نه ورته دَ چا مدد کار ضرورت شته۔ دا مضمون ئے دا سے بیان کړے دے:-

قُلْ هُوَ الْقَادِرُ عَلٰٓی اَنْ یَّبْعَثَ عَلَیْکُمْ عَذَابًا مِّنْ فَوْقِکُمْ اَوْ مِنْ تَحْتِ اَرْجُلِکُمْ اَوْ یَلْبِسَکُمْ شِیَعًا؛ یعنی الله تعالیٰ په دے هم قادر دے چه او لیګی په تاسو باندِ څهٔ عذاب ستاسو دَ پاسه نه یا ستاسو دَ خپو دَ لاندِ نه، یا تاسو په مختلفو پارټو کښے تقسیم کړی دَ یو بل سره مو او ځُخلَوی او دَ یو بل دَ لاسه مو په عذاب هلاک کړی۔

**د الله تعالیٰ د عذاب درې قسمونه**

دَ لته دَ الله تعالیٰ جلّ شانهٗ دَ عذاب دَ درې قسمونو ذکر دے. یو کوم چه دَ بره نه راشی، دویم چه دَ لاندې نه راشی دریم چه پخپله منځ کښې اختلاف پیدا شی - بیا ئے لفظ دَ ، عَذَابًا : لره دلته کښې دَ تنوین سره نکره راوړې دَ عربی قواعد و په اعتبار سره په دے باندې خبردارے ورکړو چه په دے دریو قسمونو کښې هم بیا مختلف قسمونه او صورتونه کیدے شی -

تفسیر لیکونکو حضراتو لیکلی دی - چه دَ بره نه دَ عذاب راتلو مثالونه په تیرو امتونو کښې ډیر تیر شوی دی لکه دَ نوح علیه السلام په قوم باندې دَ باران سخت سیلاب راغے، او په قوم عاد باندې دَ هوا طوفان، او په قوم دَ لوط ع باندې دَ پاسه نه دَ کڼو باران اوشو، په بنی اسرائیلو باندې دَ وینے او چنګښانو وغیره باران اوشو، په اصحاب فیلو باندې کله چه دوی په مکه حمله اوکړه نو دَ مرغو په ذریعه پرې داسې کیڼی او ورولے شوے چه دوی ټول پرې دَ جوتلو بوسو په شان شو -

دغه شان دَ لاندې نه دَ راتلونکی عذاب هم په تیرو قومونو کښې مختلف صورتونه تیر شوی دی - دَ نوح علیه السلام په قوم خو دَ پاسه نه دَ باران طوفان راغے او دَ لاندې نه عذاب پرې دَ زمکے نه اوبه خوټکیدل شروع شو، غرض دا دے چه دَ لاندې او باندې دواړه قسمه عذابونو کښې په یو وخت ګرفتار شو - او دَ فرعون قوم دَ خپلو لاندې عذاب کښې غرق شو، قارون هم سره دَ خپلو خزانو په دے عذاب کښې ګرفتار شو او په زمکه کښې ننوت -

او حضرت عبدالله بن عباسؓ او مجاهدؒ وغیره دَ تفسیر اماما نو فرمائیلی دی چه دَ بره دَ عذاب نه مراد دادے چه ظالم بادشاه او بے رحمه حاکمان به پرے مسلط شی او دَ لاندې عذاب نه مراد دا دے چه دَ خپلو نوکرانو خدمتګارانو یا ما تحت نوکرانو دَ بے وفائی غدارئ کام چورئ خیانت کرئ په عذاب کښې به اخته شی -

دَ نبی کریم صلے الله علیه وسلم دَ یو څو ارشاداتو نه هم دَ حضرت عبدالله بن عباس دَ دے تفسیر تائید کیګی - په مشکوٰة شریف کښې په حواله دَ شعب الایمان بیهقی دَ نبی کریم صلے الله علیه وسلم دا ارشاد نقل دے :-

| كَمَا تَكُوْنُوْنَ يُوَمَّرُ عَلَيْكُمْ - | یعنې څنګه چه ستاسو عملونه ښه یا بد وی دغه شان به درباندې امیران مسلط کرې شي: |
|---|---|

که تاسو نیک او د الله تعالیٰ فرمانبردار وئ نو ستاسو حاکمان او امیران به هم رحم دله او انصاف کوونکی وی، او که تاسو بد عمله وئ نو په تاسو به حاکمان هم بې رحمه او ظالمان مسلط کولے شي. د مشهورے وینا: اَعْمَالُكُمْ عُمَّالُكُمْ ؛ هم دا مطلب دے -

او په مشکوٰة کښې په حواله د حُلیه ابی نعیم روایت دے چه نبی کریم صلے الله علیه وسلم فرمائیلی دی چه :-

الله تعالیٰ فرمائی چه زهٔ الله یم، ځما نه سوا بل معبود نیشته زهٔ د تمولو بادشاهانو مالک او بادشاه یم، د تمولو بادشاهانو زړونه ځما په لاس کښې دی، کله چه ځما بندګان ځما فرمانبرداری کوی نو زهٔ د دوی د حاکمانو او بادشاهانو په زړونو کښې شفقت او رحمت غورزوم، او کله چه ځما بندګان ځما نافرمانی کوی نو زهٔ د دوی د حاکمانو په زړونو کښې سختی راولم نو هغوی په دوی هرقسم عذابونه راولی، په دے وجه تاسو خپلو حاکمانو او امیرانو ته په بد ورډو وئیلو کښې خپل وخت مه ضائع کوئ د خپل عمل د برابرولو په فکر کښې شروع شئ چه ستاسو ټول کارونه برابر کړم :"

دغه شان په ابوداؤد، نسائی کښې د حضرت عائشهؓ نه روایت دے چه نبی کریم صلے الله علیه وسلم فرمائیلی دی چه :-

"کله چه الله تعالیٰ د یو امیر او حاکم خیر او ښیګړې غواړی نو هٔ لره ښهٔ وزیر او ښهٔ نائب ورکوی چه که د امیر نه څهٔ هیریګی نو هغهٔ ورته یادوی، او کله چه امیر صحیح کار کوی نو دے ئے مدد کوی. او کله چه د یو امیر او حاکم د پاره بدی مقرر کړی نو ناکاره خلقو لره د ده وزیران او ماتحتان جوړ کړی " (الحدیث)

د دے روایتونو او د ذکر شوی ایت د تفسیر نچوړ دا دے چه انسان ته

کوم تکلیفونه او مصیبتونه چه دَ خپلو حاکمانو دَ لاسه رَسی دا دَ بره نه عذاب دے، او کوم چه دَ خپلو ماتحتانو او نوکرانو نورته رَسی دا دَ لاندِ نه را تلونکے عذاب دے - دا ټول څه اتفاقی حادثے نه وی - بلکه دَ الله تعالیٰ دَ قانون لاندِ دَ انسان دَ عملونو سزا وی - حضرت سفیان ثوریؒ فرمائی چه کله ځما نه څهٔ گناه اوشی نو دَدے اثر زهٔ په خپلو نوکرانو او دَ سوارلئ په آس او دَ بار اُوچتوَلو په خر کښے وینم، چه دا ټول ځما نافرمانی شروع کړی - مولانا رومیؒ فرمائی: ے

خلق را با تو چنین بدخو کنند
تا ترا ناچار رو آنسو کنند

ژباړه: ترجمه په دے پاره کښے په ص ۱۴۹ باندِ لیکلے شوے ده حلته او گورئ

یعنی الله تعالیٰ په دنیا کښے ستا سو دَ حاکمانو یا ماتحتو نوکرانو په ذریعه ستا دَ مزاج خلاف دَ تکلیف درکوونکو معاملو ظاهری عذاب په تاسو مسلّط کړی دا په حقیقت کښے ستا سو ځیل طرف ته راګرځول غواړی چه تاسو پوهه شئ او خپل عملونه برابر کړئ دَ آخرت دَ لوئے عذاب نه بچ شئ -

لنډه دا ده چه دَ حضرت عبد الله بن عباس دَ تفسیر مطابق دَ حاکمانو زور زیاتے دَ پاسه نه عذاب دے - او دَ ماتحتو نوکرانو بے ایمانی، کام چوری، غدّاری دَ لاندِ نه راتلونکے عذاب دے - او دَ دواړو علاج یو دے، چه ټول دَ خپلو خپلو عملونو جائزه واخلی او دَ الله تعالیٰ دَ نافرمانئ او بے لارے توبه نه واپس شی، نو قدرت به پخپله داسے حالات پیدا کړی چه دا مصیبت به ختم شی - ورنه صرف په مادی تدبیرونو سره دَ دے دَ اصلاح امید ساتل خپل نفس له دَ دوکے ورکولو نه سوا نور هیڅ نیشتے، چه تجربه ئے هر وخت کیدے شی: ے

خویش را دیدیم و رسوائی خویش
امتحان ما مکن ای شاه بیش

ژباړه: ځان هم وینم او خپله رسوائی هم وینم اے بادشاهٔ نور امتحانونه په ما باندِ مه کوه: یعنی زهٔ پکښے کامیاب کیدے نه شم نو په ما نور امتحان مه کوه)

دَ برَه او لاندِ دَ عذاب کوم مختلف تفسیرونه چه تاسو بره اوس واوریدل په حقیقت کښے په دے کښے هیڅ اختلاف نیشته - ځکه چه لفظ دَ : عَذَابًا : کوم چه په دے اٰیت کښے راغلے دے په حقیقت کښے په دے ټولو تفسیرونو باندِ حاوی ئے دَ آسمان نه وریدونکے کانړی وینه، اُوړا او دَ اُوبو سیلاب او دَ اُوچتو حاکمانو ظلم او زور دا ټول دَ برَه نه په راتلونکی عذاب کښے داخل دی، او ز مکه ځیر یدل دَ یو قوم پکښے ننوتَل ، یا دَ زمکے نه دَ اُوبو راخوټکیدل او په حغې کښے غرقیدل ، یا دَ ما تحت نوکرانو دَ لاسه په مصیبت کښے اخته کیدل ، دا ټول دَ لاندِ نه راتلونکی عذابونه دی -

دریم قسم عذاب چه په دے اٰیت کښے ئے ذکر شوے دے هغه دا دے : اَوْ يَلْبِسَكُمْ شِيَعًا : یعنی تاسو مختلفو پارټئ جوړے شئ او دَ یو بل سره اُونخلئ - او دَ یو بل دَ پاره عذاب جوړ شئ -

په دے کښے لفظ دَ : يَلْبِسَكُمْ ; دَ لَبِسَ : مادے نه جوړ دے چه اصلی معنیٰ ئے پټول دی - په دے معنیٰ سره لِبَاس هغه کپړو ته وئیلے شی کوم چه دَ انسان بدن پټوی - او په دے وجه سره اِلْتِبَاس په معنیٰ دَ شبهے او اشتباه استعمالیګی کوم ځائے چه دَ یوے خبرے مراد پټ وی صاف او ښکاره نه وی -

او لفظ دَ : شِيَعٌ : دَ شِيْعَةٌ جمع ده چه معنیٰ ئے ده په چا پسے تلل او تابعدار کیدل، په قرآن مجید کښے دی : وَاِنَّ مِنْ شِيْعَتِهٖ لَاِبْرٰهِيْمَ : یعنی دَ نوح علیه السلام په نقش قدم تلونکے دے ابراهیم علیه السلام په دے وجه په عُرف او محاوره کښے لفظ دَ ، شیعه : داسے ډلے ته وئیلے شی چه دَ څهٔ خاص غرض دَ پاره جمع شوی وی - او په دغه غرض کښے دَ یو بل مدد ګاروی چه بامحاوره ترجمه ئے دَ نن صبا په ژبه کښے فریقه یا پارټي ده -

په دے وجه دَ اٰیت ترجمه داشوه چه دَ عذاب یو قسم دا دے، چه قوم په مختلفو پارټو کښے تقسیم شی دَ یو بل سره اُونخلی - په دے وجه چه کله دا اٰیت نازل شو نو نبی کریم صلے الله علیه وسلم مسلمانانو ته او فرمائیل :

لَا تَرْجِعُوْا بَعْدِيْ كُفَّارًا يَّضْرِبُ بَعْضُكُمْ رِقَابَ بَعْضٍ -

* يعنې تاسو ځما نه پس د کافرانو په شان مه کيږئ چه يو د بل څټ وهئ ؟

(ابن ابي حاتم د زيد بن اسلم نه روايت کړے دے) (مظهري)

حضرت سعد بن ابي وقاص فرمائي چه يو وار مونږ د نبي کريم صلے الله عليه وسلم سره تلو، مونږ د بنې معاويه په جمات بانديِ راغلو نو نبي کريم صلے الله عليه وسلم جمات ته د ننه تشريف يوړو او دوه رکعته مونځ ئے اوکړو، د دے نه پس په دُعا کښے مشغول شوا و تر ډيره وخته پورے ئے دُعا کوله - د دے نه پس ئے ارشاد اوفرمايه چه ما د خپل رب نه د درے څيزونو سوال اوکړو، يو دا چه ځما اُمّت په غرقيدو هلاک نه کړے - الله تعالىٰ دا دُعا قبوله کړه دويم دا چه ځما امّت د قحطا او لوږے په ذريعه هلاک نه کړے دا ئے هم قبوله کړه، دريمه دُعام دا اوکړه چه ځما امت په خپل مينځ کښے په جنګ جګړو تباه نه شي. زه د دے دُعا نه منع کړے شوم (مظهري بحواله بغوي)

د دے مضمون يو حديث د حضرت عبد الله بن عمرؓ نه نقل دے - چه په دے کښے په درے دُعاګانو کښے يوه دُعا دا ده چه: ځما په امّت چا دشمن لره مُسلّط نه کړے چه هغه دوي ټول هلاک کړي دا دُعا قبوله شوه او په يو بل پورے او نه نخلي دا دعا قبوله نه شوه -

د دے روايتونو نه ثابته شوه چه امّتِ محمديه په صاحب د دوي دِ درود او سلام وي دغه قسم عذاب خو به نه راځي کوم چه په تير و امتونو د آسمان يا زمکے د طرف نه راغلي دے چه ټول قوم پرِ تباه اوبرباد شوے دے - ليکن يو عذاب په دُنيا کښے به په دوي راځي، هغه عذاب په خپل مينځ کښے جنګ جګړے د فرقو او پارټو د يو بل سره نښتَه، په دے وجه نبي کريم صلے الله عليه وسلم امّت لره په فرقو او پارټيانو کښے د تقسيميدو، او پخپل مينځ کښے د يو بل سره د جنګ جګړو نه د منع کولو انتهائي په سختئ سره منع کړے ده - او په هر موقع ئے د دے يره بيان کړے ده چه په تاسو د خدائے تعالىٰ عذاب په دے دنيا کښے که راځي نو په خپل مينځ کښے د جنګ جګړو په ذريعه به راځي -

دَ سورتِ هود په یو ایت کښې دا مضمون زیات په وضاحت سره راغلے دے۔

وَلَا يَزَالُوْنَ مُخْتَلِفِيْنَ اِلَّا مَنْ رَّحِمَ رَبُّكَ ۔

" یعنی خلق همیشه په خپل مینځ کښې اختلاف کوی بغیر دَ هغه خلقو نه په کوموچه الله تعالیٰ رحمت او کړو۔"

دَ دے نه په ډاګه شوه چه کوم خلق په خپل مینځ کښې ( بغیر دَ شرعی وجه نه) اختلاف کوی هغوی دَ رحمت دَ خدائے نه محرومه پاتې دی۔

په یو ایت کښې ارشاد دے: وَاعْتَصِمُوْا بِحَبْلِ اللّٰهِ جَمِيْعًا وَّلَا تَفَرَّقُوْا:
په بل ایت کښې ارشاد دے: وَلَا تَكُوْنُوْا كَالَّذِيْنَ تَفَرَّقُوْا وَاخْتَلَفُوْا:

دَ دے ټولو ایاتونو او روایتونو نچوړ دا دے چه اختلاف ډیر منحوس او ناکاره شے دے۔ نن که په دینی او دُنیوی هر حیثیت سره دَ مسلمانانو دَ تنزل او بربادئ په اسبابو غور او کړے شی نو دَ اکثرو مصیبتونو سبب دا پخپل مینځ کښې اختلاف او مشت وګریبانی په نظر راځی۔ زمونږ دَ بدو عملونو په نتیجه کښې دا عذاب په مونږ مسلط شو۔ چه هغه قوم چه دَ ټولې دَ یو والی مرکز یوه کلمه دَ: لَآ اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ مُحَمَّدٌ رَّسُوْلُ اللّٰهِ؛ وه۔ دَ دے کلمے منونکے دَ زمکے په هره حصه کښې چه وه، دَ هرے ژبے ویونکے چه وه، دَ هر رنګ، هر نسل، هر نسب سره چه به ئے تعلق وه ټول دونړه رونړه وو۔ دَ غرونو او دریابو نو سختئے لارے دَ دوی په یو والی کښې حائلے نه وے۔ دَ نسب خاندان، رنګ ژبے تفاوت دَ دوی په لاره کښې بندیز نه وه۔ دَ دوی قومی یو والے صرف دَ دے کلمے سره تړلے شوے وه، دَ عرب، مصری، شامی، ترکی، هندی، چینی تقسیم صرف دَ دوی دَ پیژندو او شناخت دَ پاره وه نور هیڅ نه وو۔ په قول دَ اقبال مرحوم:

در ویش خدامست نه شرقی ہے نه غربی
گھر اُسکا نه دلّی نه صفاہان نه سمرقند

(مطلب دا دے چه مسلمانان قول دَ خدائے دَ دین په وجه یو قوم دے که دَ مشرق وی او که دَ مغرب وی او دَ دوی وطن ټوله دنیا ده دلی اصفهان او سمرقند دَ دوی دَ پاره خاص نه دی)

نن دَ نورو قومونو په لمسوا و په پیسو کوششونو بیا دوی په نسلی، لسانی او وطنی قومیتونو کښې تقسیم شو۔ او بیا په دوی کښې هم هر یو قوم په خپل مینځ کښې ګنډ ګنډ او خواره واره په مختلفو پارټیو کښې او ویشلے شو...

هغه قوم دَ کوم نښه چه دَ غیر و سره هم دَ عفوے او معافئ وه او دَ جګړے نه دَ بچ کیدو دَ پاره به ئے خپل دَ لویو نه لوئے حق پاتے کولو۔ نن دَ دے قوم ډیر خلق په معمولی او ذلیل خواهش پسے دَ لوئے نه لوئے تعلق قربانوی دا هغه دَ غرضونو او خواهشاتو اختلاف دے کوم چه دَ قوم او ملت دَ پاره منحوس او په دے دُنیا کښې نقد عذاب دے۔

خو هاں دلته په دے خبره هم ځان پوهه کول ضروری دی چه هغه اختلاف کوم ته چه په قرآن کښې دَ الله عذاب او دَ خدائے دَ رحمت نه محرومی ویئلے ده هغه هغهٔ اختلاف دے کوم چه په اصولو او عقائدو کښې وی، یا دَ نفسانی غرضونو و خواهشاتو په وجه سره وی۔ په دے کښې هغه اختلاف رائے داخل نه دے کوم چه دَ قرآن او سُنّت دَ خودکلو شوو اُصولو دَ اجتهاد لاندې په فروعی مسئلو کښې دَ اُمّت په فقها وُ کښې دَ اوّل نه زمانے دَ اصحابوؓ او تابعینو نه راروان دے، ځکه کوم کښې چه دَ دواړو فریقو دلیل دَ قرآن، حدیث او اجماع دے، او دَ هریو نیّت دَ قرآن او سنّت دَ حکمونو منل دی، مګر دَ قرآن او سنّت دَ مجملو یا مبهمو الفاظو په تعبیر او دَ دوی نه دَ فروعی مسئلو په راویستلو کښې دَ اجتهاد د او رائے اختلاف دے۔ داسے اختلاف ته په یو حدیث کښې رحمت فرمائیلے شوے دے۔

په جامع صغیر کښې په حواله دَ نصر مقدسی او بیهقی او امام الحرمین دا روایت نقل کړے دے چه:

:اِخْتِلَافُ اُمَّتِیْ رَحْمَةٌ "زما دَ امّت اختلاف رحمت دے" دَ امّت محمدﷺ خاص والے ئے په دے وجه اختیار کړے دے چه دَ دے اُمّت په علماءِ حقو او متقیانو فقها وُ په مینځ کښې چه کوم اختلاف دی هغه به همیشه دَ قرآن او سُنّت دَ اُصولو لاندې وی او خاص دَ خدائے دَ پاره په رشتینی نیّت سره به وی۔

دَ دوی په دے اختلاف کښې څهٔ نفساني غرض دَ مرتبے پامال نهٔ وی، نو په دے وجه دغه دَ څهٔ جنګ جګړے سبب هم نه جوړیګی، بلکه دَ علامه عبد الرؤف مناوی شارح دَ جامع صغیر دَ تحقیق مطابق دَ امت دَ فقهاؤ دَ مختلفو مسلکو نو به هغه درجه وی کومه چه په تیره زمانه کښې دَ انبیاؤ علیهم السلام دَ مختلفو شریعتو نو ده - چه دَ اختلاف با وجود قول دَ الله تعالیٰ حکمونه وو- دغه شان دَ امت دَ مجتهد ینو مختلفو مسلکو نو ته دَ قرآن او سنت دَ اصولو لاندِ راتلو په وجه سره تعلو ته دَ خدائے او رسول حکمونه ویئلے شی -

دَ دے اجتهادی اختلاف مثال په ښکاره څیزونو کښې داسے دے لکه چه دَ ښهر لوئے سړکونه دَ تلونکو دَ آسانئ دَ پاره په مختلفو حصو کښې تقسیم کړلے شی په یوه حصه بسونه ځی په بله نور کاری دغه شان دَ سائیکلو نو او پیاده تلونکو دَ پاره دَ ورځې جدا یوه حصه وی - دَ یو روډ په څو حصو کښې تقسیم هم اګرچه په ظاهره با ندِ دَ یو اختلاف صورت دے، مګر چونکه دَ ټولو ځی یو طرفته دے او په هره حصه تلونکے یو منزل مقصود ته رَسی - په دے وجه دَ لار و دا اختلاف په ځائے دَ مضر کید و فائده مند او دَ تلونکو دَ پاره فراخی او رحمت دے -

دا وجه ده چه دَ مجتهد امواماما نوا ودَ اُمت دَ فقهاؤ په دے اتفاق دے چه په دوی کښې دَ یو مسلک هم باطل نهٔ دے، او کوم خلق چه دَ دوی پیروی کوی دوی ته دَ نورو په نزد ګناه ګار ویئل جائز نهٔ دی- دَ مجتهد ینو اماما نو او دَ امت دَ فقهاؤ دَ مذ هبونو دَ اختلاف مطلب دَ دے نه سوا نهٔ دے چه یو مجتهد کوم مسلک اختیار کړے دے هغه دَ ده په نزد زیات قوی دے، مګر دَ ده په مقابله کښې دَ بل مجتهد مسلک ته هم باطل نهٔ وائی- بلکه دَ یو بل پوره احترام کوی- دَ فقهاؤ صحابه وُاو دَ تابعینو او دَ خلورو اماما نو بے شماره حالات او واقعات په دے ګواه دی چه اګر که دَ دوی فقهی مسلک په ډیرو مسئلو کښې دَ یو بل نهٔ مختلف وهٔ او علمی بحثو نهٔ ئے جاری وُو خو بیا به ئے هم په یو بل پوره اعتماد او دَ یو بل احترام کولو- دَ جنګ جګړے او دشمنئ خو دَ دوی په مینځ کښې هډو څهٔ احتمال نهٔ وهٔ-

او دَ دوی دَ تابعدارانو او تقلید کوُنکو هم ترکومه حده پورې چه صحیح علم او دینداري وه نو دَ یو بل سره کے معاملے دغه شان برابرې اوروغې وې۔

دا اختلاف دے چه سراسر رحمت دے او دَ خلقو دَ پاره دَ فراخئ او آسانئ ذریعه ده او ډیرے فائده مندے نتیجے لري۔ او حقیقت دادے چه په فروعي مسئلو کښے دَ خیالونو اختلاف ترکومه پورے چه په خپل حد کښے دَ ننه وي دَغه څهٔ مُضِر شے نه دے۔ بلکه دَ مسئلے مختلف اړخونه په ډاګه کیدل او صحیح نتیجے ته دَ رسیدو دَ پاره یو مدد ګار دے۔ او کوم ځائے چه دینداره عاقلان جمع وي نو دا ممکنه نه ده چه په څهٔ مسئله کښے به دَ دوی اختلاف نه وي۔ دا بے قانون خو یا دَ بے عقلو کیدے شي دَ چا چه هیڅ وخت پوهه نه وي، یا دَ بے دینو کیدے شي چه دَ څهٔ پارټئ وغیره دَ لحاظه دَ ضمیر خلاف رائے باندِ اتفاق او کړي۔

دَ رائے اختلاف چه په خپلو حدونو کښے دَ ننه وي۔ یعنی دَ قرآن او سنّت په قطعي او اعتقادي مسئلو او قطعي احکامو کښے نه وي۔ صرف په فروعي اجتهادي مسئلو کښے وي په کومو کښے چه دَ قرآن او سنت واضح دلیل نه وي۔ او هغه هم دَ جنګ جګړے او لعن طعن حدته نه رسي نو دا په ځائے دَ مُضِر فائده منداو یو نعمت او رحمت دے۔ لکه څنګه چه په کائناتو دَ عالم کښے دَ ټولو څیزونو په شکل، صورت، رنګ، بوئی، نفع او خاصیت کښے اختلاف دے، په حیواناتو کښے په لاکونو مختلف قسمونه۔ په بني نوع انسان کښے دَ مزاجونو، کسبونو، دَ اوسیدو دَ طریقو، اختلاف دا ټول دَ دے دنیا دَ ښائست زیاتولو او بے شماره نفعو اسباب دي۔

ډیر خلق چه په دے حقیقت پوهه نه دي دوی دَ فقهاؤ په مذهبونو او دَ علمائے حق په فتو و کښے اختلاف ته هم په سپک نظر سره ګوري۔ دَ دوی نه دا سے آؤریدے شي چه دَ علماؤ په خپل مینځ کښے اختلاف دے نو مونږ کوم خوا لاړ شو۔ حال دادے چه خبره بالکل صاف ده۔ چه لکه څنګه دَ یو بیمار په معامله کښے دَ ډاکټرانو طبیبانو خیالات مختلف وي

نو هرسړے دَ دے معلوموولو کوشش کوی چه په دوی کښے دَ فن په اعتبار سره زیات ماهر او تجربه کار کوم یو دے - نو بس دَ هغه نه علاج شروع کوی خو نورو ډاکټرانو ته بَد رَدْ نه وائی - دَ مقدمے په وکیلانو کښے اختلاف وی، نو کوم وکیل چه ورته زیات قابل او تجربه کار معلوم شی دَ هغهٔ په وینا عمل کوی - خو نورو ته بد ے رَدے نه وائی - هم دغه اُصول دلته په کار دی - کله چه په یوه مسئله کښے دَ علماوُ فتوے مختلفے شی نو دَ خپل طاقت مطابق دَ تحقیق کولو نه پس چه دَ کوم عالم علم او تقوٰی دَ نورو نه زیاته او غوره اوګنړی دَ هغهٔ تابعداری دِ کوی خو نورو ته دے بد ے رَد ے نه وائی -

حافظ ابن قیمؒ په اعلام الموقعین کښے نقل کړے دے چه دَ ماهر مفتی انتخاب، او په صورت دَ اختلاف کښے په دوی کښے دَ یوتن فتوے لره ترجیح ورکول کوم چه دَ دهٔ په نزد په علم او تقوٰی کښے دَ ټولونه زیات وی - دا کار دَ هر یو معاملے خاوند مسلمان په ذمه په خپله لازم دے - دَ دهٔ کار دا خو نه دے چه دَ علماوُ په فتوو کښے دَ یو فتوے لره ترجیح ورکړی - لیکن دا دَ دهٔ کار دے چه په مفتیانو او علماوُ کښے کوم لره چه دے په خپل نزد دَ علم او دیندارئ په اعتبار سره زیات غوره ګنړی دَ دهٔ په فتوٰی عمل اوکړی، مګر نورو عالمانو او مفتیانو ته دے بَد ے رَدے نه وائی - دَ دا سے کار کولو نه پس دے دَ الله تعالیٰ په نزد آزاد دے ذمواری ئے نیشته که په حقیقت کښے څهٔ غلطی دَ فتوٰی ورکوونکی نه شوے هم وی نو هغه ئے ذموار دے -

بچو ته دَ خبرے دا دے چه نه هَر اختلاف مطلق بَدْ او نه هَر اتفاق مطلق غوره او ښهٔ دے که غلهٔ ډاکوان او باغیان تماشه یوه ډله جوړه کړی او متفق شی نو څوک به دے نه پوهیګی چه دَ دوی دا اتفاق بَدْ ناکاره او دَ قوم دَ پاره هلاکوونکے دے - او دَ دوی خلاف چه کوم کار کوشش دَ عوامو یا پولیس وغیره دَ طرف نه دَ دغے ډلے په مخالفت کښے کیږی دغه دَ هَر یو هوښیار په نظر کښے غوره او فائده مند اختلاف دے.

معلومه شوه چه خرابي د رائے په اختلاف کښې نيشتے اونه په يوه رائے باندِ په عمل کولو کښې ده - بلکه ټولے خرابۍ د نورو متعلق په بد وګمانو نو او بدو ويناګانو کښې راپيخيګي - چه د علم او دينداريٰ د کمي او د غرضونو او خواهشونو د زياتي په نتيجه کښې وي - اوکله چه په يو قوم يا ډله کښې دا صورت پيدا شي نو دَ دوی دَ پاره دا اختلاف د رحمت هم د اختلاف د عذاب په صورت کښې بدل شي - او په مسلمانانو کښې پارټۍ جوړے شي د يو بل خلاف په جنګ جګړو او بعض وخت خو دَ يو بل په قتلو نو کښې اخته شي - او دَ يو بل خلاف لعن طعن او بدے ردے ويئيل خو د مذهب حمايت کول ګنړي - حال دا دے چه دَ دے غلوُ او زياتي سره د مذهب هيڅ تعلق نه وي - بلکه دا هغه جګړه ده چه نبي کريم صلے الله عليه وسلم تر په سختۍ سره منع کړے ده - په صحيح احاديثو کښے ئے دے ته د قومونو د ګمراهۍ سبب وئيلے دے (ترمذي ابن ماجه)

په دويم اٰيت کښے ئے د نبي کريم صلے الله عليه وسلم د برادرۍ يعني د مکے د قريشو د حق د مخالفت ذکر کړے دے نبي کريم صلے الله عليه وسلم ته ئے دا هدايت فرمائيلے دے چه دا خلق چه ستاسو د عذاب د واقع کيدو دَ مقرر وخت تپوس کوی، ته دوی ته او وايه چه زهٔ دَ دے کار د پاره نه يم مسلط شوے، بلکه د هرے خبرے يو وخت د الله په علم کښې مقرر دے، نو دغه به په خپل مقرر وخت باندِ کيږي - او نتيجه به ئے ستاسو د وړاندِ راشي -

---

وَاِذَا رَاَيْتَ الَّذِيْنَ يَخُوْضُوْنَ فِيْٓ اٰيٰتِنَا فَاَعْرِضْ

اوکله چه تهٔ اووينے هغه خلق چه جګړے کوی زمونږ په اياتونو کښې نو دَ دوی

عَنْهُمْ حَتّٰى يَخُوْضُوْا فِيْ حَدِيْثٍ غَيْرِهٖ ؕ وَاِمَّا

ترڅو چه تردے چه مشغول شي په بله خبره کښې - اوکه

يُنسِيَنَّكَ الشَّيْطٰنُ فَلَا تَقْعُدْ بَعْدَ الذِّكْرٰى مَعَ

هیر کړی ستا نه شیطان نو مه کینه د یادیدو نه پس د

الْقَوْمِ الظّٰلِمِيْنَ ﴿۶۸﴾ وَمَا عَلَى الَّذِيْنَ يَتَّقُوْنَ مِنْ

ظالمانو سره - او په پرهیزګارانو نیشته د

حِسَابِهِمْ مِّنْ شَيْءٍ وَّلٰكِنْ ذِكْرٰى لَعَلَّهُمْ

جګړه کونکو د حساب نه څه شے لیکن د دوی په ذمه نصیحت کول دی چه

يَتَّقُوْنَ ﴿۶۹﴾ وَذَرِ الَّذِيْنَ اتَّخَذُوْا دِيْنَهُمْ

هغوی او ویریږی - او پریږده هغو لره چا چه جوړ کړے دے خپل دین لره

لَعِبًا وَّلَهْوًا وَّغَرَّتْهُمُ الْحَيٰوةُ الدُّنْيَا وَذَكِّرْ

لوبه او تماشه او دوکه کړیدی دوی لره د دنیا ژوند او نصیحت کوه دوی

بِهٖٓ اَنْ تُبْسَلَ نَفْسٌ بِمَا كَسَبَتْ ۖ لَيْسَ لَهَا

په قرآن سره چه ګرفتار نه شی څوک په خپلو کړو وکینے - چه نه وی د ده د پاره

مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ وَلِيٌّ وَّلَا شَفِيْعٌ ۚ وَاِنْ تَعْدِلْ

د الله نه سوا څوک حمایتی او نه سفارش کوونکے - او که په بدله کښے ورکړی

كُلَّ عَدْلٍ لَّا يُؤْخَذْ مِنْهَا ۗ اُولٰٓئِكَ الَّذِيْنَ

ټول بدلے نو قبول به نه شی د ده نه - دغه خلق دی چه

اُبْسِلُوْا بِمَا كَسَبُوْا ۚ لَهُمْ شَرَابٌ مِّنْ حَمِيْمٍ

ګرفتار شو په خپلو کړو وکینے - دوی لره سکل دی ګرمے اوبه

وَّعَذَابٌ اَلِيْمٌۢ بِمَا كَانُوْا يَكْفُرُوْنَ ﴿۷۰﴾ قُلْ اَنَدْعُوْا

او عذاب دے دردناک په بدله د کفر کیتے ته ووایه چه آیا مونږ

مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ مَا لَا يَنْفَعُنَا وَلَا يَضُرُّنَا وَنُرَدُّ

اوبلو د الله نه سوا هغه لره چه نه نفع رسولے شی مونږ ته او نه نقصان او آیا واپس شو

عَلٰٓى اَعْقَابِنَا بَعْدَ اِذْ هَدٰىنَا اللّٰهُ كَالَّذِى

مونږ په پوندو خپلو د دے نه پس چه الله نیغه لار اوخوده مونږ ته په مثل د هغه چا

اسْتَهْوَتْهُ الشَّيٰطِيْنُ فِى الْاَرْضِ حَيْرَانَ لَهٗٓ

چه شیطانانو ترِلار ورکه کړی وی په ځنګل کیتے چه دے حیران وی د ده

اَصْحٰبٌ يَّدْعُوْنَهٗٓ اِلَى الْهُدَى ائْتِنَا ؕ قُلْ اِنَّ

ملګری را بلی ده لره لارے طرف ته چه زمونږ خوا ته راشه - ته ووایه چه

هُدَى اللّٰهِ هُوَ الْهُدٰى ؕ وَاُمِرْنَا لِنُسْلِمَ لِرَبِّ

الله کومه لار خودلے ده هغه لار ده نیغه - او مونږ ته حکم شوے دے چه تابعدار شو

الْعٰلَمِيْنَ ﴿۷۱﴾ وَاَنْ اَقِيْمُوا الصَّلٰوةَ وَاتَّقُوْهُ ؕ

د رب د مخلوقاتو - او دا چه قائم ساتئ مانځه لره او ویره کوئ د الله نه -

وَهُوَ الَّذِىْٓ اِلَيْهِ تُحْشَرُوْنَ ﴿۷۲﴾ وَهُوَ الَّذِىْ

او هغه دے چه د هغه مخے ته به تاسو جمع کړے شئ - او هغه دے چا چه

خَلَقَ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضَ بِالْحَقِّ ؕ وَيَوْمَ يَقُوْلُ

پیدا کړه آسمانونه او زمکه په ټیک طور سره - او په کومه ورځ چه او وائی

کُنْ فَيَكُوْنُ ۚ قَوْلُهُ الْحَقُّ ۭ وَلَهُ الْمُلْكُ يَوْمَ

چه شه نو هغه شي - دَ هغهٔ خبره رشتونی ده - او دَ هغه حکومت دے په کومه ورځ

يُنْفَخُ فِي الصُّوْرِ ۭ عٰلِمُ الْغَيْبِ وَالشَّهَادَةِ ۭ وَهُوَ

چه پوکے اوشي په شپیلئ کښے - پوهه دے په پټو او ښکاره خبرو - او هغه دے

الْحَكِيْمُ الْخَبِيْرُ ﴿٧٣﴾

حکمت والا خبر دار -

## لنډ تفسير

او (اے مخاطبه) کله چه ته هغو خلقو لره اووینے چه زمونږ په ایاتونو (او حکمونو) کښے عیبونه لټوی نو دَ دغے خلقو (په خوا کښے دَ کیناستو) نه دَ ځه او که چرے تر دے چه هغوی په څهٔ بله خبره کښے مشغول شي او که ستا شیطان هیر کړی (یعنی په داسے مجلس کښے دَ کیناستو نه منع درته یاده نه وی) نو (کله چه درته یاد شی) دَ یادیدو نه پس بیا دَ داسے ظالمانو سره مه کینه (فوراً تری پورته شه) او (که چرے څه واقعی دُنیوی یا دینی ضرورت داسے مجلس ته دَ تلو وی نو حکم ئے دا دے چه) کوم خلق چه (دَ شریعت دَ منع شو وخیزونو نه چه بے ضرورته داسے مجلس ته تلل په کښے هم داخل دی) احتیاط کوی په دوی باندِ دَ دے (طعن کونکو دروغژن کولکو دَ تپوس او دَ دے عیب لټولو) څه اثر نه وی (یعنی په څهٔ ضرورت سره حلته تلونکی به ګناه ګار نه وی) لیکن دَ دوی په ذِمه (په شرط دَ قدرت سره) نصیحت کول دی شاید چه دغه (طعنے کونکی) هم (دَ دے خرافاتو نه) احتیاط شروع کړی (خواه دَ اسلام په قبلولو یا دَ دوی دَ لحاظ نه) او (دَ دروغژن کولو دَ مجلس څه تخصیص نیشته بلکه) دَ داسے خلقو نه بالکل دَ ځهٔ کوَه چاچه خپل (دَ ے) دین لره (چه منل ئے دَ دوی په ذِمه

فرض وُو - یعنی اسلام لره) لهو لعب جوړ کړے دے (چه مسخرے ورپورے کوی) او
دَ دُنیا ژوند دوی په دوکه کښے اچولی دی (چه دَ دے په خوندونو کښے مشغول دی
او دَ آخرت نه مُنکر دی په دے وجه دَ دے مسخرو انجام نه وینی) او (اود دَ
دَ ړے کولو او تعلقاتو پاتے کولو سره سره دا سے خلقو ته) دَ دے قرآن په ذریعه
سره (په کوم پورے چه دوی مسخرے کوی) نصیحت هم کوه دَ دے دَ پاره چه
څوک سړے دَ خپل (بَدْ) عمل په سبب (په عذاب کښے) دا سے اُونه نخلی چه بغیر دَ
الله نه نهٔ څوک دَ دهٔ مدد ګار وی او نه سفارشی وی او دا حال دا سے وی چه که چرے
(فرض کړه) دَ ټولے دنیا (دا هرڅه) دے په بدل کښے ورکړی هم (چه دا هرڅه خرچ
کړی او دے دَ عذاب نه خلاص شی) خو دا به دَ دهٔ نه قبول نه کړے شی (نو په
نصیحت سره دا فائده ده چه دَ بد وعملونو په انجام باندِ پوهه شی دپاندِ منل
نه منل دے پوهه شه چنانچه) دوی (دا مسخرے کونکی) دا سے دی چه (نصیحت
ئے او نه منلو او) دَ خپل (بد) عمل په سبب سره (په عذاب کښے) ګیر شو (کوم
چه به په آخرت کښے دا سے ښکاره شی چه) دَ دوی دَ پاره به ډیرے تیز سے
(جوشید لی) اُوبه دَ څښلو دَ پاره وی او (دَ دے نه علاوه بله هم په دے
شان سره) دردناکه سزا به وی دَ خپل کفر په سبب (چه بد عمل دا دے چه
یوه حصه ئے مسخرے وے) ته (دَ ټولو مسلمانانو دَ طرف نه دے مشرکانو ته)
اُووایه چه آیا مونږ دَ الله نه سِوَ (رستاسو دَ مرضئ موافق) دَ داسے شی
عبادت اوکړو چه نه هغه (دَ هغهٔ دَ عبادت کولو په صورت کښے) مونږ ته
نفع رَسَوَلے (او قدرت ئے لرلے) شی او نه هغه (دَ هغهٔ دَ عبادت نه کولو په
صورت کښے) مونږ ته نقصان رَسَوَلے (او قدرت ئے لرلے) شی (مراد دَ دے نه
باطل معبودان دی چه دَ بعضو خو اصلاً قدرت نیشتے او کوم لره چه څهٔ
شته نو ذاتی نه دے ، او په معبود کښے کم نه کم دا قدرت پکار دے چه خپل موافق
او مخالف ته څهٔ نفع او ضرر رَسَولے شی - نو آیا مونږ دَ داسے څیز ونو عبادت
اوکړو) او آیا (معاذالله) مونږ (دَ اسلام نه) په پوند و وا پس شو پس دَ
هغے نه چه مونږ ته الله تعالیٰ (دَ حقے لارے) هدایت کړے دے (یعنی اول خو
شرک په خپله قبیح شے دے بیا خصوصاً پس دَ اختیار دَ لو دَ اسلام نه خو نوّت زیاهم

ناکاره دے، ورنه زموږ مثال خو به هغه شي) لکه يو سړے وي چه دهٔ لره
شيطانانو چرته په ځنګل کښې (غولولے وي د لارے نه ئے) بے لارے کړے وي او دے
سرګردانه ګرځي (او) د دهٔ څهٔ ملګري هم وي چه هغه دهٔ لره ټيک لارے
طرف ته (آوازونه کوي) رابلي چه (دے خوا) موږ له راشه (مګر هغه پرے
د ډيرے حيرانئ نه نهٔ پوهيږي او نه راځي. حاصل دا دے چه لکه څنګه دا سړے
په لارے وٌه ليکن د خپلو لارے پيژندونکو ملګرو نه جدا شو او د بيابان د
شيطانانو په لاسونو کښې ګرفتار شو بے لارے شو، او هغه ملګري اوس هم
دهٔ لره لارے ته رابلي مګر دے نه راځي، داسے به زموږ حالت شي چه د اسلام
په لارے د روانيدو باوجود د خپل لارخودونکي پيغمبرؑ نه به جدا شو د ګمراهانو
په پنجه کښې به ګير شو ګمراه به شو، او دغه لارخودونکے به بيا هم د خيرخواهئ
په وجه د اسلام بلنه کوي او موږ به ګمراهي نه پريږدو، يعني آيا موږ ستاسو
په مرضئ باندې عمل اوکړو خپل مثال داسے جوړ کړو) ته (ردوي ته) اووايه
چه (هر کله د دے مثال نه معلومه شوه چه د لارے نه بے لارے کيدل
ناکاره دي او دا) يقيني خبره ده چه نيغه لار هغه د الله (رخودلے) لار
ده (او هغه اسلام دے پس يقيناً د دے پاتے کول بے لارے کيدل دي نو بيا
موږ دا کله پاتے کولے شو) او (ته) او وايه چه موږ شرک څنګه کولے شو) موږ ته
(رخو) دا حکم شوے دے چه موږ پوره تابعدار شو د پروردګار عالمؑ (او دا
په اسلام کښې دي) او دا (حکم راته شوے دے) چه د مونځ پابندي کوو (کوم چه
په توحيد باندې د ايمان ښکاره نښه ده) او (دا حکم راته شوے دے چه) د هغهٔ نه
(يعني د الله نه) يره کوو (يعني مخالفتئ نه کوو. چه په دے کښې د ټولو نه لوئ
شرک دے) او هغه (الله) دے د کوم خوا ته چه به تاسو ټول (د قيامت په ورځ
د قبرونو نه را اوځئ د حساب د پاره) جمع کړے شئ (حلته به مشرکان د خپل
شرک سزا اوګټي) او هغه (الله) دے چا چه آسمانونو او زمکے لره د فائدے
د پاره پيدا کړل (چه په دے کښې لويه فائده دا ده چه د دے نه د خالق په
وجود او په توحيد دليل اونيولے شي، پس دا هم د توحيد يو دليل دے)
او (بره چه په تُحْشَرُوْنَ کښې د قيامت کوم خبر ورکړے شوے دے،

چه په قیامت کښې تاسو بیا ژوندی شئ، دا هم څه لرے نښه مه ګڼرئ ځکه چه دا د الله تعالیٰ د قدرت په وړاندې دومره آسانه ده چه) څه وخت الله تعالیٰ دومره قدرے اووائی چه (قیامته) ته اوشه بس هغه (قیامت به فوراً) اوشی د هغهٔ (دا) وَیَنا اثرناکه ده (خالی نهٔ ځی) او (د قیامت په ورځ) کله چه په شپیلیٔ کښې (د الله تعالیٰ په حکم دویم وار فرشته) پو کے اوکړی تو ل حکومت (په حقیقت کښې هم په ظاهره هم) خاص د هغه (الله) وی (او هغه به په خپل حکومت سره د موحد ینواو مشرکینو فیصله اوکړی) هغه (الله) پوهه دے په پټو څیزونو او ښکاره وُو څیزونو (پس د مشرکانو د عملونو او د حالاتو نه هم هغه خبر دے) او هغه دے لوئے حکمت والا (په دے وجه مناسب مناسب جزا به هر یو له ورکړی او هغه دے) پوره خبر لرونکے (په دے وجه د څهٔ کار پټ کیدل د دهٔ نه ممکن نه دی) ۔

# مَعلومَات او مَسئلے

د باطلو خلقو د مجلس نه د پرهیز کولو حکم

په ذکر شوو آیاتو کښې مسلمانانو ته یو اهم اصولی هدایت ورکړے شوے دے، چه د کوم کار په خپله کول ګناه دے۔ د دے د کونکو په مجلس کښې شریک کیدل هم ګناه دے د دے نه ځان ساتل په کار دی۔ د دے تفصیل دا دے چه :۔

په اوّلنی آیت کښې لفظ د : یَخُوْضُوْنَ ؛ د ' خوض ' نه جوړ دے۔ چه اصل معنیٰ ئے په اوبو کښې ننوتل او په دے کښې د تیریدو ده۔ او په لغوه او فضول کارونو کښې داخلیدو ته هم خوض ویلے شی۔ په قرآن کریم کښې دا لفظ عام طور سره په دے معنیٰ کښې استعمال شوے دے : کُنَّا نَخُوْضُ مَعَ الْخَائِضِیْنَ ؛ او ؛ فِیْ خَوْضِهِمْ یَلْعَبُوْنَ ؛ وغیره آیاتو نه په دے ګواه دی ۔

په دے وجه د ؛ خَوْضٌ فِی الْاٰیٰتِ ؛ ترجمه دلته په عیبو نو لټولو یا جګړے کولو سره شوے ده۔ یعنی کله چه تهٔ هغے خلقو له اووینے کوم چه د الله تعالیٰ په آیاتو نو کښې محض د لهو لعب تو قوا و مسخره په جوړ د دخل کوی'

او عیب جوئی کوی، نو ته دَدوی نه خپل مخ واړه وه۔

دَ دے آیت خطاب عام هم مخاطب ته دے په کومو کښے چه نبی کریم صلی الله علیه وسلم په کښے هم داخل دے او دَ امّت افراد هم، او په حقیقت کښے نبی کریم صلی الله علیه وسلم ته خطاب هم عامو مسلمانانو ته دَ او ورَه لو دَ پاره دے ورنه دوی غیبه درکو تو الی کښے هم په داسے مجلسو نو کښے نه دی شریک شوی په دے وجه دوی ته دَ منع کولو څه ضرورت نه وه۔

بیا دَ باطلو خلقو دَ مجلس نه دَ مخ اړولو مختلف صورتو نه کیدے شی یو دا چه دَ دغے مجلس نه پورته شی، دَویم دا چه حلته کروی هم خو په بل شغل کښے مشغول شی، دو یته خیال نه کوی۔ لیکن په آخر آیت کښے ئے او خودَله چه مراد اوّ لنے صورت دے، چه دَ دوی په مجلس کښے نه کینی پورته شی تړ۔

په آخر آیت کښے فرمائی چه که شیطان ستاسو نه هیر کړی۔ یعنی په هیره سره په دغے مجلس کښے شریک شئ خواه داسے چه په دے مجلس کښے دَ کینا ستلو منع درنه هیره وی، یا داسے چه دا درته یاد نه وی چه دا خلق دَ الله تعالیٰ دَ آیاتو نو او دَ نبی کریم صلی الله علیه وسلم خلاف ذکرونه په خپل مجلس کښے کوی۔ نو په دے صورت کښے چه څهٔ وخت هم یاد شی هغه وخت دَ دغه مجلس نه پاسیدل پکار دی۔ دَ یادیدو نه پس حلته کینا ستل گناه دے۔ په دویم یو آیت کښے هم دا مضمون ارشاد شوے دے او دَ دے په آخر کښے ئے دا فرمائیلی دی چه که تاسو حلته ناست پاتے شوئ نو تاسو به هم دَ دوی په شان یئ۔

امام رازیؒ په تفسیر کبیر کښے فرمائی۔ چه دَ دے آیت اصل منشاء دَ گناه مجلس او دَ دغے مجلس والو نه ډډه کول او جُدا کیدل دی، چه دَ دے غوره صورت خو دا دے، چه دَ هغهٔ ځائے نه پورته شی، لیکن که دَ هغه ځائے نه په پورته کیدو کښے دَ خپل جان یا مال یا عزت یره وی نو دَ عوامو دَ پاره دا هم جائز دی چه دَ دې کولو دَ پاره څهٔ بل صورت اختیار کړی۔ مثلاً په څهٔ بل کار کښے مشغول شی او دَ خلقو ته خیال نه کوی۔

لیکن خواص کوم چه د دین پیشوایان گڼړلے شي د دوی د پاره د دغه ځائے نه په هرحال پاسیدل مناسب دی -

د دے نه پس فرمائی: وَإِمَّا يُنسِيَنَّكَ الشَّيْطَانُ : یعنی که شیطان ستا نه هیر کړی، د دے خطاب اکو که عامو مسلمانانو ته وی نو خبره صفا ده چه هیریدل د هر انسان سره تړلی دی او که خطاب نبی کریم صلے الله علیه وسلم ته وی۔ نو دلته دا سوال پیدا کیږی چه که د خدائے په نبی او رسول هم د هیریدو واقع کیږی نو د دۀ په تعلیماتو باندې به څنګه اعتماد او اطمینان پاتے شی؟

جواب دا دے چه انبیاء علیهم السلام ته هم د څهٔ خاص حکمت او مصلحت لاندې هیریدل خو کیدے شی، مګر د الله تعالیٰ د طرف نه فوراً په ذریعه د وحی خبر کړے شی۔ چه بیا دے په دغو هیرو باندې قائم نه پاتے کیږی، نو بالآخر د دوی تعلیمات د هیرو د شبهٔ نه پاک شی -

په هرحال د آیت د دے جملے نه معلومه شوه چه که یو سړے په هیره او غلطئ سره په څه غلطئ کښے اخته شی نو معاف دے، د نبی کریم صلے الله علیه وسلم په یو حدیث کښے ارشاد دے:-

| | |
|---|---|
| رُفِعَ عَنْ اُمَّتِيْ الْخَطَأُ وَالنِّسْيَانُ وَمَا اسْتُكْرِهُوْا عَلَيْهِ - | "یعنی ځما د اُمّت نه د خطاء او هیر او د هغې کار ګناه معاف شوے دے کوم چه پرِ څوک په زبردستئ او کړی" |

امام جصاصؒ په احکام القرآن کښے فرمائی چه " د دے آیت نه معلومه شوه چه مسلمانانو لره د هر داسے مجلس نه چه ده کول په کار دی په کوم کښے چه د الله تعالیٰ یا د هغهٔ د رسول صلے الله علیه وسلم یا د اسلامی شریعت خلاف خبرے کیږی او د دے بنده وَل یا کم نه کم د حقے خبرے اظهار کول د دۀ په قبضه کښے نه وی او نه ئے پرِ وَس رَسی - البته که په داسے مجلس کښے په نیت د اصلاح شریک شی او خلقو ته د حقے خبرے تلقین او کړی نو بیا باک نیشته"

او د آیت په آخر کښے چه دا فرمائی چه د یادیدو نه پس د ظالم قوم سره مه کینئ، د دے نه امام جصاصؒ دا مسئله راویستلے ده - چه د داسے ظالمانو

بے دینو، او لوئے ژبو خلقو په مجلس کښې شوکت کول مطلقاً گناه دے، خواه دوی دغه وخت په ناجائزو خبرو کښې مشغو لهٔ وی او که نه - ځکه چه دَ داسے خلقو په دے بے هوده خبرو شروع کولو کښې څهٔ وخت نه لګی- دَ دلیل وجه داده چه په دے کښې مطلق دَ ظالمانو سره کیناستل منع کړی دی، په دے کښې دا شرط نیشتے چه دوی په دغه وخت کښې هم دَ ظلم په خبرو کښې مشغول وی او دغه بے هوده خبرے کوی-

دَ قرآن مجید په یو بل ایت کښې هم دا مضمون په واضح طور سره بیان شوے دے فرمائی :-

وَلَا تَرْكَنُوْٓا اِلَى الَّذِيْنَ ظَلَمُوْا فَتَمَسَّكُمُ النَّارُ ، یعنی دَ ظالمانو خلقو سره میل جول او خلط مَه ساتئ ورنه تاسو به هم دَ جهنّم اور ته اوغورزیږئ"

کله چه داذکر شوے ایت نازل شو نو صحابه کرامو عرض اوکړو چه یا رسول الله که دَ دوی په مجلس کښې دَ تلو نه مطلقاً منع اوشی، نو مونږ به په مسجد حرام کښې دَ مانځه او طواف نه هم محروم شو- ځکه چه دغه خلق خو همیشه هلته ناست وی (دا واقعه دَ هجرت او فتح مکے نه دَ وړاندِ وخت ده) او دَ دوی مشغله خو هم عیبو نه لټول او بدے خبرے کول دی په دے دا دوېم ایت په دے پسے نازل شو :-

وَمَا عَلَى الَّذِيْنَ يَتَّقُوْنَ مِنْ حِسَابِهِمْ مِّنْ شَيْءٍ وَّلٰكِنْ ذِكْرٰى لَعَلَّهُمْ يَتَّقُوْنَ ؛ یعنی کوم خلق چه احتیاط لرونکی وی دوی که په خپل کار سره مسجد حرام ته ځی نو دَ دے شریرو خلقو دَ بدو عملو نو په دوی څهٔ ذِمّواری نیشتے- هاں دومره خبره دَ دوی په ذِمّه ده چه حقه خبره دِ دوی ته رَسَوِئ چه شائد هغوی دَ دے نه نصیحت حاصل کړی صحیح لار اختیار کړی-

په دریم ایت کښې هم تقریباً دَ دے مضمون زیات تاکید په دے شان ارشاد فرمائیلے شوے دے :-

وَذَرِ الَّذِيْنَ اتَّخَذُوْا دِيْنَهُمْ لَهْوًا وَّلَعِبًا ؛ په دے کښې لفظ دَ ؛ ذَر ؛ دَ ذَرْ ؛ نه جوړ دے چه دَ دے معنیٰ ده چه دَ یوشی نه ناراضه کیدل او پاتے کول نه

معنیٰ دَ اٰیت دا ده چه تاسو دا سے خلق پاتے کړئ کوموچه خپل دین لره لهو لعب یعنې مشغله او لوبه جوړه کړے ده - دَ دے دوه معنے کیدے شي یوه دا چه کوم حق دین یعنې اسلام دوی ته لیګلے شوے دے دے لره ئے لهو لعب جوړ کړے دے یعنې تو قے او مسخرے پورے کوی - دویم دا چه دوی اصلی دین پاتے کړے دے دَ خپل دین نه ئے لهو لعب جوړ کړے دے دَ دواړو معنو مطلب تقریبًا یو دے -

دَ دے نه پس ارشاد فرمائی: وَغَرَّتۡهُمُ الۡحَیٰوةُ الدُّنۡیَا: یعنې دوی لره دَ دُنیا دے شو ورځے ژوند په غرور اوو وکه کښے اَچولی دی - دا ئے دَ دوی دَ مرض اصلی سبب بیان کړو - چه دَ دوی دا تو له سرکشي او نا فرمانی هم په دے سبب سره دَه چه دوی دَ دنیا په دے شو ورځے ژوند باندے عاشقان دی او اٰخرت ئے هیر کړے دے - که دَ اٰخرت او قیامت عقیده ئے وے نو هرګز به ئے دا حرکتونه نه وُو کړی -

په دے اٰیت کښے نبی کریم صلے الله علیه وسلم او عامومسلمانانو ته دوه حکمونه ورکړی شوی دی - اَوّل دا چه دَ داسے خلقونه ځړه او کړی دَ کوموچه ذکر په دے جمله کښے بیان شوے دے - دَوَیم دا چه صرف دَ دے خلقونه ځړه کول او مخ اړول هم کافی نه دی، بلکه په ایجابی طور سره دا هم ضروری ده چه دَ قرآن په ذریعه دوی ته نصیحت هم کوئ او دَ خدائے تعالیٰ دَ عذاب نه ئے یَرَوِئَ هم -

په اٰخر اٰیت کښے ئے دَ دے عذاب تفصیل داسے بیان کړو چه که دوی په دے حالت پاتے شو نو دَ خپل عمل په جال کښے به په خپله او نخلی - په اٰیت کښے دلته دَ: اَنۡ تُبۡسَلَ: لفظ استعمال شوے دے چه معنیٰ ئے قید کیدل او نختل دی -

چونکه په دنیا کښے انسان دَ دے سره عادت دے چه که په چاتے څه ظلم یا زیاتے کړے وی او دَ دے سزا دَ لره مخ ته راشي نو دَ سزا نه دَ ځان بچ کولو دَ پاره دوه قسم ذریعے استعمالوی - کله دَ خپلے ډلے او جماعت زور دَ ده خلاف استعمال کړی خپل ځان لړاو دَ خپل ظلم دَ سزا نه دَ بچ کولو کوشش کوی،

او که دَ دے سره عاجزه شی نو دَ لویو خلقو دَ سفارش نه کار اخلی، او کړدا هم کار اونه کړی نو بیا داکوشش کوی چه دَ خپل ځان دَ سزا نه دَ بچ کولو دَ پاره څهٔ مال خرچ کړی۔

الله تعالیٰ په دے ایت کښے اوخوده چه دَ خدائے مجرم لره دَ سزا نه دَ بچ کولو دَ پاره نه څوک دوست خپلوان کیدے شی، نه دَ چا سفارش بغیر دَ الله تعالیٰ دَ اجازت نه چلیدے شی او نه څهٔ مال قبلولے شی۔ بلکه که دَ ټول جهان مال هم دَ دهٔ په قبضه کښے وی او هغه دا ټول مال دَ سزا نه دَ بچ کیدو په فدیه کښے ورکول اوغواړی، خو بیا به هم دا فدیه دَ دهٔ نه قبوله نه کړے شی۔

په اخر ایت کښے فرمائی: اُولٰٓئِكَ الَّذِيْنَ اُبْسِلُوْا بِمَا كَسَبُوْا لَهُمْ شَرَابٌ مِّنْ حَمِيْمٍ وَّعَذَابٌ اَلِيْمٌۢ بِمَا كَانُوْا يَكْفُرُوْنَ ؏: یعنی دا هغه خلق دی چه دَ خپلو بدو عملونو په سزا کښے نیول شوی دی، دوی لره دَ څکلو دَ پاره دَ جهنم جوش شیدلے اوبه به ملاویګی۔ چه دَ دے متعلق په نورو ایاتونو کښے دی، چه دغه به دَ ده کولمو لره ټکړے ټکړے او غورزوی او دَ دے اوبو نه علاوه په نور هم دردناک قسم عذابونه وی، دَ دوی دَ کفر او انکار په بدله کښے۔

دَ دے اخری ایت نه دا هم معلومه شوه چه کوم خلق دَ اخرت نه غافله صرف دَ دُنیا په ژوند باندِ عاشقان وی دَ دوی صحبت او مجلس هم دَ انسان دَ پاره هلاکونکے دے۔ دَ دے انجام دا دے چه دَ دوی په صحبت کښے پاتے کیدونکے به هم په دے عذاب کښے اخته شی په کوم کښے چه دغه اخته وی۔

دَ دے درے واړو ایاتونو مطلب مسلمانان لره دَ ناکاره ماحول نه او ناکاره صحبت نه بچ کول دی۔ کوم چه دَ انسان دَ پاره زهرِ قاتل دی دَ قرآن او حدیث دَ بے شماره وضاحتونو نه علاوه لیدل او تجربه هم دَ دے ګواه دی چه انسان لره په ټولو بدو او جرمونو کښے اخته کونکی څیز و نه دَ دهٔ ناکاره ملګری او ناکاره ماحول دی چه په دے کښے

دَ عملونو پس انسان اول خو په خلاف طبع او دَ ضمیر نه په خلاف قسم بَدو کښې اخته شي - او بیا چه کله ورسره عادت شي نو پوهیږي پرې بیا هم نه چه دا کوم نیک دَ بَد کوم بلکه دے بیا بدئ ته نیکي او نیکئ ته بدی وائي، لکه چه په یو حدیث کښې دَ نبي کریم صلے الله علیه وسلم ارشاد دے چه کله یو سړے اوّل په ګناه کښې اخته کیږي نو دَ دهٔ په زړهٔ یو تور شان تکے اولګي داسے لکه په سپینه کپړه چه تور تکے اوشي او هر سړے دغه بد ګڼړي نو دغه شان دَ دهٔ هم په ګناه کولو سره په زړهٔ کښې نا خوښي راځي لیکن کله چه دَ یو نه پس بل او بیا بل په مخه کوي او دَ تیر ګناه نه توبه نهٔ کوي نو دغه شان په یو یو ګناه پسے دَ دهٔ په زړهٔ تور نقطے (تکي) لګي تر دے چه دَ دهٔ زړهٔ ټول تور شي او نتیجه ئے دا شي چه دَ دهٔ بیا دَ بنهٔ بَد تمیز وُرک شي - په قرآن مجید کښې ئے دَ دینه تعبیر په: رَانَ: سره فرمائیلے دے: كَلَّا بَلْ رَانَ عَلٰى قُلُوْبِهِمْ مَّا كَانُوْا يَكْسِبُوْنَ ۞: یعنې دَ دوی په زړونو کښے دَ دوی دَ بَدو عملونو په وجه سره زنګ اولګید و چه اوس په کښې صلاحیت وُرک شو -

او تر کومه حده پورے چه غورُ او کړے شي نو انسان لره دے حالت ته رسوُنکے ځیز اکثر دَ دهٔ غلط ماحول او ناکاره صُحبت وي - نعوذ بالله منهما) په دے وجه دَ بچو تربیت کونکو باندې لازم دي چه بچو لره دَ داسے ماحول او سوسائټۍ نه بچ ساتي - په دے پسے دے آیا تونو کښې هم دَ شرک دَ باطلوالی او دَ توحید او آخرت دَ ثابتولو مضمون دے - چه دَ ترجمے نه ښکاره دے -

وَاِذْ قَالَ اِبْرٰهِيْمُ لِاَبِيْهِ اٰزَرَ اَتَتَّخِذُ اَصْنَامًا

او یاد کړه کله چه اووے ابراهیمؑ خپل پلار آزَر ته آیا ته مَنے بتانو لره

اٰلِهَةً ۚ اِنِّیْۤ اَرٰىكَ وَقَوْمَكَ فِیْ ضَلٰلٍ مُّبِیْنٍ ۞

خدایان زهٔ وینم چه ته او ستا قوم ښکاره ګمراهان دی -

وَكَذٰلِكَ نُرِيْٓ اِبْرٰهِيْمَ مَلَكُوْتَ السَّمٰوٰتِ وَ

او دارنګې او خودل مونږه ابراهیم؏ ته عجائبات د اسمانونو او

الْاَرْضِ وَلِيَكُوْنَ مِنَ الْمُوْقِنِيْنَ ﴿۷۵﴾ فَلَمَّا جَنَّ

د ځمکې او د دې د پاره چه دے ده یقین راشي - بیا چه کله رټیاره کړه

عَلَيْهِ الَّيْلُ رَاٰ كَوْكَبًا ۚ قَالَ هٰذَا رَبِّيْ ۚ فَلَمَّآ اَفَلَ

په ده شپې نو اولید ده یو ستورے او وئیے دا دے زما رب - بیا چه کله هغه پټ شو

قَالَ لَآ اُحِبُّ الْاٰفِلِيْنَ ﴿۷۶﴾ فَلَمَّا رَاَ الْقَمَرَ بَازِغًا

نو او وئیے چه زه نه خوښوم پټیدونکی - بیا چه کله ده اولیده سپوږمۍ په قید ونکے

قَالَ هٰذَا رَبِّيْ ۚ فَلَمَّآ اَفَلَ قَالَ لَئِنْ لَّمْ يَهْدِنِيْ

او وئیے دا دے زما رب - بیا چه کله هغه پریوتـه او وئیے که هدایت او نه کړی ما ته

رَبِّيْ لَاَكُوْنَنَّ مِنَ الْقَوْمِ الضَّآلِّيْنَ ﴿۷۷﴾ فَلَمَّا رَاَ

رب زما نو بے شکه شم به زه د ګمرا هانو نه - بیا چه کله او ُلید

الشَّمْسَ بَازِغَةً قَالَ هٰذَا رَبِّيْ هٰذَآ اَكْبَرُ ۚ

ده نمر روښانه او ُوئیے دا دے زما رب دا چیر لوے دے -

فَلَمَّآ اَفَلَتْ قَالَ يٰقَوْمِ اِنِّيْ بَرِيْٓءٌ مِّمَّا تُشْرِكُوْنَ ﴿۷۸﴾

بیا چه کله هغه پریوت او ُوئیے اے زما قومه زه ویزاره یم د هغونه چه تاسو ئے شریکان جوړوئ

اِنِّيْ وَجَّهْتُ وَجْهِيَ لِلَّذِيْ فَطَرَ السَّمٰوٰتِ

ما متوجه کړو خپل مخ د هغه طرف ته چا چه جوړ کړل اسمانونه

وَالْاَرْضَ حَنِيْفًا وَّمَآ اَنَا مِنَ الْمُشْرِكِيْنَ ﴿۷۹﴾ وَ

او زمکه د ټولو نه يک سو شوم او نه يم زه د شرک کوونکو څه - او

حَآجَّهٗ قَوْمُهٗ ؕ قَالَ اَتُحَآجُّوْٓنِّيْ فِي اللّٰهِ وَقَدْ هَدٰىنِ ؕ

د ده سره جګړه او کړه د ده قوم - او ئې وې آيا تاسو ما سره جګړه کوئ د الله په باره کښې او هغه زه سم کړے يم

وَلَآ اَخَافُ مَا تُشْرِكُوْنَ بِهٖٓ اِلَّآ اَنْ يَّشَآءَ رَبِّيْ

او زه نه يريږم د هغو نه چه تاسو ئې شريکوئ د هغه سره مګر دا چه زما رب څه تکليف رسول او

شَيْـًٔا ؕ وَسِعَ رَبِّيْ كُلَّ شَيْءٍ عِلْمًا ؕ اَفَلَا تَتَذَكَّرُوْنَ ﴿۸۰﴾

غواړی - احاطه کړے ده زما د رب علم په ټولو څيزونو - آيا تاسو سوچ نه کوئ -

وَكَيْفَ اَخَافُ مَآ اَشْرَكْتُمْ وَلَا تَخَافُوْنَ اَنَّكُمْ

او زه ولے او يريږم ستا سو د شريکانو نه او تاسو نه يريږئ د دے خبرے نه چه شريک

اَشْرَكْتُمْ بِاللّٰهِ مَا لَمْ يُنَزِّلْ بِهٖ عَلَيْكُمْ سُلْطٰنًا ؕ

جوړه وئ د الله سره هغه لره چه د هغې نه دے نازل شوے په تاسو څه دليل -

فَاَيُّ الْفَرِيْقَيْنِ اَحَقُّ بِالْاَمْنِ ۚ اِنْ كُنْتُمْ تَعْلَمُوْنَ ﴿۸۱﴾ۘ

اوس په دواړو فريقو کښے څوک مستحق دے د امن او وايئ که تاسو پوهه لرئ -

وقف لازم

## لنډ تفسير

او هغه وخت هم د ياد ولو قابل دے کله چه ابراهيم (عليه السلام) خپل پلار آزر (نوم) ته او فرمائيل چه آيا ته بتانو لره معبودان مقرر کوے بے شکه زه تا لره او ستا ټول قوم لره (کوم چه په دے عقيده کښے ستا

سره شریک دی) په بنکاره غلطئ کښې وینم (او د ستورو متعلق خبرې وهانئ راځي، په منځ کښې کا ابراهیم علیه السلام د نظر کړوغوالی صفت کوی چه د وهانئ او روستو دوا ړو سره د دې تعلق دې، فرمائی) او موږ په داسې (کامل) طور سره ابراهیم (علیه السلام) ته د آسمانونو او زمکې مخلوق (په ستر کو د معرفت) او خودل چه هغه (د خالق په ذات او صفاتو) پوهشی او د دې د پاره چه (په ذیاتوالی د معرفت سره) د کامل یقین کوونکو نه شی (د وهانئ د ستورو متعلق خبرې دی چه مناظره پېښې ختموی چه بره خبرې هو کړیتا نو متعلق اوشوې) بیا (په دغه ورځ یا په بله ورځ) کله چه د شپې تیاره په ده (دغه شان په نورو تولو) خوره شوه نو ده یو ستور دې اولیده (چه پرقیده) د ده (خپل قوم ته مخاطب شه) او ئې وئیل چه (ستاسو د خیال موافق) دا زما (او ستاسو) رب (او زما په حالاتو کښې تصرف کوونکې) دې (دیره بنه ده او س به په لگ وخت کښې حقیقت معلوم شی، نو لگ وخت پس هغه په افق کښې پریوت) کله چه هغه پریوت نو ده او فرمائیل چه زه د پریوتونکو سره محبت نه کوم (او محبت د عقیدې کړ رب والی د لوازمو نه دې پس حاصل دا شو چه زه ئې رب نه گنړم) بیا (په دغه شپه یا په بله شپه کښې) کله چه ئې سپوږمۍ لره اولیده (چه) پرقیدونکې (راختلې) ده نو (د اول په شان) ئې او فرمائیل چه (ستاسو د خیال موافق) دا زما (او ستاسو) رب (او په حالاتو کښې تصرف کوونکې) دې (ښه ده او س لږ ساعت کښې د دې اندازه هم او وینئ نو هغه هم پریوته) پس کله چه هغه پریوته نو ده او فرمائیل چه که ما ته زما رب (حقیقی) هدایت او نه کړی (لکه چه تر او سه پورې را ته هدایت کوی) نو زه به هم (ستاسو په شان) په گمراه خلقو کښې شامل شم بیا (یعنی که د سپوږمۍ دا قصه د دې ستوری د قصې د شپې وه نو د یوې شپې د مخه او که د سپوږمۍ قصه د دغې ستوری د قصې د شپې نه وه، نو د سپوږمۍ د شپې په سحر یا د یوې بلې شپې په سحر) کله چه ده نمر اولیده (چه په لوئې آب وتاب سره) پرقیدونکې (راختلې) دې نو (د اولنو دوه پیرو په شان ئې)

اوئے فرمائیل چه (ستاسو د خیال مطابق) دا څما را وستاسو) رب را و تصرف کوُنکے
په حالاتو کښې) دے (او) دا خو په ټولو (ذکر شوو ستورو) کښې لوئے دے (په دے
باندے به خبره ختمه شی که د دهٔ رب والے باطل شو نو د ورو خو به په درجه
اولیٰ باطل وی، غرض ما بنام شو او هغه هم پریوت) پس هر کله چه هغه
پریوتٔ نو دهٔ او فرمائیل چه بے شکه زهٔ ستاسو د شرک نه ویزاره یم (یعنی
خپله آزادی ترِ بنکاره کوُم، په عقیده کښې خو د همیشه نه ویزاره وه) زهٔ (د
ټولو طریقو د شرک نه) یک سو شوم خپل مخ (د ظاهر او د زړهٔ) هغې (ذات)
طرف ته (ستاسو په وړاندِ) کوُم چا چه آسمانونه او زمکه پیدا کړل او زهٔ
(ستاسو په شان) د شرک کونکو نه نه یم (نه په عقیده کښې نه په قول او
په فعل کښې) او د دهٔ سره د دهٔ قوم (عبث) جګړه شروع کړهٔ (هغه دا
چه دا پخوانے رسم دے: وَجَدْنَآ اٰبَآءَنَا لَهَا عٰبِدِيْنَ؛ او د باطلو معبودانو نه
ئے او یرَا وهٔ هم چه د دوی نه انکار مه کوه څه آفت به درته د رُپیښ کړی
لکه چه په دے باندِ د دهٔ هغه جواب دلالت کوی چه دهٔ په: لَآ اَخَافُ الخ سوره
ورکړو) دهٔ (د اول خبرے په جواب کښې خو) او فرمائیل چه آیا تاسو
د الله (د دیو والی) په معامله کښې څما سره (باطله) جګړه کوئے حال دا دے
چه هغهٔ ما ته (د صحیح دلیلونو) طریقه خودَلے ده (کوم لوره چه ما
ستاسو په وړاندِ پیښی کړه او محض پخوانے رسم کد دے دلیلونو جواب
نه دے پس په دے سره دلیل نیول ستاسو بے کاره او څما په نزد د
کتو قابل نه دے) او (دبله دا خبره ئے په جواب کښې او فرمائیله چه)
زهٔ د هغه څیز ونو نه کوم چه تاسو د الله تعالیٰ سره (په عبادت کښې)
شریکوئ نه یریګم (چه هغوی به ما ته څه تکلیف را او رسولے شی څکه چه
په دوی کښې پخپله څه قدرت نیشته او که په څهٔ شی کښې وی هم نو بیا
هم مستقل قدرت په کښې نیشته) لیکن که څما پروردګار (څهٔ کار او غواړی
(نو هغه بله خبره ده چه هغه او شی لیکن د دے نه د باطلو خدایانو
ثبوت یا د دوی نه د یرید و ضرورت نه لازمیګی او) څما پروردګار
(څنګه چه قادرِ مطلق دے لکه چه د دے څیز ونو نه معلومه شوه د هغه

دے شان هغهٔ) هرشی لره په خپل (احاطهٔ) علم کښے (هم) راګیر کړے دے (غرض دا دے چه قدرت او علم دواړه په هغهٔ پورے خاص دی، او ستاسو د خدایانو نه قدرت شته نه علم) آیا تاسو (آورئ او) بیا هم خیال نه کوئ او داسکه څنګه چه څما د نهٔ یرېدو وجه دا ده چه ستاسو دغه معبودان د علم او قدرت نه خالی دی دغه شان داخبره هم ده چه ما خو څهٔ کار د یرېدو کړے هم نه دے نو بیا) زهٔ د دے خیزونو نه څنګه اویریګم کوم لره چه تاسو د الله تعالیٰ سره په عبادت او ربوالی کښے) شریکان جوړ کړی دی حال دا دے چه (تاسو لره یریدل په کار دی په دوه وجهو سره اول تاسو د یرے کار یعنی شرک کړے دے چه په دے عذاب راتلے شی دویم د خدائے عالم او قادرکیدل معلوم شوی دی مګر) تاسو د دے خبرے (د وبال) نه نهٔ یریګئ چه تاسو د الله تعالیٰ سره داسے څیزونو لره شریک کړی دی د کوم د معبودکیدو) چه د الله تعالیٰ د طرف نه په تاسو څه دلیل (لفظاً یا معنیً) نه دے نازل شوے (مطلب دا دے چه یریدل تاسو لره پکار دی بیا تاسو اُلټه ما یرَ وئ) پس (د دے تقریرنه پس په انصاف سره سوچ اوکړئ او وائی چه) په دے دوه (ذکرشوو) د لوکښے (یعنی مشرکینو او مؤحدینو کښے) د امن (یعنی د دے چه یره پرِنه واقع کیږی) زیاته لایقه کومه یوه ده (او یره هم هغه چه په واقع کښے د اعتبار قابل ده، یعنی د آخرت یره) که تاسو (څهٔ) خبر لرئ -

# مَعلومَات اومَسَئلے

د دے نه په وړاندِ ایاتونوکښے د نبی کریم صلے الله علیه وسلم د عربو مشرکانو ته خطاب او د بُت پرستئ پریخودوا و صرف د خدا پرستئ د دعوت بیان وُه -

په دے ایاتونوکښے د دغے حق دعوت تائید په یو خاص انداز سره فرمائیلے شوے دے کوم چه طبعی طور سره د عربو زړونو ته پریوتے شی - هغه دا چه حضرت ابراهیم علیه السلام د ټولو عربو مشرنیکه دے

او په دے وجه په ټولو عربو کښے د دوی تعظیم د همیشه نه راغلے دے په دے ایاتونو کښے د حضرت ابراهیم علیه السلام د هغه مناظرے ذکر دے کوم چه د دوی د بُت پرستئ او نجوم پرستئ خلاف د خپل قوم سره کړے وه. او بیائے ټولو ته د توحید سبق ورکړو.

په اوّلنی ایت کښے دی چه حضرت ابراهیم علیه السلام خپل پلار آزر ته اووے چه تاسو پخپلو لاسو بانړ جوړ شوی بُتانو لره خپل معبودان جوړ کړی دی زهٔ تا لره اوستا ټول قوم لره په ګمراهئ کښے وینم.

مشهوره دا ده چه آزر د حضرت ابراهیم علیه السلام د پلار نوم دے او اکثرو تاریخ لیکونکو د دهٔ نوم: تارخ، خودلے دے او دا چه آزر د دهٔ لقب دے. او امام رازیؒ او په تیرو عالمانو کښے د یو جماعت وینا دا دهٔ چه د حضرت ابراهیم علیه السلام د پلار نوم: تارخ: او د تره نوم: آزر: دے. د دهٔ تره آزر د نمرود د وزارت نه پس په شرک کښے اخته شوے وه. او تره ته پلار ویئیل په عربی محاوره کښے عام دی. د دغه محاورے لانړ په ایت کښے آزر ته د حضرت ابراهیم علیه السلام پلار ویئیلے شوے دے. په زرقانی شرح د مواهب کښے د دے ډیرے ګواهئ هم نقل شوی دی.

| آزر د حضرت ابراهیم علیه السلام پلار روی او که تره. په هرحال په نسبی طور سره د دهٔ قابلِ احترام مشر وه. حضرت ابراهیم | د عقیدے و اصلاح او د عملونو یَلنه د خپل کورنه شروع کول پکار دی |
|---|---|

علیه السلام د ټولو نه اوّل د حق دعوت د خپل کور نه شروع کړو. لکه چه نبی کریم صلے الله علیه وسلم ته هم د دے حکم شوے دے: وَ اَنۡذِرۡ عَشِیۡرَتَکَ الۡاَقۡرَبِیۡنَ: "یعنی خپل نزدے رشته داران د خدائے د عذابه اُویروه" او دوی په دے بنا سره د ټولو نه اول د صفا غر ته او ختلو خپل خاندان ته د حق دعوت ورکړو او دوی ئے راجمع کړل.

په تفسیر بحر محیط کښے دی چه د دے نه معلومه شوه چه که د خاندان څوک واجب الاحترام مشر د دین په صحیح لاره بانړ نه وی. نو دهٔ ته

دَ صحیح لارے طرف ته دعوت ورکول دَ احترام نه خلاف نه دی - بلکه همدردی اوخیرخواهی ده - او دا هم معلومه شوه چه دَ حق دعوت او دَ اصلاح کار اول دَ خپلو نِزدو خلقو نه شروع کول دَ انبیاؤ سنّت دی -

دَ قومی نظرئے، مسلمان دا رنګ په دے ایت کښے حضرت ابراهیم علیه السلام دَ خپل خاندان او قوم نسبت خپل طرف ته دَ کولو په ځائے پلار ته دا اُوے چه ستا سو قوم په ګمراهئ کښے دے. په دے کښے دے لوئے قربانئ طرف ته اشاره ده چه ابراهیم علیه السلام دَ خدائے په لاره کښے دَ خپلے مشرکے برادرئ نه قطع تعلق اوکړو او ادا ئے کړو، او په خپل عمل سره ئے اوخودہ چه دَ مسلمان قومیّت رِشته په اسلام سره قائمیدے شی، نسبی او وطنی قومیتونه که دَ دے سره تکراؤ خوری نو دا تول دَ پاتے کولو قابل دی ؛ ۵

هزار خویش که بیگانه از خدا باشد
فدائے یک تن بیگانه کہ آشنا باشد

(په زرګونو خپلوان چه دَ خدائے نه پردی وی دَ هغے یو پردی دے قربان شه چه دَ خدائے سره آشنا وی)

قرآن کریم دَ ابراهیم علیه السلام دے واقعے لره ذکر کړه آئنده نسلونو امتونو ته ئے هدایت اوکړو چه دوی هم په دے نقش قدم باندے روان شی - ارشاد دے :-

قَدْ كَانَتْ لَكُمْ اُسْوَةٌ حَسَنَةٌ فِيْٓ اِبْرٰهِيْمَ وَالَّذِيْنَ مَعَهٗ ۚ اِذْ قَالُوْا لِقَوْمِهِمْ اِنَّا بُرَءٰٓؤُا مِنْكُمْ وَمِمَّا تَعْبُدُوْنَ مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ ؛ یعنی دَ امتِ محمدی دَ پاره غوره خوئیونه او دَ اقتداء قابل دَ حضرت ابراهیم علیه السلام او دَ ده دَ ملګرو دا عمل چه دوی خپلے نسبی او وطنی رورولئ ته صاف اووے چه مونږ ستا سو او ستاسو دَ غلطو معبودانو نه بیزاره یو، او زمونږ او ستاسو په مینځ کښے دَ بغض او دشمنئ دیوالونه ترهغه وخته پورے حائل دی، ترڅو چه تاسو دَ یو الله عبادت اختیار نه کړئ -

معلومه شوه چه دا دوه قومی نظریه ده کومے چه پاکستان جوړ کړے دے

دَ دے اعلان دَ ټولو نه وړاندِ حضرت خلیل الله ابراهیم علیه السلام فرمائیلے دے امتِ محمدیؐ او نورو ټولوامتونو هم دَ دے هدایت لاندِ دا طریقه اختیار کړه او په عام طور سره په مسلمانانو کښے اسلامی قومیت معلوم شو۔
دَ حجة الوداع په سفر کښے نبی کریم صلے الله علیه وسلم سره یوه قافله ملاؤ شوه دوی تپوس اوکړو چه تاسو دَ کوم قوم نه یئ؟ جواب ئے ورکړو چه :نَحْنُ قَوْمٌ مُّسْلِمُوْنَ :(بخاری) په دے کښے دَ عربو دَ زوړ دستور مطابق دَ یو قبیلے یا خاندان دَ نوم اَخستو په ځائے :مُسْلِمُوْنَ : ئے اُووے هغه حقیقی قومیت ئے اوخودو کوم چه دَ دُنیا نه واخله تر اخرته پورے چلید ونکے دے۔ حضرت ابراهیم علیه السلام دلته خپل پلار ته دَ خطاب کولو په وخت کښے دَ برادرئ نسبت هغه ته اوکړو دَ خپلے ویزارئ اعلان ئے اوفرمایه۔ او کوم ځائے چه دَ قوم نه دَ خپلے ویزارئ او قطع تعلقئ اعلان کول وُو هلته ئے خپل طرف ته نسبت اوکړو خطاب ئے اوکړو، لکه چه په راتلونکی ایت کښے دی:-
:یٰقَوْمِ اِنِّیْ بَرِیْٓءٌ مِّمَّا تُشْرِکُوْنَ : یعنی اے ځما قومه زهٔ ستاسو دَ شرک نه ویزاره یم، په دے کښے دے طرف ته اشاره ده چه اګرکه دَ نسب او وطن په لحاظ سره تاسو ځما قوم یئ، لیکن ستاسو دے مشرکانه کارونو زهٔ ستاسو دَ دوروئ نه په قطع تعلق کولو مجبور ره کړم۔
دَ حضرت ابراهیم علیه السلام برادرئ او دَ دوی پلار په غټ کی شرک کښے اخته وُو چه دَ بتانو عبادت به ئے هم کولو او دَستور وهم، په دے وجه حضرت ابراهیم علیه السلام په دے دواړو مسئلو دَ خپل پلار او خپل قوم سره مناظره اوکړه۔
اوّل ئے دَ بت پرستئ ګمراهی ذکر کړه۔ په راتلونکی ایت کښے ئے دا ذکر کړل چه ستوری دَ عبادت جوګه نه دی۔ او دَ دے نه په مخکښے ایت کښے په طور دَ تمهید الله تعالیٰ دَ حضرت ابراهیم علیه السلام دَ یو خاص شان او په علم او پوهه کښے دَ یو اعلیٰ مقام ذکر په دے شان سره اوفرمایه:-
:وَکَذٰلِکَ نُرِیْٓ اِبْرٰهِیْمَ مَلَکُوْتَ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ وَلِیَکُوْنَ مِنَ الْمُوْقِنِیْنَ:
یعنی مونږ ابراهیم علیه السلام ته دَ اسمانونو او زمکے مخلوقات په داسے

او خودل، چه دا دے تولو څیزونو حقیقت ورته په ډاګه معلوم شي. او د ده یقین مکمل شي. د دے نتیجه دا ده چه په دروستو آیت کښے دا د یوے مناظرے په عجیبه شکل کښے دا سے ذکر دے -

په تبلیغ او دعوت کښے د حکمت نه کار اغستل د انبیاؤ سنت دی

فَلَمَّا جَنَّ عَلَيْهِ الَّيْلُ رَاٰ كَوْكَبًا قَالَ هٰذَا رَبِّيْ ؕ یعنی یوه شپه چه کله تیاره خوره شوه او په یو ستوری ئے نظر پریوت نو خپل قوم ته ئے د آوُر ولو په جوړ او وے چه دا ستوری ستاسو رب دے، مطلب ئے دا وو چه ستاسو د خیالاتو او عقیدو په بنا سره دا ستاسو رب یعنی پالونکے دے، او س به لږ وخت کښے به د دے حقیقت او وینئ، نو لږ ساعت پس هغه پریوت، نو حضرت ابراهیم علیه السلام ته په قوم د حجت قائمولو د پاره ښکاره موقع په لاس دا غله او او ئے فرمائیل؛ لَآ اُحِبُّ الْاٰفِلِيْنَ ؕ د اٰفِلِيْنَ، دا لفظ د: اَفُوْلٌ: نه جوړ دے چه معنیٰ ئے ده غروب کیدل، یعني پریوتل -

مطلب دا دے چه زه د پریوتونکو څیزونو سره محبت نه ساتم، او چا لره چه خدائے یا معبود جوړ ولے شی ښکاره خبره ده چه هغه د زیات محبت او عظمت مستحق یکار دے - مولانا رومیؒ دا واقعه په یو شعر کښے بیان کړے ده؛ ؎

خلیل آسا درِ ملک یقین زن
نوائے لا اُحب الآ فلین زن

(د حضرت خلیل الله علیه السلام په شان یقین په ځان کښے پیدا کړه او د لَآ اُحِبُّ الْاٰفِلِيْنَ چغه او باسه)

د دے نه پس بیا په څو بله شپه په قید ونکے سپوږمۍ ئے اولیده نو بیا ئے خپل قوم ته د آوُر ولو د پاره هم هغه طریقه اختیار کړه او او ئے وے چه (ستاسو د عقیدے مطابق) دا ځما رب دے، مګو د دے حقیقت به هم څه ساعت پس او وینئ - نو چه کله هغه میاشت پریوته نو او ئے فرمائیل چه که ما ته ځما رب هدایت نه کولے نو زه به هم ستاسو په شان په ګمراها نو کښے داخل شوے وم او سپوږمۍ لره به مې خپل رب او معبود ګڼړ لے وه،

لیکن دَ دوی دَ ختلو او پرِیوَتلو بد لیدُونکو حالاتو نهٔ خبر کړم چه دا ستوڼی هم دَعبادت قابل نه دے۔

په دے ایت کښے دے طرف ته هم اشاره اوکړه چه زما ربّ څهٔ بل شے دے چه دَ هغهٔ دَ طرف نه ماته هدایت کیږی۔

دَ دے نه پس یوه ورځ ئے نمر ختونکے اولید و نو بیائے قوم ته دَ اَوْرَدَلو دَپاره هم په دغه طریقه سره اُوفرمائیل چه (ستاسو دَ خیال مطابق) دا زمارب دے، او دا خو دَ ټولو نه لوئے دے، مګر دَدهٔ دَ لوئے والی حقیقت او حیثیت به هم ډیر زر ستاسو مخ ته راشی - نو چه نمر هم په خپل وخت پریوتو، نو په قوم باندِ دَ اٰخری حُجّت تمامَولو نه پس اوس اصل حقیقت ئے په ډاګه سره بیان کړو چه :-

یٰقَوۡمِ اِنِّیۡ بَرِیۡٓءٌ مِّمَّا تُشۡرِکُوۡنَ : یعنی اے زما قومه! زهٔ ستاسو دَ دے مشرکانه خیالاتو نه ویزاره یم، چه تاسو دَخدائے تعالیٰ مخلوقات دَ خدائے سره شریک جوړ وئ "

دَ دے نه پس ئے دے حقیقت لره ښکاره کړو چه زما او ستاسو ربّ (رپالونکے) په دے مخلوقاتو کښے هیڅ یَو هم نه شی کیدے . کوم چه په خپله په خپل وجود کښے دَ بل محتاج وی او هر وخت هره کړئ دَ ترقیٔ او نزول ختلو او پریوتلو په اَدْلُونْ بدلُون کښے ګیر وی - بلکه زمونږ دَ ټولو ربّ هغه دے چا چه اسمانونه او زمکه او په دے کښے پیدا کیدُونکی ټولو مخلوقاتو لره ئے پیدا کړی دی - په دے وجه ما خپل مخ ستاسو دَ ټولو په خپله جوړ کړو بتانو او په تغیراتو کښے دَګیرو ستورونه راَاوګرځاوهٔ صرف یو الله وحدهٔ لاشریک طرف ته مې کړو - او زهٔ ستاسو په شان دَ مشرکانو نه نهٔ یم۔

په دے واقعه او مناظره کښے حضرت ابراهیم علیه السلام دَ پیغمبرانه حکمت او نصیحت نه کار واخستو یَکدم ئے دَ دوی دَ ستورو دعبادت ته ګمراهی یا غلطی او نه فرمائیله، بلکه یو داسے انداز ئے قائم کړو چه دَ هر عقل والا انسان زړهٔ او دماغ پخپله متأثره شی حقیقت اوپیژنی - لیکن دَ

بُت پرستۍ خلاف په خبره کولو کښې ئې دَ اول سر نه سختي اختيار کړه، او دَ خپل پلار او ټول قوم ئې په ګمراهۍ باندې کيدل په صاف طور سره بيان کړل. وجه دا وه چه دَ بُت پرستۍ ګمراهي ښکاره او په ډاګه وه. په خلاف دَ نجوم پرستۍ نه چه دَ دې ګمراهي دومره واضحه او په ډاګه نه وه.

دلته دا خبره هم دَ غور قابله ده چه حضرت ابراهيم عليه السلام دَ قوم په وړاندې چه دَ نجوم پرستۍ کوم دليل بيان کړې دے، دَ دې مطلب دا دے چه کوم شے تغير قبلوی او حالات ئې اَدَلْ بَدَلْ کيږی، او د دے ښکلو حرکتونو کښې دَ چا بل طاقت تابع وی، هغه هرګز دَ دې لائق نه دے چه دے خپل رب جوړ کړے شی، په دے دليل کښې دَ ستورو دَ ختوا و پريوتو او دَ درمياني ټولو حالاتو نه دليل نيولے شو. چه دوی په خپلو حرکتونو کښې بخپل اختيار نه دی، دَ چا دَ حکم تابع په يو خاص رَوِش چليږی. ليکن حضرت خليل الله عليه السلام په دے ټولو حالاتو او اندازو کښې صرف دَ دليل دَ پاره دَ دوی پريوتل پيش کړل. ځکه چه دَ دوی پريوتل دَ عوامو په نظر ونو کښې يو قسم دَ دوی زوال ګنړلے شی. او دَ انبياؤ عليهم السلام عام طرز دَ دليل هغه وی کوم چه دَ عوامو په ذهنونو کښې اثر کوی. دوی په فلسفيانه حقيقتونو پسے زيات نه ځی. بلکه دَ عامو ذهنونو مطابق خبره کوی. په دے وجه ئې دَ دے ستورو دَ بے بسۍ او بے اثرۍ ثابتولو دَ پاره دَ دوی پريوتل وړاندې کړل. ورنه دَ دوی په بے بسۍ او بے قدرته کيدو باندې خو دَ ختلو نه هم دليل نيولے شو. او دَ دے نه پس دَ غروب يعني پريوتو نه وړاندې چه څو مره اَدْلُون بَدْلُون ورته وړاندې راځی په دے هم دليل نيولے شو.

دَ اسلامي تبليغ کوونکو دَ پاره ښو هدايتونه

دَ حضرت ابراهيم عليه السلام دَ مناظرے په دے طرز کښې دَ عالمانو او تبليغ کوونکو دَ پاره يو څو اهم هدايتونه دی. اَوَّل دا چه دَ قومونو په تبليغ او اصلاح کښې نه هر ځائے سختي مناسب ده او نه هر ځائے نرمي. بلکه دَ هر يو يوه موقع او يو حد دے. لکه چه دَ بُت پرستۍ په معامله کښې حضرت

خلیل الله سخت الفاظ استعمال کړی دی، ځکه چه دَدی ګمراهی ښکاره وه. او دَ نجوم پرستئ په معامله کښې ئې دا سے سخت الفاظ نه دی استعمال کړی، بلکه په یو خاص تدبیر سره ئې دَ معاملے حقیقت دَ خلقو ذهنو نو ته ورکوز کړے دے. ځکه چه دَ ستورو بے بسی او ناچاری دومره ښکاره نه وَه څومره چه دَ بتانو وَه. دَ دے نه معلومه شوه چه عوام که په څۀ دا سے غلطئ کښې اخته وی چه غلطی او ګمراهی ئې په عامو نظرونو کښې په ډاګه نه وی. نو عالم او مبلّغ لره په کار دی چه دَ سختئ په ځائے دَ دوی دَ شکونو او شبهو لرے کولو تدبیر اوکړی.

دویم هدایت په دے کښې دا دے چه دَ حق او حقیقت ښکاره کولو دَ پاره په دے کښې حضرت ابراهیم علیه السلام قوم ته دا سے خطاب اونۀ کړو چه تاسو دا سے اوکړئ. بلکه خپل حال ئې ښکاره کړو چه زه خو دَ دے څیز ونو کوم چه دَ ختلو او پریوَتلو په چکّر کښې ګیر دی عبادت نه شم کولے په دے وجه زۀ خپل مخ یو دا سے هستئ طرف ته کَوُم کوُم چه هرڅۀ لره پیدا کوُنکے او پالوُنکے دے. مقصد خو دا وَه چه تاسو لره هم دا سے کول پکار دی. مګر په حکیمانه انداز کښې ئې دَ ښکاره خطاب نه ډډه اوکړه چه دوی ضد جوړ نه کړی. دَ دےنه معلومه شوه چه دَ اصلاح کوُنکی او تبلیغ کوُنکی صرف دا کار نه دے چه حقه خبره په هر جوړ چه وی او کړی. بلکه په دۀ لازمه ده چه په دا سے انداز سره ئے اوکړی چه په خلقو اثر اوکړی.

اَلَّذِیۡنَ اٰمَنُوۡا وَلَمۡ یَلۡبِسُوۡۤا اِیۡمَانَهُمۡ بِظُلۡمٍ اُولٰٓئِكَ

کوم خلق چه یقین اوکړی او ملاوُ نه کړی په خپل یقین کښے څۀ نقصان دَ هغوی

لَهُمُ الۡاَمۡنُ وَهُمۡ مُّهۡتَدُوۡنَ ﴿۸۲﴾ وَتِلۡكَ حُجَّتُنَاۤ

دَ پاره دے اَمن او هغه دی په سَمه لار - او دا زمونږ دلیل دے

اٰتَیۡنٰهَاۤ اِبۡرٰهِیۡمَ عَلٰی قَوۡمِهٖ ؕ نَرۡفَعُ دَرَجٰتٍ مَّنۡ

چه مونږ ورکړے وو ابراهیم ته دَ دۀ دَ قوم په مقابله کښے - درجے اوچتوُو مونږ دَ چاچه

ع ۹ ۱۲ ۱۵

نَشَآءُ ۗ اِنَّ رَبَّكَ حَكِيْمٌ عَلِيْمٌ ﴿٨٣﴾ وَوَهَبْنَا لَهٗٓ

اُوچتوو. ستا رب حکمت والا دے پوهه دے - او اُو بخلو مونږ ابراهیم[ع] ته

اِسْحٰقَ وَيَعْقُوْبَ ۭ كُلًّا هَدَيْنَا ۚ وَنُوْحًا هَدَيْنَا

اسحاق[ع] او یعقوب[ع] - ټولو لره مونږ هدایت ورکړے دے او نوح[ع] ته هدایت ورکړے مونږه

مِنْ قَبْلُ وَمِنْ ذُرِّيَّتِهٖ دَاوٗدَ وَسُلَيْمٰنَ وَاَيُّوْبَ

د دے ټولو نه مخکښے او د دوی په اولاد کښے داؤد[ع] او سلیمان[ع] او ایوب[ع]

وَيُوْسُفَ وَمُوْسٰى وَهٰرُوْنَ ۭ وَكَذٰلِكَ نَجْزِي

او یوسف[ع] او موسیٰ[ع] او هارون[ع] ته - او مونږ دا رنګ بدله ورکوو

الْمُحْسِنِيْنَ ﴿٨٤﴾ وَزَكَرِيَّا وَيَحْيٰى وَعِيْسٰى وَاِلْيَاسَ ۭ

نیکانو ته - او زکریا[ع] او یحییٰ[ع] او عیسیٰ[ع] او الیاس[ع] ته -

كُلٌّ مِّنَ الصّٰلِحِيْنَ ﴿٨٥﴾ وَاِسْمٰعِيْلَ وَالْيَسَعَ وَيُوْنُسَ

ټول د نیک بختانو نه دی - او اسمٰعیل[ع] او یسع[ع] او یونس[ع]

وَلُوْطًا ۭ وَكُلًّا فَضَّلْنَا عَلَى الْعٰلَمِيْنَ ﴿٨٦﴾ وَمِنْ اٰبَآئِهِمْ

او لوط[ع] ته او ټولو لره مونږ فضیلت ورکړے په ټول مخلوق او هدایت کړے د مونږ د بعضو

وَذُرِّيّٰتِهِمْ وَاِخْوَانِهِمْ ۚ وَاجْتَبَيْنٰهُمْ وَهَدَيْنٰهُمْ

پلار نیکه او اولاد د دوی ته او ورونړو د دوی ته او غوره کړی وو مونږه دوی او په نیغه

اِلٰى صِرَاطٍ مُّسْتَقِيْمٍ ﴿٨٧﴾ ذٰلِكَ هُدَى اللّٰهِ يَهْدِيْ

لاره مو او چلولی - دا د الله هدایت دے چلوی

بِهٖ مَنۡ يَّشَآءُ مِنۡ عِبَادِهٖ ؕ وَلَوۡ اَشۡرَكُوۡا لَحَبِطَ

په دے چاله چه اغواړی د بندګانو خپلو نه - او که دے خلقو شرک کړے نو خامخا ضائع شی

عَنۡهُمۡ مَّا كَانُوۡا يَعۡمَلُوۡنَ ﴿۸۸﴾ اُولٰٓئِكَ الَّذِيۡنَ

به دَو څهٔ چه دوی کړی وُو - دا خلق دَو کوم ته چه

اٰتَيۡنٰهُمُ الۡكِتٰبَ وَالۡحُكۡمَ وَالنُّبُوَّةَ ۚ فَاِنۡ

ورکړے وُه مونږ کتاب او شریعت او نبوّت - بیا که دے خبرو له

يَّكۡفُرۡ بِهَا هٰٓؤُلَآءِ فَقَدۡ وَكَّلۡنَا بِهَا قَوۡمًا

او نه مَنی دَ مکے خلق نو مونږ دَ دے خبرو دَ پاره مقرر کړی دی داسے خلق

لَّيۡسُوۡا بِهَا بِكٰفِرِيۡنَ ﴿۸۹﴾

چه دَ دی نه منکر نه دی -

# لنډ تفسير

کوم خلق چه (په الله) ايمان لری او خپل (دے) ايمان لره دَ شرک سره خلط نه کړی دَ داسے خلقو دَ پاره (په قيامت کښے) امن دے او دوی (په دنيا کښے) په لار (رښغه) چليږی (او دا صرف موحّدين دی بخلاف دَ مشرکانو نه چه اګر که په معنیٰ لغوی په خدائے ايمان لری ځکه چه دَ خدائے قائل دی ليکن شرک هم کوی چه په دے سره شرعی ايمان منفی کيږی - کله چه موحّدين قابل دَ امن دی پس په دے صورت کښے تاسو په خپله يره کوئے، نه چه مونږ يره وُئ، حال دا دے چه نه ستاسو خدايان دَ يرے قابل دی او نه ما څهٔ کار دَ يريد وکړے دے، او نه دَ دُنيا يره دَ څهٔ اعتبار قابله ده - او دا ستاسو حالت په دے درے وارو اعتبارو سره دَ يرے دے)

او دا دحجت کوم چه ابراهیم علیه السلام په توحید قائم کړے وه) زمونږ دور کړے شوے) حجت وه دغه مونږ ابراهیم (علیه السلام) لره ددهٔ دقوم په مقابله کښے ورکړے وه (کله چه مونږ ورکړے وه نو یقیناً داعلیٰ درجے وه او دا براهیم علیه السلام خهٔ تخصیص دے) مونږ (رخو) چالره چه غواړو پړ (علمی او عملی) مرتبو کښے او چتوُو (نو تو لو انبیاؤ ته مونږ ه دا او چتے درجے ورکړے وے) بے شکه ستا رب لوئے علم والا لوئے حکمت والا دے (چه دهر یو حال او استعداد پیژنی او دهر یو مناسب حقهٔ لره کمال ورکوی) او (زمونږ چه څنگه ابراهیم علیه السلام ته ذاتی کمال علم او عمل ورکړو دغه شان مُو وَرْله کمال اضافی هم ورکړو چه کوم دهٔ په اصُولو او فروعو کښے موجود وو ته کمال ورکړو، چنانچه) مونږ دهٔ ته (زیو ځوئی) اسحٰق ورکړو او (یو نمسے) یعقوب (ور کړو، او په دے سره دَ نور اولاد نفی نه کیږی او دَ دواړو صاحبانو نه) هر یو ته (دَ حق دَ لارے) مونږ هدایت اوکړو او (دَ ابراهیم نه) په وړاندې زمانه کښے مونږ نوح (علیه السلام) لره (چه دے دَ ابراهیم علیه السلام په نیکو نو کښے مشهور دے او دَ اصل فضیلت په فرع کښے هم اثر کوی، دَ حقے لا رے) هدایت اوکړو او ددے (ابراهیم علیه السلام) دَ اولاد (لغوی یا عرفی یا شرعی) نه (تر آخره پورے څو مره چه ذکر دی تو لو ته مُو دَ حقے لارے هدایت اوکړو یعنی) داؤد (علیه السلام) ته او (ددهٔ ځوئے) سلیمان (علیه السلام) ته او ایوب (علیه السلام) ته او یوسف (علیه السلام) ته او موسیٰ (علیه السلام) ته او هارون (علیه السلام) ته (دَ حقے لارے هدایت اوکړو) او (کله چه دوی په هدایت روان وُو نو مونږ دوی لره غوره جزا هم ورکړه لکه ثواب او زیات نزدیکت او لکه څنگه چه مُو په نیکو کارو نو دوی لره جزا ورکړه) دغه شان (زمونږ عادت دے چه) مونږ نیک کارکونکو ته (مناسب) جزا ورکوُو (او دارنگ مونږ دَ حقے لارے هدایت اوکړو) ذکریا (علیه السلام) ته او (ددهٔ ځوئی) یحیٰی (علیه السلام) ته او عیسیٰ (علیه السلام) ته او الیاس (علیه السلام) ته (او دا)

ټول (حضرات) په پوره نیک بختانو خلقو کښې وُو او دا رنګې (موږ دَ حقې لارې هدایت اوکړو) اسمٰعیل (علیه السلام) ته او یَسع (علیه السلام) ته او یونس (علیه السلام) او لوط (علیه السلام) ته او (په دوی کښې) هر یو لره (دَ دوی دَ زمانو) دَ ټول جهان په خلقو (په نبوّت سره) موږ فضیلت ورکړو او دا رنګې دَ دے (ذکر شوؤ حضراتو) څه پلار نیکه او څه اولاد او څه رونړه وو ته (دَ حقے لارے موږ هدایت اوکړو) او موږ دوی (ټولو) ته دَ نیغے لارے (یعنی حق دین) هدایت اوکړو او هغه دین دَ کوم چه دے ټولو ته هدایت شوے وه) دَ الله (دَ جانب نه چه کوم) هدایت ... (کیږی) هغه دا (دین) دے، په خپلو بندګانو کښې چه په چا باندے غواړی دَ دے هدایت (یعنی منزل ته دَ رَسَوَلو په صورت کښې) کوی (نو اوس چه کوم خلق موجود دی هغوی ته هم دَ دے هدایت په دے معنیٰ سره اوشو چه دوی ته صحیح لارا وخودے شوه، بیا منزل ته رسیدل یا نه رسیدل دَ دوی کار دے، مګر په دوی کښې بعضو دے لره پرېښودو شرک ئے اختیار کړو) او (شرک دومره ناکاره شے دے چه غیرانبیاء خو په څه شمار کښې نه دی) که فرض کړه دے حضراتو (انبیاؤ ذکر شوی) هم (نعوذ بالله) شرک کړے وے نو څه چه دوی (نیک) عملونه کول ټول به ضائع شوی وُو (وړاندې دَ نبوّت مسئلے طرف ته اشاره ده چه) دوی (ټول مره چه ذکر شو) داسے وُو چه موږ دوی (په مجموع) لره کتاب (آسمانی) او حکمت (علمونه) او نبوت ورکړے وَه (نو نبوّت څۀ عجیبه کار نه دے چه دا کافران ستا نه انکار کوی ځکه چه نظیرونه ئے موجود دی) پس که (سره دَ نظیر موجودیدو بیا هم) دا خلق (ستا) دَ نبوّت نه انکار کوی نو (ته څۀ غم مه کوه ځکه چه) موږ دَ دے (دَ منلو) دَ پاره داسے ډیر خلق مقرر کړی دی (یعنی مهاجرین او انصار) چه دَ دے نه منکر نه دی -

# مَعلومَات او مَسئلے

دَ ذکر شوو آیاتونو نه په وړاندِ آیاتونو کښې دَ حضرت ابراهیم علیه

السلام مناظره دَ خپل پلار آزر او دَ پوره قوم دَ نمرود سره ذکر وه، په کومه کښې چه ئې دَ هغوی دَ بت پرستئ او نجوم پرستئ خلاف یقینی شهادتونه پیش کړلو نه پس په ذکر شوُو ایاتو نو کښې خپل قوم ته خطاب اوفرمایه چه تاسو ما په خپلو بُتانو یَرَه وئ چه که زهٔ دَ دوی نه انکار اوکړم نو ما به برباد کړی حال دا دے چه نه په بتا نو کښې کوم قدرت شته او نهٔ ما څهٔ داسے کار کړے دے چه په نتیجه کښې به ئې ما ته څهٔ نقصان رسی، بلکه یَرَه تاسو لره پکار ده چه تا سو جُرم هم داسے سخت کړے دے چه دَ الله مخلوق بلکه دَ مخلوق جوړ شوو لره دَ خدائے سره شریک او برابروئ - او بیا دَ دے نه هم یوه عقل خاوند ناخبره نه دے چه الله تعالیٰ علیم او خبیر او قادر مطلق دے - نو ادس تاسو په خپله سوچ اوکړئ او وایئ چه دَ امن او اطمینان مستحق څوک دے؛ او یَره چا لره پکار ده؟

په دے ایاتو نو کښې په اوّل ایت کښې دا مضمون ارشاد فرمائیلے شوے دے چه دَ عذاب نه په اَمن او مطمئن صرف هغه خلق کیدے شی کوم چه په الله ایمان راوړی او بیا په خپل ایمان کښې دَ څهٔ ظلم شرکت اُو نه کړی -

په حدیث کښې دی چه کله دا ایت نازل نازل شو نو صحابه کرام او یَرَ یدل او عرض ئې اوکړو یا رسول الله په مونږ کښې څوک داسے دے چه څهٔ ظلم ئې په خپل ځان په ذریعه دَ گناه نه دے کړے - او په دے ایت کښې خو دَ عذاب نه دَ امن کیدو دا شرط دے چه دَ ایمان سره ئې څه ظلم نه وی کړے - نو بیا زمونږ دَ نجات لاره څهٔ ده؟ نبی کریم صلے الله علیه وسلم اُو فرمائیل چه تاسو دَ ایت په صحیح مطلب نه یئ پوهه - په ایت کښې دَ ظلم نه مراد شرک دے، لکه چه په یو بل ایت کښې ارشاد دے: اِنَّ الشِّرْكَ لَظُلْمٌ عَظِيْمٌ؛ په دے وجه دَ ایت مراد دا دے چه کوم

ایمان راوړی او بیا په دے کښې دَ الله تعالیٰ په ذات او صفاتو کښې چا لره شریک جوړ نه کړی دے دَ عذاب نه په امن او هدایت موندونکے دے -

لنډه داده چه دَ بتانو، کاڼو، وُنو، ستورو، دریابونو عبادت کونکي مخلوق دَ خپلې بې وقوفۍ نه دې څيز ونو لره اختيار خاوندان ګڼړي - او دَ دوي دَ عبادت پرېښودو نه ځکه يَرېږي چه چرته دا څيز ونه مونږ ته نقصان اونه رَسَوِي - حضرت خليل الله عليه السلام دَ يو کړُ خبره دوي ته اوخودَله - چه خداۓ پاک کوم چه ستاسو دَ هر کار نه خبردار هم دے او ستاسو په هره بنهٔ بَده باندِ پوره قادر هم دے دَ هغهٔ نه تاسو نه يَرېږئ چه دَ هغهٔ نه په خلاف کولو به څهٔ مصيبت راشي، او دَ کومو څيز ونو سره چه نه علم شته نه قدرت دَ هغوي نه داسې يرېږئ: دا دَ بې عقلۍ نه سِوَا نور څهٔ دي - يَره صرف دَ الله نه ږګار ده - او دَچا چه په دے باندِ ايمان وي هغه په هيڅ يَره کښې نه وي -

په دے ايت کښې: وَ لَمۡ يَلۡبِسُوۡۤا اِيۡمَانَهُمۡ بِظُلۡمٍ: فرمايلي دي - په دے دَ ظلم نه خودَ نبي کريم صلے الله عليه وسلم دَ خودَنے موافق شرک مراد دے - عام ګناه مراد نه دے - ليکن لفظ دَ: بِظُلۡمٍ: ئے نکره راوړه چه دَ عربئ ژبې دَ قواعدو مطابق ئے عام کړو، چه هر قسم شرک لره شامل دے - او لفظ دَ: لَمۡ يَلۡبِسُوۡا: دَ لبس نه جوړ دے چه يوه معنیٰ ئے اغوستل، يا خلط ملط کول دي - او مراد دَ ايت دا دے چه کوم سړے په خپل ايمان کښې دَ څهٔ قسم شرک ملاوٌ کړي - يعني خداۓ تعالیٰ لره سره دَ ټولو کمالي صفتونو دَ منلو باوجود غيرالله لره هم په دے کښې دَ بعضو صفتونو حامل ګڼړي - هغه دَ دے امن او ايمان نه خارج دے.

دَ دے ايت نه معلومه شوه چه شرک صرف دا نه دے چه په ډاګه مشرک او بُت پرست شي، بلکه هغه سړے هم مشرک دے کوم چه اګر که دَ يو بُت عبادت نه کوي او کلمه دَ اسلام لولي - مګر چا فرښتے، يا رسول يا چا ولي الله لره دَ الله په بعض خاصو صفتونو کښې شريک کړي - په دے کښې دَ هغې عوامو دَ پاره سخت خبردارے دے کوم چه اولياۇ الله او دَ دوي مزارونو لره حاجت روا ګڼړي - او عملاً دوي لره داسے ګڼړي چه ګويا دَ خداۓ اختيارات دوي ته حواله شوي دي - (نعوذ بالله منهٔ)

په دویم ایت کښې حق تعالیٰ جل شانهٔ ارشاد او فرمایه چه حضرت ابراهیم علیه السلام چه دَخپل قوم سره په مناظره کښې کومه ځکاره فتح بیا مونده او هغوی ئې لاجوابه کړل دا زمونږ انعام وُه چه دهٔ له مونږ صحیح نظر یه ورکړه بیامُو ورته دَ هغې ښکاره دلیلونه او خودل. هیڅ له په عقل پوهه یا تقریر یا زورِ خطابت پا بندِ ناز کول نه دی ځکارهٔ بغیر دَ الله تعالیٰ دَ امداد او ملګرتیا نه دَ چا بیړئ نه شی پورے وَتلے. یوازې انسانی عقل په حقیقت پابندِ ے دَ پوهه کید و دپاره پوره نه دے. چه په هر دَوَرْ کښے دا لیدَ لے شی چه لوئے لوئے ماهر فلاسفران دَ ګمراهئ کند ے ته غورزیګی او دیرانْ یَږْ جاهلان دَ صحیح عقیدے او نظر ئے پابند کیږی. مولانا رومیٔ څهٔ ښهٔ فرمائیلی دی : ؎

بے عنایاتِ حق و خاصانِ حق
گر ملک باشد سیه هستش ورق

(بغیر دَ مهربانئ دَ خدائے پاک او دَ خاصانو دَ حق نه. که ملائکه هم وی خو چه دَخدائے مهربانی ورسره نه وی عمل نامه بهٔ ئے توره وی)

په آخر ایت کښې فرمائی : نَرْفَعُ دَرَجٰتٍ مَّنْ نَّشَآءُ : یعنی مونږ چه چاله غواړو درجے ئے اوچتوُو. په دے کښے اشاره ده چه حضرت ابراهیم علیه السلام ته کوم په ټول عالم کښے او تر قیامته پورے په دا تلوُنکو نسلونو کښے خاص عزّت او مقام ورکړے شو چه یهودیان نصرانیان، مسلمانان، بُت پرست وغیره ټول دَ دهٔ دَ پاکئ قائل دی او تعظیم ئے کوی دا هم زمونږ فضل او انعام دے دَ چا دَ کسب او عمل په دے کښے دخل نیشتے.

دَ دے نه پس په شپږ‌‌ ُ وا ایاتونو کښے دَ اُوولسو انبیاء علیهم السلامُ فهرست شمار شوے دے چه په دوی کښے بعض دَ ابراهیم علیه السلام پلرونه نیکونه دی، او اکثر دَ دوئ اولاد دی. او بعض ئے رونړه وریرونه دی. په دے ایاتونو کښے یو طرف ته خو دَ دے حضراتو په هدایت پابندِ کیدل، صالحان کیدل په نیغه لارے کیدَ لْ

بیان شوی دی۔ او دا خو دلی شوی دی چه دوی لره الله تعالیٰ دَ خپل دین دَ خدمت دَ پاره منتخب کړی او قبول کړی دی، او بل طرف ته ئې دا خودلے ده چه ابراهیم علیه السلام دَ الله تعالیٰ په لاره کښې خپل پلار او خاندان او وطن پاتے کړی وُو نو الله تعالیٰ دَ اخرت او چتے درجے او همیشه اوبےمثاله راحتونه اوّل په دنیا کښې هم دَهٔ ته دَ خپل خاندان غوره خاندان او دَ وطن نه غوره وطن ورکړو، او دا لوئے شرافت ئې ورته ورکړو چه دَ حضرت ابراهیم علیه السلام نه پس تر قیامته پورے څومره انبیاء او رسُولان چه راغلی دی هغه ټول دَدهٔ په اولاد کښې دی' یو شاخ کوم چه دَ حضرت اسحٰق علیه السلام نه شروع شو په دهٔ کښې ټول انبیاء دَ بنی اسرائیل راغلل۔ او دویم شاخ کوم چه دَ حضرت اسمٰعیل علیه السلام نه شروع شو په دے کښې سیّد الاوّلین والاٰخرین نبی دَانبیاؤ خاتم دَ انبیاؤ صلے الله علیه وسلم پیدا شو۔ او دا ټول دَ حضرت ابراهیم علیه السلام اولاد دے۔ دَ دے نه دا هم معلومه شوه چه اګرچه عزت او ذلت او دَ نجات او عذاب اصل دارمدار دَ انسان په خپل عمل باندے دے' لیکن په پلار نیکه کښې دَ نبی یا ولی کیدل یا په اولاد کښې عالم او صالح کیدل هم یو لوئے نعمت دے۔ او دَ دے نه هم انسان ته فائده رسی۔

په دے اُوۀ لسّو انبیاؤ کښې دَ کومو چه فهرست په دے ایاتو نو کښې ورکړے شوے دے یو حضرت نوح علیه السلام خو دَ ابراهیم علیه السلام نیکه دے باقی ټول ته ئې دَ دهٔ اولاد فرمائیلے دے: وَمِنْ ذُرِّيَّتِهٖ دَاوٗدَ وَسُلَيْمٰنَ الْاٰيَة؛ په دے کښې یو اشکال خو دَ حضرت عیسیٰ علیه السلام په باره کښې کیدے شی: چه دے بغیر دَ پلار نه دَ پیدا کیدو په وجه سره دَ حضرت ابراهیم علیه السلام دَ لوُر په اولاد کښې دے یعنی دَ خوئ خوئے نه دے دَ لوُر خوئے دے نو دهٔ ته اولاد وئیل څنګه صحیح شو؟ دَ دے جواب عامو عالمانو او فقهاؤ دا کړے دے چه لفظ دَ ذرّیّت دواړو ولره شامل دَ کړ دَ خوئے نه وی او که دَ لوُر ته۔ او دلیل ئې په دے سره نیولے دے چه حضرات

حسنین رضی الله تعالیٰ عنهما دَ نبی کریم صلے الله علیه وسلم په اولاد کښې داخل دی.

دویم اشکال دَ حضرت لوط علیه السلام متعلق دے چه هغهٔ په اولاد کښې نه دے بلکه وراره دے. لیکن دَ دے جواب هم واضح دے چه په عُرف کښې ترهٔ ته پلار او وراره ته ځوئے وئیل ډیر مشهور دی.

په ذکر شوو آیاتو کښې ئے په حضرت خلیل الله علیه الصلوٰة والسلام دَ الله تعالیٰ جلّ شانهٔ انعامات بیان کړل یو طرفته خو دَ قدرت دا قانون او خودے شو. چه کوم سړے دَ الله تعالیٰ په لاره کښې خپل څیزونه قربان کوی الله تعالیٰ دهٔ ته په دنیا کښې هم دَ دے نه غوره څیزونه ورکوی. دویم طرف ته ئے دَ مکے مشرکانو ته دا حالت واورولو دے طرفته ئے دَ دوی پام راګرځول مقصود دی، چه تاسو خلق دَ محمد صلے الله علیه وسلم خبره نه منئ، نو او ګورئ کوموله چه تاسو هم لوئے منئ، یعنی حضرت ابراهیم علیه السلام او دَ هغهٔ ټول خاندان هغوی هم ټولو دا په ځنه وئیلی دی چه دَعبادت قابل صرف یو ذات دَ الله تعالیٰ دے دَ هغه سره څوک هم په عبادت کښې شریک کول یا دَ الله سره په مخصوصو صفاتو کښې حصه دار ګنړل کفر او ګمراهی ده تاسو بچیله هم په دے خپلو منونکو خبرو ملزمان یئ.

په اتم آیت کښې دا مضمون ارشاد فرمائیلے شوے دے او دَ دے په آخر کښې نبی کریم صلے الله علیه وسلم ته دَ تسلّی ورکولو دَ پاره ارشاد فرمائی: فَإِنْ يَكْفُرْ بِهَا هَٰؤُلَاءِ فَقَدْ وَكَّلْنَا بِهَا قَوْمًا لَّيْسُوا بِهَا بِكَافِرِينَ

"یعنی که ستا مخے مخاطب ستا خبره نه منی او دَ ټولو تیرو پیغمبرانو دَ هدایتونو پیښ کولو باوجود بیا هم په انکار باندے ولاړ وی، نو ته غم مه کوه ځکه چه مونږه ستا دَ دعوت او هدایت منلو او خپلو لو دَ پاره یو لوئے قوم مقرر کړے دے، دوی به کفر او انکار نه کوی. په دے کښې دَ مبارکے زمانے موجود مهاجرین او انصار هم داخل دی. او تر قیامته پورے راتلونکی مسلمانان هم. او دا آیت دَ دغے ټولو خلقو دَ پاره

دَ فخر کولو دے چه الله تعالیٰ دوی لره دَ صفت په مقام کښے ذکر کړو – الله مونږ هم په دوی کښے شمار کړے او زمونږ حشر دَ دوی سره کړے – امين –

اُولٰٓئِكَ الَّذِيْنَ هَدَى اللّٰهُ فَبِهُدٰىهُمُ اقْتَدِهْ ؕ

دغه هغه خلق دی چا ته چه هدایت اوکړو الله پس ته ځه دَ دوی په طریقه –

قُلْ لَّآ اَسْـَٔلُكُمْ عَلَيْهِ اَجْرًا ؕ اِنْ هُوَ اِلَّا ذِكْرٰى

ته او وایه چه ما نه ده غوښتلے ستاسو نه په دے څه مزدوری دا خو محض نصیحت دے

لِلْعٰلَمِيْنَ ۝٩٠ وَمَا قَدَرُوا اللّٰهَ حَقَّ قَدْرِهٖٓ اِذْ قَالُوْا

دَ مخلوق دَ پاره – او اُونه پیژندو دوی الله لره په پوره پیژندو کله چه دوی اُووئیل

مَآ اَنْزَلَ اللّٰهُ عَلٰى بَشَرٍ مِّنْ شَيْءٍ ؕ قُلْ مَنْ اَنْزَلَ

چه نه دے نازل کړے الله په یو انسان باندے څه شے – تپوس اوکړه ته او وایه چا نازل کړے

الْكِتٰبَ الَّذِيْ جَآءَ بِهٖ مُوْسٰى نُوْرًا وَّهُدًى لِّلنَّاسِ

وه هغه کتاب کوم چه موسیٰ راوړے وه رنړا وه او هدایت وه دَ خلقو دَ پاره

تَجْعَلُوْنَهٗ قَرَاطِيْسَ تُبْدُوْنَهَا وَتُخْفُوْنَ كَثِيْرًا ۚ

کوم چه تاسو پانړے پانړے کړو خلقو ته مو اُوخودو او ډیر و خبرو لره تاسو پټ ساتلے وے

وَعُلِّمْتُمْ مَّا لَمْ تَعْلَمُوْٓا اَنْتُمْ وَلَآ اٰبَآؤُكُمْ ؕ قُلِ

او تاسو ته ئے او خودل هغه چه تاسو نه پیژندل او نه ستاسو پلار نیکه – ته او وایه چه

اللّٰهُ ۙ ثُمَّ ذَرْهُمْ فِيْ خَوْضِهِمْ يَلْعَبُوْنَ ۝٩١ وَ

الله نازل کړے وه – بیا پریده دوی لره چه په خپلو خرافاتو کښے لوبے کوی – او

هٰذَا كِتٰبٌ اَنْزَلْنٰهُ مُبٰرَكٌ مُّصَدِّقُ الَّذِیْ

دا قرآن کتاب دے چه مونږ نازل کړے دے برکت والا تصدیق کوونکے د هغې

بَیْنَ یَدَیْهِ وَلِتُنْذِرَ اُمَّ الْقُرٰی وَمَنْ حَوْلَهَا

چه د دهٔ نه وړاندې دی او چه اُو یَرَوے مکے والو لره او د دے خواوشا ماحول والو لره

وَالَّذِیْنَ یُؤْمِنُوْنَ بِالْاٰخِرَةِ یُؤْمِنُوْنَ بِهٖ وَهُمْ

او د چا چه یقین دے په اخرت هغوی په دے ایمان راوړی او هغوی

عَلٰی صَلَاتِهِمْ یُحَافِظُوْنَ ﴿۹۲﴾ وَمَنْ اَظْلَمُ مِمَّنِ

دی د خپلو مونځو نو حفاظت کوُنکی - او د هغه نه زیات ظالم څوک دے

افْتَرٰی عَلَی اللّٰهِ كَذِبًا اَوْ قَالَ اُوْحِیَ اِلَیَّ وَلَمْ

چه تړی په الله باندې دروغ یا وائی چه په ما وحئ نازله شوه او په دهٔ

یُوْحَ اِلَیْهِ شَیْءٌ وَّمَنْ قَالَ سَاُنْزِلُ مِثْلَ مَآ اَنْزَلَ

وحئ نه وی نازله شوے هیڅ هم او څوک چه وائی زهٔ به هم نازل کړم په مثل د هغې چه الله

اللّٰهُ ۭ وَلَوْ تَرٰٓی اِذِ الظّٰلِمُوْنَ فِیْ غَمَرٰتِ الْمَوْتِ

نازل کړې دی - او که ته اُووینے کله چه ظالمان وی د مرګ په سختو کښے

وَالْمَلٰٓئِكَةُ بَاسِطُوْٓا اَیْدِیْهِمْ ۚ اَخْرِجُوْٓا اَنْفُسَكُمْ ۭ

او فرشتے خپل لاسونه را اوکړی وی چه اُوباسئ خپل روحونه . . .

اَلْیَوْمَ تُجْزَوْنَ عَذَابَ الْهُوْنِ بِمَا كُنْتُمْ تَقُوْلُوْنَ

نن به تاسو ته په بدله کښه ملاوېږی د ذلت عذاب په دے سبب سره چه تاسو به وے

عَلَى اللّٰهِ غَيْرَ الْحَقِّ وَكُنْتُمْ عَنْ اٰيٰتِهٖ تَسْتَكْبِرُوْنَ ﴿۹۳﴾

په الله دروغ خبرے او د دهٔ د آیاتو نه ئے تکبر کولو ۔

وَلَقَدْ جِئْتُمُوْنَا فُرَادٰى كَمَا خَلَقْنٰكُمْ اَوَّلَ مَرَّةٍ

او خامخا به تاسو مونږ له راشئ یو یو لکه څنګه چه مونږ تاسو پیدا کړی وئے اول وار

وَّتَرَكْتُمْ مَّا خَوَّلْنٰكُمْ وَرَآءَ ظُهُوْرِكُمْ ۚ وَمَا

او پریښودو تاسو څهٔ اسباب چه مونږ تاسو له درکړے وهٔ د خپلے شا نه روستو او مونږ

نَرٰى مَعَكُمْ شُفَعَآءَكُمُ الَّذِيْنَ زَعَمْتُمْ

نهٔ وینو ستاسو سره سفارش کوونکو له کوم چه تاسو به پرے ګما نونه کول

اَنَّهُمْ فِيْكُمْ شُرَكٰٓؤُا ۭ لَقَدْ تَّقَطَّعَ بَيْنَكُمْ

چه دوی ستاسو سره شریکان دی ۔ خامخا قطع شوه ستاسو علاقه

وَضَلَّ عَنْكُمْ مَّا كُنْتُمْ تَزْعُمُوْنَ ﴿۹۴﴾ ع

او لاړے کومے دعوے چه تاسو کولے ۔

ع ۱۲ ۱۷

# لنډ تفسیر

راو مونږ چه د غم نه کولو او صبر کولو وایو نو وجه داده چه ټولو انبیاء داسے کړی دی ، چنانچه) دا حضرات (چه ذکر شو) داسے وُو چا ته چه الله تعالیٰ (د دے صبر) هدایت کړے وهٔ پس (په دے باب کښے) ته هم ئے د دوی په طریقه (په صبر) چلیږه (ځکه چه تا ته هم د دے هدایت کړے شوے دے د لے چه په دے نه تا ته نفع شته او نه څهٔ ضرر شته چه په دے وجه ته غم او بے صبری کوے ، او د دے مضمون د اظهار د پاره دوی ته د تبلیغ په وخت کښے)

تاسو (دا هم) او وایئ چه زهٔ ستاسو نه (په دے تبلیغ د قرآن) څهٔ معاوضه
نه غواړم (چه په مِلاوېدو د ئے نفع او نه په نهٔ مِلاوېدو ضرروی، بے غرضه
نصیحت کوم) دا (قرآن) خو صرف د ټول مخلوق د پاره یو نصیحت دے
(چه په منلو کېدو ئے ستاسو نفع ده او په نهٔ منلو کېدو ئے ستاسو نقصان دے)
او دے (منکرو) خلقو د الله تعالیٰ چه لکه څنګه قدر د پیژندل واجب وُو،
د غسے قدر ئے او نه پیژندو کله چه (په چکه خوله) دوی دا ووے چه الله
تعالیٰ په هیڅ بشر څه شے (یعنی څهٔ کتاب) نه دے نازل کړے (دا وئیلی قدر
نه پیژندل څنګه دی چه په دے سره د نبوت د مسئلے نه انکار لازمیږی، او
د نبوت منکر الله تعالیٰ لره دروغژن کوی، او د حق تصدیق واجب دے
پس چه دے کېدو په قدر شناسیٔ اجب کېدو خلل راغے، دا خو تحقیقی جواب وهٔ
او په الزامی چپ کوُنکی جواب ورکولو کېدو) ته (دوی ته) دا او وایه چه (دا خو
او وایئ چه) هغه کتاب چا نازل کړے دے کوم لره چه موسیٰ (علیه السلام)
راؤړے وهٔ (یعنی تورات کوم چه تاسو هم منئ) چه د هغے حال دا دے چه
هغه (پخپله په منلو د) نور (دا طه) دے او د خلقو مود هدایت د پاره چه
هغه راغلے وه د غ) خلقو د پاره هغه (په وجه د شریعت د بیان په ذریعه
هدایت دے کوم لره چه تاسو د هیلو نفسانی غرضونو د پاره) پانړے
پانړے کړے دے چه هغے (کېدو څو مره پانړے تاسو غواړئ هغے) لره ښکاره
کوئ (چه په هغې کېدو ستاسو د مطلب خلاف خبره نه وی شوے) او ډیرو
خبرو لره (چه ستاسو د مطلب نه خلاف وی، یعنی په کوموپانړو کېدو چه
هغه لیکلے شوی وی هغو لره) پټوئ او (د دے کتاب په برکت) تاسو ته
ډیرے داسے خبرے او خودلے شوے کوم لره چه (د را نزد کتاب ملا ویدو نه)
نهٔ تاسو (یعنی قوم د بنی اسرائیل ته کوم چه په وخت د نزول د آیت موجود وُو)
پیژندلے او نهٔ ستاسو د نزدے سلسلے) لویو (یعنی مشرانو پیژندلے، مطلب
دا دے چه د کوم تورات چه دا حالت دے چه دهٔ لره خو اول تاسو هم منئ، دویم
په وجه د نورا و هدایت کېدو د منلو قابل هم دے، دریم حروخت ستاسو
په استعمال کېدو دے، اګر چه دغه استعمال خوشرمناک دے لیکن د هغې په وجه

سره دَ انکار ځائے خو پاتے نه شو، څلورم ستاسو په حق کښے هغه دَ لوئے
نعمت او احسان شوے دے، دَ دهٔ په برکت عالمان جوړ شوي په دے حیثیت
سره هم په دهٔ کښے دَ انکار ځائے نیشته، نو دا او وایئ چه دا چا نازل کړے دے
او چونکه دَ دے سوال جواب دا سے معلوم دے چه دغے خلقو به هم دَ دینه
سِوَا بل جواب نه ورکولو، په دے وجه پخپله دَ جواب ورکولو دَ پاره
نبي کریم صلی الله علیه وسلم ته حکم دے چه) ته (هم دغه) او وایه چه الله
تعالیٰ (مذکوره کتاب لره) نازل کړے دے (او په دے سره دَ دوی عامه
دعوه باطِله شوه) بیا (چه دا جواب ورته واؤروے) دوی لره دَ دوی
په عبثه مشغولا کښے مشغول پرِیدَه (یعنی ستا ذِمّهٔ واری ختمه شوه
که نهٔ منی نو ته فکرمه کوه موږ به ورسره پوهه شو) او دَ لکه څنګه
چه تورات زموږ نازل کړے کتاب دے دغه شان) دا (قرآن) هم
(دَ کوم چه دَ یهودو دَ ذکر شوی قول نه دروغژن کول مقصود دی) دا سے
کتاب دے کوم لره چه موږ (په تا) نازل کړے دے چه دَ لوئے
(خیر او) برکت والا دے (نو په دهٔ باندِ ایمان راوړل او عمل پرِ کول
دَ دُنیا او آخرت کامیابي ده او) دَ ځان نه دَ وړاندِ (نازل شوو) کتابونو
(دَ الله دَ طرفه دَ نازِلیدو) تصدیق کوونکے دے (پس موږ دے قرآن
لره دَ خلقو دَ نفع او دَ الله دَ کتابونو دَ تصدیق دَ پاره نازل کړے دے)
او (دَ دے دَ پاره (مو نازل کړے دے) چه ته (دَ دے په
ذریعه سره) مکے والو لره او دَ خوا وشا والو لره (په خصوصیت سره دَ
الله دَ عذاب نه چه په دے مخالفت باندِ به وی) اُویَرَوے (او دغه شان عام
خلق به پرے اُویَرَوے، لِيَكُونَ لِلْعٰلَمِيْنَ نَذِيْرًا) او (ستا دَ یرَوَلو نه پس اګر که
دا قول ایمان رانه وړی لیکن) کوم خلق چه په (آخرت (پوره) یقین لری (دا سے
چه دَ عذاب نه یرَه لری او دَ بچ کیدو ترفکر کوی او همیشه دَ حق په طلب او دَ
نجات دَ لارے په لټون کښے وی خواه په نقلی دلیل سره یا په عقلی تجویز سره)
دا سے خلق (خو) په دے (قرآن) باندِ ایمان راوړی او (په ایمان او عقیدے سره
دَ دے په عملونو هم پابندی کوی، ځکه چه دَ عذاب نه نجات په دے ټولو باندے په

جمع سره په عمل کولو باندې دې، چنانچه (هغوی په خپل موخ باندې همیشوالې کوي او هر کله چه په دې عبادت باندې چه روزانه پنځه پیرې مکوړ او سخت دې همیشوالې کوي، نو د نورو عبادتونو چه کله کله او آسان دي خو به په درجه اولی سره پابند وي، مطلب دا دې چه د چا د منلو یا نه منلو فکر مه کوه څوک چه خپل خیر غواړي اوبه مني څوک چه نه غواړي نه به مني ته خپل کار کوه) او د

هغه سړي نه به زیات ظالم څوک وي کوم چه په الله دروغ تهمت لګوي او د مطلق نبوت یا د خاص نبوت نه منکر وي لکه چه بره د بعضو خبره راغلې ده: مَا أَنْزَلَ اللّٰهُ عَلٰى بَشَرٍ الخ: او د بعضو وینا وه: أَبَعَثَ اللّٰهُ بَشَرًا رَّسُوْلًا) یا داسې او وائي چه په ما وحي راځي حال دا دې چه ده ته د هیڅ خبرې هم وحي نه ده راغلې (لکه مسیلمه وغیره) او (د دغه شان د ده نه هم زیات ظالم به څوک وي) کوم سړي چه داسې او وائي چه څنګه کلام الله تعالیٰ (د رسول الله صلی الله علیه وسلم د دعوې مطابق) نازل کړې دې دغه شان به زه هم راوړم او به ئې بنایم، لکه نضر وغیره وئیلي وو (نو دا ټول خلق لوئې ظالمان دي) او (د ظالمانو حال دا دې چه) که ته (د وي ته هغه وخت او ګورې (نو ډیر هیبتناک منظر به او وینې) کله چه دا ظالمان خلق (د) کوم چه ذکر او شو) د مرګ په (روحاني) سختو کښې (ګرفتار) وي او (د مرګ) فرښتې (چه د ملک الموت ملګري دي د دوي د روح ویستلو د پاره د دوي طرف ته) خپل لاسونه وړاوکړي کوي او د سختۍ ښکاره کولو د پاره ورته داوائي چه (هاں (زر)) خپل روحونه راوباسئ (کوم ځائې چه پټ کړي دې ګورې) نن (د مرګ سره فی الحال) به تاسو ته د ذلت سزا درکولې شي (یعنې داسې چه بدني تکلیف به پکښې هم وي او روحاني ذلت هم) په دې سبب سره چه تاسو د الله تعالیٰ په باره کښې دروغ بکواس نه کول (لکه مَا أَنْزَلَ اللّٰهُ، او أُوْحِيَ إِلَيَّ، او سَأُنْزِلُ وغیره) او تاسو د الله تعالیٰ د آیاتونو (قبلولو) نه (کوم چه د هدایت ذریعه وه) تکبر کولو (دا حال خو به دې د مرګ په وخت کښې وي) او (کله چه د قیامت ورځ شي نو الله تعالیٰ به او وائي) تاسو ما له (د دنیا او ملکارنه) یو یو (راغلئ) (رکوع)

راوړه داسې حالت سره راغلئ) لکه څنګه چه مونږ ه اوّل وار (په دُنیا کښې) تاسو
پیدا کړي وئ (چه نه په بدن پورې کپړې وې او نه په خپو کښې پېزار) او څه
چه مونږ تاسو لره (په دُنیا کښې سازو سامان) درکړے وه (چه تاسو پرې مزې کولې)
هغه مو ټول ستاسو دروستو پاتې کړو (ځان سره مو هیڅ رانه وړو، مطلب دا دے
چه د مال دولت په بروسه باندې مه اوسئ دا ټول به دلته پاتې کیږي) او (په
تاسو کښې چه د بعضو په خپلو باطلو معبودانو د شفاعت بروسه وه پس) مونږ
خو ستاسو سره (دا وخت) ستاسو هغه شفاعت کوونکي نه وینو (چه د دے نه
ثابته شوه چه په واقع کښې هم ستاسو سره نه دي) د کومو په نسبت چه تاسو
دعوے کولے چه دوی ستاسو په معامله کښې (زمونږ سره) شریک دي (چه
ستاسو د عبادت کومه معامله زمونږ سره کیده هغه د دوی سره کیده)
واقعي ستاسو (او د دوی) په مینځ کښې خو تعلقات قطع شو (چه نن تاسو د
دوی نه ویزاره او هغوی ستاسو ویزاره، شفاعت به څهٔ اوکړي) او هغه
ستاسو دعوه (چه ذکر شوه) څهٔ شوه چه تاسو به کوله (بےکاره ثابته شوه
نو اوس به پوره پوره په مصیبت کښې پریوځئ) -

## معلومات او مسئلې

په تیرو ایاتونو کښې په حضرت خلیل الله ابراهیم علیه السلام باندې د الله
تعالیٰ د عظیم الشانه انعاماتو او د ده د اُوچتو درجو ذکر وُه، په کوم کښې چه
ټول نسل د آدم علیه السلام ته عمومًا او اهلِ مکه او عربو ته خصوصًا دا
خبره په عملی صورت کښې خودل مقصود وَه چه کوم سړے د الله تعالیٰ مکمّل
حکم منلُ د خپل ژوند مقصد اوګرځوی او د دے د پاره د خپلو نفسو
او مینه کوونکو خیزونو قربانی پیش کړی لکه حضرت خلیل الله علیه
السلام چه پیش کړه چه مور او پلار، ملک او وطن ټول ئے د الله تعالیٰ
د پاره پاتې کړل، بیائے د بیت الله جوړ ولو د عظیم خدمت د پاره
د شام شنه باغونه پریخودل د مکے شګلنه زمکه ئے اختیار کړه. د
بنځے او بچی په سُره مَیره کښې د پریخودو حکم اوشو نو فورًا ئے قبول کړو.

دَ دَوی نازبین او خوښ څوئے دَ قربانئ حکم ورته اُوشه نو دَ خپل اختیار ترحده پورے ئے دا پوره کړل اُوئے خودل - دَ دا سے حکم منونکو اصل بدله خو به دَ قیامت نه پس په جنت کښے ملاویګی لیکن په دُنیا کښے هم الله تعالیٰ دوی ته هغه مرتبه او دولت ورکوو چه دَ هغے په مقابله کښے دَ ټولے دُنیا دولتونه هیڅ نه وی -

حضرت خلیل الله خپل قوم او خپل خپلوان دَ الله تعالیٰ دَ پاره پاتے کړل نو دَ دوی په بدله کښے دهٔ ته دَ پیغمبرانو جماعت ملاؤ شو چه اکثر دَ دهٔ په اولاد کښے دی ، دَ عراق او شام وطن ئے پاتے کړو نو دَ الله کور دَ امن بنار او دَ کلو مور ورته ملاؤ شوه چه مَکه مکرّمه ده ، دَ دهٔ قوم دهٔ لره ذلیل کول او غوښتل نو دَ دے په بدله کښے دهٔ لره دَ ټولے دُنیا او تر قیامته پورے راتلونکو نسلونو امام او پیشوا جوړ کړے شو چه دَ دنیا مختلف قومونه او مذهبونه دَ یو بل سره دَ لویو لویو اختلافونو باوجود دَ حضرت ابراهیم علیه السلام په تعظیم او عزت باندے متفق راروان دی -

په دے سلسله کښے دَ اُوولسو پیغمبرانو فهرست شمار شوے دے چه په دوی کښے ډیر دَ حضرت ابراهیم علیه السلام په اولاد کښے داخل دی او دا خودلے شوے وَه چه دا ټول هغه لوئے هستئ دی چه دوی لره الله تعالیٰ دَ ټول عالم په خلقو کښے دَ خپل دین دَ خدمت دَ پاره منتخب کړل او دوی ته ئے نیغه لاره وخودله -

په دے ذکر شوو ایاتو نو کښے په اوّلنی ایت کښے نبی کریم صلے الله علیه وسلم ته خطاب فرمائی او اَهلِ مکّه وُو ته اَوْرَوی چه دَ یو قوم پلار او نیکه محض په دے خبره دَ تقلید قابل نه شی جوړیدے چه محض پلار نیکه دے نو په دے وجه به دَ دوی هره وینا او کار دَ تابعداری قابل وی لکه چه په عامه طریقه سره دَ عربو او اهلِ مکّه وُو خیال وَه - بلکه دَ تقلید او تابعداری دَ پاره اوّل دا پیژندل ضروری دی چه مونږ دَ چا پیروی کوؤ دے پخپله په هدایت او نیغه لاره باندے دے او که نه دے - په دے

وجه دَ انبیاءُ علیهم السلام مونږ لنډ شان فهرست ئې شمار کړو او وئې فرمائیل چه: اُولٰٓئِكَ الَّذِيْنَ هَدَى اللّٰهُ ؛ یعنی دا هغه خلق دی کوم ته چه الله تعالیٰ هدایت کړے دے : بیا فرمائی : فَبِهُدٰىهُمُ اقْتَدِهْ ؛ یعنی تاسو هم دَ دوی هدایت او طریقه کار اختیار کړئ -

په دے کښے یو هدایت خو اهلِ عربو او تمام اُمّت ته دا دے چه دَ پلارنیکه بے هوده تقلید پاتے کړی او دَ خدائے تعالیٰ دَ طرف نه دَ هدایت مونده ونکو بزرګانو تابعداری او کړی -

دویم هدایت په کښے په خپله نبی کریم صلے الله علیه وسلم ته دے چه تهٔ هم دَ دے تیرو پیغمبرانو طریقه کار اختیار کړهٔ -

دلته دا خبره دَ غور قابله ده ، چه دَ انبیاء علیهم السلام په شریعتونو کښے فروعی او جزوی اختلافات دَ ورانده نه هم وُو ، او په اسلامی ملّت کښے هم دَ دوی نه مختلف ډیر احکام نازل شوی دی - نو بیا حضور صلے الله علیه وسلم ته دَ تیرو انبیاوُ په طریقه دَ تللو او دَ عمل کولو څهٔ مطلب شو؟ دَ نورو آیاتونو او حدیث دَ روایتونو په بنا کَ دے جواب دا دے چه دلته په ټولو فروعی او جزوی احکامو کښے دَ تیرو پیغمبرانو دَ طریق کار اختیار دَ دَ نو حکم نه دے بلکه دَ دین په اُصولو توحید ، رسالت او اٰخرت کښے دَ دوی طریقه اختیار دَ دَل مقصود دی کوم چه دَ یو پیغمبر په شریعت کښے هم ادل بدل شوی نه دی - دَ آدم علیه السلام نه واخله تر خاتم النبیّین صلے الله علیه وسلم پورے دَ ټولو پیغمبرانو علیهم السلام هم دا یوه عقیده او طریقه پاتے شوے ده - باقی فروعی احکام په کوموکښے چه بدلون نه دے شوے په هغوی کښے هم دَ کار طریقه شریکه پاتے شوے ده - او په کوموکښے چه دَ حالاتو بدلیدو په وجه سره دَ وخت په تقاضا او حکمت سره څهٔ بل حکم ورکړے شوے دے دَ هغې منل بیا لازمی شوی دی -

دغه وجه ده چه دَ نبی کریم صلے الله علیه وسلم معمول دا وُه چه دَ کله پورے به دَ ئې نه په ذریعه دَ وحئ څهٔ خاص هدایت نه وُه راغلے

نو دا په فروعي معاملاتو کښې هم د تیرو پیغمبرانو په طریقه کار با ندې عمل کوئ (مظهری وغیره)

د دې نه پس ئې نبي کریم صلی الله علیه وسلم ته په خصوصیت سره د یو داسې اعلان حکم ورکړو د کوم اعلان چه تولو تیرو پیغمبرانو هم کړې دې هغه دا چه: قُلْ لَّآ اَسْئَلُكُمْ عَلَيْهِ اَجْرًا ۭ اِنْ هُوَ اِلَّا ذِكْرٰي لِلْعٰلَمِيْنَ: یعنې زهٔ ستاسو د ډوند برابرولو د پاره چه کوم هدایتونه تاسو ته درکوم په دې ستاسو نه څهٔ فیس او معاوضه نه اخلم، که تاسو دا او منئ نو ما هیڅ نفع نیشتې او که او نه منئ نو څهٔ نقصان م نیشتې، دا خو د تولې دُنیا د مخلوق د پاره د نصیحت او خیر خواهئ پیغام دے. په تعلیم او تبلیغ باندې څهٔ معاوضه نهٔ اخِستل د تولو پیغمبرانو یو شریکه طریقه راغلې ده - او د تبلیغ په اثر کولو کښې د دې لوئې دخل دے.

دویم ایت د هغه خلقو په جواب کښې راغلې دے چا چه دا وئیلي وُو چه الله تعالی چه ته هم په یو بَشر باندې څهٔ کتاب نه دے نازل کړے، دا د کتابونو او رسولانو معامله د سَرنه غلطه ده.

د دې خبرې کوُنکي که د مکې بُت پرست وُو لکه چه ابن کثیر فرمائي نو معامله ښکاره ده چه دوی د هیڅ کتاب او نبي قائل نه وُو. او که یهود وُو لکه چه نورو تفسیر لیکونکو اغنیا رکړې ده، او دا ایت د خبرې سلسله په ظاهر د دې تائید کوی، نو بیا د دوی داسې وَئیلا محض غُصه او خبره اخوا دیخوا کول وُو چه په خپله د دوی د مذهب نه هم خلاف وه - د امام بغوئ په یو روایت کښې دی چه په دې وجه یهود هم د هغې سړی نه ناراضه شو چا چه دا خبره کړې وه او د دې غلطئ په وجه ئې هغه د مذهبي پیشوائئ د عُهدې نه لرې کړو -

په دې ایت کښې حق تعالی نبي کریم صلی الله علیه وسلم ته فرمائي چه کومو خلقو دا بې هوده خبره اوکړه - دوی الله تعالی د پیژند په شان نه دے پیژندلے - ورنه دا بې باکه خبره به د دوی د خولې نه نه وه وتلې - تهٔ دې خلقو ته کوم چه مطلق د اسماني کتابونو نه انکار کوی دا او فرمایه:

چه که خبره داسے وی چه الله تعالیٰ په چا بشر باندِ څهٔ کتاب نه وی لیګلے نو دا او وایئ چه دا تورات کوم لره چه تاسو هم منئ او وَدے په وجه دَ قوم مشران جوړ شوی یئ دا چا نازل کړے دے؟ او وَدے سره ئے ورته دا هم او خودَله چه تاسو هغه کا بدهٔ تلوُنکی یئ چه کوم کتاب تورات ته تاسو اسمانی کتاب وایئ او مَنئ ئے دَ هغے سره هم ستاسو دا معامله ده چه تاسو دهٔ لره دَ تهلی کتاب په ځائے په جُدا جُدا پاڼړو کښے لیکلے دے چه کله ستاسو زړهٔ غواړی نو یوه پاڼړه دَ منځ نه دا او باسئ - او وَدے دَ بیان نه انکار کوئ- لکه دَ تورات هغهٔ ایتونه په کوموکښے چه دَ نبی کریم صلے الله علیه وسلم نښے او صفتونه بیان شوی وُو هغو لره تاسو اوُ ویستل دَ ایت دَ اخری جملے، تَجْعَلُوْنَه قَرَاطِيْسَ: هم دا مطلب دے- قَرَاطِيس دَ قرطاس جمع ده معنیٰ ئے کاغذ دے-

دَ دے نه پس دَ غے خلقوته خطاب کوی فرمائی: وَ عُلِّمْتُمْ مَّا لَمْ تَعْلَمُوْٓا اَنْتُمْ وَ لَآ اٰبَآؤُكُمْ؛ یعنی دَ قرآن په ذریعه تاسو ته دَ تورات او انجیل نه زیات هم هغه علم درکړے شوے دے کوم چه نه تاسو ته دَ دے نه وړاندِے خبر وُه او نه ستاسو پلار نیکه ته-

په اخر ایت کښے فرمائی: قُلِ اللّٰهُ ۙ ثُمَّ ذَرْهُمْ فِیْ خَوْضِهِمْ یَلْعَبُوْنَ؛ یعنی دَ دے سوال جواب چه کله الله تعالیٰ څهٔ کتاب نه دے را لیږلے، نو تورات چا نازل کړے دے دوی به څهٔ درکړی، خو ته ورته او فرمایه چه خاص الله تعالیٰ نازل کړے دے- او کله چه په دوی باندِ حُجّت تمام شو نو ستا کار ختم شو، او س چه دوی په کومو لهو لعبو کښے وړګړ دی دوی هم په دَغے خپل حال پاتے کړه-

په دوی دَ الله تعالیٰ دَ طرف نه دَ نازل شوُو کتابونو په باره کښے په دوی دَ حُجّت تماموَ لو نه پس په دریم ایت کښے ارشاد فرمائی: وَ هٰذَا كِتٰبٌ اَنْزَلْنٰهُ مُبٰرَكٌ مُّصَدِّقُ الَّذِیْ بَیْنَ یَدَیْهِ وَ لِتُنْذِرَ اُمَّ الْقُرٰی وَ مَنْ حَوْلَهَا؛ یعنی لکه څنګه چه تورات دوی دَ الله تعالیٰ دَ طرف نه نازل شوے منئ، دَغه شان دا قرآن هم موږ نازل کړے دے او دَ دهٔ دَ حق والی

او رښتونوالي د پاره د دوي لره دا شهادت کافي دے چه قرآن د هغې تولو خېزونو رښتونوالے کوي کوم چه په تورات او انجيل کښې نازل شوي دي.
او د تورات انجيل نه پس د ده د نازلولو ضرورت په دے وجه پيښ شو چه دا دواړه کتابونه خو د بني اسرائيلو د پاره را ليګلی شوي وُو۔ د دوي بل شاخ چه بني اسمٰعيل و رته وائي او عرب دي او په اُمّ القرٰی يعني مکّه مکرمه او د دے په حواؤ شا کښې اوسي۔ د دوي د هدايت د پاره څۀ خاص پيغمبر او کتاب ترا اوسه نۀ وُو راغلے۔ اوس دا قرآن د دوي د پاره خصوصًا او د ټول مخلوق د پاره عمومًا نازل کړے شوے دے۔ مکّے معظّمے ته قرآن کريم اُمّ القرٰی فرمائيلي دي يعني د ټولو ښهرونو او کلو جرړې او بنياد۔ د دے وجه دا ده چه د تاريخي روايا تو مطابق چه په ابتداء د پيدائښت کښې د زمکے د پيدا کيدو شروع د دے ځائے نه شوے ده۔ او دا رنګه دا خبره چه د ټول عالم قبله او د مخ کولو مرکز د لته کښې دے۔ (مظهري) ۔ د اُمّ القرٰی سره ئے وَمَنْ حَوْلَهَا او فرمائيل۔ يعني د مکّے ټول اطراف چه په دے کښې ټول عالم مشرق، مغرب، جنوب او شمال داخل دي۔

د ايت په اخر کښې ئے ارشاد اوفرمايه: وَالَّذِينَ يُؤْمِنُونَ بِالْآخِرَةِ يُؤْمِنُونَ بِهِ وَهُمْ عَلَىٰ صَلَاتِهِمْ يُحَافِظُونَ: يعني کوم خلق چه په اخرت ايمان لري هغه په قرآن هم ايمان لري او د خپلو مونځو نو پابندي کوي۔ په دے کښې ئے د يهودو او مشرکانو په يوه شريکه بيماري باندې خبر دارے ورکړو چه دا بے فکري چه کوم لره غواړي مني کوم لره غواړي رد کوي او په خلاف کښې ئے محاذ جوړ وي۔ دا د دے مرض اثر دے چه دوي په اخرت ايمان نه لري۔ د کوم سړي چه په اخرت او په ورځ د حساب ايمان وي ده لره به د خدائے يوه خامخا دے طرف ته متوجه کړي، چه په دليلو نو کښې به غور کوي او د حقې خبرے په قبلولو کښې به د پلار نيکه د رسمو نو پرواه نۀ کوي۔

او که غور او کړے شي نو د اخرت نه بے فکري د مرضونو مور ده۔

کفر او شرک هم دَ دے نتیجه وی، او نور تول گنا هونه او نا فرمانئ هم په اخرت دَ یقین لروُنکی نه که چرته څهٔ غلطی او گناه اوشی هم نو ذهٔ ئے نا قلارهٔ شی او اخر تو به اوُباسی وړاندِ دَ گناه نه دَ ځان ساتلو قصد اوکړی۔ او په حقیقت کښے دَ خدائے نه یَره او دَ اخرت فکر هغه شے دے کوم چه انسان لره انسان جوړه وی او دَ گنا هونو نه ئے بیَرته ساتی۔ په دے وجه دَ قرآن کریم یو سورت بلکه یَوَه رکوع هم شاید دَ دے نه خالی نه ده چه په هغے کښے ئے دَ اخرت فکر طرفته توجّه نه وی راګرځولې۔ اے الله پاکه زمونږ ټول غمونه یو غم کړے دَ اخرت غم، امین۔

إِنَّ اللَّهَ فَالِقُ الْحَبِّ وَالنَّوَىٰ يُخْرِجُ الْحَيَّ مِنَ الْمَيِّتِ

الله دے چه څیری دانه او هډوکه - راوُباسی ژوندی دَ مړی نه

وَمُخْرِجُ الْمَيِّتِ مِنَ الْحَيِّ ذَٰلِكُمُ اللَّهُ فَأَنَّىٰ تُؤْفَكُونَ ﴿٩٥﴾

او راویستونکے دے دَ ژوندی نه مړی لره۔ دا دے الله بیا تاسو چرته غوړلیږۍ ئ۔

فَالِقُ الْإِصْبَاحِ وَجَعَلَ اللَّيْلَ سَكَنًا وَالشَّمْسَ وَ

څیرونکے دے دَ سحر رنړا لره - او ده شپه جوړه کړے ده دَ آرام دَ پاره او نمر او

الْقَمَرَ حُسْبَانًا ذَٰلِكَ تَقْدِيرُ الْعَزِيزِ الْعَلِيمِ ﴿٩٦﴾

سپوږمۍ دَ حساب دَ پاره اندازهٔ جوړه کړے ده دغې زورآور او خبردار۔

وَهُوَ الَّذِي جَعَلَ لَكُمُ النُّجُومَ لِتَهْتَدُوا

او هغهٔ جوړه کړی دی ستاسو دَ پاره ستوری چه په دے سره لار معلومه

بِهَا فِي ظُلُمَاتِ الْبَرِّ وَالْبَحْرِ قَدْ فَصَّلْنَا الْآيَاتِ

کړئ په تیَرو کو دَ وچے او دریاب کښے - خامخا مونږ ښکاره بیان کړی دی نښے

لِقَوۡمٍ يَّعۡلَمُوۡنَ ﴿٩٧﴾ وَهُوَ الَّذِيۡۤ اَنۡشَاَكُمۡ مِّنۡ

دَ هغوخلقو دَ پاره چه پوهيګي - او هغه دے چا چه تاسو لره پيدا کړل دَ

نَّفۡسٍ وَّاحِدَةٍ فَمُسۡتَقَرٌّ وَّمُسۡتَوۡدَعٌ ؕ قَدۡ فَصَّلۡنَا

يو سړى نه بيا يو ستاسو دَ قرار ځائے او يو دَ امانتو ايښودو ځائے دے- خامخا مونږ بيان کړه

الۡاٰيٰتِ لِقَوۡمٍ يَّفۡقَهُوۡنَ ﴿٩٨﴾

بيانونو ايتونه هغه قوم ته چه سوچ کوى -

# لنډ تفسير

بے شکه الله چوؤنکے دے دانے لره او ټمبټے لره (يعني په زمکه کښيښودلو نه پس چه کومه دانه يا ټمبټه چوى دا دَ الله تعالىٰ کار دے) هغهٔ جاندار (ژوندى) لره دَ بے جان (څيز) نه رااوباسى (لکه دَ نطفے نه بني آدم پيدا کيږى) او هغه بے جان (څيز) لره دَ جاندار (څيز) نه راويستونکے دے (لکه دَ بني آدم دَ بدن نه چه نطفه رااوباسى) الله دا دے (دَ کوم چه دا سے قدرت دے) پس تاسو (دَ ده عبادت پريږدئ) چرته (دَ غير الله دَ عبادت طرف ته) اُلټه چليږئ هغه (الله تعالىٰ) صبا (صادق) لره (دَ شپے نه) راويستونکے دے (يعني شپه ختمه شى او صبا صادق ښکاره شى) او دهٔ شپے لره دَ راحت شے جوړ کړے دے (چه ټول ستړى ستومانه او ده ٔنى آرام بيا مومى) او دَ نمر او سپوږمۍ (رفتار) لره په حساب سره مقرر کړى دى (يعني دَ دوى دَ رفتار په ضبط کښے ګيږ دے چه په دے سره دَ وختونو په معلومولو کښے آسانى ده) دا (چه په حساب سره دَ دوى رفتار روى) مقرر شوے خبره ده دَ داسے ذات چه قادر (مطلق) دے (چه په دا قسم حرکت پيدا کولو دَ هغهٔ قدرت دے او) لوئے علم والا دے (چه دَ دے رفتار حکمتونه او مصلحتونه ورته

معلوم دي څكه ئې په دے خاص طريقه سره مُقرر كړل) او هغه (الله) داسے دے چې ستاسو د (رقائدے د) پاره ستورو لره پيدا كړل (او هغه فائده داده) چې تاسو د دې په ذريعه سره (د شپے) په تيارو كښے په وچو په كښے او په دريابكښے هم لار معلومه كړئ بے شكه مونږ ه (دا) دليلونه (د توحيد او د انعام) بنه په ځاګه بيان كړل او اكرچه (سي به تهولو ته مګر نفع) د هغو خلقو د پاره (به وي) كوم چې (د بنه بَد څه) خبر لري (څكه چې غَور هم داسے خلق كوي) او هغه (الله) داسے دے چې تاسو (ټولو) لره (په اصل كښے) د يو سړي نه (چې آدم عليه السلام دے) پيدا كړل بيا (د وړاندې د توالد تناسل داسے سلسله رارواني ده چې تاسو كښے د هر سړي د پاره په مادر كښے) يو ځائے د زيات توپاتے كيدو دے (يعني د مور رحم دانه) او يو ځائے د څه وخت او سيدو دے (يعني د پلار رشا په وجه د دے قول د الله تعالىٰ نه: مِنۢ بَيۡنِ الصُّلۡبِ) بے شكه مونږه (دا) دليلونه (هم د توحيد او انعام) بنه په ځاګه ځاګه بيان كړي دي (په عام طور سره مګر د دے نه نفع هم په مثل د تيرو) د هغو خلقو د پاره (به وي) چې عقل او پوهه لري (د دا تفصيل شو د يُخۡرِجُ الۡحَيَّ الخ)۔

## مَعلومَات اومَسَائِلے

په تيرو ايا تونو كښے د كفارو د ضد او نارمې او حقيقتونو او نتيجو نه د غفلت ذكر وو، او د دے ټولو خرابو اصل بنياد د خدائے تعالىٰ او د ده د بے مثاله علم او قدرت نه بے خبري ده - په دے وجه په ذكر شوو ځلورو ايا تو نو كښے د الله تعالىٰ نه د غافل انسان د دے مرض علاج ئې داسے اوفرمايه چې د خپل لوئے علم او عظيم قدرت يو څو نمونے او په انسان د خپلو انعامانو او احسانا تو يو سلسله ئې ذكر كړه چې په دے كښے هر غور كونكے او سليم طبع انسان د كائناتو د پيدا كونكي د لوئے او بے مثاله قدرت او د دے خبرے د قائل كيدو نه بغير نه شي پاتے كيدے چې دا عظيم الشانه كارنامے په ټول كائنات كښے سوا د خدائے تعالىٰ نه

دَ حیچا په قدرت کښې نیشتې۔

په اوّلنۍ آیت کښې ارشاد فرمائی: اِنَّ اللّٰهَ فَالِقُ الْحَبِّ وَالنَّوٰی: یعنی الله تعالیٰ شلوونکے دے دَ دانے او دَ بمبتې۔ په دے کښې دَ قدرت یو ه حیرانوونکے کاروائی خودلے شوے ده چه اوچه دانه او اوچه بمبته اوچوی دَ دے دَ دننه نه شین بوټے راویستل دَ هغې پاک ذات کار دے چه دَ کائناتو پیدا کوونکے دے، دَ انسان دَ محنت او کوشش په دے کښې هیڅ دخل نیشتې دَ کروندګر دَ ټول کوشش نچوړ دَ دے نه زیات نه وی چه دَ دانے او بمبتې دَ ننه نه چه کوم تیغ دَ الله تعالیٰ قدرت راویستلے دے دَ دے دَ لارے منع کوونکی او مضر څیزونه لرے کړی، ذمکے لره دَ یوے وغیره په ذریعه نرم موول، بیا سُره اچول او په ورګوَلَی دَ دے ټولو کارونو اثر دَ زیاتو نه زیات دا دے چه دَ لا و تونکی نازک تیغ په لاره کښې بندیز پاتے نه شی باقی اصل کار چه دانه او بمبته چوول او دَ دے نه دَ بوټی تیغ راویستل او بیا په دے کښې دَ رنګ په رنګ عجیبه پاڼې او ټل او بیا دا سے ګلونه او میوے نیوَل چه دَ انسان عقل او دماغ دَ هغې دَ یوے پاڼے یا یوه غاټکے جوړه ولو نه عاجز دی۔ په دے کښې بښکاره خبره ده چه انسانی عمل لره هیڅ دخل نیشتې۔ په دے وجه په قرآن کریم کښې بل ځائے ارشاد دے: اَفَرَءَیْتُمْ مَّا تَحْرُثُوْنَ ءَاَنْتُمْ تَزْرَعُوْنَهٗٓ اَمْ نَحْنُ الزّٰرِعُوْنَ: یعنی آیا تاسو هغو دانو ته نه ګورئ کوم چه تاسو په خاورو کښې غورزوئ چه دی لره تاسو زرغونوئ او که مونږ ه؟

دوییمه جمله دا ارشاد فرمائی: یُخْرِجُ الْحَیَّ مِنَ الْمَیِّتِ وَمُخْرِجُ الْمَیِّتِ مِنَ الْحَیِّ: یعنی الله تعالیٰ دَ بے جانه څیزونو نه جاندار څیزونه پیدا کوی۔ دَ بے جانونه مراد نطفه یا هګئ ده۔ دَ کومو نه چه انسانان او حیوانات پیدا کیګی۔ دغه شان دَ جاندارونه بے جانه څیزونه راوباسی۔ دلته دَ بے جانه څیزونو نه مراد هم هغه نطفه او هګئ ده چه دا دَ جاندارو څیزونو نه راوځی۔

دَ دے نه پس فرمائی: ذٰلِکُمُ اللّٰهُ فَاَنّٰی تُؤْفَکُوْنَ: یعنی دا ټول کارونه

خو صرف يو الله تعالیٰ کړی او جوړ کړی دی بيا سره دَ دے چه په دے بانې پوهيږئ نو کوم طرف ته اګته چليږئ - چه دَ خپلو لاسو جوړ کړو بتانو له حاجت روا مُشکل کُشا او معبودان ګنړئ -

په دويم آيت کښے ارشاد دے : فَالِقُ الْإِصْبَاحِ : دَ فالِق معنیٰ ده څيرُونکے او دَ اِصْبَاح معنیٰ دلته دَ سحر وخت دے - "دَ فالق الاصباح" معنیٰ ده څيرونکے دَ صباح - يعنی دَ جوَرے تيَرے څادر څيرے کړی صباح تِرِ اُوباسی - دا هم دَ هغو کارونو نه يو کار دے په کوم کښے چه دَ پيرِ يا نوا وبنی آدمو او تولو کائناتو قوّتونه بے کاره دی، او هر يو ليد ونکے چه ئے وينی نو په دے پوهيدو مجبور دے چه دَ شپے دَ تيرے نه پس دَ رنړا پيدا کوونکے نه يو انسان کيدے شی نه فرشته او نه بل مخلوق - بلکه دا صرف دَ هغه ما فوق الادراک هستیٔ کار دے چه دَ ټول جهان پيدا کونکے دے -

### دَ مخلوقاتو دَ آرام دَپاره دَ شپے قدرتی او جبری تعين يو لوئے نعمت دے

دَ دے نه پس ارشاد فرمائی : وَجَعَلَ الَّيْلَ سَكَنًا : لفظ دَ : سَكَنَ : دَ سکون نه جوړ دے هر هغه شی ته سَكَنْ وائی - کوم ته چه په دَ سيد وسره انسان ته سکون اطمينان او راحت حاصل وی - (په دے وجه دَ انسان دَ اوسيدو کور ته په قرآن کښے سَكَنْ فرمائيلے دے : جَعَلَ لَكُمْ مِّنْ بُيُوتِكُمْ سَكَنًا ، ځکه چه دَ انسان کور خواه يوه چونړه ولے نه وی خو هلته په دسيد و سره انسان ته عادةً سکون او راحت حاصليږی) په دے وجه معنیٰ دَ دے جملے دا شوه چه الله تعالیٰ شپے لره دَ هر چا دَ پاره دَ سکون او راحت شے جوړ کړے دے، په فالق الاصباح کښے دَ هغه نعمتو نو ذکر وه کوم چه انسان ته دَ ورځ په رنړا کښے حاصليږی دَ شپے په تياره کښے نه شی حاصليد ے - دَ دے نه پس : جَعَلَ الَّيْلَ سَكَنًا : ئے او فرمائيل دے طرف ته ئے اشاره اوکړه چه لکه څنګه دَ ورځے رنړا يو عظيم نعمت دے چه دَ دے په ذريعه انسان خپل ټول کاروبار کوی، دغه شان دَ شپے تياره هم بده مه ګنړئ دا هم يو نعمت دے چه ير لوئے چه په دے کښے ستړے ستوما نه انسان آرام اوکړی دَ دے قابل شی،

چه صباله بیا په تازه دم او چُستئ سره کار اُوکړی - ورنه انسانی فطرت مسلسل کار کولَ نه شی برداشت کوَلے -

دَ شپے تیارے لره دَ راحت دَپاره متعیّن کول یو مستقل نعمت او دَالله تعالیٰ دَ قادر قدرت یو خاص اظهار دے - مګر دا نعمت روزانه بے غوښتلو ملاویګی په دے وجه دَ انسان خیال هم و دے طرف ته نه ځی چه دا څومره لوئے احسان او انعام دے ، غوَر اوکړئ که هر یو انسان پخپله اراده سره دَ خپل آرام وخت مقرر کوَلے نو چا به دَ سحر آته بجے دَ اُوده کیدو اراده کوله چا به دولس بجے چا به غلور بجے ، او چا به دَ شپے په مختلفو حصّو کښے - چه دَ دے نتیجه به دا وَه چه دَ شپے ورځے به ځلیریشتو ګنټو کښے به یوه ګنټه هم دا سے نه وا تله چه په هغے کښے به انسانی کاروبار محنت مزدوری کارخانے او فیکټرئ نه چلیدے - چه دَ دے لازمی نتیجه به دا وَه چه دَ اُوده کیدونکو په آرام کښے به خلل راتلو - او دَ کارکوونکو په کار کښے به هم - دَ خواب کوونکو په آرام کښے به دَ کارکوونکو شور زوږ او ګړس ګړوس خلل کیدو - او دَ کارکوونکو په کار کښے به دَ دغے خلقو غیر حاضری خلل کیده چه کوم به دغه وخت اُوده کیدل - دغه شان دَ اُوده کیدونکو ته به هغه کاروَنه به پاتے کیدل کوم چه دَ دوی دَ خواب په وخت کښے به کیدے شو - دَ الله جلّ شانه قادر قدرت نه صرف په انسانانو بلکه په هر جاندار باندِ دَ شپے په وخت کښے دَ خواب داسے غلبه مُسلّطه کړه چه دے کار پاتے کوی اُوده کیدلو ته مجبوره کیږی - دَ ماښام کیدو سره هره مرغۍ ځناور او څاروی خپل خپل ځائے دَ قرار او کور ته ځځه کوی هر یو انسان په جبری طور سره کار پریدی دَ آرام کَولو په فکر کښے لګیا کیږی - په ټوله دُنیا یوه خاموشی خوره شی - دَ شپے تیاره دَ خواب او آرام دَپاره مددګاره ثابته شی - ځکه چه عادتًا په زیاته رڼړا کښے خواب نه کیږی -

غور اوکړئ که دَ ټولے دُنیا حکومتونه او عوام یو ځائے شی دَ بین الاقوامی معاهدو په ذریعه دَ اُوده کیدو یو وخت مقرر کړی اوای

نو اوّل خو به دا خومره کمزوری وی - او دویم که څه وی هم نو ټول انسانان به نه اوشی - او که داسې ورته ادعا که هم د یو معاهدې پابندی کول ولی په یو مقرر وخت باندې اوده کیږی نو دے شاړوو څناورو لره به چا د دې معاهدې پابند کول، او دوی به کلا ډنګو ځپل نو د خواب کوونکو او د دوی د ساما نو نو به څه حشر وی - دا د الله جل شانه غالب قدرت دے چا چه جبری طور په هر انسان او څناور په یو معيّن وخت کښې خواب مسلّط کړو، او د دې بین الاقوامی معاهدې نه ئې دوی بے حاجته کړل؛ فتبارک الله احسن الخالقین -

د نمر او سپوږمۍ حساب

ارشاد فرمائی: وَالشَّمْسَ وَالْقَمَرَ حُسْبَانًا: حُسْبَانٌ: په پیښ سره مصدر دے - د حساب کولو او شمار کولو په معنیٰ کښې راځی - معنیٰ ئې دا ده چه الله تعالیٰ د نمر او سپوږمۍ ختل پرېوتل او د دوی رفتار په یو خاص حساب سره اېښې دے - چه د دوی په ذریعه انسان د کلونو میاشتو ورځو او ګینټو بلکه د منټونو او سکنډونو حساب په اسانئ سره لګولے شی -

دا د الله تعالیٰ د غالب قدرت عمل دے چه د دے عظیم الشانه نورانی کرو او د دوی حرکتونو لره ئې په داسې محکم او مضبوط انداز سره اېښې دی چه په زرګونو کلونو تیریدو باندې هم په دوی کښې څه ته د یو منټ یا یو سکنډ فرق نه راځی، دے مشینونو ته نه څه ته د ورکشاپ ضرورت پیښیږی او نه ئې د پرزو سولیدو او بدلیدو څه ضرورت راځی - دا دواړه نورانی کرے په خپله خپله دائره کښې په یو معیّن رفتار سره چلیږی -

لَا الشَّمْسُ يَنْبَغِي لَهَا أَنْ تُدْرِكَ الْقَمَرَ وَلَا اللَّيْلُ سَابِقُ النَّهَارِ: په زرګونو کلونو کښې هم د دوی په رفتار کښې د یو سکنډ فرق نه راځی -

افسوس چه د قدرت د دے مستحکم او غیر بدلیدونکی نظام نه انسان دوکه او خوړه چه دے څیزونو لره ئې مستقل بالذات بلکه معبود او مقصود جوړ کړل - که د دغه دا نظام چرته ما تیدے د مشینری جوړ ولو د پاره د څه ورځو یا ګینټو وقفے په کښې راتلے، نو انسان به پوهه شوے وه چه دا مشین د ځانه نه چلیږی بلکه د دے څوک چلوونکے شته او جوړ وونکے شته،

مکو "اے ځما تیز فکرو ته ځما دَ پاره بلا شوے"۔ دَ دے کړو وغیره بد لیدونکی
او محکم نظام دَ انسان ستر ګے خړے کړے، او خپل طرف ته ئے او ګرځولے تردے
چه څڅه دے لره حیر کړو چه :-

"څوک محبوب شته په دے زرینه پرده کښی"

اسمانی کتابونه انبیاء او رسولان هم دوی لره دَ دے حقیقت نه دَ خبرولو
دَ پاره نازل شو۔

دَ قرآنِ کریم دے ارشاد دے طرف ته هم اشاره اوکړه چه دَ ګلونو
او میاشتو حساب دَ نمر نه هم کیدے شی او دَ سپوږمئ نه هم۔ دواړه دَ
الله جل شانهٔ انعامات دی۔ دا دویمه خبره ده چه عام اَن پړ دَ دُنیا دَ
اسانئ او دوی لره دَ حساب کتاب دَ جاڅے نه دَ بیځ کولو دَ پاره پیداسلامی
احکامو کښے اسلامی سنتن او کال استعمالوی۔ او څو نکه دَ اسلامی تاریخ
او اسلامی احکامو مدار دَ سپوږمئ په حساب باندے دے۔ په دے وجه
په امت فرض دی چه دوی دے حساب لره قائم او باقی ساتی نور شمسی
حسابونه وغیره که دَ څهٔ ضرورت په وجه اختیار دَ وی نو هیڅ ګناه
نیشته۔ لیکن قمری حساب بالکل نظرانداز کول او ختمول لوئے ګناه دے
چه په دے سره به انسان ته دا هم پته نه لګی چه رمضان به کله راځی
او ذی الحجه او محرّم کله۔

---

په اخر ایت کښے فرمائی: ذٰلِكَ تَقْدِيْرُ الْعَزِيْزِ الْعَلِيْمِ ؕ یعنی دا
حیرانوونکے مُستحکم نظام دَ حرکتونو چه چرته په کښے دَ یو منټ او سکنډ
فرق نه راځی دا دَ هغے پاک ذات دَ قدرت کرشمه کیدے شی چه په هرڅه
غالب او قوی هم دے او په هرڅهٔ او هرکار پوهه هم دے۔

په دریم ایت کښے ارشاد دے، وَهُوَ الَّذِیْ جَعَلَ لَكُمُ النُّجُوْمَ لِتَهْتَدُوْا
بِهَا فِیْ ظُلُمٰتِ الْبَرِّ وَالْبَحْرِ : یعنی دَ نمر او سپوږمئ نه علاوه نور ستوری
هم دَ الله جلّ شانهٔ دَ کامل قدرت خاص نښے دی او دَ دی په پیدا کولو
کښے دَ زرګونو حکمتونو نه یو حکمت دا هم دے چه انسان دَ خپلو دریاب
او وچے په سفرونو کښے کوم ځائے چه دَ شپے دَ تیرے په وخت کښے دَ طرفونو

پته لګول هم اسان نه وی، د دے ستورو په ذريعه خپله لار معلومَوَلے شی - تجربه ګواه ده چه نن د دے مشینونو په زمانه کښے هم انسان د ستورو د هدايت نه بے حاجته نه دے -

په دے ايت کښے هم انسان لره په دے غفلت او کوتاه نظرئ باندِ خبردار کړے شوے دے چه دا ستورى هم د چا جوړ دى او چلوونکى د حکم تابع چليږى، نه په خپل وجود کښے مستقل دى، او نه په خپله بقاء او عمل کښے، کوم خلق چه صرف دوى ته ګورى او د دوى جوړوونکى طرف ته نظر نه کوى هغوى سخت کوتاه نظر او د وکه خوړونکى دى : ؎

آنانکه بجز روئے توجائے نگرانند
کوته نظرانند کوته نظرانند

دهغه څوک چه بغير ستا د مخ نه بل طرف ته ګورى، لنډه نظره کونکى دى لنډه نظره دى

د دے نه پس ارشاد فرمائی: قَدْ فَصَّلْنَا الْاٰيٰتِ لِقَوْمٍ يَّعْلَمُوْنَ : يعنى موږ دليلونه د قدرت بنځه په څه اکه بيان کړى دى د هغه خلقو د پاره چه خبر لرى - په دے کښے ګے دے خبرے ته اشاره او فرمائيله چه کوم خلق په دے نښو سره هم الله تعالىٰ او نه پيژنى هغه بے خبره او بے هوشه دى -

په څلورم ايت کښے ارشاد دے : وَهُوَ الَّذِىْٓ اَنْشَاَكُمْ مِّنْ نَّفْسٍ وَّاحِدَةٍ فَمُسْتَقَرٌّ وَّمُسْتَوْدَعٌ : مُسْتَقَر د قرار نه جوړ دے - مستقر هغه ځائے ته وائی چه د کوم شی د پاره ځائے د قرار وى، او مُسْتَوْدَع د وديعت نه جوړ دے : چه معنى ئے ده چه څۀ شی لره د چا سره په عارضى طور باندے د څو ورځو د پاره ګدى - نو مستودع هغه ځائے ته وئيلے شى کوم ځائے چه څۀ شے په عارضى طور سره د څو ورځو د پاره کيخوے شى.

يعنى الله تعالىٰ هغه پاک ذات دے چا چه انسان لره د يو جان يعنى حضرت آدم عليه السلام نه پيدا کړه، بيا د دۀ د پاره ئے يو مستقر يعنى د مود پورے د او سيدو ځائے جوړ کړے دے - او يو مستودع يعنى

دَ څوورځو دَ پاره کیدَ وځائ دے۔

دَ قرآن کریم الفاظ خو دادی۔ دَ دے په تعبیر او تفسیر کښے ډیر احتمالونه دی۔ په دے وجه دَ تفسیر دَ عالمانو وَیناګانے په دے کښے مختلفے دی، چا ویلی دی چه مستودع دَ مور ګیډه او مستقر دا دُنیا ده۔ چا فرمائیلی دی چه مستودع قبر دے او مستقر کور دَ آخرت دے۔ او نورے هم ډیرے وَیناګانے دی په کښے۔ او دَ قرآن په الفاظو کښے دَ ټولو ګنجائش شته۔ حضرت قاضی ثناء الله پانی پتی رحمة الله علیه په تفسیر مظهری کښے دے له ترجیح ورکړے ده چه مستقر دَ آخرت مقام جنت یا دوزخ دے او دَ انسان دَ پیدائش دَ اول نه تر آخره پورے څومره مرحلے چه دی دا ټول مستودع یعنی دَ څوورځو دَ قیام ځایونه دی۔ خواه دَ مور ګیډه وی یا په زمکه دَ اوسیدو ځائ، یا قبر او برزخ۔ دَ قرآن کریم په یو آیت کښے هم دَ دے ترجیح معلومیګی په کوم کښے چه فرمائی: لَتَرْكَبُنَّ طَبَقًا عَنْ طَبَقٍ: "یعنی تاسو دَ یوے درجے نه همیشه او چتیږئ"، چه دَ دے مطلب دا دے چه دَ آخرت نه اول اول انسان په خپل ټول ژوند کښے دَ یو مسافر حیثیت لری، چه دَ ظاهری سکون او قرار په وخت کښے هم دَ عُمر دَ سفر منزلونه قطع کوی: ؎

مسافر ہوں کہاں جانا ہے ناواقف ہوں منزل سے

ازل سے پھرتے پھرتے گورتک پہنچا ہوں مشکل سے

(مسافر یم چرته روان یم دَ منزل نه هیڅ خبر نه یم، دَ ازل نه په رادیخوا په منزل منزل ګرځیدم ګور ته په ډیر مشکله سره راورسیدم)

په دے آخری آیت کښے ئے په دے ظاهری دَ وَل چال او دَ دُنیا په رنګینو کښے مشغول دَ خپل اصل مستقر او دَ خدائے او آخرت نه غافله کیدونکے سترګے سپړ دلی دی چه دے حقیقت او پیژنی او دَ دُنیا دَ دوکے او فریب نه نجات بیاموی مولانا رومیؒ څه ښه فرمائی: ؎

همه اندر زمن ترا زین است | که تو طفلی و خانه رنگین است

(په دنیا کښے دا هر څه ستا دَ پاره ځکه دی، چه ستا مثال دَ یو ماشوم او دَ دنیا کور دیو نقش خانه ده، چه تا مشغوله کړی)

وَهُوَ الَّذِیْٓ اَنْزَلَ مِنَ السَّمَآءِ مَآءً ۚ فَاَخْرَجْنَا بِهٖ

او هغه نازل کړی دی د آسمان نه اوبه بیا راوویستل مونږ په دې سره

نَبَاتَ كُلِّ شَیْءٍ فَاَخْرَجْنَا مِنْهُ خَضِرًا نُّخْرِجُ مِنْهُ

تو کیدونکې هر څیز بیا راوویسته مونږ په دې سره سبزي چه راوباسو مونږ د هغې

حَبًّا مُّتَرَاكِبًا ۚ وَمِنَ النَّخْلِ مِنْ طَلْعِهَا قِنْوَانٌ

دانې په یو بل پورې پیوست، او د کجورو د بناخ نه د میوې ګنګو بې

دَانِیَةٌ وَّ جَنّٰتٍ مِّنْ اَعْنَابٍ وَّالزَّیْتُوْنَ وَالرُّمَّانَ

ژوړند او باغونه د انګورو او د خونانو او د آنارو

مُشْتَبِهًا وَّغَیْرَ مُتَشَابِهٍ ؕ اُنْظُرُوْٓا اِلٰی ثَمَرِهٖٓ اِذَآ

د یو بل په شان او جدا جدا هم - او ګورئ د هرې ونې میوې ته کله چه هغه

اَثْمَرَ وَیَنْعِهٖ ؕ اِنَّ فِیْ ذٰلِكُمْ لَاٰیٰتٍ لِّقَوْمٍ یُّؤْمِنُوْنَ ﴿۹۹﴾

میوه اونیسي او پخه شي - په دې څیزونو کښې نښې دي د پاره د ایماندارو -

وَجَعَلُوْا لِلّٰهِ شُرَكَآءَ الْجِنَّ وَخَلَقَهُمْ وَخَرَقُوْا

او جوړ وي الله له شریکان پیریانو له حال دا چه هغه دوی پیدا کړي دي، او جوړوي

لَهٗ بَنِیْنَ وَبَنٰتٍۭ بِغَیْرِ عِلْمٍ ؕ سُبْحٰنَهٗ وَتَعٰلٰی

هغه له ځامن او لونړه په جهالت سره - هغه پاک دې او ډیر لوړ دې

عَمَّا یَصِفُوْنَ ﴿۱۰۰﴾ بَدِیْعُ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ ؕ

د هغو خبرو نه چه دا خلق ئې بیانوي - په نوي شان پیدا کوونکې د آسمانونو او د زمکې دې -

۱۲ ع ۶ ۱۸

أَنَّىٰ يَكُونُ لَهُ وَلَدٌ وَلَمْ تَكُن لَّهُ صَاحِبَةٌ ۖ وَخَلَقَ

څنګه کیدے شي دۀ له څوئے حال دا دے چه دَ دۀ څوک ښځه نیشته - او دۀ جوړ کړے

كُلَّ شَيْءٍ ۖ وَهُوَ بِكُلِّ شَيْءٍ عَلِيمٌ ﴿١٠١﴾ ذَٰلِكُمُ اللَّهُ

هر شے او دے د هر څۀ نه خبر دے - دا دے الله چه

رَبُّكُمْ ۖ لَا إِلَٰهَ إِلَّا هُوَ ۖ خَالِقُ كُلِّ شَيْءٍ فَاعْبُدُوهُ ۚ

ستا سو رب دے نیشته څوک معبود سوا دَ دۀ نه - پیدا کونکے دَ هر شي دے پس تاسو دَ دۀ عبادت کوئے

وَهُوَ عَلَىٰ كُلِّ شَيْءٍ وَكِيلٌ ﴿١٠٢﴾

او هغه په هر شي کار ساز دے

# لنډ تفسیر

او هغۀ (الله) دا سے دے چا چه دَ اسمان (دَ طرف) نه اوبه اوَرَوَ لے بیا موږ دَ دے (اوبو) په ذریعه سره دَ هر قسم (رنګ په رنګ)، زرغونیدونکو لره (دَ زمکے نه) را او ویستل (دَ یو شان اوبو او یو شان خاورے نه دومره مختلف قسم زرغونیدونکی چه په رنګ، بوئی، او خوندا و فائده و کښے بے حده مختلف دی څومره عجیبه کرشمه دَ قدرت ده) بیا موږ دَ دے (تیغ) نه (چه اول دَ زمکے نه او ځی چه څوک ورته ونډ او تیغ وائی او په رنګ زیړوی) شین ښاخ را او ویستلو دَ دے (ښاخ) نه موږ په یو بل دَ پاسه پیوست شوے دانے را او باسو (دا خو دَ غلو حال دے چه ذکر ئے لنډ شان په فَالِقُ الْحَبِّ وَالنَّوٰى کښے راغے او دَ کجورو دَ اُونو نه) یعنی دَ دوی دَ شاخونو نه ګنګوچې دی (چه دَ بوج دَ وجه نه) لاندِ ته زوړند دی او (په دے اوبو سره موږ ه) دَ انګورو باغونه (پیدا کړل) او دَ خوناتو او انارو (ونے موپیدا کړے) کوم چه (بعضے انار او بعضے

خونان دَ میوے پہ شکل، صورت، مقدار، رنگ وغیرہ کښے) دَ یو بل سرہ
یو شان وی او (بعضے) دَ یو بل سرہ یو شان نہ وی (لکہ) دَ هرَ یو
میوے تہ خوا وګورئ کلہ چہ هغہ میوہ اونیسی (چہ دغہ وخت بالکل
کچہ بے مزے دَ نفع قابلہ نہ وی) او (بیا) دَ هغے پخیدو تہ اُوګورئ
(چہ دغہ وخت پہ ټولو صفتونو کښے څنګہ کاملہ شوہ، دا هم دَ خدائے
دَ قدرت نښے دی) پہ دے (کارونو) کښے (هم) دلیلونہ (دَ توحید موجود)
دی (او ګویا پہ اعتبار دَ تبلیغ سرہ دَ ټولو دَ پارہ دی مګر دَ نفع پہ اعتبار سرہ)
دَ هغے خلقو دَ پارہ (دی) کوم چہ ایمان راوړی (دفکر) لری (دا دَ میوو دانو
ذکر او شو دَ کوم چہ لنډ شان بیان پہ دَ الګوری کښے را غلے دے) -

او (مشرکانو) خلقو (پہ خپلو عقیدو کښے) شیطانانو لرہ (داسے) دَ اللہ
تعالیٰ سرہ (پہ صفتونو او کارونو کښے چہ بره ذکر شو) شریکان مقرر کړی
دی (چہ دَ دوی پہ غوړ لَولو سرہ شرک کوی او دَ خدائے پہ مقابلہ کښے دَ
دوی پہ وَینا چلیږی) حال دا دے چہ دے خلقو لرہ (پخپلہ دَ دوی دَ اقرار
موافق هم) خدائے پیدا کړی دی (هر کلہ چہ خالق بل نیشتے نو معبود هم
بل نہ دے پہ کار) او دے (مشرکانو کښے بعضو) خلقو دَ اللہ پہ حق کښے ځامن
او لونړہ (پخپلہ عقیدہ کښے) محض بے دلیلہ تراش کړی دی (لکہ نصارا
حضرت مسیح تہ او بعض یهود حضرت عزیرؑ تہ دَ خدائے ځوئے او دَ عرب
مشرکانو پہ فرښتو تہ دَ خدائے لونړہ وئیلے) هغہ پاک او ډیر اوچت دے
دَ دے خبرو نہ کومے چہ دا خلق (دَ خدائے تعالیٰ پہ شان کښے) بیانوی
(یعنی دا چہ دَ دۀ څوک شریک وی یا ئے اولاد وی) هغہ دَ آسمانونو او
زمکو ایجادکونکے (یعنی دَ نیشت نہ شتہ کونکے) دے را و بل یو ایجادکونکے
نیشتے پس معبود هم بل نہ وی، دَ دے نہ خو دَ شریک نفی او شوہ
او دَ اولاد دَ نفی دلیل دا دے چہ دَ اولاد حقیقت دا دے چہ بنځہ او نر
وی او دَ دواړو دَ پیوستون نہ دریم جاندار شے پیدا وی نو) دَ اللہ
اولاد څنګہ کیدے شی حال دا دے چہ دَ هغۀ څوک بی بی خو شتے نہ
او اللہ تعالیٰ (چہ څنګہ دے خلقو لرہ پیدا کړہ : وَخَلَقَهُمْ : او زمکہ او

اسمانونو پیدا کول : بَدِيۡعُ السَّمٰوٰتِ الخ : دغه شان هغهٔ) هرشی لره پیدا کړی
او د لکه څنګه چه هغهٔ په صفت دَخالقيت کښې بې مثله دے دغه شان په
دے صفت کښې هم بې مثله دے چه) هغهٔ هرشی لوه بنهٔ پيښ (ريښه)
اول نه او په دے صفت کښې هم څوک دَدهٔ شريک نيشتې، او پيدا کول
بغير دَ علم نه کيدے نه شی دَ دے نه هم ثابته شوه چه بل څوک خالق
نيشتې) دا د ذات دَ کوم چه صفتونه دَ کمال بيان اشو دا) دے الله رب
ستاسو دَ دهٔ نه سِوَا بل دَ عبادت لائق نيشتې دَ هرشی پيدا کوونکے د لکه
چه بره بيان شو هر کله چه دا صفتونه په الله تعالیٰ کښې دی) نو تاسو
خلق (خاص) دَ دهٔ عبادت کوئ او (بيا دا چه) هغهٔ دَ هرشی کارساز (حقيقی)
دے (بل هيڅوک کارساز هم نيشتې پس دَ دهٔ عبادت کوئ نو هغهٔ به
تاسو ته حقيقی نفع او رسوی نو ربه درله څهٔ درکړی - غرض پيدا کوونکے
هم هغه دے، پوهه دَ علم خاوند هم هغهٔ دے کارساز هم هغهٔ دے
او دا ټول کارونه دا غواړی چه معبود دِ هم هغهٔ وی)-

## معلومات او مسئلے

په دے مضامينو کښې دَ يو عجيبه ترتيب رعايت دے - هغهٔ دا چه
دلته دَ درے قسمه کائناتو ذکر دے - دَ زمکے، دَ آسمانونو او دَ دے
دواړو دَ مينځ په فضاء کښې دَ پيدا کيدونکو څيزونو، او بيان ئے شروع
کړے دے دَ زمکے نه چه دا موږ ته ډير نزدے دی او بيا ئے دَ دے
دوه حصے کړے، يو بيان دَ زمکے نه د را ټوکيدونکو سبزو او نوباغونو
دويم دَ حيواناتو انسانانو او جانورانو، اوّل ئے مخکښې کړل چه دا په نسبت
دَ دے نو روښکاره دی او دَ دويم معامله چه په روح موقوف ده باريکه ده
چنانچه دَ نطفے مختلفے مرحلے دَ طبيبانو په نزد معلومے دی او مخصوصے دی
په خلاف دَ بوټو او سِټينکو دَ لويدو او ترقئ کولو وغيره چه دا په عام
عام سره په مشاهده کښې راځی - بيا ئے دَ آسمانی فضاء دَ کائناتو ذکر
اوکړو، سحر ماښام، بيا ئے پورته آسمانی کائنات ذکر کړل، نمر سپوږمئ

7/18

ستوري، - بیا چې تنکه د زمکې څيز وننه زياتيږي کیږي دا ئې دوباره مکرر کړل او مضمون ئې پرې ختم کړو - مګر اول د دوي ذکر په لنډه سره وه او س ئې په تفصيل سره ذکر او کړو - خو په دې تفصيل کښې ئې ترتيب د هغې لنډ ذکر د ترتيب نه په عکس سره راوړې و - چه د نفسونو بيان ئې اول کړو او د سينګو او سبزو ئې ورستے - ممکنه ده چه د دې بنا په دې وي چه په دې تفصيل کښې ئې د نعمت د ظاهرولو عنوان اختيار کړے وي نو په دې حيثيت سره چه په چا انعام شوے وي دے مقصود وي او مقصود قابل د وړاندې کولو وي - او په بنا تا تو بوټو وغيره کښې اوّلنے ترتيب په خپل حال دے چه د غلو حال په دانه او بُمبته وړ مېبې راغې، او د باران ذکر په صيغه کښې راتلل د بنا تا تو تابع دے ، او په دے کښې يوه بله باريکي هم کيدے شي چه د باران مختلف حالتونه دي چه د شروع کيدو په اعتبار سره اسماني دے او د ختميدو په اعتبار سره د زمکې سره دے او د نزول په اعتبار سره فضائي دے -

---

لَا تُدْرِكُهُ الْاَبْصَارُ ز وَهُوَ يُدْرِكُ الْاَبْصَارَ ج

نه شي موندے ده لره سترګے - او دے مومي سترګو لره -

وَهُوَ اللَّطِيْفُ الْخَبِيْرُ ﴿۱۰۳﴾ قَدْ جَآءَكُمْ بَصَآئِرُ

او هغه ډير باريک بين خبر دار دے - تاسو ته راغلي دي ښكاره

مِنْ رَّبِّكُمْ ۚ فَمَنْ اَبْصَرَ فَلِنَفْسِهٖ ۚ وَمَنْ عَمِيَ فَعَلَيْهَا ط

ستاسو د رب د طرف نه - بيا چا چه اوليدے نو د خپل ځان د پاره، او څوک چه ړوند شو د خپل نقصان د پاره

وَمَآ اَنَا عَلَيْكُمْ بِحَفِيْظٍ ﴿۱۰۴﴾ وَكَذٰلِكَ نُصَرِّفُ

او زه نه يم په تاسو نګهبان - او دغه شان قسم قسم بيانوو موږ ده

الْاٰيٰتِ وَلِيَقُوْلُوْا دَرَسْتَ وَلِنُبَيِّنَهٗ لِقَوْمٍ

ايا تو ته او دَدے دپاره چه دوی اووائی چه تا دَچانه لوستلی دی او چه واضحه کړو مونږ دا دَ

يَّعْلَمُوْنَ ﴿۱۰۵﴾ اِتَّبِعْ مَاۤ اُوْحِیَ اِلَيْكَ مِنْ رَّبِّكَ

پوهيدونکو دَپاره - او ته ځه په هغه چه حکم تاته راشی ستا دَ رب -

لَاۤ اِلٰهَ اِلَّا هُوَ وَاَعْرِضْ عَنِ الْمُشْرِكِيْنَ ﴿۱۰۶﴾ وَلَوْ

بل يو معبود نيشته سِوا دَهغهٔ نه - او مخ اړوه دَ مشرکانو نه - او که چرے

شَآءَ اللّٰهُ مَاۤ اَشْرَكُوْا وَمَا جَعَلْنٰكَ عَلَيْهِمْ حَفِيْظًا

الله غوښتلے نو دغو خلقو به شرک نه وو کړے او مونږ نه دے کړے تا لره په دوی نګهبان -

وَمَاۤ اَنْتَ عَلَيْهِمْ بِوَكِيْلٍ ﴿۱۰۷﴾

او نه ئے ته په دوی باندِ ذمه وار -

## لنډ تفسير

(او دَ هغه دَ علیم کيدو او پوهوالی دا حال دے چه) چه دَهٔ لره خو هيڅ نظر نه شی راګيرولے (په دُنيا کښے خو ئے دا سے هيڅوک نه شی ليدے لکه چه په شرعی دليلو نو سره ثابته ده، ليکن احاطه کول بهٔ ئے محال وی، او کوم شے چه په ظاهری سترګو باندِ احاطه کول محال وی نو باطنی حقيقت خو دَ هغه دَ ظاهر په مقابله کښے څو پيرته دے، دَهغے احاطه کول په عقل سره چه دَ ظاهری احساس په نسبت په کښے په څيرو ودرجو سره دَ خطاء احتمال شته، په دے خو به دَ هغه احاطه کول په درجه اَولیٰ محال وی) او هغه (يعنی الله تعالیٰ) ټولو نظرونو لره (کوم چه دَ دهٔ دَ احاطه کولو نه وجوباً عاجز دی) احاطه کړی دِی (دغه نشان نو د شيزونه ئے هم دَ علم په احاطه کښے دی: وَهُوَ بِكُلِّ شَیْءٍ

عَلِيمٌ ) او ( دَ دے کار نه چه هغه ټولو لره احاطه کوونکے دے او ددۀ لره څوک احاطه کولے نه شي دا لازمه شوه چه ) هغه ډير باريک بين او خبردار دے ( د وبل هيڅوک نه دے . او دا دَ علم هغه کمال دے چه په دے کښے الله تعالیٰ بے مثله دے . تهٔ دے خلقو ته اووايه چه ) اوس بے شکه تاسو ته ستاسو دَ رب دَ طرف نه دَ حق ليد و ذريعے ( يعني دَ توحيد او رسالت دَ حقوالي عقلي او نقلي دليلونه ) رسيدلي دي پس کوم سړے چه ( په دے ذريعو سره ) حق لره اووينى هغه خپله فائده کوي او کوم سړے چه ړوند پاتے کيږي هغه خپل نقصان کوي او زۀ ستاسو ( يعني ستاسو دَ عملونو ) نګران نه يم ( يعني لکه چه نګرانى کوونکي دا ذمواري وي چه نا کاره حرکت کولو ته څوک نه پريږدي . دا زما ذمواري نه ده زما کار صرف تبليغ دے ) او ( لکه ) مونږ په ( دے سبق ) طور سره دليلونه په مختلفو اړخونو بانديا نوو چه تهٔ ئے ټولو ته او رسوے او دَ دے دَ پاره چه دوي ( په تعصب سره دا منکران ) او وائي داسے چه تا ( دچا نه دا مضامين ) لوستلي دي ( مطلب دا دے چه په دوي نو بيا تر الزام راشي چه مونږ ه خو په دغه شان په ډاګه حق ثابتولو او رسوو بيا هم عبث بهانے جوړولے ) او دَ دے دَ پاره چه مونږ ( دَ قرآن مضامينو ) لره دَ عقل مندانو دَ پاره ښه ښکاره کړو ( يعني دَ قرآن دَ نازلولو دوه مقصدونه دي يو دا چه تا ته دَ تبليغ اجر ملاؤ شي . دويم دا چه په منکرانو باندِ زيات جُرم قائم شي دريم دا چه هوښيار خلق دَ هغے دلائلو نه حق ظاهر شي پس ) تهٔ ( دے غم مه کوه چه څوک مني او څوک نه ) په خپله په دے طريقه بانديِ چليږه دَ کوم په ( چليدو ) چه وحی تا ته ستا دَ رب دَ طرف نه راځي ( او په دے طريقه کښے لوئے شے دا عقيده ده چه ) دَ الله نه سوا څوک دَ عبادت لائق نيشته ( او په دے طريقه باندِ خلق هم دعوت ورکوه او په دے قائم اوسه ) دَ مشرکينو څخه پرواه مه کوه ( چه افسوس دوي ولے نه قبلوي ) او ( وجه دَ پرواه نه کولو دا ده چه ) که الله تعالیٰ ته منظوره وے نو دوي به شرک نه وه کړے ( ليکن دَ دے حکمتونو دے چه بد و عملونو سره الله تعالیٰ

منظور ره شوه چه دوی له سزا ورکړی، په دې وجه ئې دا سې اسباب جمع کړل بیا ته دوی لوه څنګه مسلمانو لې شئ او ز ته په دې فکر کښې وَلې پروت ئې) مونږه ته په دوی دَ دوی (دَ عملونو) نګهبان نه ئې جوړ کړې او نه ته (دوی لوه په عذاب ورکولو مونږ دَ طرف نه) اختیار مند ئې (پس کله چه ستا په ذمه نه دَ دوی دَ جرمونو تفتیش دے او نه د ر ته دَ دوی دَ سزا حکم دے نو بیا وَلې ته پریشانه ئې) -

## معلومات او مسئلے

دَ سورت انعام په دې پنځه وَ ایاتونو کښې په اوّل ایت کښې اَبصَارُ دَ بَصَر جمع ده چه معنیٰ ئې ده نظر او دَ لیدو قوّت دَ او دَ ادراک معنیٰ ده موندل نیول په احاطه کښې راوستل، حضرت ابنِ عباسؓ دلته کښې دَ ادراک تفسیراحاطه کول بیان کړی دی - (بحر محیط)

معنیٰ دَ ایت دا شوه چه دَ ټول مخلوقات پیریانو، بنی آدمو او ملائکو او ټولو حیوانانو نظرونه چه یو شی هم الله جلّ شانهٗ لره داسې نه شی لیدې چه دا نظرونه دَ هغهٔ دَ ذات احاطه او کړی (یعنی ټول برابر ئې اووینی) او الله تعالیٰ دَ ټولو مخلوقاتو نظرونه په پوره شان سره لیدے شی او دَ هغهٔ لیدو په دې ټولو احاطه کړې ده - په دې لنډ ایت کښې دَ الله تعالیٰ دوه خاص صفتونه ذکر دی - اوّل دا چه په ټول کائناتو کښې هم دَ هیچا نظر بلکه دَ ټول نظرونه جمع هم شی دَ هغهٔ احاطه نه شی کولے -

حضرت ابو سعید خدریؓ فرمائی چه نبی کریم صلے الله علیه وسلم فرمائیلی دی، چه که دَ دنیا ټول مخلوقات انسانان حیوانات پیریان فرښتے او شیطانان چه دَ کله نه پیدا دی او ترخو پورې چه پیدا کیږی دا ټول یو ځائے شی په یو صف کښې او دریږی نو که دا ټول خپل نظرونه یو هم کړی خو دَ هغهٔ دَ ذات احاطه په دې خپلو نظرونو نه شی کولے (مظهری په حواله دَ ابنِ ابی حاتم)

او دا خاص صفت دَ الله جلّ شانهٗ کیدے شی، ورنه نظر له الله تعالیٰ دا سې قوّت ورکړې دے چه دَ ورکوټی نه دَ ورکوټی جانور دَ ویښته ویښته ستر ګه

دَ دُنیا دَ لویو نه لوئے کوّنے لره لیدے شی، او په نظر سره دَ دے احاطه کولے شی، نو اسپو بڑیخ څومره لوئے لوئے کوّے دی چه دَ زمکے او ټولے دُنیا دَدوی په مقابله کښے هیڅ حیثیت نیشتے، مگر دَ هر انسان بلکه دَ ورکوټی نه دَ ورکوټی جانورسترګه هم دغے کوّولره داسے وینی چه په نظر کښے دَدوی احاطه کولے شی.

او حقیقت دا دے چه نظر خو دَ انسانی حواسو نه یوه حاسه ده چه په دے سره دَ محسوسو څیزونو علم حاصلیدے شی، دَ الله تعالیٰ پاک ذات خو دَ عقل او وهم دَ احاطے نه هم ډیر اوچت دے دَ ده دَ علم دَ سترګو په حاسه سره څنګه حاصلیدے شی : ؎

تو دل میں آتا ہے سمجھ میں نہیں آتا
بس جان گیا تیری پہچان یہی ہے

رتهٔ په ذره کښے واضح خو په ښکاره حواسو سره دے نه شم لیدے
بس زهٔ پوهرشوم چه هم ستا پیژندنه دغه دی، چه په سترګو نه شے لیدے)

دَ الله تعالیٰ ذات او صفات غیر محدود دی یعنی په احاطه کښے نه شی راتلے او دَ انسان حواس او عقل او خیال ټول محدود دی، نو ښکاره خبره ده چه یو غیر محدود په محدود کښے نه شی ځائے کیدے. په دے وجه دَ دُنیا هوښیارانو فلاسفرانو چاچه په عقلی دلیلونو سره دَ کائناتو دَ خالق پته لګول او دَ ده دَ ذات او صفاتو دَ ادراک دَ پاره خپل ټول عمرونه په بحثونو او تحقیقونو کښے صرف کړه. او صوفیائے کرامو چاچه دَ کشف او دَ شهود په لارے سره دَ دے میدان سفر کړے دے. ټول په دے متفق دی چه دَ ده دَ ذات او صفاتو حقیقت نه چا بیا موند او نه ئے موندے شی مولانا رومیؒ فرمائی : ؎

دُور بینانِ بارگاہِ الستؒ
غیر ازیں پے نہ بُردہ اند کہ ہست

(یعنی دَ الله تعالیٰ دربارته رسیدونکو بزرګانو دَ دے نه سوا نور هیڅ نه دی موندلی چه بس الله جل شانه شته موجود دے)

او حضرت شیخ سعدیؒ فرمائی : ؎

چه شبها نخفتم درین سیر گم
که حیرت گرفت آستینم که قم

ده ډیرې شپې رم په دې ورک سفر پسې خیالات او نغلول چه کوم بیا به ئې موږه خو آخر چه حیرانتیا راته لستونی ونیوه او وې ویل چه پورته شه، یعنی کامیاب نشوې.

| د الله تعالیٰ د لیدلو مسئله | انسان د الله تعالیٰ زیارت کولې شي او که نه؟ په دې مسئله کښې د ټولو علمائو د اهل سنت والجماعت عقیده دا ده چه په |
|---|---|

دې دنیا کښې د الله تعالیٰ د ذات لیدل او زیارت نه شي کیدې- وجه دا ده چه حضرت موسیٰ علیه السلام کله دا درخواست او کړو چه: رَبِّ أَرِنِيٓ: اے ځما ربه په ما باندې خپل زیارت او کړه څو جواب کښې ورته ارشاد اوشو چه: لَن تَرَانِي: ته هیڅ زمانه نشې لیدې- ظاهره خبره ده چه هر کله حضرت موسیٰ کلیم الله علیه السلام ته دا جواب ملاؤ شوی نو بیا د بل چا او بنی آدم څه مجال دے- البته په آخرت کښې مؤمنانو ته د الله تعالیٰ زیارت کیدل په صحیحو او قوی متواترو احادیثو سره ثابت دی- او په خپله په قرآن کریم کښې موجود دی

| وُجُوهٌ يَوْمَئِذٍ نَّاضِرَةٌ ۝ إِلَىٰ رَبِّهَا نَاظِرَةٌ ۝ | "د قیامت په ورځ به ډیر مخونه تروتازه وخوشحاله وی او خپل رب طرف ته به ګوری" |
|---|---|

البته کفار او مشرکان به په دغه ورځ هم د سزا په صورت د الله تعالیٰ په لید ومشرف نه وی لکه چه د قرآن شریف په یو آیت کښې دی:-

| كَلَّآ إِنَّهُمْ عَن رَّبِّهِمْ يَوْمَئِذٍ لَّمَحْجُوبُونَ ۝ | "یعنی کفار به په دغه ورځ د الله تعالیٰ د زیارت نه په پرده کښې او محروم وی" |
|---|---|

او په آخرت کښې به د الله تعالیٰ زیارت په مختلفو مقامونو باندې وی: د محشر په میدان کښې هم، او جنت ته د رسیدو نه پس هم او د جنتیانو د پاره به د ټولو نعمتونو نه لوئې نعمت د الله تعالیٰ زیارت وی-

نبی کریم صلے الله علیه وسلم فرمائیلی دی چه کله جنتیان جنت ته داخل شی نو الله تعالیٰ به دوی ته او فرمائی چه کوم نعمتونه په جنت کښې تاسو ته ملاؤ شوی دی که د دغو نه زیات نور څه غواړئ نو او وایئ چه موږ ورله هغه هم ورکړو

دغه خلق به عرض اوکړی چه یا الله تا مونږ له دَ دوزخ نه نجات راکړو او جنّت ته دې داخل کړو دَ دې نه زیات مونږ نور څهٔ غواړو؟ دغه وخت به پرده دَ مینځ نه اُوچته شي او ټول به دَ الله پاک زیارت اوکړی او دَ جنّت دَ ټولو نعمتونو نه به لوئې دا نعمت وی (یا الله تهٔ مونږ نصیب کړې، آمین) دا حدیث په صحیح مسلم کښې دَ حضرت صهیب نه نقل دې۔

او دَ صحیح بخاری په یو حدیث کښې دی چه نبی کریم صلے الله علیه وسلم یوه شپه دَ سپوږمۍ په رڼا کښې تشریف فرما وُه، او صحابه کرامؓ ترې چاپیره وُو، دوی دَ سپوږمۍ طرف ته اوکتل او بیائې او فرمائیل چه (په آخرت کښې) تاسو به خپل ربّ داسې په ځرګند او وینئ لکه څنګه چه دا میاشت (سپوږمۍ) وینئ۔

او دَ ترمذی او مسند احمدؒ په یو حدیث کښې په روایت دَ ابن عمرؓ نقل دی، چه الله تعالیٰ کوم خلقو له په جنّت کښې خاص درجه عنایت اُو فرمائی هغوی ته به روزانه سحر او ماښام دَ حق تعالیٰ جلّ شانهٔ زیارت نصیب وی۔ (اَللّٰهُمَّ اجْعَلْنَا مِنْهُمْ)

لنډه دا ده چه په دُنیا کښې څوک دَ الله تعالیٰ زیارت نهٔ شی کولے او په آخرت کښې به ټولو جنتیانو ته نصیب وی۔ او نبی کریم صلے الله علیه وسلم چه کوم دَ معراج په شپه زیارت کړې وُه هغه هم په حقیقت کښې دَ عالمِ آخرت زیارت دې - لکه چه شیخ محیّ الدّین ابن عربی فرمائی چه دُنیا صرف دَ دې جهان نوم دې کوم چه دَ آسمانونو په مینځ کښې بند دې، دَ آسمانونو نه پورته دَ آخرت مقام دې، هلته په رسیدو سره چه کوم زیارت اُوشی هغې ته دَ دُنیا زیارت نهٔ شی وئیلے۔

---

او س سوال دا پیدا کیږی چه کله دَ قرآن دَ آیت: لَا تُدْرِكُهُ الْأَبْصَارُ: نه دا معلومه شوه چه انسان دَ سره الله تعالیٰ لیدے نهٔ شی۔ نو په قیامت کښې به څنګه وی؟ دَ دې ښکاره جواب دا دې۔ چه دَ قرآن دَ آیت دا معنیٰ نه ده، چه دَ انسان دَ پاره دَ الله تعالیٰ لیدل او زیارت ناممکن دې، بلکه معنیٰ دَ آیت دا ده چه انسانی نظر دَ هغهٔ دَ ذات اِحاطه

نه شي کولے ځکه چه د هغهٔ ذات غیر محدود دے او د انسان نظر محدود دے۔
په قیامت کښې هم چه کوم زیادت وي هغه به د دے قسم نه وي چه نظر به احاطه نه شي کولے۔ او په دنیا کښې د انسان او د دهٔ د نظر دومره قوت نیشتے چه دغه شان لیدل هم برداشت کړي۔ په دے وجه په دنیا کښې مطلق لیدل نه شي کیدے، او په اخرت کښې به قوّت پیدا شي نو لیدل او زیارت به اوشي۔ مګر په نظر کښې به د ذات د حق احاطه هغه وخت هم نه وي۔
دویم صفت د الله جلّ شانهٔ په دے ایت کښې ئے دا فرمایلے دے چه د دهٔ نظر په ټولو کائناتو باندې احاطه کوونکے دے۔ د دُنیا یوه ذرّه هم د دهٔ د نظر نه پټه نیشتے۔ دا علم مطلق او علمي احاطه هم د حق تعالیٰ شانهٔ خاص خصوصیت دے که دهٔ نه سِوَا هیڅ مخلوق ته د ټولو څیزونو د کائناتو او د ذرے ذرے علم نه چرته حاصل شوے دے او نه چرته کیدے شي۔ ځکه چه دغه خاص صفت دے د رب العزت جلّ شانهٔ۔
د دے نه پس ارشاد فرمائي: وَ هُوَ اللَّطِيْفُ الْخَبِيْرُ ۔ لطیف د عربي لغت په اعتبار سره په دوه معنو کښې استعمالولے شي، یو په معنیٰ د مهربان، دویم په مقابله د کثیف (یعنی محسوس او معلوم) نو د لطیف معنیٰ هغه شے چه د حواسو په ذریعه سره محسوس او معلومولے نه شي۔
او د خبیر معنی ده خبردار، معنیٰ د دے جملے دا شوه چه الله تعالیٰ لطیف دے په دے وجه د حواسو په ذریعه د دهٔ ادراک (موندل) نه شي کیدے، او خبیر دے، په دے وجه د کائناتو یوه ذرّه هم د دهٔ د علم او خبر نه باهر نه ده، او که د لطیف معنیٰ دلته د مهربان واغستے شي نو اشاره به دے طرف ته وي چه اګرچه الله تعالیٰ زمونږ د هر کار او وینا بلکه د هر یو ارادے او خیال نه خبردار دے او د دے غوښتنه دا وه چه مونږ دِ په هر ګناه نیولے شو، مګر چونکه هغه لطیف او مهربان هم دے په دے وجه په هر ګناه باندې نیول نه کوي۔
په دویم ایت کښې لفظ د بَصَائِرُ: د بصیرت جمع ده چه معنیٰ ئے ده عقل او پوهه یعنی هغه قوّت په کوم سره چه انسان د غیر محسوس څیزونو

علم حاصلولے شي - دَبصائر نه مراد په آیت کښې هغه دلیلونه او ذریعې دي په کومو سره چه انسان حق او حقیقت معلوم کړي، معنیٰ دَ آیت داده چه دَ الله تعالیٰ دَ طرف نه تاسو ته دَ حق لید وذریعې او وسیلې رسیدلې دي یعنې قرآن راغے نبي کریم صلی الله علیه وسلم راغے دَ حضورؐ معجزې راغلې دَ حضورؐ اخلاق او معاملے او تعلیمات او لیدے شو، دا ټول دَ حق لیدو ذریعې دي -

نو کوم سړي چه دَدے ذریعو نه کار واخستو دَ بصیرت خاوند جوړ شو، دَهٔ خپله نفع حاصله کړه او چا چه دا ذریعې پریخودے دَ حق نه ړوند پاتے شو نو دهٔ خپل نقصان اوکړو -

په آخر د آیت کښې فرمائي چه " زهٔ ستاسو نګران نه یم " یعنې نبي کریم صلی الله علیه وسلم دَدے ذمه وار نه دے چه خلق په زبردستۍ دَ بدو کارو نه منع کړي، لکه دَ نګران او محافظ کار چه وي، بلکه دَ رسولؐ منصبي فرض صرف احکام رسول او پوهه کول دي - بیا دَ هر سړي خپل اختیار دے چه تا بعد اري کوي او که نه دا دَ دهٔ ذمه واري ده -

په توحید او رسالت باندې چه کوم واضح دلیلونه په تیرو آیاتونو کښې بیان شوي دي، په دریم آیت کښې دَ هغې طرف ته اشاره کوي فرمائي :-

وَكَذٰلِكَ نُصَرِّفُ الْاٰيٰتِ : یعنې مونږ دغه شان دلیلونه په مختلفو اړخونو سره بیانوو - دَدے نه پس فرمائي :-

وَلِيَقُوْلُوْا دَرَسْتَ وَلِنُبَيِّنَهٗ لِقَوْمٍ يَّعْلَمُوْنَ : چه دَدے ټولو دا دے چه ټول دَ هدایت سامان معجزے او دلیلونه، بے مثله کتاب قرآن، او دَ یو محض اُمي دَ ژبے مبارکے نه دَ داسے علومو او حقیقتونو ښکاره کیدل چه دَ ټولے دُنیا فلاسفران او حاکمان ترې عاجز دي، داسے بلیغ کلام چه تر قیامته پورے راتلونکو پیړیانو او بني آدمو ته ئے چیلنج ورکړو چه دَ دهٔ دَ یو ورکوټي سورت په شان کلام که څوک جوړ وَلے شي جوړ دې کړي او ټوله دنیا دَدے نه عاجزه شوه، دا ټول دَ حق لید داسے سامان وُو چه هر یو ضدي او منکر له هم دَ نبي کریم صلی الله علیه وسلم په قدمونو باندې پرے وتل پکار وُو - لیکن دَ

کومو خلقتو په طبیعت کښې چه زنګ اوکوږوالے وُه هغوی اووے چه: دَرَسْتَ: یعنی دا علمونه تا ډچا نه نوستلی دی۔

او ډدے سره ئے دا هم اوفرمائیل: وَلِنُبَيِّنَهٗ لِقَوْمٍ يَّعْلَمُوْنَ: چه ډدے نخو په دا شو چه هوښیاران ډچا چه پوهه برابره او عقل ټهیک وی ډهغوی ډپاره دا بیان نفع مند او فائده مند ثابت شو۔ لنډه دا چه سامان ډهدایت خو ډټولو ډپاره کیخو دے شو مګر لګو تړ فائده وانه خسته او ډچا چه عقل او پوهه برابره وُو هغوی ډدے په ذریعه ډدنیا رهبران جوړ شو۔

په څلورم ایت کښې نبی کریم صلے الله علیه وسلم ته هدایت دے چه تهٔ دے ته مه ګوره چه څوک منی او که نه منی، تهٔ بخپله په دغه لارے بانده ډکومے په تلو چه تا ته ستا ډرب ډطرف نه وحی نازله شوے ده چه په دې کښې لوئے شے دا عقیده ده چه ډ الله نه سِوَا څوک لائق ډعبادت نیشته، دا رنګ په دے وحی کښې ډتبلیغ حکم هم داخل دے په دے قائم اوُسه ډمشرکینو طرف ته خیال مه کوه۔ چه افسوس دوی تبوله ولے نه کړه۔

په پنځم ایت کښې ډدے وجه خودلے ده چه که الله تعالی په تکوینی طور دا منظوره وے چه ټول انسانان مسلمانان شی نو دوی به شوک نه وُه کړے، لیکن ډدوی ډبدو عملونو په وجه الله تعالی ته دا منظوره وَه چه دوی ته سزا ملاؤ شی نو دا سے اسباب ئے برابر کړه۔ بیا ته دوی له خنګه مسلمانان جوړ ولے شے۔ او ته په دے فکر کښې پروت ولے یئ! مونږه تا لره ډدوی په عملونو نګران نه دے مقرر کړے او نهٔ تهٔ دوی لره په دے عملونو باندے ډعذاب ورکولو ډمونږ ډطرف نه مختار ئے۔ نو په دے وجه تا لره ډدوی په دے بدو عملونو سره تشویش کول نه دی پکار۔

وَلَا تَسُبُّوا الَّذِيْنَ يَدْعُوْنَ مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ فَيَسُبُّوا

او تاسو کنځل مه کوئ هغو ته ډچا چه دوی عبادت کوی ډ الله نه سِوَا پس دوی به کنځل اوکړی

اللّٰهَ عَدْوًا بِغَيْرِ عِلْمٍ ۗ كَذٰلِكَ زَيَّنَّا لِكُلِّ اُمَّةٍ

الله ته به بد اووائي بغير د پوهې نه - دغه شان موږ ښائسته کړي دي هرې ډلې ته

عَمَلَهُمْ ۠ ثُمَّ اِلٰى رَبِّهِمْ مَّرْجِعُهُمْ فَيُنَبِّئُهُمْ بِمَا

نظر کښې د دوی عملونه - بیا دے ټولو لره خدائے طرف ته رسیدل دی بیا به هغه وښائی دوی ته

كَانُوْا يَعْمَلُوْنَ ﴿١٠٨﴾ وَاَقْسَمُوْا بِاللّٰهِ جَهْدَ اَيْمَانِهِمْ

هغه چه دوی کول - او دوی قسمونه خوړی په الله سخت قسمونه خپل چه

لَئِنْ جَآءَتْهُمْ اٰيَةٌ لَّيُؤْمِنُنَّ بِهَا ۗ قُلْ اِنَّمَا

که چرې راشی دوی ته څه نښه نو خامخا به پرې ایمان راوړی - ته اووایه چه

الْاٰيٰتُ عِنْدَ اللّٰهِ وَمَا يُشْعِرُكُمْ ۙ اَنَّهَآ اِذَا جَآءَتْ

نښې خو د الله سره دی او تاسو ته اے مسلمانانو څه خبر دے چه کله هغه نښې راشی

لَا يُؤْمِنُوْنَ ﴿١٠٩﴾ وَنُقَلِّبُ اَفْـِٕدَتَهُمْ وَاَبْصَارَهُمْ

نو دا خلق ایمان نه راوړی - او موږ الټه کوو د دوی زړونه او د دوی سترګې

كَمَا لَمْ يُؤْمِنُوْا بِهٖٓ اَوَّلَ مَرَّةٍ وَّنَذَرُهُمْ فِيْ

لکه چه ایمان نه راوړی په نښه وو باندې اول وار او موږ پریږدو دوی لره د

طُغْيَانِهِمْ يَعْمَهُوْنَ ﴿١١٠﴾ ع

دوی په سرکشئ کښې سرګردانه -

## لنډ تفسیر

او کنځل مه کوئ هغو باطلو معبودانو ته د کومو چه دوی مشرکان د خدائے د دیوالي نه سوا عبادت کوی

خکه چه رستاسو په دا سے کولو سره) بیا دوی دَ دیر جهل نه (یعنی دَ غصے نه) دَ
الله تعالیٰ په شان کښے بے ادبی او کړی را وپه دے سره تعجب مه کوئے چه دا سے بے ادبی
کوُنکو ته فی الحال سزا ولے نه ملاویګی خکه چه) موښږه (په دُنیا کښے خو) دغه شان
(لکه خنګه چه کیږی) دَ هرے طریقے خاوند انو ته دَ دوی عمل (که ښهٔ وی او که بد)
غوره ښکاره کړے دے (یعنی دا سے اسباب جمع کیږی چه هر یو خپله طریقه خوښوی
دَ دے معلومه شوه چه دا دنیا صرف دَ آزمائش او امتحان ده پس په دے کښے سزا
ضروری نه ده) بیا به (خامخا په خپل وخت) دَ خپل ربّ خوا ته دے (ټولو) لره
تلل وی پس (هغه به دوی ته او ښائی څهٔ چه دوی هم (په
دنیا کښے) کول (را و هغو نو لره به سزا ورکړی) او دا (منکر) خلق ډیر زور
دار قسمونه په الله پاک باندے خوړی چه که دوی ( یعنی موښږ) ته (یعنی دَ
دوی دَ فرمائشی نښو نه) څه نښه را (ښکاره) شی نو دوی (یعنی موښږ)
به خامخا په دغے (نښے) باندے ایمان راوړی (یعنی دَ نښے ښکاره کولو نکی نبوت
به اُومنی) ته (په جواب کښے) او وا یه چه نښے ټولے دَ خدائے تعالیٰ
په قبضه کښے دی) (هغه چه په دوی کښے څنګه غواړی تصرف په کښے کوی بل
لوه په کښے دخل کول او فرمائش کول بے ځایه دی خکه چه دَ الله تعالیٰ نه سوا
بل چا ته معلومه نه ده چه دَ کومے ښکاره کولو کښے حکمت دے او دَ کومے نهٔ ښکاره
کولو حکمت دے ، البته دَ رسول لیګلو په وخت کښے مطلق څهٔ نښه ښکاره
کولو کښے حکمت یقینی دے ، پس الله تعالیٰ ډیرے نښے دَ محمد صلی الله علیه وسلم
دَ رسالت دَ دعوے دَ رښتوینے کولو ښکاره کړی دی چه دَ ذ لیل دَ پاره پوره
دی ، پس دا دَ دوی دَ فرمائشی جواب شو) او (چونکه دَ مسلمانانو په زړونو
کښے خیال وه چه ښهٔ به وی که دا نښه ښکاره شی شاید ایمان راوړی دوی
ته خطاب فرمائی چه) تا سو ته دَ دے څهٔ خبر دے (بلکه موښږ ته پته ده) چه دغه
(فرمائشی) نښه کوم وخت را (ښکاره) شی دا خلق به (دَ دیر عناد نه) بیا هم
ایمان رانهٔ وړی او (دَ دوی دَ ایمان نه راوړو په وجه سره) موښږ هم دَ دوی
زړونو لره (دَ ارادے دَ طلب دَ حق نه) او دَ دوی سترګو لره (دَ حق دَ لیدو
دَ نظر نه) اړوو وُ او دَ دوی دا ایمان نه راوړل دا سے دی) لکه چه دے خلقو

په دے (قرآن) باندِ (چه لویه معجزه ده) اوّل وار (کله چه راغے) ایمان نه دے راوړے (نو اوس دَدوی ایمان نه راوړل لوے مه گنړئ) او (دَ سترګو اړول یعنی دَ نظر و نو بے کاره کول مطلب ظاهري اړول نه دی بلکه مراد دا دے چه) مونږ دوی لره دَدوی په سرکشئ (کفر) کښے حیران (سرګردان) پاتے کړو (چه دَ ایمان راوړو توفیق به ئے نه وی دا معنوی اړول دی) -

# مَعلومَات اومَسئلے

په ذکر شوی دا آیا تو نو کښے اوّ لنے آیت په یو خاص واقعه کښے نازل شوے دے او په دے کښے دَ یو اهم اصُولی مسئلے هدایت شوے دے چه کوم کار په خپله کول جائز نه وی دَ هغې سَبَب او ذریعه جوړیدل هم جائز نه دی -

دَ آیت شانِ نزول دَ ابنِ جریرٌ دَ روایت مطابق دا دے چه کله دَ نبی کریم صلے الله علیه وسلم تره محترم ابوطالب دَ مرګ په مرض کښے وه نو دَ قریشو مشرک سردارانو چه دَ نبی کریم صلے الله علیه وسلم په دُشمنئ او آزار رَسَولو پسے لګید لی وُو او دَ قتل ساز شونه به ئے کول، دَ دوی سره دا فکر شو چه دَ ابو طالب وفات به زمونږ دَ پاره یوه مشکله مسئله جوړه شی، ځکه چه دَ ده نه پس که مونږ محمّد (صلے الله علیه وسلم) قتل کړو نو دا به زمونږ دَ عزّت او شرافت نه خلاف وی ځکه چه خلق به وائی دَ ابو طالب په ژوندِ ئے ورسره هیڅ نه شو کولے او دَ هغهٔ دَ مرګ نه پس ئے یو ائے بیامُوند نو قتل ئے کړو په دے وجه اوس وخت دے چه مونږ یو ځائے شو او پخپله دَ ابو طالب سره څه فیصله کُن خبره او کړو -

دا خبره تقریبًا چه هر یو تعلیم یافته مسلمان ته معلومه ده چه ابوطالب اګرچه مسلمان شوے نه وُه لیکن دَ نبی کریم صلے الله علیه وسلم نه صرف محبّت بلکه عُظمت او لوئی هم دَ ده په زړهٔ کښے پیوَست وَه، او دَ دوی دَ دشمنانو په مقابله کښے ئے خپله سینه ډال کړے وَه -

دَ قریشو بوخو سردارانو دا مشوره اوکړه ابوطالب له نه د لېږلو د پاره یو وَفد تیار کړو چه په کښې ابوسفیان ابوجهل، عمرو بن عاص وغیره دَ قریشو سرداران شامل وُو، دَ ابوطالب نه دَ دے وفد دَ ملاقات دَ پاره دَ وخت اَغستو کار مطلب نوم یو سړی ته اُوسپارَلے شو۔ دَ ابوطالب نه وخت واغستو او دا وفد ئے هلته اُورسا وه۔

دَ فد ابوطالب ته اُووے چه ته زمونږ مشر او سردار ئې۔ او تا ته معلومه ده چه ستا وراره محمد (صلے الله علیه وسلم) مونږ ته او زمونږ معبودانو ته سخت تکلیف او آزار رَسَولے دے۔ مونږ غواړو چه ته دے را اوغواړے او پوهه ئے کړے چه زمونږ معبودانو ته بد رَدِے نه وائی نو مونږ به په دے صلح اوکړو چه هغه په خپل دین چه څنګه غواړی عمل دِکوی چا لره چه غواړی معبود دِ جوړ وی، مونږ به ورته هیڅ نه وایو۔

ابوطالب رسول الله صلے الله علیه وسلم خپل ځان ته را اُوغوښتو او ورته ئے اُووے چه دا ستا دَ قام سرداران راغلی دی۔ نبی کریم صلے الله علیه وسلم دے وَفد ته مخاطب شو اُوئے فرمائیل چه تاسو خلق څه غواړئ؟ هغوی اُووے چه زمونږ خواهش دا دے چه ته مونږ او زمونږ معبودانو ته بد رَدِے مه وایه، مونږ به ستا او ستا دَ معبود نه قلار شو۔ دغه شان به ستاسو په مینځ کښے مخالفت ختم شی۔

نبی کریم صلے الله علیه وسلم اُوفرمائیل چه بښهٔ نو دا اووایئ چه که زهٔ ستاسو خبره ومنم نو آیا تاسو به یو داسے کلمے ویلو ته تیار شئ چه دَ هغے په وجه سره به تاسو دَ ټول عرب مالکان شئ۔ دَ عجم خلق به ستاسو تابعدارا و تابعداران شی۔

ابوجهل اُووئیل چه داسے کلمه یو نه، مونږ لسو ویلو ته هم تیار یو، اُووایه هغه کلمه څه ده؟ رسول الله اُوفرمائیل لَآ اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ دا دے په اُورېدو سره ټول غصه شو، ابوطالب هم اُووے چه ځما

واوره! دَ دے کلمے نه سوا څهٔ بله خبره وایه - خکه چه ستا قوم دَ دے کلمے نه کبراو شوے دے -

حضورؐ اوفرمائیل تره! زهٔ خو دَ دے کلمے نه سوا بله څهٔ دویمه کلمه نه شم وئیلے - که دغه خلق دَ آسمان نه نمر راکوز کړی او ځما په لاس کښې ئے کیدی خو هم به زهٔ دَ دے کلمے نه سوا څهٔ بله هڅکله اُو نه وایم - مقصود داوُه چه دوی مایوسه کړی -

په دے باندے دا خلق ناراضه شوا و ئے وے - چه یا خو به تهٔ زمونږ دَ معبودانو د بتانو دَ بد وئیلو نه منع شے - ورنه مونږ به تا ته هم کنځل کوُو او هغه ذات ته هم دَ کوم چه تهٔ خپل ځان ته رسول وائے په دے دا آیت نازل شو: لَا تَسُبُّوا الَّذِينَ يَدْعُونَ مِنْ دُونِ اللّٰهِ فَيَسُبُّوا اللّٰهَ عَدْوًا بِغَيْرِ عِلْمٍ: "یعنی تهٔ دَ دے بتانو ته بد مه وایه کوم لره چه دے خلقو خدایان جوړ کړی دی چه دَ دے په نتیجه کښې به دوی الله تعالیٰ ته بد ردِ وئیل شروع کړی دَ خپل بے لارے توب او ناپوهئ نه -

په دے کښې دَ لَا تَسُبُّوا لفظ دَ سَبٌّ نه مشتق دے چه معنیٰ ئے ده کنځل کول - نبی کریم صلی الله علیه وسلم خو د خپل فطری اخلاقو په بنا دَ اول نه هم دَ دے پابند وه - چه ته په ورځنئ تعالی کښې هم چا ته نه بلکه چا جانور ته هم دَ کنځلو لفظ دَ دوی دَ ژبے مبارکے نه نه دے وتلے ممکنه ده چه دَ بعض صحابه کرامو دَ ژبو نه چرته څهٔ سخته کلمه وتلی وی چه دَ مکے مشرکانو تر په کنځلو سره تعبیر کړے وی - او دَ قریشو دَ سردارانو دے وفد دَ نبی کریم صلی الله علیه وسلم دَ وړاندے دے معاملے لره کیخوده دا اعلان ئے اوکړو چه که تهٔ زمونږ دَ بتانو دَ کنځلو نه منع نه شوے نو مونږ به ستا خدائے ته کنځل کوُو -

په دے باندے قرآنی حکم دا نازل شو، چه دَ دے په ذریعه ئے مسلمانان منع کړل چه دوی دَ مشرکانو دَ باطلو معبودانو متعلق دِ څهٔ سخته کلمه نه وائی - په دے آیت کښې دا خبره په خاص طور سره دَ نظر قابل ده - چه دَ دے نه په وړاندے آیت کښې په خپله نبی کریم صلی الله علیه وسلم ته

خطاب کيده. مثلاً ارشاد دے: اِتَّبِعْ مَآ اُوْحِيَ اِلَيْكَ مِنْ رَّبِّكَ: او: اَعْرِضْ عَنِ الْمُشْرِكِيْنَ: او: مَاجَعَلْنٰكَ عَلَيْهِمْ حَفِيْظًا: او: مَآ اَنْتَ عَلَيْهِمْ بِوَكِيْلٍ: په دې ټولو صيغو کښې نبي کريم صلے الله عليه وسلم مخاطب وُه چه ته دا سے کوه دا سے مه کوه. د دے نه پس په دے آيت کښې طرز د خطاب ئے د نبي کريم صلے الله عليه وسلم نه بدل کړو عامو مسلمانانو ته ئے کړو: فرمائي: لَا تَسُبُّوْا: په دے کښې اشاره دے خبرے طرف ته ده چه نبي کريم صلے الله عليه وسلم خو چرته چا ته کنځل کړي نه دي. نيغ په نيغه دُه لره په خبره سره مخاطب کول د دُهٔ زړهٔ ماتيدو سبب کيدے شي. په دے وجه ئے خطاب عام کړو او ټولو صحابه کرامو په دے کښې احتياط کول شروع کړل. (بحرمحيط)

پاتے شوه دا معامله چه د قرآن کريم په څيرو آيا تونو کښې د بتانو ذکر په سختو الفاظو کښې راغلے دے او هغهٔ آيا تونه منسوخ شوي هم نه دي تلاوت ئے تراوسه پورے کيدے شي،

د دے جواب دا دے چه د قرآن په آيا تونو کښې کوم ځائے چه دا الفاظ راغلي دي هغه په طور د مناظرے د څهٔ حقيقت د ښکاره کولو د پاره وارد شوي دي هلته د چا زړهٔ آزارول مقصد نه دي، او نه څوک پوهه سړے تر دا نتيجه ويستلے شي چه په دے کښې بتانو ته بدے خبرے ويل يا د مشرکانو چيړل منظور دي. او دا يو دا سے ښکاره فرق دے چه د هرے ژبے د محاورے خاوندان پرے په آسانئ سره پوهيدے شي چه کله د يو سړي عيب يا بدي د مسئلے د صفا کولو د پاره ذکر کولے شي لکه چه عام طور په عدالتونو کښې روزانه مخے ته راځي. ليکن د عدالت په وړاندِ کيدُونکي بيان ته په دنيا کښې يو سړے هم دا نه وائي چه فلاني فلاني ته کنځل اوکړل. دغه شان د ډاکټرانو او حکيمانو په وړاندِ د بنده ډير دا سے عيبونه بيانولے شي چه که بل ځائے کښے ئے په بل شان سره څوک بيان کړي نو کنځل به گڼلے شي. ليکن په غرض د علاج د دے بيانولو ته هيڅوک کنځل کول نه وائي.

دغه شان قرآن کريم ځائے په ځائے د بتانو بے حِسي بے شعوري

او بې علمي، بې قدرتي او بې بسي ئې په دا سې انداز کښې بيان کړې ده چه پوهه خلق په حقيقت پوهه شي.- او د ناپوهو خلقو غلطي يا کوتاه نظري ښکاره شي، چه دې په نتيجه کښې دا ارشاد دے: ضَعُفَ الطَّالِبُ وَالْمَطْلُوبُ: يعنې دا بتان هم کمزوري دي او د دوي طالبان هم کمزوري دي"- يا دا ارشاد شوے دے: إِنَّكُمْ وَمَا تَعْبُدُونَ مِنْ دُونِ اللهِ حَصَبُ جَهَنَّمَ: "يعنې تاسو او د کومو بتانو چه تاسو عبادت کوئے تول د جهنم خشاک دي"۔ د لته هم چاته بد رد وئيل مقصود نه دي.- د کمراهئ او بد انجام ذکر کول مقصود دي.- او فقهاؤ وضاحت کړے دے چه که يو سړے مشرکانو له د چيړلو د پاره دا آيت لولي نو د ده د پاره هم دا تلاوت کول په منع او ناجائز والي کښې داخل دي.- لکه چه په مکروهو ځايو نو کښې د قرآن کريم تلاوت کول هرچا ته معلوم دي چه جائز نه دي (روح المعاني)

پنځويم د خبرې دا دے چه د نبي کريم صلے الله عليه وسلم په ژبه مبارکه او قرآن کريم کښې نه مخکښې چرته دا سې خبره راغلې وه چه خلق ئې کنځل او کنزل او نه آئنده د دا تلو څه خطره وه.- البته د مسلمانانو نه د دے خبرې امکان وه نو دوي له ئې په دے آيت کښې د دا سې کولو نه منع کړل.-

دے واقعې او په دے باندې قرآني هدايا تو د يو لوئے علم دروازه پرانسته.- او يو څو اصولي مسئلې د دے نه رااووتے.-

مثلاً يو اصول دا را اووتلو چه کوم کار د خپل ذات په اعتبار سره جائز بلکه په يوه درجه کښې غوره هم وي مګر په کولو سره ئې څه فساد لازميږي يا په نتيجه کښې ئې خلق په ګناه کښې اخته کيږي نو د دغې کار کول هم منع شي ځکه چه باطلو معبودانو يعني بتانو ته بد وئيل کم نه کم جائز خو خامخا دي او که د ايماني غيرت په تقاضا سره او وئيلې شي نو شايد چه پخپل ذات کښې ثواب او بنه هم دي.- ليکن په نتيجه کښې ئې دا ډاره وه چه خلق به الله جل شانه ته بدې خبرې او وائي، نو بتانو ته بد وئيونکے به د دے

> د څه ګناه سبب جوړيدل هم ګناه دے

بدے ئے سبب جوړ شی۔ په دے وجه داجائز کار ئے هم منع کړو۔

د دے یو بل مثال په حدیث کښے داسے راغلے دے چه نبی کریم صلے الله علیه وسلم صحابه کرامو ته اوفرمائیل چه یو سړے د خپل مورو پلار ته کنځل نه کوی۔ صحابه کرامو عرض اوکړو چه یا رسول الله دا خوډ هیچانه ممکنه نه ده چه خپل مورو پلار ته کنځل اوکړی۔ اُو ے فرمائیل چه ځان پخپله خو څوک کنځل نه کوی۔ لیکن کله چه دے د بل سړی مورو پلار ته کنځل اوکړی، او هم دے په نتیجه کښے هغه بل د ده مورو پلار ته کنځل اوکړی نو د دے کنځلو سبب دا څوک جوړ شو۔ نو دا هم داسے ده لکه چه ده پخپله کنځل کړی وی۔

د دے معاملے یو بل مثال د رسالت په زمانه کښے دا هم ته راغے چه نبی کریم صلے الله علیه وسلم حضرت عائشے ته اوفرمائیل چه بیت الله شریف د بیا جاهلیت په زمانه کښے په څهٔ حادثه کښے نړیدلے وه۔ نو د مکے قریشو د نبوت او بعثت نه وړاندے دا جوړ کړو، د دے په جوړولو کښے یو څو څیزونه د ابراهیم علیه السلام د آبادئ نه خلاف اوشو، یو خو دا چه کوم حصے ته حطیم وئیلے شی دا هم د بیت الله حصه ده د آبادئ په وخت کښے د سرمائے د کموالی په وجه دا حصه پاتے شوه، دویم د بیت الله شریف دوه دروازے مشرقی او مغربی وے، یوه د داخلیدو د پاره بله د باهر د تلو د پاره۔ په جاهلیت کښے ئے مغربی دروازه بنده کړه صرف یوه ئے کړه، او هغه ئے هم د زمکے نه اوچته کړه۔ چه بیت الله شریف ته د ننه تلل صرف د دوی په رضا او اجازت سره کیدے شی هم سړے ورته بے دریغه نه شی ورننوتلے۔ نبی کریم صلے الله علیه وسلم اوفرمائیل چه زما زړهٔ غواړی چه د بیت الله موجوده آبادی اونړوم د حضرت خلیل الله علیه السلام د آبادئ بالکل مطابق ئے جوړ کړم، مګر دا یره ده چه ستا قوم یعنی عام عرب اوس اوس مسلمانان شوی دی۔ د بیت الله شریف د نړ ولو نه چرته د دوی په زړونو کښے څهٔ شبهے پیدا شی۔ په دے وجه ما خپله اراده پاتے کړهٔ۔

ښکاره خبره ده چه د بیت الله شریف د ابراهیم علیه السلام د آبادۍ مطابق جوړول د ثواب کار دی. مګر چه په دې د خلقو ناپوهۍ په وجه یو خطره مرتب کیده نو دوی دا اراده پاتې کړه، د دې واقعې نه هم دا اُصول معلوم شو چه په یو جائز بلکه د ثواب په کار باندې څه فساد لازمیده نو دغه جائز کار به هم منع شي.

لیکن په دې باندې یو قوي اشکال دے چه روح المعاني د ابومنصور نه نقل کړے دے، هغه دا چه الله تعالیٰ په مسلمانانو باندې جهاد او قتال لازم کړے دے حال دا دے چه د قتال دا لازمي نتیجه ده چه مسلمان کله د یو غیرمسلم د قتل اراده اوکړي نو هغه به هم د مسلمان د قتل اراده کوي او د مسلمان قتل حرام دے نو د دے اُصولو په بنا جهاد هم ممنوع یکار دے، او دغه شان په تبلیغ اسلام او تلاوت د قرآن اذان او مونځ پورې چه یو کفار خندا کانے کوي او مذاق پورې کوي نو آیا مونږ به د دې غلطۍ رَدِیُو په بنا باندې د دې خپلو عبادتونو نه قلار شو؟

د دې جواب په خپله ابومنصور دا ورکړے دے، چه دا اشکال د یو ضروري شرط په نظر انداز کولو سره پیدا شوے دے. شرط دا دے چه هغه جائز کار د کوم نه چه د څه فساد لازمید و په وجه سره منع شوے ده، د اسلام د ضروري او مقصدي کارونو نه نه وي، لکه باطلو معبودانو ته بَدْ وَیَل، په دې پورې د اسلام څه مقصد تړلے شوے نه دے، دغه شان د بیت الله د ابراهیم علیه السلام د آبادۍ په شان کول. په دې هم څه اسلامي مقصد موقوف نه دے. په دې وجه چه کله د دې نه د څه دیني فساد خطره پیدا شوه نو دا کار ونه ګی پاتې کړل. او کوم کار ونه چه داسې وي چه پخپله په اسلام کښې مقصودي وي یا څه اسلامي مقصد پرې موقوف وي، که د نورو خلقو د غلطې رَوِیُو نه په دې سره څه فساد او خرابي پیدا کیدل په نظر راځي نو هم به د دغه مقصد هرګز نه پاتې کوي، بلکه کوشش به کولے شي چه دا کار به خپل ځائے جاري وي او د را تلونکي فساد ونه ترکومه حده پورې چه ممکن وي بند کړے شي.

دا وجه ده چه یو وارې حسن بصريؒ او امام بن سیرینؒ دواړه د یو

جنازے په مانځه کښې د شرکت کولو د پاره لاړل، حلقه ئے ا ولیدل چه د سړو سره ښځے هم جمع وے نو چه دائے او لیدل امام ابن سیرینؒ واپس شو مګر حضرت حسن بصریؒ او فرمائیل چه د خلقو د غلط روش په وجه سره مونږ خپل ضروری کار ختلکه پاتے کړو. د جنازے مونځ فرض دے نو د دے فساد په وجه نه شی پاتے کیدے. هاں د دے کوشش به د خپل طاقت موافق کولے شی چه دغه فساد ختم شی.

دا واقعه هم روح المعانی نقل کړے ده.

په دے وجه ښکاره شوه چه د کومو اصولو چه د ذکر شوی آیت نه را اووتل دا دی، چه کوم کار په خپل ذات کښے جائز بلکه عبادت او ثواب هم وی مګر د شرعی مقصد ونو نه نه وی که د دے په کولو څه فساد لازمیږی نو هغه کار پاتے کول واجب شی. په خلاف د شرعی مقصد ونو نه چه د فساد لازمیدو په وجه نه شی پاتے کولے.

د دے اصولو نه د امت فقهاؤ په زرګونو مسئلے او احکام را ویستلی دی، فقهاؤ فرمائیلی دی چه که د چا څوک نا فرمان وی او دے پوهیږی چه که د څه کار کولو درته وائی نو انکار کوی او خلاف ترکوی. یکوم چه د دے سخت ګناه ګار دیږی نو په داسے صورت کښے پلار لره په کار دی چه دوی ته د حکم په انداز کښے د څه کار کولو یا نه کولو نه وائی، بلکه د نصیحت په انداز کښے داسے وائی چه فلانے کار که اوشی نو ډیره به ښه وی، چه د انکار یا خلاف کولو په صورت کښے د پوے نوے نافرمانئ کولو ګناه په دوی را نه شی. (خلاصة الفتاوی)

دغه شان چاته په وعظ نصیحت کولو کښے که په قرائنو سره دا معلومه شی چه دے به د نصیحت قبلو لو په ځائے څه داسے غلط انداز اختیار کړی چه په نتیجه کښے به ئے دے نور هم په ګناه کښے اخته شی. نو په داسے صورت کښے نصیحت پاتے کول غوره دی. امام بخاری په صحیح بخاری کښے په دے مضمون باندے یو مستقل باب ایښودے دے، بَابُ مَنْ تَرَكَ بَعْضَ الْاِخْتِيَارِ مَخَافَةَ اَنْ يَقْصُرَ فَهْمُ بَعْضِ النَّاسِ فَيَقَعُوْا فِيْ اَشَدَّ مِنْهُ، یعنی بعض وخت جائز بلکه ښه څیزونه هم په دے وجه پاتے کولے شی چه په دے سره ناپوهه عوام په غلط فهمئ

کښې دَ اخته کېدو وېرَه وی۔ په دے شرط چه دغه کار په اسلامی مقصدونو کښې نه وی ۔

مګر کوم کار چه په اسلامی مقاصدو کښې داخل وی خواه فرض واجب وی یا سنت مؤکده یا نور قسم اسلامی شعائر وی۔ که دَ دے په ادا کولو سره ناپوهه خلق په غلطۍ کښې اخته کېږی نو دا کار وونه به هرګز نه شی پاتے کولے۔ بلکه په نورو طریقو سره دے دَ خلقو دَ غلط فهمۍ او غلط کارۍ لرے کولو کوشش کولے شی۔ دَ اسلام اوّلنی حالات ګواه دی چه په مانځه، تلاوت او تبلیغ اسلام بانی به دَ مکے مشرکان غصه کېدل، مګر په دے وجه سره چرته دا اسلامی شعائر نه دی پاتے کړے شوی۔ بلکه پخپله دَ ذکر شوی اٰیت په شانِ نزول کښې چه کوم واقعه دَ ابوجهل وغیره سردارانو دَ قریشو ذکر شوے ده دَ دے حاصل دا دے چه دَ قریشو سردارانو په دے صلح کولُ غوښتل چه تهٔ دَ توحید تبلیغ کول پاتے کړهٔ - چه دَ دے په جواب کښې حضورؐ او فرمائیل چه زهٔ دا کار په هیڅ حال کښې نه شم کولے اګرکه دوی نمر او سپوږمۍ را وړی او زما په لاس کښې ئے کېږدی۔

په دے وجه دَ دے مسئلے صفائی په داسے شان سره اوشوه چه کوم کار په اسلامی مقاصدو کښې داخل وی که دَ هغې په کولو سره څهٔ خلق په غلط فهمۍ کښې یا غلط کارۍ کښې اخته کېږی نو هم به دا کار وونه هرګز نه شی پاتے کولے۔ هان کوم کار چه په اسلامی مقاصدو کښې داخل نه وی او په پاتے کولو سره ئے څهٔ دینی مقصد نهٔ فوت کېږی۔ داسے کار وونو لره دَ نورو دَ غلط فهمۍ یا غلط کارۍ دَ وېرے په وجه سره پاتے کولے شی۔

وَالْحَمْدُ لِلّٰهِ رَبِّ الْعٰلَمِيْنَ

# اُوومه پاره ختمه شوَه

(کاتب و مترجم: مولوی ګل برخان (ابوحسین) بی اے فاضل دینیات فاضل عربی فاضل فارسی)

۲۲ جمادی الاول سنه ۱۴۰۹ھ ۳۱ جنوری سنه ۱۹۸۸ء

# تفسیر معارف القرآن پښتو

## پاره
## ۸

**تالیف : مولانا مفتي محمد شفیع** رحمة الله علیه

**مجلس ترجمه ونظر ثانی**

① **ډاکټر قاضي محمد مبارک** سابق مدرس دارالغلوم سرحد وپروفیسر شعبه عربی پېښور یونیورستی

② **ابو حسین مولانا گل برخان سواتی**: فاضل علوم اسلامیه عربیه

③ **مولانا سیف الحنان حقانی** فاضل حقانیه ووفاقالمدارس جامعه بهاورلپور تلمیذ علامه شمس الحق افغاني ومولانا احمد علی لاهوري

**باهتمام : ډاکټر محمددین** : فاضل وفاق المدارس ایم اي عربی ایم اي اسلامیات

برېښناي کوونکی : عزت الله سلطانزي

داتفسیر د باور کتابتون څخه ښکته شوی

وَلَوْ اَنَّنَا نَزَّلْنَآ اِلَيْهِمُ الْمَلٰٓئِكَةَ وَكَلَّمَهُمُ

او که مونږ نازل کړی وو په دوی باندې فرشتې او خبرې او کړی دوی سره

الْمَوْتٰى وَحَشَرْنَا عَلَيْهِمْ كُلَّ شَیْءٍ قُبُلًا مَّا كَانُوْا

مړی او که راټول کړی وو مونږ هر شے دوی ته مخامخ نو هم دا خلق

لِيُؤْمِنُوْٓا اِلَّآ اَنْ يَّشَآءَ اللّٰهُ وَلٰكِنَّ اَكْثَرَهُمْ

ایمان نه راوړی مګر که او غواړی الله لیکن په دوی کښې اکثر

يَجْهَلُوْنَ ﴿۱۱۱﴾ وَكَذٰلِكَ جَعَلْنَا لِكُلِّ نَبِیٍّ عَدُوًّا

جاهلان دی - او دغه شان مونږ کړی دی د هر نبی د پاره دشمنان

شَيٰطِيْنَ الْاِنْسِ وَالْجِنِّ يُوْحِیْ بَعْضُهُمْ اِلٰى

د شیطانانو بنی آدمو او پیریانو کوم چه ښائی یو بل ته

بَعْضٍ زُخْرُفَ الْقَوْلِ غُرُوْرًا ۚ وَلَوْ شَآءَ رَبُّكَ

ښائسته کړے شوے خبرے د فریب ورکولو د پاره - او که ستا رب نه وے غوښتلے

مَا فَعَلُوْهُ فَذَرْهُمْ وَمَا يَفْتَرُوْنَ ﴿۱۱۲﴾ وَلِتَصْغٰٓى

نو دغو خلقو به دا کار نه وو کړے پس ته پریږده دوی پو هر شه او د هغوی دروغ - او د دے د پاره چه

اِلَيْهِ اَفْئِدَةُ الَّذِيْنَ لَا يُؤْمِنُوْنَ بِالْاٰخِرَةِ

مائله شی دغے ښائسته شوو خبرو ته زړونه د هغو خلقو د کوم چه یقین نه لری په آخرت باندے

وَلِيَرْضَوْهُ وَلِيَقْتَرِفُوْا مَا هُمْ مُّقْتَرِفُوْنَ ﴿۱۱۳﴾

او چه هغوی د دے له خوښ کړی او کړی هغه ناکاره کار چه دوی کوی -

# لنډ تفسیر

او (د دوی د عناد خو دا حالت دے چه) که مونږه (دوی فرمائشی نښے خو لا څه کوو که
څو څو او لوئے لوئے فرمائشی نښے هم ظاهرے کړو، مثلاً دا چه) دوی ته فرښتے
را اولیږو (لکه چه دوی وائی: لَوْلَآ اُنْزِلَ عَلَیْنَا الْمَلٰٓئِكَةُ) او دوی سره مړی
(ژوندی شی) خبرے اوکړی (لکه چه دوی وائی: فَاْتُوْا بِاٰبَآئِنَا) او (دوی خو صرف
دومره وائی: تَاْتِیَ بِاللّٰهِ وَالْمَلٰٓئِكَةِ قَبِیْلًا؛ که) مونږ (په دے اکتفاء اونه کړو بلکه)
ټول موجودات (د غیبو) لکه (چه په دے کښے جنت دوزخ هرڅه راغلل) دوی
ته د دوی د سترګو په وړاندے راجمع کړو (چه هرڅه په ځاګړه اووینی) بیا
هم دا خلق هرګز ایمان نه راوړی، هاں مګر که خدائے اوغواړی (او د
دوی تقدیر بدل کړی) خو دا بله خبره ده (پس هرکله چه د دوی د عناد
او شرارت دا حال دے او په خپله هم دوی په دے پوهه دی چه زمونږ
نیت دا وخت هم د ایمان راوړلو نه دے نو د دے مُقتضاء دا وه چه د نښو
فرمائش ئے نه کولے چه دا محض بے کاره دے) لیکن په دوی کښے زیات خلق
د جهالت خبرے کوی (چه د ایمان راوړو خوئے قصد نیشتے او بیا هم ئے
فرمائشونه کوی چه د دے نه د دوی جهالت ښکاره دے) او (دا خلق
چه کوم ستا سره دشمنی لری دا څه نوے خبره نه ده چه ستا سره اوشوه
بلکه څنګه چه دوی ستا سره دشمنی لری) دغه شان مونږ د هر نبی دشمنان
[illegible] شیطانان پیدا کړی وو څه بنی آدم (د کوموسره چه اصل معامله وه)
او څه پیریان (ابلیس او د ده اولاد) د کوم نه چه بعض (یعنی ابلیس او
د ده لښکر) نورو بعضو ته (یعنی کافرانو ته) د ښائسته کړو شوو خبرو
وسوسے کوی چه دوی لره په دوکه کښے واچوی (مراد د دے نه د کفر او
مخالفت خبرے دی چه په ظاهر کښے نفس ته هم ښے معلومیدے او په
باطن کښے هلاکوونکے وے او دا دوکه ده۔ کله چه دا څه نوے خبره نه ده
نو د دے غم مه کوه چه ستا سره دا خلق داسے معاملے ولے کوی) اصل
خبره دا ده چه په دے کښے بعض حکمتونه دی په دے وجه د دوی په داسے

کارونو باندې قدرت دے) او که الله تعالیٰ (دا) غوښتلې (چه دے خلقو لره په
داسې کارونو باندې قدرت نه وی) نو (بیا) به دوی داسې نه وُو کړې (مګر
د بعضې حکمتونو په وجه ئې دوی لره قدرت ورکړے دے) پس (هر کله چه
په دے کښې داحکمتونه دی نو) دے خلقو لره او څۀ چه دوی (د دین په
باره کښې) دروغ جوړول کوی (لکه د نبوّت نه انکار چه د دے دشمنئ وجه
ده) دوی لره تۀ پریږده (د دوی په فکر او غم کښې مۀ پړے وُوځه مونږ
به ورلره په خپله پخپل وخت مناسب سزا ورکړو، چه په دے حکمتونو
کښې یو دا هم دے) او (دغه شیطانان دے کافرو خلقو ته ځکه وسوسې
کوی) چه دے (فریب ناکو خبرو) ته د دے خلقو زړونه مائیل شی
کوم چه په آخرت (لکه څنګه چه پکار دی) یقین نه لری (مراد ترې کافران
دی، اګرچه اهلِ کتاب وی، ځکه چه لکه څنګه پکار دے د غیبې د دوی هم
یقین نیشتے او که داسې نه وے نو دوی به د نبوّت نه انکار نه کولو په کوم چه په
قیامت کښې سزا وی) او د دے د پاره چه (د نفس د میلان نه پس) دے لره
(د زړۀ په اعتقاد سره) خوښ کړی او د دے د پاره چه (د اعتقاد نه پس)
اوکړی هم هغه کارونه کوم چه دوی کول۔

## معلومات او مسئلے

په تیرو آیاتونو کښې د دے خبرے ذکر وُو چه د نبی کریم صلے الله علیه
وسلم د ښکاره وُو معجزو او د الله تعالیٰ د روښانه نښو راتلو با وجود هم
دے ضدیانو خلقو د دے څۀ فائده وا نۀ اغسته په خپل انکار او ضد
باندې پاتے شو۔ په راتلونکو آیاتونو کښې د دے ذکر دے چه دے خلقو د
خپل ضد او آغیړیو بل رنګ داسې بدل کړو چه د نبی کریم صلے الله علیه
علیه وسلم نه ئې د خاص قسم معجزو ښکاره کولو مطالبه اوکړه، لکه چه
ابن جریر نقل کړی دی چه د قریشو سردارانو مطالبه اوکړه چه که ته
مونږ ته دا معجزه اوښائې چه د صفا غر ټول سرۀ زر شی نو مونږ به
ستا نبوّت او رسالت اُومنو او مسلمانان به شو۔

نبی کریم صلی اللہ علیہ وسلم او فرمائیل چہ بنۂ دہ معجزہ او کړی چہ کہ دا معجزہ ظاهره شوه نو تا سو به مسلمانان شئ۔ دوی قسمونه او خوړل نو حضورؐ دَ دُعا دَ پاره اُودریدو چہ دا غرؑ دَ سرو زرو شی۔ حضرت جبرئیل علیه السلام وحیؑ راوړله چہ که تهٔ غواړے نو مونږ به اوس ټول غر دَ سرو زرو کړو، لیکن دَ الله تعالیٰ دَ قانون مطابق به دَ دے نتیجه دا وی چہ که بیا هم دوی ایمان رانهٔ وړو نو په ټولو به عام عذاب نازل کړے شی او دوی به پکښے هلاک کړے شی لکه چہ په تیرو قومونو داسے واقعات راغلی دی چہ دوی کله دَ خپهٔ خاص معجزے مطالبه کړے ده او هغهٔ ورته خوَدَ لے شوے ده۔ او دوی بیا هم مُنکر شوی دی نو په دوی دَ خدائے تعالیٰ قهر او غضب او عذاب نازل شوے دے۔ رحمة للعٰلمین صلی الله علیه و سلم چونکه دَ دے خلقو دَ عادتو نو او اخلاقو ضد او اَغیرنه خبرو نو دَ شفقت په وجه ئے او فرمائیل چہ اوس زهٔ دَ دے معجزے دَ پاره دعا نهٔ کوم۔ په دے واقعه باندِ دا آیت نازل شو: وَاَقْسَمُوْا بِاللّٰهِ جَهْدَ اَيْمَانِهِمْ چہ په دے کښے دَ کفارو خبره نقل شوے ده چہ دوی دَ غوښتلے شوے معجزے په ظاهریدو باندِ دَ مسلمانید و دَ پاره قسمونه خوری۔ دَ دے نه په وروستو آیت اِنَّمَا الْاٰيٰتُ عِنْدَ اللّٰهِ کښے دَ دے دَ ینا جواب دے چہ معجزے او نښے ټولے دَ الله تعالیٰ په اختیار کښے دی۔ او کومے معجزے چہ ظاهرے شوی دی هغهٔ هم دَ هغهٔ دَ طرف نه دے۔ او دَ کومو مطالبه چہ کیږی په دے هم هغهٔ په پوره شان سره قادر دے لیکن دَ عقل او انصاف په بنا باندِ دوی لره دَ داسے مطالبے کولو حق نیشتے۔ څکه چہ نبی کریم صلی الله علیه و سلم دَ الله تعالیٰ دَ رسول کید و دَعوه کوی او په دے دعوے باندِ ډیرد لیلونه او شهادتونه دَ معجزو په صورت کښے پیش کړی شوی دی۔ او س هل فریق لره دَ دے حق خوشتے چہ په دے دلیلونو او شهادتونو جرح او کړی او غلط ئے ثابت کړی۔ لیکن چہ په دے شهادتونو څهٔ جرح نه کوی او بیا دا مطالبه کوی چہ مونږ نور شهادتونه غواړو۔ دا خو به داسے وی لکه چہ په عدالت کښے څوک

دَ مدعاعلیه مدعی په پیش کړي ګواهانو باندې جرح اونه کړي مکر داوائي چه زهٔ دَ دے ګواهانو ګواهي نه منم ۔ بلکه که فلاني مقرر سړے ګواهي اوکړه بیا به يې اومنم، نو دے لره به یوعدالت هم دَ آورید وقابل اونه ګنړي -

دغه شان په نبوّت اورسالت باندې دَ بے شماره آیاتونو او معجزو بښکاره کیدو نه پس چه تر څو پورے دغه معجزے غلطے ثابتے نه کړي دوي لره دَ دے وَینا حق نیشته چه مونږ ته فلانئ قسم معجزه اوښایه نو هله به ایمان راوړو-

دَ دے نه پس تر اخر آیاتو پورے مسلمانانو ته خو دنه او خطاب دے چه ستاسو کار په حق دین باندې په خپله قايم اوسيدل اونوروته صحیح طریقه رَسَوَل دی بیا هم که دوي ضد کوي نو دَ دوي په فکر کښے مه پریوځئ - ځکه چه په زور خوک مسلمانیدے نه شي که په زور مسلمانول کول شو ے نو دَ الله پاک نه زور آوَر هیڅوک نیشته هغهٔ به پخپله ټول مسلمانان کړي وُو- او په دے آیاتونو کښے يې مسلمانانو لره دَ مطمئن کولو دَ پاره داهم اوخودَل - چه که مونږ دَ دوي غوښتلے شوے معجزے هم بالکل ښکاره اوښکاره کړو خو دوي بیا هم ایمان نه راوړي - ځکه چه دَ دوي داانکار دَ څهٔ غلط فهمئ او ناپوهئ په وجه نه دے - بلکه د ضد عناد او ناپوهئ لکبله دے چه دَ دے علاج په څهٔ معجزه سره نه شي کیدے

په اخر آیت؛ وَلَوْ اَنَّنَا نَزَّلْنَآ اِلَيْهِمُ الْمَلٰٓئِكَةَ ؛ کښے دَ دے مضمون بیان دے چه که مونږ دوي ته دَ دوي غوښتلے شوے ټولے معجزے هم اوښایو بلکه دَ دے نه زیات که دَ فرشتو سره دَ دوي ملاقات اوکړو او مړو سره دَ دوي خبرے اوکړو خو بیا هم دوي منونکي نه دي - په ورو ستو دوه ؤو آیاتونو کښے نبي کریم صلے الله علیه وسلم ته تسلّي ورکړے شوے ده چه دا خلق که ستا سره دشمني کوي نو څهٔ دَ تعجب خبره نه ده دَ تیرو ټولو پیغمبرانو هم دوي دشمنان راغلي دي - ته په دے مه خفه کیږه -

اَفَغَيْرَ اللّٰهِ اَبْتَغِيْ حَكَمًا وَّهُوَ الَّذِيْٓ اَنْزَلَ اِلَيْكُمُ

پس آیا اوس دَ الله نه سوا چا بل لره منصف جوړ کړم حال دا دے چه هغهٔ نازل کړے دے په تاسو

الْكِتٰبَ مُفَصَّلًا ۚ وَالَّذِيْنَ اٰتَيْنٰهُمُ الْكِتٰبَ يَعْلَمُوْنَ

بانو کتاب بنکاره - او کوم خلقو ته چه مونږ کتاب ورکړے دے هغوی پوهیګی

اَنَّهٗ مُنَزَّلٌ مِّنْ رَّبِّكَ بِالْحَقِّ فَلَا تَكُوْنَنَّ مِنَ

چه دا نازل شوے دے ستا د رب د طرف نه حق پس ته مه کیږه ٥ د

الْمُمْتَرِيْنَ ﴿١١٤﴾ وَتَمَّتْ كَلِمَتُ رَبِّكَ صِدْقًا وَّ

شک کوونکو نه - او ستا د رب خبره پوره رشتونے او د

عَدْلًا ۚ لَا مُبَدِّلَ لِكَلِمٰتِهٖ ۚ وَهُوَ السَّمِيْعُ الْعَلِيْمُ ﴿١١٥﴾

انصاف ده - څوک بدلوونکے نیشته د ده خبرو لره او هغهٔ دے اوریدونکے پوهیدونکے -

وَاِنْ تُطِعْ اَكْثَرَ مَنْ فِي الْاَرْضِ يُضِلُّوْكَ عَنْ

او که ته خبره او مَنې د ډیرو هغو خلقو چه په زمکه کښې دی نو تا لره به غلط کړی د

سَبِيْلِ اللّٰهِ ۚ اِنْ يَّتَّبِعُوْنَ اِلَّا الظَّنَّ وَاِنْ هُمْ اِلَّا

الله د لارے نه - دغه تول چلیږی په خپل خیال باندې او تول

يَخْرُصُوْنَ ﴿١١٦﴾ اِنَّ رَبَّكَ هُوَ اَعْلَمُ مَنْ يَّضِلُّ

اټکل چلوی - ستا رب ښهٔ پوهه دے په هغو چه بے لارے کیږی

عَنْ سَبِيْلِهٖ ۚ وَهُوَ اَعْلَمُ بِالْمُهْتَدِيْنَ ﴿١١٧﴾

د هغهٔ د لارے نه - او هغهٔ ښهٔ پوهه دے په هغو چه د هغهٔ په لارے باندې دی -

**لنډ تفسیر**

رتهٔ اووا یه چه حٌما او ستاسو په مینځ کښې چه کوم د رسالت په مقدمه کښې اختلاف دے - چه په

حکم دَ سرکار زهٔ دَ دے مدُعی یم او تاسو مُنکر یئ، او دا مقدمه دَ احکمُ الحاکمین په اجلاس کښے حُما په حق کښے دا سے فیصله شوے ده، چه حُما په دے دعوے باندِ کافی ثبوت او دلیل یعنی معجز قرآن ئے پخپله قائم کړے دے، او تاسو بیا هم نه منئ) نو آیا (تاسو دا غواړئ چه دے خدائی فیصلے لره پوره او نه گنړم او) دَ الله نه سِوَا څوک بل فیصله کونکے تلاش کړم حال دا دے چه هغه دا سے (کامله فیصله) کړے ده چه هغهٔ یو کتاب (چه په خپل اعجاز کښے کامل (دے) تاسو ته رالیګلے دے۔ (چه دَ خپل اعجاز په وجه په نبوّت باندِ پوره دلیل دے۔ پس دَ دے دوه کمالونه خو دا دی چه مُعجز دے او نازل دے دَ الله تعالیٰ دَ طرف نه، او دَ دینه علاوه په نورو وجهو سره هم کامل دے۔ او چه دے پورے چه کوم نور مقصد ونه دَ تعلیم او هدایت متعلق دی دَ هغوی دَ پاره کافی دے، چنانچه دَ دهٔ (یو دریم) حال (دَ کمال) دا دے چه دَ دهٔ مضامین (کوم چه دَ دین په باره کښے اهم دی) ښهٔ صاف صاف بیان کړی شوی دی او (څلورم صفت دَ کمال دَ دهٔ دا دے چه په تیرو کتابونو کښے دَ دهٔ خبر ورکړے شوے وه چه دا دَ ده دَ یو ډیر مهتم بالشان کید و ښنه ده، چنانچه) کومو خلقو ته چه مونږ کتاب (یعنی تورات انجیل) ورکړی دی هغه دوی په یقین سره پیژنی چه دا (قرآن) ستا دَ رب دَ طرف نه په حقیقت سره نازل شوے دے (په دے پوهه خو تول دی، بیا په دا کښے چه دَ حق کوئی صفت وَه هغوی ښکاره هم کړه او کوم چه عنادکړو، وَو هغوی نه ښکاره کو لهٔ) پس ته دَ شک کونکو نه مَه کیږه او (پنځم دَ کمال صفت دَ دهٔ دا دے چه) ستا دَ ربّ (دا) کلام دَ واقعیّت او اعتدال په اعتبار سره (هم) کامل دے (یعنی په علومو او عقیدو کښے ئے واقعیّت او په ظاهرو او باطنی عملونو کښے ئے اعتدال دے، او شپږم صفت دَ کمال دَ دهٔ دا دے چه) دَ دهٔ (دے) خبرے لره څوک بدلوونکے نیشتے (یعنی په دے کښے دَ تحریف او تبدیلئ کولو نه الله پاک دَ دهٔ حفاظت کوی: وَاِنَّا لَهٗ لَحٰفِظُوْنَ) او (سره دَ دومره کامل دلیل نه چه بیا هم څوک دَ ذرهٔ نه پادَ ژبے نه دَ دے تکذیب او کړی) هغه (یعنی الله تعالیٰ دَ دوی خبرو لره ښهٔ آوری (او دَ دوی عقیدو لره) ښهٔ پیژنی (په خپل وخت به دوی لره کافی سزا ورکړی) او (سره دَ دا ضحو دلیلونو نه) په دنیا کښے زیات خلق دا سے

(منکر او ګمراه) دي، چه که (بالفرض) ته د دوي خبره او منې نو دوي به تا لره د الله تعالی د (ښيغې) لارې نه بې لارې کړي (ځکه چه دوي پخپله ګمراهان دي لکه چه په عقيده وکښې) دوي محض په بې اصله خبرو خيالاتو باندې چليږي او (په خبرو کښې) بالکل قياسي خبرې کوي (او د دوي په مقابله کښې بعضې بندګان د خدائے په لارې باندې هم دي او) په يقين سره ستا رب دوي لره (هم) ښه پيژني کوم چه د ده په (خوږلې شوې ښيغه) لارې باندې چليږي (پس ګمراهانو ته به سزا ملاؤ شي او د ښيغې لارې والو ته انعام او اکرام)۔

# مَعلومَات او مَسَئلے

په تيرو اياتونو کښې د دې خبرې ذکر وه چه د مکې مشرکان د نبي کريم صلے الله عليه وسلم او قرآن په حقوالي او صحيح والي باندې د ښکاره ښکاره معجزو او د ليلونو ليد واو پوهيدو باوجود د ناپامئ نه دا مطالبې کوي: فلانئ فلانئ معجزې که مونږ ته او خودلې شي نو مونږ منلو ته تيار يو، قرآن کريم د دوي د ناپامئ دا جواب ورکړو چه کومې معجزې دوي اوس کتل غواړي زمونږ د پاره د دې ښکاره کول هم څه مشکل نه دي ليکن دا نا پامه خلق به د دې د ليد و نه پس هم د سرکشئ نه واپس نه شي، او د قدرت د قانون لاندې به د دې نتيجه بيا داوي چه په دوي تولو به عذاب راشي ۔

په دې وجه رحمة للعلمين صلے الله عليه وسلم د دوي د غوښتلو شوؤ معجزو د ظاهر د لو نه د شفقت په بنا باندې انکار اوکړو۔ او کومې معجزې او دليلونه چه تر اوسه پورې دوي ته راغلي وُو په هغوي کښې ئې د غوړ کولو طرف ته دوي له دعوت ورکړو۔ په ذکر شوو اياتونو کښې د هغو دليلونو بيان دے په کومو چه بديهي طور سره د قرآن کريم حقوالے او کلام الٰهي والے ثابت دے ۔

په اوّل ايت کښې چه کوم ارشاد فرمائيلے دے د دې نچوړ دا دے چه ځما او ستاسو په مينځ کښې په مقدمه د رسالت او نبوّت کښې چه کوم اختلاف دے (ځ) ئې دعوه کوم او تاسو ترې انکار کوئ او دا مقدمه د احکم الحاکمين

په اجلاس کښې تماپه حق کښې داسې فیصله شوې ده چه تماپه دې دعوې باندې
کافي ثبوت او دلیل پخپله د قرآن اعجاز دې کوم چه د دُنیا ټولو قومونو ته
چیلنج ورکړې دې چه که د دهٔ په دې خبره کښې ستاسو څهٔ شک شُبهٔ
وي چه دا د الله تعالیٰ کلام نه دې نو د دهٔ د یو ورکوټي شان سورت
یا ایت مقابله اوکړئ او ښایئ - چه د دې د جواب نه ټول عرب عاجزه
شو - او هغه خلق کوم چه نبي کریم صلی الله علیه وسلم او اسلام لره د کمزورۍ
کولو د پاره خپل ځان، مال، اولاد، عزت هرڅهٔ قربانول، په دوی کښې یو
هم داسې اونه کړې شو چه د قرآن د مقابلې د پاره ئې یو ایت د وه پیش
کړی وې - نو آیا دا ښکاره معجزه د حق د قبلولو د پاره کافي نه ده؟ چه
یو اُمّي چا چه چرته هم څهٔ تعلیم نه وهٔ کړې - د دهٔ د پیش کړی کلام د
مقابلې نه ټول عرب بلکه ټول جهان عاجز شو - دا په حقیقت کښې د احکم
الحاکمین په عدالت کښې د دې مقدّمې واضحه فیصله ده - چه نبي کریم
صلی الله علیه وسلم د الله برحق رسول او قرآن د الله جلّ شانه کلام
برحق کلام دے

په اوّلنی ایت کښې د دې متعلق فرمائي : أَفَغَيْرَ اللَّهِ أَبْتَغِي حَكَمًا : یعنی
آیا تاسو دا غواړئ چه د الله تعالیٰ د دې فیصلې نه پس څه څهٔ بل فیصله
کوُنکی لره تلاش کړم، دا نه شي کیدې - د دې نه پس ئې د قرآن کریم
یو څو داسې خصوصیات ذکر کړی دي، چه پخپله د قرآن کریم د حقوالي
او د کلام الهٰی والي ثبوتونه دي - مثلاً فرمائي : هُوَ الَّذِي أَنْزَلَ إِلَيْكُمُ
الْكِتَابَ مُفَصَّلًا : چه په دې کښې د قرآن کریم د څلورو خاصو کمالونو بیان
دے - اوّل دا چه دغه د الله د طرف نه نازل کړې شوې دې، دوئیم دا
چه دغه یو کامل او معجز کتاب دې چه ټول جهان د دهٔ د مقابلې نه عاجز
دې - دریم دا چه ټول اهم او اُصولی مضامین په دې کښې ډیر په تفصیل
سره واضحه بیان کړی شوي دي، څلورم دا چه د قرآن کریم نه وړاندې اهلِ
کتاب یهود او نصاریٰ هم په یقین سره پوهیږي چه قرآن د الله تعالیٰ د
طرف نه نازل کړې شوې حق کلام دے - بیا په کوموکښې چه د حق د دُنیا او

حق والی رشتونوالی څهٔ صفت وه هغوی ده لره ظاهرهم کړو او کوم خلق چه نا پامه وو هغوی سره د یقین نه هم د دے اظهار نه کولو۔

د قرآن کریم د دے غلوروصفتونو بیانو لونه پس نبی کریم صلے الله علیه وسلم ته خطاب دے؛ فَلَا تَكُونَنَّ مِنَ الْمُمْتَرِينَ؛ یعنی د دے بنکاره دلیلونو نه پس ته د شک کونکونه مه کیږه - دا بنکاره خبره ده چه نبی کریم صلے الله علیه وسلم په هیڅ وخت کښے هم نه په شک کونکو کښے وه او نه کیدے شو۔ لکه چه پخپله د نبی کریم صلے الله علیه وسلم ارشاد په تفسیر ابن کثیر کښے دے چه "نهٔ ما چرته شک کړے دے او نه چرته سوال" معلومه شوه چه دلته په لفظونو کښے اګرچه خطاب نبی کریم صلے الله علیه وسلم ته دے، لیکن په حقیقت کښے نوروته آورول مقصود دی۔ او د دوی طرف ته ئے په اسناد کولو سره مبالغه او تاکید کول منظور دی۔ چه کله نبی کریم صلے الله علیه وسلم ته دا سے اوویلے شو، نو د نورو څهٔ حستی ده چه څهٔ شک په کښے اوکړی -

په بل ایت کښے د قرآن حکیم د نورو دوه دوه امتیازی صفتونو بیان دے کوم چه د قرآن کریم د کلام الٰهی والی کافی ثبوت دے۔ ارشاد دے؛ تَمَّتْ كَلِمَتُ رَبِّكَ صِدْقًا وَّعَدْلًا لَا مُبَدِّلَ لِكَلِمٰتِهٖ؛ یعنی ستا د رب کلام کامل دے د رشتونوالی، انصاف او اعتدال په اعتبار سره د دهٔ کلام لره څوک بدلونکے نیشته -

په لفظ د؛ تَمَّتْ؛ کښے د کاملید و بیان دے - او د؛ كَلِمَتُ رَبِّكَ؛ نه مراد قرآن دے (بحر محیط عن قتادة رض)

د قرآن کریم ټول مضامین دوه قسمه دی۔ یو هغه په کومو کښے چه د تاریخ عالم عبرت ناک واقعات او حالات او په نیکو عملونو وعده او په بدو عملونو د سزا بیان دے۔ دویم هغه په کومو کښے چه د انسان د اصلاح او کامیابئ د پاره احکام بیان شوی دی۔ د دے دواړو قسمونو متعلق په قرآن مجید کښے دا دوه صفتونه بیان شوی دی؛ صِدْقًا وَّعَدْلًا؛ د صدق تعلق د اول قسم سره دے۔ یعنی څومره واقعات او حالات

یا وَعده او وعِید چه په قرآن کښې بیان شوی دی هغه ټول رشتو نی او صحیح دی- په هغې کښې د هیڅ غلطئ امکان نیشته - او وَعدل تعلق د دویم قسم یعنی احکامو سره دے - چه مطلب ئے دا دے چه د الله جل شانهٔ ټول احکام په عدل بانډې مَبنی دی، او په لفظ دَ عدل کښې دوه معنے دی یوه انصاف چه نه دے کښې په چا ظلم او دَچا حق وهل نه وی - دویم اعتدال یعنی میانه روی چه نه بالکل دَ انسان دَ نفسانی خواهشا تو تابع وی، او نه دا سے چه دَ انسان جذبات او دَ دهٔ فطری خواهشونه ئے برداشت نه کړے شی - نو دَ دے مطلب دا شو چه دَ الله تعالیٰ ټول احکام په انصاف او اعتدال بانډې مبنی دی، نه په دے کښې په چا ظلم شته او نه پکښې څهٔ سختی او تکلیف شته چه انسان ئے برداشت کولے نه شی - لکه چه بل ځائے ارشاد دے : لَا یُکَلِّفُ اللّٰهُ نَفْسًا اِلَّا وُسْعَهَا ، یعنی الله تعالیٰ په چا بانډې دَ دهٔ دَ قدرت او طاقت نه سِوا څهٔ عملی تکلیف نه اچوی " دے سره ئے په دے ایت کښې لفظ دَ : تمّت : راوړو دا ئے هم او خوده چه صرف دا نه ده چه په قرآن شریف کښې دَ صدق او عدل صفتونه موجود دی بلکه هغهٔ په دے صفتونو کښې په هر حیثیت سره کامل او مکمّل دے -

او دا خبره چه ټول قرآنی احکام دَ ټولو قومونو دَ دُنیا دَ پاره او ترقیامته پورے دَ راتلونکو نسلونو او بدلیدونکو حالاتو دَ پاره په انصاف بانډې مبنی دی او په اعتدال بانډې هم - دا که لږ شان هم غور او کړے شی نو دا صرف دَ الله تعالیٰ په احکامو کښې کیدے شی، دَ دُنیا یوه قانون جوړونکے اسمبلی دَ ټولو راتلونکو او موجوده حالاتو نه پوره اندازه لګولے شی او نه دَ دغو ټولو حالاتو دَ رعایت ساتلو سره څهٔ قانون جوړ وَلے شی - هر مُلک او قوم دَ خپل ملک او قوم هم صرف دَ موجوده حالاتو پیش نظر قانون جوړه وی، او په دغو قوانینو کښې هم دَ تجربے کولو نه پس د یر خیزونه دَ عدل او اعتدال خلاف او کنړلے شی نو بَدْ لَوَلے شی- دَ نورو قومونو او نورو ملکونو یا دَ راتلونکو حالاتو پوره رعایت کول او دا سے قانون جوړ وَل چه په هر قوم هر ملک او هر حال کښې دَ عدل او اعتدال

په صفتونو پوره دی د انسانی فکر او نظر نه بالاتر ده - صرف د الله جلّ شانهٗ په کلام کښے کیدے شی - په دے وجه دا پنځم صفت د قرآن کریم وے چه په دے کښے بیان شوی تیر او راتلونکی ټول واقعات او وعده او وعید ټول رشتونی دی - په دے کښے د واقع نه د خلاف کید و ادنیٰ قدرے شبهٔ نه شی کیدے - او په دے کښے بیان شوی ټول احکام د ټولے دُنیا او قیامته پورے د راتلونکو نسلونو د پاره په عدل او اعتدال سره پوره دی - نه په دے کښے په چا څهٔ ظلم شتے او نه د عدل او اعتدال نه پکښے څهٔ د ویښته قدرے تجاوز شتے - دا په خپل ځائے د قرآن د کلام اِلٰهی والی مکمل ثبوت دے -

شپږم صفت ئے دا بیان کړے دے چه: لَا مُبَدِّلَ لِكَلِمٰتِهٖ: یعنی د الله تعالیٰ د کلمو څوک بدلوونکے نیشته - د بدلولو یو صورت خو دا کیدے شی، چه څوک په دے کښے غلطی ثابته کړی په دے وجه ئے بدل کړی - یا دا چه څوک دشمن په زبردستئ سره دے لره بدل کړی - د الله تعالیٰ کلام د دے ټولو خبرو نه بالاتر او پاک دے - د دهٔ پخپله وعده فرمائیلے ده اِنَّا نَحْنُ نَزَّلْنَا الذِّكْرَ وَاِنَّا لَهٗ لَحٰفِظُوْنَ: یعنی مونږ قرآن لره نازل کړے دے او مونږ د دے حفاظت کوونکی یو، بیا د چا څه مجال دے چه د خدائے حفاظت مات کړی څهٔ تغیر تبدیل په کښے اوکړی - چنانچه څوارلس سوه کاله په دے تیر شو او په هر وخت او هر زمانه کښے د دهٔ مخالف د منونکو نه په شمار کښے ډیر زیات پاتے شوی دی او په قوّت کښے هم - لیکن د هیچا مجال نه دے شوے چه د قرآن په یو زبر زیر کښے څهٔ فرق پیدا کړی - البته د بدلید و یو دریم صورت دا هم کیدے شو، چه پخپله د الله تعالیٰ د طرف نه دے لره منسوخ کړی بدل ئے کړی - په دے وجه حضرت عبدالله بن عباسؓ فرمائی چه په دے آیت کښے دے طرف ته اشاره ده چه نبی کریم صلے الله علیه وسلم آخری پیغمبر او قرآن آخری کتاب دے - د دے نه پس د منسوخ کیدلو هیڅ احتمال نیشته - بلکه چه د قرآن کریم په نورو آیتونو کښے دا مضمون نور هم زیات په وضاحت سره راغلے دے -

په اخر ایت کښې فرمائی: وَهُوَ السَّمِيعُ الْعَلِيمُ: یعنی الله جل شانه دا ټولې خبرې اَورې اَو ری کوم چه دا خلق کوی - او دَ ټولو دَ حالاتو او رازونو نه خبردے - دَ هر یو دَ عمل بدله به دَ هغهٔ مطابق ورکړی -

په دریم ایت کښې الله تعالیٰ نبی کریم صلی الله علیه وسلم ته اطلاع ورکوی چه په زمکه دَ اوسید ونکو بنی ادمو اکثریت په ګمراهئ باند دے، ځکه دَ دوی نه مه یریږه دَ دوی خبره وته غوږ مه کده - قرآن کریم په ډیرو ځایونو کښې دے مضمون لره بیان کړے دے یو ځائے ارشاد دے: وَلَقَدْ ضَلَّ قَبْلَهُمْ أَكْثَرُ الْأَوَّلِينَ: بل ځائے ارشاد دے: وَمَا أَكْثَرُ النَّاسِ وَلَوْ حَرَصْتَ بِمُؤْمِنِينَ: مطلب دا دے چه عادتاً په انسان باند دَ شمار دَ ډیر والی رُعب غالب کیږی او دَ دوی خبره بیا منی په دے وجه نبی کریم صلی الله علیه وسلم ته خطاب اوشو چه:-

"په دُنیا کښې زیات خلق دا سے دی چه که ته دَ دوی خبره او منې نو دوی به تا لره دَ الله دَ لارے نه بے لارے کړی ځکه چه دوی دَ عقیدو او نظریو په لحاظ سره محض په خیالاتو او وهمونو پسے روان دی او په احکامو کښې محض دَ تخمینے او اندازے نه کار اخلی، دَ کوم چه هیڅ بنیاد نیشته:-

لندره دا ده چه دَ دوی دَ شمار دَ ډیر والی نه په رُعب کښې دَ را تلو په وجه دَ دوی دَ موافقت خیال قدرے هم مه کوه، ځکه چه دوی ټول بے اُصوله او بے لارے تلونکی دی - په اخر ایت کښې فرمائی:-

"په یقین سره ستا رب دوی لره ښهٔ پیژنی کوم چه دَ دهٔ دَ لارے نه بے لارے شی او هغو لره هم ښهٔ پیژنی کوم چه دَ دهٔ په لارے چلیږی - پس لکه څنګه چه بد راهانو ته سزا ملاویږی په نیغه لاره تلونکو ته به انعام او اکرام حاصل وی"

فَكُلُوا مِمَّا ذُكِرَ اسْمُ اللَّهِ عَلَيْهِ إِنْ كُنْتُمْ بِآيَاتِهِ

پس تاسو خورئ دَ هغو جانورانو نه چه یاد کړے شوے وی نوم دَ الله په هغې که تاسو دَ هغهٔ په حکمونو

مُؤْمِنِيْنَ ﴿١١٨﴾ وَمَا لَكُمْ اَلَّا تَاْكُلُوْا مِمَّا ذُكِرَ

ایمان لرونکی یئ - او څهٔ وجه ده چه تاسو نهٔ خورئ د هغې جانورانو نه چه نوم پرې

اسْمُ اللّٰهِ عَلَيْهِ وَقَدْ فَصَّلَ لَكُمْ مَّا حَرَّمَ عَلَيْكُمْ

اغستے شوے دے د الله او هغهٔ په تفصیل سره بیان کړی دی تاسو ته هغهٔ چه حرام کړې دی په تاسو

اِلَّا مَا اضْطُرِرْتُمْ اِلَيْهِ ۭ وَاِنَّ كَثِيْرًا لَّيُضِلُّوْنَ

مګر کله چه مجبور شئ د هغې خوراک ته - او ډیر خلق بے لارے کوی په

بِاَهْوَاۗىِٕهِمْ بِغَيْرِ عِلْمٍ ۭ اِنَّ رَبَّكَ هُوَ اَعْلَمُ

خپلو خیالاتو سره بغیر د تحقیق نه - او ستا رب بنهٔ پیژنی د

بِالْمُعْتَدِيْنَ ﴿١١٩﴾ وَذَرُوْا ظَاهِرَ الْاِثْمِ وَ

حد نه زیاتید ونکو لره - او پریږده ښکاره ګناه او

بَاطِنَهٗ ۭ اِنَّ الَّذِيْنَ يَكْسِبُوْنَ الْاِثْمَ سَيُجْزَوْنَ

پټه لره - کوم خلق چه ګناه کوی هغوی زر به سزا بیامومی

بِمَا كَانُوْا يَقْتَرِفُوْنَ ﴿١٢٠﴾ وَلَا تَاْكُلُوْا مِمَّا لَمْ

د خپلو کړو - او مهٔ خورئ د هغو نه یکوموچه

يُذْكَرِ اسْمُ اللّٰهِ عَلَيْهِ وَاِنَّهٗ لَفِسْقٌ ۭ وَاِنَّ

نوم نه وی اغستے شوې د الله او دا خوړل ګناه دے - او

الشَّيٰطِيْنَ لَيُوْحُوْنَ اِلٰٓى اَوْلِيٰۗـِٕــهِمْ لِيُجَادِلُوْكُمْ

شیطانان په زړهٔ کښے اچوی خپلو ملګرو ته چه ستاسو سره جګړه او کړی

وَاِنْ اَطَعْتُمُوْهُمْ اِنَّكُمْ لَمُشْرِكُوْنَ ﴿۱۲۱﴾ ع

او کہ تاسو د دوی خبرہ اُومنلہ نو تاسو بہ هم مشرِکان یئ -

## دَ آیتونو تړون

بیرہ ئے دَ: اِنْ تُطِعْ: پہ الفاظو کینے دَ کمراهانو دَ تابعداریٔ نہ مطلق منع کړے وَہ - وړاندِ دَ دَغے پہ بنا... دَ یو ے واقع پہ یو خاص کار کینے دَ تابعداریٔ کولو نہ منع فرمائی هغہ خاص واقعہ دَ ذبح شوی او غیر ذبح شوی دَ حلالوالی دہ - واقعہ دا دہ چہ کافرانو مسلمانانو لرہ پہ شک کینے غورزَ ول غوښتل چہ دَ الله دَ وژلے شوے جانور خوړنہ خوریٔ او خپل وژلے شوے یعنی ذبح شوے خوریٔ ؛: ابوداؤد او حاکم دَ حضرت عباسؓ نہ دا روایت کړے دے : بعضِ مسلمانانو دا شبہ دَ نبیٔ کریم صلے الله علیه وسلم پہ حضور کینے نقل کړہ ، پہ دے دا آیاتونہ ... : لَمُشْرِكُوْنَ : پورے نازل شو: ابوداؤد او ترمذی دَ ابن عباسؓ نہ دا روایت نقل کړے دے ، دا رنگ پہ لباب کینے دی :

نخو پہ دَ جواب دا دے چہ تاسو مسلمانان یئ دَ الله تعالیٰ حکمونہ مو پہ ځان لازم کړی دی ، او الله تعالیٰ دَ حلالو او دَ حرامو تفصیل خود لے دے پس پہ دے باندِ چلیږئ - پہ حلالو دَ حرامو او پہ حرامو دَ حلالو شک مہ کوئ - او دَ مشرکانو وَسوَسو تہ مہ گوریٔ -

او تحقیق دَ دے جواب دا دے چہ دَ اُصولو دَ ثابتولو دَ پارہ خو عقلی دلیلونہ پکار دی او پس دَ تائید وَ دَ اُصولونہ پہ علمونو او پہ فروعاتو کینے صرف نقلی دلیلونہ کافی دی عقلی دلیلونو تہ ضرورت نیشتے بلکہ بعض وخت مُضِر دی - ځکہ چہ پہ دے سرہ دَ شکونو دروازے پرانستلے کیږی - ځکہ چہ پہ فروعو کینے دَ قطعی دلیل څہ لار نیشتے - البتہ کہ دَ حق طلب کوونکے دَ زړہ تسلّی کول غواړی نو دَ دۂ دَ تسلیٔ دَ پارہ دۂ تہ څہ دلیلونہ او بیانونہ پیش کولو کینے څہ باک نیشتے - لیکن کلہ چہ دا هم نہ وی بلکہ جګړہ کوی ، نو بیا خپل کار کول پکار دی او دَ اعتراض کوونکی طرف تہ خیال نہ دی کول پکار - هاں کہ اعتراض

کوُنکې دَخُهٔ فرعی حکم لهٔ عقلي دَقطعي دليل نه مخالف ثابتول او غواړي نو دَ حق دَ مدعي په ذمه دَ دهٔ جواب کول به وي. ليکن دَ مشرکانو په شبهو کښې دَ دے خبرے احتمال نيشته. په دے وجه په دے جواب کښې صرف مسلمانانو ته په بَره ذکر شوے قاعده بانډِ خطاب دے چه دا سے خرافاتو ته مَه گوري په حق عقيده لري او عمل پرِ کَوئ. په دے بنا بانډِ دلته دَ مشرکانو دَ شبهِ جواب که په وضاحت سره ذکر نه دے نو په دے شبهٔ نشي کيده ے - مگر په دے بانډِ ئې هم دے طرف ته اشاره کړے ده. کوم ځائې چه په: كُلُوْا: کښې: ذُكِرَ اسْمُ اللّٰهِ: او: لَا تَاكُلُوْا: کښې: لَمْ يُذْكَرِ اسْمُ اللّٰهِ: ذکر دے - او دا په عادت سره او په نورو دليلو نو سره معلوميږي چه: ذُكِرَ اسْمُ اللّٰهِ: دَ ذبح په وخت وي او دَ: لَمْ يُذْكَرِ اسْمُ اللّٰهِ: دَ ثابتيدو دوه صورتونه وي. نيشتوالے دَ ذبح او نيشتوالے دَ ذکر په وخت دَ ذبح کښې - پس ټچوړ دَ جواب دَ شبهِ دا شو چه حلالوالے په دوه وُو کارونو بانډِ راځي - يو په ذبح چه پليته وينه تراوځي او دَ پليتئ نه پاک شي چه دغه پليتي سبب دَ منع وه - دويم دَ الله نوم اخستل چه برکت پرِ حاصليږي - او کوم چه په وينه لرونکو جانورانو کښې دَ حلالوالي دَ پاره شرط دے - او دَ يو شي دَ موجود کولو دَ پاره دَ مانع لرے کول، پس دا دواړه کارونه ضروري دے دَ شرط موجود کولو دَ پاره - پس په دے دواړو مجموعه سره حلالوالے ثابتيږي -

## لنډ تفسير

را وهر کله چه بَره دَ کفارو دَنا بعدارئ بد والے معلوم شو) پس ټکوم (حلال) جانور چه (دَ ذبح په وخت کښې) دَ الله نوم (بے دَ شرکت دَ غير نه) واخستے شي دَ دے نه (بے دَ تکلف نه) خورئ (او دغے لره مباح او حلال گڼړئ) که تاسو دَهٔ په حکمونو ايمان لرئ (ځکه چه حلالولو لره حرام گڼړل دَ ايمان نه خلاف دي) او تاسو لره کوم کار (دَ قبيلے دَ عقيدے نه) دَ دے باعث کيدے شي چه تاسو دَ داسے جانور نه نهٔ خورئ ټکوم چه (دَ ذبح په وخت کښې)

دَ الله نوم (بغیر دَ شوکت دَ غیر نه) اِغستے شوے وی حال دا دے چه الله تعالیٰ (په بل آیت کښے) دَ دے ټولو جانورانو تفصیل خودَلے دے کوم لره چه ئے په تاسو حرام کړی دی، مګر هغه هم کله چه تاسو ته سخت ضرورت راشی نو حلال دے او په دے تفصیل کښے دا ذبح شوے دَ الله په نوم داخل نه دے، بیا دَ دے په خوړو کښے دَ عقیدے په لحاظ سره کوم کړانوالے دے او دَ دے خلقو شبهو طرف ته قطعاً نظر مه کوئے ځکه چه) دا یقینی خبره دَه چه ډیر خلق (چه دَ هغوی نه دوی هم دی دَ خپل ځان سره نورو لره هم) دَ خپلو غلطو خیالاتو (په بنا سره) بے دَ څهٔ سند نه ګمراه کوی (مګر ترڅو به په دے کښے دَ دوی خیر وی) په دے کښے هیڅ شك نیشتے چه الله تعالیٰ دَ حد (دَ ایمان) نه وتونکو لره (چه دوی په کښے هم دی) ښهٔ پیژنی (پس په یو وار به ورلوه سزا ورکړی) او تاسو ظاهری ګناه هم پریدئ او باطنی ګناه هم پریدئ (مثلاً په حلال لو دَ حرامو عقیده کول باطنی ګناه دے لکه چه دَ دے عکس هم) بے شکه کوم خلق چه ګناه کوی دوی ته به دَ دوی دَ کړو ډیره زر (په قیامت کښے) سزا ملاؤ شی او دَ داسے جانورانو نه مه خورئ پکوم چه (په ذکر شوے طریقه) دَ الله نوم نه وی اِغستے شوے (لکه مشرکان چه داسے جانورانو لره خوری) او دا کار (یعنی چه دَ الله نوم پرے نه وی اِغستے شوے دَ هغے خوړل) حکم نه منل دی (غرض دا دے چه مَه په پاتے کولو کښے دَ دوی تابعداری کوئ او مَه په کولو کښے) او (دَ دے خلقو شبهو ته په دے وجه نه دی کتل پکار چه) یقیناً شیطانان خپلو (دے) دوستانو (او تابعدارانو) لره (دَ دے شبهو) تعلیم ورکوی چه دوی ستاسو سره (بے کاره) جګړے کوی (یعنی اوّل خو دا شبهه دَ نص نه خلاف دی دویم غرض ئے محض جګړه ده په دے وجه دَ توجه قابلے نه دی) او که تاسو (خدائے مه که) دَ دے خلقو خبره او منله (په عقیدو یا کارونو کښے) نو یقیناً تاسو به مشرکان شئ (چه دَ خدائے په تعلیم به دَ نورو تعلیم لره ترجیح ورکړئ - کوم چه برابر ګنړل ئے هم شرک دے - یعنی دَ دوی خبره منل داسے ناکاره شے دے نو په دے وجه <sup></sup>ورسره مخې ورلو نه هم ځان ساتل پکار دی) -

# مَعلومَات او مَسئلې

په: مَا ذُكِرَ اسْمُ اللهِ عَلَيْهِ: كښې ذبح اختياري او ذبح اضطراري يعنې په غشي، باز، سپي وغيره ښكار كله چه د ورپرېښودو په وخت كښې بسم الله او وائي، او ذكر حقيقي او ذكر حكمي ټول داخل دي - پس د امام ابوحنيفهؒ په نزد يكوم چه بسم الله په هيره سره پاتې كړے شي هغه حُكمًا په: مَا ذُكِرَ اسْمُ اللهِ عَلَيْهِ: كښې داخل دے - البته په قصدًا پاتې كولو سره د امام صاحب په نزد حرا ميږي -

اَوَمَنْ كَانَ مَيْتًا فَاَحْيَيْنٰهُ وَجَعَلْنَا لَهٗ نُوْرًا

آيا هغه څوك، كوم چه مړ وو بيا مونږ ده لره ژوندے كړو او مونږ ده لره وركړو رڼا

يَّمْشِيْ بِهٖ فِي النَّاسِ كَمَنْ مَّثَلُهٗ فِي الظُّلُمٰتِ لَيْسَ

چه كرځي په دے سره په خلقو كښې برابر يدے شي د هغهٔ سره چه حالت د اوي چه پروت وي په

بِخَارِجٍ مِّنْهَا ؕ كَذٰلِكَ زُيِّنَ لِلْكٰفِرِيْنَ

تيارو كښې د هغې نه نهٔ شي وتلے - دغه شان ښائسته كړے شوي دي د كافرانو په

مَا كَانُوْا يَعْمَلُوْنَ (۱۲۲)

نظر كښې د دوي كار و نه -

# لنډ تفسير

داسے سړے چه اول مړ (يعني گمراه) وهٔ بيا مونږ دهٔ لره ژوندے (يعني مسلمان) كړو او مونږ دهٔ لره يو داسے نور (يعني ايمان) وركړو چه د دے سره دے په خلقو كښې گرځي (يعني هر وخت دهٔ سره وي) چه په دَ

سره دے دَ تولو ضَرَرونو نه لکه گمراهی وغیره شوکی چې وی او په آمن او بې فکره وی، نو) آیا داسے سړے (په بد حالئ کښے) دَ هغهٔ سړی په شان کیدے شی دَ چا حالت چه داوی چه حغه (دَ گمراهئ) په تیرو کښے (گیر) وی (او) دَ تلے ترِ نه شی (مراد دا دے چه دے مسلمان نه شی، او دا خبره دَ تعجب نه ده چه کفر سره کړے چه تیارهٔ ده دے څنګه په دے قائم پاتے کیږی، وجه دا ده چه لکه څنګه مؤمنانو ته دَ دوی ایمان ښهٔ ښکاره کیږی) دغه شان کافرانو ته دَ دوی عملونه (دَ کفر وغیره) ښایسته معلومیږی (نو په دے وجه سره دا سرداران دَ مکے چه تا ته عبث فرمائشونه شبُهے او جګړے پیش کوی خپل کفر ورته ښهٔ ښکاره شوے دے ځکه په دغے باندِ اړ دی)۔

# مَعلومَات او مَسئلے

په تیرو آیاتونو کښے اوّل دَ دے ذکر راغلے وه چه دَ اسلام مخالفین دَ نبی کریم صلے الله علیه وسلم او قرآن کریم ښکاره معجزے لیدلو باوجود په ضد او ناراضی سره دَ نوُو نوُو معجزو مطالبے کوی۔ دَ دے نه پس قرآن او خود له چه که دا خلق واقعی دَ حق طلب کوُنکی وے۔ نو کومے معجزے چه دوی په سترګو لیدلی دی هغه دوی لره دَ حق معلومَولو دَ پاره دَ پوره نه هم زیاتے وے۔ بیا دَ دغو معجزو بیان راغے۔

په ذکر شوی آیت کښے په نبی کریم صلے الله علیه وسلم او قرآن باندِ دَ ایمان لروُنکو او دَ کفر او انکار کوُونکو څهٔ حالات او خیالات او دَ دواړو دَ نیک او بد انجام بیان۔ او دَ مؤمن او کافر او ایمان او کفر حقیقت ئے په مثالونو سره ښکاره کړے دے۔ دَ مؤمن او کافر مثال ئے په ژوندی او مړ سره، او دَ ایمان او کفر مثال ئے په رڼا او تیرے سره ورکړے دے دا قرآنی مثالونه دی چه په دے کښے څهٔ شاعری نیشتے۔ دَ یو حقیقت ښکاره کول دی۔

مؤمن ژوندے دے او کافر مَړ دے

په دے مثال کښے ئے مؤمن ژوندے او کافر مَړ خودلے دے۔ وجه دا ده چه انسانانو حیواناتو او نباتاتو کښے اګر چه د ژوند او ژوندګئ قسمونه او شکلونه مختلف دی لیکن د دومره خبرے نه یو پوهه انسان انکار نه شی کولے چه په دوی کښے د هر یو ژوند د څۀ خاص مقصد د پاره دے۔ او قدرت په دوی کښے د دغے مقصد د حاصلولو پوره اهلیت او صلاحیت ایخودے دے د قرآن ارشاد دے: أَعْطَىٰ كُلَّ شَيْءٍ خَلْقَهُ ثُمَّ هَدَىٰ: په دے کښے د دے بیان دے چه الله جل شانهٗ د کائناتو د عالم هر شی لره پیدا کړو، او ده لره ئے چه د کوم مقصد د پاره پیدا کړے وه هغے ته د رسیدو د پاره ئے ده ته پوره خودنه او کړه چه د دے لاندے هر مخلوق د خپل ژوند د وظیفے او د خپلے خپلے ډیوټئ حق ادا کوی۔ په دے عالم کښے زمکه، اوبه، هوا، اور، دغه شان اسمانی مخلوقات او نمر، سپوږمئ، ستوری خپله خپله ډیوټی په پوره شان سره پیژنی خپل فرائض ادا کوی۔ او دا د خپلو فرضو ادا کول په دوی کښے د هر یو شی د ژوند ثبوت دے۔ او په څۀ وخت او څۀ حال کښے چه په دوی کښے څۀ شے خپله ډیوټی ادا کول پاتے کړی نو دے ژوندے نه دے بلکه مړ دے۔ اوبه که خپل کار تنده ماتول او خیړے وغیره لرے کول پاتے کړی نو دی ته بیا اوبه نه شی ویئلے۔ او ورکه سیزل او بلیدل پاتے کړی نو بیا اور نه دے۔ ونه او ګیاه که تو کیدل او لوئیدل او بیا ګل او میوه نیول پاتے کړی نو هغه بیا ونه او ګیاه نه شی پاتے کیدے ځکه چه دوی خپل د ژوند مقصد پاتے کړو۔ نو دوی د یو بے روحه مړی په شان شو۔

د ټولو کائناتو په تفصیل سره د جائزے اخستلو نه پس یو انسان په کوم کښے چه څۀ هم عقل او شعور وی په دے خبره د غور کولو د پاره به مجبور دی چه د انسان د ژوند مقصد څۀ دے؟ او د ده ډیوټی څۀ ده؟ او دا چه که دے خپل د ژوند مقصد پوره کوی نو ده ته ژوندے ویئل لائق دی او که نه ئے پوره کوی نو د یو مړ لاش نه زیات څۀ حقیقت نه لری۔

اوس دا سوچ کول پکار دي چه د انسان د ژوند مقصد څهٔ دے او د دهٔ فرائض څهٔ دي؛ او د دے ذکر شوو اُصولو مطابق دا متعین ده چه که د دے خپل د ژوند مقصد او خپله ډیوټي ادا کوي نو ژوندے دے۔ ورنه د مړو د ټیلو لائق دے۔ کومو بے پوهو او بے عقلو خلقو چه انسان لره د څا نه یوه تهو کیدونکے ګیاه یا یو هوښیار قسم جانور مقرر کړے دے او د دوي په نزد باندې یو انسان، خر او سپي کښے هیڅ فرق نیشته، د دے تهولو د ژوند مقصد دوي خپل نفساني خواهشات پوره کول، خوړل، سکل اُو د دهٔ کیدل، ویخیدل، بیا مړ کیدل مقرر کړي دي، دغه د عقل او شعور د خاوندانو په نزد د مخاطب کولو قابل نه دے۔ د دُنیا هوښیاران خواه د هر مذهب او ملت او هر مکتبِ خیال سره چه تعلق لري د عالم د پیدا کیدو نه تر ننه پورے د انسان په مخدوم کائنات او په اشرف المخلوقات کیدو باندې متفق راغلي دي۔ او دا ښکاره ده چه غوره او اعلیٰ هغه شے ګڼړلے ....... او بللے شي چه د دهٔ د ژوند مقصد اعلیٰ، غوره او بهتر والی کښے اُوچت وي او ممتاز وي۔ او هر د پوهے او عقل خاوند انسان په دے هم پوهه دے چه په خوړلو سکلو، او دهٔ کیدلو ویخیدلو او اوُسیدلو اغوستلو کښے انسان د نورو جانورانو نه څهٔ خاص امتیاز نه لري. بلکه ډیر جانوران د دهٔ نه غوره او زیاته خوري سکي، او د دهٔ نه په غوره قدرتي کپړو کښے پټ دي۔ د دهٔ نه په غوره هوا او فضاء کښے اوسي۔ او تر کومه حده پورے چه د خپلے نفع او نقصان د پیژندو معامله ده په دے کښے هم هر یو جانور بلکه هره وُنه تر یو حده پورے با شعوره دي، د فائده منو څیزونو حاصلول او د مُضرو څیزونو نه د بچ کیدو خاص صلاحیت په خپل ځان کښے لري۔ دغه شان نورو ته د نفع رسولو په معامله کښے خو دے تهولو حیواناتو او نباتاتو قدم په ظاهره د انسان نه هم وړاندے په نظر راځي۔ چه د دوي غوښه، څرمن، هډوکي، پلے، او د دوي نور د ذیلو واخله د بنا خونو او پاڼو پورے هر شے د مخلوق د پاره د پکار راتلو او د دهٔ د ژوند د ضرورتونو د پیدا کولو بے شماره فائدے لري۔

په خلاف دَ انسان نه چه نهٔ دَ دهٔ غوښه په څه کار راځی نه څرمن، نهٔ ویښته نه هډوکی او نه پلے۔
اوس دے ته کتل پکار دی چه په دے حالاتو کښے بیا حضرتِ انسان په څهٔ بناء باندِ دَ کائناتو مخدوم او اشرف المخلوقات کرځی۔ اوس دَ حقیقت پیژندو منزل نزدے راغے، چه لږ شان غور اوشی نو معلومه به شی چه دَ دے تولو څیزونو دَ عقل او شعور رسائی صرف دَ موجوده ژوند او دَ وقتی نفع او نقصان پورے ده او په دے ژوند کښے دوی دَ نورو دَ پاره ځائیده من په نظر راځی۔ دَ دے ژوند نه وړاندِ څهٔ وُو، او ورستو څهٔ را تلونکی دی په دے میدان کښے دَ نباتاتو جماداتو څهٔ چه دَ لویو لویو هوښیارانو جانورانو عقل او شعور هم کار نه کوی، او نه په دے میدان کښے دَ دوی نه څه شے دَ چا دَ پاره په کار را تلونکے یا فائده من کیدے شی۔ بس دا هغه میدان دے پکوم کښے چه مخدوم دَ کائناتو افضل دَ مخلوقاتو لوه کار کول دی۔ او په دے سره دَ دهٔ دَ نورو نه امتیاز واضحه کیږی۔
معلومه شوه چه دَ انسان دَ ژوند مقصد دا دے چه دَ تول عالم په ابتداء او انتها نظر واچولے شی او دَ دے نتیجے او انجام مخے ته کړے شی او دا امتیاز کړے شی چه په مجموعی اعتبار سره کوم شے نفع مند او فائده مند دے او کوم شے مُضِر او تکلیف ورکوونکے دے۔ بیا پخپل عقل او پوهے سره دَ ځان دَ پاره هم دَ فائده مند وڅیزونو دَ حاصلولو او دَ مُضِر وڅیزونو نه دَ بچ کیدو او نورو لره هم دَ فائده مند و څیزونو طرف ته دَ بللو او دَ مُضِر وڅیزونو نه دَ بچ کیدو اهتمام کوی دَ دے دَ پاره چه دَ همیشه راحت او سکون او اطمینان ژوند حاصل شی اوکله چه دَ انسان دَ ژوند دَ مقصد او کمالِ انسانی دا معیاری فائده پخپله حاصلول او نورو ته رسول دی نو اوس دَ قرآن دا مثال پو حقیقت جوړیکی مخے ته راځی۔ چه ژوندے صرف هغه سړے دے کوم چه الله تعالیٰ او دَ هغهٔ په رسول صلے الله علیه وسلم باندِ ایمان راوړی

او دَ عالَم په ابتداء او انتها او دَ دے مجموعے په اعتبار سره نفع او نقصان لره دَ وحئ الٰهی په رنړا کښے او پیژنی - ځکه چه یوائے انسانی عقل نه چې ته دا میدان سر کړے دے او نه ئے سړ کولے شی - دَ دنیا لویو لویو عالمانو عاقلانو حکیمانو فلسفیانو اخر دَ دے اقرار کړے دے - مولانا رومیؒ ځۀ بنیۀ فرمائی: ـه

زیر کانِ موشگافانِ دہی
کردہ ہر خرطوم خطِ ابلہی

(دَ دُنیا لویو لویو هوښیارانو او پوهانو چه څو مره په دے میدان کښے سوچونه او فکرونه چلولی دی په اخر کښے ئې خپل هرڅه بے کاره لیدلی دی)

او کله چه دَ ژوند دَ مقصد په اعتبار سره ژوندے صرف هغه سړے دے کوم چه دَ الله تعالیٰ دَ وحئ تابع او مؤمن وی نو دا هم متعیّنه شوه چه کوم داسے نه دے هغهٔ دَ مړو ویلو حق شیے - مولانا رومیؒ بنیۀ فرمائی: ـه

زندگی از بہر طاعت و بندگی است      بے عبادت زندگی شرمندگی است
آدمیّت لحم و شحم و پوست نیست      آدمیّت جز رضائے دوست نیست

(ژوند دَ پاره دَ فرمانبردارئ او بندګئ کولو دے، بے عبادته ژوند خوشرم دے - انسانیت غوښے چربۍ او پوستکی ته نه شی ویلے انسانیت دا دے چه دوست (یعنی الله تعالیٰ) ته رضا شی)

دا قرآنی مثال وه دَ مؤمن او دَ کافر چه مؤمن ژوندے او کافر مړ دے دویم مثال ئے دَ ایمان او کفر دَ رنړا او تیرے سره ورکړے دے -

| ایمان نور دے او کفر تیارۀ ده | ایمان ته ئے نور یعنی رنړا او کفر ته ئے ظلمت یعنی تیارۀ ویلے ده - که لږ غور او کړے شی نو دا مثال هم ځۀ خیالی |
|---|---|

مثال نه دے - دَ یو حقیقت بیان دے - دلته هم دَ رنړا او تیارے په اصل مقصد چه غور او شی نو حقیقت به مخے ته راشی - چه دَ رنړا مقصد دا دے چه دَ دے په ذریعه دَ نزدے او لرے خیزونه اولیدے شی - چه دَ دے په ذریعه دَ فائده مند و خیزونو دَ حاصلولو او مُضرو خیزونو نه ځان ساتلو موقع ورته ملاؤ شی -

او س ایمان ته او کوری چه حغه یو نور دے چه رنړائی په ټولو اسمانونو او زمکه او کړے تاموونه دَ باطن په حغو ټولو څیزونو خوره ده۔ صرف دا یوه رنړا ده چه دَ ټول عالم دَ انجام او دَ ټولو کارونو صحیح نتیجے خوډلے شی۔ دَ چا سره چه دا نور وی حغهٔ پخپله هم دَ ټولو نقصانی او ضرری څیزونو نه بچ کیدے شی۔ او نورو لره هم بچ کولے شی۔ او چا ته چه دا رنړا حاصله نه وی دے پخپله په تیارو کښه دے۔ دَ ټول عالم او پوره ژوند په اعتبار سره چه کوم شے نفع مند او کوم مضر دے دَ دے هیڅ فرق نه شی کولے۔ صرف ورسره نحت څهٔ څیزونه به په لاس ورتوړ وهٔ پیژندے شی۔ دَ موجوده دُنیا دَ ژوند دا خواؤشا ماحول دے۔ کافر دا ژوند او ګډے نفع نقصان خو پیژندے شی، لیکن دَ دوستو راتلونکی پوره ژوند دهٔ ته هیڅ خبر نیشته۔ او نهٔ دے دَ حغے په نفع نقصان باندے څهٔ پوهه دے۔ قرآن کریم دَ دے مضمون دَ پاره ارشاد فرمائی:-

یَعۡلَمُوۡنَ ظَاهِرًا مِّنَ الۡحَیٰوةِ الدُّنۡیَا وَهُمۡ عَنِ الۡاٰخِرَةِ هُمۡ غٰفِلُوۡنَ: "یعنی دا خلق ظاهری دَ دُنیا ژوند او ګډے کره کوته خو پیژنی مګر دَ آخرت نه قطعاً غافله دی"

په بل یو آیت کښے دَ تیرو منکرو او کافرو امتونو دَ ذکر کولو نه پس قرآن کریم فرمائی: وَکَانُوۡا مُسۡتَبۡصِرِیۡنَ: یعنی دَ آخرت په معامله کښے دا سے سخت غفلت او بے عقلی کوونکی په دے دُنیا کښے ناپوهه او بے عقله نهٔ وُو، بلکه روشن خیال خلق وُو۔ لیکن دے ظاهری او سرسری روشن خیالئ صرف دَ دنیا دے څو ورځے ژوند لره ښائسته کړے وهٔ، دَ آخرت د هیشه ژوند دَ پاره ئے هیڅ کار او نه کړو۔

دَ دے تفصیل آورید ونه پس دَ قرآن مجید دغه ذکر شوے آیت بیا یو ځل راولوئ:-

اَوَمَنۡ کَانَ مَیۡتًا فَاَحۡیَیۡنٰهُ وَجَعَلۡنَا لَهٗ نُوۡرًا یَّمۡشِیۡ بِهٖ فِی النَّاسِ کَمَنۡ مَّثَلُهٗ فِی الظُّلُمٰتِ لَیۡسَ بِخَارِجٍ مِّنۡهَا: "مطلب دا دے چه حغه سړے کوم چه مخکښے مړهٔ یعنی کافر وهٔ۔ بیا مونږ حغهٔ لره ژوندے کړو، یعنی مسلمان مو کړو۔ او

مونږ دَ هٔ ته یو داسے نور یعنی ایمان ورکړ و چه دے په هغې سره په خلقو کښے ګرځي' دَ هغې سرې سره برابر کیدے شي - چه مثال ئې داسے دے چه هغهٔ په قسم قسم تیرو کښے کیو وی چه دَ وَتلو ترِ نه وی - یعنې دَ کفر په تیرو کښے اخته دے - دے پخپله خپله نفع نقصان نهٔ پیژنی او دَ هلاکت نه نه شی بچ کیدے 'نو نورو ته به څهٔ نفع اورَسوی -

**دَایمان دَ نوُر فائدهٔ نورو ته هم رَسی**

په دے ایت کښے ئې : نُوْرًا یَّمْشِیْ بِهٖ فِی النَّاسِ ؕ او فرمائیل دے طرف ته ئې هم هدایت کړے دے - چه دَ ایمان نور صرف دَ جمات ، خانقاه ، یا کوټې او حجرے سره مخصوص نه دے - چا لره چه الله تعالیٰ دا نور ورکړے دے هغوی دے لره دَ خلقو هر مجلس او هره جمع ته رَسوی ، او هرځائې دَ دے دَ رنړا نه پخپله هم فائده اخلی او نورو ته هم ترِ فائده رَسوی - نوُر په هیڅ تیارے سره نه شي پټیدے لکه چه لیدے شي چه یوه نرئ نرئ رنړا کونکے دیوه هم په تیارے کښے بنکاریګی او پټیږی نه - اګر که رنړا ئې لرے نه رَسی - چه رنړا تیزه وی نو لرے ته رَسی - چه کمه وی نو لږ ځائې رنړا کوی مګر په تیارے باندِ په هر حال غالبه وی - هغهٔ خو رنړا نه وی چه په تیارے باندِ کمزورے شي - دغه شان هغه ایمان نه دے چه دَ کفر نه مغلوب یا مرعوب شي - دا دَ ایمان نوُر دَ انسان دَ ژوند په هرَ شعبه هر حال هر وړ کښے دَ دهٔ سره دے -

دغه شان په دے مثال کښے یوه بله اشاره دا هم ده چه څنګه دَ رنړا فائده هر انسان او حیوان ته په اِراده یا بے دَ ارادے نه په هر حال کښے څهٔ نه څهٔ رَسی - فرض کړه چه نه دَ رنړا خاوند دا غواړی چه بل ته دے ځما دَ دے رنړا نه څهٔ فائده اُورَسی ، او نه بل په دے اراده سره راوتلے وی چه دَ دهٔ دَ رنړا نه څهٔ فائده واخلی - مګر کله چه رنړا دَ چا سره وی نو دَ دے نه بے اختیاره او قدرتی طور باندِ تولو ته فائده رَسی - دغه شان دَ مؤمن دَ ایمان نه نورو ته هم څهٔ نه څهٔ فائده رَسی خواه دے پرِ پوهیګی او که نه -

په اخر ایت کښے ارشاد فرمائی : کَذٰلِکَ زُیِّنَ لِلْکٰفِرِیْنَ مَا کَانُوْا یَعْمَلُوْنَ ؕ یعنی دَ دے واضحو او بنکاره ؤود لیلو نو با وجود کوم منکران او کافران چه خبره

نه مینځ دَ حقې وجه داده چه "هر سړے په خپل خیال کښې ځانته کامل وائی" شیطان او نفسانی خواهشاتو دَ دوی په نظر ونو کښې دَ دوی بد عملونه دویته ښکلی او ښائسته جوړ کړی دی، چه دا دَ دوی سخته غلطی ده۔ (نعوذ بالله منه)

---

وَكَذٰلِكَ جَعَلْنَا فِىْ كُلِّ قَرْيَةٍ اَكٰبِرَ مُجْرِمِيْهَا لِيَمْكُرُوْا

او دا رنګ کړی دی مونږ په هر کلی کښې دَ ګناه ګارانو سرداران چه حیلې کوی

فِيْهَا ۚ وَمَا يَمْكُرُوْنَ اِلَّا بِاَنْفُسِهِمْ وَمَا يَشْعُرُوْنَ ﴿۱۲۳﴾

حلته۔ او کوم حیلې چه کوی نو دَ خپل ځان دَ پاره کوی او سوچ نه کوی۔

وَاِذَا جَآءَتْهُمْ اٰيَةٌ قَالُوْا لَنْ نُّؤْمِنَ حَتّٰى نُؤْتٰى

او کله چه راشی دوی ته څۀ نښه نو وائی چه مونږ هرګز نه منو تر څو چه رانۀ کړے شی مونږ

مِثْلَ مَآ اُوْتِىَ رُسُلُ اللّٰهِ ؕ اَللّٰهُ اَعْلَمُ حَيْثُ يَجْعَلُ

ته په شان دَ هغو چه ورکړے شوی دی دَ الله رسولانو ته۔ الله ښۀ پیژنی هغې موقع لره کوم ځائے چه لیږی

رِسٰلَتَهٗ ؕ سَيُصِيْبُ الَّذِيْنَ اَجْرَمُوْا صَغَارٌ

خپل پیغام۔ ژر به اورسی ګناه ګارانو ته ذلت

عِنْدَ اللّٰهِ وَعَذَابٌ شَدِيْدٌۢ بِمَا كَانُوْا

دَ الله دَ طرف نه۔ او عذاب سخت په دے وجه سره چه دوی

يَمْكُرُوْنَ ﴿۱۲۴﴾ فَمَنْ يُّرِدِ اللّٰهُ اَنْ يَّهْدِيَهٗ

مکر کاوه۔ پس چا لره چه الله غواړی چه هدایت ور ته اوکړی

وقف لازم
وقف منزل

يَشْرَحْ صَدْرَهٗ لِلْاِسْلَامِ ۚ وَمَنْ يُّرِدْ اَنْ يُّضِلَّهٗ

نو او سپړی سینه د ده دپاره د قبلولو د اسلام - او چا لره چه غواړی چه ګمراه ئے کړی

يَجْعَلْ صَدْرَهٗ ضَيِّقًا حَرَجًا كَاَنَّمَا يَصَّعَّدُ فِي السَّمَآءِ ؕ

نو کړی سینه د ده تنګه ډیره تنګه چه ګویا دے په زور سره ختوی آسمان ته -

كَذٰلِكَ يَجْعَلُ اللّٰهُ الرِّجْسَ عَلَى الَّذِيْنَ لَا يُؤْمِنُوْنَ ﴿۱۲۵﴾

دغه شان راولی الله عذاب لره په ایمان نهٔ راوړونکو باندې -

# لنډ تفسير

او ر دا خبرهٔ نوے خبره نه ده لکه څنګه چه د مکے سرداران دا جهونه کوی او د دے په اثر سره نور خلق شا مليږی په کښے) دغه شان مونږ ره په وړاندې امتونو کښے هم) په هر کلی کښے د هغهٔ ځائے سرداران نو لره (اول) د جرمونو کونکی جوړ کړه (بیا د دے په اثر سره نور عوام هم د دوی سره ملاؤ شو) د دے دپاره چه دغه خلق هلته (انبیاؤ ته د ضرر د سولو د پاره) شرارتونه اوکړی (چه په دے سره د دوی د عذاب مستحق کيدل بنهٔ ثابت شی) او هغه خلق (اګرچه څپل خيال کښے نورو ته ضرر د سوی ليکن په واقع کښے) د څپل ځان سره شرارت کوی (ځکه چه د دے وبال به دوی ته رسی) او (په انتهائی جهل سره دوی ته (د دے) هيڅ خبر هم نيشتے او (د دے مکے د کافرانو جهل او جرم دے حد ته رسيدلے دے چه) کله دوی ته څهٔ نښه راشی نو (سره د دے چه هغه د څپل اعجاز په وجه سره د نبوت کافی دليل وی، مګر دا خلق بيا هم) دا سے وائی چه مونږ (په دے نبی باندې) هرګز ايمان نه راوړو ترڅو چه مونږ ته هم داسے شے رانه کړے شی کوم چه د الله رسولانو ته ورکولے شی (يعنی وحی خطاب او يا صحيفه او کتاب پکوم کښے چه مونږ ته په تاباندئ د ايمان راوړو حکم وی، او د دے دنيا لوئے جرم والے ښکاره دے، چه دوی غوښتنه کول عناد او تکبر او ګستاخی

تول پکښې شامل دی، ورا ندِ الله تعالیٰ دے ویناله ردکوی فرمائی چه) د دے موقع له خوخدائے پاک بنهٔ پیژنی کوم ځائے ته چه هغهٔ خپل پیغام رد وی په ذریعه سره) لیږی (نو آیا هرکس اوناکس دَ دے شرافت قابل شوه داخو چه خدائے چاله ورکوی دَ هغهٔ اختیار دے؛ دوړاندِ دَ دے جرم دَ سزا بیان کې چه) ډیرزر به دے خلقو ته چاچه داجرم کړے دے خدائے پاک ته په رسیدو ربعق په آخرت کښې) ذلت اورسی رځکه چه دوی خپل ځان له دَ نبی په مقابله کښې دَعزت اونبوت مستحق کنړلے وَه) او سخته سزا (به ورته ملاؤ شی) دَدوی دَ شرارتونو په مقابله کښې پس (رېږه چه کوم دَ مؤمن او کافرحَ حال ذکر دے دَ دے نه دا معلومه شوه چه) کوم سړی له الله تعالیٰ (دَ نجات) په لاره باندِ روانول غواړی دَ هغهٔ سینه (یعنی زړهٔ) دَ اسلام (قبلولو) دَ پاره اوسپړی (چه دَ دے په قبلولو کښې پس وپیش نه کوی او هغه نوُر دَ کوم چه ذکرشوے دے دا دے) او چاله چه (تکوینًا او تقدیرًا) بے لارے ساتل غواړی دَ هغهٔ سینے له (یعنی زړهٔ له دَاسلام قبلولو نه) تنګه (او) ډیره تنګه کړی (او دهٔ ته اسلام راوړل داسے مصیبت بنکاری) لکه څوک چه (فرض کړه) آسمان ته ختل غواړی او ختلے نه شی زړهٔ ئے تنګیږی او په یو مصیبت کښې پریوځی پس څنګه چه دا سړے نه شی ختلے) دغه شان الله تعالیٰ په ایمان نه راوړونکو باندِ (چونکه دَدوی دَ کفر او شرارت په سبب) غضب اچوِی (په دے وجه په دوی ایمان نه شی راوړے) -

# مَعلومَات اومَسئلے

دَ تیرآیت په آخرکښې ذکروَه چه دا دُنیا دَ امتحان کور دے، دلته چه څنګه دَ ښو او نیکو عملونو سره څهٔ محنت اومشقت لګید لے وی، دَدوی په لاره کښې دلته بندیز ونه مخے ته راځی، دغه شان دَ بدو عملونو سره دَ څو ورځو نفسانی خوند وند او خواهشونه دَ غلولو دَ پاره وی. کوم چه دَ حقیقت او انجام نه دَ غافل انسان په نظر کښې دَ دهٔ بدُ عملونه ښائسته کوی - او دَ دنیا لوئے لوئے هوښیاران په دے کښې اخته کیږی -

دَذکر شوِو ایاتونو نه په اوّلنی ایت کښې دَدے بیان دے چه دَدے امتحان او ازمائیښ یو رُخ دا هم دے چه دَ دُنیا دَ پیدا کید و نه هم دَغسے وار روانه دَه چه دَ هر کلی سرداران او مالداران او لوئے خلق دَ حقیقت او انجام نه غافله په دے فانی خوند ونو کښې مست شی جُرموِنه کوی ، او دَ عوامو عادت داوی چه په لویو خلقو پسے تلل او دَ هغوی نقل کول خپله نیك بختی گنړی - او انبیآء علیهم السلام او دَ دوی نائبین عالمان او مشائخ کوم چه دوی له دَ دوی دَ بدو عملونو نه منع کول او دَ دوی دَ انجام طرف ته متوجّه کول غواړی دالوئے خلق دَ دوی خلاف قسم قسم شرارتونه کوی، کوم چه په ظاهر کښې خو دَ دے بزرگانو خلاف شرارتونه او سازشونه او دَ زړه آزار دَ لوسامان وی، لیکن دَ انجام په اعتبار سره دَ دے ټولو وبال پخپله دَ دوی طرف ته راگرځی ، او اکثر په دنیا کښې هم دا ښکاره کیږی -

په دے ارشاد کښې مسلمانانو ته دَ دے خبر ورکړے شوے دے ، چه دَ دنیا غټانو - سردارانو ، او مالدارانو بیخے دِ نه کوی او په دوی پسے دَ تللو عادت دِ هم پریدی - انجام ته کتل دے خپل شعار جوړکړی او بنهٔ بَد دِ پخپله او پیژنی -

دارنګ نبی کریم صلے الله علیه وسلم ته دا تسلّی ورکول مقصود دی چه دَ قریشو سرداران کوم چه ستا مخالفت ته او دریدلی دی په دے سره تهٔ مه دلگیر کیږه داخهٔ نوے خبره نه ده - دَ تیرو پیغمبرانو علیهم السلامو سره هم دے خلقو داسے کړی دی او اخر هغوی رُسوا او ذلیل شوی دی او دَ الله کلمه اوچته شوے ده -

په دویم ایت کښې دَ دے قریشو دَ سردارانو دَ یو داسے خبرو اترو ذکر دے کوم چه دَ حق په مقابله کښې دَ نا پوهئ او تو تو مسخرو په انداز کښې دے او بیا ئے دَ دے جواب ورکړو -

امام بغویؒ په روایت دَ قتاده نقل کړے دے چه دَ قریشو دَ ټولو نه لوئے سردار ابوجهل یو وار اُووے چه بنو عبد مناف ریعنی دَ نبی کریم صلے الله علیه وسلم خاندان) سرمونږه په هر محاذ مقابله او کړه چه په دے

کښې په هر لحاظ کښې مونږ د دوی نه وروستو نه یُو پاتې شوی، لیکن اوس مونږ داسې وائي چه تاسو په شرافت او بزرګئ کښې زمونږ مقابله څکه نه شئ کولے چه زمونږ په خاندان کښې یو نبي راغلے دے کوم ته چه د الله تعالیٰ د طرف نه وحې راځي، بیا ئې اووے چه زهٔ په الله تعالیٰ قسم خورم چه مونږ به چرې ته د دوی تابعداري او نهٔ کړو ترڅو چه په خپله مونږ ته داسې وحې را نه شي لکه څنګه چه دوی ته راځي په ذکر شوی ایت کښې: وَاِذَا جَآءَتْهُمْ اٰيَةٌ قَالُوْا لَنْ نُّؤْمِنَ حَتّٰى نُؤْتٰى مِثْلَ مَآ اُوْتِيَ رُسُلُ اللّٰهِ: هم دا مطلب دے۔

نبوّت او رسالت کسبي او اختیاري نه دی، بلکه یو عهده ده چه د عطاء کولو اختیار ئې صرف د الله تعالیٰ په لاس کښې دے

قرآن کریم د دې خبرې د نقل کولو نه پس جواب ورکړو: اَللّٰهُ اَعْلَمُ حَيْثُ يَجْعَلُ رِسَالَتَهٗ: یعنی الله تعالیٰ پوهیږی چه هغه خپل نبوّت او رسالت چا ته عطاء کوی۔ مطلب دا دے چه دے بے وقوفه د خپل جهالت نه دا ګنړلے ده، چه نبوّت او پیغمبری د خاندانی شرافت یا د قوم د سردارئ او مال دارئ په ذریعه حاصلیدے شي۔ حال دا دے چه نبوّت د الله تعالیٰ د خلافت عهده ده۔ چه د دے حاصلول د چا په اختیار کښې نه دی۔ د هرڅومره کمالاتو د حاصلولو نه پس هم څوک په خپل اختیار سره یا د کمال په زور سره نبوّت او رسالت نه شي حاصلولے۔ دا صرف د الله تعالیٰ جلّ شانهٔ بخشش او عطاء ده، هغه چه چا له غواړی ورکوی ئې۔

د دے نه ثابته شوه چه رسالت او نبوّت څهٔ کسبي او اختیاري شے نه دے چه په علمي عملي کمالاتو یا مجاهده او ریاضت د غیره سره حاصل کړے شي۔ یو سړے که د ولایت په مرتبو کښې هرڅومره اُوچت لاړ شي خو هم نبوّت نه شي حاصلولے۔ بلکه دا محض د خدائے فضل دے چه د خدائي علم او حکمت تحت خاص بندګانو ته ورکولے شي۔ هاں دا ضروري ده چه کوم سړی ته د الله تعالیٰ په علم کښې دا مقام او عهده ورکول منظور وی، هغهٔ ته د شروع نه د دے قابل پیدا کولے شي، د دهٔ د اخلاقو او عملونو خاص تربیت کولے شي۔

په اخر ایت کښې ارشاد فرمائي: سَيُصِيْبُ الَّذِيْنَ اَجْرَمُوْا صَغَارٌ عِنْدَ اللّٰهِ

وَعَذَابٌ شَدِيدٌۢ بِمَا كَانُوا يَمْكُرُونَ: په دے کښې لفظ دَ صغار حاصلِ مصدر دے چه معنیٔ ئې دَه ذلت او رُسوائي۔ دَ دے جُملے معنیٰ دا دَهٔ چه دا دَ حق مخالفت کوُنکي چه نن دَ خپل قوم مشران او رئیسان دي چیرَ زر به دَ دوی لویٔ او عزت په خاورو کښې ملاوُ شي۔ دوی ته دَ الله تعالیٰ خوا کښې سخت ذلت او رُسوائي رسیدونکي دي۔ او سخت عذاب پرِ راتلونکے دے۔

دَ الله دَ خوا مطلب دا هم کیدے شي چه دَ قیامت په ورځ کله دوی دَ الله تعالیٰ مخے ته حاضر شي نو ذلیل او خوار به حاضر شي او بیا به دوی لره سخت عذاب ورکولے شي۔ او دا معنیٰ هم کیدے شي چه اګر که دا وخت دوی چیرِ عزتمند او رئیسان دي لیکن دَ الله تعالیٰ دَ طرفه دوی ته سخته رسوائي او ذلت رسیدونکے دے، دغه په دُنیا کښې هم کیدے شي او په آخرت کښې هم لکه چه دَ انبیاء علیهم السلامُ دَ مخالفینو متعلق دَ دُنیا تاریخ ګواه دے، چه آخر کار دَ دوی مخالفین په دُنیا کښې هم ذلیله شوی دي۔ زمونږ دَ نبي کریم صلے الله علیه وسلم لوئے لوئے مخالفین چه دَ خپل عزت نغارے ئې غږولے یکو یو شو یا خو په دائره دَ اسلام کښې داخل شوا و کوم چه مسلمانان نه شو نو ذلیل او خوار شوا و هلاک شو، دَ ابوجهل ابولهب قریشي سردارانو وغیره حال دُنیا اولید و، او په فتح مکه باندَ دے ټولو ملاګانے ماتے شوے۔

| په دین کښې دَ سینے سپړدل او دَ دے نښے | په دریم آیت کښې دَ الله تعالیٰ دَ طرف نه دَ هدایت موندونکو او په ګمراهئ دَ پاتے کیدونکو خُمه حالات |
|---|---|

او کښې خودَ لے شوی دي۔ ارشاد فرمائي: فَمَنْ يُرِدِ اللّٰهُ اَنْ يَّهْدِيَهٗ يَشْرَحْ صَدْرَهٗ لِلْاِسْلَامِ: یعنې کوم سړی ته چه الله تعالیٰ هدایت کول او غواړي، نو دَ دَهٔ سینه دَ اسلام دَ پاره اُو سپړي۔

حاکم په مستدرک کښې او بیهقي په شعب الایمان کښې په روایت دَ حضرت عبد الله بن مسعودؓ نقل کړے دے چه کله دا آیت نازل شو نو صحابه کرامو دَ نبي کریم صلے الله علیه وسلم نه دَ شرح صدر یعنې دَ اسلام دَ پاره دَ سینے دَ سپړدلو دَ تفسیر تپوس او کړو نو حضورؐ اوفرمائیل چه الله تعالیٰ دَ مؤمن په زړهٔ کښې یو ه رڼا او غورزَ وي چه په دے سره دَ دَهٔ زړهٔ

دَحقے خبرے آؤریدلو ، پوهیدلو او قبلَوَ لو ته پرانستے شی (حقه خبره په اسانئ سره بیا قبلوِی او دَ خلاف حق نه ئے نفرت اویره وی) صحابه کرامو عرض اوکړو چه آیا دَدے څهٔ نښه هم شته؟ چه په دے سره هغه سړے او پیژندے شی چا ته چه شرح صدر حاصل شوے وی؟ اوئے فرمائیل چه هاں! نښه ئے داده چه دَ دغه سړی تول مینه الخرت او دَ هغے نعمتونو طرفته شی ، دَ دُنیا دَ بے مایه خواهشاتو او فانی خوندونو نه پریږی، او دَ مرګ راتلو نه وړاندِ دَ مرګ تیاری شروع کړی - بیا فرمائی : دَ مَنۡ یُرِدۡ اَنۡ یُّضِلَّهٗ یَجۡعَلۡ صَدۡرَهٗ ضَیِّقًا حَرَجًا کَاَنَّمَا یَصَّعَّدُ فِی السَّمَآءِ : یعنی کوم سړی لره چه الله تعالیٰ په ګمراهئ کښے ساتل او غواړی دَ هغهٔ زړهٔ تنګ او سخت تنګ کړی دهٔ ته دَحقے خبرے قبلول او په دے عمل کول داسے سخت وی لکه یو سړی ته چه آسمان ته ختل ګران وی -

دَ تفسیر امام کلبیؒ فرمائی چه "دَ دهٔ دَ زړهٔ تنګید و مطلب دادے چه په دهٔ کښے دَحق او نیکئ دَ پاره څهٔ لار پاتے نهٔ شی" دا مضمون دَ حضرت فاروق اعظمؓ نه هم نقل دے - او حضرت عبد الله بن عباسؓ فرمائی چه کله دے دَ الله تعالیٰ ذکر آؤری نو دهٔ ته وحشت راځی یعنی تړخیږی تړی او کله چه دَ کفر او شرک خبرے آؤری نو زړهٔ ئے ورسره لګی"-

صحابه کرامو ته په دین کښے شرح صدر حاصل وهٔ څکه ورته شکونه او شبهے دَ پیرے کمے وړاندے راتلے

دغه وجه وه چه صحابه کرامو رضوان الله علیهم اجمعین ته کومو لره چه الله تعالیٰ دَ خپل رسول صلی الله علیه وسلم دَ صحبت او بلاواسطے شاګردئ دَ پاره منتخب کړی وُو، په اسلامی احکامو کښے شبهے او وسوسے ډیرے کمے ته راغلے - په ټول عمر کښے صحابه کرامو چه کوم سوالات دَ نبی کریم صلی الله علیه وسلم په وړاندِ پیش کړهٔ هغهٔ دَ شمار یو څو وُو - وجه داوه چه دَ نبی کریم صلی الله علیه دَ صحبت په فیض سره دَ الله تعالیٰ دَ لوئیئ او محبت جوړ نقش دَ دوی په زړونو کښے ناست وهٔ دَ کوم په سبب چه دوی ته دَ شرح صدر مقام حاصل وهٔ - دَ دوی زړونه خود بخود دَ حق او باطل معیار جوړ شوی وُو - حق به ئے په آسانئ سره فوراً قبلولو ، او باطل دَ دوی په

زړونو کښے لار نه مونده ، او بیا چه څومره د نبی کریم صلی الله علیه وسلم د مبارک زمانے نه لرے کیدل ، شکونو او شبهو لار موندل شروع کړه - د عقیده واختلافات شروع شو -

د شکونو او شبهو لرے کولو اصلی طریقه بحث مباحثه نه ده ، شرح صدر حاصلول دی

او نن پورے دُنیا د دے شکونو او شبهو په ګیره کښے نختلے ده او د بحث مباحثو په ذریعه د دے حل کول غواړی ، کومه چه د دے خبرے صحیح لار نه ده - ؎

فلسفی کو بحث کے اندر خدا ملتا نہیں
ڈور کو سلجھا رہا ہے پر سرا ملتا نہیں

(فلسفی که هر څومره بحث مباحثے کوی خو د دے په ذریعه خدائے لوه نه شی مونده ، مزے خښکه اُسپری چه سَرَئے نه شی مونده ماشوم ورانده)

لار خو هم هغه ده کومه چه د صحابه کرامؓ او د اُمت د مشرانو وه - چه د الله تعالیٰ کامل قدرت او د هغهٔ انعامونه برئے ښیلے مخے ته راوستل - نو د الله تعالیٰ لوئی او محبت هر یو دوی کښے پیدا شو او شبهے به خود به خود لرے شوے - دغه وجه ده چه پخپله قرآن کریم نبی کریم صلی الله علیه وسلم ته د دے دُعا غوښتلو تلقین فرمایلے دے چه : رَبِّ اشْرَحْ لِي صَدْرِيْ یعنی اے پروردګاره زما سینه او سپړه -"

په آخر آیت کښے فرمائی : كَذٰلِكَ يَجْعَلُ اللّٰهُ الرِّجْسَ عَلَى الَّذِيْنَ لَا يُؤْمِنُوْنَ: " یعنی دغه شان الله تعالیٰ په ایمان نه راوړونکو باندِ عذاب غور زوی او حقه خبره د دوی زړهٔ ته نهٔ غورزیګی او هر بدئ ته په منډ ورځی -"

وَهٰذَا صِرَاطُ رَبِّكَ مُسْتَقِيْمًا ۭ قَدْ فَصَّلْنَا الْاٰيٰتِ

او دا لار ستا د رب ده نیغه - مونږ واضحه کړیدی نښو لره

لِقَوْمٍ يَّذَّكَّرُوْنَ ﴿١٢٦﴾ لَهُمْ دَارُ السَّلٰمِ عِنْدَ رَبِّهِمْ

د غور کوونکو د پاره - د دوی د پاره دے د سلامتیٔ کور د دوی د رب سره

وَهُوَ وَلِيُّهُم بِمَا كَانُوا يَعْمَلُونَ ﴿١٢٧﴾ وَيَوْمَ يَحْشُرُهُمْ

او هغهٔ دَ دوی مددګار دے په سبب دَ دوی دَ عملونو - او پکومه ورځ چه جمع کړی دے

جَمِيعًا يَٰمَعْشَرَ الْجِنِّ قَدِ اسْتَكْثَرْتُم مِّنَ الْإِنسِ

تو لو لره او به فرمائی اے ډلے دَ پیریانو تاسو ډیرخهٔ تابع کړی وُو دَ ځان بنی ادمو لره نه

وَقَالَ أَوْلِيَاؤُهُم مِّنَ الْإِنسِ رَبَّنَا اسْتَمْتَعَ

او اُو به وائی دَ دوی دوستان دَ بنی ادمو نه اے زمونږ ربه کار اخستے وُو

بَعْضُنَا بِبَعْضٍ وَبَلَغْنَا أَجَلَنَا الَّذِي أَجَّلْتَ لَنَا

مونږ ۰ بعضو په بعضو باندِ او مونږ اورسید و خپلے هغې وعدے ته کومه چه تا مونږ لره مقرر کړے وه

قَالَ النَّارُ مَثْوَاكُمْ خَالِدِينَ فِيهَا إِلَّا مَا شَاءَ اللَّهُ

او به فرمائی اُور دے کور ستاسو او سئ به په دے کښے مګر کله چه او غواړی الله -

إِنَّ رَبَّكَ حَكِيمٌ عَلِيمٌ ﴿١٢٨﴾

بے شکه ستا رب حکمت والا خبردار دے -

# لنډ تفسیر

او ربوه چه دَ کوم اسلام ذکر دے نو ﴿ دارالسلام ﴾ ستا دَ رب رخو دلے شوے نیغه لاره ده رچه په دے باندِ په چلید وسره نجات ملا ویږی دَ کوم ذکر چه په مَنْ يُرِدِ اللّٰهُ اَنْ يَّهْدِيَهٗ : کښے دے ، او دَ دے نیغے لارے دَ وضاحت دَ پاره ) مونږ دَ نصیحت حاصلوونکو دَ پاره دے "ایا تو" لره صاف صاف بیان کړی دی رچه دَ دے دَ اعجاز په وجه به دوی په دے سره دَ ده تصدیق کوی او بیا دَ ده په مضامینو به عمل او کړی نجات به حاصل کړی ، دا تصدیق او عمل نیغه لاره ده ، په خلاف دَ

مغو نه د کومو سره چه د نصیحت حاصلولو فکر نه وی د هغوی د پاره نه دا کافی
دے او نه مخور کانی دی، د پاسه د دغه منونکو د جزاء ذکر دے لکه څنګه چه د نه
منونکو د سزا ذکر به په څو جملو کښے شوے وے، چه) د دے خلقو د پاره د
دوی د رب سره (چه ورته اورسی) د سلامتیٔ (یعنی د امن او بقاء) کور (یعنی جنت)
دے، او الله د دوی سره محبت ساتی د دوی د نیکو) عملونو په وجه سره، او
(هغه ورځ د یاد ولو قابله ده) یکومه ورځ چه الله تعالی ټول مخلوق له جمع کړی (او په
دوی کښے بیا خاص کافرانو له خاص کړی په دوی کښے چه کوم د پیریانو شیطانان
دی دوی ته په زور نه سره او ویلے شی چه) اے ډلے د پیریانو تاسو په ګمراه
کولو د) انسانانو کښے لویه حصه واغسته (او دوی مونږ ته او غلول، دغه شان
به د انسانانو نه تپوس او شی: أَلَمْ أَعْهَدْ إِلَيْكُمْ يَا بَنِي آدَمَ أَن لَّا تَعْبُدُوا الشَّيْطَانَ الخ:
غرض دا دے چه د پیریانو شیطانانو به هم اقرار او کړی) او کوم انسانان چه د دوی
(شیطانانو) سره تعلق لرونکی وو هغوی به (هم په اقرار سره) او وائی چه اے
زمونږ پروردګاره (ته صحیح فرمائے واقعی) مونږ کښے یو د بل نه (په دے
ګمراهی او ګمراه کولو کښے نفسانی) فائده حاصله کړے وه (چنانچه ګمراه انسانانو
ته د کفر او شرک بچپلو عقیده و کښے مزه راځی او ګمراه کونکو شیطانانو ته په دے
سره خوند حاصلیدو چه زمونږ وینا او چلیده) او (په حقیقت کښے مونږ د دوی
په غلولو سره د قیامت نه منکر وو، لیکن هغه انکار غلط ثابت شو چنانچه) مونږ
دے خپل معین میعاد ته رااورسید و کوم چه تا زمونږ د پاره مقرر کړے وه
(یعنی قیامت راغے) الله تعالی (ټولو کفارو د پیریانو او بنی آدمو ته) او فرمائی
چه ستاسو د ټولو ځائے دوزخ دے چه همیشه به پکښے اوسئ (د تلو
به ترے هیڅ لار او نه بیرته وی) هاں که خدائے ته رو یستل) منظور وی نو بله
خبره ده (لیکن دا یقینی ده چه خدائے هم نه غواړی په دے وجه به پکښے همیشه ییٔ)
بے شکه ستاسو رب لوئے حکمت والا لوئے علم والا دے (په علم سره د ټولو جرمونه
معلوموی او په حکمت سره مناسب سزا ورکوی) -

---

# معلومات او مسئلې

په ذکر شوو آیاتو نو کښې په اولنۍ آیت کښې نبي کریم صلی الله علیه وسلم ته خطاب دے ارشاد فرمائي: وَهٰذَا صِرَاطُ رَبِّكَ مُسْتَقِيمًا: "یعنی دا لارستا د رب ده برابره" په دے کښې په لفظ د: هٰذَا: سره په قول د ابن عباسؓ اسلام طرف ته اشاره ده او په قول د ابن مسعودؓ قرآن طرف ته - (روح) معنی دا ده چه دا قرآن یا اسلامي شریعت کوم چه تا ته درکړے شوے دے، دا لار ستا د رب ده، یعنی دا سے لار ده چه ستا رب پخپل حکمتِ بالغه سره تجویز فرمائیلې ده، او دائے خوښه کړے ده، په دے کښې ئے د لارے اضافت او نسبت رب طرف ته اوکړو دے خبرے ته ئے اشاره اوکړه چه د قرآن او اسلام کوم دستور العمل چه تا ته درکړے شوے دے په دے باندے عمل کول څه د الله تعالیٰ د فائدے د پاره نه دي بلکه د عمل کونکو د فائدے د پاره د الله تعالیٰ د شان د تقاضا په بنا باندې دي، د دے په ذریعه د انسان دا سے تربیت کول مقصود دي چه پکښې د ده د دائمي کامیابۍ او بهبود ضمانت دی پکښې.

بیا په دے کښې د لفظ د رب نسبت ئے نبي کریم صلی الله علیه وسلم طرف ته اوکړو په دې باندې ئے د یو خاص لطف او عنایت اظهار او فرمایه چه ستا پروردګار دا لار تجویز فرمائیلې ده، د دے نسبت مزه اهلِ ذوق محسوس کولے شي چه یو بنده ته د خپل رب د طرف نه ادنیٰ نسبت حاصلیدل هم د ده د پاره د انتهائي فخر شے دے - او که رب الارباب او معبود د کائناتو خپل ځان لره د ده طرف ته منسوب کړي چه زه ستا یم نو د ده د قسمت به څه اووائے، حضرت حسن نظاميؒ په دے مقام کښې فرمائي: ؎

بنده حسن بصد زبان گفت که بنده توام ‏ ‏ ‏ تو بزبان خود بگو که بنده نواز کیستی

(حسن خو پخپله ژبه سل پیرے اووے چه زه ستا بنده یم خو ته پخپله ژبه او وایه چه ته بنده پالونکے د چا ئے؟)-

د دے نه پس ئے د دے قرآن لارے دا حال په لفظ د: مُسْتَقِيمًا: سره

بیان کړی چه دا الارښغه لارده، په دے کښے هم مستقیم لوه دَصراط دَ صفت په طور بانډے دَرا اُوړو په ځائے دَحال په طریقه سره ذکرکولو سره دے طرف ته ئے اشاره اوکړه چه کومه لار پروردګار عالم تجویز کړے ده په دے کښه په غیر دَمستقیموالی او نیسغوالی نه بل احتمال هډو کیده ے نه شی(روح و بحر)

دَ دینه پس ئے اوفرمائیل: قَدْ فَصَّلْنَا الْاٰیٰتِ لِقَوْمٍ یَّذَّکَّرُوْنَ: یعنی مونږ دَنصیحت قبلوونکو دَپاره دے ایاتونولره صاف صاف بیان کړی دی۔

: فَصَّلْنَا: دَ تفصیل نه جوړ دے، دَ تفصیل اصل معنیٰ دا ده چه دَمضمون تجزیه اوکړی یو یو فصل جُدا جُدا بیان کړی، په دے طریقه سره ټول مضمون ذهن ته پریوځی، په دے وجه دَ تفصیل مطلب صاف صاف بیانول شو مطلب دا دے چه مونږ بنیادی او اصولی مسئلے صافے صافے په تفصیل سره بیان کړی دی چه په دی کښے څه مجمل والے یا ابهام باقی نه دے پاتے شوے۔ په دے کښے ئے: لِقَوْمٍ یَّذَّکَّرُوْنَ: فرمائیلوئے دا اوخودَله چه اګرکه دَ قرآن ارشادات بالکل واضح او صاف دی لیکن دَ دے نه فائده هغو خلقو دَ اخستے کوم چه دَ نصیحت حاصلولو په قصد سره په قرآن کښے غورکوی، دَ ضد او ناراضۍ او دَ پلار نیکه دَ رسمونو دَ نقل کولو پردے دَدوی په مینځ کښے نه حائلے کیږی۔

په دویم آیت کښے ارشاد فرمائی: لَهُمْ دَارُ السَّلٰمِ عِنْدَ رَبِّهِمْ: یعنی دَ کومو خلقو چه بَره ذکر اوشو چه دوی دَ قرآن هدایتونولره په خالی ذهن سره دَ نصیحت حاصلولو دَپاره ګوری اَوَاَوُری او دغے هدایتونو لره قبلوی۔ دَدوی دَ پاره دَدوی دَرب سره دَدارالسّلام انعام موجود او محفوظ دے۔ په دے کښے دَ لفظ دَ: دَار: معنیٰ کور او دَ: سَلَام: معنیٰ دَ ټولو مصیبتونو او محنتونو نه دَ سلامتیٔ دے۔ په دے وجه دارالسلام هغه کورته وئیلے شی پکوم کښے چه دَ تکلیف، مشقت، رنج، غم آفت او مصیبت هډو دا تلل نه وی۔ او بنکاره خبره ده چه جنّت کیدے شی۔

او حضرت عبدالله بن عباس رضی الله عنه فرمائی چه: سلام: دَ الله جلّ شانهٗ نوم دے۔

او دَ: دارالسلام: معنی دہ دَ اللّٰه کور- او ښکارہ خبرہ دہ چہ دَ اللّٰه کور دَ امن او سلامتیٔ ځائے وی - پہ دے وجہ دَ معنی مطلب بیا هم دا شو چہ هغه کور پکوم کښے چہ دَ هر قسم امن، سکون، سلامتی او اطمینان وی، جنّت تہ ئے دارالسلام او فرمائیل دے طرف تہ ئے اشارہ او کړہ چہ صرف جنّت هغه ځائے دے کوم ځائے چہ انسان تہ دَ هر قسم تکلیف، پریشانیٔ او نقصان او هر خلاف طبع شی نہ مکمل او همیشه سلامتی حاصله وی - چہ پہ دنیا کښے بہ نۀ چرتہ دَ لویو نہ لوئے بادشاہ تہ حاصله شوی وی او نۀ چرتہ دَ لویو نہ لوئے نبی او رسول تہ - ځکه چہ دَ فانی دنیا دا عالم دَ داسے مکمل او همیشه راحت ځائے نہ دے -

پہ دے ایت کښے ئے داخودلے دہ چہ دَ دے نیک بختو خلقو دَ پارہ دَ دوی دَ ربّ سرہ دارالسلام دے - دَ ربّ سرہ دَ کیدو دا معنیٰ هم کیدے شی چہ دادارالسلام دلته نغد نہ ملاویګی بلکه کله چہ دوی دَ قیامت پہ ورځ دَ خپل ربّ خوا تہ لاړ شی هغه وخت بہ ملاویګی - او دا معنیٰ هم کیدے شی چہ دَ دارالسلام وعدہ غلطہ کیدے نہ شی، ربّ کریم دَ دے ضامن دے هغۀ دَ دۀ سرہ محفوظ دہ - او پہ دے کښے دے طرف تہ هم اشارہ دہ چہ دَ دغے دارالسلام نعمتونۀ او راحتونه نن هیڅوک پہ تصور کښے هم نۀ شی راوستے - هغه ربّ پیژنی دَ چا سرہ چہ دا خزانہ محفوظ دہ -

او دَ دے دویمے معنیٰ پہ اعتبار سرہ دَ دے دارالسلام ملاویدل پہ قیامت او اخرت پورے موقوف نۀ معلومیګی - بلکه دا هم کیدے شی چہ دَ ربّ کریم چالورہ چہ غواړی پہ دے دنیا کښے هم دارالسلام نصیب کولے شی چہ دَ هغوی افتونو او مصیبتونو نہ ئے امن نصیب کړی - خواہ دا سے چہ پہ دنیا کښے ورتہ هم وخت افت او مصیبت اورسی لکه چہ پہ تیرو انبیاؤ او اولیاؤ کښے دَ دے مثالونہ موجود دی - او یا داسے چہ دَ اخرت دَ غه نعمتونہ دۀ تہ پہ وړاندِ راولی - دَ دۀ نظر لرہ داسے حقیقت شناس جوړ کړی چہ دَ دُنیا دَ څو ورځو دا تکلیف او مصیبت دَ دۀ پہ نظر ونو کښے دیر سپک او معمولی شے پہ نظر راځی - دَ مصیبتونو نیو غر هم دۀ تہ دَ ونوکو تیلی نہ

کم په نظر راځي - ے

رنج راحت شد چو مطلب شد بزرگ
گرد گله توتیائے چشم گرگ

(تکلیف راحت او ګرځي هر کله چه مقصد لوئے وي ، لکه شرمخ ته د ګلے دوړه د سترګو رانجه وي)-

د دُنیا د تکلیف په مقابله کښې چه کوم انعامات ملاویږي نکي وي هغه دوي ته داسے مخامخ شي چه دا تکليفونه ورته بيا خوندناک معلوميږي - او واخه لرے خبره نه ده - او ګورئ چه د اخرت همیشه نعمتونه خو ډیر لوئے شے د ے د دنیا د ے څو ورځو د راحت تصور انسان ته څومره لوئے لوئے محنتونه او مشقتونه خوالګه جوړه وي چه سفارشونه او رشوتونه پیش کوي د ازادئ راحت قربانوي او خواب او ارام ختمونکے ملازمت او مزدوري په شوق سره طلب کوي - او د ملازمت او مزدورئ د محنت په ملاویدو سره خوشحالي کوي او شکرونه اداکوي ، ځکه چه د دهٔ په وړاندې د یو دیرشو ورځو پوره کیدونه پس د ملاویدو کے تنخواه مزه وي - دغه مزه د دے ملازمت او مزدورئ هغه ټول تریخوالی خوږ وي - د قرآن کريم د ایت: وَلِمَنْ خَافَ مَقَامَ رَبِّهٖ جَنَّتٰنِ ؛ يو تفسير دا هم د ے چه" د خدائے تعالیٰ نه يريدونکو ته به دوه جنتونه ملاوُ شي ، يو په اخرت کښې دويم په دُنيا کښے"- د دنيا جنت دا وي چه اول خو د دهٔ په هر يو کار کښے د الله تعالىٰ مدد شامل وي ، هر يو کار ورته اسان په نظر راځي ، او که چرته يو ورځے تکليف مشقت يا ناکامي ورته هم راشي نو د اخرت د نعمتونو په مقابله کښے ورته هغهٔ خوندناک معلوميږي چه په د ے سره ورته دا تکليف هم راحت جوړ شي -

لنډه دا چه په د ے ایت کښے د نیکو خلقو د پاره د دوي د رب سره د کوم دارالسلام ذکر د ے هغهٔ دارالسلام په اخرت کښے خو یقیني او متعين د ے او دا هم کيد ے شي چه په د ے دنيا کښے هم دهٔ ته د دارالسلام مزه ورکړے شي -

په اخر ایت کښے ارشاد فرمائي : وَهُوَ وَلِيُّهُمْ بِمَا كَانُوْا يَعْمَلُوْنَ ؛ يعني

دَ دوی دَ نیکو عملونو په وجه الله تعالیٰ دَ دوی وَلِی کارساز ناصر او مددگار دے
او دَ دهٔ مشکلات آسان شی۔

په دریم آیت کښې په میدان دَ حشر کښې دَ ټولو پیریانو او انسانانو دَ جمع کولو نه پس
دَ دواړو ډلو سره دَ سوال جواب ذکر دے چه الله تعالیٰ به دَ پیریانو شیطانانو ته
خطاب اوکړی دَ دوی دَ جرم اظهار به داسې اوفرمائی چه تاسو دَ انسانانو په
گمراه کولو کښې لویه حصه اخستې ده، دَ دے په جواب کښې به پیریان څهٔ اووائی، دَ دې
ذکر قرآن نه دے کړے، دا ښکاره خبره دهٔ چه دَ علیم او خبیر په وړاندې دَ اقرار نه
بغیر بله چاره نیشته۔ مگر دَ دوی دَ اقرار په نهٔ ذکر کولو کښې دے طرف ته اشاره
دهٔ چه په دے سوال باندې به دوی داسې حیران شی چه دَ جواب دَ پاره به یې
ژبه او نه چلیږی (روح)

دَ دے نه پس دَ بنی آدمو شیطانان یعنی هغه خلق چه په دنیا کښې دَ شیطانانو
تابع وُو بلکه هم گمراه وُو او نورو لره هم دَ گمراهئ سبب جوړ شوی وُو
دَ دغې خلقو دَ طرف نه دَ الله رب العٰلمین دَ دربار نه یو جواب ذکر کړے شوے دے
اگرچه سوال دَ انسانانو دَ شیطانانو نه نهٔ دے شوے مگر په ضمنی طور سره
گویا دوی هم مخاطب وُو۔ ځکه چه دوی هم دَ گمراهئ خوره ولو هغه کار
کړے وُو کوم چه دَ شیطانانو دَ پیریانو وُه۔ دَ دے ضمنی خطاب په وجه سره
دغه خلقو جواب ورکړو۔ مگر ظاهره ده چه بلکه دَ انسانانو شیطانانو
نه به هم سوال وی۔ چه ذکر یې صراحةً اگرچه دلته نیشته مگر دَ سورت
یٰسٓ په دے آیت کښې ذکر دے: اَلَمۡ اَعۡهَدۡ اِلَیۡکُمۡ یٰبَنِیۡۤ اٰدَمَ اَنۡ لَّا تَعۡبُدُوا
الشَّیۡطٰنَ: "یعنی اے بنی آدمو آیا مونږ تاسو ته دَ رسولانو په واسطه سره داسې
نه وُو وئیلی چه دَ شیطان تابعداری مه کوئ"

دَ دے نه معلومه شوه چه دَ انسانی شیطانانو نه به هم په دے موقع سوال
کیږی شی او دوی به په جواب کښې اقرار اوکړی چه بے شکه زمونږ نه داجرم
شوے دے چه مونږ دَ شیطانانو خبره اومنله او دا به او وائی چه بے شکه
پیریانو شیطانانو زمونږ سره او مونږ دَ دوی سره دوستانه تعلقات جوړ
کړل دَ یو بل نه مو نفع حاصل کړه۔ انسانی شیطانانو خو دَ دوی نه دا نفع حاصل

کړه چه د دنیا د خوند ونو حاصلولو لاره یې تر لاسه کړه - او کله کله به یې د شیطانانو پیریانو په نوم نذرانې ورکولې او یا به یې په څه بدطریقه د دوی نه امداد هم حاصلولو، لکه په بت پرستو هندوانو بلکه په ډیرو جاهلو مسلمانانو کښې هم داسې طریقې مشهورې دي چه د هغوی په ذریعه د شیطانانو او پیریانو نه په بعضې کارونو کښې امداد اخوښتلې شي - او پیریانو شیطانانو د انسانانو نه دا فائده حاصله کړه چه د دوی خبره اومنلې او شوه او دوی انسانانو لره په خپلو تابعدارۍ جوړ ولو کښې کامیاب شو، تر دې پورې چه دوی مرګ او آخرت لره هیر کړل او دا وخت دے خلقو اقرار اوکړو چه کوم مرګ او آخرت مونږ د شیطان په غولولو سره هیر کړے وو او س هغه مونږ ته مخے ته راغلل - نو د الله تعالیٰ ارشاد به اوشي: اَلنَّارُ مَثۡوٰىكُمۡ خٰلِدِيۡنَ فِيۡهَاۤ اِلَّا مَا شَآءَ اللّٰهُؕ اِنَّ رَبَّكَ حَكِيۡمٌ عَلِيۡمٌ ۞ یعنی ستاسو د دواړو ډلو د جرم سزا او س دا ده چه ستاسو ځائے اور دے چه همیشه به پکښې اوسئ مګر دا چه الله تعالیٰ چا لره د دے نه ویستل اوغواړي ؛ لیکن د نورو نصوصو نو لمخه قرآن کریم ګواه دے چه الله تعالیٰ به دا نه اوغواړي نو په دے وجه همیشه به پکښې اوسي -

وَكَذٰلِكَ نُوَلِّىۡ بَعۡضَ الظّٰلِمِيۡنَ بَعۡضًاۢ بِمَا كَانُوۡا

او دا رنګ به مونږ یو ځائے کړو ګناه ګاران د یو بل سره د دوی د

يَكۡسِبُوۡنَ ۞ يٰمَعۡشَرَ الۡجِنِّ وَالۡاِنۡسِ اَلَمۡ يَاۡتِكُمۡ

عملونو په سبب - اے ټولیه د پیریانو او انسانانو آیا نه وو درغلی تاسو ته

رُسُلٌ مِّنۡكُمۡ يَقُصُّوۡنَ عَلَيۡكُمۡ اٰيٰتِىۡ وَيُنۡذِرُوۡنَكُمۡ

رسولان ستاسو نه چه آورول به یې تاسو ته زما حکمونه او ویرول به یې تاسو لره

لِقَآءَ يَوۡمِكُمۡ هٰذَا‌ؕ قَالُوۡا شَهِدۡنَا عَلٰٓى اَنۡفُسِنَا

د ملاقات د دے ورځے ستاسو نه - او به وائي چه مونږ اقرار اوکړو په خپلو ګناهونو

١٥ ع ٨ ٢

وَغَرَّتْهُمُ الْحَيٰوةُ الدُّنْيَا وَشَهِدُوْا عَلٰٓى اَنْفُسِهِمْ

او دوکه کړل دوی لره ژوند د دنیا او قائل شو دوی په خپل ځان د دے خبرے

اَنَّهُمْ كَانُوْا كٰفِرِيْنَ ﴿۱۳۰﴾ ذٰلِكَ اَنْ لَّمْ يَكُنْ رَّبُّكَ

چه دوی کافران وو - دا په دے وجه چه ستا رب هلاکونکے نه دے

مُهْلِكَ الْقُرٰى بِظُلْمٍ وَّاَهْلُهَا غٰفِلُوْنَ ﴿۱۳۱﴾ وَ

کلو لره د دوی د ظلم له کبله خلق د دغه ځائے ناخبره وی او

لِكُلٍّ دَرَجٰتٌ مِّمَّا عَمِلُوْا ؕ وَمَا رَبُّكَ بِغَافِلٍ

د هر یو د پاره درجے دی د دوی د عمل او ستا رب ناخبره نه دے

عَمَّا يَعْمَلُوْنَ ﴿۱۳۲﴾

د دوی د کارونو نه

# لنډ تفسير

او د لکه څنګه چه په دنیا کښے د ګمراهئ په لحاظ سره په تولو کښے تعلق او (قربُ وه) دغه شان (په دوزخ کښے) بعض کفارو لره به د بعض کفارو سره نزدے (او یو ځائے) کړے شي د دوی د عملونو (د کفر) په سبب (دا ذکر شوے خطاب خو پیریانو او انسانانو ته په اعتبار د دوی د یو بل سره د تعلق لرلو دو. د هٰذا اوس هر یو ته د دوی د هر یو د خپل تعلق په لحاظ سره خاص خطاب دے چه) اے ډلے د پیریانو او د بنی آدمو (تو د ا اووایئ چه تاسو کوم کفر او انکار کولو نو) آیا تاسو ته په تاسو کښے پیغمبران نه وُو راغلی چه تاسو ته ئے ځما حکمونه (د عقیدے او عملونو متعلق) بیانول او تاسو ته ئے د دے ورځے (د واقع کیدو) خبر ورکولو (بیا څه وجه وه چه تاسو د کفر او انکار نه واپس کیدئے)

دوی ټول به عرض اوکړی چه مونږ ټول په خپل ځان (د جرم) اقرار کوؤ مونږ
سره هیڅ وجه د عذر او د براءت نیشته، وړاندې الله تعالیٰ دوی ته د دے مصیبت
د وړ پیښیدو وجه بنائی) او دوی لره (دلته) د دنیا ژوند په هیرو کښې اچولی دی
(چه د دنیا خوند ونه ئے لوئے مقصد ګنړلے دے اخرت ته ئے فکر نیشته) او د دے
ثمره داشوه چه (دلته) به دا خلق اقرار اوکړی چه دوی (ریښتیا مونږ) کافران وؤ.
راو به غلطه باندې وؤ، مګر د هغه ځائے په اقرار هیڅ نه کیږی که په دنیا کښې ئے لږ
دا غفلت لرے کولے نو دا بده ورځ به ئے ولے لیده، وړاندې د رسولانو په رالیږلو
کښې چه وړاندې ئے ذکر وؤ د خپل رحمت اظهار فرمائی چه) دا (د رسولانو لیږل) په
دے وجه دی چه ستا رب د یو کلی خلقو لره د (دوی د) کفر په سبب (په دنیا کښې
هم) په داسے حالت کښې نه هلاکوی چه د دے کلی اوسیدونکی (د خدائے د حکمونو
نه د رسولانو د نه راتلو په وجه) ناخبره وی (پس د اخرت عذاب چه ډیر سخت
دے، دا به هرګز نه وی، نو په دے وجه رسولان رالیږی چه دوی پخپل جرم
خبر شی او بیا چه څوک عذابیږی نو هغه به ئے مستحق وی چنانچه وړاندې فرمائی)
او (هر کله چه رسولان راغلل او هر یو ته پته اولګیده نو اوس چه هر څوک
څه کوی) هر یو ته به (د) پیریانو او بنی آدمو صالحانو او بدانو نه به
د جزا او سزا هم (د عسے) درجے ملاویږی د دوی د عملونو په سبب او ستا
رب د دوی د عملونو نه بے خبره نه دے۔

# معلومات او مسئلے

د ذکر شوو ایاتونو په اولنی ایت کښې د لفظ د : نُوَلِّی : د عربی لغت په
اعتبار سره دوه ترجمے کیدے شی، یوه د مِلګرے کولو او نزدے کولو او دویمه
د مسلط کولو. د تفسیر د امامانو صحابهؓ او تابعینوؒ نه هم دواړه
روایتونه د دے تفسیر نقل دی۔

به محشر کښې به د خلقو ټولی د
عملونو په لحاظ سره وی، د دنیا
د تعلقاتو په بنیاد به نه وی

حضرت سعید بن جبیرؓ او قتادهؒ وغیره اولنی ترجمه
اختیار کړے ده د ایت مطلب ئے دا مقرر کړے دے
چه د قیامت په ورځ به د الله تعالیٰ په نزد د خلقو

ټولې او جماعتونه د نسل یا وطن یا رنګ او ژبې په بنا باندې نه وي، بلکه د عملونو او اخلاقو په بنیاد باندې به وي. د الله تعالیٰ فرمانبردار مسلمانان چه به هر چرته وي ځغلوي به د مسلمانانو ملګري وي، او نافرمانه کافران چه کوم ځائې وي هغوي به د کافرانو ملګري وي اګر که د دوي په نسل، نسب، وطن، ژبه، رنګ او معاشرت کښې هر څو مره فرق لرې والې او اختلاف وي.

بیا به په مسلمانانو کښې هم نیک دیندار د دیندارو سره وي. او ګناه کار بد عمله به د بد عملو سره وي. په سورت: کُوِّرَتْ: کښې چه کوم ارشاد دې چه: وَاِذَا النُّفُوْسُ زُوِّجَتْ: یعني د خلقو به جوړې او ټولګۍ جوړې کړې شي" د دې هم دا مطلب دې چه د عملونو او اخلاقو په اعتبار سره به د محشر خلق په ټولګو کښې تقسیم کړې شي.

حضرت فاروقِ اعظمؓ د دې ایت په تفسیر کښې فرمائي چه د یو قسم نیک یا بد عمل کوونکي به یو ځائې کړې شي. نیکان خلق به د نیکانو سره جنت ته او بدان به د بد و سره دوزخ ته او رسولې شي. او د دې مضمون د تائید د پاره فاروقِ اعظمؓ د قرآن کریم ایت: اُحْشُرُوا الَّذِیْنَ ظَلَمُوْا وَاَزْوَاجَهُمْ: نه دلیل او فرمایه. چه مضمون ئې دا دې چه د قیامت په ورځ به حکم او شي چه ظالمانو له او د دوي په شان عمل کوونکو له جهنم ته بوزئ.

د ذکر شوي ایت د مضمون نه هم دا څرګنده شوه چه الله تعالیٰ به بعضِ ظالمان د نورو ظالمانو سره کړې یو ټولې به ترې جوړې کړي اګر چه په نسلي او وطني اعتبار سره په دوي کښې هر څو مره لرې والې وي.

او په یو بل ایت کښې هم دا خبره واضحه بیان شوې ده چه په محشر کښې به دا دنیوي او رسمي ډلې والې چه نن په خلقو کښې د نسل، وطن، رنګ او ژبې وغیره په بنیادونو قائم دي ټول به بېخي ختم شي: یَوْمَ تَقُوْمُ السَّاعَةُ یَوْمَئِذٍ یَّتَفَرَّقُوْنَ: " یعني کله چه قیامت قائم شي نو کوم خلق چه په خپل مینځ کښې یو او متفق وو هغوي به جدا جدا شي".

په دنیا کښې هم د عملونو او اخلاقو په اجتماعي معاملو باندې اثر

او د دې موجوده رشتو ناطو او رسمي ډلو پروپیګنډ به په قیامت کښې خوښکاره او په ډاګه د

تولو ورانیو راشی، مګر په دنیا کښے هم دومره ورو کے شان نمونه هرځائے مونده شی چه د نیکو خلقو د نیکانو سره مناسبت وی د دوی د چلے او سوساټئی سره تړلی وی او دغه شان په نیکو کارونو کښے د یو بل سره مرسته کوی او اراده ئے مضبوطیګی. دغه شان د بد کردارو د ځان پښان د بدانو سره تعلق او مینه وی او د صغوی سره ئے ناسته پاسته وی او د دوی په ملګرتیا کښے د دوی په بدعملئ او بدخلقئ کښے روزانه نوے نوے اضافه کیږی. او د نیکئ لارے د دوئ ته بندیګی. دا د دوئ د بدعملئ نغد سزا دوئ ته په دنیا کښے ملاویګی.

لنډه دا چه د نیکو او بدو عملو نو یو مجزا او سزا خو به په آخرت کښے ملاویګی او یو جزا او سزا نغد به په دے دنیا کښے دا سے ملاویګی چه نیک بنده ته به ملګری هم نیک او دیانتدار ملاویګی چه د دوئ کارلره به ترقی ورکوی او بد او بدنیته بنده ته به اندامونه او د کارملګری هم د دوئ پښان ملاویګی چه دوئ لره به نور زیات کندے ته وراچوی.

نبی کریم صلے الله علیه وسلم فرمائیلی دی چه کله الله تعالیٰ د یو بادشاه او حاکم دراضی شی نو دوئ ته ښه وزیران او ښه عمله ورکړی چه د دوئ د حکومت ټول کارونه پرے برابر او په ترقئ شی. او کله چه ترا الله تعالیٰ ناراضه شی نو دوئ لره عمله او د کارملګری ناکاره او بدکاره ورکړی، نو دے که ښه کار کول هم غواړی نو قابو به پرنه بیاموی.

**یو ظالم ته د بل ظالم د لاسه سزا ملاویګی**

د ذکر شوی آیت دا مطلب د ترجمے په اعتبار سره دے او د حضرت عبد الله بن عباسؓ، عبد الله بن زبیرؓ، ابن زیدؒ مالک بن دینارؒ وغیره نه د دے آیت تفسیر د دیے ترجمے په اعتبار سره دا نقل دے، چه الله تعالیٰ بعض ظالمانو لره په بعضو مسلّط کوی. او دغه شان یو ظالم لره د بل ظالم د لاسه سزا ورکوی.

دا مضمون هم څنګه ځائے صحیح او درست دے او د قرآن شریف د نورو ارشاداتو مطابق دے. په یو حدیث کښے د نبی کریم صلے الله علیه وسلم ارشاد دے: كَمَا تَكُوْنُوْنَ كَذٰلِكَ يُؤَمَّرُ عَلَيْكُمْ، یعنی څنګه چه تاسو یئ دغسے به حاکمان په تاسو مسلّط کړے شی" که تاسو ظالمان او بدکاره وئے نو ستاسو حاکمان به هم ظالمان او بدکاران وی

او که تاسو نیک عملہ او نیک کرداره یئ نو الله تعالیٰ به ستاسو حاکمان رحم دله او منصف مزاجه خلق جوړ کړي۔

حضرت عبد الله بن عباسؓ فرمائي چه کله الله تعالیٰ یو قوم سره خیګړه کول اوغواړي نو په دوی باندې غوره حاکما او امیران مسلط کړي او کله چه د یو قوم سره بد کول او غواړي نو په دوی باندې ناکاره حاکمان او بادشاهان مسلط کړي (بحر محیط)

په تفسیر د روح المعاني کښې دي چه فقهاؤ د دے ایت نه پدے باندې دلیل نیولے دے چه کله رعیت او عوام د الله تعالیٰ نه روګرداني شي په ظلم زیاتي کښې اخته شي نو الله تعالیٰ په دوی ظالمان حاکمان مسلط کړي او د دوی په لاسو نو باندے دوی لره سزا ورکوي۔

او ابن کثیر په روایت د عبد الله ابن مسعودؓ د نبی کریم صلے الله علیه وسلم دا فرمان نقل کړے دے که: مَنْ اَعَانَ ظَالِمًا سَلَّطَهُ اللّٰهُ عَلَيْهِ؛ "یعني کوم سړے چه د ظالم په ظلم کښې د ده مدد کوي نو الله تعالیٰ دے ظالم لره د ده د ازار و لسو د پاره په ده مسلط کوي او د ده په لاسو باندې ده لره سزا ورکوي"

په دویم ایت کښې د یو سوال جواب ذکر دے، کوم چه به په محشر کښې پیریانو او بني آدمو لره مخاطب کړي کولے به شي۔ چه ستاسو په کفر او د خدائے تعالیٰ په نافرمانۍ کښې د اخته کید و څهٔ سبب دے؟ آیا تاسو ته زمونږ رسول نه وو درَ رسیدلے کوم چه ستاسو د قوم نه وو چه ځما آیا تونه ئے تاسو ته آورَول۔ او د دے ورځ د حاضرۍ او حساب نه به ئے یَرَولې؟ د دے په جواب کښې د دے کولو د طرفه د رسوله نو د راتلوا و د حق پیغام د اورَولو او د دے باوجود په کفر او نافرمانۍ کښې د اخته کید و ذکر شوے دے۔ او د دوی د طرف نه څهٔ وجه او سبب د دے غلط کارئ نه دے ذکر شوے۔ بلکه الله تعالیٰ د دے وجه دا خودلے ده چه: وَغَرَّتْهُمُ الْحَيٰوةُ الدُّنْيَا: یعني دے خلقو لره د دنیا ژوند او خوند و نو په دوکه کښې اچولي دي، چه دوی هر څهٔ دے لره ګنړلي دي کوم چه په حقیقت کښې هیڅ نه وُو او د انجام او عاقبت نه غافله شو۔ په قول د اکبر مرحوم: ؎

تھی فقط غفلت ہی غفلت عیش کا دن کچھ نہ تھا
ہم اسے سب کچھ سمجھتے تھے وہ لیکن کچھ نہ تھا

(یعنې د دنیا عیش عشرت هیڅ هم نه وه صرف غفلت او غفلتانو موږ دے لره هر څه کنړل او په حقیقت کښې هیڅ هم نه وو۔)

په دے ایت کښې یوه خبره خو دا قابلِ غور ده چه په بعضو نورو ایاتو نو کښې خو دا ذکر دی چه د مشرکانو نه هر کله په محشر کښې د دوی د کفر او شرک متعلق تپوس اوشي، نو دوی به د خپل جرم نه منکر شي او د الله رب العزت په دربار کښې به قسم اوخوري دا دروغ به او وائي چه: وَاللّٰهِ رَبِّنَا مَا كُنَّا مُشْرِكِيْنَ؛ "یعنی قسم دے زموږ په الله تعالیٰ باندې چه موږ هرگز مشرکان نه وو" او د دے ایت نه معلومیگي چه دوی به په خپل شرک او کفر د خپیمانتیا سره اقرار اوکړي۔ په دے دواړو کښې په ظاهره تعارض او اختلاف معلومیگي مگر په نورو ایاتو نو کښې د دے وضاحت او تشریح داسے موجوده ده چه په اوّل کښې هر کله د دوی نه تپوس اوشي نو منکر به شي، مگو دغه وخت به الله تعالیٰ خپل قدرتِ کامله سره د دوی ژبے بندے کړي د لاسو نو خپو او نورو اندامونو نه به ئے گواهي واخلي۔ د الله تعالیٰ په کامل قدرت سره به دوی ته د خبرو کولو طاقت ورکړے شي او دوی به صفا صفا ټول عملونه لوئے واړه بیان کړي او دغه وخت به پیریانو بني ادمو ته معلومه شي چه زموږ لاسونه خپے او ټول اندامونه د قدرت د کارخانے خفیه پولیس وو۔ کوم چه د ټولو معاملو او حالاتو رشتونے او صحیح گواهي ورکړه۔ نو اوس به دوی ته د انکار هیڅ گنجائش پاتے نه شي، دغه وخت به دا خلق صاف صاف اقرار د جرم اوکړي۔

| | |
|---|---|
| آیا په پیریانو کښې هم رسولان وو؟ | دویمه خبره دلته دا د غور قابله ده چه په دے ایت کښې الله تعالیٰ پیریان او انسانان دواړه مخاطب کړي دی |

داگے ورته فرمائیلي دي چه آیا زموږ رسولان تاسو ته نه دي راغلي کوم چه ستاسو د قوم نه وو۔ د دے نه دا ظاهریږي چه څنگه بني ادمو ته رسولان بني آدم لیږلے شوي دي دغه شان پیریانو ته رسولان د پیریانو د قوم نه لیږلے شوي دي۔

په دے مسئله کښې د تفسیر او حدیث د عالمانو خبرے مختلفے دي د بعضو وینا دا ده چه رسولان او نبیان صرف انسانان راغلي دي، د پیریانو په قوم کښې هیڅ رسول بے د واسطے نه نهٔ دے راغلے، بلکه داسے شوے ده چه د انساني رسول او پیغمبر کلام خپل قوم ته د رسولو د پاره د پیریانو په قوم کښې څه خلق داسے راغلي دي۔

کوم چه په حقیقت کښې دَ رسولانو قاصدان او پیغام رسوونکي وُو- په مجازي طور سره دوی ته هم رسولان ویلې شي- دَ دې خبرې تودلیل دَ قرآن مجید دا آیتونه دي چه په کومو کښې چه دَ پېریانو داخبرې ذکر کړې شوي دي چه دوی دَ نبي کلام یا قرآن واورېدو او خپل قوم ته یې اورسا وه مثلاً؛ وَلَّوْا اِلٰى قَوْمِهِمْ مُّنْذِرِيْنَ: او دَ سورت جن آیت ؛ قَالُوْٓا اِنَّا سَمِعْنَا قُرْاٰنًا عَجَبًا يَّهْدِيْٓ اِلَى الرُّشْدِ فَاٰمَنَّا بِهٖ ؛ وغیره-

لیکن دَ علماؤ یو جماعت دَ دې آیت دَ ظاهري معنیٰ په اعتبار سره دَ دې هم قائل دي چه دَ خاتم الأنبياء صلے الله علیه وسلم نه وړاندې دَ هر یو ډلې رسول دَ دغې ډلې نه به وُه دَ بني آدمو په مختلفو طبقو کښې به بني آدم رسولان را تلل او دَ پیریانو په مختلفو طبقو کښې به دَ پیریانو نه رسولان را تلل دَ حضرت خاتم الانبياء صلے الله علیه وسلم دا خصوصیت دې چه دوی دَ ټول عالم دَ انسانانو او پیریانو واحد رسول را لیږلې شوې دې- او هغهٔ هم دَ څهٔ یوې زمانې دَ پاره نهٔ بلکه تر قیامته پورې دَ پیدا کیدونکو ټولو پیریانو او بني آدمو دَ پاره دې او دا ټول دَ دوی اُمّت دې- او دوی یې رسول او پیغمبر دې.

دَ هند وانو معبودان هم عموماً پیریان دي په دوی کښې دَ څهٔ رسول یا نبي کیدو احتمال

دَ تفسیر په اماما نو کښې کلبيؒ او مجاهدؒ وغیره دا قول اختیار کړې دې- او قاضي ثناء الله صاحب پاني پتيؒ په تفسیر مظهري کښې دَ دې قول دَ اختیار ولو سره فرمائي- چه دَ دې آیت نه ثابتیږي چه دَ آدم علیه السلام نه اوّل دَ پیریانو رسولان دَ پیریانو په قوم کښې به وُو- او هر کله چه دا ثابته ده چه په زمکه بانډې دَ بني آدمو نه په زرګونو کلونه وړاندې پیریان آبادوُو او هغوی هم دَ بني آدمو پشان دَ احکامو مکلف دي نو دَ عقل او شرع په بنا ضروري ده چه په دوی کښې دې دَ الله تعالیٰ دَ احکامو رسوونکي رسولان او پیغمبران وي-

حضرت قاضي ثناء الله پاني پتيؒ فرمائي چه دَ هندوستان هندوان چه دَ خپل؛ ویدَ؛ تاریخ په زرګونو کلونه وړاندې بنائي او خپل معبودان او بزرګان چه دوی ورته؛ اوتار؛ وائي: دَ دغې زمانې خلق ورته وائي- حیرته لرې نه ده چه دا هم دَ پیریانو رسولان او پیغمبران وي، او دَ هغوی راوړې ی

شوی هدایتونه دوی دخپه کتاب په شکل کښې جمع کړی وی۔ دهندوانو داوتارو
چه کوم تصویرونه په مندرونو کښې ایښودې شی هغه هم ددې انداز دی
چه دچا څوڅو خلو نه دی دچا ډیر لاسونه او ښپې دی دچا دهاتی پشان خرتم
دے چه دعامو انسانی شکلونو نه ډیر مختلف دی، او دجنّاتو په داسې شکلونو
بانڼې جوړیدل څه لرې خبره نه ده۔ نو په دې وجه څهٔ لرې خبره نه ده چه
ددوی اوتار دپیریانو په قوم کښې راغلی رسولان یا ددوی نائبان وی، او د
دوی کتابونه هم ددوی دهدایتونو مجموعې وی، او بیا پکښې رو رو دنورو
کتابونو پشان تحریف شوې وی، او شرک او بت پرستی ئې پکښې داخله کړې
وی۔

او بیا هم په هرحال که دغه اصل کتاب او رسولان دکومو چه که صحیح هدایتونه
هم موجود وې خو دنبی کریم صلے الله علیه وسلم دبعثت او عام رسالت نه
پس به هغه هم منسوخ او نا قابلِ عمل شوی وُو او دمسخ کیدو او تحریفا
کولو نه پس خو په دوی عمل نه کول ښکاره خبره ده۔

په دریم آیت کښې داخوده شوې ده چه په بنی آدمو او پیریانو کښې رسول
لیګل دالله تعالیٰ دعدل او انصاف او رحمت تقاضا ده، چه هغهٔ په یو قوم
هسې عذاب نه لیږی ترڅو چه هغوته اوّل پیغمبران اونه لیږی او هغوی لره
بیدار نه کړی او دهدایتونو رڼا ورته اونه لیږی۔

دڅلورم آیت مطلب ښکاره دے چه دالله تعالیٰ په نزد په بنی آدمو او پیریانو
کښې دهرې طبقې دخلقو درجې مقرر دی او دا درجې ددوی دعملونو مطابق دی
په دوی کښې دهر یو جزا او سزا به ددوی دعملونو دوزن په برابر وی۔

وَرَبُّكَ الْغَنِيُّ ذُو الرَّحْمَةِ ۚ إِنْ يَشَأْ يُذْهِبْكُمْ وَ

او ستا رب بے حاجته رحمت والا دے۔ که اوغواړی نو تاسو لره به لرې کړی او

يَسْتَخْلِفْ مِنْ بَعْدِكُمْ مَا يَشَاءُ كَمَا أَنْشَأَكُمْ

تاسو روستو به اودروی چا لره چه او غواړی لکه چه تاسو لره ئې پیدا کړل

مِّنْ ذُرِّيَّةِ قَوْمٍ اٰخَرِيْنَ ﴿۱۳۳﴾ اِنَّ مَا تُوْعَدُوْنَ لَاٰتٍ

دَ نورو دَ اولاد نه - دَ کوم شي چه ستاسو سره وعده کولے شي هغه خامخا

وَّمَآ اَنْتُمْ بِمُعْجِزِيْنَ ﴿۱۳۴﴾ قُلْ يٰقَوْمِ اعْمَلُوْا عَلٰى

راتلونکے دے او تاسو نشئ عاجزه کولے - ته اووایه اے خلقو تاسو کار کوئ په

مَكَانَتِكُمْ اِنِّيْ عَامِلٌ ۚ فَسَوْفَ تَعْلَمُوْنَ ۙ مَنْ

خپل ځائے زه هم کار کوم پس ژر به پوهه شئ تاسو چه چا ته

تَكُوْنُ لَهٗ عَاقِبَةُ الدَّارِ ۭ اِنَّهٗ لَا يُفْلِحُ الظّٰلِمُوْنَ ﴿۱۳۵﴾

ملاویگی دَ آخرت کور - په یقین سره به خیر نه وی دَ ظالمانو -

وَجَعَلُوْا لِلّٰهِ مِمَّا ذَرَاَ مِنَ الْحَرْثِ وَالْاَنْعَامِ نَصِيْبًا

او مقرر کوی الله لره دَ هغه په پیدا کړو فصلو نو او څاروو کښے یوه حصه

فَقَالُوْا هٰذَا لِلّٰهِ بِزَعْمِهِمْ وَهٰذَا لِشُرَكَاۗىِٕنَا ۚ

بیا وائی دا حصه دَ الله ده په خیال دَ دوی او دا زمونږ دَ شریکانو ده -

فَمَا كَانَ لِشُرَكَاۗىِٕهِمْ فَلَا يَصِلُ اِلَى اللّٰهِ ۚ وَمَا

پس کومه حصه چه دَ دوی دَ شریکانو ده هغه نه رسی الله طرف ته - او کومه چه

كَانَ لِلّٰهِ فَهُوَ يَصِلُ اِلٰى شُرَكَاۗىِٕهِمْ ۭ سَاۗءَ

دَ الله ده هغهٔ رسی دَ دوی دَ شریکانو طرف ته - څومره ناکاره

مَا يَحْكُمُوْنَ ﴿۱۳۶﴾

انصاف کوی -

# لنډ تفسير

او ستا رب (رسولانو لره څخه د دې د پاره نه ليږي چه نعوذ بالله هغه عبادت ته محتاج دے هغه خو) بالکل بے حاجته دے (بلکه په دے وجه ئے ليږي چه هغه) رحمت والا (هم) دے (پخپل رحمت سره ئے رسولان او ليږل چه د دوی په ذريعه خلقو ته نفع نقصان رسوونکی څيزونه معلوم شی او بيا د نفع مند ونه نفع واخلی او د ضررناکو نه ځان اوساتی، پس په دے کښے د بندګانو فائده ده او باقی د هغه بے حاجتی خو داسے ده چه) که هغه اوغواړی نو تاسو ټولو لره به (د دنيا نه فوراً) پورته کړی او ستا سو نه پس کوم (مخلوق) لره چه غواړی ستا سو په ځائے به ئے (په دنيا کښے) آباد کړی لکه چه (مثل ئے د وړاندِ نه موجود دے چه) تاسو لره ئے (کوم چه اوس موجود يئ) د يو بل قوم د نسل نه پيدا کړی يئ (چه د هغوی څه پته نيشتے او تاسو د هغوی په ځائے موجود يئ او دغه شان داسلسله راروانه ده، ليکن دا سلسله پوره ئيا په پوره ئ قائمه ده، که مونږ اوغواړو نو فوراً هم داسے کولے شو، ځکه چه د چا په شته والی او نه شته والی بانِ زمونږ څه کار نه بنديږي پس د رسولانو ليږل زمونږ د حاجت په وجه سره نه دی ستا سو د حاجت په وجه سره دی، تاسو لره پکار دی چه د دوی تصديق او تابعداری اوکړئ خوشبختی حاصله کړئ او د کفر او انکار د ضرر نه بچ شئ ځکه چه) د کوم شی (د رسولانو په ذريعه) ستا سو سره وعده کولے شی (يعنی قيامت او عذاب) هغه بے شکه راتلونکے شے دے او (که احتمال وی چه اګر که قيامت راهم شی نو مونږ به چرته اګختو په لاس به ورنه شو لکه چه په دُنيا کښے د حاکمانو مجرم کله داسے کولے شی نو بنهٔ پوهه شئ چه) تاسو (خدائے تعالیٰ لره) نه شئ عاجزه کولے (چه په لاس به ئے ورنه شئ، او که چرے سره د دے چه په حق بانِ دليلونه قائم شوی دی چالره په دے کښے څه خبره وی چه د کفر طريقه غوره ده د اسلام ناکاره ده نو بيا د قيامت نه څهٔ يره ده نو د داسے خلقو په جواب کښے) ته (راخيری خبره) دا اوفرمايه چه اے ځما قومه (تاسو پوهه شئ بنهٔ ده) تاسو پخپل حال بانِ کار کوئ ز هٔ هم (پخپل طور سره) عمل کوم پس اوس ز ر به

تا سو ته معلومه شی چه د دے دنیا (دعملونو) د کار انجام به د چا د پاره نفع مند وی
(زمونږ د پاره یا ستاسو د پاره (او) دا یقینی خبره ده چه د حق ضائع کونکو (د انجام
بچ ته کامیابی نه وی (او د تولونه زیات د الله تعالیٰ حق ضائع کول دی، او دا کار
په صحیح دلیلونو کښے په لږ غوږ کولو سره معلومیدے شی چه د اسلام طریقه حق
ضائع کول دی یا د کفر طریقه، او څوک چه په دلیلونو کښے غوږ نه کوی دوی ته
دومره ویل بس دی: فَسَوْفَ تَعْلَمُوْنَ: یعنی ژر به تاسو د بدعمل په
انجام پوهه شئ) او الله تعالیٰ چه کوم فصلونه (وغیره) او څاروی پیدا کړی دی
دے (مشرکانو) خلقو د دوی نه څه حصه د الله (د نوم) مقرر کړه (او څه ئے
د بتانو د نوم مقرر کړه حال دا دے چه په پیدا کولو کښے ورسره هیڅوک شریک
نیشته) او په خپل گمان او قصد سره وائی چه دا خو د الله ده (کومه چه د میلمنو او
مسافرو او مسکینانو وغیره د پاره په عامو مصرفونو کښے صرف کیږی) او دا زمونږ د معبودانو
ده (د کومے چه مصرفونه خاص دی) بیا چه کوم شے د دوی د معبودانو (د نوم)
وی نو هغه د الله (د نوم حصے) طرف ته نه رسی (بلکه که اتفاقاً یو ځائے هم شی
خو بیا ئے تر جدا کوی) او کوم شے چه د الله (د نوم) وی هغه د دوی د معبودانو
(د نوم حصے) طرف ته رسی دوی څه ناکاره تجویز جوړ کړے دے (ځکه چه
اول خو د الله پیدا کړشو د بل په نوم خلکه کولے شی، دویم بیا څومره چه تر
د الله حصه ویستلی وی د هغے نه هم کموی، او که دا خبره په غناء او احتیاج
مبنی دی نو محتاج ئے منل او بیا ئے معبود گنړل نوره زیاته بے وقوفی ده) -

# مَعلومَات او مَسئلے

د دے نه په وړاندے ایت کښے دا ذکر وُه چه د الله جلّ شانهٗ همیشه دا دستور
دے چه د پیدا یا نو او بنی آدمو په هر قوم کښے ئے خپل رسول او خپل هدایتونه
لیگلی دی، او تر څو پورے چه ئے د رسولانو په ذریعه باندے دوی لره خبر کړی
نه وی تر هغه وخته پورے د دوی د شرک او کفر او گناه او نافرمانئ په وجه
دوی لره سزا نه ده ورکړے -

په ذکر شوو ایاتونو کښے ئے په اولنی ایت کښے دا خودلے ده چه د

رسولانو او اسمانی کتابونو دا ټول سلسله ددې دپاره نه وه چه د رب العلمین څه زمونږ عبادت او اطاعت ته حاجت وه یا د ده څه کار زمونږ په اطاعت باندې موقوف وه - دا سې نه ده هغهٔ بالکل بې حاجته او غنی دې مګر د ده د دې کامل استغناء او بې نیازئ سره په دې کښې یو صفت د رحمت هم دې، او ټول عالم په وجود کښې راوستل بیائې باقی ساتل او د ددی د ظاهري او باطنی موجوده او ائنده ټولو ضرورتونو لره بې غوښتلو پوره کول ددې ټولو سبب هم صفت د رحمت دې، که داسې نه وې نو عاجز انسان خو د خپلو ضرورتونو پخپله د پیدا کولو قابل خولا څه کوې د ده سره خو د خپلو بې غوښتلو حاجتونو د غوښتلو سلیقه هم نیشتې - خصوصًا د وجود دا نعمت چه کوم ده ته ورکړې شوې دې د دې بې غوښتلو ملاویدل بالکل واضح دی - چه یو انسان هم چرته د خپلو پیدا کیدو دُعا نه ده غوښتلې، او نهٔ په وجود کښې د راتلو نه وړاندې د دُعا غوښتلو څهٔ تصوّر کیدې شی - دغه شان د انسان پیدا ایش چه د کوموکوم اندامونو نه شوې دې، سترګې غوږونه لاس، خپې، زړهٔ دماغ آیا دا څیزونه چرته انسان غوښتلې وو- یا ده ته چرته د دې د غوښتلو څهٔ پوهه او سلیقه وه؟، هیڅ نه، بلکه : ؎

ما نبودیم و تقاضائے ما نه بود
لطف تو ناگفتۀ ما می شنود

زړهٔ نه وم او نه ځما د خپلو پیدا کیدو څهٔ خواهش او آرزو وه
خو ستا مهربانی ځما نا ویلې خبرې آورید ې)

| پـه هـر حال پـه دې ایت کښې د: وَرَبُّكَ الْغَنِيُّ د الفاظو سره د رب الارباب د بې حاجتئ | الله تعالیٰ د ټولو نه بې نیازه دې د کائناتو پیدا کول صرف د هغهٔ د رحمت نتیجه |
|---|---|

بیانولو سره ئې د : ذُو الرَّحْمَةِ : اضافه او کړه دا ئې او خودوه چه هغه اګرچه ستا سو د ټولو بلکه د تمام کائنات نه بالکل بې پروا او بې حاجته دې لیکن د بې نیازئ سره هغه د رحمت خاوند هم دې -

| او دا د هغهٔ پاک ذات کمال دې ورنه د انسان عادت دا دې چه که دې | یو انسان لره الله بې نیازه کړې نه دې په دې کښې لوئې حکمت دې که انسان بې نیازه شی نو ظلم کوی |
|---|---|

دَ نورو نه بې نیازه او مستغنی شي نو دۀ سره بیا دَ نورو دَ راحت او رنج، نفع او نقصان هیڅ پرواه نه پاتې کیږي، بلکه په دې حالت کښې بیا دې په نورو باندې زور ظلم او زیاتۍ ته تیار شي- دَ قرآن کریم په یو آیت کښې ارشاد دې: اِنَّ الْاِنْسَانَ لَیَطْغٰۤی اَنْ رَّاٰهُ اسْتَغْنٰی : یعنی انسان چه کله ګمان لره بې نیازه او مستغنی بیا مومي، نو دې سرکشۍ او زور زیاتۍ ته تیار شي، په دې وجه الله جل شانهٔ انسان دَ داسې ضرورتونو په چکر کښې اچولے دے چه دَ نورو دَ امن او نه بغیر نه پوره کیږي، دَ لویو نه لوئے بادشاه او حاکم نوکرانو چاکرانو او چپړاسیانو ته محتاج دے، دَ لویو نه لوئے مالدار او دَ مِل مالک مزدورانو ته محتاج دے- دَ سحر چه څنګه یو مزدور، او رکشه چلوونکے دَ څه پیسو حاصلولو دَ خپلې محتاجۍ لرې کولو دَ پاره دَ روزګار په تلاش کښې اوځي ټیک دغه شانې لوئے مالدار کومو ته چه غنیان وئیلے شي هغوی دَ مزدور، رکشې او کاری په تلاش کښې اوځي، قدرت ټولو لره دَ محتاجۍ په یو زنځیر کښې تړلي دي- هر یو دَ بل محتاج دے، دَ چا په چا باندې احسان نیشته- او که دا نوے نو نهٔ به یو مالدار چا ته یوه پیسه ورکړے وه او نه به یو مزدور دَ چا څهٔ بوجرا وچت کړے وه- دا خو صرف دَ الله جل شانهٔ صفت کمال دے چه دَ کامل استغنا او بې نیازۍ باوجود هغه رحمت والا دے- دلته که ئې دَ ذوالرّحمة په ځائې لفظ دَ رحمٰن یا رحیم راوړے وے نو هم به دَ خبرې مقصد حاصل شوے وو- لیکن دَ غني والې سره ئې دَ صفت دَ رحمت دَ خاص جوړه دَ اهمیت دَ ظاهرولو دَ پاره عنوان دَ ذوالرحمة اختیار او فرمایه، چه هغه دَ غني او مکمّل بې نیازه کیدو باوجود صفت دَ رحمت هم مکمل لري- او دا صفت دَ رسولانو او کتابونو لیګلو اصل سبب دے-

دَ دې نه پس ئې دا او خوده چه څهٔ رنګ کې دۀ رحمت عام او تام دے دغه شان کې دۀ قدرت په هر شي او هر کار باندې حاوي دے- که هغۀ او غواړي نو تاسو لره په یو ان کښې فنا کولے شي او دَ ټول مخلوق په فنا کولو سره هم دَ هغۀ دَ قدرت په کارخانه کښې اَدنیٰ شان فرق هم نه راځي- بیا که هغۀ او غواړي نو موجوده ټول کائنات به فنا کړي دَ دوي په ځائې به نور مخلوق دغه شان هم په دغه ان کښې پیدا کړي- چه دَ دې یو نظیر دَ انسان په هر دَوَر کښې

دَ دهٔ مخ ته راځي - چه ډېر قومونه تېر شوي دي، تاسو هغه انسانان دَ زمکې په مخ چېرته آباد دي او دَ ډېرو په نسلونو کښې دَ مختلف کاروبار چلوي، که دَ دې نه سل کاله وړاندې دنیا ته اوکتے شي نو معلومه به شي چه هغه وخت هم دا دنیا دغه شان آباده وه - او ټول کاروبار چلیدل، مګر دَ موجوده آبادو ټولو کار چلوونکو نه یو هم نه وو - یو بل قوم وه چه اوس دَ زمکې لاندې دي - او دَ کوم چه نن قوم او نښه هم نه شي لیدے - او موجوده دُنیا دَ دغې وړومبي قوم دَ نسل نه پیدا شوې ده - ارشاد دے :-

إِن يَشَأْ يُذْهِبْكُمْ وَيَسْتَخْلِفْ مِن بَعْدِكُم مَّا يَشَاءُ كَمَا أَنشَأَكُم مِّن ذُرِّيَّةِ قَوْمٍ آخَرِينَ : یعنی که الله تعالیٰ اوغواړي نو تاسو ټولو لره به لرې کړي، دَ لرې کولو نه مراد دا ہے فنا کول دي چه نوم نښه ئې ورک شي، او په دے وجه ئې دلته دَ هلاکولو یا وژلو ذکر او نه کړو - بلکه لرې کول ئې ارشاد او فرمائیل چه په دې کښې محض فنا کولو او نوم نښه ورکولو طرف ته اشاره ده -

په دے آیت کښې دَ الله جل شانهٔ دَ غنی او بے نیاز کیدو، بیا دَ صاحب رحمت کیدو، او بیا دَ کامل قدرت دَ مالک کیدلو نه پس په دویم آیت کښې نا فرمانو او حکم نه منوونکو ته خبردارے دے چه :-

إِنَّ مَا تُوعَدُونَ لَآتٍ وَمَا أَنتُم بِمُعْجِزِينَ : یعنی الله تعالیٰ چه تاسو لره دَ کوم عذاب نه ېرَوي هغه خامخا راتلونکے دے، او که تاسو ټول یو ځائے شئ هم دَ خدائے عذاب نه شئ منع کولے -

په دریم آیت کښې بیا دَ غفلت نه دَ بیدار ولو دَ پاره ئې یوه بله طریقه اختیار کړه او ئې فرمائیل، : قُلْ يَا قَوْمِ اعْمَلُوا عَلَىٰ مَكَانَتِكُمْ إِنِّي عَامِلٌ فَسَوْفَ تَعْلَمُونَ مَن تَكُونُ لَهُ عَاقِبَةُ الدَّارِ إِنَّهُ لَا يُفْلِحُ الظَّالِمُونَ : چه په دے کښې نبي کریم صلے الله علیه وسلم ته خطاب دے چه ته دے اهل مکه ؤ ته اُووایه چه اے زما قومه که تاسو زما خبره نه منئ نو ستاسو اختیار دے مه منئ او خپل حالت خپل عقیدے نه خپل عناد مطابق عمل کوئ، زهٔ هم دَ خپلې عقیدے مطابق عمل کوم، زما په دے کښې هیڅ نقصان نیشته لیکن ډیر زر به تاسو ته معلومه شي چه دَ آخرت دَ کور نجات او فلاح چا ته حاصلیږي په دے به پوهه شئ چه ظالمان

یعنې حق ضائع کوونکي چرته فلاح نه شي موندې۔

او د تفسیر امام ابن کثیر د دې ایت په تفسیر کښې دې طرف ته هم اشاره فرمائیلې ده، چه دلته ئې په ایت کښې: مَنْ تَكُونُ لَهٗ عَاقِبَةُ الدَّارِ: فرمائیلې دې: عَاقِبَةُ الدَّارِ الْاٰخِرَةِ: ئې نه دې فرمائیلې د دې نه معلومیږي چه د اخرت د کورنه علاوه د دُنیا په کور کښې هم اخر فلاح او کامیابي د الله تعالی نیکانو بندګانو ته حاصلیږي۔ لکه چه د نبي کریم صلی الله علیه وسلم او صحابه کرامو حالات په دې ګواه دي۔ چه په لږه زمانه کښې ټول د قوت او اقتدار خاوندان د دوی په وړاندې خوار او ذلیل شو، او ملکونه ئې د دوی په لاس فتح شو۔ بلکه د رسالتؐ په زمانه کښې ټول جزیره عرب د دوی ماتحت شو، د یمن او بحرین نه واخله د شام د حد ونو پورې د دوی حکومت خور شو۔ بیا د دوی د خلفاؤ او صحابه وو په لاس تقریبًا پوره دُنیا د اسلام د جنډې لاندې راغلله۔ او د الله تعالی دا وعده پوره شوه: كَتَبَ اللّٰهُ لَاَغْلِبَنَّ اَنَا وَرُسُلِيْ: "یعنې الله لیکلي دي چه زه به غالب راځم او زما رسولان به غالب راځي"۔ او په دویم ایت کښې ارشاد دې: اِنَّا لَنَنْصُرُ رُسُلَنَا وَالَّذِيْنَ اٰمَنُوْا فِي الْحَيٰوةِ الدُّنْيَا وَيَوْمَ يَقُوْمُ الْاَشْهَادُ: "یعنې مونږ د خپلو رسولانو مدد کوو او د هغې خلقو چه ایمان راوړي په دې دنیا کښې هم او په هغه ورځ هم کله چه په عملونو ګواهي کوونکي په ګواهئ اودریږي" یعنې د قیامت په ورځ۔

په څلورم ایت کښې ئې د عرب و مشرکانو له د دوی په یو خاصه ګمراهئ او غلط کارئ باندې خبردار کړي دي۔ د عربو دا عادت وه چه د فصل او باغونو او د اروندئ د تجارت نه به څه پیدا وار او شو په دې کښې به ئې یوه حصه د الله تعالی د پاره او یوه حصه د خپلو بتانو د پاره وليستله، د الله تعالی د نوم حصه به ئې په غریبانو فقیرانو او مسکینانو خرچ کوله، او د بتانو د نوم حصه به ئې د بت خانې په مجاورانو او حفاظت کوونکو خرچ کوله۔

اول خو د دوی دا ظلم څه کم ظلم نه وه چه ټول څیزونه الله تعالی پیدا کړي دي او د هرڅه پیدا وار هم هغه ورکوي، او بیا د هغه په ورکړه شوو څیزونو کښې بتانو له شریکوي، او په دې د پاسه ظلم به ئې دا کولو، چه

که چرته په پیدا وار کښې به څۀ کمے راغے نو دے کمی لره به ئے د الله په حصه باندې په دے دُنیا سره پوره کولو چه الله تعالیٰ غنی دے زمونږ د څیزونو محتاج نه دے؛ او د بتانو حصه به ئے هم پوره کوله او د خپل استعمال حصه هم، او کله چه به دا سے او شوه چه د بتانو د حصے نه یا د دوی د خپلے حصے نه به څۀ شے د الله تعالیٰ په حصه کښې پریوتو نو د حساب پوره کولو د پاره به ئے د دے نه ویستلو، او که معامله به په عکس او شوه چه د الله د حصے نه به د بتانو په حصے کښې یا د دوی په حصے کښې څه شے راغلو نو هغۀ به ئے هلته پاتے کولو- او دا به ئے وے چه الله خو غنی دے که د دۀ د حصے نه څۀ شے کم هم شی نو خیر دے- قرآن کریم د دوی دا گمراهی او غلط کاری ذکر کړے ده فرمائی: سَآءَ مَا يَحْكُمُوْنَ: یعنی د دے خلقو دا فیصله ډیره ناکاره او د شرم ده، چه چا دوی لره او د دوی تهولو څیزونو لره پیدا کړل، نو اول ئے د هغۀ سره نور رولره شریک کړل بیائے د هغۀ حصه هم په مختلفو بهانو سره نورو ته نقل کړه-

| |
|---|
| کښې د مسلمانانو د پاره عبرت<br>سبق او نصیحت په دے خبرداری |

دا خو د عربو مشرکانو ته په یوه گمراهۍ او غلط کارۍ باندې خبرداری وه- د دے سره په دے ضمن کښې د هغو مسلمانانو د پاره هم د عبرت تازیانه ده، کوم چه د الله تعالیٰ ورکړے ژوند او د هغۀ د ورکړی اندامونو پوره طاقت په مختلفو حصو کښې تقسیموی، د عمر او وخت یوه حصه د الله او د هغۀ د عبادت د پاره خاص کوی- حال دا دے چه حق دا وه چه د عمر ټول وختونه او ساعتونه ئے د هغۀ د عبادت او طاعت د پاره وقف وے- د انسانی ضرورتونو او مجبوری د پاره ئے د دے نه څه وخت د ځان د پاره هم ویستلے- او حق خو دا دے چه بیا هم د هغه د شکر حق نه ادا کیږی، مگر زمونږ حال دا دے چه په شپه او ورځ ځلیر ویشتو گنټو کښې که مونږ څۀ وخت د الله تعالیٰ د یاد او د عبادت د پاره مقرر کړے هم وی خو کله چه څۀ ضرورت راپیښ شی نو نه د خپل کار په وخت کښې خلل راولو نه د آرام په وخت کښې ټول نزله په هغه وخت گوزاروو کوم چه د مانځه تلاوت یا عبادت د پاره مقرر وی- که څۀ کار راپیښ شی یا بیماری یا څۀ بل ضرورت نو د ټولو نه اول د دے اثر په هغه وخت پریوځی کوم چه مونږ د الله د ذکر یا عبادت د پاره خاص کړے وی دا ډیره غلطه فیصله او ناشکری ده الله تعالیٰ دِ مونږ ټول مسلمانان د دے نه اوساتی (آمین)

وَكَذٰلِكَ زَيَّنَ لِكَثِيرٍ مِّنَ الْمُشْرِكِينَ قَتْلَ أَوْلَادِهِمْ

او دا رنګه ښائسته کړے دے ډیرو مشرکانو ته قتل د اولاد د دوی لره

شُرَكَآؤُهُمْ لِيُرْدُوهُمْ وَلِيَلْبِسُوا عَلَيْهِمْ دِينَهُمْ ۖ

د دوی شریکانو چه هلاک کړی دوی لره او خلط ملط کړی په دوی دین د دوی لره

وَلَوْ شَآءَ اللّٰهُ مَا فَعَلُوهُ ۖ فَذَرْهُمْ وَمَا يَفْتَرُونَ ﴿۱۳۷﴾

او که الله تعالیٰ غوښتلے نو دوی به دا کار نه وه کړے پس پریږده دوی پریږده شه او کوم چه دوی دروغ

وَقَالُوا هٰذِهٖۤ أَنْعَامٌ وَّحَرْثٌ حِجْرٌ ۖ لَّا يَطْعَمُهَآ

او وائی چه دا څاروی او فصل منع دے دا به هیڅوک نه خوری

إِلَّا مَنْ نَّشَآءُ بِزَعْمِهِمْ وَأَنْعَامٌ حُرِّمَتْ ظُهُورُهَا

مګر چا لره چه مونږ غواړو د دوی په خیال، او په بعضو څاروو یے سوریدل حرام کړل،

وَأَنْعَامٌ لَّا يَذْكُرُونَ اسْمَ اللّٰهِ عَلَيْهَا افْتِرَآءً

او په بعضے څاروو د ذبحے په وخت کښے د الله نوم نه اخلی په الله دروغ

عَلَيْهِ ۚ سَيَجْزِيهِمْ بِمَا كَانُوا يَفْتَرُونَ ﴿۱۳۸﴾ وَقَالُوا

جوړوی - ډیر زر به هغه سزا ورکړی دوی لره د دے دروغو - او وائی

مَا فِي بُطُونِ هٰذِهِ الْأَنْعَامِ خَالِصَةٌ لِّذُكُورِنَا

کوم بچے چه د دے څاروی په ګیډه کښے دے دا به خاص زمونږ سړی خوری

وَمُحَرَّمٌ عَلٰٓى أَزْوَاجِنَا ۖ وَإِنْ يَّكُنْ مَّيْتَةً فَهُمْ

او د ښځو حرام دے زمونږ په ښځو - او کوم بچے چه مړ وی نو د دے په خوراک کښے

فِيْهِ شُرَكَآءُ ؕ سَيَجْزِيْهِمْ وَصْفَهُمْ ؕ اِنَّهٗ حَكِيْمٌ

به تول برابر وی - هغهٔ به سزا ورکړی دوی له د دوی د بیانونو - هغه حکمت والا

عَلِيْمٌ ﴿۱۳۹﴾ قَدْ خَسِرَ الَّذِيْنَ قَتَلُوْٓا اَوْلَادَهُمْ

پوهه دے - بے شکه خراب شو چا چه قتل کړو خپل اولاد لره

سَفَهًاۢ بِغَيْرِ عِلْمٍ وَّحَرَّمُوْا مَا رَزَقَهُمُ اللّٰهُ

ناپوهئ سره بغیر د علم نه او حرام ئے کړو هغه رزق چه الله ورله ورکړو

افْتِرَآءً عَلَى اللّٰهِ ؕ قَدْ ضَلُّوْا وَمَا كَانُوْا مُهْتَدِيْنَ ﴿۱۴۰﴾

دروغ جوړول په الله بانډ - بے شکه دوی ګمراه شو او نه شو لار موندونکی -

## د ایاتونو تړون

په تیرو ایاتونو کښے د مشرکینو د باطلو عقیدو د کفر او شرک بیان وه، په دے ایاتونو کښے د دوی د عملی غلطو او جاهلانه رسمونو ذکر دے . . . د کوم جاهلانه رسمونو ذکر چه په دے ایاتونو کښے راغلے دے هغه دا دی :-

اول په غله او میوه کښے څه حصه د الله په نوم جدا کوی او څه د بتانو او شیطانانو په نوم، بیا اتفاقاً که د الله تعالیٰ د حصے نه څه حصه د بتانو په حصه کښے ملاؤ شی نو هم دغه شان ئے پاتے کوی، او که معامله په عکس اوشی نو لرے کوی ئے او د بتانو حصه پوره کوی - او بهانه دا وه چه الله تعالیٰ غنی دے د دهٔ حصه که کمه شی نو هیڅ نقصان نیشته، او شریکان محتاج دی د دوی حصه کمول نه دی پکار - د دے ناکاره رسم بیان د دے ذکر شوو ایاتونو نه په وړاندې ایاتونو کښے راغلے دے -

دویم رسم دا وه چه بحیره سائبه جانوران به ئے د بتانو په نوم باندې پریخودل او دا به ئے وے چه دا کار د الله تعالیٰ د خوشحالئ د پاره دے په دے کښے هم د بتانو حصه دا وه چه عبادت د هغوی وه. او د الله تعالیٰ حصه

داشوه چه دا به ئې د الله خوشنودي ګنړله -

دریم رسم د خپلو لونړو د قتل کولو وه -

څلورم رسم څنې فصل به ئې د بتانو په نوم کولو او ویل به ئې چه د دې اصل مصرف صرف سړي دي. ښځو ته د دې نه څۀ ورکول نه ورکول زمونږ په مرضۍ باندې دي د دوي حق د مطالبې نیشتې -

پنځم رسم به ئې دغه شان کار په څاروو کښې کولو چه بعضې به ئې یکښې د سړو د پاره خاص کول -

شپږم رسم چه کوم څاروي به ئې د بتانو په نوم پرېښو دل په هغو به ئې سوارلې کول او بار وړل حرام ګنړل -

اووم رسم، بعضې څاروي به ئې خاص کول چه په هیڅ موقع به ئې پرد الله نوم نۀ اخستلو - نۀ د لوشلو په وخت کښې نۀ د سورېدو په وخت کښې اونۀ د ذبح کولو په وخت کښې -

اتم رسم دا وه چه د کوم څاروو نوم به ئې بحیره یا سائبه کېښو دو د بتانو په نوم به ئې پرېښو دلو - د دوي د ذبح په وخت کښې به که ترې بچې د کیږه نه ژوندې را اووت نو دغه به ئې هم ذبح کاوه خو دا به صرف د سړو د پاره حلال وه د ښځو د پاره به ئې حرام ګاڼۀ - او که بچې به مړ را اووت نو د ټولو د پاره به حلال وه -

نهم رسم، د بعضې څاروو پئ به ئې د سړو د پاره حلال او د ښځو د پاره حرام ګنړل -

لسم رسم، د بحیره، سائبه، وصیله، حامي، څلور قسم څاروو تعظیم به ئې عبادت ګنړلو -

(دا ټول روایتونه په دُرّ منثور او روح المعاني کښې د حضرت ابن عباسؓ مجاهدؒ، ابن زیدؒ او سدیؒ نه په روایت د ابن منذرؒ ابن ابي حاتمؒ، ابن ابي شیبه، ابن حُمید نقل دي)

(د بیان القرآن نه)

---

# لنډ تفسیر

دغه شان د ډیرو مشرکانو په خیال کښې د دوی معبودانو (شیطانانو)
د خپل اولاد قتلول غوره ښکاره کړي دي (لکه چه په جاهلیت کښې د جینکو
قتلول یا ژوندۍ ښخول رسم وه) د دې د پاره چه (د دې ناکاره کار په کولو
سره) هغه (شیطانان) دوی (مشرکانو) لره (په وجه د مستحق کیدو د عذاب)
برباد کړي او د دې د پاره چه د دوی لارے لره ورګډ کړي (چه همیشه په غلطۍ
کښې ښختي وي)، او ته د دوی په دې ناکاره حرکتونو سره مه غمژن کیږه ځکه
چه) که الله تعالیٰ ته (د دوی بندول) منظور وے نو دا سے کار به ئے نه وه کړے
نو ته دوی لره او هغه چه دوی غلطے خبرے جوړوي (چه زمونږ دا کار ښهٔ
دے) هم د غسے پریږده (هیڅ فکر مه کوه مونږ به ورسره پوهه شو) او
دوی پخپل (غلط) خیال سره داهم وائي چه دا (خاص) څاروي دي او
(خاص) فصلونه دي چه د دې استعمال هر سړي لره جائز نه دے دے لره هیڅوک
نه شي خوړے سوا د هغو نه کومو لره چه مونږ غواړو (لکه چه په څلورم
او پنځم رسم کښې ذکر شو) او (دا سے وائي چه دا خاص) څاروي دي پکومو
چه سوارلي یا باروړل حرام شوي دي (لکه چه په شپږم رسم کښې ذکر شو)
او (دا سے وائي چه دا خاص) څاروي دي پکومو چه (د الله نوم اغستل
نه دي پکار، نو د دې عقیدے په وجه سره په هغوي) دا خلق د الله نوم نهٔ
اخلي (لکه چه په اووم رسم کښې ذکر شو)، او دا ټولے خبرے) محض په الله
د دروغو جوړولو په طور (بانديز والي)، دروغ په دے وجه چه دوی دا کارونه
د الله تعالیٰ د رضا موجب ګنړي) اوس به الله تعالیٰ دوی ته د دے دروغو
جوړولو سزا ورکړي (اوس ئے ځکه اووے چه قیامت کوم چه راتلونکے دے
لرے نه دے، او ځینې ځینې سزاګانے خو به د مرګ سره شروع شي) او هغوی
(داهم) وائي چه کوم شے د دے څاروو د ګیډے نه (راوتونکے) دی (مثلاً پئ
یا بچي) هغهٔ خالص زمونږ د سړو د پاره (حلال) دے او زمونږ په ښځو
حرام دے او که هغه (د ګیډے نه راوتلے بچي) مړ وی نو به دے (نفع اغستو کښې

(رسمې او بنيځې) ټول برابر دي (لکه چه په اتم او نهم رسم کښې ذکر شو) او س
الله تعالىٰ دوی ته دَ دوی دَ (دې) غلطو خبرو سزا ورکوی (غلطې خبرې هغه
دي کومې چه اوس په دروغو جوړ ولو کښې تيرې شوې. او ترا وسه پورې چه
ئې سزا نه ده ورکړې نو وجه داده چه) بې شکه هغه حکمت والا دې (دَ
بعضې حکمتو نو په وجه ئې مهلت ورکړې دے. او ترا وسه په سزا نه ورکولو
سره دے داسې نه گڼړی چه گو نې هغه خبر نه دے څکه چه) هغه لوئې
علم والا دے (دے دَ هرڅهٔ نه خبر دے. وړاندې په لنډه سره دَ انجام ذکر
کوی فرمائی چه) واقعی په خرابئ کښې پریوتل هغه خلق چا چه (دا ذکر شو ی
کارونه خپله طريقه جوړه کړه چه) خپل اولاد ئې محض په حماقت سره بې دَ
څه (معقول او مقبول) سند نه قتل کړل او کوم (حلال) څيزونه چه دوی ته
الله تعالىٰ دَ خوړلو سکلو دَ پاره ورکړې وی هغو لره ئې (په عقيده، يا عمل سره)
حرام کړل (لکه چه بره په رسمونو او وهمونو کښې چه منشاء دَ ټولو يوه ده ذکر
شوا و دا ټول) محض په الله دَ دروغو جوړولو په طور بانې (او شو، لکه
چه بره په قتل دَ اولاد کښې: يَفْتَرُوْنَ: او په حرامولو دَ څاروو کښې: اِفْتِرَآءً:
جدا جدا هم راغلی دی) بې شکه دا خلق په گمراهئ کښې پریوتل او (دا گمراهي
نوے نه ده بلکه پخوانئ ده څکه چه مخکښې هم) چرته دوی په لارې با نې نه
وُو (پس په: ضَلُّوْا: کښې پخوړ دَ لارے او په: مَا كَانُوْا: کښې دَ دے تاکيد او
په: خَسِرُوْا: کښې پخوړ دَ بد انجام چه عذاب دے ذکر کړے شو)-

---

وَهُوَ الَّذِيْٓ اَنْشَاَ جَنّٰتٍ مَّعْرُوْشٰتٍ وَّغَيْرَ مَعْرُوْشٰتٍ

او هغهٔ پیدا کړی دی باغونه چه په چتو نو خوروَلے شی او په چتو نو نه شی خوروَلے

وَّالنَّخْلَ وَالزَّرْعَ مُخْتَلِفًا اُكُلُهٗ وَالزَّيْتُوْنَ وَ

او دَ کجورو ونې او فصلونه چه مختلف دهٔ ميوه او پيدا کړے ئې دے خونه او

الرُّمَّانَ مُتَشَابِهًا وَّغَيْرَ مُتَشَابِهٍ ۭ كُلُوْا مِنْ ثَمَرِهٖٓ

آنار لره د یو بل په شان او جُدا جُدا هم - خورئ د دوی د میوے نه

اِذَآ اَثْمَرَ وَاٰتُوْا حَقَّهٗ يَوْمَ حَصَادِهٖ ڮ وَلَا تُسْرِفُوْا ۭ

هر کله چه میوه او نیسی او ادا کوئ د دے حق په کوم ورځ چه کټ کوئ او بے ځایه خرچ مکوئ

اِنَّهٗ لَا يُحِبُّ الْمُسْرِفِيْنَ ﴿١٤١﴾ وَمِنَ الْاَنْعَامِ حَمُوْلَةً

د هغهٔ نه خوښیګی بے ځایه خرچ کوونکی - او پیدا کړئ ئے دی د څاروُونه بار وړونکی

وَّفَرْشًا ۭ كُلُوْا مِمَّا رَزَقَكُمُ اللّٰهُ وَلَا تَتَّبِعُوْا

او د زمکے سره لګیدونکی - خورئ د الله د رزق نه او مهٔ ځئ د

خُطُوٰتِ الشَّيْطٰنِ ۭ اِنَّهٗ لَكُمْ عَدُوٌّ مُّبِيْنٌ ﴿١٤٢﴾

شیطان په قدمونو باندے - هغهٔ ستاسو دشمن دے ښکاره -

# لنډ تفسیر

او هغه (الله پاک) دے چا چه باغونه پیدا کړل هغه هم کوم چه چتونو باندِ خیژولے شی (لکه انګور) او هغهٔ هم کوم چه په چتونو باندِ نهٔ شی خیژولے (یا په دے وجه چه خوریږ ونکی بوټی نهٔ دی لکه تنه دارے ونے یا سره د دے چه خوریږونکی بوټی دی خو عادت نهٔ دی لکه هندوانه خربوزه وغیره) او د کجورو ونے او فصلونه (هم هغهٔ پیدا کړی دی) په کوم کښے چه د خوراک څیزونه په مختلف طور سره (حاصل) وی، او زیتون او انار (هم هغهٔ پیدا کړی دی) کوم چه (آنار آنار) د یو بل سره (او زیتون زیتون د یو بل سره په رنګ، خوند، شکل او مقدار کښے په بعضے صفتونو کښے هم) د یو بل مشابه وی او (کله) د یو بل سره مشابه هم نه وی

را و الله تعالیٰ دے خپز ونو لره پیدا کړل او اجازت ئے کړے دے چه) د دے نه لو
پیدا وار خوری (خواه د هغې وخت نه) کله چه هغه را ادرسی را ولا پا بنه شوی
نه وی) او رحا مخاد دے سره دومره ضروری ده چه) په دے کښے چه کوم حق
رپه شریعت سره) واجب دے (یعنی خیرخیرات) هغه د دے د کټ کولو په ورځ
په ورځ (مسکینا نوته) ورکوئ او رپه دے ورکولو کښے هم) د حد نه (شرعی اجازت
نه) زیاتے مه کوئ یقیناً هغه (یعنی الله تعالیٰ) د حد نه (د شرعی اجازت نه) زیاتی
کونکو لره نه خوښوی او (څنګه چه باغونه او فصلونه الله تعالیٰ پیدا کړی دی
هغه شان حیوانات هم ئې) په څاروو کښے اوچت قد والا (هم) او د ټیټ
قد والا رهم هغهٔ پیدا کړی دی او د دوی په باره کښے ئے هم په مثل د
باغونو او د فصلونو اجازت کړے دے چه) څهٔ چه الله تعالیٰ تا سو لره درکړی
دی راو په شریعت سره ئے حلال کړی دی هغې لره) خورئ او (د خپل طرف
نه د حرامولی په احکامو جوړولو) د شیطان په قدمونو باندې مه ځئ بے شکه
هغهٔ ستاسو ښکاره دشمن دے (چه تا سو لره سره د ښکاره او واضحه کیدو
د دلیلو نو ګمراه کوی) -

# مَعلومَات او مَسَائِلے

په تیرو وایاتونو کښے د مکے د مشرکانو د دے ګمراهۍ ذکر وو چه د
الله تعالیٰ په پیدا کړو څارووا او د دهٔ په ورکړو نعمتونو کښے دے ظالمانو
د خپلو لاسو نو جوړ کړی بے روحه بتان د الله تعالیٰ سره حصه دار مقرر
کړی دی، کوم شے چه دوی په طور د عبادت یا صدقے یا خیرات اوباسی په
دے کښے یوه حصه د الله تعالیٰ او دویمه حصه د بتانو مقرر کوی بیا د الله
تعالیٰ حصه هم په مختلفو حیلو حوالو سره د بتانو په حصه کښے وراچوی
دغه شان نور رواجونه یے وجا حلالنه رسمونو لره ئے د شریعت د قانون حیثیت
ورکړے دے -
په ذکر شوو ایاتونو کښے په اول ایت کښے الله تعالیٰ د بوټو د نو مختلف
قسمونه او د دے په فائدو او میوو کښے د خپل کامل قدرت د چیرانونکو کمالونو

ذکر او فرمایه، او په دویم ایت کښې دغه شان د څاروو د مختلفو قسمونو د پیدا ایښی ذکر ئے او فرمایه دوی ته ئے د دوی په گمراهئ خبردارے ورکړو چه داجاهلان خلق څنگه د علیم او خبیر قادر مطلق سره بے خبره بے شعوره او بے روحه او بے طاقته څیزونه شریک جوړ وی.

او بیائے دوی ته د نیغے لارے او صحیح عمل طرف ته هدایت او فرمایه چه هر کله د دے څیزونو په پیدا کولو او تا سولوه ورکولو کښې څوک شریک نیشته نو په عبادت کښې دوی لره شریکول انتهائی کفران د نعمت او ظلم دے چا چه دا څیزونه پیدا کړل تا سولوه ئے درکړل او ستا سو د پاره ئے دا سے مسخر کړه چه څنگه غواړئ استعمالولے ئے شئ او بیائے دا ټول څیزونه تا سو لره حلال کړهٔ په تا سو فرض دی چه د دے نعمتونو نه د فائدے اخستلو په وخت کښې د شکر حق اداکړئ شیطانی خیالونو او جاهلانه رسمونو څپل دین نه جوړ وئ.

په اولنی ایت کښې د: اَنْشَاَ: معنی ده پیدا کړل. او: مَعْرُوْشٰتٍ: د عرش نه جوړ دے معنیٰ ئے ده پورته کول او اوچتول. د مَعْرُوْشٰت نه مراد د ونو هغه بوټی دی چه په چوپا لونو باندې خورے ولے شی لکه انگور او بعضے ترکاریٔ. او د دے په مقابله کښې په غَیْرَ مَعْرُوْشٰت کښې هغه ټولے وُنے شاملے دی چه څانگے ئے بره نه شی اوچتولے. خواه تنه دارے وی او که د ذیلو وُنے د او ډیلے ئے په زمکه خوریگی بره نه ختری لکه هندوانه خربوزه وغیره.

او د: نَخْل: معنیٰ د کجورو وُنه ده او: زَرْع: هر قسم فصل ته ویلے شی. او زَیْتُوْن: د خونه وُنے ته هم وائی او میوے ته ئے هم. او: رُمَّان: انار ته ویلے شی.

په دے ایاتونو کښې الله تعالیٰ اول په باغونو کښې د پیدا کیدو نکو وُنو دوه قسمونه بیان کړل. یو قسم هغه چه څانگے ئے پورته خیژ ولے شی. دویم قسم هغه چه څانگے ئے پورته نه شی خیژ ولے. په دے کښې ئے خپل حکمتِ بالغه او کامل قدرت ته اشاره کړے ده. چه د یوے بناوړے او یونو

اُو بوُ، يوے هوا او فضاء نه ښنك ښنك مختلف قسم بوټي پيدا كوى، بيا دَ
دى دَميوو تيا ريدل شُنَه او تازه ئې ساتل او په دوى كښې په زرګونو
اِنګو دى شوى خاصيتونه چه ځنې وُنې ئې داسې جوړے كړى دى چه تر
څو پورے ئې چو پال ته او نه خيژوى ميوه نه نيسى او كه او نيسى هم خو
غټيږى او لوئيږى نه، لكه انګور كدو وغيره - او ځنې وُنې ئې داسې
كړى دى چه كه بره ئې خيژوى خو نه خيژى او كه وخيژى هم خو بيا ئې
ميوه كمزورے وى، لكه خربوزه هندوانه وغيره، او بعضې وُنې ئې
په مضبوطو تنو باندِ داسې او دُرولے او دَ نګې كړى دى چه دَ بنى آدم
په كاريګرئ عادتًا داسې ممكن نه وُو - او دَ وُنو دا دنګار رنګ والے محض
اتفاقى نه دے - بلكه په لوئې حكمت او دَميوو دَ مزاج په خاصيت سره
دے - بعضې ميوه په زمكه او بناورِه سره غټيږى او پخيږى، او بعضِ
په بناوُرو لګيدو سره خرابيږى، بعض په اوچتو بناخونو پورے په زنګيدو
هوا او غړ سپوږمئ او ستورو په شغلو سره رنګ حاصلوى، دَ هرے يوے
دَپاره قدرت دَ هغې په مناسبت سره انتظام كړے دے - فَتَبَارَكَ اللّٰهُ أَحْسَنُ
الْخَالِقِيْنَ -

دَ دے نه پس ئې په خصوصى طور سره دَ كجورے دَ وُنې او فصلو نو
ذكر او كړو، دَ كجورے ميوه عام طور سره دَ خوند او مزے دَپاره خوړے
شى او دَ ضرورت په وخت كښې تِه دَ پوره خوراك كار هم اغستے شى - او دَ
فصلو نو نه پيدا كيدونكے غلے عام طور سره دَ بنى آدمو او څاروو دَ خوراك
دَپاره استعمالولے شى - دَ دے دواړو دَ ذكر كولو نه پس فرمائى: مُخْتَلِفًا
اُكُلُهٗ: په دے كښې دَ "اُكُلُهٗ" ضمير فصل (زرع) ته هم راجع كيدے شى او
كجورے (نَخْل) طرف ته هم - په هر حال دواړه تِرِ مراد دى - معنى دا دهٔ چه
په كجورو كښې مختلف قسمونه او دَ هر قسم مختلف خوند دے - او په فصلونو
كښې مختلف قسمونه په سوونو دى او دَ هر قسم خوند او فائدے مختلفې دى
دَ يوے بناورے او بوا و زمكې نه په راوتونكو ميوو كښې دومره عظيم
الشان تفاوت، او بيا دَ هر قسم دَ فائدو او خاصيتونو حيرانوونكے اختلاف

او رنګا رنګ والے، یو معمولی عقل لرونکے انسان هم په دے مثلاً مجبوره کوی چه د دے پیدا کوونکے څوک داسے هستی ده چه په قیاس کښے نه راځی او نه د هغهٔ د علم او حکمت اندازه څوک انسان لګولے شی۔

د دے نه پس ئے دوه څیزونه نور ذکر کړل یعنی آنار او د خونه میوه، چه میوه هم ده او ترکاری هم، او د دے تیل د ټولو تیلو نه صاف، شفاف او عمده والی سره ډیرے فائدے او خاصیتونه هم لری۔ د زړګو نو مرضونو یو غوره علاج دے، دغه شان د آنار ډیرے فائدے او خاصیتونه دی، چه هر عام او خاص پرے پوهه دی۔ د دے دواړو میوو د ذکر کولو نه پس فرمائی: مُتَشَابِهًا وَّغَيْرَ مُتَشَابِهٍ؛ یعنی په دوی کښے د هر یو میوه څهٔ داسے وی چه په رنګ او خوند کښے یو شان وی، او څهٔ داسے هم وی چه رنګ او خوند ئے مختلف وی۔ او دا د بعضو دانو رنګ خوند او مقدار یو شان والے او د بعضو مختلف والے په آنار کښے هم وی او په خونهٔ کښے هم۔

د دے ټولو قسمونو د ونو او میوو ذکر کولو نه پس ئے په دے آیت کښے انسان ته دوه حکمونه کړی دی، اولنے حکم پخپله د انسان د خواهش او د نفس د تقاضے پوره کولو دے فرمائی: كُلُوْا مِنْ ثَمَرِهٖٓ اِذَآ اَثْمَرَ؛ یعنی د دے ونو او فصلونو میوو لره خورئ هر کله چه دوی میوه اونیسی۔ په دے کښے دے خبرے طرف ته اشاره ده چه د دے ټولو قسمونو ونو پیدا کوونکی مالک مقصد په دوی سره خپل څهٔ ضرورت پوره کول نه دی، بلکه ستاسو د فائدے د پاره ئے پیدا کړی دی پس ستاسو اختیار دے چه دوی لره خورئ او فائدے ترے اخلئ۔ او اِذَآ اَثْمَرَ؛ ئے او فرمائیل دے طرف ته ئے اشاره او کړه چه د ونو د بنا خوئو او څانګو نه میوه را ویستل ستاسو کار نه دے او نه ستاسو په وس کښے ده، کله چه د الله په اذن دغه میوه را اوځی نو د خوړلو اختیار ئے دغه وخت تاسو ته حاصل شی خواه هغهٔ لا اوس پخه شوے وی او که نهٔ۔

د زمکے عُشر | دویم حکم ئے دا او کړو: وَاٰتُوْا حَقَّهٗ يَوْمَ حَصَادِهٖ؛ د اٰتُوْا معنیٰ ده: را کړئ: یا، آدا کړئ، او: حصاد: وائی د فصل ریبلو یا شوکولو ته د میوے، او د: حَقَّهٗ: ضمیر هر هغه د خوراک شی ته راجع دے د کوم چه بر ذکر شوے دے

معنی دا ده چه دا تول څیزونه خوری او سکی استعمالوی مګر یوه خبره یاد ساتی چه د فصل ریبلو یا میوے شوکولو په وخت کښے د دی حق هم ورکوی. د حق نه مراد په غریبانو او مسکینانو صدقه کول دی لکه چه په بل آیت کښے په عامو الفاظو کښے ارشاد دے :-

| | |
|---|---|
| وَفِيٓ اَمْوَالِهِمْ حَقٌّ مَّعْلُوْمٌ لِّلسَّآئِلِ وَالْمَحْرُوْمِ - | یعنی د نیکو خلقو په مالونو کښے مقرر حق وی د غوښتونکو او نه غوښتونکو د فقیرانو او مسکینانو. |

مراد د دے صدقے نه عامه صدقه خیرات دے، یا خاصه صدقه چه د زمکے زکوٰة یا عُشر ورته وئیلے شی - په دے کښے د تفسیر د امامانو صحابهؓ او تابعینوؒ دوه قولونه دی - بعضے حضراتو اولنے قول اختیار کړے دے او وجه ئے دا بیانوی چه دا آیت مکی دے، او زکوٰة د هجرت نه دوه کاله پس په مدینه منوره کښے فرض شوے دے - په دے وجه دلته د حق نه مراد د زمکے زکوٰة نشی کیدے - او بعضے حضراتو دا آیت په مدنی آیتونو کښے شمار کړے دے او د حق نه مراد ئے د زمکے زکوٰة او عُشر اخستے دے.

او د تفسیر امام ابن کثیر خپل تفسیر کښے او ابن عربی اندلسی په احکام القرآن کښے د دے فیصله داسے کړے ده چه آیت که مکی وی او که مدنی په دواړو صورتونو کښے د آیت نه د زمکے زکوٰة یعنی عشر مراد کیدے شی ځکه چه د دوی په نزد د زکوٰة د واجبیدو اصل حکم په مکه کښے نازل شوے وو د سورت مزمل آیت د زکوٰة په حکم باندے مشتمل دے چه په اتفاق سره مکی دے، البته مقدار د زکوٰة او نصاب مقرر کیدل وغیره د هجرت نه پس اوشو - او د دے آیت نه صرف دومره معلومیږی چه د زمکے په پیداوار باندے د الله تعالیٰ د طرف نه څهٔ حق لازم شوے دے او د مقدار تعین ئے په دے کښے ذکر نه دے - په دے وجه د مقدار په حق کښے دا آیت مجمل دے - او په مکه کښے د دے مقدار ټاکل په دے وجه ضروری نه وو - چه هلته مسلمانانو ته دا اطمینان حاصل نه وو، چه د باغونو او زمکو پیداوار په آسانئ سره حاصل کړی، په دے وجه په دغه زمانه کښے خو رواج هغه وُو کوم چه د

وړاندې نه په نیکو خلقو کښې رارواں وه چه دَ فصل ریبلو یا میوې شوکولو په وخت کښې به کوم غریبانان هلته جمع وو هغوی له به ئې څهٔ ورکول. خو خاص مقدار مقرر نه وه. دَ اسلام نه اوَّل په نورو امتو نو کښې هم دَ فصل او میوو په دې شان دَ صدقې ورکولو رواج دَ قرآن کریم په آیت: إِنَّا بَلَوْنٰهُمْ كَمَا بَلَوْنَا أَصْحٰبَ الْجَنَّةِ: کښې ذکر دے. دَ هجرت نه دوه کاله پس چه څنګه په نورو مالونو کښې دَ نصاب او مقدار دَ زکوٰة تفصیلات نبی کریم صلی الله علیه وسلم دَ وحئ په ذریعه بیان کړل. دغه شان ئې دَ زمکې دَ زکوٰة بیان او فرمایه. کوم چه دَ حضرت معاذ بن جبل او ابن عمر او جابر بن عبد الله رضی الله عنهم په روایتونو کښې په ټولو کتابونو دَ حدیث کښې نقل دی. مَا سَقَتِ السَّمَآءُ فَفِيْهِ الْعُشْرُ وَمَا سُقِيَ بِالسَّانِيَةِ فَنِصْفُ الْعُشْرِ: یعنی په بارانی زمکو کښې کوم ځائې چه دَ اوُبه کولو څهٔ سامان نه وی صرف په باران باندې دَ پیداوار دارمدار وی دَ دَغې زمکو په پیداوار کښې لسمه حصه په طور دَ زکوٰة ویستل واجب دی. او کومې زمکې چه په کوهو سره اوُبه کولے شی دَ هغوی دَ پیداوار شلمه حصه واجب ده.

دَ زکوٰة په قانون کښې اسلامی شریعت دَ هر قسم په زکوٰة کښې دے خبرے له دَ بنیادی اصُولو په طور سره استعمال کړے ده، چه پکوم پیداوار کښې محنت او خرچ کم وی په هغې کښې دَ زکوٰة مقدار زیات، او څومره چه محنت او خرچ په پیداوار کښې زیاتیګی هومره دَ زکوٰة مقدار کمیګی. دَ مثال په طور داسې پوهه شئ چه که چاته پټوائې خزانه ملاؤشی یا دَ سرو سپینو کان بیاموسی نو دَ دے پنځمه حصه په طور دَ زکوٰة په دهٔ لازمه ده، ځکه چه محنت او خرچ کم او پیداوار زیات دے، دَ دے نه پس دَ بارانی: مکې نمبر دے چه محنت او خرچ پکښې دَ کم نه کم دے نو دَ دے زکوٰة دَ پنځمې حصې نیم دے یعنی لسمه حصه ده. دَ دے نه پس هغه زمکه ده چه په کوهی یا دَ نهر په اغستو شوُو اوُبو سیراب کولے شی په دے کښې محنت او خرچ زیات شو نو زکوٰة ئې هم دَ دے نه نیم شو یعنی شلمه حصه شو. دَ دے نه پس عام سرهٔ سپین او دَ تجارت مال دے چه په حاصلولو او زیاتولو باندې ئې خرچ هم زیات کیږی او محنت پکښې هم زیات دے نو دَ دے زکوٰة دَ دے نیم یعنی څلویښتمه حصه شو.

دَ قرآن په ذکر شوی ایت کښې او دَ احادیثو په ذکر شوو روایتونو کښې دَ زمکې دَ پیداوار دَ پاره څهٔ نصاب نهٔ دے مقرر شوے، په دے وجه امام اعظم ابو حنیفهؒ او امام احمد بن حنبلؒ مذهب دا دے چه دَ زمکې پیداوار که لږ دی او که زیات په هر حال زکوٰة ویستل تِرِ ضروری دی، دَ قرآن کریم دَ سورتِ بقره په ایت کښې چه دَ زمکې دَ زکوٰة ذکر دے هلته هم دَ دے دَ پاره څهٔ نصاب ذکر نهٔ دے، ارشاد دے :-

| اَنْفِقُوْا مِنْ طَيِّبٰتِ مَا كَسَبْتُمْ وَمِمَّآ اَخْرَجْنَا لَكُمْ مِّنَ الْاَرْضِ - | "یعنی خرچ کوئ دَ خپلې حلالې گټې نه او دَ هغهٔ شی نه کوم چه مونږ ستاسو دَپاره دَ زمکې نه را ویستلی دی" |
|---|---|

دَ تجارت په مالونو او څارویو کښې خو نبی کریم صلے الله علیه وسلم نصاب بیان کړے دے چه دَ دوه سوه درهمو نه کم سپینو زرونه په کم کښې زکوٰة نیشته دَ ستو بیزو پنځو او بنا ټونه په کم کښې زکوٰة نیشته - لیکن دَ زمکې دَ پیداوار متعلق چه کوم بیان په بره حدیث کښې راغلے دے په دے کښې هیڅ نصاب نهٔ دے خودلے شوے، په دے وجه په هر لږ او ډیر کښې دَ زمکې دَ پیداوار نه لسمه یا شلمه حصه ویستل واجب دی -

په اخر ایت کښې فرمائی : وَلَا تُسْرِفُوْا اِنَّهٗ لَا يُحِبُّ الْمُسْرِفِيْنَ ؛ "یعنی دَ حد نه زیات خرچ مه کوئ، ځکه چه الله تعالیٰ فضول خرچ خلقو لره نه خوښوی" دلته سوال دا دے چه دَ الله تعالیٰ په لاره کښې که یو سړے خپل ټول مال بلکه ځان هم خرچ کړی نو دے ته اسراف نه شی ویلے، بلکه دَ حق ادا کول ورته ویل هم مشکل دی، بیا دلته دَ اسراف نه دَ منع کولو څهٔ مطلب دے؟ جواب دا دے چه په یو طرف کښې دَ اسراف نتیجه عادةً په بل طرف کښې کموالے او کوتاهي وی کوم سړے چه بخیلو خواهشاتو کښې بے دریغه دَ حد نه زیات خرچ کوی دوی عام طور دَ نورو په حقونو ادا کولو کښې کوتاهي کوی - دلته ئې دَ دے کوتاهي نه منع کړے ده - یعنی چه یو طرف ته سړے خپل ټول مال دَ الله په لاره کښې خرچ کړی او خالی پاتے شی نو دَ اهل و عیال او خپلوانو بلکه دَ خپل نفس حقونه به څنګه ادا کوی په دے وجه ئې داصابیت کړے دَی چه دَ الله په لاره کښې په خرچ کولو کښې اعتدال ساتل چه ټول حقونه ادا شی -

ثَمٰنِيَةَ اَزْوَاجٍ ۚ مِنَ الضَّاْنِ اثْنَيْنِ وَمِنَ الْمَعْزِ

پیدا کړي يې دي آته نر او ښځه - د ګډو نه دوه
او د بيزو نه

اثْنَيْنِ ؕ قُلْ ءٰٓالذَّكَرَيْنِ حَرَّمَ اَمِ الْاُنْثَيَيْنِ

دوه - او وايه چه دواړه نران الله حرام کړي دي او يا دواړه ښځې ؟

اَمَّا اشْتَمَلَتْ عَلَيْهِ اَرْحَامُ الْاُنْثَيَيْنِ ؕ نَبِّئُوْنِيْ

يا هغه بچي چه مشتمل وي په هغه بچي دانه د دواړو ماده و - او ښايئ ما ته

بِعِلْمٍ اِنْ كُنْتُمْ صٰدِقِيْنَ ﴿١٤٣﴾ وَمِنَ الْاِبِلِ اثْنَيْنِ

سند که تاسو رشتونی يئ - او پیدا کړي يې دي د اوښانو نه دوه

وَمِنَ الْبَقَرِ اثْنَيْنِ ؕ قُلْ ءٰٓالذَّكَرَيْنِ حَرَّمَ اَمِ

او د غواګانو نه دوه - او وايه چه آيا دواړه نران يې حرام کړي دي او يا

الْاُنْثَيَيْنِ اَمَّا اشْتَمَلَتْ عَلَيْهِ اَرْحَامُ الْاُنْثَيَيْنِ ؕ

دواړه ماده يا هغه بچي چه مشتمل وي پري بچه دانه د دواړو د ښځو -

اَمْ كُنْتُمْ شُهَدَآءَ اِذْ وَصّٰكُمُ اللّٰهُ بِهٰذَا ۚ فَمَنْ

آيا تاسو حاضر وئ څه وخت چه الله تاسو ته دا حکم کړے وه ؟ بيا د هغه نه

اَظْلَمُ مِمَّنِ افْتَرٰى عَلَى اللّٰهِ كَذِبًا لِّيُضِلَّ النَّاسَ

زيات ظالم څوک دے چه ..... جوړوي په الله باندي دروغ چه خلق ګمراه کړي

بِغَيْرِ عِلْمٍ ؕ اِنَّ اللّٰهَ لَا يَهْدِي الْقَوْمَ الظّٰلِمِيْنَ ﴿١٤٤﴾ ع ۱۷

بے تحقيقه - بے شکه الله هدايت نه کوي ظالمانو خلقو ته -

# لنډ تفسير

(او د اغاروی پکو موکښې چه تاسو حلال حرام کوئ) اَته نرا وماده (ئې پيدا کړی دی، يعنې ګډه (او ګډ) کښې دوه قسمه (يو نر يو ماده) او په بېزه کښې دوه قسمه (يو نر او يو ماده) ته (د دوی ته) او وايه چه (دا او ښايئ چه) آيا الله تعالیٰ (په دې دواړو جانورانو کښې) دواړه نران حرام کړی دی يا دواړه ماده ئې حرامې کړې دی) يا هغه (بچی) لره کوم چه د دواړه مادې په (رحم) کښې ده کښې لرئ (هغه بچی نر وی او که ماده يعنې تاسو چه پکو مو مختلفو صورتونو سره د حرامولی دعوه کوئ نو آيا حرام والے الله تعالیٰ فرمائيلے دے) تاسو ما ته په څهٔ دليل سره خو او ښايئ که چېرے (پخپله دعوه کښې) رښتونی يئ (دا خو د وړوکی قد والا جانورانو متعلق بيان اوشو وړاندې د لوئے قد والو بيان دے چه په ګډه بېزه کښې ئے هم نرا وماده پيدا کړل لکه چه بيان ئے اوشو) او (د دغه شان) په اوښ کښې دوه قسمونه (يو نر او يو ماده) او په غوا (مېښه) کښې دوه قسمونه (يو نر او يو ماده ئے پيدا کړه) ته (د په دے باره کښې هم) او وايه چه (دا خو او ښايئ چه) آيا د دے دواړو (جانورانو) کښې الله تعالیٰ نرانو لره حرام کړی دی يا دواړو ماده ؤ لره (ئے حرام کړی دی) يا هغه (بچی) لره کوم چه د دے دواړو ماده ګانو (په خپله) ګېډه کښې اغستی وی (دغه بچی نر وی او که ماده، د دے هم دغه مطلب دے چه تاسو کوم په مختلفو صورتونو د حرامو دعوه کوئ نو آيا دا حرام والے الله تعالیٰ فرمائيلے دے؟ په دے باندې څهٔ دليل قائمول غواړی، چه د هغې دوه طريقې دی يو خو دا چه د څهٔ رسول يا فرښته په واسطې سره وی، پس په مسئله د نبوّت او وحیٔ سره خو تاسو انکار کوئ نو دا رخ خو نه شی اختيار ولے، پس دويمه طريقه د دعوے کولو مقرره شوه چه په خپله الله تعالیٰ بې واسطې تاسو ته دا احکام در کړی وی نو) آيا تاسو (دغه وخت) حاضر وئ څهٔ وخت چه الله تعالیٰ تاسو ته د دے (حرامو او حلالو) حکم در کولو (او ښکاره ده چه دا دعوه خو هم نه شی کولے پس ثابته شوه چه د دوی سره څهٔ دليل نيشته) نو (پس د ثبوت

دَ دے کار نه چه په دے دعوے ځه دلیل نیشته یقیني خبره ده چه) دَ ده نه زیات ظالم (او دروغژن) به څوک وی کوم چه په الله تعالیٰ بغیر دلیله (دحرامو او دَ حلالو) نه دروغ تهمت لګوی دَ دے دَپاره چه خلق ګمراه کړی (یعنی دا سړے به چه ظالم وی او) یقیناً الله تعالیٰ ظالمانو خلقو ته (دَجنّت) لار (په آخرت کښے) به او نه ښائی (بلکه دوزخ ته به ئے اولیګی، پس دا خلق به هم دَ دے جُرم په سزا کښے دوزخ ته لاړ شی)۔

قُلْ لَّآ اَجِدُ فِیْمَآ اُوْحِیَ اِلَیَّ مُحَرَّمًا عَلٰی طَاعِمٍ

ته اووایه چه زهٔ نه مومم په حکم کښے چه ما ته ئے وحی شوے ده څهٔ شی لره حرام په خوړونکی

یَّطْعَمُهٗٓ اِلَّآ اَنْ یَّكُوْنَ مَیْتَةً اَوْ دَمًا مَّسْفُوْحًا

چه خوری ئے مګر دا چه هغه شے مردار وی یا وینه بهید ونکے وی

اَوْ لَحْمَ خِنْزِیْرٍ فَاِنَّهٗ رِجْسٌ اَوْ فِسْقًا اُهِلَّ لِغَیْرِ

یا غوښه دَ خنزیر وی چه هغهٔ ناپاکه ده، یا ناجائز ذبحه چه نوم پرے واخستے شی

اللّٰهِ بِهٖ ۚ فَمَنِ اضْطُرَّ غَیْرَ بَاغٍ وَّلَا عَادٍ فَاِنَّ رَبَّكَ

په غیر دَ الله نه دَ بل چا۔ بیا چه څوک دَ لوږے نه بے اختیاره شی نه نافرمانی کوی او نهٔ زیاتے کوی نو ستا

غَفُوْرٌ رَّحِیْمٌ ﴿۱۴۵﴾ وَعَلَی الَّذِیْنَ هَادُوْا حَرَّمْنَا

رب لوئے معاف کوونکے ډیر مهربان دے۔ او په یهودو باندے مونږ حرام کړی وُو هر یو

كُلَّ ذِیْ ظُفُرٍ ۚ وَمِنَ الْبَقَرِ وَالْغَنَمِ حَرَّمْنَا عَلَیْهِمْ

نوکونو والا ځناور او دَ غواو بیزے نه حرام کړی وُو مونږه په دوی باندے

شُحُوْمَهُمَآ اِلَّا مَا حَمَلَتْ ظُهُوْرُهُمَآ اَوِ الْحَوَایَآ

دَ دی چربی مګر کومه چه لګیدلی وی په شا دَ دوی پورے یا په کولمو باندے

أَوْ مَا اخْتَلَطَ بِعَظْمٍ ۚ ذَٰلِكَ جَزَيْنَاهُمْ بِبَغْيِهِمْ

یا چربي چه ملاؤ وي د هډوکي سره - دا مونږ دوی له سزا ورکړې وه د دوی په شرارت

وَإِنَّا لَصَادِقُونَ ﴿۱۴۶﴾ فَإِنْ كَذَّبُوكَ فَقُلْ رَبُّكُمْ

او مونږ رښتيا وايو - بيا که تا لره دروغژن کړي نو ته او وايه چه ستاسو رب

ذُو رَحْمَةٍ وَاسِعَةٍ ۚ وَلَا يُرَدُّ بَأْسُهُ عَنِ

رحمت لوئې فراخه دے - او نه شي واپس کيدے د ده عذاب د

الْقَوْمِ الْمُجْرِمِينَ ﴿۱۴۷﴾

ګناه ګارو خلقو نه -

# لنډ تفسير

ته او وايه چه (پکو مو حيوانا تو کښې خبره روانه ده د دے متعلق) کوم احکام په ذريعه د وحئ ماته رالغلي دي په دي کښې خوزهٔ څهٔ حرام خوراک نه مومم د چا خوړونکي د پاره چه دے لره خوري (خواه سړے وي او که ښځه) مګر (دے څيزونو لره البته حرام مومم هغه) دا چه هغه مردار (جانور) وي (يعني کوم چه ذبح ئې واجب وي او بے ذبح مړ شي يعني په شرعي طريقه ذبح نه شي) يا دا چه بهيد ونکے وينه وي يا د خنزير غوښه وي ځکه چه دغه (خنزير) بالکل ناپاک دے (په دے وجه د ده ټول اجزاء پليت او حرام وي دا سے پليت چه نجس العين ورته ويلے شي) يا کوم (جانور وغيره) چه د شرک ذريعه وي (دا سے) چه (په اراده د تقرب د) غيرالله نامزد کړے شوے وي (پس دا ټول حرام دي) بيا (هم په دے کښې دومره اسانی اچولے شوے ده چه) کوم سړے (د لوږے نه ډير) بے تابه شي په دے شرط چه نه خو په خوراک کښې خوند او مزه طلب کونکے وي او نه (د ضرورت د اندازے

تجاوز کونکے وي نو په دے حالت کښې د دے حرامو څیزو نو په خوراک به هم په دغه سړي هیڅ گناه نه وي) واقعي ستا رب (د دغه سړي د پاره) غفور رحیم (یعني بخونکے او مهربان) دے (چه په داسے وخت کښې ئے رحمت او فرمايه چه د گناه د شي نه ئے گناه پورته کړو) او په یهودو مونږ تول نوکونه لرونکي ښاروي حرام کړي وُو او د غوا او بیزے (په اجزاؤ کښې) د دواړو چربي په دوي (یهودو) مونږ حرامه کړے وه مګر هغه (چربي ترے مستثنیٰ وه) کومه چه (د دے دواړو) په شا پورے یا کولمو پورے لګیدلے وي یا کومه (چربي) چه د هډوکي سره ملاؤ وي (باقي تول چربي حرامه وه پس د دے څیزو نو حرامولي في نفسه مقصود نه وه بلکه) د دوي د شرارت په سبب مونږ دوي ته داسزا ورکړے وه او مونږ یقیناً رشتوني یُو۔ بیا (د دے ذکرشوي تحقیق نه پس هم) که دا (مشرکان) تا ته (نعوذ بالله په دے مضمون کښې صرف په دے وجه ) دروغژن او وائي (چه په دوي عذاب نه راځي) نو ته (په جواب کښې) او فرمايه چه ستا سو رب ډیر لوئے رحمت والا دے (د بعض حکمتو نو په وجه ذر کرفت نه کوي) او (په دے سره داسے مه گڼړئ چه همیشه به داسے بچ اوسئ کله چه دغه مقرر وخت راشي نو هغه وخت به) د هغه عذاب د مجرمانو خلقو نه (په هیڅ جوړه) نه شي واپس کولے۔

سَيَقُولُ الَّذِينَ أَشْرَكُوا لَوْ شَاءَ اللَّهُ مَا أَشْرَكْنَا

اوس به اووائي مشرکان که الله غوښتلے نو شرک به نه وُو کړے مونږ ه

وَلَا آبَاؤُنَا وَلَا حَرَّمْنَا مِنْ شَيْءٍ ۚ كَذَٰلِكَ كَذَّبَ

او نه زمونږ پلارنیکه او نه به مونږ حرام کړے وه څهٔ شے۔ دغه شان دروغژن کړو

الَّذِينَ مِنْ قَبْلِهِمْ حَتَّىٰ ذَاقُوا بَأْسَنَا ۗ

هغو خلقو چه د دوي نه وړاندې وُو تردې چه دوي او څکلو عذاب ز مونږه۔

قُلْ هَلْ عِندَكُم مِّنْ عِلْمٍ فَتُخْرِجُوهُ لَنَا ۖ إِن

ته ووایه څه علم شته ستاسو سره چه مونږ ته یې ښکاره کړئ. تاسو

تَتَّبِعُونَ إِلَّا الظَّنَّ وَإِنْ أَنتُمْ إِلَّا تَخْرُصُونَ ﴿١٤٨﴾

صرف اټکل چلوئ او صرف اندازه کوے -

قُلْ فَلِلَّهِ الْحُجَّةُ الْبَالِغَةُ ۖ فَلَوْ شَاءَ لَهَدَاكُمْ

ته اووایه پس د الله لره پوره دے. پس که خوښه وغوښتی نو تاسو ټولو ته

أَجْمَعِينَ ﴿١٤٩﴾ قُلْ هَلُمَّ شُهَدَاءَكُمُ الَّذِينَ

به هدایت اوکړی - ته اووایه چه راولئ خپل ګواه چه ګواهی اوکړی

يَشْهَدُونَ أَنَّ اللَّهَ حَرَّمَ هَٰذَا ۖ فَإِن شَهِدُوا

د دے خبرے چه الله حرام کړی دی دے شیزونو لره پس که دوی ګواهی اوکړی

فَلَا تَشْهَدْ مَعَهُمْ ۚ وَلَا تَتَّبِعْ أَهْوَاءَ الَّذِينَ

نو ته اعتبار مه کوه په دوی - او مه ځه د خلقو په خواهشاتو چه

كَذَّبُوا بِآيَاتِنَا وَالَّذِينَ لَا يُؤْمِنُونَ بِالْآخِرَةِ

دروغژن کړل حکمونه زمونږ او کوم چه یقین نه کوی په آخرت

وَهُم بِرَبِّهِمْ يَعْدِلُونَ ﴿١٥٠﴾

او دوی د خپل رب سره برابر د وی نورو کوی -

ع ١٨ ٥

# لنډ تفسير

(دا مشرکان به داسې او وائي چه که الله تعالی ته (په طور د رضا دا کار) منظور وې (چه مونږ دِ شرک او حرامول او نه کړو، يعنې که الله تعالی شرک نه کول او نه حرامول خوښول او شرک او حرامول ئې ناخوښه وې) نو نه ده به مونږ شرک کړې وه او نه زمونږ پلار نيکه به شرک کړې وه) او نه به مونږ (او نه زمونږ مشرانو) څه شی حرام (چه ذکر ئې پره شوې دې) حرام کړې وو (د دې نه معلومه شوه چه الله تعالی په دې شرک او حرامولو ناراضه نه دې. الله تعالی جواب کوي چه دا استدلال په دې وجه باطل دې چه په دې سره د رسول دروغژن کول لازميږي. پس د خلق رسول دروغژن کوي) ولکه څنګه چه دوي کوي (دغه شان کوم کافر) خلق چه د دوي نه وړاندې تير شوي دي هغوي هم (د رسولانو) دروغژن کول کړي وو تر دې چه دوي زمونږ د عذاب مزه او څکله (خواه په دنيا کښې. لکه چه په اکثرو تيرو کافرانو باندې عذاب نازل شوې دې. يا د مرګ نه پس خو ښکاره خبره ده. او دا اشاره ده دې طرف ته چه د دې خلقو د کفر د خبرو مقابله صرف په قولي جواب او مناظره سره نه شي کولې بلکه د تيرو کافرانو په شان به عملي سزا هم ورکولې شي خواه په دنيا کښې هم او يا صرف په اخرت کښې. وړاندې د دويم جواب ورکولو د پاره ارشاد دې چه) ته (دوي ته) اووايه چه آيا ستاسو سره (په دې مقدمه چه ستاسو په دې کفر باندې الله رضا دې) څه دليل شته (که وي) نو هغه مونږ ته رو برو ښکاره کړئ (اصل خبره داده چه دليل وغيره هيڅ هم نيشته) تاسو خلق محض په خيالي خبرو باندې چليږئ او تاسو بالکل په تکل سره خبرې کوئ (او دواړه جوابونه ورکړه) ته (دوي ته) ووايه چه پس (د دواړو جوابونو نه معلومه شوه چه) پوره حجت د الله تعالی سره دې (او ستاسو حجت باطل شو) بيا (خو پکار داوه چه تاسو قبول په لاره شوي وې مګر د دې توفيق د الله تعالی د طرف نه دې) که هغه غوښتلې نو تاسو

قول به ئے په رنغه) لار راوستی وَئے (مکو دَ الله تعالیٰ چیرِ حکمتونه دی چا لره توفیق ورکوی چا لره نه ورکوی، البته دَ حق ظاهرولَ او اختیار او اراده ورکول دَ تولو دَ پاره عام دی، وړاندِ دَ نقلی دلیل دَ مطالبے دَ پاره ارشاد فرمائی چه) ته (ردوی ته) اووایه چه (دَ خپل عقلی دلیل حال خو تاسو ته معلوم شو نو بنهٔ ده اوس څه صحیح نقلی دلیل پیش کړئ مثلاً) خپلو گواهانو لره راولئ چه په دے خبره باندِ (با قاعده) شهادت اوکړی چه الله تعالیٰ دغه (ذکر شوی) څیزونه حرام کړی دی (با قاعده شهادت حغه دے چه په مشاهده مبنی وی یا په داسے قطعی دلیل مبنی وی چه دَ مشاهدے په شان یقینی وی لکه چه په: اَمْ كُنْتُمْ شُهَدَآءَ اِذْ وَصّٰكُمْ: کښے دے طرف ته اشاره ده) بیا که (چرته اتفاقاً خوک فرضی گواه راولی او) حغهٔ (گواه دَ دے) گواهی (هم) ورکړی نو (چونکه دغه شهادت یقیناً بے قاعدے او محض خبره جوړَولَ به وی ځکه چه مشاهده به هم نه وی او دَ مشاهدے مثل به هم نه وی په دے وجه) ته دَ غه گواهی مهٔ آوره او (هرکله چه دَ دے دروغوالے لکه چه:... وَلَآ حَرَّمْنَا: او: كَذٰلِكَ كَذَّبَ الخ: پرے دلالت کوی. او دَ آخرت نه انکار لکه چه هیرا یا تونه پرے دلالت کوی، او شرک کول لکه چه: اَشْرَكْنَا: پرے دلالت کوی، ثابته شوه نو اے مخاطبه) دَ داسے خلقو دَ باطلو خیالاتو (چه باطل والے ئے اوس ثابت شو) تا بعداری مه کوه کوم چه زمونږ ایا تونه دروغژن کوی او کوم چه په آخرت ایمان نه لری (او په دے وجه نه ورشوی دی دَ حق تلاش نه کوی) او حغوی (دَ عبادت په استحقاق کښے) دَ خپل رب سره نور شریکوی (یعنی شرک کوی)۔

قُلْ تَعَالَوْا اَتْلُ مَا حَرَّمَ رَبُّكُمْ عَلَيْكُمْ اَلَّا تُشْرِكُوْا

ته اووایه چه تاسو راشئ چه زه ووایم تاسو ته کوم چه حرام کړی په تاسو ستا رب چه مه شریکوی

بِهٖ شَيْـًٔا وَّبِالْوَالِدَيْنِ اِحْسَانًا ۚ وَلَا تَقْتُلُوْٓا اَوْلَادَكُمْ

دَ حغهٔ سره څهٔ شے او دَ مور و پلار سره نیکی کوئ او مه وژنئ خپل اولاد لره

مِّنْ اِمْلَاقٍ ۭ نَحْنُ نَرْزُقُكُمْ وَاِيَّاهُمْ ۚ وَلَا تَقْرَبُوا

د خوارئ نه - مونږ رزق در کوو تاسو ته او دوی ته - او مه نږدے کیږئ د

الْفَوَاحِشَ مَا ظَهَرَ مِنْهَا وَمَا بَطَنَ ۚ وَلَا تَقْتُلُوا

بے حیائی کارنه کوم چه ظاهر وی په دے کښے او کوم چه پټ وی او مه قتلوئ هغه

النَّفْسَ الَّتِيْ حَرَّمَ اللّٰهُ اِلَّا بِالْحَقِّ ۭ ذٰلِكُمْ وَصّٰىكُمْ

نفس لره کوم چه حرام کړے دے الله مګر په حقه - تاسو ته ئے دا حکم کړے دے

بِهٖ لَعَلَّكُمْ تَعْقِلُوْنَ ﴿١٥١﴾ وَلَا تَقْرَبُوْا مَالَ الْيَتِيْمِ

چه تاسو پوهه شئ - او مه نږدے کیږئ مال د یتیم ته

اِلَّا بِالَّتِيْ هِيَ اَحْسَنُ حَتّٰى يَبْلُغَ اَشُدَّهٗ ۚ وَاَوْفُوا

مګر داسے چه غوره وی تر دے چه اورسی ځلے ځوانئ ته او پوره کوئ

الْكَيْلَ وَالْمِيْزَانَ بِالْقِسْطِ ۚ لَا نُكَلِّفُ نَفْسًا اِلَّا

پیمانه او تول په انصاف سره - مونږ په چا هغه شے لازم کوو د کوم

وُسْعَهَا ۚ وَاِذَا قُلْتُمْ فَاعْدِلُوْا وَلَوْ كَانَ ذَا قُرْبٰى ۚ

چه په ده کښے طاقت وی او کله چه خبره کوئ نو حقه وایئ اګرچه هغه خپلوان وی

وَبِعَهْدِ اللّٰهِ اَوْفُوْا ۭ ذٰلِكُمْ وَصّٰىكُمْ بِهٖ لَعَلَّكُمْ

او د الله وعده پوره کوئ - تاسو ته دا حکم کوی چه تاسو

تَذَكَّرُوْنَ ﴿١٥٢﴾ وَاَنَّ هٰذَا صِرَاطِيْ مُسْتَقِيْمًا فَاتَّبِعُوْهُ ۚ

نصیحت واخلئ - او بے شکه دا لار زما نیغه ده پس په دے چلیږئ -

وَلَا تَتَّبِعُوا السُّبُلَ فَتَفَرَّقَ بِكُمْ عَنْ سَبِيلِهٖ ؕ

او مه ځئ په لارو ګنړو باندې چه تاسو به جدا کړي د الله د لارې نه.

ذٰلِكُمْ وَصّٰىكُمْ بِهٖ لَعَلَّكُمْ تَتَّقُوْنَ ﴿۱۵۳﴾

دا حکم ئې کړے دے تاسو ته چه تاسو ځان اوساتئ۔

# لنډ تفسير

تهٔ (ددوي ته) اووايه چه راشئ زهٔ تاسو ته هغهٔ څيزونه واورَوَم کوم لره چه ستاسو رب په تاسو حرام کړي هغه ( څيزونه دا دي چه يو) دا چه د الله تعالیٰ سره هيڅ شي لره مه شريکوئ (پس شريک جوړَوَل حرام شو) او (دويم دا چه) د مور و پلار سره نيک سلوک کوئ (پس د دوي سره بد کول حرام شو) او (دريم دا چه) خپل اولاد لره د خوارئ په سبب (لکه چه په جاهليت کښې اکثر عادت وو) مهٔ قتلوئ (ځکه چه) مونږ دوئ او تاسو ته (دواړو) ته رزق (کوم چه په تقدير کښې دے) ورکوو (ددوي ستاسو په حصه رزق کښې شريک نه دي، نو بيا ئې وَلے قتلوئ، پس قتلول حرام شو) او (څلورم دا چه) د بے حيائ (يعنی بدکارئ) څومره طريقې دي هغې ته مه نزدے کيږئ (پس زنا کول حرام شو) خواه دغه په ښکاره وي او که په پټه وي (دغه طريقې دا دي) او (پنځم دا چه) د کوم قتل الله حرام کړے دے هغه مه قتلوئ مګر په حق (شرعي) باندې (قتل جائز دے، مثلاً په قصاص کښې يا په رجم کښې، پس ناحق قتل کول حرام شو) د دے (ټولو) تاسو ته (الله تعالیٰ) تاکيدي حکم کړے دے چه تاسو په دے پوهه شئ (او بوهه شئ عمل اوکړئ) او (شپږم دا چه) د يتيم مال ته مه نزدے کيږئ (يعنی تصرف په کښې مه کوئ) مګر په داسے طريقه (د تصرف اجازت دے) کومه چه (شرعاً) غوره وي (مثلاً د دهٔ په کار کښې ئې لګول، حفاظت ئې کول، او بعضے اولياء او وصيانو ته په دے کښې يعنی د يتيم په مال کښې د تجارت کولو هم اجازت دے)

تر دے چه دوی خپل وخت دَ ځوانۍ ته اورسی (تر دغې وخته پورے دَ دے دَ کرشوو تصرفاتو کولو هم اجازت دے، او بیا به دَ دهٔ مال دهٔ ته ورکولے شی، په دے شرط چه دے ناپوهه نه وی، پس غیر شرعی تصرّف دَ یتیم په مال کښے حرام شو) او (اووم داچه) پیمانه او تول پوره پوره کوئ په انصاف سره (چه دَچا حق نهٔ تاسو ته پاتے شی او نه راشی، پس په دے کښے دوکه کول حرام شو، او دا حکمونه څهٔ گران نه دی ځکه چه) مونږ (رخو) چا کس ته دَ دهٔ دَ طاقت نه سوا (دَ حکمونو) تکلیف (رحم) نه ورکوو (بیا په دے حکمونو کښے وَلے کوتاهی کَولے شی) او (اَتم دا) کله چه تاسو (دَ فیصلے یا شهادت وغیره متعلق څهٔ) خبره کوئ نو (په دے کښے) دَ انصاف کولو خیال ساتئ اگر که دغه سړے (دَ کوم په مقابله کښے چه دغه خبره کوئ ستاسو) خاص خپلوان وی (پس دَ عدل نه خلاف کول حرام شو) او (نهم داچه) دَ الله تعالیٰ سره کومه وعده او کړئ (لکه قسم یا نذر په دے شرط چه جائز وی) هغهٔ پوره کوئ (پس دَ دے نهٔ پوره کول حرام شو) دَ دے (رتولو) الله تعالیٰ تاسو ته تاکیدی حکم کړے دے دَ دے دَ پاره چه تاسو یاد اوساتئ (او عمل پرا اوکړئ) او (دا رحم او وایه) چه (دا حکمونه څه خاص نه دی بلکه دا دین (دَ اسلام او دَ دے ټول حکمونه) زما لاره ده (دَ کومے طرف ته چه زهٔ دَ الله تعالیٰ په حکم سره بلنه ورکوم) کومه چه برابره (ده بالکل اونیغه) ده پس په دے لاره چلیگئ او په نورو لارو باندِ مه چلیگئ چه دغه لارے به تاسو دَ الله دَ لارے نه (دَ کومے طرف ته چه زهٔ بلنه کوم) جدا (او لرے) کړی دَ دے تاسو ته الله تعالیٰ تاکیدی حکم کړے دے دَ دے دَ پاره چه تاسو (دَ دے لارے دَ خلاف کولو نه) احتیاط اوکړئ۔

## معلومات او مسئلے

دَ دے ایاتونو نه وړاندِ تقریبًا په دوه درے رکوع کانو کښے پرلپسے دا مضمون بیانیگی چه غافل او جاهل انسان دَ زمکے آسمان او ټولو څیزونو پیدا کوونکی احکم الحاکمین نازل کړے شوے قانونیاتے کړے دے او خپل

دَ پلار نیکه او دَ نَیکه ګانو جوړ کړی رسمونه ئے خپل دین جوړ کړے دے، کوم څیزونو لره چه الله پاک حرام کړی وُو، هغهٔ ئے جائز کړی استعمالوی ئے، او ډیر څیزونه کوم چه الله تعالیٰ حلال کړی وُو، دغه ئے په ګمان باندے حرام کړل، او بعضے څیزونه ئے دَ سړو دَ پاره جائز او دَ ښځو دَ پاره حرام بعضے دَ ښځو دَ پاره حلال او سړو دَ پاره حرام کړی دی۔

په دے دریو اٰیاتونو کښے دَ هغو څیزونو بیان دے کوم چه الله تعالیٰ حرام کړی دی، په تفصیلی بیان کښے دَ نهو څیزونو ذکر دے۔ دَ دے نه پس ئے لسم حکم داسے بیان کړو چه: هٰذَا صِرَاطِیْ مُسْتَقِیْمًا فَاتَّبِعُوْهُ: یعنی دا دین زما تیغه لار ده په دے چلیږئ" چه په دے کښے ئے دَ نبی کریم صلی الله علیه وسلم دَ راوړی شوی او خودَل شوی شریعت طرف ته اشاره اوکړه تول حلال او حرام، جائز او ناجائز، مکروه او مستحب څیزونو تفصیل ئے دے ته حواله کړو، چه دَ محمد صلی الله علیه وسلم شریعت کوم شی ته حلال وئیلے دے هغهٔ ته حلال او کوم ته چه ئے حرام وئیلے دے هغه حرام اوګنړئ، دَ خپل طرف نه دَ حلالولو او حراموفیصلے مهٔ کوئ۔

بیا دَ کومو لسو څیزونو تفصیلی بیان چه په دے اٰیاتونو کښے راغلے دے په دی کښے اصل مقصد خو دَ حرامو څیزونو بیانول دی، چه پکار خو دا وه چه دا ټول ئے په صیغه دَ نهی دَ منع کولو په عنوان سره بیان کړی وے، لیکن قرآن کریم دَ خپل خاص حکیمانه انداز لاندے په دی کښے څو څیزونو لره په ایجابی طور سره په صیغه دَ امر سره بیان کړل، او مراد دا دے چه دَ دے نه خلاف کول حرام دی (کشاف) دَ دے حکمت به وړاندے معلوم شی۔ هغهٔ لس څیزونه دَ کومو دَ حرامولو بیان چه په دے اٰیاتونو کښے راغلے دے دا دی۔

الله تعالیٰ سره په عبادت او فرمانبرداری کښے چا لره شریک جوړول، مور و پلار سره ښهٔ سلوک نه کول، دَ لوږے او غریبۍ دَ ډیرے نه خپل اولاد لره قتل کول، دَ بے حیائۍ کار کول، چا لره په ناحقه قتل کول، دَ یتیم مال په ناجائز طور سره خوړل، په ناپ تول کښے کمے کول، په

کواهئ یا فیصله یا بله خبره کښې بې انصافي کو، دَ الله تعالیٰ عهد لره نهٔ
پوره کول، دَ الله تعالیٰ نیغ لارے لره پرېښودل اخوا دېخوا نورے لارے
اختیارَ وَل۔

دَ ذکوشوو آیاتو خاص خصوصیات

کعب احبار کوم چه دَ تورات ماهر عالِم وو اوّل دے یهودی وَه، بیا مسلمان شو، دے فرمائی چه دَ قرآن
ښیدَوَ آیاتو نه پکومو کښې چه دَ حرامو څیزونو بیان دے، دَ الله تعالیٰ
کتاب تورات دَ بسم الله نه پس دَ دے آیاتونو نه شروع کیږی (انتهی)، او
وئیلے شوی دی چه دا هغه لس جملے دی کومے چه په موسیٰ علیه السلام
نازلے شوے وے۔

دَ قرآن تفسیر کونکے حضرت عبدالله بن عباس رضی فرمائی چه دا هغه آیاتونه
محکمات دی دَ کوموذکر چه په سورت آلِ عمران کښې راغلے دے، پکومو چه
دَ آدم علیه السلام نه واخله تو خاتم الانبیاء صلی الله علیه وسلم پورے
دَ ټولو پیغمبرانو علیهم السلام شریعتونه متفق پاتے شوی دی۔ په دی
کښې یو شے پریو مذهب او ملت او دیو شریعت کښې منسوخ شوے نه دے
(تفسیر بحر محیط)

دا آیاتونه دَ نبی کریم صلی الله علیه وسلم وصیّت نامه ده

او په تفسیر ابن کثیر کښې دَ حضرت عبدالله بن مسعود رضی نه نقل دے، دوی فرمائی چه کوم
سړے دَ نبی کریم صلی الله علیه وسلم یو داسے وصیّت نامه لیدل غواړی
پکومه چه دَ دوی مُهر لګیدلے وی، نو هغهٔ دِ دا آیاتونه اولولی په دی
کښې هغه وصیّت موجود دے کوم چه نبی کریم صلی الله علیه وسلم دَ الله
په حکم اُمّت ته کړے دے۔

او حاکم په روایت دَ عباده بن صامت رضی نقل کړے دے چه نبی کریم صلی
الله علیه وسلم صحابه کرامو ته خطاب اوکړو او وئے فرمائیل "څوک دے
چه ما سره په درے آیاتونو بانډِ بیعت اوکړی" بیائے دا درے آیاتونه
تلاوت کړل اووئے فرمائیل "کوم سړے چه دے بیعت لره پوره کړی نو
دَ هغهٔ اجر دَ الله تعالیٰ په ذمه شو"

اوس دَ دے لسو څیزونو تفصیلي بیان او دَ دے دا هر وا ایاتو نو تفسیر
اوکورئ، دَ دے ایاتو نو شروع داسے شوے ده: قُلْ تَعَالَوْا اَتْلُ مَا حَرَّمَ
رَبُّكُمْ عَلَيْكُمْ: په دے کښے دَ تَعَالَوْا: ترجمه ده: راشئ: او په اصل کښے دا کلمه
داسے وخت وئیلے شي هر کله چه بلونکے په اوچت ځائے او دریږي لاندِ خلقو
لره ځانته رااوبلي- په دے کښے اشاره دے خبرے طرف ته ده چه دَ دے
دعوت په قبلولو کښے دَ دے خلقو دپاره بَرتَري او لوئي ده- معنیٰ دا ده
چه نبي کریم صلے الله علیه وسلم ته خطاب کوي فرمائي چه ته دے خلقو
ته اووایه چه راشئ چه زه تاسو ته هغه څیزونه اوښایم او لولم کوم
چه الله تعالیٰ په تاسو حرام کړي دي، دا ئے دَ واسطے نه دَ الله تعالیٰ دَ طرف
نه رالیږلے پیغام دے په دے کښے دَ چا دَ گمان اندازے یا قیاس دخل نیشته- دَ
دے دَ پاره چه تاسو دَ دے نه دَ هیڅ کید وخصمانه اوکړئ او فضول دَ چل
طرف نه دَ الله تعالیٰ حلال څیزونه حرام نه کړئ-
دَ دے ایت خطاب اگر چه په دَ واسطے نه دَ مکے دَ مشرکانو طرف ته دے
مگر دَ خطاب مضمون عام دے او ټولو بني نوع انسان لره شامل دے
خواه مؤمن وي او که کافر، عربي وي او که عجمي، او موجود حاضر وي او
که راتلونکي نسلو نه وي (بحر محیط)

**دَ ټولو نه اولنے لوئے گناه شرک دے چه حرام شوے دے**

په دے اهتمام سره ئے خطاب اوکړو دَ محرماتو او ممنوعاتو په فهرست کښے ئے دَ
ټولو نه اول دا ارشاد او فرمائیلو: اَلَّا تُشْرِكُوْا بِهٖ شَيْـًٔا، یعنی دَ ټولو نه
اول کار دا دے چه دَ الله تعالیٰ سره څوک شریک او شراکتي مه جوړ وئ
مه دَ عربو دَ مشرکانو په شان بتانو لره خدایان جوړ وئ، نه دَ یهودو
او نصاراؤ په شان انبیاؤ ته خدایان یا دَ خدائے ځامن وائئ، او نه دَ نورو
په شان فرشتو ته دَ خدائے لونړه وائئ مه دَ جاهلو عوامو په شان انبیاؤ
او اولیاؤ لره په صفت دَ علم او قدرت کښے دَ الله تعالیٰ سره برابر وئ-

**دَ شرک تعریف او قسمونه ئے**

او په تفسیر مظهري کښے دي چه دَ لفظ دَ "شیئًا" معنیٰ
دلته دا هم کیدے شي چه دَ
په هیڅ قسم بنکاره

یا پټ شرک کېنې مه اخته کیږئ، ښکاره شرک خو هر سړے پیژنی چه چا غیر الله لره په عبادت یا اطاعت یا د دهٔ په مخصوصو صفتو نو کښې د الله تعالیٰ برابر یا ورسره شریک مقرر کړی، او پټ شرک دا دے چه په خپل کاروبار او دینی او دنیوی مقصد ونو او نفع نقصان کښې اګر چه عقیده خو داوی چه کارساز الله تعالیٰ دے - مګر عملاً نورو لره کارساز ګنړی، او ټول کوششونه په نورو پورے تړلے ساتی، یا په عبادتو نو کښې ریاکاری کوی چه نورو ته د خود لود پاره مونځ وغیره په ټیک طریقه کوی، او یا صدقه او خیرات د نوم نمائش د پاره کوی، یا عملاً د نفع نقصان مالک چا غیر الله لره مقرر کړی، شیخ سعدی رح دے مضمون لره داسے بیان کړے دے، ۵

درین نوع از شرک پوشیده است

که زیدم به بخشید و عمرم بخست

(یعنی په دے کښې هم یو قسم د پټ شرک دے چه سړے داسے ګنړی چه ماته زید څهٔ را او بخل او عمر راته نقصان اورساوهٔ)

داسے نه ده بلکه بخشش یا نقصان هرڅهٔ چه دی په حقیقت کښې د قادر مطلق د طرف نه دی، زید او عمر پردے دی چه د دے نه د بخشش یا نقصان ظهور کیږی ورنه څنګه چه په صحیح حدیث کښې دی چه که د دنیا ټول پیریان او بنی آدم یو ځائے شی تاته څهٔ داسے نفع د رسول غواړی کوم چه الله تعالیٰ ستا د پاره نه وی مقرر کړے نو بحال ئے نیشتے چه تاته ئے دراورسوی، دغه شان که د ټولے دنیا پیریان او بنی آدم یو ځائے شی تاته څهٔ نقصان د رسول غواړی کوم چه الله تعالیٰ ستا د پاره نه وی مقرر کړے نو دا هم د چا نه ممکنه نه ده -

لنډه دا ده چه د ښکاره او پټ دواړه قسمه شرک نه انتهائی پرهیز کول پکار دی، او په شرک کښې لکه څنګه چه د بتانو وغیره عبادت کول داخل دی، دغه شان انبیاؤ او اولیاؤ لره په علم او قدرت کښې د الله تعالیٰ برابر ګنړل هم په شرک کښې داخل دی، که خدائے مه کړه د چا عقیده داسے وی نو دا ښکاره شرک دے، او که عقیده ئے نه وی مګر عمل ئے داسے وی -

نوبت شرک ورته ونیولے شی، په دے مقام کښے ئے د تولو نه اول د شرک نه د بچ کید و هدایت کړے دے، وجه دا ده چه شرک یو داسے جرم دے د کوم متعلق چه د قرآن فیصله ده چه د دے معافی نیشته۔ د دے نه سوا د نورو گناهونو معافی په مختلفو اسبابو سره کیدے شی۔ په دے وجه په حدیث کښے په روایت د حضرت عباده بن صامت رض او حضرت ابو درداء رض نقل دے چه نبی کریم صلی الله علیه وسلم فرمائیلی دی چه د الله تعالیٰ سره چا لره شریک مه جوړوئ اگر که تاسو ټکړے ټکړے کړے شئ یا تاسو په سولئ او ځوړند کړے شئ، یا تاسو ژوندی او سوځلے شئ۔

| دویم گناه د مورو پلار سره بد سلوکی ده | د دے نه پس دویم شے دا ارشاد فرمائی: وَبِالْوَالِدَيْنِ إِحْسَانًا: یعنی د مورو پلار سره د احسان معامله |
|---|---|

او ښه سلوک کوئ۔ مقصد خو دلته کښے دا دے چه د مورو پلار نافرمانی مه کوئ، دوی ته آزار مه رسوئ، مگر په حکیمانه انداز سره ئے بیان داسے اوکړو چه: مورو پلار سره د احسان معامله کوئ: په دے کښے دے طرف ته اشاره کول دی چه د مورو پلار په حق کښے صرف دومره پوره نه ده چه د دوی نافرمانی مه کوئ او آزار ورته مه رسوئ، بلکه ښه سلوک او په نازبنق انداز سره دوی له راضی ساتل او خوشحالول فرض دی۔ چه د دے بیان بل ځائے په قرآن شریف کښے داسے راغلے دے: وَاخْفِضْ لَهُمَا جَنَاحَ الذُّلِّ: یعنی د دوی په وړاندِ خپلے اوږے په عاجزئ او نیازمندئ سره ښکته کوئ۔

په دے ایت کښے ئے والدینو ته آزار رسول او تکلیف ورکول د شرک نه پس په دویم نمبر جرم مقرر کړے دے لکه چه په بل ایت کښے ئے د دوی حکم منل او دوی ته راحت رسول الله تعالیٰ د خپل عبادت سره یو ځائے ارشاد فرمائیلے دے:

| وَقَضَىٰ رَبُّكَ أَلَّا تَعْبُدُوا إِلَّا إِيَّاهُ وَبِالْوَالِدَيْنِ إِحْسَانًا۔ | یعنی ستا رب دا فیصله کړے ده چه د ده نه سوا د بل چا عبادت مه کوئ او مورو پلار سره د احسان معامله کوئ۔ |
|---|---|

او بل یو ځائے ارشاد دے:

| اَنِ اشْکُرْ لِیْ وَلِوَالِدَیْکَ وَاِلَیَّ الْمَصِیْرُ ۔ | "یعنی ما شکر ادا کوئی او د خپل مور و پلار او بیا به ما طرف ته راځئ - یعنی که خلاف او کړئ نو سزا به بیا مومئ" |
|---|---|

په صحیحینو کښې د حضرت عبد الله بن مسعودؓ نه روایت دے چه دوی د نبی کریم صلی الله علیه وسلم نه تپوس او کړو چه د ټولو نه غوره او بهتر عمل کوم یو دے دوی او فرمائیل چه "مونځ په خپل رستیه وخت کښې کول" فرمائی چه ما بیا تپوس او کړو چه د دے نه پس کوم عمل غوره دے؟ نو او ئے فرمائیل "د مور و پلار سره ښه سلوک کول" بیائے تپوس او کړو چه د دے نه پس کوم عمل دے؟ او ئے فرمائیل "د الله په لاره کښې جهاد کول"

په صحیح مسلم کښې په روایت د ابو هریرهؓ ذکر دے چه یوه ورځ نبی کریم صلی الله علیه وسلم درے پیرے او فرمائیل : رَغِمَ اَنْفُهٗ ، رَغِمَ اَنْفُهٗ ، رَغِمَ اَنْفُهٗ : "یعنی ذلیل شو، ذلیل شو، ذلیل شو" صحابه کرامو عرض او کړو یا رسول اللهؐ! څوک ذلیل شو؟ او ئے فرمائیل هغه سړے چا چه خپل مور و پلار یا په دوی کښې یو تن د زوړ والی په زمانه کښې بیا موندو، او بیا دے جنت ته ورداخل نه شو۔

مطلب دا دے چه د زوړ والی په زمانه کښې د مور و پلار په خدمت سره د جنت موندل یقینی دی، لوئے محروم او ذلیل دے هغه سړے چا چه دومره ارزان جنت د نه او ویستلو، ارزان په دے وجه چه مور و پلار کوم چه په اولاد طبعی طور سره بچپله مهربان وی هغوی په لږ شان خدمت سره ډیر خوشحالیږی د دوی خوشحال ساتل څه ډیر لوئے کار نه دے۔ او د زوړ والی قید ځکه چه کوم وخت مور و پلار تندرست او قوی وی۔ او خپل ضرورت نه بچپله پوره کولے شی، بلکه د اولاد هم مالی او جانی امداد کوی دغه وخت دوی نه د خدمت محتاجه وی او نه د دغه خدمت څه وزن وی۔ د دی ر تقابل خدمت هغه وخت کیدے شی کله چه دوی د زوړ والی په وجه سره محتاجه وی۔

| دریم حرام قتل د اولاد دے | دریم شے د کوم حراموالے چه په دے آیت کښې |
|---|---|

بیان شوے دے هغه قتل د اولاد دے - او مناسبت ئے دا دے چه د دے نه وړاندې د مورو پلار د حق بیان وه کوم چه د اولاد په ذمه دے او په دے کښې د اولاد د حق بیان دے کوم چه د مورو پلار په ذمه دے - او اولاد سره د بد سلوک کولو د ټولو نه ناکاره معامله هغه وه کومه چه په جاهلیت کښې دوی لره د ژوندی ښخولو یا قتل کولو جاری وه په دے ایت کښې د دے نه منع شوے ده ارشاد فرمائی: وَلَا تَقْتُلُوْٓا اَوْلَادَكُمْ مِّنْ اِمْلَاقٍ ؕ نَحْنُ نَرْزُقُكُمْ وَاِيَّاهُمْ : "یعنی د غریبئ د وجه نه خپل اولاد مه قتلوئ مونږ تاسو لره هم رزق درکوو او دوی لره هم"۔

د جاهلیت په زمانه کښې د بے رحمئ او سنګدلئ دا ناکاره رسم جوړ شوے وه چه په کوم کور کښې به جینۍ پیدا کیده نو دا به ئے د دے شوم د پیرے نه چه بیا به م زوم جوړیګی ژوند ئے په قبر کښې ورمنځ له - او کله به ئے د دے ویرے نه چه د اولاد د پاره به د ژوند ضرورتو نه او د خوړلو سکلو د سامان په جمع کولو کښې مشکلات راپیښیګی دے سنګدله خلقو به خپلو بچو لره پخپلو لاسونو سره قتل کول - قرآن کریم دا رسم مات کړو، او کوم ارشاد چه بره ذکر شو په دے کښې ئے د دے ذهنی مرض هم علاج او کړو د کوم په وجه چه به دوی په دے ناکاره جرم کښې اخته کیدل چه بچو لره به خوراک د کوم ځائے نه پیدا کوو - الله تعالیٰ په دے ایت کښې اوخودله چه د خوراک او رزق رسولو اصل ذمه دار تاسو نه یئ - دا کار نیغ په نیغه د الله تعالیٰ دے - تاسو پخپله په خپل رزق او خوراک کښې هم هغهٔ ته محتاجه یئ - هغهٔ درکوی نو تاسو بچو لره هم ورکوئ که هغهٔ در نه کړی نو ستاسو څهٔ مجال دے چه یوه دانه د غنمو یا د وریجو پخپله پیدا کړئ - د زمکے د ننه نه د دانے د یو غنډل په شکل کښې د منو نوغا ورے څیرولو سره را ویستل بیا هغے له د وُنے صورت ورکول بیا دے له ګلونه او میوه ورکول د چا کار دے ؟ آیا مورو پلار دا کار کولے شی دا ټول د قادر مطلق د قدرت او حکمت کرشمے دی د انسان د عمل پکښې څهٔ دخل دے؟ انسان خو صرف دومره کولے شی، چه

زمکه نسمه کړی، او چه ونه را او خیژی نو او به ورلره ورکړی او دې حفاظت او کړی' لیکن په ټول ادمیوه پیید اکولو کښې خو دده اَدَ نیٰ قدرے دخل هم نیشتے، معلومه شوه چه دمور وپلار دا تصور غلط دے چه مونږ بچو ته رزق ورکوو، بلکه د الله تعالیٰ دغیبو دخزانے نه مور وپلار ته هم ملا ویګی او لاد ته هم ځکه ئے دلته د مور وپلار ذکر وړمبے کړو او ئے فرمائیل چه مونږ تا سو ته هم رزق درکوو او دوی ته هم، په دے وړاندِ والی کښې دے طرف ته هم اشاره کیدے شی چه تا سو ته رزق د دے وجهِ درکولے شی چه تا سو ئے بچو ته او رسوئ، لکه چه په یو حدیث کښې د نبی کریم صلی الله علیه وسلم ارشاد دے: إِنَّمَا تُنْصَرُوْنَ وَتُرْزَقُوْنَ بِضُعَفَاۤءِكُمْ: "یعنی ستا سو د کمزورو خلقو په برکت سره الله تعالیٰ ستاسو هم مدد فرمائی او تا سو له رزق درکوی".

د قرآن کریم په سورتِ اسراء کښې هم دا مضمون ارشاد فرمائیلے شوے دے مګر هلته ئے د رزق په معامله کښې اولاد لره وړاندِ ذکر فرمائیلے دے: نَحْنُ نَرْزُقُهُمْ وَاِيَّاكُمْ: "یعنی مونږ دوی ته هم رزق ورکوو او تا سو ته هم" په دے کښې هم دے طرف ته اشاره ده چه د رزق ورکولو اوّلنی مستحق زمونږ په نزد هغه ضعیفان بچی دی کوم چه په خپله څه نه شی کولے، د دوی په خاطر تا سو ته رزق درکولے شی -

د اولاد تعلیمی اخلاقی تربیت نه کول او دبے دینئ د پاره آزاد پریښودل هم یو قسم قتل د اولاد دے

د اولاد د قتلو لو جرم والے او سخت ګناه والے کوم چه په دے ایت کښې بیان شوے دے دا خو د ظاهری قتلولو او وژلو د پاره بسکاره خبره ده - او چه غور او کړے شی، نو اولاد ته تعلیم او تربیت نه ورکول چه د دے په نتیجه کښې د خدائے او د رسول صلی الله علیه وسلم او د آخرت د فکر نه غافل پاتے شی په بے حیائیو او بد اخلاقو کښې ګرفتار شی دا هم د اولاد د قتل نه کمه نه ده، قرآن کریم هغې سړے لره مړ مقرر کړے دے کوم چه الله تعالیٰ نه پیژنی او د اطاعت ئے نه کوی، په دا ایت: اَفَمَنْ كَانَ مَيْتًا فَاَحْيَيْنَاهُ: کښې د دے بیان دے، کوم خلق چه د خپل اولاد

په کارونو او اخلاقو درست کولو توجه نه کوي او د وي آزاد پرېږدي یا داسې غلط تعلیم ورته ورکوي چه په دې سره ئې اسلامي اخلاق تباه شي دغه سړی هم په یو حیثیت سره د اولاد قتل کوي - او د ظاهري قتل اثر خو صرف د دنیا دا ژوند ورځې ژوندم هم تباه کوي، او دا قتل د انسان د آخرت هغه همیشه ژوند تباه کوي -

د حرام خلورم شے | جه حرام والے ئے په دې آیاتو کښې بیان شوے دے هغه د بې حیایۍ کار دے، د دې متعلق ارشاد فرمائي: وَلَا تَقْرَبُوا الْفَوَاحِشَ مَا ظَهَرَ مِنْهَا وَمَا بَطَنَ: یعنې د بې حیایۍ چه څومره طریقې دي د هغوي خواته هم مه ورځئ خواه ښکاره وي او که پټه -

فَوَاحِشَ: د فاحشه جمع ده او لفظ د فحش، فاحشه، فحشاء ټول مصدرونه دي - چه د اردو ترجمه ئې په بې حیائي سره کولے شي - او د قرآن او حدیث په اصطلاح کښې د هر داسې ناکاره کار د پاره دا الفاظ ویلے شي د کوم چه بدئي او نا کاروالي اثرات خراب وي او تر لرې پورې رسي - امام راغب په مفردات القرآن کښې او ابن کثیر په نهایه کښې دا معنے بیان کړې دي - په قرآن کریم کښې ځائې په ځائې د فحش او فحشاء منع راغلې ده، په یو آیت کښې ارشاد دے: یَنْهٰی عَنِ الْفَحْشَآءِ وَالْمُنْكَرِ: بل ځائې ارشاد دے: حَرَّمَ رَبِّيَ الْفَوَاحِشَ: وغیره -

د فحش او فحشاء په دې عام مفهوم کښې ټول لوئې ګناهونه داخل دي خواه د اقوالو سره تعلق لري یا د افعالو سره، او که د ظاهر سره متعلق وي یا د باطن او زړهٔ سره، د بدکارئ او بې حیایۍ چه څومره کارونه دي هغهٔ ټول په دې کښې داخل دي، په دې وجه په عام وژبو دا لفظ د بدکارئ په معنیٰ ویلے شي - د قرآن کریم په دې آیت کښې ئې فواحشو ته نژدې ورتلونه هم منع کړے ده، دا که په عام مفهوم کښې واغستلے شي نو ټول بدخویونه او ګناهونه خواه د ژبې وي او که د لاس و خپو وغیره او که خواه د زړهٔ سره متعلق وي ټول په دې کښې داخل شو - او که د عوامو مشهوره معنیٰ بې حیایي واغستلے شي نو بدکاري او د دې اسباب به ترې مراد وي

بیا په دے آیت کښے ئے د فواحش په تفسیر کښے داهم او فرمائیل: مَا ظَهَرَ مِنْهَا وَمَا بَطَنَ؛ د اولنی تفسیر مطابق د ظاهري فواحشو نه د لاسو خپو او ژبے وغیره ټول ګناهونه به مراد وي، او د باطني فواحشو نه مراد به هغه ګناهونه وي کوم چه د زړهٔ سره تعلق لري، لکه حسد، کینه، حرص او ناشکري بے صبري وغیره۔

او د دویم تفسیر مطابق د ظاهري فواحشو نه مراد به هغهٔ د بے حیائۍ کارونه وي کوم چه په ښکاره کولے شي، او د باطني نه هغهٔ کوم چه په پټه کولے شي، په ښکاره بدکارۍ کښے د دے مقدمے لوازمات ټول داخل دي په بدنیت سره یوے ښځے ته کتل، لاس وغیره ورلره وروړل، د دے سره د اسے خبرے کول ټول په دے کښے داخل دي، او په باطني بے حیائۍ کښے هغه ټول خیال او ارادے او د دوی د پوره کولو پټ تدبیرونه داخل دي کوم چه د خهٔ بے حیائۍ او بدکارۍ په سلسله کښے کولے شي۔

او بعض حضرات تفسیر لیکونکی فرمائی چه د ظاهري فواحشو نه هغه د بے حیائۍ کارونه مراد دي د کوموبَد والے چه په عام طور سره معلوم او مشهور دے او ټول ئے پیژني۔ او د باطني فواحشو نه هغه کارونه مراد دي کوم چه د الله په نزد د بے حیائۍ کارونه وي اګرچه په عام طور سره دے لره خلق بد نه ګڼري۔ یا عام و خلقو ته د دے حرام والے معلوم نه وي، مثلاً ښځے لره د درے طلاقو ورکولو نه پس ښځه کول او پاتے کول ئے۔ یا د داسے ښځے سره نکاح کول چه شرعًا د دهٔ د پاره حلاله نه وي۔

لنډه دا ده چه دا آیت د فواحشو د اصل مطلب په اعتبار سره ټولو ظاهري او باطني ګناهونو لره، او د مشهور عام مطلب په اعتبار سره د بدکارۍ او بے حیائۍ چه څومره ښکاره او پټے طریقے دي دا ټولو لره شامل دے۔ او حکم ئے په دے کښے دا ورکړے دے چه دے خیزونو ته نزدے کیږئ هم مه۔ د نزدے نه ورتلو نه مراد دا دے چه د داسے مجلسونو او مقامونو نه ځان ساتئ کوم ځائے کښے چه د دے

خبرې یره وي چه په ورتلو برې په ګناه کښې اخته شي - او څوک چه ګناهونو نه هم ځان ساتي پکو موسره چه د دې ګناهونو لار هوارېږي ، په حدیث شریف کښې د نبي کریم صلی الله علیه وسلم ارشاد دے :

| مَنْ حَامَ حَوْلَ حِمًى اَوْ شَكَ اَنْ يَقَعَ فِيْهِ - | "یعني کوم سړے چه د څځه ممنوع ځائے نه چاپیره ګرځخه لرے نه دے چه په دغې کښې دےهم داخل شي" |
|---|---|

په دے وجه د احتیاط تقاضا داده چه کوم ځائے ته داخلیدل منع وي د دغې ځائے نه د چاپیره هم نه ګرځي -

**پنځم حرام په ناحقه قتل دے** په حرامو کښې پنځم شے ناحق قتل دے، د دے متعلق ارشاد فرمائي : وَلَا تَقْتُلُوا النَّفْسَ الَّتِيْ حَرَّمَ اللّٰهُ اِلَّا بِالْحَقِّ : "یعني د کوم سړي خون چه الله حرام کړے دے د هٔ لره مه قتلوئ مګر په حقه سره" او د دے حق تفصیل نبي کریم صلی الله علیه وسلم په یو حدیث کښې بیان فرمائیلے دے ، کوم چه په روایت د عبد الله بن مسعود په بخاري او مسلم کښې نقل شوے دے هغه دا چه د وي فرمائي چه د یو مسلمان خون حلال نه دے مګر په درېو څیزونو سره یو دا چه هغهٔ سره د دے چه واده شوے وي او بد کاري اوکړي ، دوېم دا چه د هٔ څوک په ناحقه قتل کړے وي او د دے ئے په قصاص کښې قتل کړے شي درېیم دا چه خپل حق دین پریږدي مرتد شي -

حضرت عثمان غنيؓ چه څهٔ وخت د باغیانو په ګیره کښې بند وهٔ او دے خلقو ده لره قتل کول غوښتل ، دغه وخت هم حضرت عثمانؓ خلقو ته دا حدیث واؤراوهٔ او ئے وے چه الحمد لله زهٔ د دے درے واړو څیزونو نه بری یم - ما د اسلام په زمانه کښې څهٔ چه د جاهلیت په زمانه کښې هم چرته زنا نه ده کړے ، او نهٔ ما چا لره قتل کړے دے ، او نهٔ ځما په زړهٔ کښې دا وسوسه راغلے ده چه زهٔ خپل دین د اسلام پریدم ، بیا تاسو ما په څهٔ بنا باندِ قتل کوئ ؟

او بے وجه قتل کول لکه څنګه چه د مسلمان حرام دي دغه شان

دَ هغهٔ غیرمسلم قتل هم حرام دے کوم چه په یو اسلامی ملک کښې دَ ملک دَ قانون پابند ژوند تیروی، یا دَ چا سره چه دَ مسلمانانو معاهده ده دَ هغوی قتول هم حرام دی

په ترمذی او ابن ماجه کښې په روایت دَ ابوهریرهؓ دَ نبی کریم صلّے الله علیه وسلم دا ارشاد نقل دے - چه څوک چا ذمی غیرمسلم لره قتل کړی دهٔ دَ الله تعالیٰ عهد مات کړو - او کوم سړے چه دَ الله تعالیٰ عهد لره مات کړی هغه به دَ جنّت خوشبو هم بوئی نه کړی حال دا دے چه دَ جنّت خوشبو به دَ اویا کاله په مسافت رسی -

په دے یو ایت کښې دَ لسو نه دَ پنځه وو حراموا و ناجائزو څیزونو دَ بیا نولو نه پس ارشاد فرمائی: ذٰلِكُمْ وَصّٰكُمْ بِهٖ لَعَلَّكُمْ تَعْقِلُوْنَ: "یعنی دَ دے څیزونو الله تعالیٰ تا سو ته تاکید ی حکم کړے دے دَ دے دَ پاره چه تاسو پو هه شئ"

| په دویم ایت کښې شپږم حکم دَ یتیم مال په ناجائز طور سره دَ خوړلو دَ حراموالی متعلق ارشاد فرمائی | شپږم حرام دَ یتیم مال په ناجائزه سره خوړل دی |
| --- | --- |

: وَلَا تَقْرَبُوْا مَالَ الْيَتِيْمِ اِلَّا بِالَّتِيْ هِيَ اَحْسَنُ حَتّٰى يَبْلُغَ اَشُدَّهٗ: "یعنی دَ یتیم مال ته مه نزدے کیږئ مګر په داسے طریقه کومه چه غوره وی تر دے پورے چه دے خپل عمر دَ بلوغ ته اورسی" په دے کښې دَ یتیمانو نابالغو بچو ولی او پالونکی ته خطاب دے، چه دے دِ دَ دوی مال یو اُوراو کنړی. او په ناجائز طور سره دِ دَ دے خوړلو او اغستلو ته نزدے کیږی - لکه چه په بل یو ایت کښې په دے الفاظو سره راغلی دی چه" کوم خلق دَ یتیمانو مال په ناجائز طور سره په ظلم خوری دوی خپلے خیټے دَ اور نه ډکوی"

البته دَ یتیم دَ مال حفاظت کول او په څهٔ داسے جائز کاروبار یا تجارت کښې لګول چه زیاتیګی به او دَ نقصان یره پکښے عادتًا نه وی دا طریقه غوره او ضروری ده، دَ یتیمانو ولی لره دا سے کول پکار دی-

دَ دے نه پس ئے دَ یتیم دَ مال دَ حفاظت حد او خودلو: حَتّٰى يَبْلُغَ اَشُدَّهٗ: یعنی تر دے پورے چه دے خپل عمر دَ بلوغ ته اورسی نو دَ ولی ذمه واری ختم

شوه، دَ دهٔ مال دِ دهٔ ته اوسپارَ لے شي -

دَ لفظ دَ اَشُدَّ اصل معنیٰ قوّت دے او دَ دے شروع دَ جمهورو عالمانو په نزد دَ بالغ کید و نه کیږی، کوم وخت چه په یوکی کبنے نبنې دَ بلوغت بیامونلے شي یا دے پنځلسو کالو عمُر ته اورَسی، دغه وخت دے شرعًا بالغ گڼلے شي -

البته دَ بالغ کید و نه پس به دا کتے شي چه په دهٔ کبنے دَ خپل مال دَحفاظت او په صحیح ځائے کبنے ئے دَ خرچ کولو صلاحیّت پیدا شوے دے او کہ نه. کہ صلاحیّت پکبنے اولیدے شي نو دَ بالغ کید وسره به دَ دهٔ مال دهٔ ته اُوسپارَلے شي او کہ دا صلاحیّت پکبنے اوس هم موجود نه وی نو تر پنځو ویشتو کالو دَ عمُر پورے به دَ مال حفاظت دَ وَلی په ذمه وی- په دے مینځ کبنے چه څهٔ وخت هم په دهٔ کبنے دَ مال دَحفاظت او کاروبار لیاقت پیدا شی نو مال ورته ورکولے شی، او کہ په پنځو ویشتو کالو کبنے هم په دهٔ کبنے دا صلاحیّت پیدا نه شو نو بیا دَ امام اعظم ابوحنیفهؒ په نزد دَ دهٔ مال به په هرحال دهٔ ته ورکولے شي په دے شرط چه دَ دهٔ دانشوالی دَ صلاحیّت دَ لیونتوب او جنون حد ته نه وی رَسیدَلے- او دَ بعضے اماماتو په نزد، دغه وخت به هم مال دهٔ ته نه شي سپارَلے بلکہ شرعی قاضی به دَ دهٔ دَ مال حفاظت چا ذمه دار سړی ته اُوسپاری -

دا مضمون دَ قرآن کریم دَ یو بل ایت نه را اَغستے شوے دے چه په هغے کبنے فرمائی: فَإِنْ اٰنَسْتُمْ مِّنْهُمْ رُشْدًا فَادْفَعُوْٓا اِلَیْهِمْ اَمْوَالَهُمْ: یعنی په یتیما نو بچو کبنے کہ دَ بالغ کید و نه پس تاسو دا صلاحیّت اووینئ چه دے دَ خپل مال په خپله حفاظت کولے شي او په څهٔ کاروبار کبنے ئے لگولے شي نو دَ دوی مال دوی ته اوسپارئ، دے ایت دا اوخودہ چه صرف بالغ والے دَ مال سپارَلو دَ پاره کافی نه دے- بلکہ دَ مال حفاظت او دَ کاروبار قابلیّت شرط دے-

| اُوو م حرام په ناپ تول کبنے کمی کول دی | اُووم حکم په دے ایت کبنے ناپ تول لره په انصاف سره پوره کول دی- دَ انصاف مطلب دا دے |
|---|---|

چہ ورکونکے دَ بل فریق پہ حق کښے خه کے او نہ کړی او اَغستونکے دَ خپل حق نہ زیات واخلی۔ (روح المعانی)

دَ خیزونو پہ لین دین کښے پہ ناپ تول کښے کمے زیاتے قرآن سخت حرام کړے دے۔ او دَ دے دَ خلاف کوونکو دَپارہ پہ سورتِ مطففین کښے دَ سخت عذاب وعدہ راغلے دہ۔

دَ قرآن تفسیر کوونکے حضرت عبد الله بن عباسؓ فرمائی چہ نبی کریم صلے الله علیه وسلم هغو خلقو تہ کوم چہ پہ تجارت کښے دَ ناپ تول کارکوی خطاب کوی ارشاد فرمائی چہ دَ ناپ تول کار و نہ داسے دی چہ پہ دے کښے دَ بے انصافئ کولو پہ وجہ سرہ ستاسو نہ وړاندِ ډیرامتونہ دَ الله تعالیٰ دَ عذاب پہ ذریعہ هلاک شوی دی (تاسو پہ دے کښے دَ پورہ احتیاط نہ کار اخلئ)۔ (تفسیر ابن کثیر)۔

یاد ساتئ چہ دَ ناپ تول کمی کومے تہ چہ پہ قرآن کښے تطفیف وئیلے شوے دے صرف دَ تلے او پیمانے دَ کمولو سرہ مخصوص نہ دی بلکہ دَ چا پہ ذمہ چہ دَ چا څۀ حق وی پہ دے کښے

دَ افسرانو، ملازمانو، مزدورانو پہ خپلہ مقررہ ډیوټئ او خدمت کښے کوتاهی کول هم دَ ناپ تول دَ کمئ کولو پہ حکم کښے دی

کمی کول هم پہ تطفیف کښے داخل دی، لکہ چہ پہ موطأ امام مالک کښے دَ حضرت عمرؓ نہ نقل دی چہ یو سړی لوہ ئے دَ مانځۀ پہ ارکانو کښے پہ کمی کولو اُولیدو، نو اُوئے فرمائیل چہ تا تطفیف اوکړو یعنی کوم حق چہ واجب وہ هغہ دِ ادا نہ کړو، دَ دے نقل کولو نہ پس امام مالکؒ فرمائی: لِكُلِّ شَيْءٍ وَفَاءٌ وَتَطْفِيفٌ: یعنی دَ حق پورہ ورکول او کمے کول پہ هر شی کښے وی، صرف پہ ناپ تول کښے کمے نہ دے۔

دَ دے نہ معلومہ شوہ چہ کوم ملازم خپلہ ډیوټی پورہ نہ کوی و خت پټوی، یا پہ کار کښے کوتاهی کوی، هغۀ څوک وزیر امیر وی یا معمولی ملازم او هغۀ څۀ دفتری کارکوونکے وی، یا علمی او دینی خدمت کونکے وی، کوم حق چہ دَ هغۀ پہ ذمہ وی او پہ دے کښے کوتاهی کوی نو دے هم پہ مطففین کښے داخل دے، دغہ شان مزدور کوم چہ پہ خپل مقررہ خدمت کښے کوتاهی کوی

هغهٔ هم په دے کښې داخل دے۔

دَدے نه پس فرمائي: لَا نُكَلِّفُ نَفْسًا اِلَّا وُسْعَهَا: "یعنی مونږ یو سړی ته دَدهٔ دَطاقت نه زیات دَ څهٔ شي حکم نه کوو" په بعضے روایتو نو دَحدیث کښې دَدے دا مطلب بیان شوے دے چه کوم سړے دَخپل حد دَ اختیار پورے دَ ناپ تول پوره پوره حق ادا کړی، نو که دَدے باوجود په غیر اختیاری طور سره څهٔ معمولی کمے زیاتے اوشي نو معاف دے، ځکه چه هغه دَدهٔ دَ قدرت او اختیار نه بهر دے۔

او په تفسیر مظهری کښې دی چه دَدے جملے په زیاتولو سره اشاره دے طرف ته ده چه دَحق ادا کولو په وخت کښې احتیاط په دے کښې دے۔ چه لږ قدرے زیات ورکړے شي چه دَ کمي شک پاتے نه شي، لکه چه نبی کریم صلے الله علیه وسلم په یو داسے موقع باندې تول کوُنکی ته حکم اوکړو چه: زِنْ وَاَرْجِحْ: "یعنی تول کوه او سوڼے ځکته کوه" (احمد، ابوداؤد، ترمذی، بروایت سعید بن قیس)

او دَ نبی کریم صلے الله علیه وسلم عام عادت داوهٔ چه که دَچا څهٔ حق په دَدوئ په ذمه وهٔ نو دَ ادا کولو په وخت کښې به ئے دَ هغهٔ دَحق نه زیات اَدا کولو۔ او دَ بخاری په یو حدیث کښې په روایت دَ جابر رضی الله عنه ذکر دی چه نبی کریم صلے الله علیه وسلم فرمائیلی دی چه:

"الله تعالیٰ دِ په هغهٔ سړی رحمت اوکړی چه دَ خرڅولو په وخت کښې هم نرم وی چه دَحق نه زیات ورکوی، او دَ اغستو په وخت کښې هم نرم وی چه دَحق نه زیات نه اخلي، بلکه که څهٔ معمولی کمے هم وی نو راضی شي"

مګر دا حکم اخلاقی دے چه په ورکولو کښې هم زیات ورکوی او په اغستو کښې هم که کم وی نو جګړه نه کوی قانونی شے نه دے چه بنی آدم په داسے کولو مجبوره وی، دے خبرے طرف ته دَ اشارے کولو دپاره په قرآن شریف کښې ارشاد دے۔ چه مونږ چا ته دَ هغهٔ دَ طاقت نه زیات حکم نه کوو، یعنی بل ته دَ هغهٔ دَحق نه زیات ورکول او په خپل حق کښې په کمی راضی کیدل،

8/7

څۀ جبری حکم نه دے څکه چه عامو خلقو لره داسے کول اسان نه دی .

اتم حکم عدل او انصاف دے ارشاد فرمائی : وَاِذَا قُلْتُمْ فَاعْدِلُوْا وَلَوْ کَانَ ذَا قُرْبٰی : "یعنی کله چه تاسو خبره کوئ نو حق د دےخلاف کول حرام دی

وایئ ، اګر چه هغه .... خپله رشته داری وی" دلته د څۀ خاص خبرے ذکر نیشتے ، په دے وجه د جمهورو تفسیر لیکونکو په نزد دا هر قسم خبرے لره شامله ده ، خواه هغه خبره د څۀ معاملے ګواهی وی یا د حاکم د طرفه فیصله یا په خپل مینځ کښے مختلف قسم خبرے اترے وی ، په دے ټولو کښے د قرآن ارشاد دا دے چه هرځائے په هر حال کښے په خبره کولو کښے د حق او انصاف خیال ساتل پکار دی ، په څۀ مقدمه کښے ګواهی یا په فیصله کښے د حق او انصاف قائم ساتلو معنیٰ ظاهره ده چه ګواه ته کومه خبره په یقینی طور سره معلومه وی د خپل طرف نه د څۀ لفظ د کمی زیاتی نه بغیر ټومره چه معلومه وی صاف صاف او وائی - خپل اټکل او ګمان او نه چلوی ، او د دے فکر او نه کړی چه د دےنه چا ته فائده رسی ، او چا ته نقصان . د غه شان چه د څۀ مقدمے فیصله کول وی نو ګواهان چه په شرعی اصولو اوتلی نو هرڅۀ چه د دوی د شهادت نه دارنګ د نورو قرائنو نه ثابت شی د هغے مطابق فیصله کوی - په ګواهئ او فیصله دواړو کښے نه د چا دوستی او محبت د حق خبرے نه مانع وی او نه د چا دشمنی او مخالفت په دے وجه ئے دلته دا جمله زیاته کړه : وَلَوْ کَانَ ذَا قُرْبٰی : یعنی اګر چه هغه سړے د کوم چه د مقدمے ګواهی ورکول وی یا فیصله کول وی هغه ستاسو رشته داروی بیا هم حق او انصاف مه په ګواهئ کښے د لاسه پریږدئ او که په فیصله کښے -

مقصود په دے ایت کښے د دروغو د ګواهئ او د حق نه خلاف د فیصلے کولو نه منع کول دی - د دروغو د ګواهئ متعلق ابوداؤد او ابن ماجه د نبی کریم صلے الله علیه وسلم دا ارشاد نقل کړے دے چه :

" د دروغو ګواهی د شرک برابر ده ، درے پیرے فرمائی : او بیائے دا ایت تلاوت او فرمایه : فَاجْتَنِبُوا الرِّجْسَ مِنَ الْاَوْثَانِ وَاجْتَنِبُوْا قَوْلَ

الزُّوْرِ حُنَفَآءَ لِلّٰهِ غَيْرَ مُشْرِكِيْنَ بِهٖ: "يعني د بت پرستئ د گندہ عقيدے نه ځان ساتئ او د دروغو نه په داسے حال کښے چه د الله تعالیٰ سره چا لره شريک جوړ نه کړئ."

• دغه شان د حق خلاف د فيصلے کولو په باره کښے ابوداؤد په روايت حضرت بريده د نبي کريم صلے الله عليه وسلم دا ارشاد نقل کړے دے چه:

"قاضيان (يعني د مقدمو فيصله کوونکي) درے قسمه دي، په دوی کښے به يو جنت ته ځي او دوه جهنم ته، چا چه د معاملے تحقيق د شريعت موافق اوکړو حق ئے او پيژندو بيا ئے د حق مطابق فيصله اوکړه هغه جنتي دے، او چا چه تحقيق اوکړو حقه خبره خو ئے او پيژنده مګر قصداً ئے د هغے فيصله خلاف اوکړه هغه دوزخي دے، او دغه شان هغه قاضي چا ته چه علم نه وي يا په تحقيق او غور فکر کښے ئے کمے اوکړو او په جهالت سره ئے څه فيصله ورکړه هغه هم دوزخي دے."

د قرآن مجيد په بل آيت کښے ئے دے مضمون لره نور هم په وضاحت او تاکيد سره بيان کړے دے، چه په شهادت يا فيصله کښے د چا د دوستئ خپلولئ او تعلق يا دشمنئ او مخالفت څه اثر نه دے راتلل پکار، لکه يو ځائے ارشاد دے: وَلَوْ عَلٰٓى اَنْفُسِكُمْ اَوِالْوَالِدَيْنِ وَالْاَقْرَبِيْنَ: "يعني حقه خبره اکر چه په خپله ستاسو خلاف وي يا د مور و پلار او نورو رشته دارانو خلاف وي د دے په وئيلو اخوا دے خوا کول نه دي پکار."

دغه شان په يو بل آيت کښے حکم دے: وَلَا يَجْرِمَنَّكُمْ شَنَاٰنُ قَوْمٍ عَلٰٓى اَلَّا تَعْدِلُوْا: "يعني د يو قوم دشمني دې تاسو د انصاف خلاف ګواهئ ورکولو يا فيصلے کولو ته تيار نه کړي." او د ګواهئ او فيصلے نه علاوه په خپل مينځ کښے په خبرو اترو کښے د حق او انصاف قائم ساتلو مطلب دا دے چه په دے کښے دروغ او نه وائي، د چا غيبت او نه کړي، داسے خبره او نه وائي چه بل ته پرې تکليف اورسي يا څه جاني يا مالي نقصان اورسي۔

---

| نهم حکم د الله عهد پوره کول<br>یعنې عهد ماتول حرام دی | نهم حکم په دې ایت کښې د الله تعالیٰ عهد پوره<br>کول او د عهد ماتولو نه ځان ساتلو دے |
|---|---|

ارشاد فرمائی: وَبِعَهْدِ اللّٰهِ اَوْفُوْا: "یعنی د الله تعالیٰ عهد پوره کوئ"
د الله د عهد نه مراد هغه عهد هم کیدے شی کوم چه په ازل کښې د هر انسان نه اغستے شوے دے، چه په هغې کښې انسانانو ته وئیلے شوی وو: اَلَسْتُ بِرَبِّکُمْ: "آیا زهٔ ستاسو رب نه یم" تولو جواب ورکړو: بَلٰی: "یعنی بے شکه ته زمونږ رب او پروردګار یې" د دے عهد مقتضیٰ داده چه د پروردګار د یو حکم نه څو وانه اړه وَلے شی. د کوموکارونو د کولو چه ئې حکم کړے دے دا دے د تولوکارونو نه ورمبی او هم او کړی او د کوموکارونو نه چه ئې منع فرمائیلې ده د هغې خواته هم ورنه شی. او د شبهاتو نه ئې هم ځان اوساتی، لنډه دا چه د دے عهد دادے چه د الله تعالیٰ مکمل اطاعت اوکړی۔
او دا هم کیدے شی چه هغهٔ خاص عهد د کوم ذکر چه د قرآن په مختلفو موقعو باندې فرمائیلے شوے دے هغه مراد وی۔ او د هغې نه داد دے آیا تو نه هم دی د کومو تفسیر چه اوس تاسو وینئ (یکوم کښې چه لس حکمونه په تاکید سره بیان شوی دی)۔
عالمان فرمائی چه په دے عهد کښې نذر او منتخته پوره کول هم دی کوم چه یو انسان د خپل طرف نه د الله تعالیٰ سره کوی چه فلانے کار به کوم یا به نه کوم د د قرآن مجید په یو بل آیت کښې ئې دا په وضاحت سره بیان فرمائیلے دے: یُوْفُوْنَ بِالنَّذْرِ: " یعنی د الله تعالیٰ نیک بندګان خپلے منتختے پوره کوی")
دا لسم حکم په شمار کښې خو نهم حکم دے مګر د رلښه داده چه دا نهم حکم په حقیقت په اعتبار سره په تولو شرعی احکامو واجباتو او ممنوعاتو باندې حاوی دے)
د دے دویم آیت په آخر کښې فرمائی: ذٰلِکُمْ وَصّٰکُمْ بِهٖ لَعَلَّکُمْ تَذَکَّرُوْنَ: "یعنی د دے کارونو تاسو ته الله تعالیٰ تاکیدی حکم کړے دے د دے د

پارہ چہ تاسو یاد اولرئ"

پہ دریم آیت کبنے لسم حکم ذکر دے : وَاَنَّ هٰذَا صِرَاطِيْ مُسْتَقِيْمًا فَاتَّبِعُوْهُ وَلَا تَتَّبِعُوا السُّبُلَ فَتَفَرَّقَ بِكُمْ عَنْ سَبِيْلِهٖ : "یعنی دا دینِ محمّدی ځما نیغه لار ده پس پہ دے لار باندِ چلیږئ او پہ نورو لارو مه ځئ چہ دغه لارے بہ تاسو د الله د لارے نہ جُدا کړی"

پہ دے کبنے د لفظ د : هٰذَا : اشارہ دینِ اسلام یا قرآن طرف تہ دہ۔ او دا هم کیدے شی چہ سورتِ انعام طرف تہ اشارہ وی ځکه چہ پہ دے کبنے پورہ د اسلام توحید، رسالت او د شرعی احکامو اصول ذکر دی او : مستقیم : د دین د دے لارے صفت دے کوم لوہ چہ ئے پہ نحوی ترکیب کبنے حال ذکر کړے دے د دے طرف تہ ئے اشارہ کړے دہ چہ د دین د اسلام د پارہ مستقیم والے لازمی صفت دے۔ د دے نہ پس فرمائی فَاتَّبِعُوْهُ : یعنی کله چہ دا معلومه شوہ چہ دینِ اسلام ځما لار دہ او هغه مستقیمه او نیغه لار دہ نو اوس د منزلِ مقصود نیغه لار پہ لاس راغله پہ دے وجه صرف پہ دے لار باندِ چلیږئ۔

بیا فرمائی : وَلَا تَتَّبِعُوا السُّبُلَ فَتَفَرَّقَ بِكُمْ عَنْ سَبِيْلِهٖ : سُبُل : د سبیل جمع دہ د دے معنیٰ هم لار دہ، مراد دا دے چہ الله تعالیٰ تہ د رسید و او د هغهٔ د رضا حاصِلولو اصلی لار خو یوہ دہ، لیکن پہ دُنیا کبنے خلقو ځپلو ځپلو خیالاتو سرہ مختلفے لارے جوړے کړی دی تاسو پہ دے لارو کبنے پہ یوہ لارہ مه ځئ۔ ځکه چہ دا لارے پہ حقیقت کبنے خدائے تعالیٰ تہ د رسیدو نہ دی پہ دے وجه څوک چہ پہ دے لارو باندِ ځی هغهٔ د الله تعالیٰ د لارے نہ لرے کیږی۔

پہ تفسیرِ مظهری کبنے فرمائی چہ د قرآن کریم د نازلولو او د نبی کریم صلے الله علیه وسلم د رالیږلو منشاء خو دا دہ چہ خلق ځپلو خیالاتو او ځپلو ارادو او تجویزونو لرہ د قرآن او سنت تابع کړی او ځپلے زندګئ د دی پہ سانچه کبنے واچوی۔ لیکن کیږی دا سے چہ خلقو قرآن او سنت لرہ د ځپلو خیالاتو او تجویزونو پہ سانچه کبنے د اچولو قصد کړے دے، کوم آیت یا حدیث چہ

دَ خپلے منشاء خلاف ادوینی نوتا ویلو نه پکښے کوی او دَ خپل خواهش مطابق ئے جوړه وی، او دَ دے نه نورے گمراه کونکے لارے پیدا کیږی، کوم چه دَ بدعاتو او شبهاتو لارے دی۔ دَ دینه دَ بچ کیدو دَ پاره په دے آیت کښے هدایت کړے شوے دے۔

په مسند دارمی کښے په روایت دَ حضرت عبدالله بن مسعودؓ نقل کړے دے چه یو وار نبی کریم صلے الله علیه وسلم یو نیغ خط راخکودو او اُوئے فرمائیل چه دا دَ الله لار ده، بیائے دَ دے ښی او کینړ طرف ته نور خطونه راخکودل او وئے فرمائیل چه دا هغه لارے دی په کومو چه دَ تلو نه په دے آیت کښے منع شوے ده۔ او اُوئے فرمائیل چه په دِ ے کښے په هره لار ه یو شیطان مسلّط دے کوم چه خلقو لره دَ نیغے لارے نه اړوی دَ غو طرف ته ئے بلی او دَ دے نه پس دوی په دلیل کښے دا آیت تلاوت کړو۔

په آخره آیت کښے ئے بیا ارشاد او فرمایه: ذٰلِكُمْ وَصّٰكُمْ بِهٖ لَعَلَّكُمْ تَتَّقُوْنَ: "یعنی الله تعالیٰ دَ دے تاسو ته تاکیدی حکم کړے دے دَ پاره چه تاسو احتیاط اوکړئ"

دَ دریواړو آیتونو تفسیر او په دے کښے دَ بیان شوو لسو اُصولو دَ حرماتو بیان پوره شو، په آخر کښے دَ قرآن کریم په اسلوب بیان باندے یو نظر واچوئ چه دلته لس احکام بیان شوی دی۔ دائے دَ نن صبا دَ قانون دَ کتابونو په شان په لسو دفعاتو کښے اُونه لیکل، بلکه اول ئے دَ پنځو حکمونو بیا نولو نه پس او فرمائیل: ذٰلِكُمْ وَصّٰكُمْ بِهٖ لَعَلَّكُمْ تَعْقِلُوْنَ؛ او بیائے دَ نورو څلورو حکمونو بیانولو نه پس دا جمله دوباره په دے فرق سره ذکر کړه چه دَ: تَعْقِلُوْنَ: په ځائے ئے: تَذَكَّرُوْنَ: او فرمایه او بیائے آخری حکم په یو جُدا آیت کښے بیان کړو دغه جمله ئے بیا په دے فرق سره ذکر کړه چه دَ: تَذَكَّرُوْنَ: په ځائے ئے: تَتَّقُوْنَ: او فرمایه۔

دَ قرآن کریم په دے حکیمانه طریقے دَ بیان کښے ډیر حکمتونه دی:۔

اَوّل دا چه قرآن حکیم دَ عامے دُنیا دَ قوانینو په شان محض حاکمانه قانون نه دے بلکه تربیت کوونکے قانون دے۔ په دے وجه دَ هر قانون سره دَ هغهٔ

دَ اسانولو تدبیر هم خودلے شی، او دَ الله تعالیٰ معرفت او فکر دَ اخرت صفه شے دے کوم چه انسان لره په پټه او په ښکاره دَ قانون په پابندئ کولو مجبوره کوی، په دے وجه دَ درے وارو وایتونو په اخر کښے داسے کلمات راوړے شو پکوموسره چه دَ انسان مخ دَ مادی دُنیا نه کوځي الله تعالیٰ او اخرت طرف ته کیږی -

په اوّلنی ایت کښے چه کوم پنځه حکمونه بیان شوی دی. دَ شرک نه ځان ساتل، دَ مور او پلار دَ نافرمانئ نه ځان ساتل، دَ قتل دَ اولاد نه ځان ساتل، دَ بے حیایئ دَ کارونو نه ځان ساتل، دَ چا دَ ناحق قتل کولو نه ځان ساتل، دَ دے په اخر کښے خوئے لفظ دَ: تَعۡقِلُوۡنَ: استعمال کړے دے. ځکه چه دَ جاهلیت دَ زمانے خلقو دے لره څۀ عیب نه ګنړلو، په دے وجه ئے اشاره دے خبرے ته او کړه چه دَ پلار نیکه رسمونه او خیالونه پریږدئ دَ عقل نه کار واخلئ -

په دویم ایت کښے څلور حکمونه بیان شو، یعنی دَ یتیم مال په ناحقه نۀ خوړل، په ناپ تول کښے کمے نه کول، په خبرو کولو کښے دَ حق او صدق لحاظ ساتل، او دَ الله عهد پوره کول -

دا څیزونه داسے دی چه دَ دی ضروری والے خو دے جاهلانو ته هم معلوم وه او په دوی کښے په څۀ خلقو په دے عمل هم کولو مګر ډیر و به ترِ غفلت کولو، او دَ غفلت علاج دے: تذکره: یعنی دَ خدائے او اخرت یادول - په دے وجه دَ دے ایت په اخر کښے ئے لفظ دَ: تَذَکَّرُوۡنَ: اُو فرمائیلو -

په دریم ایت کښے دَ صراط مستقیم اختیارولو او دَ دے خلاف دَ نورو لارونه دَ ځان ساتلو هدایت دے - او صرف دَ خدائے یره داسے شے دے کوم چه انسان لره دَ خپلو خیالاتو او خواهشاتو نه دَ بچ کړو ته ساتلو صحیح ذریعه کیدے شی په دے وجه دَ دے په اخر کښے ئے: تَتَّقُوۡنَ: اُو فرمایه -

او په درے وارو ځایونو کښے ئے لفظ دَ وصیّت راوړو، کوم چه تاکیدی حکم ته ویلے شی - په دے وجه بعضے صحابه کرام رض فرمائی، چه کوم سړے

د نبی کریم صلے الله علیه وسلم مهر کړے شوے وصیت نامه کتل غواړی حغه
د دادرے ایا تو نه اولولی -

ثُمَّ اٰتَيْنَا مُوسَى الْكِتٰبَ تَمَامًا عَلَى الَّذِيْٓ اَحْسَنَ وَ

بیا ورکړو مونږ موسیٰ ؑ ته کتاب د پاره د پوره کولو د نعمت په نیک کار کونکو او

تَفْصِيْلًا لِّكُلِّ شَيْءٍ وَّهُدًى وَّرَحْمَةً لَّعَلَّهُمْ

د پاره د تفصیل د هر شی او د پاره د هدایت او رحمت چه دغه خلق د خپل

بِلِقَآءِ رَبِّهِمْ يُؤْمِنُوْنَ ﴿۱۵۴﴾ وَهٰذَا كِتٰبٌ اَنْزَلْنٰهُ

رب سره په ملاوید و یقین اوکړی - او دا کتاب دے چه مونږ نازل کړے دے

مُبٰرَكٌ فَاتَّبِعُوْهُ وَاتَّقُوْا لَعَلَّكُمْ تُرْحَمُوْنَ ﴿۱۵۵﴾

برکت والا پس په دے چلیږئ او یره کوئ چه په تاسو رحمت او شی -

اَنْ تَقُوْلُوْٓا اِنَّمَآ اُنْزِلَ الْكِتٰبُ عَلٰى طَآئِفَتَيْنِ

په دے وجه چه تاسو چرته اونه وایئ چه کتاب چه نازل شوے ؤ مرف په هغو دوه ډلو کړے

مِنْ قَبْلِنَا وَاِنْ كُنَّا عَنْ دِرَاسَتِهِمْ لَغٰفِلِيْنَ ﴿۱۵۶﴾

چه زمونږ نه وړاندے وُو او مونږ ته د هغه د لوستو خبر هم نه وُو -

اَوْ تَقُوْلُوْا لَوْ اَنَّآ اُنْزِلَ عَلَيْنَا الْكِتٰبُ لَكُنَّآ اَهْدٰى

یا او وایئ چه که په مونږ نازل شوے وے کتاب نو مونږ به په لارے چلید و د دوی نه

مِنْهُمْ ۚ فَقَدْ جَآءَكُمْ بَيِّنَةٌ مِّنْ رَّبِّكُمْ وَهُدًى

نه - پس راغے تاسو ته دلیل ستاسو د رب د طرف نه او هدایت

وَرَحْمَةٌ ۚ فَمَنْ أَظْلَمُ مِمَّنْ كَذَّبَ بِآيَاتِ اللَّهِ وَ

او رحمت - او س د ده نه زیات ظالم څوک دے کوم چه دروغژن کړی د الله ایاتونه

صَدَفَ عَنْهَا ۗ سَنَجْزِي الَّذِينَ يَصْدِفُونَ

او ده ترې اوګړی - مونږ به سزا ورکړو هغوته چه ډډه کوی

عَنْ آيَاتِنَا سُوءَ الْعَذَابِ بِمَا كَانُوا يَصْدِفُونَ ﴿١٥٧﴾

د ایاتونو زمونږ نه ناکاره عذاب په بدله کښې د دے ډډے کولو.

# لنډ تفسیر

بیا رد شرک د باطلو لو د مضمون نه پس مونږ په مسئله د نبوت کښې خبره کوو، چه مونږ تا لره یوائے نبی نه دے جوړ کړے چه دا خلق پرې دومره شور زوږ کوی، بلکه ستا نه وړاندې مونږ موسیٰ (علیه السلام) لو پیغمبر جوړ کړو (کتاب (تورات) مو ورکړے وه چه په دے سره په ښه عمل کوونکو باندې (زمونږ) نعمت پوره شو او (د منونکو د پاره) رحمت شو (مونږ په دے صفت سره کتاب ځکه ورکړو) چه دغه خلق (یعنی بنی اسرائیل) د خپل رب سره په ملاوید و یقین راوړی (او د ملاقات په عقیده سره عمل احکام په ځائے راوړی) او (رحم ځکه چه د دوی دور ختم شو نو د دی نه پس) دا (قرآن) یو کتاب دے کوم لره چه مونږه رتا ته) راولیږه لوئے خیر او برکت والا پس (اوس) د دے تابعداری کوئ او (د دے نه د خلاف کولو په باره کښې ځخد لے نه) یعنی کوئ چه په تاسو باندې (د الله تعالیٰ) رحمت وی (او مونږ دا قرآن په دے وجه هم نازل کړو چه) چرته تاسو خلق (په قیامت کښې د ده د نه نازلید و په صورت کښې د کفر او شرک د عذاب په وخت کښې) دا سے او وایئ چه کتاب (اسمانی) خو صرف زمونږ نه وړاندې کومے دوه فرقے (د یهودیانو او عیسایانو) وے په هغوی باندې نازل شوے وه او مونږ ئے د لوستلو نه ناخبره وُو (په دے وجه مونږ ته د توحید حقیقت

معلوم نه شوي) يا د نورو وړمبو مؤمنانو ته د ثواب ملاويدو په وخت کښې) دا سې
او وايئ چه که په مونږ څه کتاب نازل شوے وے نو مونږ به د دے (وړمبو
مؤمنانو) نه زيات په لارے باندې وُو را و په عقيده او عملونو کښې به مونږ د
دوی نه زيات کمال حاصل کړے وه د ثواب مستحق شوی به وُو) پس زيات دساتي
چه) اوس (ستاسو سره هيڅ عذر نيشته) تاسو ته (هم) ستاسو د رب د طرف
نه يو کتاب (چه حکمونه ئے) واضح (دي) او (کوم چه) د رهنمائي ذريعه (ده)
او (د خدائي) رحمت (دے) راغلے دے پس (د دا سے کافي او شافي کتاب
راتلو نه پس) د هغه سړی نه زيات به څوک ظالم وي کوم چه زمونږ دے
آياتونو لره دروغژن کړي او نورو لره (هم) د دے نه منع کوي مونږ به
اوس (په آخرت کښې) دغو خلقو لره کوم چه زمونږ د آياتونو نه منع کوي
دوی لره به د دے منع کولو په سبب سخته سزا ورکړو (دا سختي په دے
منع کولو سره زياته شوه ورنه صرف دروغژن کول هم موجب د
سزا دي) -

# معلومات او مسئلے

وجه د غفلت دا نه ده چه تورات او انجيل په ژبه د عربو کښې نه وه ځکه
چه د ترجمے په ذريعه سره د مضامينو نه خبريدل ممکن دي، بلکه واقع دي.
بلکه وجه دا ده چه اهلِ کتابو د اهلِ عربو د تعليم او توحيد چه ته هم
اهتمام نه دے کړے، او اتفاقاً په غوږ کښې يو مضمون پريوتل عادةً د
خبريدو په باره کښې کم اثر کوي، اګرچه په دے قدرے خبريدو سره
طلب او تأمّل واجبيږي او په دے بنا باندې بيا په پاتے کولو د توحيد عذاب
ممکن وه. او په دے سره د موسیٰ او عيسیٰ عليهما السلام د بعثت په عاموالي
اشکال نه لازميږي، ځکه چه د دے عاموالي خاصوالے زمونږ په حضور صلے
الله عليه وسلم پورے په اعتبار د ټولو اُصولو او فروعو دے - ورنه په اُصولو
کښې د ټولو انبياؤ تابعداري په ټولو خلقو واجب ده. پس په دے بنا عذاب صحيح
وه، ليکن دا عذر په سرسري نظر کښې پيش کيدے شو، اوس ئے ګنجايش پاتے نه شو او د الله دليل پوره شو

او د دریم قول: لَوْ اَنَّاۤ اُنْزِلَ عَلَیْنَا الْکِتٰبُ لَکُنَّاۤ اَهْدٰی مِنْهُمْ: متعلق یو سوال او جواب په اعتبار د نجات موندونکو د اهلِ فترت د سورتِ مائدې د دریم رکوع په اخر کښې تیر شوے دے۔

هَلْ یَنْظُرُوْنَ اِلَّاۤ اَنْ تَاْتِیَهُمُ الْمَلٰٓئِکَةُ اَوْ یَاْتِیَ

داخلق انتظار نه کوی مګر د دے چه راشی په دوی فرښتے یا راشی

رَبُّکَ اَوْ یَاْتِیَ بَعْضُ اٰیٰتِ رَبِّکَ ؕ یَوْمَ یَاْتِیْ بَعْضُ

ستا رب یا راشی څهٔ نښے ستا د رب - په کومه ورځ چه راشی څهٔ

اٰیٰتِ رَبِّکَ لَا یَنْفَعُ نَفْسًا اِیْمَانُهَا لَمْ تَکُنْ اٰمَنَتْ

نښے ستا د رب بیکار به رانشی د هیڅا د دهٔ ایمان راوړل کوم چه وړاندے ایمان

مِنْ قَبْلُ اَوْ کَسَبَتْ فِیْۤ اِیْمَانِهَا خَیْرًا ؕ قُلِ

نه وی راوړے یا په خپل ایمان ئے څهٔ نیکی نه وی کړی - ته اووایه

انْتَظِرُوْۤا اِنَّا مُنْتَظِرُوْنَ ﴿۱۵۸﴾

چه تاسو هم انتظار کوئ زهٔ هم انتظار کوم۔

# لنډ تفسير

داخلق (کوم چه پس د نزول د کتاب او د ليلو نو نه او وضاحت د حق نه هم ايمان نه راوړی د خپل ايمان راوړو د پاره) صرف د دے کار منتظر دی (يعنی انتظار کونکی معلوميږی) چه دوی ته فرښتے راشی يا دوی ته ستا رب راشی (لکه چه په قيامت کښے به د حساب په وخت کښے واقع کيږی) يا ستا د رب څه لوئے نښے (منجمله د قيامت د نښو نه) راشی (مراد د دے لوئے نښے نه د نمر د مغرب طرف نه راختل دی مطلب دا شو چه آيا د ايمان په راوړو کښے د قيامت د واقع کيدو يا د نژدے کيدو انتظار دے.

پس دَ دے متعلق واوُرئ چه) پکومه ورځ ستا دَ رب (دا) لویه نښه (ذکرشوې) راشي (په دغه ورځ به) دَ هیڅ سړی ایمان به په کار رانشي کوم چه دَ وړاندې نه ئے ایمان نه وی راوُړے (بلکه په دغه ورځ ایمان راوُړی) یا (ایمان ئے دَ وړاندې نه راوُړے وی لیکن) دَهٔ پخپل ایمان څهٔ نیک عمل نه وی کړے (بلکه په بدو عملونو اوګناهونو کښې اخته وی او په دغه ورځ ترِ توبه اوُباسی نیک عملونه شروع کړی نو دَ دهٔ توبه به قبوله نه وی او دَ دے نه وړاندې کړے دَ ګناهونو نه توبه کړې وے نو دَ مؤمن کیدو په برکت به ئے توبه قبوله شوے وَه نو دَ توبے قبلیدل دَ ایمان نفع ده، دغه وخت ایمان دا خاص نفع ورنه کړه او هرکله چه نښنه دَ قیامت مانعه شوه دَ قبلید و دَ ایمان او دَ توبے نه، نو خاص دَ قیامت واقع کیدل خو به په درجه اولی مانع وی، بیا انتظار دَ څهٔ دے؟ او که په دے زورنه هم ایمان رانهٔ وُړی نو) تهٔ (دَ زیاتے زورنے په طور) اوفرمایه چه (خیر دے ښهٔ ده) تاسو (دَ دے کارونو) انتظار کوئ (او چه مسلمانیګئ نه نومَه کیږئ) مونږ هم (دَ دے کارونو) انتظار کوُو، (دغه وخت به په تاسو مصیبت پرِیوُځی او مونږ مؤمنان به انشاء الله تعالے نجات بیامُومُو) -

# معلومات اومَسئلے

دَ سورتِ انعام اکثره حصه دَ اهلِ مکه او دَ عربو دَ مشرکانو دَ عقیدو او عملونو دَ اصلاح او دَ دوی دَ شبهاتو او سوالاتو په جواب کښې نازل شوے ده -

په دے ټول سورت او خصوصًا په تیرو اٰیاتونو کښې په مکے او عربو په اوسیدونکو باندې واضحه کړه چه تاسو دَ نبی کریم صلے الله علیه وسلم ښکاره معجزے اولیدے، دَ تیرو کتابونو او تیرو پیغمبرانو پیشنګویانے موُ دَ دوی متعلق آوریدلی دی، بیا دَ یو محض اُمّی دَ ژبے نه دَ قرآن واضح اٰیاتونه تاسو واوُریدَه چه دا یوه مستقله معجزه هم ده . ، او س دَ حق او صدق لارے ستاسو په وړاندې پرانستلے شوے او دَ الله تعالیٰ حُجّت په تاسو پوره شو،

اوس په ایمان راوړو کښې د څه شي انتظار دے۔

د دے مضمون لوړ ئے په دے ذکر شوي ایت کښې په ډیر بلیغ انداز سره واضحه بیان اوفرمایه :-

هَلْ يَنظُرُونَ إِلَّا أَن تَأْتِيَهُمُ الْمَلَائِكَةُ أَوْ يَأْتِيَ رَبُّكَ أَوْ يَأْتِيَ بَعْضُ آيَاتِ رَبِّكَ : یعنی دا خلق آیا په ایمان راوړو کښې د دے انتظار کوي چه د مرګ فرښتے دوي ته راورسي، یا د میدان د حشر انتظار کوي یکوم کښې چه به د جزاء او سزاء د پاره الله تعالیٰ راځي، یا د دے انتظار کوي چه د قیامت بعض اخري نښے اووینی د رب کریم په میدان د قیامت کښې د فیصلے د پاره تشریف فرمائیل د قرآن کریم په څو آیاتو کښې بیان شوي دي۔ په سورتِ بقره کښې د دے مضمون ایت داسے راغلے دے :

هَلْ يَنظُرُونَ إِلَّا أَن يَأْتِيَهُمُ اللَّهُ فِي ظُلَلٍ مِّنَ الْغَمَامِ وَالْمَلَائِكَةُ وَقُضِيَ الْأَمْرُ ۔

یعنی آیا دا خلق د دے انتظار کوي چه الله تعالیٰ د وریځو په سورې کښې دوي ته راشي او فرښتے راشي او د خلقو د پاره د جنت او د دوزخ کومه فیصله چه کید ونکے ده هغه اوشي۔

د الله تعالیٰ په میدان د قیامت کښې تشریف فرما کیدل په څه شان او په څه کیفیت سره به وي د دے د انسان په عقل کښې راتلل ګران دي، په دے وجه د صحابه کرامو او د امت د مشرانو مسلک د دے قسم آیاتو متعلق دا دے چه په قرآن کښې څه ذکر شوي دي په دے ایمان راوړے شي او یقین پرے اوکړے شي او د څه رنګوالي علم ئے الله ته حواله کړے شي۔ مثلاً په دے ایت دا یقین اوکړے شي چه الله تعالیٰ به په میدان د قیامت کښې د فیصلے د جزا او سزا د پاره تشریف فرما وي، او نور په دے کښې بحث او فکر اونه کړے شي چه په څه کیفیت او څه جهت سره به وي۔

په دے ایت کښې وړاندِ ارشاد فرمائي :-

يَوْمَ يَأْتِي بَعْضُ آيَاتِ رَبِّكَ لَا يَنفَعُ نَفْسًا إِيمَانُهَا لَمْ تَكُنْ آمَنَتْ مِن قَبْلُ أَوْ كَسَبَتْ فِي إِيمَانِهَا خَيْرًا ؕ : په دے کښې ئے خبردارے اوفرمایه چه د الله تعالیٰ د بعضو نښو مخے ته د راتلو نه پس د توبے دروازه به بند شي کوم سړي

چه د دینه وړاندې ایمان نه وی راوړی ے اوس ایمان راوړی نو قبول به نه شی، او کوم سړی چه ایمان خو راوړے وه لیکن نیک عمل ئے نه وه کړے او دے اوس توبه او کړی د نیک عمل اراده او کړی نو د ده به هم توبه قبوله نه شی۔ لنډه داده چه کافر د خپل کفر نه یا فاسق د خپل فسق او ګناه نه کر دغه وخت توبه کول غواړی نو دغه توبه به قبوله نه وی۔

سبب داد ے چه ایمان او توبه صرف د هغه وخته پورے قبلید ے شی تر څو چه دغه د انسان په اختیار کښے وی۔ او کله چه د الله تعالیٰ عذاب او د اٰخرت حقیقتو نه اولید ے شی نو بیا خو به هر یو انسان په ایمان راوړو او د ګناه نه په واپس کید و خود بخود مجبور وی، د مجبورئ ایمان او توبه قابلِ قبول نه دی۔

د قراٰن کریم په بے شماره اٰیاتونو کښے ذکر دی چه دوزخیان دوزخ ته اورسی نو فریاد به او کړی او لوئے لوئے وعدے به کوی چه که مونږ اوس دنیا ته دوباره واپس کړے شو نو مونږ به د ایمان او نیک عمل نه سوا نو رهیڅ او نه کړو، مګر ټولو ته به دا جواب وی چه د ایمان او عمل وخت ختم دے، او اوس چه تاسو دا څه وایئ دا د مجبورئ نه وایئ دے لره هیڅ اعتبار نیشته۔

د دے اٰیت په تفسیر کښے نبی کریم صلے الله علیه وسلّم دا ارشاد نقل دے چه څۀ وخت د قیامت په اٰخری نښو کښے دا نښه ښکاره شی چه نمر د مشرق په ځائے د مغرب نه راواخیژی او د دے په لید وسره د ټول جهان کافران د ایمان کلمه ویئل شروع کړی او ټول نافرمانه فرمانبردار جوړ شی۔ لیکن د دغه وخت ایمان او توبه به قابلِ قبول نه وی۔ (بغوی بسنده عن ابی هریرة رض)

په دے اٰیت کښے دومره خبره د قراٰن په وضاحت سره معلومه شوه چه بعض نښے به داسے واقع شی چه د هغوی نه پس به د توبے دروازه بنده شی۔ د چا فاسق یا کافر توبه به قبوله نه وی۔ لیکن قراٰن کریم د دے وضاحت نه دے فرمائیلے چه هغه څۀ نښه ده۔

په صحیح بخاری کښے د دے اٰیت په تفسیر کښے په روایت د ابو هریرة رض دا حدیث نقل دے چه نبی کریم صلے الله علیه وسلّم فرمائیلی دی چه :-

"قیامت بہ ترهغه وخته پورے قائم نه شي ترڅوچه دا واقعه پیښه نه شي چه نمر دَ مغرب دَ طرف نه را او خیژی هرکله چه خلق دا اَلِبنه اووینی نو ټول به ایمان راوړی، دا به هغهٔ وخت وی دَ کوم دَ پاره چه په قرآن کښے دا ارشاد دے چه دغه وخت به هیچ نفس ته ایمان راوړل نفع ورنه کړی".

دَ دے تفصیل په صحیح مسلم کښے په روایت دَ حذیفه ابن اُسید داسے نقل شوے دے چه یو وارے صحابه کرامؓ دَ قیامت دَ نښو ذکر په خپل منځ کښے کوَلو چه نبی کریم صلے الله علیه وسلم تشریف راوړو، دغه وخت دوی او فرمائیل چه قیامت به ترهغه وخته پورے قائم نه شي ترڅو پورے چه تاسو لس نښے اونه وینئ- نمر دَ مغرب نه راختل، او یو خاص قسم لوګے او دابّة الارض، او دَ یاجوج ماجوج راوتل، دَ عیسیٰ علیه السلام نازلیدل، دَ دجال راوتل، او په دَرے ځایونو کښے دَ زمکے ننوتل، یو په مشرق کښے، بل په مغرب کښے، او بل په جزیرة العرب کښے، او یو اُور چه دَ عدن دَ ویخ نه به راپورته شي او خلق به شړی -

او په مسند احمد کښے په روایت دَ ابن عمرؓ نقل دی چه نبی کریم صلے الله علیه وسلم فرمائیلی دی چه په دے نښو کښے به دَ ټولو نه اوّل دَ مغرب دَ طرف نه دَ نمر راختل او دَ دابّة الارض راوتل واقع کیږی -

امام قرطبیؒ په تذکره کښے او حافظ ابن حجر په شرح دَ بخاری کښے په روایت دَ حضرت عبد الله ابن عمرؓ داهم نقل کړے دے چه نبی کریم صلے الله علیه وسلم فرمائیلی دی چه دَ دے واقعے یعنی دَ مغرب نه دَ نمر ختلو نه پس به تر شپیږ شلو کالو پورے دُنیا قائمه وی (روح المعانی)

دَ دے تفصیل نه پس دلته دا سوال پیدا کیږی چه حضرت عیسیٰ علیه السلام کله نازل شي نو دَ صحیح روایتو نو موافق به دے خلقو ته دَ ایمان دعوت ورکوی او خلق به ایمان قبلوی او په ټوله دنیا کښے به دَ اسلام نظام رائج شي - ظاهره ده چه که دَ دغے وخت ایمان مقبول نه وی نو دا دعوت او دَ خلقو په اسلام کښے داخلیدل خو ټول غلطیدی -

په تفسیر روح المعانی کښې خوئې د دې جواب دا اختیار کړې دې چه د مغرب د طرف نه د نمر راختلو واقعه د حضرت عیسیٰ علیه السلام د تشریف راوړو نه کافی زمانه پس به وی، او دغه وخت به د توبې دروازه بنده شی -

او علامه بلقینیؒ وغیره فرمائی چه دا خبره هم د قیاس نه لرې نه ده چه د ایمان او توبې د نه قبلیدو دا حکم کوم چه د نمر د مغرب نه د راختلو نه پس به وی تر آخرې زمانې پورې باقی پاتې نه وی بلکه څۀ زمانه پس دا حکم بدل شی، او ایمان او توبه قبلیدل شروع شی -

(روح المعانی) والله اعلم -

لنډه خبره دا ده چه په ذکر شوی آیت کښې اګر چه د دې وضاحت نۀ دې شوې چه د کومې نښې ښکاره کیدو نه پس به توبه نه قبلیږی هغه کومه نښه ده، مګر د نبی کریم صلی الله علیه وسلم د بیان نه واضحه شوه چه د دې نه مراد د نمر د مغرب د طرف نه راختل دی -

او قرآن کریم په خپله ولې د دې وضاحت نۀ دې کړې؟ په تفسیر بحر محیط کښې دی چه دلته د قرآن د دې خبرې پټ پاتې کول د غافل انسان د بیدارولو د پاره زیات فائده مند دی چه دې به هرې نوې پیښیدونکې واقعه سره بیدار کیږی او په توبه کښې به تلوار کوی -

د دې نه علاوه د دې پټ والی او اجمال یوه بله فائده دا هم ده چه دې په دې بانْدِ پوهه شی چه لکه څنګه د ټول عالم د پاره د مغرب نه په نمرختلو بانْدِ د توبې دروازه به بنده شی دغه شان د دې یوه نمونه د هر انسان د پاره په شخصی طور د توبې بندیدل د ده د مرګ په وخت کښې به وی -

د قرآن کریم په یو بل آیت کښې ئې دا په واضح طور سره بیان کړې ده :-

| | |
|---|---|
| وَلَيْسَتِ التَّوْبَةُ لِلَّذِيْنَ يَعْمَلُوْنَ السَّيِّاٰتِ حَتّٰى اِذَا حَضَرَ اَحَدَهُمُ الْمَوْتُ قَالَ اِنِّيْ تُبْتُ الْاٰنَ - | "یعنی د هغو خلقو توبه قبوله نه ده کوم چه ګناه کوی تر دې پورې چه کله په دوی کښې د چا مرګ راشی نو وائی چه زۀ اوس توبه او باسم" |

اوددے په تشريح کښے نبي کريم صلى الله عليه وسلم فرمائيلى دى :-

إِنَّ تَوْبَةَ الْعَبْدِ تُقْبَلُ مَا لَمْ يُغَرْغِرْ - ‏ يعنى دَ بنده توبه ترهغه وخته پورې قبليږى ترڅو پورې چه دَ ده روح حلق ته راشى اودَمرګ غرغره ئے نه وى شروع شوے"

دَ دے نه معلومه شوه چه دَ روح ختلو په وخت کښے کله چه ساه آخرى شى دغه وخت هم چونکه دَمرګ فرشتے مخے ته راځى، دغه وخت هم توبه نه قبليږى۔ او داهم ښکاره خبره ده چه دا صورتِ حال هم دَ الله دَ طرف نه يوا همه نښه ده په دے وجه په ذکرشوى ايت کښے په : بَعْضُ اٰيٰتِ رَبِّكَ : کښے دا دَمرګ وخت هم داخل دے، لکه چه په تفسير بحرمحيط کښے دَ بعضِ عالما نو دا قول نقل شوے هم دے، او بعض بزرګا ن فرمائى : مَنْ مَاتَ فَقَدْ قَامَتْ قِيَامَتُهُ : يعنى کوم سړے چه مړشو نو دَ ده قيامت دغه وخت قائم شو" ځکه چه دارالعمل ختم شو اودَ عملونو دَجزا څه نمونه دَ قبر نه شروع شوه۔

صائب دا مضمون په نظم کښے بيان کړے دے۔ سه

توبه بار ا نفس باز پسين دست روست ‏ بخبر دير رسيدى در محمل بستند

ردَ توبے وخت دَ زنکدن نه لږ وړاندِ پورے دے، خوته نا خبره چه خبر يدے نو دَ کجاوے دروازه بنده شوے وه)

دلته دَ عربئ ژبے په اعتبار سره دا خبره هم دَ نظر قابله ده چه په دے ايت کښے اوّل فرمائى : اَوْ يَاْتِىَ بَعْضُ اٰيٰتِ رَبِّكَ : او بيا دَ دے جملے اعاده کوى فرمائى : يَوْمَ يَاْتِىْ بَعْضُ اٰيٰتِ رَبِّكَ لَا يَنْفَعُ نَفْسًا اِيْمَانُهَا : په دے کښے ئے دَ ضمير نه په کار اغستو خبره لنډه نه کړه۔ دَ دے نه معلوميږى چه په اوّله کلمه کښے کوم : بَعْضُ اٰيٰتِ : ذکر دے هغه بل دے، او په دويمه کلمه کښے : بَعْضُ اٰيٰتِ : دَ دے نه مختلف دے۔ دَ دے تفصيل دے طرف ته اشاره کيدے شى کوم چه اوس تاسو په روايت دَ حذيفه ابن اُسيد اَورِ يدلے دے چه دَ قيامت لس نښے ذيرے اهمے دى په دے کښے آخرى نښه دَ مغرب نه دَ نمر ختلو ده چه دَ توبے بند يدو نښه ده۔

دَ ايت په آخر کښے ارشاد فرمائى : قُلِ انْتَظِرُوْا اِنَّا مُنْتَظِرُوْنَ : په دے کښے

نبی کریم صلی الله علیه وسلم ته خطاب دے چه ته دے خلقوته اُووا یه
چه د الله تعالیٰ د ټولو حجتو نو پوره کید ونه پس هم که تاسو مرګ یا قیامت
ته انتظار کوئ نو دغه انتظار کوئ، مونږ به هم د دے انتظار کوو چه ستاسو
سره ستاسو رب څۀ معامله کوی -

إِنَّ الَّذِينَ فَرَّقُوا دِينَهُمْ وَكَانُوا شِيَعًا لَّسْتَ
چا چه لارے جو ړے کړے په خپل دین کښے او شو ډیرے فرقے تا لره د

مِنْهُمْ فِي شَيْءٍ ۚ إِنَّمَا أَمْرُهُمْ إِلَى اللَّهِ ثُمَّ
دوی سره هیڅ کار نیشته - د دوی کار الله ته حوالہ دے بیا به هغه

يُنَبِّئُهُمْ بِمَا كَانُوا يَفْعَلُونَ ﴿١٥٩﴾ مَنْ جَاءَ بِالْحَسَنَةِ
خبر کړی دوی لره په هغه چه دوی کول - څوک چه راتلهٔ او کړی به یوه نیکئ

فَلَهُ عَشْرُ أَمْثَالِهَا ۖ وَمَنْ جَاءَ بِالسَّيِّئَةِ فَلَا
نو دهٔ لره د هغے لس چنده دی - او څوک چه راتلهٔ او کړی به یوه بدئ نو سزا

يُجْزَىٰ إِلَّا مِثْلَهَا وَهُمْ لَا يُظْلَمُونَ ﴿١٦٠﴾
به مومی د هغے برابر او په دوی به ظلم نه وی

## لنډ تفسیر

بے شکه کوم خلقو چه خپل دین لره (د کوم چه دوی مکلف دی) جُدا جُدا کړو
(یعنی حق دین ئے بتمامه قبول نه کړو، خواه ټول ئے پاتے کړو یا بعض لره
او طریقے د شرک او کفر او بدعت ئے اختیار کړے) او (مختلف) ډلے ډلے جوړ شو

ستا د دوی سره هیڅ تعلق نیشته (یعنې ته د دوی نه بري یې، په تا هیڅ الزام نیشته) بس (د دوی په خپله د خپل نیک او بد ذمواردي او) د دوی معامله الله تعالیٰ ته حواله ده (رخصه یې ویني کوري) بیا (په قیامت کښې) به دوی ته د دوی کار او بنایي (او حجت به پرې قائم کړي د عذاب مستحق والے به ظاهر کړي) کوم سړے چه نیک کار اوکړي د هٔ ته به (د کمو نه کم) لس چنده ثواب ملاؤ شي (یعنې داسے به گڼلے شي چه گویا حهٔ دغه نیکي لس پیرے کړے ده او دا رنګه په یوه نیکۍ چه څومره ثواب ملاویدا او س به ورته لس حصے د دغسے ثواب ملاویږي) او کوم سړے چه بد کار اوکړي پس د هٔ ته به د هغې برابر سزا ملاویږي (زیاته به ورته نه ملاویږي) او په دغو خلقو به (ظاهراً هم) څه ظلم نه وي (چه څهٔ نیکي یې لیکلے شوے نه وي یا یې ورلره څهٔ بدي زیاته لیکلے وي) -

## معلومات او مسئلے

د سورتِ انعام زیاته حصه د مکے مشرکانو ته خطاب او د دوی د سوال او جواب متعلق راغلے دے - چه په دے کښې دوی ته دا هدایت شوے وُو چه دا وخت د الله تعالیٰ نیغه لار صرف په قرآن او د نبي کریم صلی الله علیه وسلم د تابعدارئ کښې ده - لکه څنګه چه ستاسو نه د وړاندې انبیاؤ په زمانه کښې د دوئ او د دوی د کتاب او شریعت په تابعدارئ کښې نجات وُه نن صرف ستاسو او ستاسو د شریعت په تابعدارئ کښې نجات دے - د عقل نه کار واخلئ او دا نیغه لار پرېږدو دل او داخوا دېخوا غلطے لارے اختیارول مهٔ کوی ورنه دغه لارے به تاسو د الله تعالیٰ نه چیر لرے بوځي -

د ذکر شوو آیاتونو نه په اوّل آیت کښې یو عام خطاب دے چه د هر بو مشرکان او یهود او نصارا او مسلمانان ټول په کښې داخل دی دا ټول یې مخاطب کړي دي د الله تعالیٰ د نیغې لارے نه د اوړیدونکو د بدٔ انجام بیان یې کړے دے، او نبي کریم صلی الله علیه وسلم ته یې هدایت کړے دے چه په دے غلطو لارو د تلونکو سره ستا هیڅ تعلق نیشته، بیا په دې کښې غلطے لارے هغه هم دي کومے چه د صراطِ مستقیم نه بالکل مخالف جانب ته بوتلونکي دي،

لکه د مشرکانو او اهلِ کتابو لارے، او هغهٔ لارے هم دی کومے چه په مخالف جانب کښے خوند دی مګر د نیغے لارے نه اخوا دیخوا اړ و نکی دی، هغه د شبها تو او د بدعا تو لارے دی، دغه هم انسان لره په ګمراهئ کښے اچوونکی دی۔

ارشاد فرمائی: اِنَّ الَّذِیۡنَ فَرَّقُوۡا دِیۡنَهُمۡ وَکَانُوۡا شِیَعًا لَّسۡتَ مِنۡهُمۡ فِیۡ شَیۡءٍ اِنَّمَاۤ اَمۡرُهُمۡ اِلَی اللّٰهِ ثُمَّ یُنَبِّئُهُمۡ بِمَا کَانُوۡا یَفۡعَلُوۡنَ: "یعنی هغه خلق کوم چه لارے راویستلی دی په خپل دین کښے او شو دیرے فرقے تا لره د دوی سره هیڅ کار نیشتے د دوی کار الله ته حواله دے بیا به هغهٔ پوهه کړی دوی لره په هغهٔ څهٔ چه دوی کول"۔

په دے ایت کښے ئے په غلطو لارو د تلو نکو متعلق اوّل خو دا او خودله چه د الله رسول د دوی نه بَرِیٔ دے د نبی کریم صلے الله علیه وسلم دوی سره هیڅ تعلق نیشتے۔ بیا ئے دوی ته دا زورَ نه واوَرَ ولہ چه د دوی معامله بس خدائے تعالیٰ ته حواله ده، هغهٔ به دوی ته د قیامت په ورځ سزا ورکړی۔

په دین کښے تفریقه جوړَ وَل او فرقے جوړیدل کومے چه په دے ایت کښے ذکر دی۔ د دینه مراد دادے چه د دین د اُصولو نا بعداری پاتے کړی د خپلو خیالاتو او خواهشاتو مطابق یا د شیطان په مکر و تلبیس کښے اخته شی په دین کښے څهٔ نوی څیزونه زیات کړی یا بعض څیزونه پاتے کړی کوم چه په دین کښے ضروری وی۔

| په دین کښے په بدعت پیدا کو لو د عذاب سخته زورَ نه |
|---|

په تفسیر مظهری کښے دی چه په دے کښے د تیر وامتونو خلق هم داخل دی کوم چه د خپل دین اُصول پاتے کړل د خپل طرف نه ئے څهٔ څیزونه پکښے ملاؤ کړی وُو او د دے اُمّت بدعتیان هم کوم چه په دین کښے د خپل طرف نه بے بنیا ده څیزونه شاملوی، نبی کریم صلے الله علیه وسلم په یو حدیث کښے دے مضمون لره داسے واضح کړے دے چه:-

"ځما اُمّت ته به هم هغه حالات را پیښ شی کوم چه بنی اسرائیلو ته پیښ شوی وُو، په کومو بد و عملو نو کښے چه دوی اخته شوی وُو

ځماد امت خلق به يکښې هم اختلاف شي، بني اسرائيل په دوه اويا فرقو کښې
تقسيم شوي وو ځما امت به په درې اويا فرقو کښې تقسيم شي چه په
دوی کښې به د يوې فرقې نه علاوه نورې ټولې دوزخ ته ځي، صحابه
کرامو عرض اوکړو چه هغه نجات موندونکې فرقه کومه يوه
ده؟ اوې فرمائيل: مَا اَنَا عَلَيْهِ وَ اَصْحَابِىْ (يعنې هغه جماعت چه
ځما په طريقه او ځما د اصحابو په طريقه باندې ځي) هغه به نجات بيامومي:
(دې روايت لره ترمذی، ابوداؤد په روايت د ابن عمرؓ نقل کړې دې)۔
او طبرانی په معتبر سند سره د حضرت فاروق اعظمؓ نه نقل کړې دې
چه دوی حضرت عائشې ته اوفرمائيل چه په دې آيت کښې د کومو فرقو
ذکر دې دا بد عتيان او د خپلو خواهشاتو او خيالاتو تابع د نوو طريقو
طريقو ايجادکونکي دي۔ دا مضمون د حضرت ابوهريرهؓ نه په صحيح سند
سره نقل دې۔ په دې وجه نبي کريم صلے الله عليه وسلم په دين کښې
نوې نوې طريقې د خپل طرف نه ايجادکول په ډير تاکيد سره منع کړي دي:
امام احمدؒ ابوداؤد، ترمذي وغيره په روايت د عرباض بن ساريهؓ
نقل کړې دې چه نبي کريم صلے الله عليه وسلم فرمائيلي دي چه:
"په تاسو کښې چه کوم خلق ځما نه پس ژوندی پاتې شي هغوی به
ډير اختلافات اووينې په دې وجه زه تاسو ته وصيت کوم چه
تاسو ځما سنت او د خلفائے راشدينو سنتو لره په مضبوطۍ سره
اونيسئ د دې مطابق په هر کار کښې عمل کوئ د نوو نوو طريقو نه
ځان ساتئ ځکه چه په دين کښې هر نوې پيدا شوې شې بدعت
دې او هره بدعت ګمراهي ده"۔
په يو حديث کښې ارشاد فرمائي چه کوم سړې د جماعت نه بلوه لېشت
جدا شو د هٔ د اسلام رسۍ د خپل ګردن نه اوويستله۔ (ابوداؤد، احمدؒ)
په تفسير مظهري کښې دي چه د جماعت نه مراد په دې حديث کښې د صحابو
جماعت دې، وجه دا ده چه الله تعالیٰ زمونږ آقا محمد مصطفیٰ صلے الله
عليه وسلم رسول راوليګه، او قرآن ئې ورته ورکړو، او د قرآن نه علاوه

دویمه وحئ ورکړه چه هغې ته حدیث یا سُنّت ویئلے شي - بیا په قرآن کښې چیر
ایا تونه مشکل یا مجمل یا مبهم دي ، دَ دې دَ تفسیر اوبیان الله تعالیٰ دَ خپل
رسولؐ په ذریعه دَ بیا نولو وعده اوفرما ئیله : ثُمَّ اِنَّ عَلَيْنَا بَيَانَهٗ : هم دا
مطلب دے -

نبي کریم صلے الله علیه وسلم دَ قرآن دَ مشکلا تو او مبهما تو تفسیر او
دَ خپلو سُنّتو تفصیلا ت خپلو بِلا واسطے شاګردا نو یعنی صحابه کرامؓ ته
دَ خپل قول او عمل په ذریعه اوخودل ، په دے وجه دَ جمهورو صحابوؓ
عمل دَ پوره شریعتِ اِلٰهی بیان او تفسیر دے -

په دے وجه دَ مسلمان سعادت په دے کښې دے چه په هر کار کښې دَ
الله دَ کتاب او دَ نبي کریم صلے الله علیه وسلم دَ سُنّتو تا بعدارې اوکړي
او دَ کوم آیت یا حدیث په مراد کښې چه اشتباه وي په دے کښې هغه
اختیار کړي کوم چه جمهورو صحابوؓ اختیار کړے وي -

دے مقدّس اصولو لو لره په نظر انداز کولو سره په اسلام کښې مختلفې
فرقې پیدا شوے چه دَ صحابوؓ عمل او تفسیر ئې نظر انداز کړو دَ خپل
طرف نه چه په زړه کښې څه راغلل هغه ئې دَ قرآن او سُنّت مطلب مقرر
کړو ، دا هغه دَ ګمراهئ لارے دي دَ کومو نه چه قرآن کریم بار بار منع
فرمائیلے ده ، او نبي کریم صلے الله علیه وسلم تول عمر په ډیر تاکید سره
دَ دے نه منع فرمائیلے ده او دَ دے نه په خلاف کوونکو باندې ئې لعنت
فرمائیلے دے -

حضرت عائشه صدّیقهؓ فرمائي چه نبي کریم صلے الله علیه وسلم فرمائیلي
دي چه په شپږو کسا نو باندې زهٔ لعنت کوم ، او الله تعالیٰ پرهم لعنت
کوي ، یو هغه سړے چا چه دَ الله تعالیٰ په کتاب کښې دَ خپل طرف نه
څهٔ زیات کړل ، یعنی خواه څهٔ الفاظ ئې زیات کړل یا ئې په معنیٰ کښې داسے
زیاتے اوکړو چه دَ تفسیر دَ صحابوؓ نه خلاف وي - دویم هغه سړے
کوم چه دَ تقدیر اِلٰهي نه مُنکر شو ، دریم هغه سړے کوم چه په اُمّت
په زبردستئ مسلّط شي - او عزّت ورکړي هغه سړي لره کوم چه الله ذلیله

کړے دے، او ذلت ورکړی هغه چا ته چه چا لره الله تعالیٰ عزت ورکړے دے.
څلورم هغه سړے کوم چه د الله تعالیٰ حرام حلال گڼړی، یعنی په حرم د مکے کښے قتل وقتال اوکړی، یا ښکار پکښے اوکړی، پنځم هغه سړے چا چه ځما د اولاد بے حرمتی اوکړه، شپږم هغه سړے چه ځما سُنّت ئے پاتے کړل۔

په دویم ایت کښے ارشاد فرمائی: مَنْ جَآءَ بِالْحَسَنَةِ فَلَهٗ عَشْرُ اَمْثَالِهَا وَ مَنْ جَآءَ بِالسَّیِّئَةِ فَلَا یُجْزٰۤی اِلَّا مِثْلَهَا وَ هُمْ لَا یُظْلَمُوْنَ:
په تیر ایت کښے د دے بیان وُه چه د نیغے لارے نه اُوړیدونکو لره به الله تعالیٰ په ورځ د قیامت د دوی د عملونو سزا ورکړی۔

په دے ایت کښے د اخرت د جزا او سزا کریمانه ضابطه داسے بیانوی چه کوم سړے یو نیک کار اوکړی د هٔغهٔ له به لس چنده بدله ورکولے شی۔ او کوم سړے چه یو گناه اوکړی د دے بدله به صرف د یو گناه برابر ورکولے شی (زیاتے نه)۔

په صحیح بخاری او مسلم، نسائی او مسند احمدؒ کښے دی چه نبی کریم صلے الله علیه وسلم فرمائیلی دی چه ستاسو رب عزّ وجلّ رحیم دے. کوم سړے چه د څهٔ نیک کار صرف اراده اوکړی د دهٔ د پاره یوه نیکی لیکلے شی اگر که د دغه نیکئ کولو نوبت هم رانه شی، بیا چه کله دے دغه نیک کار اوکړی نو لس نیکئ د دهٔ په عملنامه کښے اولیکلے شی۔ او کوم سړے چه د څهٔ گناه اراده اوکړی مگر بیا هم په دے عمل او نه کړی نو د دهٔ د پاره هم یوه نیکی اولیکلے شی۔ او که دغه د گناه کار اوکړی هم نو یوه بدی ورلره اولیکلے شی، یا دغه هم ختمه کړے شی۔ د دے دومره عفوے کوم سره سره د الله تعالیٰ جلّ شانهٔ په دربار کښے هغه سړے هلاکیدے شی کوم چه د خپلو هلاکید و قصد کړے وی۔ (ابن کثیر)

په یو حدیث قدسی کښے په روایت د ابو ذرؓ ارشاد دے:

"کوم سړے چه یوه نیکی کوی دهٔ ته د لسو نیکو ثواب ملاویګی او د دے نه هم زیاتی، او کوم سړے چه یو گناه کوی نو دهٔ ته سزا صرف د یو گناه برابر ملاویګی یا به زهٔ دغه هم معاف کړم، او کوم سړے

چه دوه مره گناه هونه اوکړي چه تول ژمکه پرې وکړشي بيا ماله را شي او مغفرت غواړي نو زهٔ به هم په دغه هومره مغفرت معامله دهٔ سره اوکړم، او کوم سړے چه ما ته يوه لويشت نژدے کيږي زهٔ به يو لاس دهٔ ته نژدے شم، او کوم سړے چه يوه لاس ما ته نژدے شي زهٔ به هغه ته يوه وزه (د دواړو خورو لاسو په قدر) نژدے شم، او څوک چه زما طرف ته په خپو سو راځي زهٔ د هغهٔ طرف ته په منډه راځم".

د دے روايتونو د حديث نه معلوم شوه چه د نيکۍ په جزاء کښې د لسو پورے زياتے کوم چه په دے آيت کښې ذکر دے د ادنیٰ حد بيان دے، او الله تعالیٰ بخپل رحم و کرم سره د دے نه زيات ته جزاء هم ورکولے شي او ورکوي به هم، لکه چه د نورو روايتونو نه اويا چنده يا اووه سوه چنده ثابتيږي۔

د دے آيت په الفاظو کښې دا خبره هم د غور قابله ده چه دلته لفظ د ”جَاۤءَ بِالْحَسَنَةِ“ ئے فرمائيلے دے ”عَمِلَ بِالْحَسَنَةِ“ ئے نه دے فرمائيلے۔ په تفسير بحر محيط کښے دی چه د دے نه دے طرفته اشاره موندے شي چه محض په څهٔ نيک يا بد کار کولو دا جزاء او سزا نه شي ورکولے، بلکه د جزاء او سزاء د پاره د مرګ تر وخته پورے دغه نيک يا بد عمل پاتے کيدل شرط دی چه د دے نتيجه دا ده چه که يو سړی څهٔ نيک عمل اوکړو ليکن بيا که دهٔ د څهٔ ګناه په شامت سره هغه عمل حَبَط او ضائع شو نو دے په دغه عمل د جزا مستحق پاتے نه شو، لکه معاذ الله کفر او شرک خو ټول نيک عملونه برباد وي د دے نه علاوه نور رحم ډير داسے ګناهونه دي چه بعض نيک عملونه باطل او بے اثره کوي، لکه په قرآن کريم کښې دي: ”لَا تُبْطِلُوْا صَدَقٰتِكُمْ بِالْمَنِّ وَالْاَذٰی“ يعني تاسو خپلے صدقے په احسان خيژولو يا ضرر رسولو باطلے او ضائعه کوئ مه“۔

د دے نه معلومه شوه چه د صدقے نيک عمل په احسان خيژولو يا ضرر رسولو باطل او ضائع کيږي۔ دغه شان په حديث کښې دي چه په جماعت کښے کيناستل او د دُنيا خبرے کول نيکو لره داسے خوري لکه اور چه لرګي خوري د دينه معلومه شوه چه په جمات کښے کوم نيک عملونه نوافل او تسبيحات وغيرهٔ

کړی وی هغه د دُنیا په خبر وسره ضائع شی۔

دغه شان د بد وعملونو نه چه توبه اُوباسی نو هغهٔ گناه د عملنامے نه ورانو لے شی، د مرگ تر وخته پورے باقی نه پاتے کیږی۔ په دے وجه په دے ایت کښے ئے دا نه دی فرمائیلی" چه څوک څهٔ نیک یا بدعمل اوکړی نو دهٔ ته به جزا یا سزا ملاو یګی" بلکه دا سے ئے فرمائیلی دی چه څوک سړے نیک عمل موښږ ته راوړی نو لس چنده ثواب به ور ته ملاو یګی اوکه موښږ ته بد عمل راوړی نو د یو عمل سزا به مومی" د الله تعالیٰ خوا ته راوړل به هغه وخت وی کله چه دغه عمل تر اخره پورے قائم او باقی پاتے شی، نیک عمل لره ضائع کوُنکے څهٔ شے تر و نه شی او د بد عمل نه توبه او استغفار کوی۔

د ایت په اخر کښے ئے او فرمائیل: وَهُمْ لَا يُظْلَمُوْنَ: یعنی په دے لوئے عدالت کښے د دے خبرے امکان نیشتے چه په چاڅهٔ ظلم اوشی، او نه د چا په نیک عمل کښے د کمی څهٔ امکان شته، او نه د چا په بدعمل باندے د دے نه د زیاتے سزا احتمال شته۔

قُلْ اِنَّنِیْ هَدٰىنِیْ رَبِّیْٓ اِلٰی صِرَاطٍ مُّسْتَقِیْمٍ ۚ دِیْنًا

ته اووایه چه ما ته خودنه کړے ده ځما رب د لارے نیغے - د دین

قِیَمًا مِّلَّةَ اِبْرٰهِیْمَ حَنِیْفًا ۚ وَمَا كَانَ مِنَ الْمُشْرِكِیْنَ (۱۶۱)

صحیح د ملت ابراهیمی چه یکسو وه - او نه وه د شرک کوُنکو څخه -

قُلْ اِنَّ صَلَاتِیْ وَنُسُكِیْ وَمَحْیَایَ وَمَمَاتِیْ لِلّٰهِ

ته اووایه ځما مونځ ځما قربانی او ځما ژوند او ځما مرگ د الله دپاره دی

رَبِّ الْعٰلَمِیْنَ (۱۶۲) لَا شَرِیْكَ لَهٗ ۚ وَبِذٰلِكَ اُمِرْتُ

چه پالونکے د ټول جهان دے۔ نیشته شریک هغهٔ لره او دا ما ته حکم شوے دے

وَاَنَا اَوَّلُ الْمُسْلِمِيْنَ ﴿۱۶۳﴾ قُلْ اَغَيْرَ اللّٰهِ اَبْغِيْ رَبًّا

اوزه د ټولونه اول فرمانبردار یم - ته ئې اووایه آیا اوس زه د الله نه سوا تلاش کړم

وَّهُوَ رَبُّ كُلِّ شَيْءٍ ۭ وَلَا تَكْسِبُ كُلُّ نَفْسٍ اِلَّا

څوک رب او هغه دے رب د هر شي - او څوک چه څهٔ ګناه کوی نو د دهٔ

عَلَيْهَا ۚ وَلَا تَزِرُ وَازِرَةٌ وِّزْرَ اُخْرٰى ۚ ثُمَّ اِلٰى رَبِّكُمْ

په ذمه دے - او بوج به پورته نهٔ کړی یو سړے د بل - بیا ستاسو رب ته ستاسو

مَّرْجِعُكُمْ فَيُنَبِّئُكُمْ بِمَا كُنْتُمْ فِيْهِ تَخْتَلِفُوْنَ ﴿۱۶۴﴾

د ټولو واپس کیدل دی پس هغهٔ به خبر کړی تاسو لره پکومه خبرکښے چه تاسو جګړه کوله -

وَهُوَ الَّذِيْ جَعَلَكُمْ خَلٰٓئِفَ الْاَرْضِ وَرَفَعَ

او هغهٔ تاسو لره خلیفه ګان کړل په زمکه کښے او پورته ئې کړے

بَعْضَكُمْ فَوْقَ بَعْضٍ دَرَجٰتٍ لِّيَبْلُوَكُمْ فِيْ مَآ

په تاسو کښے درجے د یو په بل باندِ چه آزمایښ اوکړی ستاسو پخپلو ورکړو

اٰتٰىكُمْ ۭ اِنَّ رَبَّكَ سَرِيْعُ الْعِقَابِ ۖ وَاِنَّهٗ لَغَفُوْرٌ

حکمونو کښے - ستا رب زر عذاب ورکوونکے دے او هغه ښښنے والا

رَّحِيْمٌ ﴿۱۶۵﴾ ع

مهربان دے

ع ۲۰ ۱۱

# لنډ تفسير

ته اووایه چه ماته زما رب یوه نیغه لار (په ذریعه د وحی) خودلې ده
چه هغه یو دین دے (کوم چه په ثبوت د دلیلونو سره) مستحکم (دے) کوم
چه طریقه ده د ابراهیم (علیه السلام) چه یوه ذره کوږوالے په کښې نیشتے
او هغه (ابراهیمؑ) د شرک کوونکو نه نهٔ وهٔ (او) ته (د دے ذکرشوی
دین د قدرے تفصیل د پاره) اووفرمایئ چه (د دے دین حاصل دا دے چه
په یقین سره زما مونځ زما ټول عبادتونه او زما ژوند او زما مرګ دا
ټول خالص د الله تعالیٰ د پاره دی کوم چه مالک دے د ټول جهان د
ده سره (په عبادت یا د ربوبیت په صفتونو کښې) څوک شریک نیشتے او
ما ته د دے (ذکرشوی دین باندې د قائم اوسیدو) حکم شوے دے
او (د حکم موافق) زهٔ (د دے دین په منونکو کښې) د ټولو منونکو
نه اولنے (منونکے) یم، ته (د باطل طرف ته بلونکو ته) اووایه چه آیا
(پس د واضح کیدو د حقیقت د توحید او اسلام نه ستا په خبره) زهٔ
د خدائے تعالیٰ نه سوا څوک بل لره د رب جوړه ولو د پاره تلاش کړم
(یعنی نعوذ بالله شرک اختیار کړم) حال دا دے چه هغه مالک دے د
هر څیز (او ټول څیزونه د هغه مملوک دی او مملوک د مالک سره
شریک کیدے نه شی) او (تاسو چه کوم دا سے وایئ چه ستاسو ګناه
زمونږ په سر دا محض لغو خبره ده چه کوونکے د پاک صاف پاتے شی
او صرف دویم دے ګناه ګار شی بلکه خبره دا ده چه) کوم سړے هم څهٔ
عمل کوی هغه به په دهٔ باندې وی او څوک به د بل بوج (د ګناه) پورته
نه کړی (بلکه هر څوک به خپل خپل بوج اوچتوی) بیا (د ټولو د عمل
کولو نه پس) به تاسو ټولو لره خپل رب طرف ته تلل وی بیا به هغه
تاسو ته اوښائی په کوم کوم شی کښې چه تاسو اختلاف کولو (چه چا به
یو دین ته ښهٔ وے او چا بل ته، هلته به په عملی اطلاع سره فیصله
کوَلے شی چه د حق خاوندان به نجات بیاموی او د باطل خاوندان به سزا)

او هغه (الله) دا سے دے چا چه تا سو لره په دنیا کښے د اختیار خاوندان جوړ کړل (په دے نعمت کښے خو تماثل دے) او د یو کے په بل باندے (په مختلفو څیزونو کښے) مرتبه زیاته کړه (په دے نعمت کښے تفاضل دے) د دے د پاره چه (په دے نعمتونو سره) تا سو لره (په ظاهره) د ازمائې په هغو څیزونو کښے کوم چه (په ذکر شوو نعمتونو کښے) تا سو لره درکړې دی (آزمائیل داسے چه څوک د دے نعمتونو قدر کوی د نعمت ورکوونکی اطاعت کوی او څوک ئے بے قدری کوی فرمانبرداری نه کوی پس بعض تا بعدار شو بعض نافرمانه او د دواړو سره به مناسب معامله اوشی، ځکه چه) په یقین سره ستا رب ډیر زر سزا ورکوونکے (هم) دے او په یقین سره هغه واقعی لوئے مغفرت کوونکے مهربانی کوونکے (رحم) دے (پس د نافرمانو د پاره عذاب دے او د فرمان بردارو د پاره رحمت دے، او د نافرمانۍ نه فرمانبردارۍ ته د راتلونکو د پاره مغفرت دے، پس په مکلفینو باندے ضروری شوه چه د حق دین موافق فرمانبرداری اختیار کړی، او د باطل نه او د مخالفت د حق نه واپس شی) -

# معلومات او مسئلے

دا د سورت انعام آخری شپږ آیتونه دی، کوم خلقو چه په حق دین کښے افراط او تفریط اوکړے زیاتے او کړو مختلف دینونه ئے جوړ کړی وو او بیا په مختلفو ډلو او فرقو کښے تقسیم شوی وو، د دوی په مقابله کښے په دے کښے اولنی درے آیاتونو د حق دین د صحیح تصویر رابنکو دو او د دین د بنیادی اصولو او بعض اهم فروع او جزئیات بیان کړی دی په اولو دوه آیاتونو کښے د اصولو بیان دے، او په دریم آیت کښے د دغه د اهمو فروعو بیان دے، او په دواړو کښے ئے نبی کریم صلی الله علیه وسلم لره مخاطب کړے دے او ارشاد ئے شوے دے چه ته خلقو ته دا خبره اوړسوه -

په اول آیت کښے ارشاد دے : قُلْ اِنَّنِیْ هَدٰىنِیْ رَبِّیْۤ اِلٰی صِرَاطٍ مُّسْتَقِیْمٍ:

"یعنی ته او وایه چه ما ته ځما رب یو نیغه لار ښودلې ده" په دې کښې ئې اشاره
او فرمائیله چه ما ستا سو په شان د خپلو خیالاتو یا د پلار نیکه د رسمونو تابع
لار نه ده اختیار کړې، بلکه ځما ربّ ما ته دا لار ښودلې ده، او په لفظ د
ربّ سره ئې دې طرف ته هم اشاره اوکړه چه د ده د ربُوالی د شان دا تقاضا
ده چه هغه صحیح لار او ښائی. تا سو هم که غواړئ نو د هغه طرف ته
د هدایت سامان ستا سو د پاره هم موجود دې.

په دویم آیت کښې فرمائی: دِيْنًا قِيَمًا مِّلَّةَ اِبْرٰهِيْمَ حَنِيْفًا وَّمَا كَانَ مِنَ
الْمُشْرِكِيْنَ: په دې کښې لفظ د "قِيَمْ" مصدر دې په معنی د قیام کښې، او
مراد د دې نه قائم پاتې کیدل او مستحکم دې، یعنی دا دین مستحکم دې
کوم چه د الله تعالیٰ د طرف نه راغلې په مضبوطو بنیادونو قائم دې. د چا
شخصی خیالات قائم نه دی، او څه نوې دین او مذهب هم نه دې چه څوک
پکښې شبه اوکړی، بلکه د تیرو ټولو پیغمبرانو علیهم السلام هم دین دې،
د حضرت ابراهیم علیه السلام نوم ئې په دې وجه په خصوصیت سره ذکر
کړو چه د دنیا د هر مذهب خلق د ده د لوئی او امامت قائل دی. په
موجوده فریقو کښې یهود، نصارا، د عربو مشرکان که پخپل منځ کښې هم
څومره مختلف دی خو د ابراهیم علیه السلام په بزرګئ او امامت ټول
متفق دی. دا هغه مقام د امامت دې کوم چه الله تعالیٰ د خصوصی
انعام په طور سره دوی ته ورکړې دې. اِنِّیْ جَاعِلُكَ لِلنَّاسِ اِمَامًا:
بیا په دوی کښې هره فریقه به د دې ثابتولو کوشش کاوه چه مونږ
په دینِ ابراهیمی باندې قائم یو، او زمونږ مذهب ملّتِ ابراهیمی دې
د دوی دې غلطئ لره د لرې کولو د پاره فرمائی چه ابراهیم علیه السلام
خو د غیر الله د عبادت نه پرهیز کونکې او د شرک نه نفرت کونکې وه
او دا د دوی ډیر لوئې شاهکار دې، تاسو خلق چه په شرک کښې
اخته شوئې، نو یهودو حضرت عزیر علیه السلام لره، او نصارا و حضرت
عیسیٰ علیه السلام لره او مشرکانو د عربو په زرګونو بُتانو لره د خدائې
سره شریک او منل، نو بیا چا ته د دې د وینا څه حق نیشته چه د دې د

ملّتِ ابراهیمي پابند دے - البته دا حق صرف مسلمان ته رسي چه د دے د شرک او کفر نه ویزاره دے -

په دویم آیت کښے فرمائي: قُلْ اِنَّ صَلَاتِیْ وَ نُسُکِیْ وَ مَحْیَایَ وَ مَمَاتِیْ لِلّٰهِ رَبِّ الْعٰلَمِیْنَ ، په دے کښے د لفظ د: نُسُك: معنیٰ د قرباني هم راځي او د حج هر یو فعل ته هم نُسُكْ وائي- د حج اعمالو ته مَنَاسِك وئیلے شي -او دا لفظ مطلق د عبادت په معنیٰ کښے هم استعمالیږي- په دے وجه نَاسِكْ په معنیٰ د عَابِدْ وئیلے شي ، دلته د دے نه هر یوه معنیٰ مراد اغستے شي، او د صحابؤ او تابعینو مفسرینو نه دا ټول تفسیر و نه نقل هم دی، مګر مطلق د عبادت په معنیٰ کښے دلته زیات مناسب معلومیګي معنیٰ د آیت دا شوه چه "زما مونځ او زما ټول عبادتونه او زما ټول ژوند او بیامرګ دا ټول د الله رب العٰلمین د پاره دی"

په دے کښے په فروعو د اعمالو کښے د ټولو نه اول ئے د مانځه ذکر اوکړو ځکه چه دغه د ټولو نیکو عملونو روح او د دین ستن ده - د دے نه پس ئے د ټولو عملونو او عبادتونو اجمالي ذکر اوکړو، او بیائے د دے نه ترقي اوکړه د ټول ژوند عملونه او حالات ئے ذکر کړل - او په آخر کښے ئے د مرګ ذکر اوکړو، دا ټول ئے ذکر کړه او اوئے فرمائیل چه زما دا ټول څیز و نه صرف د الله ربّ العٰلمین د پاره دی د چا چه هیڅوک شریک نیشته ، او دا د کامل ایمان او کامل اخلاص نتیجه ده ، چه انسان د خپل ژوند په هر حال او هر کار کښے د دے لوړه د نظر په وړاندِ او ساتي چه زما او د ټول جهان یو ربّ دے ، زه د هغه بنده او هر څه د هغه په نظر کښے یم ، زما زړه ، دماغ ، سترګے ، غوږونه ، ژبه او لاس خپے ، قلم او قدم د هغه د رضا نه خلاف په ورته کول نه دي پکار ، دا هغه مراقبه ده چه که انسان د دے لوړه په خپلو دماغو کښے حاضره کړي نو په صحیح معنیٰ کښے به انسان او کامل انسان شي ، او ګناهونه او جرمونه به د ده په خوا کښے هم تیر نه شي -

په تفسیر دُرِّ منثور کښے د دے آیت لاندے نقل دے چه حضرت ابوموسیٰ اشعريؓ به فرمائیل چه زما زړه غواړي چه هر مسلمان دے آیت لره بار بار

لوئی، او د ژوند وظیفه ئې جوړه کړی۔

په دے ایت کښے د مانځه او د ټولو عبادتونو د الله پاره کیدل خو ظاهره ده چه په دے کښے د شرک یا ریا یا د څهٔ دنیوی فائدو دخل نه کیدل مراد دی۔ او د ژوند او مرګ د الله د پاره کیدل، د دے مطلب دا هم کیدے شی چه ځما مرګ او ژوند د هغهٔ په قبضهٔ قدرت کښے دی، نو بیا د ژوند عملونه او عبادتونه هم د هغهٔ د پاره کیدل لازمی دی، او دا معنی هم کیدے شی چه خو مره عملونه د ژوند سره تړلی دی هغه هم صرف د الله تعالیٰ د پاره دی لکه مونځ روژه او د خلقو سره معاملات حقونه فرائض وغیره، او کوم عملونه چه د مرګ سره متعلق دی یعنی وصیت او د ځان نه د دروستو د پاره چه هر انسان څهٔ نظام غواړی او سوچ ئې کوی د غه ټول د الله ربّ العٰلمین د پاره او د هغهٔ د حکمونو تابع دی۔

بیا فرمائی: وَبِذٰلِكَ اُمِرْتُ وَاَنَا اَوَّلُ الْمُسْلِمِیْنَ ، "یعنی ما ته د الله تعالیٰ د طرف نه د دے قول او اقرار او کامل اخلاص حکم کړے شوے دے او زهٔ د ټولونه اوّلنے فرمانبردار مسلمان یم" مراد دا دے چه په دے اُمّت کښے د ټولونه اوّل مسلمان زهٔ یم، ځکه چه د هر اُمّت اوّلنے مسلمان په خپله هغهٔ نبی یا رسول وی پکوم چه وحی شریعت نازل لوړے شی۔

او د اوّلنی مسلمان کیدو نه دے طرف ته هم اشاره کیدے شی چه په مخلوقاتو کښے د ټولونه اوّل د نبی کریم صلی الله علیه وسلم نور مبارک پیدا کړے شوے دے او د دے نه پس ټول اسمانونه او زمکه او مخلوقات په وجود کښے راغلی دی لکه چه په یو حدیث کښے ارشاد دے: اَوَّلُ مَا خَلَقَ اللّٰهُ تَعَالٰی نُوْرِیْ (روح المعانی)

| د چا د ګناه بار به نه شی اوچتولے | په خلورم ایت کښے د مکے د مشرکینو ولید بن مغیره وغیره د دے خبرے جواب دے کوم چه به هغو نبی |
|---|---|

کریم صلی الله علیه وسلم او عامو مسلمانانو ته کوله۔ چه تاسو زمونږ دین ته واپس شئ نو ستاسو د ټولو ګناهونو بار به مونږ پورته کړو په دے

باندِ فرمائی: قُلْ اَغَیْرَ اللّٰهِ اَبْغِیْ رَبًّا وَّهُوَ رَبُّ كُلِّ شَیْءٍ ؛ په دے کښے نبی کریم

صلے الله علیه وسلم ته ارشاد دے چه ته دوی ته اُووایه چه آیا تاسو ما نه دا غواړئ چه ستاسو په شان زهٔ هم د الله نه سوا څوک بل ربّ تلاش حال دا دے چه هغه د ټول جهان او ټول کائنات ربّ دے. د دے ګمراهئ ما نه هیڅ اُمید مه لرئ، پاتے شوه ستاسو دا خبره چه مونږ به ستاسو د ګناهونو بارا وچت کړو، دا بڅپله یو حماقت دے. ګناه خو چه کوم سړے او کړی د هغهٔ په عمل نامه کښے به لیکلے شی او هغهٔ به ئے سزا مومی، ستاسو په دے خبره سره د غه ګناه به څنګه تاسو ته راوګرځی - او که دا خیال کوئے چه په حساب او عمل نامه کښے به د دوی وی خو په قیامت کښے چه ئے کومه سزا وی هغه به مونږه بیامومو نو دا خیال هم د دے آیت په راتلونکے جمله کښے رد کړے شو فرمائی: لَا تَزِرُ وَازِرَةٌ وِّزْرَ اُخْرٰی: "یعنی د قیامت په ورځ به هیڅ کس د بل د ګناه بارا وچت نه کړے شی"

په دے آیت کښے د مشرکانو د بے هوده وینا جواب خوئے ورکړے دے علمو مسلمانانو ته ئے هم دا ضابطه اوخودوه چه د قیامت معامله په دُنیا مه قیاس کوئے چه دلته څوک سړے جُرم اوکړی نو د بل په سر ئے اچولے شی، او بیا خاصکر چه هغهٔ بل پرے رضامند هم وی، مګر د الله تعالیٰ په عدالت کښے د دے هیڅ ګنجائش نیشته، هلته د یو په ګناه بل هرګز نه شی نیولے، د دے آیت نه ئے دلیل او نیوو نبی کریم صلے الله علیه وسلم ارشاد اوفرمایه چه: په ولدِ زنا به د والدینو د ګناه هیڅ اثر نه وی، دا حدیث حاکم په صحیح سند سره د حضرت عائشةؓ نه نقل کړے دے۔

او د یو مړی په جنازهٔ باندِ حضرت عبد الله بن عمرؓ چا لره په ژړا اولیدو نو او ئے فرمائیل چه د ژوندو په ژړا باندِ مړے په عذاب کیږی، ابن اَبی مُلیکه فرمائی چه ما دا خبره د حضرت عائشةؓ په وړاندِ نقل کړه، نو هغے او فرمائیل چه تاسو د یو داسے سړی خبره نقل کوئ چه نهٔ هغهٔ چرته دروغ وئیلی دی او نه د هغهٔ په ثقه والی کښے څهٔ شُبه کولے شی، مګر کله په آورید و کښے هم غلطی کیدے شی - په دے معامله کښے خو د قرآن ناطق فیصله ستاسو د پاره پوره ده: لَا تَزِرُ وَازِرَةٌ وِّزْرَ اُخْرٰی: یعنی د یو ګناه په بل باندِ نه شی پریوتے

نو دَ یو تړندی سړی په جرم به مړے بے قصوره څنګه عذابیدے شي (درمنثور)

په آخر آیت کښے ارشاد فرمائی "چه بیا تاسو ټولو لره به آخر خپل رب طرف ته تلل وی کوم ځائے چه به ستاسو دَ ټولو اختلافاتو فیصله واورَ ولے شي" مطلب دا دے چه دَ چالاکئ او ګلو خبرو نه واپس شئ دَ خپل انجام فکر اوکړئ۔

په پنځم او شپږم آیت کښے ئے په یو جامع نصیحت سره سورت انعام ختم کړے دے او هغهٔ دَ تیرے زمانے تاریخ او دَ تیرو قومونو سرګذشت ئے دوی ته وړاندِ کړو خپل مستقبل طرف ته ئے دَ دوی توجه راواړَوله

: وَهُوَ الَّذِیْ جَعَلَکُمْ خَلٰٓئِفَ الْاَرْضِ وَرَفَعَ بَعْضَکُمْ فَوْقَ بَعْضٍ دَرَجٰتٍ : په دے کښے لفظ دَ خَلَائف دَ خلیفه جمع دَه چه معنیٰ ئے دَه دَ چا قائمقام او ګدی نشین، معنیٰ دا دَه چه الله تعالیٰ تاسو لره ستاسو نه دَ وړاندِ قومونو په ځائے آباد کړی دی کوم مکان او زمکے ته چه نن تاسو خپل ملکیت وایئ دا به صبا دَ نورو خلقو په ملکیت کښے وی، الله تعالیٰ هغوی لرے کړلَ تاسوئے دَ هغوی په ځائے کینولئ، او بیا دا خبره هم هر وخت دَ غوَر قابله دَه چه په تاسو کښے هم ټول خلق یو شان نه دی څوک مفلس دے څوک مالدار، څوک ذلیل دے څوک عزتدار، او دا هم ښکاره دَه چه که مالداری او عزت په خپله دَ انسان په اختیار کښے وے نو کوم سړی به مفلسی او ذلت اختیار کړے وَه۔ دا دَ تفاوت درجے هم تاسو ته دَ دے خبرے ورکوی چه اختیار دَ یو بل هستئ په لاس کښے دے هغه چه چاله غواړی مفلس کوی چاله چه غواړی مال دار کوی چاله چه غواړی عزت ورکوی چاله چه غواړی ذلت ورکوی۔

په آخر آیت کښے فرمائی : لِیَبْلُوَکُمْ فِیْ مَآ اٰتٰکُمْ : یعنی تاسو لره دَ نورو خلقو په ځائے دَ کینولو، او دَ دوی دَ مال جائداد مالک کولو، او بیا دَ دولت او عزت په اعتبار سره په مختلفو درجو کښے دَ ساتلو مقصد دا دے چه ستاسو سترګے او غوږ یکی، او دَ دے خبرے امتحان اوشی چه کوم نعمتونه دَ مخکښے خلقو نه واغستے شو تاسو ته اوسپارَلے شو په دے کښے تاسو څهٔ عمل کوئے.

8/9

دَ شکرگذارئ او فرمانبردارئ، یا دَ ناشکرئ او نافرمانئ -:

په شپږم آیت کښې ئې دَ دې دواړو حالتونو انجام داسې اوخودو: اِنَّ رَبَّكَ سَرِيعُ الْعِقَابِ وَإِنَّهُ لَغَفُورٌ رَّحِيمٌ "یعني ستا رب په نافرمانو باندِ زر عذاب لیکونکے دے او دَ فرمانبردارانو دَپاره غفور او رحیم دے"

دَ سورتِ انعام شروع دَ حمد نه اوشوه او ختم ئې په مغفرت اوشو - الله تعالیٰ دے مونږ ټولو له دَ حمد توفیق راکړی او په مغفرت سره سرفراز کړی - آمین -

په حدیث کښې دی چه نبی کریم صلی الله علیه وسلم فرمائیلی دی چه سورتِ انعام مکمل په یوه پیره نازل شوے دے او په دے شان سره نازل شو چه اویا زره فرښتے تسبیح دَ یونکے ورسره نازلے شوے - په دے وجه حضرت فاروق اعظمؓ فرمائی چه سورتِ انعام دَ قرآن کریم دَ غوره او اعلیٰ سورتونو نه دے -

په بعض روایتونو کښې دَ حضرت علی کرم الله وجههٔ نه نقل دی چه دا سورت په کوم مریض او لوستلے شی الله تعالیٰ ورله شفا ورکوی -

وَاٰخِرُ دَعْوَانَا اَنِ الْحَمْدُ لِلّٰهِ رَبِّ الْعٰلَمِيْنَ

# سورتِ انعام ختم شو



# سُورَةُ الْاَعْرَافِ

سُوْرَةُ الْاَعْرَافِ مَكِّيَّةٌ وَّهِيَ مِائَتَانِ وَّسِتُّ اٰيَاتٍ وَّاَرْبَعَةٌ وَّعِشْرُوْنَ رُكُوْعًا

سورت اعراف په مکه کښې نازل شو او دوه سوه شپږ آیاتونه او څلېریشت رکوع گانې دي په کښې

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ ○

شروع کوم د الله په نوم　　چې بې حده مهربان نهایت رحم والا دے

الٓمّٓصٓ ① كِتٰبٌ اُنْزِلَ اِلَيْكَ فَلَا يَكُنْ فِيْ صَدْرِكَ

دا کتاب نازل شوے دے په تا باندې پس پکار دي چه ستا زړه تنګ نه شي

حَرَجٌ مِّنْهُ لِتُنْذِرَ بِهٖ وَذِكْرٰى لِلْمُؤْمِنِيْنَ ②

د دې په رسَولو سره چه او ویرې ورکړې په دې سره او نصیحت وی ایمانداروله -

اِتَّبِعُوْا مَآ اُنْزِلَ اِلَيْكُمْ مِّنْ رَّبِّكُمْ وَلَا تَتَّبِعُوْا

چلیږئ په هغو کوم چه نازل شوی په تاسو ستاسو د رب د طرف نه او مه چلیږئ د دے نه

مِنْ دُوْنِهٖٓ اَوْلِيَآءَ ۭ قَلِيْلًا مَّا تَذَكَّرُوْنَ ③ وَ

سوا په نورو ملګرو پسے　　، تاسو ډیر کم نصیحت قبلوئ - او

كَمْ مِّنْ قَرْيَةٍ اَهْلَكْنٰهَا فَجَآءَهَا بَاْسُنَا

څومره کلی مونږ هلاک کړل چه راغے په دوی زمونږ عذاب

بَيَاتًا اَوْ هُمْ قَآئِلُوْنَ ﴿۴﴾ فَمَا كَانَ دَعْوٰىهُمْ اِذْ

د شپے شپے یا د غرمے چه دوی اوده وو- بیا داوه د دوی آواز هر کله چه

جَآءَهُمْ بَاْسُنَآ اِلَّآ اَنْ قَالُوْٓا اِنَّا كُنَّا ظٰلِمِيْنَ ﴿۵﴾

راغے په دوی بانـدی زمونږ عذاب چه وئیل ئے بے شکه چه مونږ وو ګنا هګار د وو-

فَلَنَسْـَٔلَنَّ الَّذِيْنَ اُرْسِلَ اِلَيْهِمْ وَ لَنَسْـَٔلَنَّ

پس مونږ به خامخا د هغو نه تپوس او کړو کوم ته چه مونږ پیغمبران لیګلی دی او خامخا به تپوس

الْمُرْسَلِيْنَ ﴿۶﴾ فَلَنَقُصَّنَّ عَلَيْهِمْ بِعِلْمٍ وَّ

او کړو د رسولانو نه - بیا به مونږ دوی ته حالات بیان کړو په خپل علم سره او

مَا كُنَّا غَآئِبِيْنَ ﴿۷﴾

مونږ چرته غائب نه وو-

# د سورت د مضامينو نچوړ

په ټول سورت د نظر اچولو نه معلومیګی چه په دے کښے زیات تر مضامین د اخرت او رسالت سره متعلق دی، او په اوّل ایت كِتٰبٌ اُنْزِلَ : کښے د نبوّت او په ایت نمبر شپږم کښے : فَلَنَسْـَٔلَنَّ : کښے د اخرت د تحقیق بیان دے، او د ځلورمے رکوع د نیمے نه د شپږمے رکوع د ختم پورے بالکل د اخرت بحث دے، بیا د اتمے رکوع نه د یوویشتمے رکوع پورے هغه معاملے ذکر دی کومے چه د انبیاء علیهم السلام او د دوی د امتونو سره شوی دی، دا ټولے مسئلے د رسالت سره متعلق دی، او په دے قصو کښے ورسره د رسالت نه د منکرانو د سزا ګانو هم ذکر په تفصیل روان دے، چه موجوده منکران ترے عبرت حاصل کړی،

او دَ رکوع دُوِیشتمے دَ نیمے نه دَ دریشتمے دَ ختم پورے بیا دَ اخرت بحث دے صرف دَ اُوومے او دویشتمے رکوع په شروع کښے او دَ اخری ځلیر یشتمے رکوع په اکثره حِصّه کښے خاص په توحید بحث دے۔ باقی ډیره کمه حصّه دَ سورت داسے ده چه په هغے کښے جزوی او فروعی احکام دَ مقام په مناسبت سره ذکر دی (بیان القرآن)

# لنډ تفسیر

المٓصٓ: (دَ دے معنیٰ خو دَ الله تعالیٰ په علم کښے ده، او دَ الله تعالیٰ او دَ هغهٔ دَ رسول صلے الله علیه وسلم په مینځ کښے یو راز دے، چه امّت ئے پرے نه دے خبر کړے، بلکه دَ دے دَ لټون نه ئے هم منع کړے ده: کِتٰبٌ اُنۡزِلَ اِلَیۡکَ (الی) دا (قرآن) یو کتاب دے کوم چه (دَ الله دَ جانب نه) تاته په دے وجه لیګلے دے چه ته دَ دے په ذریعه (خلقو لره دَ نافرمانۍ دَ سزانه) اُویرَ وے پس ستا په زړهٔ کښے (دَ چا په نه منلو سره) بالکل تنګی نه دی را تلل په کار ځکه چه دَ چا په نهٔ منلو سره ستا په اصل مقصد دَ را لیګلو کښے کوم چه حقه خبره رسَول دی، څه خلل نه راځی نو بیا ته ولے زړهٔ تنګے کیږے) او دا (قرآن په خصوصیّت سره) نصیحت دے دَ ایماندارو دَ پاره (او دا نِ عام اُمّت ته خطاب دے چه هر کله دَ دے قرآن دَ الله تعالیٰ دَ طرف نه نازلیدل ثابت شو نو) تاسو خلق دَ دے (کتاب) تابعداری کوئ کوم چه تاسو ته ستاسو دَ رب دَ طرف نه راغلے دے (دَ کتاب تابعداری داده چه په زړهٔ سره دَ دهٔ تصدیق هم او کړئ او عمل پرے هم) او خدائے تعالیٰ پریږدئ (چا چه ستاسو دَ هدایت دَ پاره قرآن نازل) دَ نورو ملګرو تابعداری مه کوئ (کوم چه تاسو لره ګمراه کوی لکه شیطانان دَ پیریانو او بنی ادمو، مګر سره دَ دے مُشفقانه پوهه کولو نه) تاسو خلق ډیر کم نصیحت منئ، او څومره کلی دی چه دوی لره (یعنی دَ دی اوسیدونکو لره دَ دوی دَ کفر او دروغژن کولو په بنا باندِ) مونږ ده تباه او برباد کړل او په دوی زمونږه عذاب (یا خو) دَ شپے په وخت کښے راغے (کوم چه

دَاوده کيد وا ودَ آرام کوَلو وخت دے) يا په دا سے حالت کښے راغے ) چه دوی دَ غرمے په وخت کښے آرام کاوه (يعنی ځنولوه په ځنے وخت کښے او ځنولره په ځنے وخت کښے) پس کوم وخت چه په دوی زمونږ عذاب راغے دغه وخت دَ دوی دَ خولو نه بغير دَ دے نه بله هيڅ خبره نه وَتله چه واقعی مونږ ظالمان (او خطا کار) وُو، (يعنی دا سے وخت کښے اقرار او کړو کله چه دَ اقرار وخت تير شوے وُه، دا خو دنيوی عذاب شه) بيا (دَ دے نه پس به دَ آخرت دَ عذاب سامان وی چه په قيامت کښے به) مونږ دَ دے خلقو نه (هم) خامخا تپوس او کړو کوموته چه پيغمبران ليګلی شوی وُو (چه تا سو دَ پيغمبرانو وَينا اُومنله او که نه) او مونږ به دَ پيغمبرانو نه خامخا تپوس او کړو (چه ستا سو امتونو ستا سو خبره منلے ده او که نه ده؛ يَوْمَ يَجْمَعُ اللّٰهُ الرُّسُلَ فَيَقُوْلُ مَاذَا اُجِبْتُمْ: او دَ دوا ړه سوالونو نه مقصود به کفار وته زورَ نه او خبردارے وی) بيا چونکه مونږ پوره خبر لرو پخپله به (ټولو ته خامخا دَ دوی عملونه) بيان کړو او مونږ ه (دَ عمل دَ وخت او ځائے نه) غائب نه وُو۔

# معلومات او مسئلے

په ټول سورت دَ نظر اچولو نه معلوميګی چه دَ دے سورت مضامين زيات تر دَ آخرت، نبوت او رسالت متعلق دی چنانچه دَ سورت دَ شروع نه تر شپږ رکوع پورے تقريبا دَ آخرت مضمون بيان شوے دے بيا دَ اتمے رکوع نه تر يويشتمے رکوع پورے دَ تيرو پيغمبرانو حالات او دَ دوی دَ امتونو واقعات، دَ دوی جزا او سزا، او په دوی دَ راغلو عذابونو تفصيلی ذکر دے۔

فَلَا يَكُنْ فِىْ صَدْرِكَ حَرَجٌ : په اوّلنی آيت کښے نبی کريم صلے الله عليه وسلم ته خطاب فرمائی ارشاد ورته فرمائيلے شوے دے چه دا قرآن دَ الله تعالیٰ کتاب دے کوم چه تا ته رالیګلے شوے دے تا لره په دے سره زړه تنګول نه دی پکار۔ دَ زړه تنګيدو نه مراد دا دے چه دَ قرآن کريم او دَ دهٔ دَ احکامو په تبليغ کښے دِ تا لره دَ چا څهٔ يره منع کوونکے نه شی، چه خلق به

دے لرہ دروغژن کړی او تا ته به اٰزار او رسوی ژلکه چه دا روایت شوے دے د ابی العالیه نه، مظهری)

اشاره دے خبرے طرف ته ده، چه چا په تا دا کتاب نازل کړے دے هغهٔ ستا د امداد او حفاظت هم انتظام کړے دے په دے وجه ته د ولے زړهٔ تنګوے- او بعض حضرات فرمائی چه دلته د زړهٔ د تنګئ نه مراد دا دے چه د قرآن او اسلام حکمونو آوریدو سره به هم کوم خلق چه نه مسلمانیدل نو دا به په نبی کریم صلے الله علیه وسلم په وجه د شفقت ګرانیدل نو دے لره ئے د زړهٔ په تنګید وسره تعبیر کړل- او دا ئے خودلے ده چه ستا منصبی فرض صرف تبلیغ او دعوت دے- کله چه تا دا کار اوکړلو نو اوس دا ذمواری ستا نه ده چه څوک مسلمان شو او څوک نه شو، نو بیا بے وجه ته ولے زړهٔ تنګے کیږے-

: فَلَنَسْئَلَنَّ الَّذِیْنَ اُرْسِلَ اِلَیْهِمْ وَلَنَسْئَلَنَّ الْمُرْسَلِیْنَ : یعنی د قیامت په ورځ به د عوام الناسو نه تپوس کوی چه مونږ تاسو ته رسولان او کتابونه لیګلی وو تاسو د هغوی سره څهٔ معامله اوکړه، او د رسولانو نه به تپوس اوکړے شی چه د رسالت د کوم پیغام او د الله تعالیٰ د حکمونو سره چه مونږ تاسو لیګلی وئ دغه تاسو خپلو خپلو امتونو ته رسولی دی او که نه (بیهقی د ابن عباس نه نقل کړے دے- مظهری)

او په صحیح مسلم کښے د حضرت جابر نه روایت دے چه نبی کریم صلے الله علیه وسلم د حجة الوداع په خطبه کښے د خلقو نه تپوس اوکړو چه د قیامت په ورځ به ستاسو نه زما په باره کښے تپوس اوشی چه ما تاسو ته د الله تعالیٰ پیغام رسولے دے او که نه؛ فَمَا اَنْتُمْ قَائِلُوْنَ؛ یعنی دغه وخت به تاسو د دے په جواب کښے څهٔ وایئ؟ ټولو صحابه کرامو عرض اوکړو چه مونږ به اُووایو چه تاسو د الله تعالیٰ پیغام مونږ ته رسولے دے، او د خدائی د امانت حق مو ادا کړے دے او د امت سره مو د خیر خواهئ معامله اوکړه چه دا ئے واؤریدل نو نبی کریم صلے الله علیه وسلم اوفرمائیل: اَللّٰهُمَّ اشْهَدْ: یعنی یا الله ته ګواه شه-

او د مسند احمدؒ په روایت کښې دي چه نبي کریم صلی الله علیه وسلم فرمائیلي دي چه د قیامت په ورځ به الله تعالیٰ ما نه تپوس اوکړي چه آیا ما د الله تعالیٰ پیغام خلقو ته رسولے دے؟ نوزه به په جواب کښې عرض اوکړم چه ما رسولے دے- په دے وجه اوس تاسو ټول د دے اهتمام کوئے چه کوم خلق حاضر دي هغوي دِ غائبو ته ما پیغام اُورسوي (مظهري)

د غائبو نه مراد هغه خلق دي کوم چه په دغه زمانه کښې موجود وُو مګر په دغه مجلس کښې حاضر نه وُو- او هغه نسلو نه هم کوم چه وروستو پیدا کیږي- دوي ته د نبي کریم صلی الله علیه وسلم د پیغام رسولو مطلب دا دے چه د هرے زمانے خلق دِ راتلونکو نسلونو ته د دے پیغام د رسولو سلسله جاري اوساتي چه تر قیامته پورے پیدا کیدونکو ټولو بني آدمو ته دا پیغام اُورسي-

وَالْوَزْنُ يَوْمَئِذِ الْحَقُّ ۚ فَمَنْ ثَقُلَتْ مَوَازِيْنُهٗ

او تول په دغه ورځ حق دے- بیا چه د چا تولونه درانه شي

فَاُولٰٓئِكَ هُمُ الْمُفْلِحُوْنَ ⑧ وَمَنْ خَفَّتْ

پس دغه دي نجات مونده وُنکي - او د چا چه تولونه

مَوَازِيْنُهٗ فَاُولٰٓئِكَ الَّذِيْنَ خَسِرُوْٓا اَنْفُسَهُمْ

سپک شو پس دوي هغهٔ دي چه خپل نقصان ئے اوکړو

بِمَا كَانُوْا بِاٰيٰتِنَا يَظْلِمُوْنَ ⑨ وَلَقَدْ مَكَّنّٰكُمْ

په دے وجه چه زمونږ د آیاتونو نه ئے انکار کولو- او مونږ تاسو له ځائے درکړو

فِي الْاَرْضِ وَجَعَلْنَا لَكُمْ فِيْهَا مَعَايِشَ ۭ قَلِيْلًا

په زمکه کښې او مقرر مو کړهٔ په دے کښې ستاسو د پاره رِزقونه، تاسو ډیر کم

مَّا تَشْكُرُوْنَ ﴿١٠﴾ ع

شکر کوئ –

## لنډ تفسير

او په دغه ورځ (يعني د قيامت په ورځ د عملونو او عقيدو) تول واقع کيدونکے دے (چه په عام طور سره د هغې يو حالت ظاهر شي) بيا (د تول نه پس) چه د کوم سړى تول (د ايمان) دروند شو (يعني هغه به مؤمن وى) پس دا سے خلق (خو) به کامياب وى (يعني نجات به بيا مومى) او د کوم سړى چه تول (د ايمان) سپک شو (يعني دغه به کافر وى) نو دغه خلق به هغه وى چا چه خپل نقصان اوکړو په سبب د دے چه زمونږ د آيا تو نو حق ئے ادا کو لو. او بے شکه مونږ تاسو لره په زمکه باندې د اوسيدو ځائے درکړو او مونږ ستا سو د پاره په دے (زمکه) کښے د ژوند سامان پيدا کړو (چه د دے مقتضىٰ دا وه چه تاسو د زړه په شکر يه کښے فرمانبرداره او حکم منونکى شئ ليکن) تاسو خلق ډير کم شکر کوئ (مراد د دے نه فرمانبردارى ده، او کم ئے ځکه اوفرمائيل چه لږ ډير نيک کار خو اکثر خلق کوى خو د نه ايمان په وجه سره هغه د اعتبار قابل نه وى) -

## مَعلومَات اومَسٸلے

په اوّلنى آيت کښے ارشاد دے: وَالْوَزْنُ يَوْمَئِذِنِ الْحَقُّ: يعنى د ښه او بد عمل وزن کول په دغه ورځ حق او صحيح دى، په دے کښے د هغې شك او شُبهِ ځائے نيشته، په دے کښے دے طرف ته اشاره ده چه خلق به دے خبره دوکه نه شي چه وزن او تول خو په هغه څيزونو کښے کيدے شى پکو موکښے چه څۀ بوج او دروند والے وى، د انسان عملونه که ښۀ وى او که بد د دے خو د سره څۀ جسم او وجود نيشته چه تول ئے اوشى

بيا دَعملونو وزن به څنګه اوشي - ځکه چه اوّل خو مالك الملك قادر مطلق په هرشي باندِ قادر دے، دا څهٔ ضروري ده چه کوم شے موږ نه شو تللے حق تعالىٰ ئې هم نه شي تللے - دَ دے نه علاوه نن صباخو په دُنيا کښے دَ وزن تول کولو دَپاره نوے نوے آلے ايجاد شوے دي چه نه په کښے دَ تلِے ضرورت شته او نه ئې دَچا بړوا او ځنړے او کتړ کولو، نن خو دَ دے نوو آلو په ذريعه هغه څيزونه هم تللے شي دَ کوم دَ تللو چه دَ نن نه وړاندِ دَچا تصوّر هم نه وُه، هَوا تول کولے شي، برقي چپے تللے شي يخني ګرمي تول کولے شي، او ميټر ئې تَله وي - نو که الله تعالىٰ په خپل کامل قدرت سره دَ انسان عملونه تول کړي نو په دے کښے څه لوے والے دے - دَ دے نه علاوه دَ کائناتو خالق په دے هم قادر دے چه زموږ عملونو له څهٔ وخت جوهري وجود او څهٔ شکل صورت ورکړي په حديثو کښے دَ نبي کريم صلے الله عليه وسلم ډير روايات په دے هم ګواه دي، چه په برزخ او محشر کښے به انساني عملونه په خاصو خاصو شکلونو او صورتونو کښے راځي - په قبر کښے به دَ انسان نيک عملونه په يو ښکلي صورت کښے دَ دهٔ ملګرے جوړيګي، او بد عملونه به مار لړم جوړ شي دَ دهٔ نه به تاويګي -

په حديث کښے دي چه کوم سړي دَ مال زکوٰة نه وي اَدا کړے دغه مال به دَ يو زهرجن مار په شکل کښے دَ دهٔ قبر ته راشي او دے به چيچي او وائي به چه زهٔ ستا مال يم ستا خزانه يم -

دغه شان په معتبرو احاديثو کښے دي چه په ميدان دَ حشر کښے به دَ انسان نيک عملونه دَ دهٔ سورلي جوړه شي او بد عملونه به ئې بوج شي په دهٔ به بار کړے شي -

په يو صحيح حديث کښے دي چه دَ قرآن مجيد سورتِ بقرهٔ او سورت آلِ عمران به په ميدان دَ حشر کښے دَ دوه ګوڼو وَريځو په شکل کښے را شي په هغو خلقو به سورے کوي کوم خلق چه دَ دي لوستونکي وُو -

دغه شان بے شماره دَ حديثو روايتونه په مستندو او معتبرو طريقو

سره نقل دي چه دَ دے نه معلوميګي چه دَ دے جهان نه دَ تيريدو نه پس به زمونږ ټول نيک او بد عملونه خاص خاص شکلونه او صورتونه اختيار کړي او دَ يو جوهري وجود سره به په ميدان دَ حشر کښے موجود وي۔

دَ قرآن کريم ډير ارشادات هم دَ دے تائيد کوي ارشاد دے:۔

؛ وَوَجَدُوْا مَا عَمِلُوْا حَاضِرًا ؛ "يعني خلق چه په دُنيا کښے څه عملونه کړي وو هغه به هلته حاضر او موجود بيا مومي"۔

په يو آيت کښے فرمائي: مَنْ يَّعْمَلْ مِثْقَالَ ذَرَّةٍ خَيْرًا يَّرَهٗ وَمَنْ يَّعْمَلْ مِثْقَالَ ذَرَّةٍ شَرًّا يَّرَهٗ ؛ "يعني کوم سړے چه دَ يو ذرّے برابر هم څهٔ نيک عمل او کړي نو په قيامت کښے به هغهٔ اوويني، او که دَ يو ذرّے برابر هم څهٔ بدي او کړي نو په قيامت کښے به هغې له هم او ويني"۔ دَ دے حالاتو نه دا ظاهره ده چه دَ انسان عمل به په جوهري وجود کښے دَ ده مخے ته راځي، په دے کښے هم دَ تاويل هيڅ ضرورت نيشته، چه دَ عملونو جزا او سزا به موجود بيا مومي او اُو به ئے ويني۔

په دے حالاتو کښے ښکاره خبره ده چه دَ دے عملونو تول کول څهٔ لوئے او مشکل کار نه دے۔ ليکن دَ لږ شان پوهے او عقل مالک انسان دَ دے عادي دے چه ټول کارونه په خپلو موجوده حالاتو او په ظاهري اندازو سره قياس کوي، او ټول څيزونه په دے پيمانه سره ټکوري او اندازه کوي، قرآن کريم دَ دهٔ دا حال داسے بيان کړے دے:۔

؛ يَعْلَمُوْنَ ظَاهِرًا مِّنَ الْحَيٰوةِ الدُّنْيَا وَهُمْ عَنِ الْاٰخِرَةِ هُمْ غٰفِلُوْنَ ؛ "يعني دا خلق ... ف دَ دنيوي ژوند يو ظاهري اړخ له پيژني او هغهٔ هم پوره نه ... ودَ آخرت نه بالکل غافل دي"۔ په ظاهري ژوند دَ دُنيا کښے خو دَ زمکه آسمان سره يوځائے کوي، ليکن دَ څيزونو دَ حقيقت نه چه دَ کومو صحيح ښکاره کيدل به په آخرت کښے کيدونکي وي دا خلق بالکل بے خبره دي۔

په ذکر شوي آيت کښے ئے ځکه په اهتمام سره دا او فرمائيل: وَالْوَزْنُ يَوْمَئِذِ نِ الْحَقُّ ؛ چه دا ظاهربين انسان په آخرت کښے دَ وزن کيدو دَ عملونو نه انکار او نه کړي۔ کوم چه په قرآن کريم سره ثابت دے او دَ ټول مسلمان

اُمّت عقیده ده۔

په قرآن مجید کښې د قیامت په ورځ د عملونو د وزن کولو مسئله په ډیرو آیاتونو کښې په مختلفو عنوانونو سره راغلې ده۔ او د حدیثو روایتونو د دې په تفصیل کښې بې شماره دی۔

**د عملونو د وزن کولو متعلق یوه شبهه او د هغې جواب**

د عملونو د وزن کولو متعلق چه کوم تفصیلي بیان د نبي کریم صلی الله علیه وسلم په احادیثو کښې راغلې دے په دے کښې یوه خبره خو د غور قابله ده چه په ډیرو روایتونو د حدیث کښې راغلي دي چه په محشر کښې به د عدل په میزان کښې د ټولو نه لوئے وزن د کلمې د : لَآ اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ مُحَمَّدٌ رَّسُوْلُ اللّٰهِ ؛ وي۔ په کوم چا باندې کښې چه دا کلمه وي هغه به په ټولو باندې درونده وي۔

ترمذي، ابن ماجه، ابن حبان، بیهقي او حاکم د حضرت عبد الله ابن عمرؓ نه دا روایت نقل کړے دے چه نبي کریم صلی الله علیه وسلم فرمائیلي دي چه په محشر کښې به زما د اُمّت یو سړے د ټول مخلوق مخې ته را وستلے شي او د ده به یو کم سل عمل نامے راوړې شي او په دې کښې به هر یوه عملنامه دومره اوږده وي ترڅو مره پورې چه نظر رسي او دا ټولې عملنامې به د بد عملونو او ګناهونو نه ډکے وي د دے سړي نه به تپوس اوشي چه په دے عملنامو کښې چه څه لیکلي شوي دي دغه ټول صحیح دي او که عملنامه لیکونکو فرشتو په تا څه ظلم کړے دے او د واقع خلاف ئے څه خبره لیکلې ده؟ دے به اقرار اوکړي چه اے زما پروردګاره! څه چه لیکلي شوي دي ټول صحیح دي، او په زړه کښې به اویریږي چه اوس به زما د نجات څه صورت کیدے شي؟ دغه وخت به الله تعالیٰ اوفرمائي چه نن به په تا هیڅ ظلم نه وي۔ د دے ټولو ګناهونو په مقابله کښې ستا د نیکئ یوه پرچه هم زمونږ سره موجوده ده چه په هغې کښې ستا کلمه : اَشْهَدُ اَنْ لَّآ اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ وَ اَشْهَدُ اَنَّ مُحَمَّدًا عَبْدُهٗ وَرَسُوْلُهٗ ؛ لیکلې شوې ده۔ دغه سړے به عرض اوکړي،

چه اے پروردګاره! د دومره لوئے تورے عملنامے په مقابله کښې به دا وړوکے شان پرچه څۀ وزن اولري؟ دغه وخت به ارشاد اوشي چه په تا ظلم نۀ شي کيدے، او په يو پله به هغه تولے د ګناهونو نه ډکے عملنامے کيخودے شي، او په بل کښې به دا د ايمان د کلمے پرچه کيخودے شي، نو د دے کلمے دا پله به دروند شي او د تولو ګناهونو پله به سپک شي۔ چه دا واقعه ئے بيان کړه نو نبي کريم صلے الله عليه وسلم اوفرمائيل چه د الله د نوم په مقابله کښې هيڅ شے دروند نۀ شي کيدے (مظهري)

او په مسند بزاز او مستدرک حاکم کښې د حضرت ابن عمرؓ نه روايت دے چه نبي کريم صلے الله عليه وسلم فرمائيلي دي چه کله د نوح عليه السلام د وفات وخت راغے نو خپلو ځامنو لره ئے راجمع کړه او وئے فرمائيل چه زۀ تاسو ته د کلمے د لَآ اِلٰهَ اِلَّا اللهُ وصيت کوم، ځکه چه که اُوۀ اسمانونه او زمکه په يو پله کښې او کلمه د لَآ اِلٰهَ اِلَّا اللهُ په بل پله کښې کيخودے شي، نو د کلمے پله به پرے دروندوي۔ د دے مضمون روايتونه په حديثو کښې د حضرت ابو سعيد خدريؓ نه او د حضرت ابن عباسؓ او د حضرت ابو درداء رضي الله عنهم نه په معتبر و سندونو سره د حديثو په کتابونو کښې منقول دي (مظهري)

د دے روايتونو مقتضیٰ خو دا ده چه د مؤمن پله به هميشه دروند وي خواه د هر څومره ګناهونه چه اوکړي، ليکن د قرآن مجيد د نورو آياتونو او د ډيرو روايتونو د حديث نه ثابتيږي چه د مسلمان نيکئ او بدئ به تللے شي د چا د نيکو پله به دروند وي او د چا د بدو۔ د چا چه د نيکو پله به دروند شي هغه به نجات بيا مومي۔ او د چا چه د ګناهونو پله دروند شي د هغه به په عذاب شي۔

مثلاً د قرآن مجيد په يو آيت کښې دي:-

| وَنَضَعُ الْمَوَازِيْنَ الْقِسْطَ لِيَوْمِ الْقِيٰمَةِ فَلَا تُظْلَمُ نَفْسٌ شَيْــًٔا وَاِنْ كَانَ مِثْقَالَ حَبَّةٍ مِّنْ خَرْدَلٍ | يعني موږ به د قيامت په ورځ د انصاف تله قائمه کړو نو په چا به اډنۍ قدرے ظلم نۀ کيږي که مه نيکي يا بدي چه د اوري د دانے برابر چا |
|---|---|

| | |
|---|---|
| آتَيْنَا بِهَا وَكَفَىٰ بِنَا حَاسِبِينَ ۝ | هم کړې وي هغه تول به د عمل په تله کښې راپخو دے شي او مونږ د حساب د پاره کافي يو". |

او په سورت قارعه کښې دي -

| | |
|---|---|
| فَأَمَّا مَنْ ثَقُلَتْ مَوَازِينُهُ فَهُوَ فِي عِيشَةٍ رَّاضِيَةٍ ۝ وَأَمَّا مَنْ خَفَّتْ مَوَازِينُهُ فَأُمُّهُ هَاوِيَةٌ ۝ - | يعني د چا چه د نيکو چا برے درونده شه هغه به په ښکلی عيش کښې وي او د چا چه د نيکو چا برے سپک شه د ده مقام به دوزخ وي". |

حضرت عبد الله ابن عباس رضی الله عنه د دے ايت په تفسير کښې فرمائی چه د کوم مؤمن د نيکو چا برے دروند شي هغه به د خپلو عملونو سره جنت ته او د چا چه د ګناهونو چا برے درونده شي هغه به د خپلو عملونو سره جهنم ته او ليګلے شي (دا روايت کړے دے بيهقي په شعب الايمان کښې - مظهری)

او په ابوداؤد کښې په روايت د حضرت ابوهريره رضی الله عنه نقل دے چه که چرے د يو بنده په فرضو کښې څه کمی بيا موندے شي نو رب العلمين به او فرمائی چه اوګورئ د دے بنده څه نفل هم شته او که نه که نفلونه ئے موجود وي نو د فرضو کمے به ئے په نفلونو سره پوره کړے شي (مظهری)

د دے ټولو اياتونو او روايتونو نچوړ دا دے چه د مؤمن مسلمان چا برے په کله درونده او کله سپک وي- په دے وجه بعض عالمان د تفسير فرمائی چه د دے نه معلوميږی چه په محشر کښې به تول دوه پيرے وي اول به د کفر او ايمان وزن (تول) وي چه د دے په ذريعه به د مؤمن او کافر فرق او کړے شي، په دے تول کښې چه د چا په عملنامه کښې صرف کلمه د ايمان هم وي د ده چا برے به درونده وي، او دے به د کافرانو د ټولی نه جدا کړے شي- بيا به دويم تول د نيک او بد عمل وي، په دے کښې به د چا مسلمان نيکئ او د چا بدئ درنے وي- او د دے مطابق به ده ته جزا او سزا ملاويږی دغه شان د ټولو اياتونو او روايتونو مضمون پخپل خپل ځائے درست دے او د تو يل سره ئے ترون راځی (بيان القرآن)

دَ عملونو وزن به څهٔ رنګې وي

په بخاری او مسلم کښې په روایت دَ ابو هریرهؓ داحدیث نقل دے چه نبی کریم صلے الله علیه وسلم فرمائیلی دی چه دَ قیامت په ورځ به بعضې غټ او څاربهٔ کسان راشی چه وزن به ئې دَ الله په نزد دَ یو ماشی دَ وزر برابر هم نه وی او دَ دی په ګواهی کښې ئې دَ قرآن کریم دا آیت اُولوستو: فَلَا نُقِيمُ لَهُمْ يَوْمَ الْقِيٰمَةِ وَزْنًا: یعنی دَ قیامت په ورځ به مونږ د دوی هیڅ وزن مقرر نه کړو (مظهری)

او دَ حضرت عبد الله ابنِ مسعودؓ په مناقب کښې داحدیث راغلے دے چه نبی کریم صلے الله علیه وسلم فرمائیلی دی چه دَ ده پنډئ که هر څو مره نرئ دی لیکن قسم دے په هغهٔ ذات دَ چا په قبضه کښې چه ځما روح دے چه دَ قیامت په تله دَ عدل کښې دَ دهٔ وزن دَ احُد دَ غرنه به هم زیات وی.

او دَ حضرت ابو هریرهؓ هغه حدیث په کوم چه امام بخاریؒ خپل کتاب ختم کړے دے په دے کښې راوړی چه دَوه کلمے داسے دی چه په ژبه ډیرے آسانے دی مګر په تُله دَ عمل کښې ډیرے درنے دی او دَ الله تعالیٰ په نزد ډیرے محبوبے دی او هغهٔ کلمے دا دی: سُبْحَانَ اللهِ وَبِحَمْدِهٖ سُبْحَانَ اللهِ الْعَظِيْمِ ۝

او دَ حضرت عبد الله ابن عمرؓ نه روایت دے چه نبی کریم صلے الله علیه وسلم به فرمائیل چه دَ: سُبْحَانَ اللهِ: په وئیلو دَ عمل دَ تلے نیم چا بوړے ډکیګی - او په اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ: سره باقی نیم پوره کیږی -

او ابو داؤد دَ ترمذی، ابنِ حبان په صحیح سند سره دَ حضرت ابو درداؓ نه نقل کړے دے چه نبی کریم صلے الله علیه وسلم فرمائیلی دی چه په تُله دَ عمل کښې دَ بندهٔ خوئ برابر هیڅ عمل وَزنی نیشته -

او حضرت ابو ذر غفاریؓ ته نبی کریم صلے الله علیه وسلم او فرمائیل چه تا ته داسے دَوه کار و نښایم پکو موچه عمل کول دَ انسان دَ پاره څه ګران نه دی او په تله دَ عمل کښې به هغهٔ دَ ټولو نه زیات درانهٔ وی، یو بنهٔ خوئ دویم زیات خاموش پاتے کیدل، یعنے بے ضرورته خبرے نهٔ کول -

او امام احمدؒ په کتاب الزهد کښې په روایت دَ حازمؒ نقل کړے دے

چه د نبی کریم صلی الله علیه وسلم خوا ته یو وار جبرائیل امین تشریف راوړو
نو هلته یو سړے د الله تعالیٰ د یرے نه جړیدو، نو جبرئیل امین اوفرمائیل
چه د انسان د ټولو عملو نو به وزن کیږی مګر د خدائے او د آخرت د یرے نه
جړل داسے عمل دے چه دا نه شی تللے بلکه یو دا اوښکه هم د جهنم د لویو نه
لوئے اور لړه مړ کړی، (مظهری)

په یو حدیث کښے دی چه په میدان د حشر کښے به یو سړے حاضر شی
کله چه د دهٔ عملنامه مخے ته راشی نو دے به خپل نیک عملو نه ډیر کم بیاموی
او به یریږی چه ناګهانه به یو شے د وړیځے پشان بوره ته شی او را به شی او د
دهٔ د نیکو عملو نو په چا بړی کښے به او غورزیږی، او دهٔ ته به اوُ خودے شی
چه دا ستا د هغه عمل ثمره ده کوم چه تا په دُنیا کښے خلقو ته د دین احکام
او مسئلے خودلے او وِازده کولے، او دغه ستا د تعلیم سلسله وړاندِ
او چلیده، نو کوم کوم سړی چه پرِ عمل او کړو د هغو ټولو په عملو نو
کښے ستا حصّه هم او لګولے شوه (مظهری د ابن مبارکؒ نه)

طبرانی په روایت د ابن عباسؓ نقل کړے دے چه نبی کریم صلے الله علیه
وسلّم فرمائیلی دی چه کوم سړے د جنازے سره تر قبرستانه پورے
لاړ شی د ده د عمل په میزان کښے به دوه قیراطه کیخودے شی، او په نورو
روایتو نو کښے دی چه د دے قیراط وزن به د اُحد د غر برابروی۔

طبرانی په روایت د حضرت جابرؓ نقل کړے دے چه نبی کریم صلے الله
علیه وسلّم فرمائیلی دی چه د انسان د عمل په تله کښے به د ټولو نه
اوّل کوم عمل چه ایښودے شی هغه به پخپل اهل و عیال د خرچ کولو او
د دوی د ضرورتو نو پوره کولو نیک عمل وی۔

او امام ذهبیؒ د حضرت عمران بن حصینؓ نه نقل کړے دے چه نبی
کریم صلے الله علیه وسلّم فرمائیلی دی چه د قیامت په ورځ به د عالمانو
سیاهی په کومه چه دوی علمِ دین او احکام د دین لیکلی وی او د
شهیدانو وینه او تللے شی نو د عالمانو د سیاهیٔ وزن به د شهیدانو
د وینے نه زیات شی۔

دغه شان دَ حديثو روايتو نه په قيامت کښې دَ عملونو دَ تول کولو په سلسله کښې ډير دي، دلته يو څو په دے وجه ذکر شو چه دَدي نه دَ خاصو خاصو عملونو دَ فضيلت او قدر و قيمت اندازه اولګي -

دَ دے ټولو روايتونو دَ حديث نه دَ عمل تللو اندازه مختلفه معلو ميږي، دَ بعضو نه معلوميږي چه عمل کونکے انسان به تللے شي او دوی به دَ خپل عمل په اعتبار سره سپک او دروند وي- او دَ بعضو نه معلوميږي چه عملنامے به تللے شي، او دَ بعضو نه معلوميږي چه پخپله عملونه مجسّم کيږي او هغهٔ به تللے شي - دَ تفسير امام ابن کثيرؒ دَ دے ټولو روايتونو نقل کولو نه پس فرمائي چه دا کيدے شي چه وزن به په مختلفو صورتونو سره څو پيرے کولے شي - او ظاهره خبره ده چه پوره حقيقت دَ دے معاملو الله تعالیٰ ته معلوم دے، او دَ عمل کولو دَ پاره دَ دے حقيقت پيژندل ضروري هم نه دي، صرف دومره کافي ده چه زمونږ دَ عملونو وزن به وي، که دَ نيک عمل چابرے سپک شو نو عذاب به وي، دا بله خبره ده چه الله تعالیٰ چا لره په خپل فضل او کرم سره يا دَ چا نبي يا وَلي په شفاعت سره معاف کړي او دَ عذاب نه نجات بيامومي -

يکو مو روايتونو کښې چه دا ذکر دي چه بعض خلق به صرف دَ ايمان دَ کلمے په دولت نجات بيامومي، او ټول ګناهونه به ئے دَ دے په مقابله کښې معاف شي دا دَ دے استثنائي صورت سره تعلق لري کوم چه دَ عامے ضابطے نه جُدا دَ يو خاص فضل و کرم اظهار دے،

په دے دواړو ايا تونو کښې ذکو مو چه تفسير اوس بيان شو ګناه ګارو لره دَ ميدان دَ حشر دَ رسوائي او دَ الله تعالیٰ دَ عذاب نه يَرَه وَل شو، په دريم ايت کښې ئے دَ الله تعالیٰ دَ نعمتونو ذکر او فرمايه دَ حق قبلولو او په دے دَ عمل کولو ترغيب ئے دا سے ورکړو چه مونږ تاسو لره په زمکه باندې پوره قدرت او مالکانه تصرف درکړو، او بيا ئے په دے کښې ستاسو دَ پاره دَ عيش دَ سامان حاصلولو په ذريعو نو لارے پرانستے- ګويا ربّ العلمين زمکے لره دَ انسان دَ ټولو ضرورتونو نه واخله دَ تفريحي سامان پورے

يو عظيم الشانه ګودام جوړ کړے دے، او ټول انساني ضرورتونه ئے
په دے کښے پيدا کړی دی، او س د انسان کار صرف دومره دے چه
د دے ګودام نه خپل ضرورتونه راؤباسي، او د دے د استعمالولو طريقے
زده کړی- د انسان د هر علم او فن او د سائنس د نوؤ نوؤ ايجادونو
نچوړ د دے نه سوا نور هيڅ نيشتے چه د خالق کائنات پيدا کړی شوی
څيزونه کوم چه د زمکے په ګودام کښے محفوظ دی په سليقه سره راؤباسي
او په صحيح طريقه ئے استعمال کړی، بے وقوفه او بد سليقه سړے
کوم چه د دے ګودام نه د را ويستلو طريقه نه پيژنی، او بيا که ئے
تر راوباسي نو د استعمال طريقے نه پيژني هغه د دے د نفعو نه
محرومه وی- پوهه سړے په دواړو خبرو ځان پوهه کړی نو
نفع ترے حاصلوی -

لنډه دا چه د انسان ټول ضرورتونه الله تعالیٰ په زمکه کښے
پيدا کړی او ايښودلی دی چه د دے تقاضا دا وه چه دے هر وخت په
هر حال کښے د الله تعالیٰ شکر ګذار وی، مګر دے په غفلت کښے پريوځي
د خپل خالق او مالک احسانات هير وی او په دے څيزونو کښے نښتے پاتے
کيږی په دے وجه د آيت په آخر کښے په طور د شکايت ارشاد فرمائی: قَلِيلًا
مَّا تَشْكُرُونَ : "يعني تاسو ډير کم شکر ادا کوئ" -

وَلَقَدْ خَلَقْنٰكُمْ ثُمَّ صَوَّرْنٰكُمْ ثُمَّ قُلْنَا لِلْمَلٰٓئِكَةِ

او مونږ تاسو له پيدا کړل بيا مو درله صورتونه جوړ کړل بيا مونږ حکم اوکړو فرښتو ته

اسْجُدُوْا لِاٰدَمَ ۖ فَسَجَدُوْٓا اِلَّآ اِبْلِيْسَ ۭ لَمْ

چه سجده اوکړئ آدم ته - پس سجده اوکړه ټولو مګر شيطان - نه

يَكُنْ مِّنَ السّٰجِدِيْنَ ⑪ قَالَ مَا مَنَعَكَ اَلَّا

ؤو د سجده کوونکو نه - اووے تا لره څه مانع وه چه تا

تَسْجُدَ اِذْ اَمَرْتُكَ ۚ قَالَ اَنَا خَيْرٌ مِّنْهُ ۚ خَلَقْتَنِيْ مِنْ

سجده اونه کړه کله چه ما تا ته حکم اوکړو - اوئے وے زهٔ دَ نه غوره یم - زهٔ تا پیدا کړم
دَ

نَّارٍ وَّ خَلَقْتَهٗ مِنْ طِيْنٍ ﴿۱۲﴾ قَالَ فَاهْبِطْ مِنْهَا فَمَا

اُور نه او دے دِ پیدا کړو دَ خټے نه - اوئے وئیل ته کوز شه دَ دے ځائے نه ته دَ

يَكُوْنُ لَكَ اَنْ تَتَكَبَّرَ فِيْهَا فَاخْرُجْ اِنَّكَ مِنَ

دے لائق نه یے چه تکبر او کړے د لته پس باهر اوځه
ته

الصّٰغِرِيْنَ ﴿۱۳﴾ قَالَ اَنْظِرْنِيْٓ اِلٰى يَوْمِ يُبْعَثُوْنَ ﴿۱۴﴾

ذلیل ئے - اوئے وئیل چه ما ته مهلت را کړه تر هغے ورځے پورے چه خلق دَ قبرونو نه پورته کړے شی

قَالَ اِنَّكَ مِنَ الْمُنْظَرِيْنَ ﴿۱۵﴾ قَالَ فَبِمَآ اَغْوَيْتَنِيْ

اوئے فرمائیل تا ته مهلت درکړے شو - اوئے وئیل لکه څنګه چه تا زهٔ ګمراه کړم

لَاَقْعُدَنَّ لَهُمْ صِرَاطَكَ الْمُسْتَقِيْمَ ﴿۱۶﴾ لا ثُمَّ

زهٔ به خامخا کینم دوی ته ستا په نیغه لاره کښے - بیا به

لَاٰتِيَنَّهُمْ مِّنْ بَيْنِ اَيْدِيْهِمْ وَمِنْ خَلْفِهِمْ وَ

په دوی راځم دَ دوی دَ وړاندِ نه او دَ دوی دَ شا نه او

عَنْ اَيْمَانِهِمْ وَعَنْ شَمَآئِلِهِمْ ۭ وَلَا تَجِدُ اَكْثَرَهُمْ

دَ ښی طرف نه او دَ کینړ طرف نه - او بیا به نهٔ مومے اکثر ولره

شٰكِرِيْنَ ﴿۱۷﴾ قَالَ اخْرُجْ مِنْهَا مَذْءُوْمًا مَّدْحُوْرًا ۭ

په دوی کښے شکر ګذار - اوئے فرمائیل اوځه دَ دے ځائے نه په بد حال سره مردود شوے -

لَمَنْ تَبِعَكَ مِنْهُمْ لَاَمْلَئَنَّ جَهَنَّمَ مِنْكُمْ اَجْمَعِيْنَ ﴿۱۸﴾

څوک چه په دوی کښې ستا په لار لاړشي نو زهٔ به خامخا ډک کړم دوزخ ستا سو دَ ټولو نه۔

# لنډ تفسير

او موږ تاسو لره (دَ) پيدا کولو سامان اُو) کړهٔ (يعنې دَ آدم عليه السلام مادّه موږ جوړه کړه، دَ دے مادّے نه تاسو ټول خلق يئ) بيا (دَ مادّے جوړېدو نه پس) موږ ستا سو صورت جوړ کړهٔ (يعنې په دے مادے کښې دَ آدم عليه السلام صورت جوړ کړه، بيا دغه صورت دَ هغهٔ په اولاد کښې راروان دے دا نعمت دَ ايجاد شو) بيا (دَ کله چه آدم عليه السلام جوړ شو او دَ نورو علم ورته ورکړے شو نو) موږ فرښتو ته او فرمائيل چه آدم ته (اوس سجده اوکړئ (دا نعمت دَ اِکرام شو) نو ټولو فرښتو سجده اوکړه بغير دَ ابليس نه چه هغهٔ په سجده کوُنکو کښې شامل نه شو، الله تعالیٰ اُو فرمائيل تهٔ سجده نهٔ کوے تا لره دَ دے نه کوم کار منع کوُنکے دے کله چه ما رېخپله) تا ته دَ سجدے حکم درکړوائے وے (هغه منع کوُنکے کار دا دے چه) تا ما لره دَ اُور نه پيدا کړوا ودهٔ (آدم) لره تا دَ خاوُرو نه پيدا کړے دے (دا دَ شيطانی استدلال اَوّله مقدّمه ده، او دويمه مقدّمه چه ذکر ئے او نه شه هغه دا ده چه اور په وجه دَ نورانی کيدو دَ خاوُرو نه افضل دے، دريمه مقدمه دا ده چه دَ افضل دَ فرع او اولاد هم دَ غير افضل دَ فرعے نه افضل وی، څلورمه مقدمه دا ده چه دَ افضل سجده کوَل غير افضل ته نامناسب ده، دا څلور واړه مقدّمے يوځائے کړے نو شيطان دَ خپلے سجدے نه کولو دا دليل جوړ کړو، چه زهٔ افضل يم په دے وجه م غير افضل ته سجده او نه کړه، مګر دَ اوّلے مقدّمے نه سِوا نورے ټولے مقدّمے غلطے دی، او اوّله مقدّمه هم دَ عام والنسانا نو په حق کښې په دے معنیٰ سره صحيح ده چه دَ انسان په پيدائش کښې غالب جُز دَ بِنا ورے دے، دَ باقی مقدّمو غلطوالے ښکاره دے. ځکه چه دَ اُور په بِنا وُرو باندِ

افضل کیدل یو جزوی فضیلت خو کیدے شی خو په کُلّی طور دے ته افضل
وئیل دعوه بے دلیله ده۔ دغه شان افضل دَ فرعے او اولادا فضل والے
هم مشکوک دے، په زرګونو واقعات دَ دے نه خلاف مخے ته راغلی دی
چه دَ نیک اولاد بد او دَ بد اولاد نیک وی۔ دغه شان دا هم غلط ده
چه افضل لره مفضول ته سجده کول نامناسب دی، بعض وختونو
کښے دَ مصلحتونو تقاضا دَ دے نه خلاف لیدلے شوے ده۔
الله تعالیٰ اوفرمائیل (هر کله چه ته داسے نافرمان ئے) نو دَ اسمان نه
خکته کوزشه تا ته هیڅ حق حاصل نه دے چه ته تکبر او کړے (خاصکر)
په اسمان کښے په اوسیدو (کوم ځائے چه دَ ټولو فرمانبردارو مقام دے)
نو (دَ دے ځائے نه) اوځه (لرے شه) بے شکه ته (دَ دے تکبر په وجه
سره) په ذلیلانو کښے شمار شوے، هغه اووے ما ته مهلت راکړه
دَ قیامت دَ ورځے پورے، الله تعالیٰ اوفرمائیل تا ته مهلت ورکړے
شو، هغه اووے چه په سبب دَ دے چه تا ما لره (په حکم تکوینی سره)
ګمراه کړے دے زه قسم خورم چه زه به دوی (یعنی ادم او دَ ادم
لادے وهلو) ته ستا په نیغه لاره باندِ (کومه چه حق دین دے) ځم او
کینم به بیا به په دوی (دَ هر څلور طرف نه) حمله کوم دَ دوی دَ وړاندِ نه
هم دَ شا نه هم او دَ دوی دَ ښئ طرف نه هم او دَ کینړ طرف نه هم (یعنی دَ
دوی په غولَولو کښے به دَ کوشش هیڅ ارخ باقی پاتے نه کړم دَ دے دَ پاره
چه دوی ستا عبادت او نه کړے شی) او (زه به پخپل کوشش کښے کامیاب
هم شم چنانچه) ته به په دوی کښے اکثرو لره (ستا دَ نعمتونو) احسان
منونکی بیا نه مومے، الله تعالیٰ اوفرمائیل چه دَ دے ځائے (اسمان) نه
ذلیل او خوار کړے شوے اوځه (او ته چه کومه دَ ادم دَ اولاد دَ
غولَولو خبره کوے نو څه چه ستا زړه غواړی کوه زه دَ ټولو نه بے
نیازه یم نه دَ چا په نیغه لاره راتلو کښے ځما څه فائده شته او نه ئے په
ګمراه کیدو کښے څه نقصان) کوم سړے چه په دوی کښے ستا خبره
اومنی زه به خامخا ستا سو (یعنی ابلیس او دَ ده دَ خبرے منونکو نه)

به جهنم ډک کړم -

# مَعلومَات او مَسئلے

دَ حضرت آدم علیه السلام او دَ شیطان دا واقعه کومه چه دلته ذکر ده، دَ دے نه وړاندِ دَ سورتِ بقرہ په څلورمه رکوع کښے بیان شوے ده، دَ دے سره دَ تعلق لرُونکو دَ ډیرو هغو کارونو چه تحقیق پکښے کول غوښتل دَ هغو بیان هلته شوے دے - دلته دَ نورو زیاتی تحقیق طلبو کارونو جواب لیکلے شی -

دَ ابلیس دَ قیامته پورے دَ ژوند دُعا قبول شوه او کنه؛ په صورت دَ قبلید وکښے دَ دوه تکرا و خوړونکو آیاتو نو دَ الفاظو تطبیق

ابلیس، عین په هغه وخت کښے چه په دهٔ باندِ عتاب او عذاب کیده دَ الله تعالیٰ نه یوه دُعا اوغوښته، او هغه هم عجیبه دُعا چه دَ قیامته پورے دَ ژوند مهلت راکړے - دَ دے په جواب کښے چه کوم ارشادِ حق تعالیٰ فرمائی دَ دے الفاظ دلته په دے ذکر شوی آیت کښے خو صرف دا دی: اِنَّكَ مِنَ الْمُنْظَرِيْنَ: یعنی تا ته مهلت درکړے شو، دَ دے الفاظو نه په قرینه دَ دُعا او سوال دا سے کنړلے شی چه دا مهلت تر قیامته پورے ورکړے شو لکه چه دهٔ سوال کړے وه، مګر دَ دے وضاحت په دے آیت کښے نیشتے، چه دَ کوم مهلت ورکولو ذکر دلته فرمائیلے شوے دا دَ ابلیس دَ وینا مطابق تر قیامته پورے دے یا دَ یو بل میعاده پورے، لیکن په دویم آیت کښے دلته دَ اِلىٰ يَوْمِ الْوَقْتِ الْمَعْلُوْمِ: الفاظ هم راغلی دی چه دَ دے دَ ظاهر نه دا معلومیګی چه دَ ابلیس غوښتلے شوے، مهلت دَ قیامته پورے نه دے ورکړے شوے بلکه دَ څهٔ خاص مودے پورے ورکړے شوے دے- کوم دَ الله تعالیٰ په علم کښے محفوظ دے، نو نتیجه بهٔ دا شو چه دَ ابلیس دا دُعا قبول خو شوه مګر نا تمام چه دَ قیامت دَ ورځے په ځائے دَ یو خاص مودے پورے مهلت ورکړے شو-

په تفسیر ابن جریرؒ کښے یو روایت دَ سدیؒ نه نقل دے - چه دَ دے

مضمون تائید کیږی۔ دَ دے حدیث الفاظ دادی:۔

فَلَمْ يُنْظِرْهُ إِلَى يَوْمِ الْبَعْثِ وَلٰكِنْ أَنْظَرَهُ إِلَى يَوْمِ الْوَقْتِ الْمَعْلُوْمِ وَهُوَ يَوْمُ يُنْفَخُ فِي الصُّوْرِ النَّفْخَةُ الْأُوْلٰى فَصَعِقَ مَنْ فِي السَّمٰوٰتِ وَمَنْ فِي الْأَرْضِ فَمَاتَ الخ۔

”الله تعالیٰ ابلیس ته ترقیامته پورې مهلت نه دے ورکړے بلکه دَ یوې مقرړې ورځې پورې ئې مهلت ورکړے دے او دغه ورځ هغهٔ دهٔ چې کومه کښې چه به اوّل شپېلۍ او وهلے شي چه اسمان او زمکے والا به ټول بے هوشه او مړهٔ به شي۔“

دَ دے نه پوهه داشو چه شیطان خو پخپله دُعا کښې ترهغه وخته پورې مهلت غوښتلے وهٔ کله چه دویمه شپېلۍ او وهلے شي او ټول مړي ژوندي کړے شي، دَ دے نوم یوم البعث: (یعنی دَ دوباره پورته کیدو ورځ) ده. که دا دعا ئې بعینه قبوله شوې وے نو کوم وخت چه دَ یو ذات حیّ قیّوم نه سِوا هیڅوک به ژوندی پاتے نه شي او دَ: كُلُّ مَنْ عَلَيْهَا فَانٍ وَّيَبْقٰى وَجْهُ رَبِّكَ ذُو الْجَلٰلِ وَالْإِكْرَامِ: ظهور به او شي۔ دَ دے دُعا په بنا به ابلیس هغه وخت هم ژوندے وهٔ۔ په دے وجه دَ دهٔ یوې دعا لره ئې دَ: يَوْمُ الْبَعْثِ: پورې دَ مهلت په ځائے: يَوْمَ يُنْفَخُ فِي الصُّوْرِ: پورې په مهلت سره بدله کړه او قبوله ئې کړه۔ ا ثوئے داشو چه څهٔ وخت چې ټول عالم باندې مرګ راځي دغه وخت به ابلیس لره هم مرګ راشي بیا چه کله ټول دوباره ژوندي شي نو دے به هم ژوندے شي۔

په دے تحقیق سره هغه شُبهٔ هم لرے شوه کومه چه دَ ایت: كُلُّ مَنْ عَلَيْهَا فَانٍ: نه دَ دے دعا متعلق پیدا کیږی، چه په ظاهره په دواړو کښې ټکراؤ راغے۔

لیکن بعضو دَ دے تحقیق دادے چه: يَوْمُ الْبَعْثِ: او: يَوْمُ الْوَقْتِ الْمَعْلُوْمِ: دوه جُدا جُدا ورځے دی۔ ابلیس دَ: يَوْمُ الْبَعْثِ: پورے مهلت غوښتلے وهٔ هغه پوره قبول نه شو۔ دے لره ئې بدل کړو او تر: يَوْمُ الْوَقْتِ الْمَعْلُوْمِ: پورے ئې مهلت ورکړو۔ حضرت حکیم الامة تهانویؒ په بیان القرآن کښې ترجیح دے لره ورکړے ده۔ چه په حقیقت کښې

داد وا ړه جد اجد او ر ځے دی ۔ بلکه د اوّلے شپیلۍ د وخت نه جنّت او دوزخ ته د داخلید و پورے په یو ه اوګد ه ورځ وی، د دے په مختلفو حصو کښے به مختلف واقعات کیږی، د دے مختلفو واقعاتو په بنا بانډ د دے واقعے هرطرف ته نسبت کولے شی، مثلاً دے ته؛ د شپیلۍ د هلو ورځ؛ او؛ ورځ د فناء؛ هم ویئیلے شی او؛ یوم بعث؛ او؛ یوم جزا؛ هم، په دے سره ټول اشکالات ختم شو، فللّٰهِ الحمد۔

آیا د کافر دعا هم قبلید ے شی

داسوال په دے وجه پید اکیږی چه د قرآن د ایا تو نو ؛ وَمَا دُعَاءُ الْكَافِرِيْنَ اِلَّا فِيْ ضَلَالٍ ؛ نه په ظاهره داګنړلے شی چه د کافر دعا نه قبلیږی، مګر د دے واقعے د ابلیس او د ذکر شوی ایت نه د قبلید و د دعا اشکال ظاهر دے - جواب دا دے چه په دنیا کښے خو د کافر دعا هم قبلید ے شی تر دے چه د ابلیس پشان د غټ کافر دعا هم قبوله شوه، مګر په اخرت کښے د کافر دعا قبوله نه ده او ذکر شو ے ایت ؛ وَمَا دُعَاءُ الْكَافِرِيْنَ ؛ د اخرت متعلق دے - دنیا سره د دے هیڅ تعلق نیشتے -

د ادم ع او ابلیس د واقعے مختلف الفاظ

په قرآن کریم کښے دا قصه څوځا یه راغلے ده او هرځائے د دے سوال او جواب الفاظ مختلف دی، حال دا دے چه واقعه یو ه ده، وجه دا ده چه په اصل واقعه کښے خو په ټولو ځا یو نو کښے یو مضمون دے، او نقل کول د الفاظو هرځائے بعینه ضروری نه دی، روایت په معنیٰ سره هم کید ے شی، د مضمون او مطلب د یو والی نه پس اختلاف د الفاظو له ؟ اعتبار نشته -

د ابلیس دا زړه ورتیا څنګه اوشوه چه په دربار د رب او د جلال کښے ئے داسے پرے باکی سره خبرے او کړے

د رب العزّت جلّ شانه په پاک دربار کښے خو فرښتو او رسولانو ته هم د هیبت او جلال په وجه د ساه اغستو مجال نیشتے، ابلیس څنګه داسے زړه ور شو؟ علماء فرمائی، چه دا د قهر الهی سخت اظهار دے، کوم چه د ابلیس د مردود کید و په وجه یو داسے پرده حائل شوه چه د دۀ نه ئے د الله تعالیٰ لوئی عظمت او جلال پټ کړه

او بے حیائی ځے په دهٔ مسلّطه کړهٔ (بیان القرآن: اختصار او وضاحت سره)

**دَ شیطان حمله په انسان دَ څلور طرفه محدود ده نه دَه**

دَ قرآن کریم په ذکرشوی ایت کښے دا ذکر دی چه ابلیس دَ آدم او اولاد لره دَ ګمراه کولو دَ پاره څلور طرفو نه وئیلی دی، وړاندِ، وروستو، ښے او کینړه- لیکن دلته په حقیقت کښے څه حد بیا کل نړدی، بلکه مراد دا دے چه دَ هر طرف نه اوهرے دَ رے نه، په دے وجه دَ سَر دَ پاسه دَ طرف نه او دَ خپو لاندِ دَ طرف نه دَ ګمراه کولو احتمال دے نه منافی نه دے-

دغه شان په حدیث کښے چه دا ذکر دی چه شیطان دَ انسان په بدن کښے داخل شی دَ وینے دَ رګونو په ذریعه په ټول بدن دَ انسان کښے تصرف کوی دا هم دے سره منافی نه ده-

په ذکر شوی ایت کښے شیطان ته دَ اسمان نه دَ وتلو حکم دوه پیرے ورکړے شوے دے اوّل: فَاخْرُجْ اِنَّكَ مِنَ الصّٰغِرِيْنَ: کښے دویم: قَالَ اخْرُجْ مِنْهَا مَذْءُوْمًا: کښے، غالبًا اوّلنے کلام یو تجویز دے او په دویم کښے دَ دغے تجویز نافذ کول دی (بیان القرآن په اختصار)

وَيٰٓاٰدَمُ اسْكُنْ اَنْتَ وَزَوْجُكَ الْجَنَّةَ فَكُلَا مِنْ

او اے آدمه! او سه ته او ستا ښځه په جنّت کښے بیا خورئ دَ کوم

حَيْثُ شِئْتُمَا وَلَا تَقْرَبَا هٰذِهِ الشَّجَرَةَ فَتَكُوْنَا

ځائے نه چه غواړئ او مه نږدے کیږئ دے وُنے ته بیا به تاسو شئ

مِنَ الظّٰلِمِيْنَ ﴿۱۹﴾ فَوَسْوَسَ لَهُمَا الشَّيْطٰنُ

ګناه ګار بیا وغولول دوی لره شیطان

لِيُبْدِيَ لَهُمَا مَا وٗرِيَ عَنْهُمَا مِنْ سَوْاٰتِهِمَا

چه ښکاره کړی په دوی باندِ هغه شے چه دَ دوی دَ نظره پټ وه دَ دوی دَ پردے دَ اندامونو نه.

وَقَالَ مَا نَهٰىكُمَا رَبُّكُمَا عَنْ هٰذِهِ الشَّجَرَةِ اِلَّآ

اوده اووے چه تاسو نه يئ منع کړی ستاسو رب ددے اُونے نه
مګر ددے

اَنْ تَكُوْنَا مَلَكَيْنِ اَوْ تَكُوْنَا مِنَ الْخٰلِدِيْنَ ﴿۲۰﴾ وَ

وجه نه چه تاسو به شئ چرته فرښتے يا به شئ د هيشه پاتے کيد و نکو څخه - او

قَاسَمَهُمَآ اِنِّيْ لَكُمَا لَمِنَ النّٰصِحِيْنَ ﴿۲۱﴾ فَدَلّٰىهُمَا

قسم ئے اوکړو دوی ته چه زهٔ خامخا ستاسو دوست يمه - بيائے مائله کړل دوی

بِغُرُوْرٍ ۚ فَلَمَّا ذَاقَا الشَّجَرَةَ بَدَتْ لَهُمَا سَوْاٰتُهُمَا

په دوکه سره - بيا کله چه اوڅکله دی دواړو اُونه نو ښکاره شو په دوی عورتونه ددوی

وَطَفِقَا يَخْصِفٰنِ عَلَيْهِمَا مِنْ وَّرَقِ الْجَنَّةِ ؕ وَ

اوشروع شو چه پورے کوله ئے په ځان پورے پاڼړے د جنّت - او

نَادٰىهُمَا رَبُّهُمَآ اَلَمْ اَنْهَكُمَا عَنْ تِلْكُمَا الشَّجَرَةِ

آواز اوکړو دوی ته ددوی ربّ او ئے فرمائيل چه ما نه وئ منع کړی تاسو د دے اُونے نه

وَاَقُلْ لَّكُمَآ اِنَّ الشَّيْطٰنَ لَكُمَا عَدُوٌّ مُّبِيْنٌ ﴿۲۲﴾ قَالَا

او نه وم وئيلی تاسو ته چه شيطان ستاسو ښکاره دُشمن دے - اووے دوی

رَبَّنَا ظَلَمْنَآ اَنْفُسَنَا ٚ سکتہ وَاِنْ لَّمْ تَغْفِرْ لَنَا وَتَرْحَمْنَا

دواړو اے زمونږ ربه ظلم اوکړو مونږ ځپل ځان او که ته مونږ او نه بخئے او په مونږ رحم اونه کړے

لَنَكُوْنَنَّ مِنَ الْخٰسِرِيْنَ ﴿۲۳﴾ قَالَ اهْبِطُوْا بَعْضُكُمْ

نو مونږ به خامخا شو تباه - او ئے فرمائيل کوز شئ، تاسو ديو بل

لِبَعْضٍ عَدُوٌّ ۚ وَلَكُمْ فِي الْأَرْضِ مُسْتَقَرٌّ وَّ

دښمنان به یئ - او ستاسو دپاره په زمکه کښے ټکاونړه او

مَتَاعٌ إِلَىٰ حِينٍ ﴿٢٤﴾ قَالَ فِيهَا تَحْيَوْنَ وَفِيهَا

نفع اغستل دی ترېو وخته پورے - او ئے فرمائیل په دے کښے به تاسو ژوندی یئ او په دے

تَمُوتُونَ وَمِنْهَا تُخْرَجُونَ ﴿٢٥﴾

ع ۲ ۱۵ ۹

کښے به مړ یئ او د دے نه به تاسو راویستلے شئ

# لنډ تفسير

او موږ (آدم علیه السلام ته) حکم اوکړو چه اے آدمه ته او ستا بی بی (حوا) په جنت کښے اوسئ بیا د کوم ځائے نه چه غواړئ (او څه شی لره چه غواړئ) دواړه (بنی آدم) ئے خورئ او دومره خیال کوئ چه دے (خاصے) ونې ته (هم) مه نږدے کیږئ (یعنی میوه ئے مه خورئ) چه د هغو خلقو په شمار کښے به راشئ د کومو نه چه نا مناسبه کار ونه کیږی بیا شیطان د دے دواړو په زړه کښے وسوسه واچوله د دے د پاره چه (د دغے منع شوے ونې نه او خوری) د دوی پټ بدن کوم چه د یو بل نه پټ وه دواړو وته مخامخ بے پرده شی (ځکه چه د دے ونې د خوړلو دا تاثیر دے، خواه ذاتی وی یا په وجه د منع) او (هغه وسوسه داوه چه دواړو ته ئے) اُوے چه ستاسو رب تاسو دواړو ولره د دے ونې (د خوراک) نه (په بل سبب سره) نه یئ منع کړی مګر محض په دے وجه سره چه تاسو دواړه (د دے په خوړلو) فرښتے جوړے نه شئ یا چه ته د همیشه ژوندی پاتے کیدونکو نه شئ (یعنی د وسوسے داوه چه د دے ونې په خوړو سره ملکیتی قوت او دائمی ژوند پیدا کیږی، مګر په شروع کښے ستاسو بدن د دے تحمل نه شو کولے په دے وجه تر منع شوی وه

اوس ستاسو په حالت او قوت کښې ترقي اوشوه او اوس ئې په تاسو کښې تحمل
پيدا شوې دې نو منع ئې ختمه شوه) او دوي دواړو ته ئې مخاطب (په دې
خبره) قسم اوخوړو چه يقين اوکړئ زه ستاسو دَ دواړو دَ زړهٔ سره)
خيرخواه يمه نو ردا سې خبرې ئې جوړې کړې) دې دواړو لوه ئې په فريب
سره لاندې راوستل (لاندې راوستل په اعتبار دَ حالت او رائې سره هم
دي، چه خپله لويه رائې ئې پاتې کړه او دَ دشمن رائې ته مائيل شه، او دَ
مقام په اعتبار سره هم چه دَ جنت نه ئې لاندې زمکې ته راکوز کړل) پس
دې دواړو وچه کله اونه اوڅکله (فورًا) دَ دواړو پټ بدن يو بل ته
مخامخ ښکاره شو (يعني دَ جنت جامې ترې اوو تلې او دواړه اوشرميدل)
او (دَ بدن پټولو دَ پاره) دواړو پخپل ځان (بدن) دَ پاسه دَ جنت (دَ ونې)
پاڼې شوکولې او ايښودلې او (دغه وخت) دَ دوي رب دوي ته اووې
چه آيا ما تاسو دواړو لوه دَ دې ونې (دَ خوړو) نه منع کړې نه وئ او دا
م درته نه وه ووئيلي چه شيطان ستاسو ښکاره دشمن دې (دَ دهٔ دَ
غولولو نه ځان ساتئ) دواړو اووې اې زمونږ ربه مونږ خپل
لوئې نقصان اوکړو (چه دَ پوره احتياط او صبر نه مو کار وانه خستو)
او که ته مونږ اونه بخښې او په مونږ رحم اونه کړې نو واقعي مونږ به
په تاوان کښې پريوځو الله تعالیٰ (آدم او حواء عليهما السلام ته)
اوفرمائيل چه (دَ جنت نه) لاندې (زمکې ته) په دا سې حالت کښې لاړشئ چه
تاسو (يعني ستاسو اولاد) به دَ يو بل بعضې دَ بعضو دشمنان يئ، او ستاسو
دَ پاره په زمکه کښې دَ اوسيدو ځائې (تجويز شوې) دې او (دَ ژوند
په سامان سره) نفع حاصلول (تجويز شوي دي) دَ يو خاص وخته پورې
(يعني دَ مرګ تر وخته پورې، او دا ئې هم) اوفرمائيل چه تاسو لره
هلته ژوند تيرول دي او هلته مړهٔ کيدل دي او دَ دې نه به (دَ قيامت
په ورځ) بيا ژوندي کيدل راوتل وي۔

# معلومات او مسئلې

دَ حضرت آدم علیه السلام او ابلیس کومه واقعه چه په ذکر شوو آیاتو کښې راغلې ده بعینهٖ دا ټوله واقعه دَ سورتِ بقره په څلورمه رکوع کښې په پوره تفصیل سره تیره شوې ده۔ او دَ دې متعلق چه څومره سوالونه او شبهې کیدې شي دَ دې ټولو تفصیلي جواب او پوره تشریح سره دَ نورو فائدو دَ سورتِ بقره په تفسیر کښې لیکلې شوې دي، که ضرورت وي نو هلته ئې او ګورئ۔

يٰبَنِيْٓ اٰدَمَ قَدْ اَنْزَلْنَا عَلَيْكُمْ لِبَاسًا يُّوَارِيْ

اے دَ آدم اولاده مونږ نازل کړې دې په تاسو جامې چه پټوي ستاسو

سَوْاٰتِكُمْ وَرِيْشًا ؕ وَلِبَاسُ التَّقْوٰى ۙ ذٰلِكَ

ستر و نه او نازل کړې دي په تاسو دَ ښائست کپړې۔ او جامې دَ پرهیزګارئ دغه دَ ټولو نه

خَيْرٌ ؕ ذٰلِكَ مِنْ اٰيٰتِ اللّٰهِ لَعَلَّهُمْ يَذَّكَّرُوْنَ ﴿۲۶﴾

غوره دي۔ دا نښې دي دَ الله دَ قدرت دَ دې دَ پاره چه دغه خلق غور او کړي۔

يٰبَنِيْٓ اٰدَمَ لَا يَفْتِنَنَّكُمُ الشَّيْطٰنُ كَمَآ اَخْرَجَ

اے اولاده دَ آدم او دِ نهٔ غولوئی تاسو لره شیطان لکه چه هغهٔ را او ویستل

اَبَوَيْكُمْ مِّنَ الْجَنَّةِ يَنْزِعُ عَنْهُمَا لِبَاسَهُمَا

ستاسو مور و پلار دَ جنّت نه، او ئې ویستلې دَ دوی نه کپړې دَ دوی

لِيُرِيَهُمَا سَوْاٰتِهِمَا ؕ اِنَّهٗ يَرٰىكُمْ هُوَ وَ

چه او ښائی دوی ته عورتونه دَ دوی۔ هغهٔ وینی تاسو لره او دَ هٔ

قَبِيْلُهٗ مِنْ حَيْثُ لَا تَرَوْنَهُمْ ؕ اِنَّا جَعَلْنَا

قوم د هغه ځائے نه چه تاسو دوی لره نه وینئ - مونږ جوړ کړی دی

الشَّيٰطِيْنَ اَوْلِيَآءَ لِلَّذِيْنَ لَا يُؤْمِنُوْنَ ﴿۲۷﴾

شیطانانو لره ملګری د هغو خلقو چه کوم ایمان نه راوړی -

# لنډ تفسیر

اے اولاده د آدم (یو زمونږ انعام دا دے چه) مونږ ستاسو د پاره کپړے پیدا کړے کومے چه ستاسو ستر (یعنی د پردے ځایونه) هم پټوی او (ستاسو د بدن د پاره) موجب د ښائست هم دے او (د دے ظاهری لباس نه علاوه یو معنوی لباس هم ستاسو د پاره تجویز شوے دے کوم چه) د تقوٰی (یعنی دینداری) لباس (دے چه) دا د هغے (ظاهری لباس) نه ډیر زیات (ضروری) دے (ځکه چه د دے ظاهری لباس په شرع کښے مطلوب کیدل د دے تقوٰی یعنی دینداری یوه فرع ده، اصل مقصود په هر حالت کښے لباس د تقوٰی دے) دا (لباس پیدا کول) د الله تعالیٰ د (فضل و کرم د) نښونه وی د دے د پاره چه دا خلق (دے نعمت لره) یاد اولری او د دے په یاد د ولو سره د خپل منعم او محسن حق د فرمانبرداری ادا کړی او دغه حق د فرمانبرداری هغه دے کوم ته چه لباس د تقوٰی ویلے ګا اے اولاده د آدم شیطان دِ تاسو لره په څۀ خرابۍ کښے وا نه اچوی (چه تاسو د دین او تقوٰی نه خلاف څۀ کار اوکړی) لکه چه دۀ ستاسو نیا نیکه (یعنی آدم او حواء علیهما السلام) لره د جنّت نه باهر کړل (یعنی په دوی ئے داسے کار اوکړۀ چه په نتیجه کښے ئے دوی د جنّت نه باهر شو او باهر هم) په داسے حالت کښے چه د دوی (د بدن) نه ادویستلے شوے د دے د پاره چه دواړه د یو بل د پړ دے بدن او وینی (کوم چه د شریف انسان د پاره لوئے شرم او رسوائی ده، غرض دا دے چه شیطان ستاسو پخوانے

دښمن دے، دَ دهٔ نه هوښيار اوسئ، او زيات احتياط په دے وجه نور هم ضروري دے چه) دے او دَ دهٔ لښکر تاسو لره په داسے طور سره وينى چه تاسو وي لره (عادةً) نه شئ ليدے (ظاهره ده چه داسے دښمن ډير خطرناک وي دَ دهٔ نه دَ ځان ساتلو پوره اهتمام پکار دے او دا اهتمام په کامل ايمان او تقواى سره حاصليګى هغهٔ اختيار کړئ نو دَ بچاؤ سامان به اوشى، ځکه چه) مونږ شيطانانو لره دَ هغو ملګرى جوړ کړى دى کوم چه ايمان نه راوړى (که بالکل ايمان ئے نه وى نو پوره طور سره پرے شيطان مسلّط شى، او که ايمان ئے وى مګر کامل نه وى نو دَ دے نه په کمه درجه پرِ مسلّط وى، په خلاف دَ مؤمن کامل نه چه په دهٔ دَ شيطان بالکل قابو نه چليږى- لکه چه دَ قرآنِ کريم په يو ايت کښے دى : اِنَّهٗ لَيْسَ لَهٗ سُلْطَانٌ عَلَى الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا وَ عَلٰى رَبِّهِمْ يَتَوَكَّلُوْنَ ؛

## مَعلومَات او مَسئلے

دَ ذکر شوو اياتونو نه وړاندِ په پوره رکوع کښے دَ حضرت ادم عليه السلام او دَ شيطان رجيم واقعه بيان شوے ده چه په دے کښے دَ شيطانى غُلَولو اوّلنے اثر دا شو ے وُه چه دَ ادم او حوا عليهما السلام جنتى لباس اووِيستلے شو او دوى لغړ شو او په پانړو سره ئے خپل ستر پټول شروع کړل -

دَ ذکر شوو اياتونو نه په اوّلنى ايت کښے الله تعالىٰ ټول اولاد دَ ادم لره مخاطب کوى ارشاد فرمائى چه ستاسو لباس دَ قدرت يو عظيم نعمت دے دَ دے قدر کوئ- دلته خطاب صرف مسلمانانو ته نه دے بلکه پوره اولاد دَ ادمؑ ته دے- په دے کښے اشاره ده چه ستر پټول او لباس دَ انسان فطرى خواهش او ضرورت دے په غير دَ امتياز نه دَ هر مذهب او ملّت ټول دَ دے پابند دى، بيا ئے دَ دے په تفصيل کښے دَ درے قسمه لباسونو ذکر او فرمايه:-

اَوّل: لِبَاسًا يُّوَارِىْ سَوْاٰتِكُمْ : په دے کښے يوارى: د موارات نه مشتق دے چه معنى ئے ده پټول، او : سواٰۃ: د: سوءۃ: جمع ده هغه انسانى اندامونو ته سوءۃ وئيلے شى د کوم ښکاره کيدل چه انسان فطرۃً بَد او قابلِ شرم گنړى، مطلب دا دے چه مونږ ستاسو د صلاح او فلاح د پاره يو داسے لباس نازل کړے دے پکوم سره چه تاسو خپل قابلِ شرم اندامونه پټ کړے شئ۔

د دے نه پس فرمائى: وَرِيْشًا: ريش هغه لباس ته وئيلے شى کوم چه بنى ادم د ځان ځال او ښائست د پاره استعمالوى، مراد دا دے چه صرف د ستر پټولو د پاره خو مختصر شان لباس کافى کيږى مګر مونږ تاسو له د دے نه زيات لباس په دے وجه درکړو چه تاسو د دے په ذريعه ځان ځال او ښائست حاصل کړئ او خپل شکل ښکلے کړئ۔

دلته قرآن کريم د: اَنْزَلْنَا: يعنى د نازِلولو لفظ استعمال کړے دے مراد د دے نه ورکول دى دا ضرورى نه ده چه د اسمان نه جوړ شوے نازل شو، لکه بل ځائے چه د: اَنْزَلْنَا الْحَدِيْدَ: لفظ راغلے دے، يعنى مونږ اوسپنه نازِله کړه۔ کومه چه د غرونو د پاسه د زمکے نه را اوځى، البته د دواړو ځايه لفظ د: اَنْزَلْنَا: ئے او فرمايه د دے طرف ته ئے اشاره اوکړه چه څنګه د اسمان نه په نازِليدونکو څيزونو کښے د څه انسانى تدبير او کاريګرئ دخل نه وى دغه شان د لباس اصل ماده چه مالوچ يا ورېښم وغيره دى په دے کښے د څه انسانى تدبير يوه ذره هم دخل نيشته۔ دغه محض د الله تعالىٰ د قدرت عطيه ده، البته په دے څيزونو سره د خپل راحت او آرام او د مزاج په مناسبت سره د يخنئ ګرمئ نه د بچيدو د پاره په جا موجوړ ولو کښے د انسانى کاريګرئ کار دے او دغه کاريګرى هم د حق تعالىٰ خودلى او ورزده کړے شوى دى۔ په دے وجه د حق په نظر سره دا ټول د الله تعالىٰ يو داسے عطيه ده لکه چه د اسمان نه نازله شوى وى۔

**د لباس دوه فائدے** په دے کښے د لباس دوه فائدے خودلے شوى دى يو ستر پټول، دويم د يخنئ او ګرمئ نه د حفاظت او ښائست د بدن، او

اوّله فائده ئے وړاندے ذکر کړه دے طرف ته ئے اشاره اوکړه چه د انسانی لباس اصل مقصد ستر پټول دي او دا د انسان د عامو ځناورو نه امتیاز دے۔ چه د جانورانو لباس کوم چه په قدرتی طور سره د دوی د بدن جز جوړ کړے شوے دے د دے کار صرف د یخنئ ګرمئ نه حفاظت یا ښائست دے د ستر پټولو په دے کښے دومره اهتمام نیشته۔ البته د خاصو اندامونو جوړخت ئے د دوی په بدن کښے داسے ایخودے دے چه بالکل ښکاره نه دي چرته پرے د لکئ پرده ده او چرته بل قسم۔

او د حضرت آدمؑ او حواءؑ او د شیطان د غولولو د واقعے بیانولو نه پس د لباس په ذکر کولو کښے دے طرف ته اشاره ده چه د انسان د پاره لغړیدل او قابلِ شرم اندامونه د نورو په وړاندے ښکاره کیدل د ډیرے ذلت او رسوائیٔ نښه او بے حیائی ده او د شر او فساد مقدمه ده۔

**په انسان د شیطان اوّله حمله دده د لغړولو په صورت کښے اوشوه نن هم نوے شیطانی تهذیب د انسان لغړولو یا نیم لغړولو پسے لګیدلے دے**

او دا وجه ده چه د شیطان اوّله حمله د انسان خلاف د دے لارے نه اوشوه چه د دهٔ لباس اُو ویستلے شو۔ او نن هم شیطان د خپلو شاګردانو په ذریعه کله چه انسان لره ګمراه کول غواړی نو د تهذیب او ډول ډال نوم اخلی د ټولو نه اوّل دهٔ لره لغړ وي یا نیم لغړ وي په عامو سړکونو او کوڅو کښے ئے اودروي، او شیطان چه د څهٔ نوم ترقی ایخودے ده دغه خو ښځے لره د شرم او حیا نه د محرومه کولو او د نیم بربنډ ئی په حالت کښے د راوستو نه بغیر نه حاصلیږي۔

**د ایمان نه پس د ټولو نه اوّل فرض ستر پټول دي**

شیطان د انسان دا کمزورے اړخ معلوم کړو او اوّله حمله ئے د انسان په ستر پټولو اوکړه، نو اسلامی شریعت چه د انسان د هرے صلاح او فلاح کفالت کوي هغهٔ د ستر پټولو اهتمام دومره اوکړه چه د ایمان نه پس د ټولو نه اوّل فرض ئے ستر پټول مقرر کړل۔ مونځ، روژه وغیره د دے نه روستو دي۔

حضرت فاروق اعظمؓ فرمائي چه نبي کريم صلی الله عليه وسلم فرمائيلي دي چه کله يو سړے نوے لباس واغوندي نو دۀ له پکار دي چه دَلباس اغوستو په وخت کښې دا دعا اولولي:

اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ الَّذِيْ كَسَانِيْ مَا اُوَارِيْ بِهٖ عَوْرَتِيْ وَاَتَجَمَّلُ بِهٖ فِيْ حَيَاتِيْ۔

"يعني شکر دے دَ هغه ذات چا چه مالره لباس راکړو چه زۀ پرې خپل ستر پټه کړم او دَ ژوند ډول پرے اوکړم"

**دَ نوي لباس جوړولو په وخت کښې دَ زوړ لباس صدقه کولو ثواب**

او حضور صلی الله عليه وسلم فرمائيلي دي چه دَ نوي لباس اغوستو نه پس زوړ لباس په غريبانو او مسکينانو باندې صدقه کړي نو دے دَ خپل مرګ او ژوند په هر حال کښې دَ الله تعالیٰ په ذمه وارئ او پناه کښې راځي (ابن کثير دَ مسند احمدؒ نه)

په دے حديث کښې هم انسان ته دَ لباس اغوستو په وخت کښې دغه دواړه مصلحتونه را ياد کړے شوي دي دَ کومو دَ پاره چه الله تعالیٰ انساني لباس پيدا کړے دے۔

**ستر پټول دَ پيدائش دَ وخت نه دَ انسان فطري عمل دے، دَ ترقئ دا نوے فلسفه باطله دَ ه**

دَ آدم عليه السلام دَ واقعے او دَ قرآن کريم دَ دے ارشادونه دا خبره هم واضحه شوه چه ستر پټول او لباس دَ انسان فطري خواهش او پيدائشي ضرورت دے کوم چه دَ اولے ورځے نه دَ دۀ سره دے او دَ نن صبا دَ بعضے فلاسفرانو دا خبره سراسر غلطه او بې اصله ده چه انسان اول لغړ ګرځيدو، بيا دَ ترقئ دَ منزلونو نه پس دۀ لباس ايجاد کړو۔

**دَ لباس يو دريم قسم**

دَ ستر پټولو او دَ راحت او ښائست دَ پاره دَ دوه قسمه لباسونو ذکر کولو نه پس قرآن کريم دَ يو دريم لباس ذکر داسے فرمائي:-

وَلِبَاسُ التَّقْوٰى ذٰلِكَ خَيْرٌ: په بعضے قراءتونو کښې په زبر سره: لِبَاسَ التَّقْوٰى: لوستلے شوے دے، نو دا اَنْزَلْنَا: په تحت کښې داخل شو، معنیٰ دا شوه چه: مونږ يو دريم لباس دَ تقوىٰ نازل کړے دے؛ او دَ مشهور قرءت په رو سره معنیٰ داده چه: دا دوه لباسونه خو هر سړے پيژني، يو دريم لباس دَ تقوىٰ دے او دغه دَ ټولو لباسونو نه زيات غوره دے۔ دَ لباس

د تقوی نه مراد د حضرت ابن عباسؓ او د عروه بن زبیرؓ د تفسیر مطابق نیک عمل او ویره د خدائے پاک ده (روح)

مطلب دا دے چه څنګه ظاهري لباس د انسان د قابلِ شرم اندامونو د پاره پرده او د یخنۍ ګرمۍ نه د بچ کولو او د بنا ئست حاصلولو ذریعه وی، دغه شان یو معنوی لباس نیک عمل او د خدائے تعالیٰ ویره ده، کوم چه د انسان د اخلاقی عیبونو او کمزورو پرده ده، او د همیشه تکلیفونو او مصیبتونو نه د نجات ذریعه ده - په دے وجه دا د ټولو لباسونو نه غوره لباس دے۔

په دے کښے دے طرف ته هم اشاره ده چه یو بدکار بنیادم په چا کښے چه د خدائے ویره نه وی او هغه د نیک عمل پابند نه وی هغه که په هر څومره پردو کښے پټ شی مګر انجام ئے رسوائی او ذلت وی - لکه چه ابن جریرؒ په روایت د حضرت عثمان غنیؓ نقل کړے دے، چه نبی کریم صلے الله علیه وسلم فرمائیلی دی چه قسم دے په هغه ذات د چا په قبضه کښے چه د محمدؐ روح دے، کوم سړے چه څۀ عمل هم د خلقو د نظرونو نه پټ کوی، الله تعالیٰ دۀ ته د دے عمل څادر ورواغوستوی اعلان کوی -"چه نیک عمل وی نو د نیکۍ او چه بد عمل وی نو د بدۍ" د څادر اغوستلو نه مراد دا دے چه لکه څنګه په بدن اغوستے شوے څادر خلقو ته ښکاره وی دغه شان د انسان عمل چه څومره پټ وی د هغے ثمره او نښے د دۀ په مخ او بدن باذن الله تعالیٰ ښکاره کوی، او د دے ارشاد په سند کښے نبی کریم صلے الله علیه وسلم دا آیت اولوستلو:-

وَرِيْشًا، وَلِبَاسُ التَّقْوٰى، ذٰلِكَ خَيْرٌ، ذٰلِكَ مِنْ اٰيٰتِ اللّٰهِ-

**د ظاهري لباس نه هم اصل مقصد تقوی حاصلول دي**

د لِبَاسُ التَّقْوٰى د لفظ نه دے طرف ته هم اشاره مونده شی چه د ظاهري لباس په ذریعه د ستر پټولو او بنا ئست اصل مقصد تقوی او د خدائے تعالیٰ ویره ده، چه په دے لباس کښے هم د دے ښکاره کول دا سے پکار دی، چه پوره ستر په کښے پټ وی، او قابل شرم اندامونه پوره پوره په پرده کښے وی، دغه بربنډ هم نه وی او لباس په بدن پورے دا سے چست او نښتے هم نه وی چه اندامونه پکښے د بربنډ پشان په نظر راځی، د دار نګ چه په دے لباس کښے

دَ فخر، غرور او ناز ذره هم نه وي، بلکه دَ تواضع نښې وي په کښې، بې ځایه اسراف پکښې هم نه وي، دَ ضرورت مطابق کپړه استعمال کړے شي، دَ ښځو دَ پاره چه مردانه او دَ سړو دَ پاره چه زنانه لباس هم نه وي کوم چه دَ الله تعالیٰ په نزد مبغوض او مکروه دے، او چه په لباس کښې دَ جاهل قوم نقل هم نه وي کوم چه دَ خپل قوم او ملّت سره دَ غدارئ او اِعراض نښه ده،

او دَ دے سره سره دَ اخلاقو او دَ عملونو درستي هم موجوده وي کوم چه دَ لباس اصل مقصد دے، په آخر ایت کښې ارشاد فرمائي: ذٰلِكَ مِنْ اٰيٰتِ اللّٰهِ لَعَلَّهُمْ يَذَّكَّرُوْنَ: يعني انسان ته دا درے قسمونه دَ لباس ورکول دَ الله جلّ شانهٔ دَ قدرت دَ نښونه دي. دَ دے دَ پاره چه خلق دَ دے نه عبرت حاصل کړي.

په دویم ایت کښې بیا تول اولاد دَ آدم ته خطاب کوي خبردارے ورکوي چه په خپل هر حال او هر کار کښې دَ شیطان دَ مکر نه ځان ساتئ، هسے نه چه دے بیا تاسو په څهٔ فتنه کښې اخته کړي، لکه ستاسو مور و پلار حضرت حوا او آدم علیهما السلام لره ئے دَ جنّت نه را او ویستل، او دَ دوئ نه ئے جامے اُو ویستلے دَ ستر ښکاره کولو سبب ئے جوړ شو، دا ستاسو پخوانے دشمن دے، دَ دهٔ دَ دُشمنئ همیشه او هر وخت خیال ساتئ.

په آخري ایت کښې فرمائي: اِنَّهٗ يَرٰىكُمْ هُوَ وَقَبِيْلُهٗ مِنْ حَيْثُ لَا تَرَوْنَهُمْ اِنَّا جَعَلْنَا الشَّيٰطِيْنَ اَوْلِيَآءَ لِلَّذِيْنَ لَا يُؤْمِنُوْنَ: په دے کښې دَ لفظ دَ قبیل معنیٰ دَ جماعت او ډلے دے، کوم جماعت چه دَ یو خاندان نه وي دوي ته قبیله وائي او عامو جماعتونو ته قبیل وئیلے شي مطلب دا دے چه شیطان ستاسو داسے دشمن دے چه هغهٔ او دَ دهٔ ملګري خو تاسو لره وېني تاسو دوي لره نه شئ لیدے، په دے وجه دَ دوي دَ مکر او فریب په تاسو باندے چلیدل زیات ممکن دي.

لیکن په دویم ایت کښې دا هم اوخودلے شو چه کوم خلق دَ الله طرف ته رجوع کوونکي او دَ شیطان دَ مکر نه هوښیار او سیدونکي دي، دَ دوي دَ پاره دَ شیطان جال ډیر کمزورے دے.

او دَ دے آیت په آخر کښے چه کوم دا ئے او فرمائیل چه مونږ شیطانا نو لره دَ هغو سړو پرست جوړ کړی دی کوم چه ایمان نه لری، په دے کښے هم دے طرف ته اشاره ده چه دَ ایمانداروَ د پاره دَ دهٔ دَ چال نه بچ کیدل څهٔ زیات مشکل نه دی -

بعضے پښتوانی مشران فرمائی چه دا دُشمن کوم چه مونږ لره وینی او مونږ ئے نه وینو، دَ دے علاج زمونږ دَ پاره دا دے، چه مونږ دَ الله تعالیٰ په پناه کښے راشو چه هغه دے شیطانانو لره اودَ دوی هر یو نقل او حرکت لره وینی، او شیطان هغهٔ لره نه شی لیدے -

او دا ارشاد چه انسان شیطانانو لره نه شی لیدے دَ عامو حالاتو او عامو عادَ تونو په اعتبار سره دے، که په خرقِ عادت سره څوک انسان چرته دهٔ لره او وینی نو دا دَ دینه منافی نه دے - لکه چه دَ نبی کریم صلی الله علیه وسلم په خدمت کښے دَ پیریانو راتلل او سوالونه کول او اسلام قبلول وغیره په صحیحو روایتونو دَ حدیثو کښے ذکر دی - (روح)

---

وَاِذَا فَعَلُوْا فَاحِشَةً قَالُوْا وَجَدْنَا عَلَيْهَآ اٰبَآءَنَا وَ

او کله چه کوی څهٔ بد کار نو وائی چه مونږ په دا سے کولو خپل پلار نیکه لیدلی دی - او

اللّٰهُ اَمَرَنَا بِهَا ؕ قُلْ اِنَّ اللّٰهَ لَا يَاْمُرُ بِالْفَحْشَآءِ ؕ

الله هم دَ دے مونږ ته حکم کړے دے - ته ووایه چه الله حکم نه کوی دَ بد کار -

اَتَقُوْلُوْنَ عَلَى اللّٰهِ مَا لَا تَعْلَمُوْنَ ﴿۲۸﴾ قُلْ اَمَرَ رَبِّىْ

ولے جوړ وئ په الله پورے هغهٔ خبرے چه تاسو ته معلومے نه دی - ته ووایه چه زما رب حکم کړے

بِالْقِسْطِ ۗ وَاَقِيْمُوْا وُجُوْهَكُمْ عِنْدَ كُلِّ مَسْجِدٍ

دے دَ انصاف - او برابر کړئ خپل مخونه دَ هر مانځه په وخت کښے

وَادْعُوْهُ مُخْلِصِيْنَ لَهُ الدِّيْنَ ۚ كَمَا بَدَاَكُمْ

او بلئ هغهٔ لره خالص دَ هغهٔ فرمانبردارشئ لکه چه تاسو لره ئے اول پیدا کړئ

تَعُوْدُوْنَ ﴿۲۹﴾ فَرِيْقًا هَدٰى وَفَرِيْقًا حَقَّ عَلَيْهِمُ

دویم وار به بیا پیدا شئ - یوے فریقے ته ئے هدایت اوکړو او په یوه فریقه مقرر شوه

الضَّلٰلَةُ ؕ اِنَّهُمُ اتَّخَذُوا الشَّيٰطِيْنَ اَوْلِيَآءَ مِنْ

ګمراهی - دوی جوړکړی دی شیطانانو لره ملګری ما سِوا

دُوْنِ اللّٰهِ وَيَحْسَبُوْنَ اَنَّهُمْ مُّهْتَدُوْنَ ﴿۳۰﴾ يٰبَنِيْٓ

دَ الله نه او دا سے ګنړی چه دوی په هدایت باندِ دی - اے اولاده

اٰدَمَ خُذُوْا زِيْنَتَكُمْ عِنْدَ كُلِّ مَسْجِدٍ وَّكُلُوْا

دَ ادم اخلئ خپل بنائست دَ هر مانځه په وخت کښے او خورئ

وَاشْرَبُوْا وَلَا تُسْرِفُوْا ۚ اِنَّهٗ لَا يُحِبُّ الْمُسْرِفِيْنَ ﴿۳۱﴾

او څښئ او بے ځایه خرچ مه کوئ دَ هغهٔ نه خوښیګی بے ځایه خرچ کوُونکی-

# لنډ تفسیر

او هغه خلق کله چه څهٔ فحش کار اوکړی (یعنی داسے کار چه ناکار والے ئے ښکاره وی، او انسانی فطرت ئے بد ګنړی، لکه په لغړے طواف کول)، نو وائی چه مونږ خپل پلار نیکه په دے طریقه موندلی دی او الله تعالیٰ هم مونږ ته دا خوکړلی دی (اے رسول الله صلے الله علیه وسلم دَ دوی دَ دے جاهلانه دلیل په جواب کښے ته اووایه چه الله تعالیٰ دَ فحش کار چرته هم خو دَ نه نهٔ کوی آیا (تاسو دا سے دعوه کوئ) په خدائے پورے داسے خبرے جوړوئ دَ کوم چه تاسو هیڅ سَنَد

نهٔ لرئے، تهٔ (دا هم) او دا یه چه (تاسو) ګومو فحشوا و غلطو کارونو نسبت الله
تعالیٰ طرف ته کړے دے چه هغهٔ مونږ ته دا حکم کړے دے. دغه غلط دهٔ او س
هغهٔ خبره واورئ د کومے چه حکم الله تعالیٰ په واقعی طور باندے کړے دے
هغهٔ دا دے چه) ځما رب خو حکم کړے دے د انصاف کولو او دا چه تاسو
د هرے سجدے (یعنی عبادت) په وخت کښے خپل مخ نیغ (د الله طرف ته) ساتئ
(یعنی چا مخلوق لره د هغهٔ په عبادت کښے مه شریکوئ) او د الله عبادت په
دے طور سره کوئ چه د هغهٔ عبادت صرف د الله د پاره ساتئ (په دے
لنډه شان جمله کښے ټول شرعی کارونه اجمالی راغلل په، قسط: کښے د بندګانو
حقونه په: اَقِیْمُوْا: کښے عملونه او طاعتونه په: مخلصین: کښے عقیدے) تاسو لره
الله تعالیٰ چه لکه څنګه په اول ځل پیدا کړی یئ، دغه شان به تاسو (یو وخت)
بیا دوباره پیدا شئ، بعض خلقو لره الله تعالیٰ (په دنیا کښے) هدایت کړے دے
(دوی ته به هغه وخت جزا ملاویږی) او په بعضو باندے د ګمراهئ ثبوت شوے
دے (دوی ته به سزا ملاویږی) دے خلقو شیطانان خپل ملګری جوړ کړی
دی او الله تعالیٰ ئے پاتے کړو او (د دے باوجود بیا هم د خپل ځان په نسبت) خیال
کوی چه دوی په نیغه لار دی، اے اولاده د آدم تاسو جمات ته د حاضرئے
په وخت کښے (د مانځه د پاره وی او که د طواف د پاره) خپلے جامے اغوندئ او
(لکه څنګه چه جامے نه اغوستل ګناه وه هم دغسے د حلالو څیزونو خوړل
سکل ناجائز ګنړل هم لوئے ګناه دے، په دے وجه حلالو څیزونو لره) خورئ
څکئ او د شرعی حد نه مه اوځئ بے شکه الله تعالیٰ لهٔ خوښوی د حد نه
وتونکو لره۔

## معلومات او مسئلے

د اسلام نه اول د عربو د جاهلیت په زمانه کښے شیطان چه خلقو لره
په کومو شرمناکو او عبثو رسمونو کښے اخته کړی وُو په دی کښے یو دا هم
وُه چه د قریشو نه سوا یو سړی به د بیت الله طواف په خپلو کپړو کښے نهٔ
شو کولے، بلکه یا به دے د چا قریشی نه په سوال جامے غواړی او یا به په لغړه

بیا طواف کوی-

او ښکاره خبره ده چه ټولو عربو لره به دَ قریشو خلقو ترکومه حده پورې کپړې ورکولے شوے؟ نو په دے وجه به دے خلقو اکثر په لغړه طواف کولو سړو هم او ښځو هم، او ښځو به عام طور سره دَ شپې په تیارے کښې طواف کولو. او دَ خپل دے شیطانی کار حکمت به ئے دا بیا نولو"چه پکومو کپړو کښې مونږ ګناه کړے دے په دے کپړو کښې دَ بیت الله نه چاپیره طواف کول دَ ادب نه خلاف دے (او دا دَ عقل ړاندهٔ په دے نه پوهیدل چه په لغړه طواف کول دَ دے نه زیاته بے ادبی ده او دَ انسانیت نه خلاف ده) صرف دَ قریشو قبیله به په دے وجه دَ دے بربنډ ئی دَ قانون نه مستثنیٰ ګنړلے کیدله چه دوی دَ حرم خادمان دی"

په ذکر شوو ایتونو کښې اوّلنی ایت دَ دے عبث رسم دَ ورانولو او دَ دے دَ خرابئ خودَلو دَ پاره نازل شوے دے. په دے ایت کښې فرمائی چه کله به دے خلقو څهٔ فحش کار کولو نو کوم خلقو چه به دوی دَ دے فحش کار نه منع کول نو جواب به ئے دا وَرکولو چه زمونږ پلارانو نیکونو او مشرانو هم دَ غسے کړی دی دَ دوی طریقه پاتے کول دَ عار او شرم خبره ده، او دا به ئے هم وے چه مونږ ته الله تعالیٰ دَ داسے کولو حکم راکړے دے-

(ابن کثیر)

په دے ایت کښې دَ فحش کار نه مراد دَ اکثرو مفسرینو په نزد هم دا په لغړه طواف دے او په اصل کښې فحش، فحشاء، فاحشه هر داسے ناکاره کار ته وئیلے شی دَ کوم ناکار والے چه انتهاء ته رسیدلے وی، او دَ عقل او پوهے او فطرتِ سلیم په نزد بالکل ښکاره او واضحه وی (مظهری)

او په دے درجه کښې دَ حُسن او قبُح عقلی کیدل دَ ټولو په نزد منلے شوے دے (روح)

بیا دے خلقو دَ دے عبث رسم دَ جائز کیدو دَ پاره دوه دلیلونه پیش کړل، یو دَ پلارنیکه تقلید، چه دَ پلارنیکه په طریقه قائم ساتلو کښې خیر او ښهٔ والے دے، دَ دے جواب خو بالکل واضح او ښکاره وه، چه دَ جاهل

پلارنیکه تابعداری څهٔ دَعقل خبره نه ده-دَ لمز شان عقل او هوښ لرونکے انسان هم په دے پوهیگی چه دَ څهٔ طریقے دَجواز دَ پاره داخه دلیل نه شی کیدے چه پلارنیکه داسے کول، ځکه چه که دَ څهٔ طریقے او عمل دَ پاره چه دا صحیح او جائز دے دَپلارنیکه طریقه کیدل کافی او گنړلے شی نو په دنیاکښے خو دَ مختلفو خلقو پلارانو او نیکو نو په مختلفو او متضادو طریقو عملونه کوَلے، نو په دے دلیل سره خو به دَ ټولے دُنیا ټولے گمراه کوونکے طریقے جائز او صحیح شی، غرض دا دے چه دَ دے جاهلانو دا دلیله څهٔ دَ توجّه قابل نه وُه، په دے وجه قرآن کریم دلته دَ دے جواب ورکول ضروری او نه گنړل-او په نورو رِوَایتو نو کښے دَدے هم جواب ورکړے شوَے دے، چه که پلارنیکه دَ جهالت څهٔ کار اوکړی نو هغهٔ څهٔ رنگ دَ تقلید او تابعدارئ قابل کیدے شی-

دویم دلیل دے خلقو دَخپل لغو طواف په جواز کښے دا پیش کړو چه مونږ ته الله تعالیٰ داسے حکم کړے دے، دا سراسر بُهتان او دَ الله تعالیٰ دَحکم خلاف دَهغهٔ طرف ته دَ یو غلط حکم نسبت کول دی، دَدے په جواب کښے نبی کریم صلے الله علیه وسلم ته خطاب اوشه چه داسے ورته اوفرمائی:

:قُلْ اِنَّ اللهَ لَا يَاْمُرُ بِالْفَحْشَآءِ :" یعنی ته اوفرمایه چه الله تعالیٰ چرته هم دَ څهٔ فحش کار حکم نه کوی، ځکه چه داسے حکم کول دَ حکمت او شان قدّوسی نه خلاف دے، بیائے دَ دے خلقو دے بهتان او دروغو جوړولو په الله او باطل خیال لوه په پوره شان سره دَادا کولو دَپاره دے خلقو ته داسے خبر دارے ورکړو: اَتَقُوْلُوْنَ عَلَى اللهِ مَالَا تَعْلَمُوْنَ :" یعنی آیا تاسو خلق دَ الله تعالیٰ طرف ته دَداسے څیزونو نسبت کوئ دَ کوموچه تاسو ته علم نیشته- یعنی یکوموچه دَ یقین کَولو دَپاره ستاسو سره څهٔ دلیل نشته او ظاهره ده چه بے تحقیقه دَچاسری طرف ته هم دَ څهٔ کار نسبت کوَل انتهائی زړوَر توب او ظلم دے نو دَ الله جل شانه طرف ته دَ څهٔ نقل داسے غلط نسبت کول څومره لوئے جرم او ظلم به وی، مجتهدین حضرات چه دَ قرآن دَ آیاتونو نه په ذریعه دَ اجتهاد کوم احکام راوباسی هغهٔ

بیانوی نو دغه په دے کښې داخل نه دی، ځکه دغه د قرآن د الفاظو او د ارشاداتو نه د یو حجت شرعی له مخه راویستلے شی

په دویم ایت کښې ارشاد فرمائی: قُلْ اَمَرَ رَبِّیْ بِالْقِسْطِ: یعنی د الله تعالیٰ د طرف نه په لغړه د طواف جائز کولو د غلط نسبت کوونکو جاهلانو ته ته اووایه چه الله تعالیٰ خو همیشه د قِسْط حکم کوی" د قِسْط اصلی معنیٰ ده انصاف او اعتدال، او دلته د قِسْط نه مراد هغه عمل دے چه د افراط او تفریط نه خالی وی یعنی نه په کښې کوتاهی وی او نه د مقرره حد نه تجاوزوی لکه چه د ټولو شرعی احکامو داحال دے، په دے وجه د دے لفظ د لاندے هغه ټول عبادتونه او طاعتونه او عام شرعی حکمونه راځی او د قسط په معنیٰ کښې داخل دی - (روح)

په دے ایت کښې د قسط یعنی انصاف او اعتدال د حکم بیانولو نه پس د دے خلقو د ګمراهئ او بے لارے کیدو مناسب د شرعی حکمونو نه دوه حکمونه په خصوصیت سره بیان کړل، یو: اَقِیْمُوْا وُجُوْهَكُمْ عِنْدَ كُلِّ مَسْجِدٍ: او دویم: وَادْعُوْهُ مُخْلِصِیْنَ لَهُ الدِّیْنَ: اوّل حکم د انسان د ظاهری اعمالو سره تعلق لری، او دویم د ده د زړه او باطن سره تعلق لری- په اوّل حکم کښې د مسجد د لفظ د اکثرو تفسیر لیکونکو په نزد په معنیٰ د سجدے او عبادت راغلے دے او معنیٰ ئے داده چه د هر عبادت او مانځه په وخت کښې خپل مخ نیغ یعنی سیدا ساتئ، د دے دا مطلب هم کیدے شی چه خپل مخ د مانځه په وخت کښې سیدا د قبلے طرف ته د کولو اهتمام کوئ- او د مخ سیدا کولو دا معنیٰ هم کیدے شی، چه په خپل هر قول او فعل او هر عمل کښې خپل مخ د خپل رب د حکم تابع ساتئ، د دے نه چه اخوا دیخوا نه شئ، د دے معنی په لحاظ سره دا حکم صرف د مانځه د پاره خاص نه دے، بلکه ټولو عبادتونو او معاملو باندے حاوی دے-

او د دویم حکم ترجمه داده چه الله تعالیٰ په دا سے شان سره بلئ چه عبادت خالص د هغهٔ د پاره وی په دے کښې د چا بل چا شرکت په هیڅ حیثیت سره نه وی، تر دے چه د پټ شرک یعنی د ریا او نمائش نه هم پاک وی-

د دے دوارو حکمونو په یو ځائے ذکر کولو نه دے طرف ته هم اشاره

کیدے شی، چه په انسان لازمه ده چه خپل ظاهر او باطن دواړه ولره د شریعت د احکامو مطابق برابر کړی، نه صرف ظاهری عبادت په غیر د اخلاص نه کافی دے او نه صرف باطنی اخلاص بغیر د ظاهری تابعدارئ د شریعت نه کافی کیدے شی، بلکه په هر سړی لازمه ده چه خپل ظاهری لره هم د شریعت مطابق برابر کړی، او باطن لره هم صرف د الله تعالیٰ د پاره خالص اوساتی، د دے نه د هغو خلقو غلطی واضحه کیږی کوم چه شریعت او طریقت لره مختلفے طریقے گنړی، او دا خیال کوی چه د طریقت مطابق باطن لره برابر کول کافی دی اگر که د شریعت نه خلاف وی، دا بنکاره گمراهی ده۔

په آخر آیت کښے ارشاد فرمائی: کَمَا بَدَاَکُمۡ تَعُوۡدُوۡنَ: "یعنی الله تعالیٰ چه څنګه تاسو اول پیدا کړی وئے، دغه شان د قیامت په ورځ به دوباره تاسو ژوندی کړی او راپاسوی به مو۔ د هغهٔ د کامل قدرت په وړاندے دا څهٔ مشکل کار نه دے، او شاید چه د دے اسانئ طرف ته د اشارے کولو د پاره د: یُعِیۡدُکُمۡ: په ځائے ئے: تَعُوۡدُوۡنَ: اوفرمائیل چه د دوباره پیدا کولو د پاره د څهٔ خاص عمل او کوشش ضرورت نیشته (روح)

د دے جملے لره دلته د راوړلو یوه فائده دا هم ده چه په شرعی احکامو به پوره شان سره قائم او سیدل د انسان د پاره آسان شی ځکه چه د آخرت او قیامت او په دے کښے د ښهٔ بد عمل د جزا او سزا تصور یو داسے شے دے چه د انسان د پاره هر مشکل آسانو لے او هر تکلیف راحت کولے شی، او تجربه گواه ده چه ترڅو پورے په انسان دا یره نه وی مسلّطه شوی، نه څهٔ وعظ او نصیحت ده لره نیغولے شی او نه د څهٔ قانون پابندی دے د جرمونو نه منع کولے شی۔

په دریم آیت کښے فرمائی چه بعض خلقو ته خو الله تعالیٰ هدایت کړے دے او په بعضو د گمراهئ ثبوت شوے دے، ځکه چه دے خلقو الله تعالیٰ لره پاتے کړے دے او شیطانانو لره ئے خپل ملګری او دوستان جوړ کړی دی او دا خیال کوی چه دوی به سمے لارے باندے دی۔

مراد دا دے چه اگر چه د الله تعالیٰ هدایت عام وه مگر دے خلقو

د دے هدایت نه مخ واړولو او د شیطانانو تابعدارئ ئے شروع کړه او ظلم د پاسه ظلم دا او شو چه دوی خپلے دے بیمارئ له صحت او ګمراهئ له ئے هدایت ګڼړل شروع کړو۔

د دے ایت نه معلومه شوه چه په شرعی احکامو کښے جهل او ناپوهی څۀ عذر نۀ دے، یو سړے که غلطے لارے له صحیح او ګڼړی او په پوره اخلاص ئے اختیار کړی نو دے د الله په نزد معذور نه دے، ځکه چه الله تعالیٰ هر سړی له هوش او عقل او پوهه ځکه ورکړے ده چه دے د دے نه کار واخلی کړه کوته، غلط او صحیح او پیژنی، بیا ئے صرف دۀ له د دۀ په عقل او پوهه بانديا تے نه کړو، خپل پیغمبران ئے اولیږل، کتابونه ئے نازل کړل، د کومو په ذریعه چه ئے صحیح غلط حق او باطل ښه واضحه کړل

که د یو سړی په دے کښے شك وی چه یو سړے کوم چه په واقع کښے خپل ځان له په حقه ګڼړی اګر که په غلطئ وی، بیا په دۀ الزام څۀ دے دۀ له معذور ګڼړل پکار دی ځکه چه دۀ ته خو د خپلے غلطئ هډو خبر نیشتے۔ نو جواب دا دے چه الله تعالیٰ هر انسان ته عقل او هوش او بیا د انبیاء علیهم السلامو تعلیم ورکړے دے، د کومو په ذریعه چه کم نه کم دۀ ته د خپلو اختیار کړو طریقو خلاف احتمال او تردُّد خامخا کیدل پکار دی، او س د دۀ قصور دا دے چه دۀ دے څیز و نو طرفته هډو خیال اُنۀ کړو او کومه غلطه طریقه چه ئے اختیار کړے وه په هغے کلك پاتے شو۔

البته کوم سړے چه د حق په طلب کښے خپل پوره کوشش او کړی، او بیا هم د دۀ نظر صحیح لارے او حق طرف ته او نۀ رسی هغه ممکنه ده چه د الله تعالیٰ په نزد معذور وی، لکه چه امام غزالی رحمة الله علیه په خپل کتاب "التفرقة بين الاسلام والزندقة" کښے فرمائی- والله تعالیٰ اعلم۔

په څلورم ایت کښے ارشاد فرمائی: "اے اولاده د ادم! تاسو جمات ته د هرے حاضرئ په وخت کښے خپل لباس اغوندئ او ښۀ خورئ او څکئ او د حد نه مه اوځئ، بے شکه الله تعالیٰ د حد نه د تونکی نه خوښوی" په زمانه د جاهلیت کښے چه به څنګه عربو د بیت الله طواف په لغړه کول صحیح عبادت

او د بیت الله احترام کنړلو، دغه شان په دوی کښې دا رسم هم وه، چه په ورځو د حج کښې به ئے خوړل سکل نه کول، صرف دومره به ئے خوړله سکله چه ساه قد رے پرِ و اخلی، خاصکر غوړی به ئے او د پاکیزه خوراکونو نه خو به ئے بالکل ځان ساتلو۔ (ابن جریر)

د دوی د دے عبث طریقه کار رخلاف دا آیت نازل شو، کوم چه دا او خودله چه په لغړه طواف کول بے حیائی او سخته بے ادبی ده د دے نه ځان ساتئ، دغه شان د الله تعالیٰ د ورکړو شوو پاکیزه خوراکونو نه بے وجهِ ځان ساتل هم څهٔ د دین خبره نه ده، بلکه د هغهٔ حلال کړی شوی څیزونه په ځان حرامول گستاخی او په عبادت کښې د حد نه تجاوز کول دی، کوم لره چه الله تعالیٰ نه خوښوی، په دے وجه د حج په ورځو کښې بنهٔ خوری سکئ، هاں اسراف مه کوئ۔ د حلالو خوراکونو نه بالکل ځان ساتل هم په اسراف کښې داخل دی، او د حج اصل مقاصد او د الله تعالیٰ د ذکر نه غافله کیدل په خوړلو سکلو کښې مشغول کیدل هم په اسراف کښې داخل دی۔

دا آیت اگر چه د عربو د جاهلیت د یو خاص رسم بر بنړه والی د ورکولو د پاره نازل شوے دے کوم چه به دوی د طواف په وخت کښې د بیت الله د تعظیم په نوم باندِ کول لو۔ لیکن د تفسیر د اماما نو او د اُمت د فقهاوٗ په دے باندِ اتفاق دے چه د یو حکم په یوه خاصه واقعه کښې د نازِلیدو دا معنیٰ نه ده، چه دغه حکم د دغے واقعے سره خاص دے۔ بلکه اعتبار د عامو الی د الفاظو لره دے چه کوم څیزونه د دغے الفاظو په عاموالی کښې شامل وی په ټولو باندِ دغه حکم عائد کیږی۔

**په مانځه کښې ستر پټول فرض دی د دے نه بغیر مونځ نه کیږی**

په دے وجه د دے آیت نه جمهورو صحابه وو تابعینو او مجتهدینو اماما نو ځو احکام را ویستلی دی۔ اوّل دا چه لکه څنګه په دے کښې په لغړه طواف کول منع شوی دی دغه شان په لغړه مونځ کول هم حرام او باطل دی، ځکه چه په حدیث کښې د نبی کریم صلے الله علیه وسلم ارشاد دے: اَلطَّوَافُ بِالْبَيْتِ صَلٰوةٌ، د دے نه علاوه په خپله په دے آیت کښې هرکله چه د لفظ د مسجد نه د جمهورو تفسیر لیکونکو

په نزد مراد سجده ده، نو په حالت د لغړ والي کښې د سجدے ممانعت په خپله په ايت کښې واضحه کيږي. او کله چه په سجده کښې لغړ والے منع شو نو په رکوع او قيام او قعده او د مانځه په ټولو کارونو کښې د دے لازميدل بښکاره خبره ده بيا د نبي کريم صلے الله عليه وسلم ارشاد او دے لره نوره هم واضحه کړه په يو حديث کښې ارشاد دے چه د يوے بالغے ښځے مونځ بغير لوپټے نه جائز نه دے (ترمذي)

او د مانځه نه علاوه په بل حالت کښې هم د ستر پټولو فرضوالے د نورو ايا تونو او روايتونو نه ثابت دي۔ د کومونه چه يو ايت په دے سورت کښې تير شوے دے: يٰبَنِيٓ اٰدَمَ قَدۡ اَنۡزَلۡنَا عَلَيۡكُمۡ لِبَاسًا يُّوَارِيۡ سَوۡاٰتِكُمۡ: ۔

لنډه داده چه ستر پټول د انسان د پاره اولني انساني او اسلامي فرض دي چه په هر حالت کښې په دهٔ باندې لازم دي، په مانځه او طواف کښې خو په درجهٔ اولی فرض دي۔

**د مانځه د پاره غوره لباس** دريمه مسئله په دے ايت کښې داده چه لباس ئے په لفظ د زينت سره تعبير اوکړو دے طرف ته ئے هم اشاره فرمائيلے ده چه په مانځهٔ کښې اولی او غوره داده چه صرف په ستر پټولو باندې اکتفاء او نه کړے شي بلکه د خپل طاقت مطابق د ښائست لباس اختيار کړے شي، د حضرت حسن رضي الله عنه عادت وُه چه د مانځه په وخت کښې به ئے خپلے د ټولو نه غوره جامے اغوستلے۔ او فرمائيل به ئے چه الله تعالی ښائست لره خوښوي، په دے وجه زهٔ د خپل رب د پاره زينت او ښائست اختيار وم او الله تعالی فرمائي: خُذُوۡا زِيۡنَتَكُمۡ عِنۡدَ كُلِّ مَسۡجِدٍ: ۔

معلومه شوه چه د دے ايت نه څنګه چه په مانځه کښې د ستر پټولو فرضوالے ثابت کيږي دغه شان په قدر د طاقت د صاف سُتره او ښهٔ لباس اختيارولو فضيلت او مستحب والے هم ترې ثابتيږي۔

**په مانځه کښې د لباس متعلق څو مسئلے** دريمه مسئله داده چه ستر د کوم چه پټول په انسان په هر حال کښې او خصوصًا په مانځه او طواف کښې فرض دي۔ د دے حد څومره دے؟ قرآن کريم اجمالًا د ستر پټولو حکم اوکړو او د دے تفصيلات ئے

نبی کریم صلے اللہ علیه وسلّم ته حواله کړل. دوی ئے تفصیل اوخودو چه دسړی ستره نامه نه تر زنګونو نو پورے، او د ښځے ستر ټول بدن دے صرف مخ او دواړه ورغوی او دخپو قدمونه ترمستثنیٰ دی -

دحدیثو په روایتونو کښے دا ټول تفصیل ذکر دے، دسړی د پاره د نوم نه لاندی بدن یا زنګونان ښکاره وی نو داسے جامه پخپله هم ګناه دے او مونځ هم د دے سره نه کیږی، دغه شان چه د ښځے سرخټ یا لیچے یا پنډئ ښکاره وی نو په داسے جامے اغوستل پخپله هم ناجائز دی او مونځ ئے هم نه کیږی- په یو حدیث کښے ارشاد دے چه پکوم کورکښے د ښځے عورت ښکاره وی هلته د نیکئ فرښتے نه راځی -

د ښځے مخ ورغوی او قدمونه کوم چه د ستر نه مستثنیٰ شوی دی، د دے دا معنیٰ ده چه په مانځه کښے د دے دا اندامونه ښکاره وی نو په مانځه کښے څۀ خلل نه راځی- د دے دا مطلب هرګز نه دے چه د غیر محرمو په وړاندی به هم داغ په غیر د شرعی عذر نه ښکاره مخ ګرځی -

دا حکم خو د ستر د فرضو متعلق دے چه د دے نه بغیر مونځ نه اداکیږی- او چونکه په مانځه کښے صرف ستر پټول مطلوب نه دی، بلکه د ښائست د لباس اختیارول ارشاد دے. په دے وجه سړی لره په سرتور سو مونځ کول، یا ځنګلے او لیچے بربنډ سا تل او مونځ کول مکروه دی خواه که د قمیص لستونړی نه وی او یائے لستونړی بره کړی وی په هرحال مونځ مکروه دے، دارنګ په داسے جامو کښے مونځ کول مکروه دی د کومو په اغوستلو سره چه بنده د خپلو دوستانو او عوامو په وړاندی تلل شرم او عار ګنړی- لکه صرف بنین بغیر قمیص نه اګرچه لستونړی ئے پوره وی، یا په سر باندی د ټوپئ په ځائے کپړه یا رومال تړل، چه پوهه سړے د خپلو دوستانو یا نورو خلقو په وړاندی په دے هیئت سره تلل نه خوښوی. نو د الله رب العٰلمین دربار ته تلل په کښے څنګه ښۀ کیدے شی. د سر، اوګو، ځنګلو په ښکاره ساتلو سره د مونځ مکروه والے د قرآنی آیت د لفظ زینت نه هم حاصلیږی- او د نبی کریم صلے الله علیه وسلم د وضاحتونو نه هم -

لکه څنګه چه د آیت اوله جمله د عربو د جاهلیت د بربنډوالی رسم له د ورانولو د پاره نازله شوه، مګر د الفاظو د عاموالی نه ئے نورے ډیرے مسئلے او حکمونه معلوم شو. دغه شان دویمه جمله: كُلُوْا وَاشْرَبُوْا وَلَا تُسْرِفُوْا: هم اګرچه د عربو د جاهلیت د دے رسم د ورانولو د پاره نازل شو چه د حج په ورځو کښے به ئے ښه خوراک سکاک ګناه ګڼړلو. لیکن د الفاظو د عام والی نه دلته هم ډیر احکام او مسئلے ثابتے شوے.

**خوړل سکل په قدر د ضرورت فرض دی**

اول دا چه خوړل سکل په شرعی حیثیت سره هم په انسان فرض او لازم دی، سره د قدرت نه چه څوک خوړل سکل پاتے کړی، تر دے چه مړ شی، یا دومره کمزورے شی چه واجبات هم نه شی ادا کولے نو دغه سړے د الله په نزد مجرم او ګناه ګار دے.

**د دُنیا په څیزونو کښے اصل مباح والے او جواز دے ترڅو چه په څۀ د لیل سره ئے حراموالے او منع ثابته نه وی هیڅ شے حرام نه وی**

یوه مسئله د دے آیت نه د احکام القرآن، جصاص مطابق دا راووتۀ، چه په دنیا کښے څومره څیزونه د خوړلو سکلو دی اصل په د وی کښے دا دے چه دغه ټول جائز او حلال دی ترڅو پورے چه د یو خاص شی حراموالے او منع په څۀ شرعی دلیل سره ثابته نه شی، هر شے به جائز او حلال ګڼړلے شی، دے طرف ته اشاره په دے خبره سره اوشوه چه د: كُلُوْا وَاشْرَبُوْا: مفعول ئے ذکر نه کړو چه څۀ شے خورئ سکئ، او د عربئ د عالمانو دا تصریح ده چه په داسے موقع مفعول نه ذکر کول د دۀ د عاموالی طرف ته اشاره وی چه هر شے خوړے سکلے شئ بغیر د هغو څیزونو نه کوم چه په صراحت سره حرام کړی شوی دی (احکام القرآن جصاص)

**په خوړلو سکلو کښے اسراف جائز نه دے**

د آیت د آخری جملے: وَلَا تُسْرِفُوْا: نه ثابته شوه چه د خوړلو سکلو خو اجازت دے، بلکه حکم دے، مګر د دے سره د اسراف کولو منع ده، د اسراف معنیٰ ده د حد نه تجاوز کول بیا د حد نه د تجاوز کولو څو صورتونه دی، یو دا چه د حلالو نه تجاوز او کړی حرامو ته اورسی، او حرام څیزونه بیا خوری سکی د دے حراموالے خو ښکاره دے.

دویم دا چه د الله تعالیٰ حلال کړی څیز ونه بې د شرعي وجه نه حرام اوګڼړي او پاتې کړی لکه څنګه چه د حرام استعمال جرم او ګناه دے دغه شان حلال حرام ګڼړل هم د الله تعالیٰ د قانون مخالفت او سخت ګناه دے (ابن کثیر، مظهری، روح المعانی)

دغه شان دا هم اسراف دے چه د لوږې او ضرورت نه زیات خوراک سکاک کوی، په دے وجه فقهاؤ د مړیدو نه زیاتی خوراک لره ناجائز لیکلے دے (احکام القرآن وغیره) دغه شان دا هم اسراف دے چه سړه د قدرت او اختیار نه د ضرورت نه دومره کمه او خوری چه کمزورے شی او د واجباتو اداکو لو طاقت ئے نه وی۔ د دے دواړه قسمه اسراف نه د منع کولو د پاره د قرآن کریم ارشاد دے:۔

| | |
|---|---|
| اِنَّ الْمُبَذِّرِيْنَ كَانُوْٓا اِخْوَانَ الشَّيٰطِيْنِ۔ | یعنی فضول خرچی کونکی د شیطانانو رونړه دی" |

او بل ځائے ارشاد دے:۔

| | |
|---|---|
| وَالَّذِيْنَ اِذَآ اَنْفَقُوْا لَمْ يُسْرِفُوْا وَلَمْ يَقْتُرُوْا وَكَانَ بَيْنَ ذٰلِكَ قَوَامًا ۝ | "یعنی د الله تعالیٰ هغه خلق خوښوی کوم چه خرچ کوی نو درمیانه روی کوی نه د ضرورت نه زیات خرچ کوی او نه کم خرچ کوی" |

**په خوراک سکاک کښے اعتدال د دین دنیا د پاره نفع مند دے**

حضرت فاروق اعظم فرمائی چه د ډیر خوراک سکاک نه ځان ساتئ څکه چه دا د جسم لره خراب وی بیماری پیدا کوی، په عمل کښے سستی پیدا کوی، بلکه په خوراک سکاک کښے میانه روی اختیار روئی چه د جسم د صحت د پاره هم مفید دے او د اسراف نه لرے ده، او فرمائی چه الله تعالیٰ خوړب جسم والا عالم لره نه خوښوی (مطلب دا دے چه څوک په زیات خوراک سره په اختیاری طور باندې خوړب شوے وی) او فرمائی چه بنده تر هغه وخته پورے نه هلاکیږی تر څو چه دے خپل نفسانی خواهشات په دین باندې غوره او وړمبی او نه ګڼړی (روح عن ابی نعیم)

سلف صالحینو (یعنی تیرو نیکانو) دے خبرے لره په اسراف کښے داخل مقرر کړے ده چه بنده هر وخت د خوراک سکاک په شغل کښے مشغول وی،

یادے لره د نورو اهو کار ونو نه وړمبے ګنړی، چه په دے سره دا بے ګنړلے شی چه د دهٔ د ژوند مقصد هم دا خوراک سکاک دے۔ د دغو حضراتو دا مشهوره وینا ده چه: "خوردن برائے زیستن است نه که زیستن برائے خوردن" یعنی خوړل د پاره د ژوندون حاصلولو دی، نه چه ژوند و د پاره د خوراک دے"

په یو حدیث کښے نبی کریم صلے الله علیه وسلم دے لره هم په اسراف کښے داخله کړے ده چه کله یو شی لره زړهٔ اوغواړی او هغه بیا خامخا پوره کوی اِنَّ مِنَ الْاِسْرَافِ اَنْ تَاْكُلَ كُلَّ مَا اشْتَهَيْتَ: (ابن ماجه عن انسؓ)

او بیهقی نقل کړے دے چه حضرت عائشے صدیقےؓ لره یو وار نبی کریم صلے الله علیه وسلم اولیده چه په یوه ورځ کښے ئے دوه پیرے خوراک اوفرمایه نو ارشاد ئے ورته اوفرمایه چه اے عائشےؓ آیا ستا دا خوښه ده چه ستا شغل صرف خوراک جوړ شی۔

او د میانه روئی دا حکم کوم چه د خوراک سکاک متعلق په دے ایت کښے ذکر دے صرف د خوړلو سکلو سره خاص نه دے بلکه د اغوستلو او د ژوند تیرولو په هر کار کښے درمیانه روی محبوبه او غوره ده۔ حضرت عبدالله ابن عباسؓ فرمائی چه څهٔ غواړئ خورئ او سکئ، او چه څهٔ غواړئ اغوندئ، صرف د دوه خبرو نه ځان ساتئ یو دا چه په دے کښے اسراف یعنی د ضرورت د اندازے نه زیاتے نه وی، دوېم په کښے فخر او غرور نه وی۔

**د یو ایت نه اتهٔ شرعی مسئلے**

لنډه دا ده چه د: كُلُوْا وَاشْرَبُوْا وَلَا تُسْرِفُوْا: د جملو نه اتهٔ شرعی مسئلے راووتلے۔ اوّل دا چه خوړل سکل په قدر د ضرورت فرض دی۔ دوېم دا چه ترڅو پورے د یو شی حرامولے په څهٔ شرعی دلیل سره ثابت نه شی هر شے حلال دے۔ دریم دا چه د کوم څیزونو الله تعالیٰ او د هغهٔ رسول صلے الله علیه وسلم منع کړے ده د هغے استعمال اسراف او ناجائز دے۔ څلورمه دا چه کوم څیزونه الله تعالیٰ حلال کړی دی هغوی لره حرام ګنړل هم اسراف او سخت ګناه دے۔ پنځم دا چه د مړیدلو نه پس زیات خوړل هم ناجائز دی۔

شپږم دا چه دوه مره کم خوړل چه کمزوري شي پرې چه د واجباتو د ادا کولو قدرت ئې پاتې نه شي- اووم دا چه هر څه د خوراک سکاک په فکر کښې اوسېدل هم اسراف دے، اتم دا چه کله ئې زړه یو شي لره اوغواړي نو خامخا ئې حاصلوي،

دا خو د دے ایت دیني فائدے دي- او په طبي طور سره غور اوشي، نو د صحت او تندرستئ د پاره د دے نه غوره هیڅ نسخه نیشته، په خوراک سکاک کښې میانه روي د ټولو بیمارو علاج دے-

په تفسیر روح المعاني او مظهري وغیره کښې دي چه د امیرالمؤمنین هارون الرشید سره یو نصراني طبیب د علاج د پاره اوسیدو، هغه علي بن حُسین بن واقد ته اووے چه ستاسو په کتاب یعني قرآن کښې د علمِ طب هیڅ حصه نیشته حال دا دے چه په دنیا کښې دوه علمونه علمونه دي، یو علم ادیان، بل علم ابدان چه د دے نوم طب دے، علي بن حُسین اوفرمائیل چه الله تعالیٰ د طب او حکمت ټول فن لره په نیم ایت د قرآن کښې جمع کړے دے هغه دا چه ارشاد فرمائي: كُلُوا وَاشْرَبُوا وَلَا تُسْرِفُوا:
(او په تفسیر ابن کثیر کښې دا قول د بعض مشرانو په حواله سره هم نقل دے) بیا هغهٔ اووے چه بنهٔ ستاسو د رسولؐ په کلام کښې هم د طب متعلق څهٔ شته؟ هغوي اوفرمائیل چه نبي کریم صلی الله علیه وسلم په یو څو کلمو کښې د طب ټول فن جمع کړے دے- هغوي فرمائي چه "معده د بیمارو کور دے او د مضرو څیزونو نه پرهیز د هرے دوائي اصل دے" او هر یو بدن لره هغه شے ورکوه د کوم چه دے عادي دے (کشاف، روح) نصراني طبیب چه دا واورېدل نو وئې وئیل چه ستاسو کتاب او ستاسو رسولؐ د جالینوس د پاره هیڅ طب نه دے پریښودے-

بیهقي په شعب الایمان کښې په روایت د ابو هریرهؓ نقل کړے دے چه نبي کریم صلی الله علیه وسلم فرمائیلي دي چه معده د بدن حوض دے د ټول بدن رګونه د دے حوض نه سیراب کیږي چه معده برابر وي نو ټول رګونه د دے ځائې نه صحت مند خوراک بدن ته رسوي او چه

دغه خرابه وی نو تول رکونه تر بیماری اخلی او په بدن کښې ئې خوره وی.
محدثینو د حدیث د دے روایتو نو په الفاظو کښې څۀ کلام کړے دے۔
لیکن د کم خوراک او محتاط اوسید و تاکید ونه چه په بے شماره احادیثو کښې
موجود دی په دے د تولو اتفاق دے (روح)

---

قُلْ مَنْ حَرَّمَ زِيْنَةَ اللّٰهِ الَّتِيْٓ اَخْرَجَ لِعِبَادِهٖ وَ

تۀ او وایه چا حرام کړے دے د الله ښائست لره کوم چه هغۀ پیدا کړے دے د خپلو بندګانو د پاره او

الطَّيِّبٰتِ مِنَ الرِّزْقِ ؕ قُلْ هِيَ لِلَّذِيْنَ اٰمَنُوْا فِي

پاک څیزونه د خوراک۔ تۀ او وایه دا نعمتونه په اصل کښې د ایماندارو د پاره دی په

الْحَيٰوةِ الدُّنْيَا خَالِصَةً يَّوْمَ الْقِيٰمَةِ ؕ كَذٰلِكَ

ژوند د دنیا کښې خالص د دوی د پاره دی په ورځ د قیامت۔ دارنګ په

نُفَصِّلُ الْاٰيٰتِ لِقَوْمٍ يَّعْلَمُوْنَ ﴿۳۲﴾ قُلْ اِنَّمَا حَرَّمَ

تفصیل بیانو و مونږ ایاتونه د هغو د پاره چه پو هیږی۔ تۀ او وایه زما رب حرام کړی

رَبِّيَ الْفَوَاحِشَ مَا ظَهَرَ مِنْهَا وَمَا بَطَنَ وَالْاِثْمَ

دی صرف د بے حیایئ خبرے کومے چه پکښې ښکاره دی او کومے چه پکښې پټے دی او ګناه لره

وَالْبَغْيَ بِغَيْرِ الْحَقِّ وَاَنْ تُشْرِكُوْا بِاللّٰهِ مَا لَمْ

او ناحقه زیاتے کولو لره او دے خبرے لره چه شریک کړئ الله سره داسے شے د کوم

يُنَزِّلْ بِهٖ سُلْطٰنًا وَّاَنْ تَقُوْلُوْا عَلَى اللّٰهِ مَا لَا

چه هغۀ دلیل نۀ دے نازل کړے او دا چه وایئ په الله پاک باندې هغه خبرے کومے چه

تَعْلَمُوْنَ ﴿۳۳﴾ وَلِكُلِّ اُمَّةٍ اَجَلٌ ۚ فَاِذَا جَآءَ اَجَلُهُمْ

تاسو ته معلوم نه دی ۔ او د هرې فرقې د پاره یوه وعده ده بیا چه کله راشي د دوی وعده

لَا يَسْتَاْخِرُوْنَ سَاعَةً وَّلَا يَسْتَقْدِمُوْنَ ﴿۳۴﴾

نه به روستو کيدے شي يوه گړۍ او نه به وړاندے کيدے شي.

# لنډ تفسير

(کوم خلق چه د الله تعالیٰ حلال شوی څیزونه د اغوستلو، خوړلو او سکلو بے دلیله بلکه د دلیل نه خلاف حرام ګڼړی دوی ته) ته اووایه چه (دا اوښایئ) د الله تعالیٰ پیدا کړو ورکړو ولره کومے چه څخه د خپلو بندګانو د (استعمال د) پاره جوړے کړے دی او د خوراک سکاک حلالو څیزونو لره (کومو لره چه الله پاک حلال کړی دی) کوم سړی حرام کړی دی (یعنی حلال او حرام مقرر کول خو د خالق او مالک د کائناتو کار دے تاسو د خپل طرف نه څنګه یوشی ته حلال یا حرام وایئ؟ په ذکر شوو ایاتو نو کښې د جامے او د خوړلو سکلو څیزونو لره د الله تعالیٰ انعام مقرر کړے دے، په دے سره کفارو ته دا شبهٔ کیدے شوه چه دا انعام خو مونږ ته بنهٔ زیاتے ملاویګی که الله تعالیٰ زمونږ نه خفه وے او زمونږ عقیدے او عملونه د هغهٔ نه خلاف وے نو دا انعام به مونږ ته ولے ملاویدو، د دے شبهے د جواب د پاره فرمائی چه اے محمد صلے الله علیه وسلم) ته دوی ته دا اووایه چه (د الله تعالیٰ د انعامونو د استعمال اجازت دلیل د مقبول والی نه دے، هاں د کوم استعمال نه پس چه څهٔ وبال نه وی هغه دلیل د مقبول والی دے او داسے استعمال خالص د ایمانداړو حصّه ده، ځکه چه کافران خو مره زیات د دُنیا نعمتونه استعمالوی دومره د دوی وبال او عذاب د اخرت زیاتیګی په دے وجه فرمائی چه) دا څیزونه (جامے او د خوراک سکاک څیزونه) په دے طور باندِ چه د قیامت په ورځ (هم د خرابوالی او عذاب نه) خالص به وی د دنیا په ژوند

کښې خاص د ایمان دارو د پاره دي (په خلاف د کافرانو نه چه اګر که په دنیا کښې دوی د الله تعالی نعمتونه استعمال کړه عیش عشرت ئې تیر کړو، مګر د دې نعمتونو شکر ئې په ایمان او اطاعت سره ادا نه کړو، په دې وجه به هلته دا نعمتونه وبال او عذاب جوړ شي) موږ دغه شان تفصیل وایو آیاتونو لره د پوهو خلقو د پاره بیانوو، ته (ردوی ته داسې) او وایه چه (تاسو کوم حلالو څیزونو لره بې وجې حرام ګنړلي دي دغه خو الله تعالی نه دي حرام کړي) البته زما رب صرف (هغه څیزونو لره یکو مو کښې چه تاسو اکثر اخته یئ) حرام کړي دي (مثلًا) ټولو فحش خبرو لره په دوی کښې چه کومې ښکاره دي هغه هم (لکه په لغړه طواف کول) او په دی کښې چه کوم پټ دي هغه هم (لکه بدکاري) او د هر ګناه خبرې لره (ئې حرام کړې ده) او ناحقه په چا ظلم کول (ئې حرام کړي دي) او دې خبرې لره (ئې حرام کړې ده) چه تاسو د الله تعالی سره چا داسې شي لره (په عبادت کښې) شریک کړئ د کوم چه الله تعالی څه سند او دلیل) نه دې نازل کړې (نه کلیتًا نه جزءًیًا) او دې خبرې لره (ئې حرام کړې ده) چه تاسو خلق د الله په ذمه داسې خبره لګوئ د کومې چه ستاسو سره څه سند نه وي (لکه څنګه چه په آیت: قُلْ اَمَرَ رَبِّيْ بِالْقِسْطِ: کښې ټول هغه کارونه چه عمل کول پرې جائز وي داخل شو، دغه شان په: اِنَّمَا حَرَّمَ: کښې ټول هغه کارونه چه منع ترې شوې ده داخل شو) او (که د دې حرامو کارونو کونکو ته فورًا د سزا نه ملاویدو په وجه سره د دې په حرامواالی کښې څه شبهه وي نو جواب ئې دا دې چه د الله په علم کښې) د هرې ډلې (د هر فرد د سزا) د پاره (په مقتضا د حکمت) یو میعاد مقرر دې پس څه وخت چه د دوی (دغه) میعاد مقرر (رانزدې) راشي دغه وخت به یو ساعت نه (ردې نه) روستو واپس کړې شي او نه به وړاندې مخکښې کیدې شي (بلکه فورًا به سزا جاري شي د دغې میعاد نه وړاندې د سزا نه ورکیدل د دې خبرې دلیل نه دې چه په دې حرامو به سزا نه وي)

## معلومات او مسئلې

په اول آیت کښې هغو خلقو ته خبردارې ورکړې شوې دې کوم چه

په عبادت کښې غلو او د ګمان نه جوړې کړې تنګۍ پيدا کوي د الله تعالیٰ د حلالو څيزونو نه پرهيز کول او پخپل ګمان ئې حرامول ته عبادت او طاعت وائي، لکه د مکې مشرکانو چه به د حج په ورځو کښې په طواف کښې جامې اغوستل جائز نه ګڼړل او د الله تعالیٰ د حلالو او ښو خوراکونو نه به ئې پرهيز کول عبادت ګڼړلو،

دے خلقو ته د زورنے او ملامته کولو په انداز کښې خبردارے ورکړے شوے دے، چه د الله تعالیٰ ښائيست يعنې ښهٔ لباس کوم چه الله تعالیٰ د خپلو بندګانو د پاره پيدا کړے دے، او پاکيزه او ښهٔ خوراکونه کوم چه الله تعالیٰ ورکړي دي دے لره چا حرام کړهٔ۔

**د ښکلي لباس او خوندور خوراک نه پرهيز د اسلام تعليم نه دے**

مطلب دا دے چه څهٔ شي لره حلال يا حرام ګرځول صرف د هغهٔ پاک ذات حق دے چا چه دے څيزونو لره پيدا کړي دي، بل چا لره په دے کښې دخل کول جائز نه دي، په دے وجه هغه خلق د زورنے او عذاب قابل دي کوم چه د الله حلال کړے عمده پوشاک يا پاکيزه او خوندور خوراک لره حرام ګڼړي سره د طاقته په شيرے ګريوان او ګنړ وچا وسيدل نه څهٔ د اسلام تعليم دے، او نه په اسلام کښې څه غوره شے دے، لکه چه ډير جاهلان ئې داسے ګڼړي۔

په تيرو مشرانو او د اسلام په اماما نو کښې ډير مشران کوم وو چه الله تعالیٰ مالي فراخي ورکړے وه اکثر به ئې ښکلے او بيش قيمته لباس اغوستلو سردار د دوا او وجهانو نبی کريم صلے الله عليه وسلم هم کله چه فراخي راغله نو د ښو ښو جامے ئې زيب تن کړي دي، په يو روايت کښې دي چه يو وارے دوی باهر تشريف راؤړو نو په بدن مبارک ئې داسے څادر وو چه قيمت ئې زر درهمه وو۔ د امام اعظم ابو حنيفهؒ نه نقل دے چه د څلور سوه ګنۍ قيمت څادر ئې استعمال کړے دے۔ دغه شان حضرت امام مالکؒ به هميشه ښکلے او عمده لباس استعمالولو، د دهٔ د پاره يو صاحب د ټول کال د پاره د درے سوه شپيته جوړو سالانه انتظام پخپله ذمه اغستے وه، او کومه جوړه چه به د

امام صاحب په بدن یوه پیره استعمال شوه دوباره به نهٔ استعمالیده، ځکه
چه صرف یوه ورځ به ئے استعمال کړه بیا به ئے چاغریب طالب علم له ورکوله -
وجه داده چه د نبی کریم صلے الله علیه ارشاد دے چه کله الله تعالیٰ چا بنده
له خپل نعمت او فراخی ورکړی نو الله تعالیٰ دے لره خوښوی چه د دے نعمت
اثر د ده په جامو وغیره کښے اولیدے شی - په دے وجه چه د نعمت اظهار هم
یو قسم له شکر دے، او د دے په مقابله کښے چه فراخی وی نو شلیدلے او خیرنے
کپړے استعمالول ناشکری ده -
هاں ضروری خبره داده، چه د دوه وو خیز ونو نه ځان ساتی، یو
د ریا او نمائیش نه او بل د فخر او غرور نه، یعنی محض خلقو ته د خودلوا و د
خپلے لوئی ښکاره کولو د پاره دے د فخر جامے نه استعمالوی او ښکاره خبره
ده چه تیر مشران نیکان د دے دواړو خیزو نو نه بری وو -
او د نبی کریم صلے الله علیه وسلم او فاروق اعظمؓ او بعضو نورا صحابو نه
چه په عامو حالا تو کښے د معمولی قسم جامو یا پیوندی کپړو استعمالول نقل
دی د دے دوه وجهے وے، یوه خودا چه اکثر کوم مال چه به راتلو هغه به
ئے په فقیرانو مسکینانو او دینی کارونو کښے خرچ کولو، د ځان د پاره به ئے تر
څهٔ نهٔ پاتے کول چه ښکلے کپړے پرِ جوړے شی - دویم دا چه دوی د خلقو
پیشوایان وو په دے ساده او ارزانو جامو سا تلو سره به ئے نورو امیرانو
ته د دے خبرے تلقین کول وو - چه په عامو غریبانو او فقیرانو د دوی د مالی
حیثیت رُعب پرِے نه اوځی -
دغه شان صوفیائے کرام چه مبتدیانو لره د ښائسته جامو او خوندناکو
خوراکو نو نه منع کوی، د دوی منشاء هم دا نه وی چه دا خیزونه د همیشه
د پاره پاتے کول څهٔ د ثواب کار دے. بلکه د نفس په خواهشاتو باندِ د قابو
موندلو د پاره د سلوک په اوّل کښے دا سے مجاهدے په طور د علاج کولے شی
او کله چه هغه دے درجے ته اورسی چه په نفسانی خواهشاتو قابو بیا مومی
چه نفس ئے بیا حرامو او ناجائزو طرف ته نه شی راښکولے - نو دغه وخت
تول صوفیائے کرام د عامو تیرو مشرانو شکانو پشان د ښهٔ لباس او د

خوندَ ورو خوراکونو استعمال کوی، او دغه وخت دا پاک رزقونه دَدوی دَ پاره دَ الله تعالیٰ دَ معرفت او دَ نزدیکت په درجو کښې دَ هندیز په ځائے دَ زیا توالی او نزدیکت ذریعه جوړیګی۔

**په خوراک او پوشاک کښے دَ نبی کریم صلے الله علیه وسلم سنّت**

په خوراک پوشاک کښے دَ نبی کریم صلے الله علیه وسلم او دَ صحابو او تابعینو سنّت دا دی چه په دے څیزونو کښے دِ تکلف نه کوی۔ څنګه پوشاک او خوراک چه په اسا نئ سره حاصلیدے شی هغه دِ دَ شکر سره استعمالوی، پیره کپړه او او چ خوراک چه ملاؤ شی نو دا تکلّف دِ نه کوی چه په څهٔ نه څهٔ طریقه سره ښهٔ حاصل کړی خواه قرض ورله وَلے او نه کړی۔ یا په دے فکر کښے خپل ځان په څهٔ بل مشکل کښے دَ اخته کولو نوبت را نه شی۔

دغه شان ښهٔ او ښکلے لباس یا خوندَ ور خوراک چه حاصل شی نو دا تکلّف دِ نه کوی چه قصدًا ئے خراب کړی یا ئے دَ استعمال نه پرهیز او کړی څنګه چه دَ نوی او ښهٔ لباس او خوراک لټون تکلّف دے دغه شان ښهٔ او مزیدار لره خرابول یائے پاتے کول او خراب استعمالول هم تکلف او بدګڼړلے شوے دے۔

دَ آیت په وړاندِ جمله کښے دَ دے یو خاص حکمت وا ښے خودَلے شوے ده چه دَ دنیا ټول نعمتونه ښهٔ او عمده لباس پاکیزه او خوندَ وَر خوراکونه په اصل کښے دَ اطاعت ګذارو مؤمنانو دَ پاره پیدا کړی شوی دی، نو نور خلق ئے دَ دوی په برکت سره خوری سکی، ځکه چه دنیا دار العمل دے دار الجزاء نه ده - دلته دَ کره کوټه او ښهٔ بد امتیاز دَ دُنیا په نعمتونو سره نه شی کیدے، بلکه دَ رحمان دَ دُنیا دَ نعمتونو دا دسترخوان عام دلته دَ ټولو دَ پاره یو شان خور دے۔ بلکه په دنیا کښے دَ الله تعالیٰ عادت دا دے چه کله دَ مؤمنانو او فرمانبردارو بندګانو نه په اطاعت کښے څهٔ کمے را شی نو نور خلق په دوی غالب شی دَ دُنیا دَ نعمتونو په خزانو قبضه او کړی او دوی په غربت او لوږکه کښے اخته شی۔

مګر دا قانون صرف په دے دنیا دار العمل کښے دے، په آخرت کښے به ټول نعمتونه

اوراحتونه صرف د الله تعالیٰ د فرمانبردارو او طاعت شعارو بندګانو د پاره مخصوص وی، دا معنیٰ ده د آیت د دے جملے: قُلْ هِيَ لِلَّذِينَ آمَنُوا فِي الْحَيَاةِ الدُّنْيَا خَالِصَةً يَوْمَ الْقِيَامَةِ: "یعنی ته اووایه چه د دنیا ټول نعمتونه د دُنیا په ژوند کښے هم په اصل کښے د مؤمنانو حق دے او د قیامت په ورځ خو خالص کړے شوی سره خاص دے۔

او حضرت عبد الله بن عباسؓ د دے جملے دا مطلب مقرر کړے دے چه د دنیا ټول نعمتونه او راحتونه په دے خاص کیفیت سره چه د آخرت د پاره وبالِ جان نه جوړیګی صرف د فرمانبردارو مؤمنانو حصه ده، په خلاف د کافرانو او فاجرانو نه چه اګرکه په دُنیا کښے نعمتونه دوی ته هم ملاویګی بلکه زیات ورته ملاویګی، مګر د دوی دا نعمتونه په آخرت کښے وبالِ جان او همیشه عذاب جوړیدونکی دی، په دے وجه د نتیجے په اعتبار سره د دوی د پاره دا څه عزت او راحت نه دے۔

او بعض تفسیر لیکونکی حضرات د دے دا معنیٰ مقرر کوی چه په دُنیا کښے د ټولو نعمتونو او راحتونو سره محنت او مشقت او بیا د زوال یره او بیا قسم قسم رنج او غم لګیدلی دی، د خالص نعمت او خالص راحت دلته وجود هم نیشتے۔ البته په قیامت کښے چه چاته دا نعمتونه ملاؤ شی هغه به خالص ملاویګی، نه به ورسره محنت او مشقت وی او نه به ئے د زوال یا نقصان څۀ یره وی او نۀ به څه رنج او مصیبت وی، درے واړه مطلبونه د آیت په دے جمله کښے ځائیګی، او په دے وجه تفسیر لیکونکو اصحابو او تابعینو دے لوره اختیار کړی دی۔

په آخر آیت کښے فرمائی: كَذَٰلِكَ نُفَصِّلُ الْآيَاتِ لِقَوْمٍ يَعْلَمُونَ: "یعنی مونږ د خپل کامل قدرت نښے د پوهه خلقو د پاره دغه شان په تفصیل او وضاحت سره بیانوو" چه په دے سره هر عالم او جاهل پوهه شی، په دے آیت کښے د خلقو د غلو او د دوی د جاهلانه خیالاتو تردید وه چه په ښۀ لباس او ښۀ خوراک پاتے کولو سره الله تعالیٰ راضی کیږی۔

د دے نه پس په دویم آیت کښے د څۀ هغه څیزونو بیان دے کوم لره چه الله تعالیٰ حرام کړی دی، او دا حقیقت دے چه د دے په ترک کولو سره د الله تعالیٰ

رضا حاصلیږي، او اشاره دے خبرے طرف ته ده چه د اخلق په غېرکې جهالت کښې اخته دي، یو طرف ته د الله تعالیٰ حلال کړی ښه او پاکیزه څیزونه په خپل ځان بے وجه حراموي د دغے نعمتونو نه محرومه شو، او بل طرف ته کوم څیزونه چه په حقیقت کښې حرام وُو، او د کوم په استعمال سره چه د الله تعالیٰ غضب او د اخرت عذاب په نتیجه کښې راتلونکے دے د هغو په استعمال کښې اخته شو د اخرت وبال ئے واغستو، او دغه شان د دُنیا او اخرت دواړو د نعمتونو نه محرومه شو، د دنیا او اخرت تاوان ئے اوکړو۔ ارشاد فرمائی:۔

اِنَّمَا حَرَّمَ رَبِّیَ الْفَوَاحِشَ مَا ظَهَرَ مِنْهَا وَمَا بَطَنَ وَالْاِثْمَ وَالْبَغْیَ بِغَیْرِ الْحَقِّ وَاَنْ تُشْرِكُوْا بِاللّٰهِ مَا لَمْ یُنَزِّلْ بِهٖ سُلْطٰنًا وَّاَنْ تَقُوْلُوْا عَلَی اللّٰهِ مَا لَا تَعْلَمُوْنَ: "یعني کوم څیزونو لره چه تاسو خامخا حرام کړی دي هغه خو حرام نه دي، مګر الله تعالیٰ ټول د بے حیائۍ کارونه حرام کړی دي خواه هغه ښکاره وي او که پټ وي، او د هر ګناه کار لره او ناحق په چا ظلم کولو لره او د الله تعالیٰ سره بے دلیله چا لره شریك جوړولو لره او د دے خبرے لره چه تاسو خلق په الله تعالیٰ پورے داسے خبره اولګوئ د کومے چه تاسو سره سند نه وي۔

په دے تفصیل کښې د لفظ د اِثم لاندې هغه ټول ګناهونه راغلل د کومو تعلق چه د انسان د خپل ذات سره دے، او په بَغی کښې هغه ګناهونه د کومو تعلق چه د نورو د معاملو او حقونو سره وي، او شرک او په خدائ دروغ جوړول دا د عقیدے ښکاره لوئے ګناه دے۔

د دے خاص تفصیل ذکر په دے وجه هم اوشو چه په دے کښې تقریباً د هر قسم محرمات او پوره ګناهونه راغلل خواه د عقیدے ګناه وي یا د عمل او بیا د ذاتي عمل ګناه وي او که د خلقو د حقونو، او په دے وجه هم چه د جاهلیت خلق په دے ټولو جرمونو او حرامو کښې اخته وُو، دغه شان د دویم جهالت ئے ښکاره کړو چه د حلالو څیزونو نه ئے پرهیز کولو او د حرامو د استعمال نه به نه اوګرځیدل۔

او په دین کښې د غلو او نوو ایجاد کړی و بدعتونو دا لازمی خاصه ده،

چه کوم سرے په دے څیزونو کښے اخته شی، دے دَ دین دَ اصل او دَ اهمو ضرورتونو نه عادةً غافله کیږی، په دے وجه په دین کښے دَ غلو او دَ بدعت نقصان دوچند وی- یو څپله په غلو او بدعت کښے اخته کیدل دی، او گناه دے، دویم دَ دے په مقابله کښے دَ صحیح دین او دَ سنّت طریقو نه محرومه کیدل دی، نعوذ بالله منه-

په اوّل او دویم دواړو ایاتونو کښے دَ مشرکانو او مجرمانو دَ دوه وړو غلطو کارونو ذکر وه، یو حلالو له حرام گرځول دویم حرامولره حلال، په دریم ایت کښے دَ دوی دَ بد انجام او دَ اخرت دَ سزا او عذاب بیان دے-

ارشاد فرمائی: وَلِكُلِّ أُمَّةٍ أَجَلٌ فَإِذَا جَاءَ أَجَلُهُمْ لَا يَسْتَأْخِرُونَ سَاعَةً وَلَا يَسْتَقْدِمُونَ؛ "یعنی دا مجرمان چه دَ هر قسم سرکشئ باوجود دَ الله تعالیٰ په نعمتونو کښے پاللے کیږی او په دُنیا کښے په ظاهره په دوی څهٔ عذاب راغلے په نظر نه راځی دَ الله تعالیٰ دَ دے عادت نه دے غافل نه شی چه الله تعالیٰ مجرمانو له پخپل رحمت سره ډیل ورکوی چه څه رنګ دوی دَ خپلو حرکتونو نه واپس شی، لیکن دَ الله تعالیٰ په علم کښے دَ دے مُهلت یو میعاد معیّن وی هر کله چه هغه میعاد را اورسی نو یوه گهړئ هم وړاندے روستو کیدے نه شی، او دوی په عذاب کښے اونیولے شی، کله په دُنیا کښے پرِ څهٔ عذاب راشی او کله په دنیا کښے پرِ عذاب رانه شی نو دَ مرګ سره په عذاب کښے داخل شی-

په دے ایت کښے دَ میعاد معیّن نه دَ وړاندے کیدو او نه دَ روستو کیدو چه کوم ذکر دے دا یو داسے محاوره ده لکه زمونږ په عُرف کښے خریدار دُکاندار ته وائی چه په قیمت کښے څه کمے زیاتے کیدے شی؟ نو دا خونبکاره خبره ده چه دَ قیمت زیاتے خو دے نه غواړی صرف دَ کمی تپوس کوی مګر تبعًا ورسره زیاتے ذکر کړے شی، دغه شان دلته اصل مقصد خو دا دے چه دَ مقرر میعاد نه پس تاخیر نه شی کیدے- او دَ تقدیم ذکر ئے دَ تاخیر سره په طور دَ محاورے دَ عوامو کړے دے-

---

يَا بَنِي آدَمَ إِمَّا يَأْتِيَنَّكُمْ رُسُلٌ مِّنْكُمْ يَقُصُّونَ عَلَيْكُمْ

اے اولاده دَ آدم که راشی تاسو ته رسولان ستاسو نه چه بیانوی تاسو ته

اٰيٰتِيْ فَمَنِ اتَّقٰى وَ اَصْلَحَ فَلَا خَوْفٌ عَلَيْهِمْ وَلَا

ايا تونه زما، نو څوک چه اوډار يګي اونيکي اوکړي نو نه به يره وي په دوى او نه به

هُمْ يَحْزَنُوْنَ ﴿۳۵﴾ وَالَّذِيْنَ كَذَّبُوْا بِاٰيٰتِنَا وَ

دوى غمګين وي - او چا چه دروغژن کړل زمونږ ايا تونه او

اسْتَكْبَرُوْا عَنْهَآ اُولٰٓئِكَ اَصْحٰبُ النَّارِ هُمْ

تکبر ئے اوکړو د دوى نه نو دغه دى په دوزخ کښے اوسيدونکى دغه به

فِيْهَا خٰلِدُوْنَ ﴿۳۶﴾ فَمَنْ اَظْلَمُ مِمَّنِ افْتَرٰى

په دے کښے هميشه اوسى - بيا د دهٔ نه زيات ظالم څوک دے چه اوتړى په

عَلَى اللّٰهِ كَذِبًا اَوْ كَذَّبَ بِاٰيٰتِهٖ اُولٰٓئِكَ يَنَالُهُمْ

الله باندے دروغ او يا دروغژن کړى د هغهٔ ايا تونه دغه خلق دى چه ملاؤ به شى

نَصِيْبُهُمْ مِّنَ الْكِتٰبِ حَتّٰٓى اِذَا جَآءَتْهُمْ رُسُلُنَا

دوى ته د دوى حصه چه ليک ده په کتاب کښے - تر دے پورے چه کله اورسى دوى ته زمونږ

يَتَوَفَّوْنَهُمْ قَالُوْٓا اَيْنَ مَا كُنْتُمْ تَدْعُوْنَ مِنْ

ليګلى شوى د دوى روح اغستو له نو او به وائى څهٔ شو هغه کوم لره چه تاسو بلل سوا

دُوْنِ اللّٰهِ قَالُوْا ضَلُّوْا عَنَّا وَشَهِدُوْا عَلٰٓى

د الله نه - او به وائى هغه زمونږ نه ورک شو او اقرار به اوکړى په

اَنْفُسِهِمْ اَنَّهُمْ كَانُوْا كٰفِرِيْنَ ﴿۳۷﴾ قَالَ ادْخُلُوْا

ځينل ځان چه بے شکه دوى کافران ووُ - او به فرمائى داخل شئ

فِيْۤ اُمَمٍ قَدْ خَلَتْ مِنْ قَبْلِكُمْ مِّنَ الْجِنِّ وَالْاِنْسِ فِي

سره د نورو امتونو کوم چه ستاسو نه وړاندې تېر شوي دي د پېريانو او بني آدمو نه په دوزخ

النَّارِ ۭ كُلَّمَا دَخَلَتْ اُمَّةٌ لَّعَنَتْ اُخْتَهَا ۭ حَتّٰٓى اِذَا

کښې دننه ، هر کله چه داخل شي يو امت لعنت به کوي په بل امت - تر دې چه او غونډ کړي

ادَّارَكُوْا فِيْهَا جَمِيْعًا ۙ قَالَتْ اُخْرٰىهُمْ لِاُوْلٰىهُمْ

په دې کښې ټول - نو او به وائي د دوي وروستني اولنو ته

رَبَّنَا هٰٓؤُلَاۗءِ اَضَلُّوْنَا فَاٰتِهِمْ عَذَابًا ضِعْفًا مِّنَ

اے ربه زمونږ مونږ لره دوي ګمراه کړي وو پس ته دوي لره ورکړې دوچند عذاب

النَّارِ ڛ قَالَ لِكُلٍّ ضِعْفٌ وَّلٰكِنْ لَّا تَعْلَمُوْنَ ۝۳۸

د اور - او به فرمائي چه دواړو لره دوچند دے ليکن تاسو نه پوهيږئ -

وَقَالَتْ اُوْلٰىهُمْ لِاُخْرٰىهُمْ فَمَا كَانَ لَكُمْ عَلَيْنَا

او او به وائي د دوي اولني وروستنو ته پس هيڅ نه شوه تاسو لره په مونږ باندې

مِنْ فَضْلٍ فَذُوْقُوا الْعَذَابَ بِمَا كُنْتُمْ تَكْسِبُوْنَ ۝۳۹ ع

لوئي اوس اوڅکئ عذاب په سبب د د چلے کمه -

## لنډ تفسير

زمونږ په عالم ارواح کښې وئيلي وو) اے اولاده د آدم که تاسو ته پيغمبران
راشي کوم چه ستاسو نه وي او ځما حکمونه تاسو ته بيانوي پس ر د دوي
په راتلو باندې) چه کوم سړے ر په تاسو کښې د دغے آيا تو نو د دروغژن کولو نه)

پرهیزاوکړی او (دَعملونو) درستی اوکړی (مراد دادے چه کامله تابعداری اوکړی) پس په دے خلقو باندې (په اٰخرت کښے) به نه څه یره (دُوکے خبره واقع کیدونکې) وی او نه به دوی غمژن وی او کوم خلق چه (په تاسو کښے) زمونږ دے احکامو ته دروغژن اووے او دَ دے (دَ قبلولو) نه تکبر اوکړی دغه خلق به دوزخیان وی او دوی به دے کښے همیشه اوسی (ځکه چه دروغژن کُونکو دَ سخت عذاب مستحق کیدل اجمالاً معلوم شو، نو اوس تفصیل واوُرئ چه) دَ دے سړی نه به زیات ظالم څوک وی کوم چه په الله باندې دروغ تړی (یعنې کومه خبره چه خدائے نه وی وئیلی هغې ته دَ خدائے وئیلے شوے وائی) یا دَ هغه آیاتو نه دروغژن کړی (یعنې کومه خبره چه خدائے وئیلی وی هغې ته دَ خدائے نا وئیلے وائی) دَ دے خلقو په نصیب کښے چه څه (رزق او عمر) دے هغه خو دوی ته (په دنیا کښے) به ملاوېږی (لیکن په اٰخرت کښے مصیبت او مصیبت دے) تر دے پورے چه (په برزخ کښے دَ مرګ په وخت کښے خو به دَ دوی حالت داوی چه) کله دوی ته زمونږ لیږلے شوے فرشتے دَ دوی روح قبض کولو ته راشی نو دوی ته به اووائی چه (اووایئ) هغه چرته لاړو کوم له چه تاسو دَ خدائے نه سوا عبادت کولو (اوس په دے مصیبت کښے مووَلے پکار نه راځی) هغه (کفار) به اووائی چه زمونږ نه خو ټول ورک شو (یعنې واقعی په کار را نغلل) او (دا وخت به) دَ خپل کفر اقرار اوکړی (لیکن دَ دغې وخت اقرار به محض بے کاره وی، او په بعض آیاتو کښے دَ دا سے سوال جواب واقع کیدل په قیامت کښے هم ذکر دی نو په دواړو موقعو باندې دَ دے کیدل ممکن دی، او په قیامت کښے به دَ دوی دا حال وی چه) الله تعالیٰ اوفرمائی چه کوم فریقے (دَ کافرانو) چه ستاسو نه وړاندې تیرے شوی دی که پیریان او که بنی آدم نه هم او دَ دوی سره تاسو هم دوزخ ته ځئ (نو وړاندې وروستو ټول کفار به ور ته داخل کړے شی او دا سے کیفیت به جوړ شی چه) څه وخت هم یو جماعت (دَ کفارو دوزخ ته) داخل شی نو دَ ځان پشان په بل جماعت به هم (کوم چه دَ دوی پشان کافران وی او دَ دوی نه وړاندې دوزخ ته تلی وی) لعنت کوی (یعنې دَ یو بل سره به ئے همدردی نه وی بلکه په وجه

دَ بنکاره کید وَ دَ حقیقت به هرچیرے بل ته په بد نظر سره کوری ، او بد به ورته وائی ) تر دے چه کله په دے ( دوزخ ) کښے ټول جمع شی نو ( دغه ټولی به ) وروستی خلق ( کوم چه وروستو داخل شی او دا به هغه خلق وی کوم چه په کفر کښے دَ نورو تابع وُو ) اولنو ( داخل شوو ) خلقو په نسبت ( یعنی دَ هغو خلقو په نسبت کوم چه په وجه دَ سرداری او پیشوایئ دَ کفر په دوزخ کښے اول داخل شوی وی دا ) او وائی چه اے زمونږ پروردګاره مونږ دے خلقو ګمراه کړی وُو پس دوی لره دَ دوزخ عذاب ( زمونږ نه ) دوچند ورکړے ( الله تعالیٰ به ) ارشاد او فرمائی چه ( دَ دوی په عذاب دوچند کیږ و به تاسو ته څهٔ تسلی او راحت راشی بلکه ستاسو عذاب هم همیشه وخت په زیاتیکی په دے وجه ستاسو عذاب هم دَ دوی دَ دوچند عذاب پشان به وی پس په دے حساب سره ) دَ ټولو ( عذاب ) دوچند دے لیکن ( اوس ) تاسو ته ( پوره ) خبر نیشته ( ځکه چه اوس لا دَ عذاب ابتداء ده دغه زیاتے لا تاسو لیدلے نه دے په دے وجه دا سے خبرے جوړه وئ ، دَ دے نه معلومیګی چه دَ نورو دوچند والے دَ عذاب دَ خپل ځان دَ پاره شفاء دَ غضب او سبب دَ تسلیٔ ګنړئ ) او اولنی ( داخل شوی ) خلق به وروستو ( داخل شوو ) خلقو ته ( دَ خدائے تعالیٰ دَ دے جواب په خبریدو ) او وائی ( چه هرکله دَ ټولو دَ سزا حالت دے نو ) بیا تاسو لره په مونږ باندِ ( دَ سپک والی دَ عذاب په باره کښے ) څهٔ فوقیت نیشته ( ځکه چه تخفیف نه مونږ لرشتے نه تاسو له ) پس تاسو هم دَ خپل ( بد ) عمل په مقابله کښے دَ عذاب ( زیاته ) مزه څکئ -

إِنَّ الَّذِينَ كَذَّبُوا بِآيَاتِنَا وَاسْتَكْبَرُوا عَنْهَا

بے شکه چا چه دروغژن کړه زمونږ ایاتونه او دَ دے نه ئے تکبر او کړو

لَا تُفَتَّحُ لَهُمْ أَبْوَابُ السَّمَاءِ وَلَا يَدْخُلُونَ

بیز ته به نه شی دَ دوی دَ پاره دروازے دَ اسمان او داخل به نه شی

الْجَنَّةَ حَتّٰى يَلِجَ الْجَمَلُ فِىْ سَمِّ الْخِيَاطِ ۭ وَكَذٰلِكَ

جنت ته ترڅو چه دننه شي اوښ په سوري د ستنې کښې - او داسې مونږ

نَجْزِى الْمُجْرِمِيْنَ ﴿۴۰﴾ لَهُمْ مِّنْ جَهَنَّمَ مِهَادٌ

بدله ورکوو ګناهګارانو ته - د دوی د پاره د دوزخ لاندې ستوږنې دي

وَّمِنْ فَوْقِهِمْ غَوَاشٍ ۭ وَكَذٰلِكَ نَجْزِى الظّٰلِمِيْنَ ﴿۴۱﴾

او د پاسه اغوستن دي - او داسې مونږ بدله ورکوو ظالمانو ته۔

وَالَّذِيْنَ اٰمَنُوْا وَعَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ لَا نُكَلِّفُ نَفْسًا

او هغه خلق چه ایمان راوړی او اوکړی نیکۍ مونږ بوج نه کېږدو په چا باندې

اِلَّا وُسْعَهَآ ۡ اُولٰۗئِكَ اَصْحٰبُ الْجَنَّةِ ۚ هُمْ فِيْهَا

مګر د هٔ د طاقت موافق دغه دي په جنت کښې او سیدونکي - دوی به په دې کښې

خٰلِدُوْنَ ﴿۴۲﴾ وَنَزَعْنَا مَا فِىْ صُدُوْرِهِمْ مِّنْ

همیشه وي - او به باسو مونږ هغه څه چه د دوی په زړونو کښې د

غِلٍّ تَجْرِىْ مِنْ تَحْتِهِمُ الْاَنْهٰرُ ۚ وَقَالُوا الْحَمْدُ

خفګان نه وي، بهیږي به د دوی لاندې نهرونه - او وائي به شکر دې د

لِلّٰهِ الَّذِىْ هَدٰىنَا لِهٰذَا ۣ وَمَا كُنَّا لِنَهْتَدِىَ

الله هغهٔ چه مونږ ئې دې ته راورسولو - او مونږ نه وو لار موندونکي

لَوْلَآ اَنْ هَدٰىنَا اللّٰهُ ۚ لَقَدْ جَاۗءَتْ رُسُلُ رَبِّنَا

که هدایت نه وے کړے مونږ ته الله - بے شکه راوړے وه رسولانو د رب زمونږ ده

بِالْحَقِّ ۚ وَنُودُوٓا اَنْ تِلْكُمُ الْجَنَّةُ اُوْرِثْتُمُوْهَا

رشتونے خبره - او آواز به راشي چه دا جنت دے چه وارثان ئې شوے تا سو

بِمَا كُنْتُمْ تَعْمَلُوْنَ ﴿۴۳﴾

په بدله د خپلو عملو نو سره -

# لنډ تفسیر

(دا حالت خو د کفارو ورته د داخلیدو شو، اوس ئې د جنت نه د محرومۍ
کیفیت واورئ چه) کوم خلق زمونږ آیاتو لره دروغژن کړي او د منلو نه
ئې تکبر کوي د دوي (د روح پورته ختلو) د پاره (د مرګ نه پس) د آسمان دروازې
نه شي بیرته کولے (دا خو حالت د مرګ نه پس د برزخ شو) او (د قیامت په ورځ به
دغه خلق چرې جنت ته لاړ نه شي ترڅو چه اوښ د ستنې په سوم (سوري) کښې
دننه لاړ نه شي (او دا خو محال دے نو د دوي جنت ته داخلیدل هم محال دي)
او مونږ داسې مجرمانو خلقو ته هم داسې سزا ورکوو (یعنې زمونږ ورسره څهٔ
دشمني نه وه څهٔ چه ئې اوکړل هغه ئې بیا موندل، او بیا چه کوم دوزخ ته
تلل ذکر شوي دي، دغه اوړ به په دوي د هرڅلور طرف نه چاپیر وي چه د
یو طرف نه به ورته هم څهٔ راحت نه ملاویږي نو داسې حال به ئې وي چه) د دوي
د پاره به د دوزخ لاندې ستونې وي او د پاسه به پرې هم کړے اغوستي وي (یعنې
تولائي بړستن به ئې د واړه د اوړ وي) او مونږ داسې ظالمانو ته هم داسې سزا ورکوو
(د کوم ذکر چه په : فَمَنْ اَظْلَمُ مِمَّنْ : کښې بره راغلے دے) او کوم خلق چه (د الله په
آیاتونو) ایمان راوړي او دوي نیک کارونه کړي او دا نیک کار څهٔ داسې مشکل
کار نه دے ځکه چه زمونږ دا عادت دے چه) مونږ په چا کښې باندې د ده د طاقت نه
زیات څهٔ کار نه اچوو (دا جمله معترضه وه، غرض) داسې خلق جنت (ته تلونکي) والا
دي (او) دوي به په دې کښې همیشه اوسي (او د دوي حالت به د
دوزخیانو په شان نه وي چه هلته به هم یو بل ته لعنت او ملامت کوي، بلکه د دوي

به دا حالت وی چه) څهٔ چه دَ دوی په زړونو کښې (دَ څهٔ معاملې په وجه سره په دُنیا کښې طبعی طور سره) غبار (او خفگان) وَه مونږ به هغه (رحم) لرې کړو (او چه دُنیوی سره په اُلفت او محبت سره اُوسی او) دَ دوی (دَ مکانونو) دَ لاندے نه به نهرونه جاری وی او دغه خلق به (دَ ډیرے خوشحالیٔ او سرور نه) وائی چه دَ الله تعالیٰ (لاک لاک) احسان دے چا چه مونږ لره تو دے مقامه پورے (را او رسولو او مونږ به چرته) (رد لته) نه وَو را رَسیدلی که الله تعالیٰ مونږ نه وے را رَسولی (په دے کښے دا هم راغله چه دلته دَ را رسید و کومه طریقه وَه ایمان او عملونه هغه ئے مونږ ته او خودل او په دے ئے دَ تلو توفیق را کړو) واقعی زمونږ دَ رب پیغمبر دَ رشتونو خبرو سره راغلے وَه (نو دوی چه پکو مو عملونو دَ جنت وعده فرمائیلے وه هغه رشتونے ثابته شوه) او دوی ته به په چغه سره او وئیلے شی چه دا جنت تاسو لره درکړے شوے دے ستاسو دَ (نیکو) عملونو په بدله کښے -

# معلومات او مسئلے

څوا ایاتونه وړاندِ دَ یو عهد او میثاق ذکر دے چه دَ هر انسان نه په دے دنیا کښے دَ دهٔ دَ پیدا کید و نه مخکښے په عالمِ ارواح کښے اغستے شوے وَه - چه کله زمونږ پیغمبران تاسو ته زمونږ هدایتونه او حکمونه راوړی نو هغه په تن بدن او زړهٔ سره به ئے منئ او دَ هغے مطابق به عمل کوئے، او دا هم خودلے شوے وه چه کوم سړے دُنیا ته دَ راتلو نه پس په دغے عهد باندِ قائم پاتے شی او مطابق ئے عمل اوکړی هغه به دَ هر رنج او غم نه نجات بیاموسی او دَ همیشه آرام او راحت مستحق به شی، او کوم چه دَ انبیاء علیهم السلام خبرو ته دروغ او وائی یا ترِ سرکشی او کړی دَ هغهٔ دَ پاره دَ جهنم همیشه عذاب مقرر دے، په دے ذکر شوو ایاتونو کښے دَ دے واقع دَ صورت اظهار دے کوم چه دے دنیا ته دَ راتلو نه پس دَ انسانانو مختلفو ډلو اختیار کړے ؤو چه بعضو دغه عهد او میثاق هیر کړو او خلاف وَرزی ئے او کړه او بعضِ پرِ قائم پاتے شو او دَ دے مطابق ئے نیک عملونه او کړهٔ، دَ دے دواړو فریقو دَ انجام او عذاب او ثواب بیان په دے څلورو ایاتونو کښے دے -

په اول او دویم آیت کښې د عهد ماتوونکو منکرانو او بد مانو ذکر دے، او په آخری دوه وَو آیاتونو کښې د عهد پوره کوونکو مؤمنانو او متقیانو ذکر دے

په اول آیت کښې ارشاد فرمائی چه کومو خلقو انبیاء علیهم السلام و لره دروغژن کړه او ذهنونو د هدایتونو او آیاتونو په مقابله کښې ئے تکبر او کړو د دوی د پاره به د آسمان دروازے پرانه نشتلے شی۔

په تفسیر بحر محیط کښې د حضرت عبد الله ابن عباسؓ نه د دے یو تفسیر دا نقل فرمائیلے دے چه نه به د دے خلقو د عملونو د پاره د آسمان دروازے پرانستلے شی او نهٔ به د دوی د دُعاګانو د پاره، مطلب دا دے چه د دوی دُعا به قبوله نه کړے شی او د دوی عملونه به دغه مقام ته د رسیدو نه بند کړے شی کوم ځائے چه د الله تعالیٰ د نیکو بندګانو عملونه محفوظ ایخودے شی چه نوم ئے د قرآن کریم په سورت مطففین کښې علّیّین خودلے شوے دے، او د قرآن کریم په یو بل آیت کښې هم دے (مضمون) ظرف ته اشاره ده، چه په هغے کښې ارشاد دے: اِلَيْهِ يَصْعَدُ الْكَلِمُ الطَّيِّبُ وَالْعَمَلُ الصَّالِحُ يَرْفَعُهُ "یعنی د انسان پاکے کلمے الله ته ورله لے شی او د دوی نیک عمل هغهٔ ته پورته کولے شی" یعنی د انسان نیک عملونه د دے سبب جوړیګی چه د دهٔ پاکے کلمے د الله تعالیٰ خاص دربار ته رسولے شی۔

او بل یو روایت د حضرت عبد الله بن عباسؓ او نورو صحابه کرامو نه د دے آیت تفسیر دا هم دے چه د منکرانو او کافرانو د روحونو د پاره به د آسمان دروازے نه شی پرانستے دغه روحونه به لاندے راغورزار کړے شی، او د دے مضمون تائید د حضرت براء بن عازبؓ د دے حدیث نه کیږی کوم لره چه ابو داؤد، نسائیؒ، ابن ماجه، او امام احمدؒ مفصّل نقل کړے دے۔ چه بخو به ئے دا دے چه۔

"نبی کریم صلی الله علیه وسلم د یو انصاری صحابیؓ جنازے له تشریف یوړو خولا ترا وسه قبر تیار نه وهٔ نو یو ځائے کیناستل، او صحابه کرام ترڅا پیره خاموش کیناستل، دوی سر مبارک اوچت کړو او ئے فرمائیل چه د مؤمن بنده د پاره کله چه د مرګ وخت راشی نو د آسمان نه سپینے پر قید ونکے مخونو والا

فرښتې راشي چه دَ دوی سره دَجنّت کفن اوخوشبوئي وي، او دوی دَ مړکیدُونکي مخ ته کیني، بیا دَ مرګ فرښته عزرائیل علیه السلام راشي، او دَ دهٔ روح ته خطاب کوي چه اے نفسِ مطمئنّه دَرب دَ مغفرت او خوشنودئ دَ پاره راوُځه دَغه وخت دَ دهٔ روح داسے دَ بدن نه په اسانئ راوُځي لکه دَ مشك خوُله چه پرانستے شي او اُو به ترې اُوځي دَ دهٔ روح دَ مرګ فرښته پخپل لاس کښے واخلي او دَ غو فرښتو ته ئې حواله کړي دا فرښتې دغے روح لره واخلي اَو ځي کوم ځائے چه دوی ته دَ فرښتو ډله ملاویږي هغوی ترې پوښتنه کوي چه دا پاک روح دَچا دے دوی ورته دَ هغه نوم او لقب ښائي کوم چه به دهٔ ته دَعزت او احترام دَ پاره په دُنیا کښے استعماليده- او وائي به چه دا فلانے ځوئې دَ فلاني دے- تر دے چه دا فرښتې دَ دے روح سره اوّل اسمان ته رسي او دروازه پرانزي دروازه ورته پرانستے شي دَ دے ځائے نه نورے فرښتې هم دَ دوی سره کیږي تر دے چه اُووَم اسمان ته رسي- دغه وخت الله تعالیٰ فرمائي چه ځما دَ دے بنده عملنامه په علّیّین کښے اولیکئ او دهٔ لره واپس کړئ' دا روح بیا واپس قبر ته راشي او په قبر کښے دَحساب اغستو فرښتې راشي دهٔ لره کینوي او سوال ترې کوي- چه ستا رب څوک دے؟ او ستا دین څهٔ دے؟ دے ورته وائي چه ځما ربّ الله تعالیٰ دے او دین م اسلام دے، بیا ترې پوښتنه کوي چه دا بزرګ کوم چه تاسو ته در لیګلے شوے دے څوک دے؟ دے وائي دا دَالله تعالیٰ رسول دے، دا وخت دَ اسمان نه یو اواز راشي چه ځما بنده رشتونے دے، دهٔ ته دَجنّت فرش خور کړئ او دَ جنّت جامے ورته واغوستوئے او دَجنّت طرف ته دهٔ ته دروازهٔ پرانزئے، په دے دروازه دهٔ ته دَجنّت خوشبویانے او هواګانے راځي او دَ دهٔ نیك عمل به په یو ښکلي صورت کښے دهٔ ته دَ دهٔ دَ مشغولو لو دَ پاره راشي-

دَ دے په مقابله کښے دَکافر و مُنکر چه کله دَ مرګ وخت راشي نو دَ اسمان نه دَ تور رنګ هیبت ناک صورته فرښتې راشي خراب قسم ټاټ به ورسره وي او دهٔ ته به مخامخ کیني، بیا به دَ مرګ فرښته دَ دهٔ روح داسے اُوباسي لکه چه یو ښناب داره څانګه په لوند وړی وکښے لنغښتے شوے وي او دَهغے

ئې راوُباسی دا رُوح دا سې اوځي، نو دا دې بد بوئي لکه د مردار څاروی د بدن بوئي نه هم زیاته تیزه وي، فرښتې ئې داخلې اوځي، په لاره کښې چه کوم فرښتې ورسره ملاویږي نو تپوس ترې کوي چه دا د چا خبیث روح دې، نو دوی ئې دغه وخت په هغه بد نوم او بد لقب سره یادوی پکوم سره چه به دې په دُنیا کښې بللې کیده چه دا فلانی ځوئې د فلانی دې تر دې چه د ټولو نه اول اسمان ته اُورسی نو د دروازې پېرته کولو د پاره به اووائی نو د ده د پاره به د اسمان دروازه نه شي پېرته کولې، بلکه حکم به اُوشي چه د دې بنده عملنامه په سجّین کښې اُولیکئ کوم ځائې چه د نافرمانو بندګانو عملنامې ایخودې شي، او دا روح به غوزار کړې شي دې به بدن ته دوباره راشي فرښتې به دې کیښوی د ده نه به هم هغه تپوسونه اوکړی کوم چه ئې د مؤمن بنده نه کړی وو- دې به د ټولو جواب داورکړي هَاهْ هَاهْ لَا اَدْرِیْ: یعنی زه هیڅ نه پیژنم: د ده د پاره به د جهنم فرش خورشي د جهنم جامې به ورته واغوستولې شي، او د جهنم طرف ته دروازه به ورته بیرته شي چه ده ته به د جهنم تاؤ او ګرمی وررسي- او قبر به پرتنګ کړې شي- نعوذ بالله منه ربّ الله مونږ له ترینه پناه راکړې)

لنډه دا ده چه د دې حدیث نه معلومه شوه چه د منکرانو او کافرانو روحو نه آسمان ته خیژ ولې شي نو د اسمان دروازه ورته نه شي پېرته کولې نو د هغه ځائې نه را غوزار کړې شي د ذکرشوی ایت: لَا تُفَتَّحُ لَهُمْ اَبْوَابُ السَّمَآءِ: دا مطلب هم کیدې شي چه د مرګ په وخت کښې د دوی روحونو ته د اسمان دروازې نه شي پېرته کولې-

په اخر ایت کښې د دې خلقو متعلق فرمائي: وَلَا یَدْخُلُوْنَ الْجَنَّةَ حَتّٰی یَلِجَ الْجَمَلُ فِیْ سَمِّ الْخِیَاطِ: په دې کښې لفظ د یَلِجَ: د: وُلُوْج: نه وتلې دې چه معنیٰ ئې ده تنګ ځائې کښې ننوتل ا وجَمَل: اوُښ ته وئیلې شي- او سَمّ: د ستنې سوری ته- معنیٰ دا ده چه دا خلق به تر هغه وخته پورې جنّت ته نه شي داخلیدې ترڅو پورې چه د اوُښ پشان عظیم الجثّه جانور د ستنې په سوری کښې د ننه لاړ نه شي- مطلب دا دې چه لکه څنګه د ستنې په سوری کښې د اوُښ د ننه کیدل عادةً محال دي دغه شان د دوی جنّت ته تلل محال دي، په دې سره د دې خلقو د جهنم د همیشه

عذاب بیان کول مقصود دے. د دینه پس د دے خلقو د جهنم د عذاب د زیات سخت والی بیان ئے په دے الفاظو سره کړے دے، ؛ لَهُمْ مِّنْ جَهَنَّمَ مِهَادٌ وَّ مِنْ فَوْقِهِمْ غَوَاشٍ ؛ د : مِهَادٌ : معنیٰ ده فرش- او : غَوَاشٍ ؛ د غاشية جمع ده چه معنیٰ ئے ده پټوونکے څیز، مطلب دا دے چه د دے خلقو لاندِ ستونے او د پاسه اغوستونے به ټول د جهنم نه وی- او ا د لنے ایت پکوم کښے چه د جنت نه د محرومئ ذکر وه د دے په ختم ئے ؛ كَذَٰلِكَ نَجْزِي الْمُجْرِمِينَ ؛ اُو فرمائیل، او د دویم ایت پکوم کښے چه د عذاب د جهنم ذکر دے، د دے په ختم ئے ؛ كَذَٰلِكَ نَجْزِي الظَّالِمِينَ ؛ اُو فرمائیل ځکه چه دا دهغے نه زیات سخت دے -

په دریم ایت کښے د الله تعالیٰ د حکمونو د پیروی او پابندئ کونکو ذکر دے چه دا خلق جنت والا دی او په جنت کښے به همیشه اوسی -

**په شرعی احکامو کښے د اسانئ رِعایت**

لیکن د دوی د پاره چه کوم ځائے دا شرط ذکر شوے دے چه دوی ایمان راوړی او نیک عمل او کړی د دے سره ئے په رحمت او کرم سره دا هم او فرمائیل ؛ لَا نُكَلِّفُ نَفْسًا إِلَّا وُسْعَهَا ؛ چه معنیٰ ئے دا ده- چه الله تعالیٰ په یو بنده باندِ څهٔ داسے دروند کار نهٔ اچوی کوم چه د دهٔ د طاقت نه باهر وی- مقصود دا دے چه نیک عملونه کوموته چه ئے د جنت د داخلیدو د پاره شرط وئیلے دے هغهٔ څهٔ ډیر مشکل کار نهٔ دے چه انسان ئے نهٔ شی کولے، بلکه الله تعالیٰ د شریعت احکامو لره ئے په هر شعبه کښے نرم او اسان کړی دی- د بیمارئ کمزورئ، سفر او نورو انسانی ضرورتونو ئے په هر حکم کښے لحاظ ساتلے دے اسانئ ئے پکښے ورکړی دی -

او په تفسیر بحر محیط کښے دی چه کله انسان ته د نیکو عملونو حکم ورکړے شو نو دا احتمال وُه چه دهٔ ته به دا حکم په دے وجه ګران معلوم شی چه ټول نیک عملونه هر ځائے په هر حال کښے په ځائے راوړل خو د انسان په وَس کښے نهٔ دی، په دے وجه دے شبهے لره ئے په دے الفاظو سره لرے کړه چه موښږ د تعل الناس ژوند د مختلفو دورونو او حالاتو جائزه اغستے ده د هر وخت هر ځائے او هر حال د پاره مناسب احکام ورکوی، پکوموچه عمل کول څهٔ ګران کار نهٔ دے -

---

| دَ جنتیانو دَ زړونو نه به دَ یو بل سره خفګانی اُو ویستلے شی | په څلورم ایت کښے دَ جنتیانو دوه خاص حالتونه بیان شوی دی یو دا چه، |
|---|---|

وَنَزَعْنَا مَا فِي صُدُورِهِم مِّنْ غِلٍّ تَجْرِي مِن تَحْتِهِمُ الْأَنْهَارُ : یعنی دَ جنتیانو په زړونو کښے که دَ یو بل سره څهٔ رنجش او خفګانی وی نو مونږ به هغه ټول دَ دوی دَ زړونو نه او باسو داخلق به دَ یو بل سره بالکل خوشحاله او رونړه رونړه شی جنت ته به ځی او هلته به اُوسی۔

په صحیح بخاری کښے دی چه مؤمنان کله په پل صراط تیرشی دَ جهنم نه نجات حاصل کړی نو دوی به دَ جنت او دوزخ په مینځ کښے په یو پُل دَ پاسه اُودروی، او دَ دوی په مینځ کښے که دَ چا دَ چا سره څهٔ خفګان وی یا دَ چا په چا څهٔ حق وی نو دلته چه اوړسی دَ یو بل نه به بدل واخلی او معاملے به صفا شی، او دغه شان دَ حسد، بغض، کینے وغیره نه به صاف شی جنت ته به داخلیږی،

په تفسیر مظهری کښے دی چه دا پُل به ظاهره دَ پُل صراط اخری حِصّه وی، کُومه چه دَ جنت سره متصل ده، علامه سیوطیؒ وغیره هم دے لره اختیار کړے دے۔

او په دے مقام باندے چه کوم دَ حقوقو مطالبے وی دَ دے اداکول ظاهره ده چه په روپو پیسو سره نه شی کیدے ځکه چه دغه به هلته دَ هیچا سره نه وی بلکه دَ بخاری او مسلم دَ یو حدیث مطابق دا ادائیګی به په عملونو سره وی دَ حقونو په بدله کښے به دَ دهٔ عمل دَ حق خاوند ته ورکولے شی، او که دَ دهٔ عملونه ټول په دے شان سره ختم شی او دَ خلقو حقونه اوس هم باقی وی نو بیا به دَ حق دَ خاوند ګناه په دهٔ اچولے شی۔

په یو حدیث کښے نبی کریم صلے الله علیه وسلم داسے سړی لره دَ ټولونه زیات مُفلس مقرر کړے دے چا چه په دُنیا کښے نیک عملونه اوکړو، لیکن دَ خلقو دَ حقونو پرواه ئے اُونه کړهٔ، دَ دے په نتیجه کښے دَ ټولو عملونو نه خالی مفلس پاتے شو۔

دَ حدیث په دے روایت کښے دَ حقونو اداکولو او دَ بدل اغستو عام ضابطه

بیان شوے دہ۔ لیکن دا ضروری نه ده چه ټولو ته دا صورت مخے ته راشي۔ بلکه د ابن کثیر او تفسیر مظهري د روایت مطابق حلته به دا صورت هم ممکن وي چه بغیر د انتقام اخستو په منځ کښے کینے او خفه والی لرے شي۔

لکه چه په بعض روایتونو کښے دي چه دا خلق کله په پُل صراط تیریګي نو د اوبو یوے چینے ته به اورسي او د دے اوبه به اوسکي، د دے اوبو، خاصه به دا وي چه د ټولو د زړونو نه به کینه او خفه والی او وینځلے شي. امام قرطبي د ایت کریمه: وَ سَقَاهُمْ رَبُّهُمْ شَرَابًا طَهُوْرًا: په تفسیر کښے دا نقل کړي دي چه د جنت په دے اوبو سره به د ټولو د زړونو نه خفګانونه او خفه والی او وینځلے شي۔

حضرت علي مرتضی رض یو وار دا ایت اولوستو او ئے فرمائیل چه مخا امید دے چه زه او طلحه او زبیر به د دغو خلقو نه یو د کومو د سینو نه چه جنت ته د داخلید و نه اول به خفه والی صاف کړے شي (ابن کثیر) دا هغه حضرات دي د کومو په مینځ کښے چه په دنیا کښے اختلافات پیدا شو او جنګ ته نوبت رسیدلے وه۔

دویم حال ئے د جنتیانو په دے ایت کښے دا بیان کړے دے چه جنت ته او رسي نو دا خلق به په دے د الله تعالیٰ شکر ادا کوي چه هغه دوي ته د جنت طرف ته هدایت اوکړو او د دے لارے راته آسانه کړه۔ او وائي به چه که د الله تعالیٰ فضل نه وے نو زمونږ مجال نه وو چه مونږ دے ته رسیدلي وے۔

د دے نه معلومه شوه چه څوک انسان محض په خپل کوشش سره جنت ته نه شي تلے تر څو پورے چه د الله تعالیٰ فضل په دے نه وي ځکه چه کوشش په خپله د دے په قبضه کښے نه دے هغه هم محض د الله تعالیٰ په رحمت او فضل سره حاصلیږي۔

| د هدایت مختلفے درجے دي چه اخري درجه ئے جنت ته د داخلید وده |
| --- |

امام راغب اصفهانی د هدایت د لفظ په تشریح کښے ډیره مفیده او اهمه خبره فرمائیلے ده چه د هدایت لفظ ډیر عام دے، د دے درجے مختلفے دي، او حقیقت دا دے چه هدایت الله طرف ته د تلو د لارے ملاویدو نوم دے. په دے وجه الله ته د نزدے کیدو درجے چه څومره مختلفے او غیر متناهي دي د غه شان د هدایت درجے هم بے حده متفاوتے دي، ادنیٰ درجه د هدایت د کفر او شرک نه

نجات او ایمان دے۔ پکوم سره چه د انسان رُخ د غلطۍ لارے نه را اوګرځی د الله طرف ته شی، بیا د بنده او الله تعالیٰ په مینځ کښے چه څومره فاصله ده د دغې د قطع کولو د هرے درجے نوم هدایت دے، په دے وجه د هدایت د طلب نه په هیڅ وخت کښے یو انسان تر دے چه انبیاء او رسولان هم مستغنی نه دی په دے وجه نبی کریم صلے الله علیه وسلم تر اخر عمره پورے د: اِهْدِنَا الصِّرَاطَ الْمُسْتَقِيْمَ: تعلیم چه څنګه امّت ته ورکړو په خپله هم ئے د دے دُعا اهتمام جاری اُوساته، ځکه چه الله تعالیٰ ته د نزدیکت د درجو څۀ انتها نیشته، تر دے چه جنّت ته داخلیدل ئے هم په دے لفظ د هدایت سره تعبیر کړل، چه دا د هدایت اخری مقام دے۔

(الله پاک دِے زمونږ په هر حال او هر وخت کښے او هر مقام کښے خپل هدایت نصیب کړی امین: مترجم)

وَنَادٰٓى اَصْحٰبُ الْجَنَّةِ اَصْحٰبَ النَّارِ اَنْ قَدْ

او آواز به اُوکړی جنتیان دوزخیانو ته چه مونږ خو بیا مونده

وَجَدْنَا مَا وَعَدَنَا رَبُّنَا حَقًّا فَهَلْ وَجَدْتُّمْ مَّا

کومه چه وعده کړے وه زمونږ سره رب زمونږ رښتونے پس تاسو هم بیا مونده د

وَعَدَ رَبُّكُمْ حَقًّا ؕ قَالُوْا نَعَمْ ۚ فَاَذَّنَ مُؤَذِّنٌۢ

خپل رب وعده لره رښتونے ـ دوی به اووائی چه هاں ـ بیا به آواز اوکړی یو آواز کونکے

بَيْنَهُمْ اَنْ لَّعْنَةُ اللّٰهِ عَلَى الظّٰلِمِيْنَ ﴿۴۴﴾ الَّذِيْنَ

د دوی په مینځ کښے چه لعنت دے د الله تعالیٰ په هغو ظالمانو باندې چه

يَصُدُّوْنَ عَنْ سَبِيْلِ اللّٰهِ وَيَبْغُوْنَهَا عِوَجًا ۚ وَ

منع کول به ئے د الله د لارے نه او لټولو به ئے په دے کښے کوږ والے ـ او

هُمْ بِالْاٰخِرَةِ كٰفِرُوْنَ ﴿۴۵﴾ وَبَيْنَهُمَا حِجَابٌ ۚ وَعَلَى

دوی د اخرت نه منکر وو - او د دواړو په مینځ کښې به وی یو دیوال - او په

الْاَعْرَافِ رِجَالٌ يَّعْرِفُوْنَ كُلًّا ۢ بِسِيْمٰهُمْ ۚ وَنَادَوْا

اعراف باندې به سړی وی چه پیژنی به هر یو لره د ده په نښې سره - او دوی به آواز وکړی

اَصْحٰبَ الْجَنَّةِ اَنْ سَلٰمٌ عَلَيْكُمْ ۣ لَمْ يَدْخُلُوْهَا

جنتیانو ته چه سلامتی دې په تاسو باندې - دوی به اوس لا نه وی داخل شوی

وَهُمْ يَطْمَعُوْنَ ﴿۴۶﴾ وَاِذَا صُرِفَتْ اَبْصَارُهُمْ

جنت ته او دوی به امید واروی - او کله چه اوګرځی د دوی نظر طرف

تِلْقَآءَ اَصْحٰبِ النَّارِ ۙ قَالُوْا رَبَّنَا لَا تَجْعَلْنَا مَعَ

د دوزخیانو ته - نو او به وائی چه اے ربه زمونږه مه کړې مونږ د

الْقَوْمِ الظّٰلِمِيْنَ ﴿۴۷﴾ ع وَنَادٰٓى اَصْحٰبُ الْاَعْرَافِ

ګناه ګارانو سره - او آواز به اوکړی اعراف والا

رِجَالًا يَّعْرِفُوْنَهُمْ بِسِيْمٰهُمْ قَالُوْا مَآ اَغْنٰى

هغو خلقو ته چه دوی ئې پیژنی د هغو په نښو سره او به وائی پکار را نغله تاسو لره

عَنْكُمْ جَمْعُكُمْ وَمَا كُنْتُمْ تَسْتَكْبِرُوْنَ ﴿۴۸﴾

ستاسو ډله او کوم چه تاسو تکبر کوو لو -

اَهٰٓؤُلَآءِ الَّذِيْنَ اَقْسَمْتُمْ لَا يَنَالُهُمُ اللّٰهُ

اوس دا هغه دی چه تاسو به قسمونه خوړل چه او به نه رسی دوی ته د الله

وقف لازم

ع ۵ ۸ ۱۲

بِرَحْمَةٍ اُدْخُلُوا الْجَنَّةَ لَا خَوْفٌ عَلَيْكُمْ وَلَا

رحمت - داخل شئ جنت ته نه یره شته په تاسو او نه به

اَنْتُمْ تَحْزَنُوْنَ ﴿۴۹﴾

تاسو غمژن یئ -

# لنډ تفسير

او ( هر کله چه جنتیان جنت ته اورسی دغه وخت به دغه ) جنتیان دوزخیانو ته ( بیخپل حالت د خوشحالۍ ښکاره کولو او د دوی حسرت زیا تولو د پاره ) اوُ وائي چه زمونږ سره چه زمونږ رب کومه وعده کړې وه ( چه په ایمان او نیک عمل اختیار ولو سره به جنت درکړم ) مونږ هغې لره د واقع مطابق بیامونده ( تاسو او وایئ چه ) ستاسو سره ستاسو رب چه کومه وعده کړې وه ( چه د کفر په سبب به دوزخ ته او غورزیږئ ) تاسو هم هغې لره د واقع په مطابق بیاموندہ ( یعنی اوس خو حقیقت د الله او د رسول د رشتو نوالی او د خپلې ګمراهۍ در ته معلومه شوه دغه ( دوزخیان به په جواب کښې ) او وائی هاں ( واقعی ټولې خبرې د الله او د رسول ټیک او ختلې ) بیا ( د دې دوزخیانو د حسرت او د جنتیانو د خوشحالۍ زیا تولو د پاره ) به یو اواز کوونکے ( یعنی یوه فرشته ) د دواړو ( فریقو ) په مینځ کښې ( راودریږي ) آواز به اوکړی چه د الله تعالیٰ لعنت دِ وی په هغو ظالمانو کوم چه د الله د لارے ( یعنی حق دین ) نه به ئې ږوه کولو او په دې ( حق دین ) کښې به ئې ( همیشه بیخپلې ګمانځ ( لګے خبرے ) تلاش کولے ( چه په دے کښې عیبونه او اعتراضونه پیدا کړی او دغه خلق به د دې سره ) د آخرت نه هم منکرو و ( چه نتیجه ئې اوس دوی برداشت کوی ، دا خبرے خو د جنتیانو او د دوی په تائید کښې د دغې سرکاری آوازکونکی ذکر شونے ، وړاندې د اعراف والو ذکر دے ) او د دے دواړو ( فریقو یعنی جنتیانو او دوزخیانو ) په مینځ کښې به یو آړ ( یعنی دیوال ) وی

(چه ذکر ئې په سورت حدید کښې دے ؛ فَضُرِبَ بَيْنَهُم بِسُوْرٍ الخ؛ دَ دے خاصه به دا وی چه دَ جنّت اثر دوزخ ته او دَ دوزخ اثر جنّت ته به نه پریدی، باقے شوه دا چه بیا به خبرے څنګه وی پس ممکنه ده چه په دے دیوال کښې کومه دروازه وی لکه چه په سورت حدید کښې دی؛ بِسُوْرٍ لَّهٗ بَابٌ؛ دَ دے دروازے نه دا خبرے اورېدلے شی یا هسے آواز اورسی) او (دَ دے دیوال یا دَ دے دَ بره نۍ حصے نوم اعراف دے او دَ دینه به جنتیان او دوزخیان ټول په نظر راځی پس) دَ اعراف دَ پاسه به ډیر خلق وی (دَ چا چه نیکۍ او بدۍ په میزان کښې برابرے وی) دغه خلق به (جنتیانو او دوزخیانو) هر یو لره (علاوه دَ جنت او دوزخ ته دَ ننه کیدو دَ نښے نه) دَ دوی دَ تندو نه (رهم) پیژنی (ځکه دا سے چه دَ جنتیانو به مخونو به نورانیت او دَ دوزخیانو په مخونو به تور والے او خړ والے وی، لکه چه په بل ایت کښې دی؛ وُجُوْهٌ يَّوْمَئِذٍ مُّسْفِرَةٌ ضَاحِكَةٌ الخ؛) او دا اعراف والا به جنتیانو ته آواز او کړی او به وائی اَلسَّلَامُ عَلَيْكُم او س به لا دا اعراف والا جنت ته داخل شوی نه وی او دَ دے امید وار به وی (لکه چه په احادیثو کښې راغلی دی چه دَ دوی امید به پوره کړے شی او جنت ته دَ تلو حکم به ورته او شی) او کله چه دَ دوی نظر و نه په دوزخیانو پریوځی (دغه وخت به په یره سره) او وائی چه اے زمونږ ربه مونږ دَ دے ظالمانو خلقو سره (په عذاب کښې) شامل نه کړے او (لکه څنګه چه دے اعراف والو دَ جنتیانو سره سلام او کلام او کړو دغه شان) اعراف والا به (دَ دوزخیانو نه) ډیرو خلقو ته (کوم چه کافر وی او) کوم لره چه دَ دوی په تندو (دَ تور والی او خړ والی دَ مخ) سره پیژنی (چه دا کافران دی) آواز به ورته او کړی (او) او به وائی چه ستاسو ډلا او ستاسو ځان لوئے ګڼړل (او دَ انبیاؤ تابعداری نه کول) ستا سو هیڅ پکار را نغلل (او تاسو دَ تکبر په وجه سره مسلمانانو لره سپک ګڼړل دا به هم تاسو وئیل چه دا بے چاره دَ خُدائے فضل و کرم مستحق دی لکه دَ؛ أَهٰٓؤُلَآءِ مَنَّ اللّٰهُ عَلَيْهِمْ مِّنْۢ بَيْنِنَا؛ نو هم دا مضمون معلومیګی نو دے مسلمانانو ته خوا وس اوګورئ) آیا دا (کوم چه په جنّت کښې عیش کوی) هغه (مسلمانان دی) دَ کومو په باره کښې چه تاسو به قسمونه خوړل چه په دی به الله تعالیٰ خپل رحمت او نه کړی (نو په دوی خو دومره لوئے

رحمت اوشو چه) دوی ته دا حکم اوشو چه ځئ جنت ته (کوم ځائے چه به) په تاسو نه څه یره وی او نه به تاسو غمژن شئ - (او په دے کلام کښے چه ئے کوم د رجالٌ تخصیص اوکړو، غالبًا وجه د دے دا معلومیږی چه لا اوس به هم گناه ګار مؤمنان په دوزخ کښے وی، قرینه ئے دا ده چه کله اهل اعراف د جنّت په اُمید کښے جنّت ته لا داخل شوی نه دی، نو ګناه ګار خلق د کوموچه ګناهونه د اعراف والو د ګناهونو نه زیات دی ظاهره ده چه په طریق اولیٰ سره به لا د دوزخ نه راوتلی نه وی، مګر دا سے خلق به د دے کلام مخاطب نه وی) والله اعلم -

# معلومات او مسئلے

هر کله چه جنتیان جنّت ته او دوزخیان دوزخ ته خپلو خپلو ځایونو ته اُورسی، او ښکاره خبره ده چه په دے دواړو مقامونو کښے به لوئے لرے والے حائل وی، لیکن د دے باوجود د قرآن مجید ډیرا یاتونه په دے ګواه دی چه د دے دواړو مقامونو په مینځ کښے به څه دا سے لارے وی پکوموسره چه به یو بل لره لیدے شی او په مینځ کښے به ئے خبرے او سوال جواب وی -

په سورت صٰفٰت کښے د دوه وُو سړو ذکر په تفصیل سره راغلے دے کوم چه په دنیا کښے د یو بل ملګری وُو - لیکن یو مؤمن بل کافر وُو - په اخرت کښے چه کله مؤمنان جنّت ته او کافران دوزخ ته لاړ شی نو دوی به یو بل او وینی او خبرے به اوکړی - ارشاد دے -

فَاطَّلَعَ فَرَاٰهُ فِیْ سَوَآءِ الْجَحِیْمِ ۝ قَالَ تَاللّٰهِ اِنْ كِدْتَّ لَتُرْدِیْنِ ۝ وَلَوْلَا نِعْمَةُ رَبِّیْ لَكُنْتُ مِنَ الْمُحْضَرِیْنَ ۝ اَفَمَا نَحْنُ بِمَیِّتِیْنَ ۝ اِلَّا مَوْتَتَنَا الْاُوْلٰی وَمَا نَحْنُ بِمُعَذَّبِیْنَ ۝ -

چه د دے د مضمون خلاصه دا دے چه جنتی ملګرے به اُوګوری دوزخی ملګرے به اُووینی نو دے به د جهنّم په مینځ کښے پروت بیا مومی نو ورته به اووائی چه کم بخته تا دا غوختل چه زه هم ستا په شان برباد شم، او که د الله تعالیٰ فضل نه وے نو نن به زه هم ستا سره په جهنّم کښے پروت وُم، او تا به ماته دا وئیل چه د دے دنیا د مرګ نه پس هیڅ ژوند او هیڅ حساب کتاب یا ثواب عذاب

هیڅ هم نیشتے، اوس دا وُ لیدل چه داخهٔ کیږی -

په ذکر شوُو ایا تو نو او ودے نه پس هم تقریبًا ترټوے رکوع پورے داقسم خبرے اترے او سوال جواب ذکر دی، کوم چه به دَ جنّتیانو او دوزخیانو په مینځ کښے وی -

اودا دَ جنّت او دوزخ په درمیان کښے یو بل لره دَ لیدلو او خبرو کولو لارے هم په حقیقت کښے دَ دوزخیانو دَ پاره یو بل شان عذاب وی چه دَ هر څلو طرفه به په دوی بانډے ملامتیا وی، او دوی به دَ جنّتیانو نعمتونه او راحتونه وینی دَ دوزخ دَ اور سره به دَ حسرت په اور کښے هم سوزی - او دَ جنّتیانو دَ پاره به په نعمت او راحت کښے یوه نوے اضافه وی، چه دَ بل فریق مصیبت اُووینی دَ خپل راحت او نعمت قدر به ورته زیات شی - او کومو خلقو چه په دُنیا کښے په دیندارانو پورے خندا کانے او تو ټوے مسخرے کو لے او دوی به ترټهٔ بدل نه اَغستلوُن چه دغه خلق په ذلت او خوارئ او عذاب کښے اخته اُووینی نو دوی به خاندی چه دَ دوی دَ عمل سزا دوی ته ملاؤ شوه - په قرآن کریم کښے دا مضمون په سورتِ مطففین کښے دا سے ارشاد شوے دے: فَالْيَوْمَ الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا مِنَ الْكُفَّارِ يَضْحَكُوْنَ ه عَلَى الْاَرَائِكِ يَنْظُرُوْنَ ه هَلْ ثُوِّبَ الْكُفَّارُ مَا كَانُوْا يَفْعَلُوْنَ ه :-

جهنّمیانو لره دَ دوی په ګمراهئ بانډے خبردارے او دَ دوی په احمقو خبرو بانډے دَ دوی ملامته کول به دَ فرشتو دَ طرف نه هم وی، هغوی به دوی لره مخاطب کوی وائی به: هٰذِهِ النَّارُ الَّتِيْ كُنْتُمْ بِهَا تُكَذِّبُوْنَ ه اَفَسِحْرٌ هٰذَا اَمْ اَنْتُمْ لَا تُبْصِرُوْنَ ه؛ یعنی دا دے هغه اُور کوم چه تاسو دروغژن کولو، اوس اُوګورئ چه آیا دا جادو دے یا کہ ستاسو نظر نه لګی؛

دَ غه شان دَ ذکر شوُو ایا تونو په اوّلنی ایت کښے جنّتیان به دَ جهنّمیانو نه سوال اوکړی چه زمونږ ربّ زمونږ سره دَ کومو نعمتونو او راحتونو وعده کړے وَه مونږ خو هغه بالکل رشتونے او پوره بیاموندو، تاسو اووایئ چه تاسو دَ کوم عذاب نه یرَ دَلی شوی وَئے هغه هم تاسو ته مخے ته راغے او که نهٔ دوی به اقرار اوکړی چه بے شکه مونږ هم هغه اُولید و -

دَ دوی دَ دے سوال جواب په تائید کښے به دَ الله جلّ شانهٔ دَ طرف نه یوه فرشته

دا آواز اوکړی چه د الله تعالیٰ لعنت دے په هغو ظالمانو باندې وی کوم چه به خلق د الله تعالیٰ د لارے نه منع کول- او دا به ئے غوښتل چه د دوی لار هم نیغه نه شی، او دوی به د آخرت نه انکار کولو-

**اعرافیان کوم خلق دی؟** د جنتیانو او دوزخیانو د یو بل سره د خبرو اترو په ضمن کښې یو بله خبره په دریم آیت کښې دا اوخودلے شوه، چه څهٔ خلق به داسے هم وی چه د جهنم نه خو به نجات بیاموی مګر لا تر اوسه به جنت ته داخل شوی نه وی، البته د دے اُمید وار به وی چه دوی به هم جنت ته داخلیږی' دے خلقو ته اعراف والا وائی-

اعراف څهٔ شے دے؟ د دے تشریح د سورتِ حدید د آیت نه کیږی- د کوم نه چه معلومیږی چه په محشر کښې به د خلقو درے ډلے وی، یو به ښکاره مشرکان او کافران وی دوی ته خو به هیڅ په پُلِ صراط د پورې وتو نوبت رانهٔ شی، د اوّل سرنه به د جهنم دروازو ته ورټیل وهلے شی- دوئم به مؤمنان وی د دوی سره به د ایمان د نور رڼا وی- دریم به منافقان وی، دوی ځکه په دُنیا کښې د مؤمنانو سره وُو، نو هلته به هم په اوّل کښې د مؤمنانو سره وی، او په پُلِ صراط به تلل شروع شی، دغه وخت به یوه سخته تیاره په تحلورا شی' مؤمنان به د خپل ایمان په نور سره وړاندې ځی، او منافقان به چغے کړی دوی ته به او وائی چه لګ اودریږئ چه مونږ هم ستاسو د رڼا نه فائده واخلو نو په دے به د الله تعالیٰ د طرف نه یو وَیونکے او وائی چه وروستو لاړشئ هلته رڼا تلاش کړئ، مطلب به ئے دا وی چه دا رڼا د ایمان او نیک عمل ده، د کوم چه د حاصلولو مقام وروستو پاتے شو، کوم خلقو چه هلته د ایمان او عمل په ذریعه دا رڼا نه وی حاصله کړی هغوی ته نن د رڼا هیڅ فائده نهٔ شی ملاویدے، په دے حالت کښې به د مؤمنانو او منافقانو په مینځ کښې د یو دیوال پرده حائله کړے شی چه په هغے کښې به یوه دروازه وی، د دے دروازے باهر به ټول عذاب عذاب په نظر راځی، او د دروازے دننه کوم ځائے چه مؤمنان وی هلته به د الله تعالیٰ رحمتونه او د جنت فضاء لیدے شی دا مضمون د دے آیت دے:-

يَوْمَ يَقُوْلُ الْمُنٰفِقُوْنَ وَالْمُنٰفِقٰتُ لِلَّذِيْنَ اٰمَنُوا انْظُرُوْنَا نَقْتَبِسْ مِنْ نُّوْرِكُمْ قِيْلَ ارْجِعُوْا وَرَآءَكُمْ فَالْتَمِسُوْا نُوْرًا ۚ فَضُرِبَ بَيْنَهُمْ بِسُوْرٍ لَّهٗ بَابٌ ۚ بَاطِنُهٗ فِيْهِ الرَّحْمَةُ وَظَاهِرُهٗ مِنْ قِبَلِهِ الْعَذَابُ ؕ

په دے آیت کښے هغه بند يز کوم چه د جنتيانو او دوزخيانو په منځ کښے حائل کولے شي، دے لره ئے په لفظ د سُوُر سره تعبير کړے دے، او دا لفظ په اصل کښے د ښهر نه چاپيره ديوال ته وئيلے شي، کوم چه د لويو ښهرونو نه چاپيره د دشمن نه د حفاظت د پاره لوئے مضبوط مستحکم پلن ديوال جوړ ولے شي، په داسے ديوالونو کښے د فوج د حفاظتي دستو د پټيد وځايونه هم جوړ ولے شي، کوم چه د حمله کوونکو نه ځان خبرساتي،

د سورتِ اعراف په ذکرشوي آيت کښے دي: وَبَيْنَهُمَا حِجَابٌ ۚ وَعَلَى الْاَعْرَافِ رِجَالٌ يَّعْرِفُوْنَ كُلًّا بِسِيْمٰىهُمْ : د ابن جرير او نورو امامانو د تفسير د بيان مطابق په دے آيت کښے د لفظ د حجاب هغه ديوال مراد دے کوم چه د سورتِ حديد په آيت کښے په لفظ د سُور سره تعبير شوے دے - د دے ديوال د بالائي حصے نوم اعراف دے - ځکه چه اعراف د عُرف جمع ده او عُرف د هر شي بره ئي حصے ته وئيلے شي ځکه چه دغه د لرے نه معروف او ممتاز وي، د دے تشريح نه معلومه شوه چه د جنت او دوزخ په منځ کښے د حائل کيدونکي ديوال د بره ئي حصے نوم اعراف دے، او په آيت د اعراف کښے ئے دا خود لے ده چه په محشر کښے به په دے مقام بانديځه خلق وي کوم چه به د جنت او دوزخ د دواړو طرفونو حالات و لرهويني، او د دواړو طرفونو د اوسيدونکو سره به خبرے او سوال جواب کوي-

او س دا خبره چه دا به کوم خلق وي او په دے درميانی مقام بانديځه به دوي لره ولے او دره ولے شي، په دے کښے د تفسير ليکونکو خبرے مختلفے او د روايتونو د حد يثو چيرے دي، ليکن صحيح او راجح د جمهورو تفسير ليکونکو په نزد دا ده چه دا به هغه خلق وي د کوم چه به نيکئ او بدئ دواړه په تله د ميزان کښے برابر وي، د خپلو نيکو په وجه خو به د جهنم نه نجات بيامومي، ليکن د ګناهونو په سبب به لا تر اوسه جنت ته د دوي داخله نه وي شوي، او آخر د الله تعالیٰ

په رحمت سره به داخلق هم جنت ته داخل کړے شي۔

په صحابه کرامو کښے حضرت حذیفهؓ، ابن مسعودؓ، ابن عباسؓ او نورو صحابو او تابعینو دا قول دے۔ او په دے کښے ټول روایتونه د حدیثو هم جمع کیږی، کوم چه په مختلفو عنوانانو سره نقل دی، امام ابن جریرؒ په روایت د حذیفهؓ نقل کړے دے چه د نبی کریم صلے الله علیه وسلم نه د اعراف والو متعلق تپوس اوشو نو دوی اوفرمائیل چه دا هغه خلق دی د کوم چه نیکئ او بدئ به برابر وی، په دے وجه د جهنم نه به نجات بیا مومی خو جنت ته به لا نه وی داخل شوی، دوی به په دے مقام د اعراف باندِ حصار کړے شی تر دے چه د ټولو جنتیانو او دوزخیانو فیصله اوشی او بیا به د دوی فیصله کولے شی، او اخر به دوی اوبخلے شی او جنت ته به داخل کړے شی (ابن کثیر)

او ابن مردویهؒ په روایت د حضرت جابر بن عبد اللهؓ نقل کړے دے چه د نبی کریم صلے الله علیه وسلم نه تپوس اوشه چه اهلِ اعراف کوم خلق دی، دوی اوفرمائیل چه دا هغه خلق دی چه د خپل مور و پلار د رضا او اجازت نه خلاف په جهاد کښے شریک شی او د الله په لاره کښے شهید شی، نو د جنت د داخلید ونه به د مور و پلار ریه نا فرمانئ سره حصار کړے شی او د دوزخ د داخلے نه به د الله په لاره کښے د شهادت په وجه حصار کړے شی۔

په دے حدیث او په وړاندِ حدیث کښے څه تضاد نیشته، بلکه دا حدیث یو مثال دے د هغو خلقو د چا گناه او نیکئ چه په برابر درجه باندِ وی، چه یو طرف ته د الله په لاره کښے شهادت او بل طرف ته د مور و پلار نا فرمانی دواړه چاپری برابر شو (دا رنګ وئیلی دی دے لره ابن کثیر)

| | |
|---|---|
| د سلام مسنون لفظ | د اهلِ اعرافو د تشریح او تعریف معلومید و نه پس او س د اصل ایت مضمون اوګورئ۔ |

یکوم کښے چه ارشاد دے چه د اعراف خلق به جنتیانو ته اواز اوکړی او به وائی (سَلٰمٌ عَلَيْكُمْ) دا لفظ په دنیا کښے هم د یو بل سره د ملاقات په وخت کښے په طور د تحفے او اکرام وئیلے شی او مسنون دے، او د مرګ نه پس د قبرونو د زیارت په وخت کښے هم، او بیا په محشر او جنت کښے هم۔ لیکن د ایاتو نو او روایتونو د حدیثونه معلومیږی

چه په دُنیا کښې خو دَ اَلسَّلَامُ عَلَيْكُمْ وئيل سُنّت دی، او کله چه دنیا نه دَ تلو نه پس بغیر الف لام نه دَ سَلَامٌ عَلَيْكُمْ لفظ وئيل سنّت دی۔ دَ قبرونو دَ زيارت دَ پاره چه کوم کلمه په قرآن کښې ذکر کړې شوې ده هغه هم: سَلَامٌ عَلَيْكُمْ بِمَا صَبَرْتُمْ فَنِعْمَ عُقْبَى الدَّارِ: راغلې ده، او فرښتې چه کله دَ جنتيانو استقبال کوی دغه وخت هم دا لفظ په دے عنوان سره راغلی دے: سَلَامٌ عَلَيْكُمْ طِبْتُمْ فَادْخُلُوهَا خٰلِدِيْنَ: او دلته هم اعراف والا جنتيانو ته په دے لفظ سره سلام کوی۔

وروستنی دَ اعراف والو دا حال خودلے شوے دے چه دوی به لا اوس جنّت ته داخل شوی نه وی مګر اُميد وار به ئی وی، دَ دے نه پس ارشاد دے: وَإِذَا صُرِفَتْ أَبْصَارُهُمْ تِلْقَاءَ أَصْحٰبِ النَّارِ قَالُوا رَبَّنَا لَا تَجْعَلْنَا مَعَ الْقَوْمِ الظّٰلِمِيْنَ: يعنی هر کله چه دَ اعراف والو نظر په جهنميانو پريوځی، او دَ دوی عذاب او مصيبت اووينی نو دَ الله نه به پناه او غواړی چه مونږ دَ دے ظالمانو سره مه کړے۔

په پنځم آيت کښې دا هم ذکر دے چه اعراف والا جهنميانو ته خطاب کوی په طور دَ ملامته کولو به ورته وائی چه په دُنيا کښې تاسو په کوم مال او دولت او جلے پړے باندے نازيدئ او دَ کوم په وجه چه تاسو په غرور او تکبر کښې آخته وئ نن خو هغه ستاسو هيڅ پکار را نغلل۔

په شپږم آيت کښې ذکر دے: أَهٰؤُلَاءِ الَّذِيْنَ أَقْسَمْتُمْ لَا يَنَالُهُمُ اللهُ بِرَحْمَةٍ اُدْخُلُوا الْجَنَّةَ لَا خَوْفٌ عَلَيْكُمْ وَلَا أَنْتُمْ تَحْزَنُوْنَ:

دَ دے په تفسير کښې حضرت عبد الله ابن عباسؓ فرمائی چه هر کله دَ اعراف والو سوال جواب دَ جنتيانو او جهنميانو دواړو سره اوشی، دَ غه وخت به رب العلمين دوزخيانو ته خطاب او فرمائی دا کلے به دَ اعراف والو په باره کښې اوفرمائی چه تاسو خلقو به قسمونه خوړل چه دوی به اُونه بخلے شی او په دوی به څۀ رحمت اُونه شی پس اوس اُوګورئ نمونږ رحمت، او دَ دے سره به اعراف والو ته خطاب اوشی چه ځئ جنّت ته داخل شئ نه په تاسو دَ تيرو معاملو نه څه ويره شته او نه دَ آئنده دَ پاره څۀ غم او فکر۔

(ابن کثير)

وَنَادٰۤى اَصْحٰبُ النَّارِ اَصْحٰبَ الْجَنَّةِ اَنْ اَفِيْضُوْا

او آواز به او کړی دوزخیان جنتیانو ته چه را توئے کړئ

عَلَيْنَا مِنَ الْمَآءِ اَوْ مِمَّا رَزَقَكُمُ اللّٰهُ ؕ قَالُوْۤا اِنَّ اللّٰهَ

په موږ لږ شان اوبه یا څه د هغو نه چه رزق درکړے دے تاسو ته الله - او به وائی چه الله پاک

حَرَّمَهُمَا عَلَى الْكٰفِرِيْنَ ﴿۵۰﴾ الَّذِيْنَ اتَّخَذُوْا دِيْنَهُمْ

دا دواړه منع کړی دی په کافرانو باندې - چا چه نیولی وو خپل دین لره

لَهْوًا وَّلَعِبًا وَّغَرَّتْهُمُ الْحَيٰوةُ الدُّنْيَا ۚ فَالْيَوْمَ

تماشه او لوبې او په دوکه کښے غورځولی وو دوی لره د دُنیا ژوند - پس نن

نَنْسٰهُمْ كَمَا نَسُوْا لِقَآءَ يَوْمِهِمْ هٰذَا ۙ وَمَا

موږ دوی لره هیر وو لکه چه دوی هیر کړی وو ورځ د دے ورځے ملاویدل او دا لکه څنګه

كَانُوْا بِاٰيٰتِنَا يَجْحَدُوْنَ ﴿۵۱﴾ وَلَقَدْ جِئْنٰهُمْ بِكِتٰبٍ

چه دوی د زموږ د آیاتونو نه منکر وو - او موږ دغے خلقو ته لیکلے دے کتاب

فَصَّلْنٰهُ عَلٰى عِلْمٍ هُدًى وَّرَحْمَةً لِّقَوْمٍ يُّؤْمِنُوْنَ ﴿۵۲﴾

چه په تفصیل بیان کړے دے موږ په خبرداری سره لار ښودونکے او رحمت دے د ایماندارو د پاره -

هَلْ يَنْظُرُوْنَ اِلَّا تَاْوِيْلَهٗ ؕ يَوْمَ يَاْتِيْ تَاْوِيْلُهٗ يَقُوْلُ

آیا اوس د دے منتظر دی چه د دے مضمون ظاهر شی یکومه ورځ چه ظاهر شی دا د دے مضمون او به وائی

الَّذِيْنَ نَسُوْهُ مِنْ قَبْلُ قَدْ جَآءَتْ رُسُلُ رَبِّنَا

هغه خلق چه دے ئے هیر کړے وه اول نه بے شکه راوړے وه زموږ د رب رسول

بِالْحَقِّ ۚ فَهَلْ لَّنَا مِنْ شُفَعَآءَ فَيَشْفَعُوْا لَنَآ اَوْ

رشتونې خبره - پس اوس زموږ څوک سفارشي شته چه زموږ سفارش اوکړي او یا

نُرَدُّ فَنَعْمَلَ غَيْرَ الَّذِيْ كُنَّا نَعْمَلُ ۭ قَدْ خَسِرُوْٓا

موږ واپس کړی شو موږ به عمل اوکړو خلاف د هغې چه موږ کولو - بے شکه تباه کړل دوی

اَنْفُسَهُمْ وَضَلَّ عَنْهُمْ مَّا كَانُوْا يَفْتَرُوْنَ ﴿۵۳﴾

خپل ځانونه او ورک به شي د دوی نه هغه چه دوی جوړول

ع ۶ ۱۳

## لنډ تفسیر

او کله چه جنتیا به دوزخیا نو سره خبرے اوکړے دغه شان) دوزخیان به جنتیانو ته آواز اوکړی چه زموږ د لوږے تندے اوګرمۍ نه بے دمه کیږو) د خدائے د پاره په موږ لګے اوبه را توئے کړئ یا څه لږ په آرام شو) یا نور څه راکړئ کوم چه الله تعالیٰ تاسو ته درکړی دی (ددے نه دا نه لازمیګی چه دوی به اُمید کوی نو غواړی به، ځکه چه په ډیره پریشانئ کښے د توقع نه لرے خبرے هم د خولے نه اوځی) جنتیان به ورته جواب کښے) او وائی چه الله تعالیٰ دے دواړو څیزونو لره (یعنی د جنت خوراک او سکاک) کافرانو بند کړی دی چا چه په دُنیا کښے خپل دین لره (د کوم قبلول چه د دوی په ذمه واجب وُو) لهو لعب جوړ کړے وُه او چا لره چه د دنیا ژوند په دوکه (او غفلت) کښے اچولی وُو (په دے وجه د دین ئے هیڅ پرواه اُونه کړه، او دا خو دارالجزاء ده، هرکله چه دین نیشته نو فائده ئے د کوم ؟ وړاندے الله تعالیٰ د جنتیا نو د دے جواب په رشتونوالی او تائید کښے فرمائی) پس (هرکله چه په دنیا کښے د دوی دا حالت وُه نو) موږ نن (د قیامت په ورځ به د دوی نوم وا نخلو (نو خوراک سکاک به ور لره بنا ؤرے ورکړو) لکه چه دوی د دے (لوئے) ورځے نوم قدرے نه اخستو، او لکه څنګه چه دوی زموږ د آیاتو نو نه انکار کولو،

او مونږ دے خلقو ته یو داسے کتاب رسولے دے (یعنی قرآن) کوم چه مونږ پخپل کامل علم سره ډیر ښهٔ واضح واضح بیان کړے دے (او بیان مونږ تهولو ته د اوږدو دپاره کړے دے لیکن) ذریعه د هدایت او رحمت د هغو خلقو دپاره (شوے) دے کوم چه (دا او اوری) ایمان راوړی (او کوم چه با وجود د تمامید و د حجت نه ایمان نه راوړی د دوی د حالا تو نه داسے معلومیګی چه) دے خلقولره دپلے څهٔ خبرے انتظار نیشتے صرف د (قرآن د) خو د لے شوے آخیری نتیجے (یعنی د وعدے د سزا) انتظار دے (یعنی وړاندې د عذاب نه په وعید سره نه یریګی نو د عذاب واقع کیدل به غواړی پس) په کومه ورځ چه (خو د لے شوے) آخیری نتیجه مخے له راشی (چه تفصیل ئے د دوزخ وغیره په ذکر شو) په هغه ورځ به کوم خلقو چه دے لره وړاندې هیره کړے وه (په پریشانئ سره به) او وائی واقعی زمونږ د رب پیغمبر (دنیا ته) رشتونے خبرے راوړے وے (مګر زمونږ نه پے وقو فی اُوشوه) پس اوس آیا څوک زمونږ سفارشی شته چه هغه زمونږ سفارش اوکړی یا آیا مونږ به بیا (دُنیا ته) واپس اولیګلے شو چه مونږ خلق (ربیا دنیا ته لاړ شو) د دے (بدو) عملونو کوم چه مونږ کولی برخلاف نور (نیک) عملونه اوکړو (الله تعالی فرمائی چه اوس هیڅ صورت د نجات نیشتے) بے شکه دغے خلقو خپل ځان لره (د کفر) په خساره کښے واچولو او دا چه کومے خبرے دوی جوړے ولے (دا و ختا) تهولے ورکے شوے (او س به بغیر د سزا نه نور هیڅ نه وی) -

إِنَّ رَبَّكُمُ اللَّهُ الَّذِي خَلَقَ السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضَ فِي

بے شکه ستاسو رب الله دے چا چه پیدا کړو آسمان او زمکه په

سِتَّةِ أَيَّامٍ ثُمَّ اسْتَوَىٰ عَلَى الْعَرْشِ يُغْشِي اللَّيْلَ

شپږ ورځے کښے بیائے قرار اونیوه په عرش باندې - پټوی په شپه باندې

النَّهَارَ يَطْلُبُهُ حَثِيثًا وَالشَّمْسَ وَالْقَمَرَ وَالنُّجُومَ

ورځ چه دغه په دے پسے پیوست راځی په منډه او پیدائے کړه نمر او سپوږمئ او ستوری

مُسَخَّرٰتٍۭ بِاَمْرِهٖ ؕ اَلَا لَهُ الْخَلْقُ وَالْاَمْرُ ؕ تَبٰرَكَ

تابعدار د خپل حکم - واورئ د ده کار دے پیدا کول او حکم کول - لوئے برکت والا

اللّٰهُ رَبُّ الْعٰلَمِیْنَ ﴿۵۴﴾

دے اللّٰه چه رب دے د ټول جهان -

# لنډ تفسیر

بے شکه ستا سو رب اللّٰه دے چا چه ټول اسمانونه او زمکے لره په شپږو ورځے (برابر وخت) کښے پیدا اکړه بیا په عرش (چه مشابه دے د تخت د حکومت سره داسے) قائم (او جلوه فرما) شو (کوم چه د هغهٔ د شان سره لائق دی) پټوی په شپے (تیارے) سره ورځ (رڼرا) لے یعنی د شپے په تیرے سره د ورځے رڼرا پټه او ناګڼه شی) په داسے طور سره چه دغه شپه ورځے لره زر زر رانیسی (یعنی ورځ په یو ساعت کښے تیره شوے معلومیګی تر دے چه ناڅاپه شپه راشی) او نمر او سپوږمئ او نورو ستورو لره ئے پیدا اکړه په داسے طور چه ټول د ده د حکم (تکوینی) تابع دی یاد ساتئ د اللّٰه تعالیٰ د پاره خاص دی پیدا اکول او حاکم کیدل لوئے کمالا تو والا دے اللّٰه تعالیٰ چه د ټول عالم پروردګار دے -

# معلومات او مسئلے

د ذکر شوو ایتونو نه په اول ایت کښے اسمان او زمکه او سیارے او ستوری د پیدا کولو او د یو خاص محکم نظام پخپل خپل کار کښے د لګید و ذکر او په دے ضمن کښے د حق تعالیٰ د قدرتِ مطلقه بیان ئے اوکړو چه عقل والا انسان ته ئے د فکر دعوت ورکړے دے چه کوم پاک ذات د دے عظیم الشان عالم په وجود کښے د عدم نه په را وستو او په حکیمانه نظام سره ئے په چلولو باندے قادر دے، د هغهٔ د پاره څهٔ مشکله ده چه دے څیزونو لره ورک کړی د قیامت په ورځ ئے دوباره پیدا اکړی، نو پکار دی چه د قیامت انکار پاتے کړی صرف دغه ذات خپل رب اوګنړی د ده نه خپل حاجتونه

طلب کړي، ده خه عبادت کوي، د مخلوق پرستۍ د چقړو نه اوځي او حقيقت او
پيژني، په دې کښې ارشاد فرمائي چه ستاسو رب الله دے کوم چه اسمان او زمکه ئے
په شپږو ورځو کښے پيدا کړه.

دَ اسمان او زمکے په پيدائش کښے شپږ ورځے مُوده څنګه تيره شوه

د لته يو سوال دا پيدا کيږي چه الله جلّ شانهٔ خو په دے قادر دے چه دا ټول جهان په يو ان کښے پيدا کړي، بخپله دَ قرآن کريم دَ مختلفو عنوانا تو نه دا
خبره بار بار دُهرا وېلي، چه ته ارشاد دے: وَمَآ اَمْرُنَآ اِلَّا وَاحِدَةٌ كَلَمْحٍ بِالْبَصَرِ؛
يعنې دَ سترګو دَ رپ په مقدار کښے زموږ حکم نافذ کيدے شي- کله فرمائي: اِذَآ
اَرَادَ شَيْـًٔا اَنْ يَّقُوْلَ لَهٗ كُنْ فَيَكُوْنُ؛ يعنې کله چه الله تعالیٰ دَ يو شي پيدا کول او
غواړي نو فرمائي چه شه نو فوراً پيدا شي" بيا دَ عالم دَ پيدا کو لو دَ پاره دَ
شپږو ورځو دَ صرف کولو څه وجه ده؟ -

دَ قرآن تفسير کونکي حضرت سعيد بن جبيرؓ دَ دے دا جواب کړے دے چه دَ
الله تعالیٰ قدرت خو بے شکه په دے باندې حاوي دے چه دا هرڅهٔ په يو ان کښے
پيدا کړي- ليکن په تقاضا دَ حکمت دَ دے عالم په پيدا ئش کښے ئے شپږ ورځے
اولګولے، دَ دے دَ پاره چه انسان ته دَ عالم دَ نظام په چلولو کښے دَ تدريج يعنې
پوړۍ په پوړۍ کولو او پخته کارۍ تعليم ورکړے شي، لکه چه په حديث
کښے نبي کريم صلے الله عليه وسلم فرمائي چه په غوراو فکرا و تدريج او وقار
سره کار کول دَ الله تعالیٰ دَ طرف نه دي او جلد بازي دَ شيطان دَ طرف نه
ده (مظهري په حواله دَ شعب للبيهقي)

مطلب دا دے چه په جلد بازۍ کښے انسان دَ مسئلے په هر اړخ غوراو فکر
نه شي کولے په دے وجه اکثر کار خراب شي، او خپيماني وي، په غور آسانۍ او
او فکر سره چه کوم کار اوکړے شي په دے کښے برکت وي-

دَ زمکے آسمان او ستورو دَ پيدا ئش نه اوّل ورځ شپه څنګه پيژندے شو

دويم سوال دا دے چه دَ شپے او ورځے وجود خو دَ نمر دَ حرکت نه پيژندے شي، دَ اسمان او
زمکے دَ پيدا ئش نه اوّل چه کله نمر نه وُو او شپه ورځ نه وه، نو دَ شپږ ورځو
شمار په کوم حساب سره شو-

په دے وجه بعض تفسیر لیکونکی حضرات فرمائی . ادا شپږ ورځو نه دومره وخت او زمانه ټکومه کیږي چه شپږ ورځے او شپه په دے دَور اکیږی وی، لیکن صافه او بے غباره خبره داده چه د ورځے او شپے دا اصطلاح چه نمر د ختو نه ترپریوتو پورے ورځ او د پریوتو نه ترختو پورے شپه، دا خو د دے دنیا اصطلاح ده د عالم د پیدائش نه وړاندے کیدے شی چه الله تعالیٰ د شپے و ځے نورے نښے مقرر کړی وے، لکه په جنت کښے چه به وی چه هلته به شپه او ورځ د نمر د حرکت تابع نه وی -

د دے نه دا هم معلومه شوه چه دا ضروری نه ده چه هغه شپږ ورځے په کومو کښے چه ځمکه آسمان جوړ کړی دی هغه زمونږ د دے شپږ وورځو برابر وی بلکه کیدے شی چه د دے نه لوئے وی، لکه د اخرت د ورځے په باره کښے چه د قرآن ارشاد دے چه د زرو کالو برابر به یوه ورځ وی -

ابو عبد الله رازیؒ فرمائی چه د فلکِ اعظم حرکت د دے دنیا د حرکت په مقابله کښے دومره تیز دے، چه یو منډه د ځغلیدونکی انسان یو قدم اوچتوی نو دوهم لا دا قدم په ځمکه ایښو دے نه وی چه فلکِ اعظم درے زره میله مسافت قطع کړے وی (بحر محیط)

د امام احمد بن حنبلؒ او مجاهدؒ قول دا دے چه د دے دنیا د شپږو ورځو نه د اخرت شپږ ورځے مراد دی، او په روایت د ضحاکؒ د حضرت عبد الله بن عباسؓ نه هم دا نقل دی -

او دا شپږ ورځے په کومو کښے چه د دنیا پیدائش شوے دے د صحیح روایاتو په مطابق د اتوار نه شروع کیږی په جمعه ختمیږی، د هفتے په ورځ د دنیا د پیدائش کار نه دے شوے - بعض علماء فرمائی چه د سبت معنیٰ قطع کول دی، د دے ورځے ته "یوم السبت" په دے وجه ویلے شوے دے چه په دے کار ختم شو (ابن کثیر) -

په ذکر شوی آیت کښے د ځمکے او آسمان پیدائش په شپږ ورځو کښے د مکمل کیدو ذکر دے د دے تفصیل د سورتِ حٰمٓ سجده په نهم او لسم آیاتو نو کښے داسے راغلے دے چه په دوه ورځو کښے ځمکه جوړه شوه بیا په دوه ورځو کښے په ځمکه

دَ پاسه غرونه، دریابونه، خزانے، وُنے، بوټي او دَ انسانانو او حیواناتو دَ خوراک سامان پیدا کول دي، او دا ټول کار په دوه ورځو کښے شو، ارشاد فرمائي: خَلَقَ الْاَرْضَ فِیْ یَوْمَیْنِ: او بیا فرمائي: وَقَدَّرَ فِیْهَآ اَقْوَاتَهَا فِیْٓ اَرْبَعَةِ اَیَّامٍ: -

په اول دوه ورځو کښے پکو موکښے چه زمکه جوړه شوه اتوار او پیر دی - او نورے دوه ورځے پکو موکښے چه دَ زمکے دَ آبادئ سامان غرونه او دریابونه جوړ شو هغه منګل او بده دي. - دَ دے نه پس ارشاد فرمائي: فَقَضٰىهُنَّ سَبْعَ سَمٰوٰتٍ فِیْ یَوْمَیْنِ: یعني بیا اُووه آسمانونه جوړ شو په دوه ورځو کښے. نو ظاهره ده چه دا دوه ورځے جمعرات او جمعه دی. - دَ غه شان دَ جمعے پورے شپږ ورځے شوے.

دَ آسمان او زمکے دَ پیدائش بیانولو نه پس ارشاد فرمائي: ثُمَّ اسْتَوٰی عَلَی الْعَرْشِ: یعني بیا په عرش قائم شو، دَ استوٰی لفظي معنیٰ قائمیدل، او عرش شاهي تخت ته وئیلے شي، اوس دا عرش الرحمان څنګه او څه دے، او په دے دَ قائمید و څه مطلب دے؟

دَ دے متعلق بے غباره او صاف او صحیح مسلک هغه دے کوم چه سلف صالحینو، صحابه او تابعینو او بیا دَ اکثرو حضراتو صوفیائے کرامو نه نقل دے چه انساني عقل دَ الله جل شانهٔ دَ ذات او صفاتو دَ حقیقت دَ إحاطے کولو نه عاجزه دے، دَ دے په لټون کښے پریوتل بے کاره بلکه نقصاني دی په دے اجمالًا دا سے ایمان راوړل پکار دی چه دَ دے الفاظو نه څهٔ دَ الله تعالیٰ مراد دے هغه صحیح او حق دے او پخپله دَ ځان نه دَ څهٔ معنیٰ مقرر کولو فکر دِ نه کوی،

دَ حضرت امام مالك نه یو سړی دا سوال او کړو چه دَ "استواء علی العرش" څهٔ مطلب دے؟ دوئ دَ لږ وخت فکر کولو نه پس او فرمائیل چه دَ لفظ دَ "استواء" معنیٰ خو معلومه ده، او دَ دے دَ کیفیت او حقیقت ادراک دَ انسان عقل نه شي کولے، او ایمان راوړل په دے واجب دی او دَ دے متعلق دَ کیفیت او حقیقت تپوس کول بدعت دے، ځکه چه صحابه کراموالله دِ دَ ټولو نه راضي شي دَ نبی کریم صلے الله علیه وسلم نه دا سے تپوس نه دی کړی -

سفیان ثوریؒ، امام اوزاعیؒ، لیث بن سعدؒ، سفیان بن عیینہؒ، عبداللہ بن مبارک په قولو د اللہ رحمت اوکړی، فرمائی چه کوم آیاتونه د اللہ تعالیٰ د ذات او صفاتو متعلق راغلی دی، څهٔ رنګه چه راغلی دی دغه شان بغیر د څهٔ تشریح او تاویل نه ایمان پرې راوړل پکار دی (مظهری)

د دے نه پس په ذکر شوی آیت کښے فرمائی: يُغْشِي اللَّيْلَ النَّهَارَ يَطْلُبُهُ حَثِيثًا: یعنی اللہ تعالیٰ راخوروی شپے لره په ورځے داسے چه شپه زر زر ورځے لره لا نیکوی۔ مراد دادے چه د شپے او ورځے دا لوئے انقلاب چه ټول عالم لره د رڼا نه تیرے ته او د تیرے نه رڼا ته راولی د اللہ تعالیٰ د قدرت قاهره تابع دومره زر او په آسانئ سره کیږی چه لږ ساعت پکښے هم نه لګی۔

د دے نه پس ارشاد فرمائی: وَالشَّمْسَ وَالْقَمَرَ وَالنُّجُومَ مُسَخَّرَاتٍ بِأَمْرِهِ: یعنی پیدا کړه اللہ تعالیٰ نمر او سپوږمئ او ټولو ستورو لره په دے حالت چه ټول د اللہ تعالیٰ د حکم تابع چلیږی۔

په دے کښے د عقل خاوند ته د فکر کولو بلنه ده کوم چه د مخلوق په جوړ شوی څیزونه حرکت وینی، چه د لویو لویو ماهرانو په جوړ شوو مشینانو او شیانو کښے اول خو څهٔ نقص وی، او که نقصان پکښے هم نه وی نو که هر څومره فولادی مشینونه او پرزے وی خو په چلید وچلید وسره اُو سولیګی او سُستے شی، د مرمت ضرورت وی ورته، د ګریسنګ حاجت ورته راځی او د دے د پاره څو څو ورځے بلکه په هفتو او میاشتو مشین ولاړ وی۔ لیکن دے خدائی مشینانو ته اُوګورئ چه څنګه او په څهٔ شان سره د اول ورځے نه دوی چلولے شوی دی هم په هغه شان چلیږی، نه ئے چرته په رفتار کښے یو منټ یا یو سکنډ فرق راځی، نه چرته د دوی څه پُرزه سولیګی او ماتیګی او نه ورته چرته د ورکشاپ ضرورت راځی وجه داده چه دوی: مُسَخَّرَاتٍ بِأَمْرِهِ: سره چلیګی، یعنی د دوی د چلو لو د پاره نه څهٔ د بجلئ پاور پکار دی او نه ورته د څه انجن د مدد ضرورت دے۔ دا صرف د اللہ تعالیٰ په حکم سره چلیګی د هغهٔ تابع دی۔ په دوی کښے څه فرق راتلل ناممکن دی،

هاں کله چه قادر مطلق پخپله دَدی دَ فنا کولو اراده په یو مقرر وخت باندے اوُ کړی، نو دا ټول نظام به دَرَهَم بَرهَم شی چه دَ هغے نوم قیامت دے۔

دَدے ځو مثالونو دَ ذکر کولو نه پس دَ حق تعالیٰ دَ قاهره مُطلقه قدرت بیان ئے دَ یو کلی قاعدے په صورت کښے داسے اوکړو: اَلَا لَهُ الْخَلْقُ وَالْاَمْرُ: دَ خَلْق: معنیٰ پیدا کول دَه او دَ اَمْر: معنیٰ حکم کول دی معنیٰ ئے دا دَه چه "دَ هغهٔ دَ پاره خاص دی خالقیت او حاکم کیدل"، دَ دهٔ نه سوا بل څوک نه څهٔ اد نیٰ شے پیدا کولے شی او نه چا ته په چا دَ څهٔ حکم کولو حق شته، (بغیر دَ دینه چه الله تعالیٰ دَ خپل طرف نه دَ حکم څه خاص شعبه چا ته اوُسپاری نو دغه هم په حقیقت کښے دَ الله تعالیٰ حکم دے) په دے وجه مراد دَ آیت دا شو چه دا ټول څیزونه پیدا کول هم دَ هغهٔ کار وُه، او دَ پیدا کیدو نه پس دَدی نه کار اغستل هم دَ بل چا دَ وَس خبره نه وه، هغه هم دَ الله تعالیٰ دَ قدرت کامله کرشمه دَه۔

صوفیائے کرام فرمائی چه: خَلْق: او: اَمْر: دوه عالمه دی۔ دَ خَلْق تعلّق دَ مادے او مادیاتو سره دے، او دَ امر تعلّق دَ مجرّد اتو لطیفو سره دے په آیت: قُلِ الرُّوْحُ مِنْ اَمْرِ رَبِّيْ: کښے دے طرف ته اشاره دَه۔ چه روح ته ئے دَ اَمْرِ دَ ربّ نه اوفرمائیل۔ دَ خَلْق او اَمْر دواړه دَ الله تعالیٰ دَ پاره دَ خاص کیدو مطلب په دے صورت کښے دا دے چه آسمان او زمکه او دَ دے په منځ کښے چه څو مره څیزونه دی دا ټول مادّی دی دَدی پیدا ئش ته ئے خَلْق او وئے او دَ آسمانونو نه پورته چه کوم دَ مادے او مادیّت نه آزاد دی دَدی پیدائش ئے په لفظ دَ اَمْر سره تعبیر کړو (مظهری)

دَ آیت په اخر کښے ارشاد فرمائی: تَبٰرَكَ اللّٰهُ رَبُّ الْعٰلَمِيْنَ: په دے کښے لفظ دَ تبارک دَ برکت نه جوړ دے، او لفظ دَ برکت معنیٰ دَه، زیاتیدو، ثابت پاتے کیدو وغیره څو معنو کښے استعمالیږی، دلته دَ لفظ دَ تَبٰرَكَ معنیٰ دَ لوئے او اوُچت دَه، چه دَ زیاتیدو په معنیٰ سره هم اغستے شی او دَ ثابت پاتے کیدو په معنیٰ سره هم، ځکه چه الله تعالیٰ قائم او ثابت هم دے او لوئے او اوُچت هم دے۔ دَ لوئے والی معنیٰ طرف ته دَ حدیث په یو جمله

کښې هم اشاره کړې ده: تَبَارَكْتَ وَتَعَالَيْتَ يَاذَا الْجَلَالِ وَالْإِكْرَامِ: دلته دَ تَبَارَكْتَ تفسير دَ تَعَالَيْتَ په لفظ سره شوې دے -

اُدْعُوْا رَبَّكُمْ تَضَرُّعًا وَّخُفْيَةً ؕ اِنَّهٗ لَا يُحِبُّ الْمُعْتَدِيْنَ ﴿۵۵﴾

بلئ خپل رب لره په زارئ او په پټه سره - بے شکه هغه نه خوښوي د حد نه تيريدونکي

وَلَا تُفْسِدُوْا فِى الْاَرْضِ بَعْدَ اِصْلَاحِهَا وَادْعُوْهُ

او خرابي مه کوئ په زمکه کښې د دے د اصلاح نه پس او بلئ هغه لره

خَوْفًا وَّطَمَعًا ؕ اِنَّ رَحْمَتَ اللّٰهِ قَرِيْبٌ مِّنَ الْمُحْسِنِيْنَ ﴿۵۶﴾

په يره او طمع سره - بے شکه د الله رحمت نزدے دے نيک کار کوونکو ته -

## لنډ تفسير

تاسو خلق (په هر حالت او هر حاجت کښې) د خپل پروردګار نه دُعا کوئ په زارئ عاجزئ ظاهر ولو هم او په پټه پټه هم (البته داخېره) واقعي (ده چه الله تعالیٰ هغو خلقو لره نه خوښوي کوم چه (په دُعا کښې) د حد (د ادب) نه اوځي (مثلاً د عقل نه د محالو يا د حرامو دعا غواړي) او په دُنيا کښې پس د دے چه (د توحيد د تعليم او پيغمبرانو په ذريعه) د دے اصلاح او درستي شوے ده فساد مه خوروئ (يعني حق کارونه توحيد وغيره مه منځ او په دے د چليدو سره چه بره ئے تعليم شوے دے په عالم کښې امن قائميګي نو تاسو د دے تعليم په پاتے کولو سره امن مه ماتوئ) او (لکه څنګ چه تاسو ته بره د خاص دُعا کولو حکم شوے دے دغه شان د باقي عباداتو نو هم حکم کيږي چه) تاسو د الله تعالیٰ عبادت (ډيکو مه طريقه چه ئے تاسو ته خودلے ده) کوئ د خدائے نه يره کوئ او اميد وار تړا وسئ (يعني په عبادت باندې ناز هم مه کوئ او مايوسه کيږئ هم مه ورانئ د عبادت ترغيب ورکوي چه) بے شکه د الله تعالیٰ رحمت نزدے دے نيک کار کوونکو ته -

# معلومات او مسئلې

دَ ذکر شوو آیاتو نو نه په وړاندې آیاتو نو کښې دَ الله تعالیٰ دَ کامل قدرت خاص خاص نښې او اهم انعامونو ذکر وُو، په دې آیاتو نو کښې دَدې بیان دې چه هرکله دَ قدرتِ مطلقه مالک او دَ ټولو احسانا تو او انعاماتو کوُونکے صرف ربّ العٰلمین دے، نو دَ مصیبت او حاجت په وخت کښې دَ هغه بلَل او دَ هغه نه دُعا کوَل پکار دی هغهٔ لره پاتې کوَل او بل طرفا ته متوجه کیدل جهالت او محرومی ده،

دَ دې سره ئے په دې آیاتو نو کښې دَ دُعا کولو بعضِ آدبو نه هم خودَلی دی- چه دَ هغو په رعایت کولو سره دَ دُعا دَ قبلید و اُمید زیا تیګی-

لفظ دَ دُعا په عربئ ژبه کښې چا لره دَ حاجت پوره کولو دَ پاره دَ رابَللو په معنیٰ کښې هم راځی، او مطلق دَ یادَ ولو په معنیٰ کښې هم، او دلته دواړه معنے مراد کیدے شی- په آیت کښې ارشاد دے: اُدْعُوْا رَبَّکُمْ: یعنی بلئ خپل ربّ لره دَ خپلو حاجتو نو دَ پاره، یا یا دَ وئ او عبادت کوئ دَ خپل ربّ-

په اوّل صورت کښې به معنیٰ دا شی چه خپل حاجتونه صرف دَ الله تعالیٰ نه غواړئ، او په دویم صورت کښې دا چه ذکر او عبادت صرف دَ هغهٔ کوئ- دا دواړه تفسیرو نه دَ تیرو بزرګانو او دَ تفسیر دَ اماما نو نه نقل دی-

دَ دې نه پس ارشاد فرمائی: تَضَرُّعًا وَّ خُفْيَةً: دَ تضرّع معنیٰ عاجزی او زاری او دَ ذلت ښکاره کول دی- او دَ خُفْيَة معنیٰ ده پټ،

په دې دواړو لفظو نو کښې دَ دُعا او ذکر دَ پاره دَ دوه اهم آدبو نو بیان دے، اوّل دا چه دَ دُعا قبلید و دَ پاره دا ضروری ده چه انسان دَ الله تعالیٰ په وړاندې دَ خپلې عاجزئ بے وسئ او ذلت اظهار کولو سره دُعا کوی، او الفاظ ئے هم دَ عاجزئ او بے وسئ سره مناسب وی په وینا کښې ئے هم عاجزی او بے وسی وی او دَ دعا غوښتو هیئت ئے هم دَ غسې وی، دَ دې نه معلومه شوه چه نن صبا عوام چه پکوم انداز سره دُعا غواړی اوّل خو دے ته دُعاء غوښتل نه شی وئیلے بلکه دعاء لوستل ورته وئیلے شی، ځکه چه اکثر دا هم معلومه

نه وی، چه موږ کومے کلمے په ژبه سره وایُو دے مطلب څهٔ دے - لکه چه نن صبا په عامو جماتونو کښے د اماما نو معمول جوړ شوے دے چه د عربئ ژبے څه دُعائیه کلمے دوی ته یادے وی نو د مانځه په ختمید و باندِ حغو لره لولی، اکثر خو په خپله هم دے اما ما نو ته د دے کلمو مطلب او مفهوم معلوم نه وی او که دوی ته معلوم وی نو کم نه کم جاهلان مقتدیان خو د دے نه بالکل بے خبره وی او دوی نا خبره د امام په کلمو اٰمین اٰمین وائی د دے ټولے تماشے حاصل د یو څو کلمو لوستل وی د دُعا غوښتلو چه کوم حقیقت دے د لته هغهٔ د سره موندے نه شی، دا بله خبره ده چه الله تعالیٰ پخپل کرم سره دے بے روحه کلمو لره قبولے کړی او د قبلیدو د دُعا آثار پیدا شی، مګر د خپل طرف نه دا پوهیدل ضروری دی چه دُعا لوستلے نه شی بلکه غوښتلے شی، په دے وجه ضروری ده چه د غوښتلو په طریقه او غوښتلے شی.

دویمه خبره دا ده چه که یو سړی ته د خپلو کلمو معنیٰ هم معلومه وی او ښهٔ په پوهه ئے وائی خو د دے سره لب ولهجه یعنی د وینا طریقه او ظاهر حیثیت د عاجزئ او بے وسئ نه وی نو دا دعا خو بیا یوه مطالبه جوړه شی چه د دے یو بنده ته هم څهٔ حق نیشته.

غرض دا دے چه په اوّل لفظ کښے ئے د دُعا روح او خود و چه هغه بے وَسی او عاجزی او د خپل ذلت او کمزورئ د بنکاره کولو سره د الله تعالیٰ نه خپل حاجت غوښتل دی - په دویم لفظ کښے ئے یو بل هدایت دا ورکړو چه دُعا په پټه او په رُو سره غوښتل غوره او قبلید و ته نزدے دی، ځکه چه په اُوچت آواز سره په دُعا غوښتلو کښے اوّل خو عاجزی او بے وسئ باقی نه پاتے کیږی، دویم په دے کښے د ریا او شهرت هم یره ده، دریم د دے صورت هم دا سے جوړیګی چه ګویا دا سړے په دے نه پوهیږی چه الله تعالیٰ آوری او پوهه دے زموږ په ظاهر او باطن یو شان پوهیږی هره خبره که پټه وی او که بنکاره هغے لره آوری، په دے وجه د خیبر د غزا په موقع باندِ د صحابه کرامو آوازونه په دُعا کښے اُوچت شو نو حضورؐ ارشاد او فرمایه چه تاسو څوک کُونړ یا غائب لره نهٔ بلئ چه دا سے آوازونه اوچتوئ، بلکه تاسو چه چالره بلئ هغهٔ

آؤریدونکےاو نژدے دے یعنی الله تعالیٰ (په دے وجه آواز اوچتول فضول دی) بچیله الله جل شانه دیو صالح سړی دُدعا ذکر په دے الفاظو سره فرمائیلے دے ﴿اِذْ نَادٰی رَبَّهٗ نِدَآءً خَفِیًّا﴾ "یعنی کله چه هغهٔ راؤبللو رب خپل لره په ورو آواز سره" د دے نه معلومه شوه چه الله تعالیٰ ته د دعا طریقه غوره ده چه په پټه او ورو آواز سره دُعا اوغوښتلے شی۔

حضرت حسن بصریؒ فرمائی چه په ښکاره او په چغه دُعا کولو کښے او په ورو او پټ آواز سره دُعا کولو کښے د اویا درجے فضیلت فرق دے۔ د تیرو مشرانو عادت داوهٔ چه په ذکر او دُعا کښے به ئے ډیره مجاهده کوله او اکثر به پکښے … مشغول وو مګر هیچا به د دوی آواز نه آوریدلو، بلکه د دوی دعاګانے به صرف د دوی او د دوی د رب په مینځ کښے وے، په دوی کښے به ډیرو حضراتو پوره قرآن کریم حفظ کولو او تلاوت کولو مګر بل څوک به تر نه خبریدل۔ او ډیرو حضراتو به لوئے لوئے دینی علم حاصلولو مګر خلقو ته به ئے د ځان خودلو نه ځان ساتلو، ډیرو حضراتو به د شپے په خپلو کورونو کښے ډیرا وګده اوګډه مونځونه ادا کول خو راتلونکی به تر هیڅ نه خبریدل، او فرمائی چه مونږ داسے حضرات لیدلی دی چه تول شپه به ئے په پټه عبادتونه کول خو چرته داسے نه ده شوے چه چاته ئے ښکاره کړی دی د دوی آوازونه به په دعاګانو کښے انتهائی غلی وو، (ابن کثیر مظهری)۔

ابن جریجؒ فرمائی چه په دُعا کښے آواز اوچتول او شور کول مکروه دی، امام ابوبکر جصاصؒ حنفی په احکام القرآن کښے فرمائی چه د دے آیت نه معلومه شوه چه دُعا د غوښتل په نسبت د اظهار کولو غوره دی، حضرت حسن بصریؒ او د ابن عباسؓ نه هم داسے نقل دی، او د دے آیت نه دا هم معلومه شوه چه په مانځه کښے د سورتِ فاتحے په ختم باندِ چه کوم آمین وئیلے شی دا هم ورو وئیل غوره دی ځکه چه آمین هم یوه دُعا ده۔

زمونږ د دے زمانے د جماتونو اماما نو ته د الله تعالیٰ هدایت او کړی چه د قرآن او سُنّت دا تلقین او د تیرو بزرګانو هدایتونه ئے د سره پاتے کړی دی، د هر مانځه نه پس د دُعا د ځان یوه جوړ شوے کارروائی دی، په اوچت

آواز سره څهٔ کلمے لوستلے شی چه دَ دُعا دَ ادبونو نه دَ خلاف کیدو علاوه دَ هغو مونځ کونکو په مانځه کښے هم خلل اچوی کوم چه دَ مسبوق کیدو په وجه دَ امام دَ فارغ کیدو نه پس خپل پاتے مونځونه پوره کوی، دَ رسمونو غلبے دَ دے ناکاره والے او فساد و نه دَ نظر ونو نه پټ کړے دی۔ که په څهٔ خاص موقع باندِ څه خاصه دُعا په ټول جماعت باندِ کول وی نو په دا سے موقع دے یو سړے دَ دُعا الفاظ په معمولی آواز سره وائی او نور دے امین وائی په دے کښے څهٔ باک نیشته، خو شرط دا دے چه دَ نورو په مانځه او عبادت کښے خلل نه راځی۔ خو دَ دا سے کولو عادت دِ نه جوړوی چه هسے نه عوام ئے دا سے او ګنړی چه دَ دُعا هم دا طریقه ده، لکه چه نن صبا په عام طور سره کیدے شی۔

دا بیان خو دَ خپلو حاجتونو دَ پاره دَ دُعا غوښتلو وه، که دَ دُعا معنیٰ دلته دَ ذکر او عبادت وا غستلے شی، نو په دے کښے هم دَ تیرو عالمانو تحقیق دا دے چه پټ ذکر دَ جهری ذکر نه غوره دے، او په صوفیائے کرامو کښے چه چشتیه مشائخ مُبتدیانو ته کوم دَ جهری ذکر تلقین کوی هغه دَ دغے سړی دَ حال په مناسبت سره بطور دَ علاج دے۔ چه دَ جهر په ذریعه دَ دهٔ سُستی او غفلت لرے شی، او په زړهٔ کښے دَ الله دَ ذکر سره جوړخت پیدا شی۔ ورنه فی نفسه په ذکر کښے جهر کول دلته هم پکار نه دے البته جائز دے، او جواز دَ دے هم په حدیث سره ثابت دے په دے شرط سره چه ریاء او نمائش په کښے نه وی۔

امام احمد بن جنبلؒ، ابن حبانؒ بیهقی وغیره دَ حضرت سعد بن ابی وقاصؓ دَ روایت نه نقل کړے دے چه نبی کریم صلے الله علیه وسلم فرمائیلی دی:-

| | |
|---|---|
| خَيْرُ الذِّكْرِ الْخَفِيُّ وَ خَيْرُ الرِّزْقِ مَا يَكْفِيْ - | "یعنی غوره ذکر پټ دے، او غوره رزق هغهٔ دے چه دَ انسان دَ پاره کافی |

البته په خاصو خاصو حالاتو او وختونو کښے جهر پکار او غوره دے دَ دے وختونو او حالاتو تفصیل نبی کریم صلے الله علیه وسلم په خپل قول او عمل سره واضحه کړے دے۔ مثلاً آذان او اقامت په اوچت آواز سره کول، په جهری

موښځو لو کښې په زوره قرأت کول، د مانځه تکبیر و نه، د تشریق تکبیر و نه، په حج کښې تلبیه په اوچت آواز سره کول وغیره - په دے وجه فقهاؤ الله دې پرې رحمت اوکړی په دے باب کښې فیصله دا فرمائیلے ده چه په کومو خاصو حالاتو او مقاماتو کښې نبی کریم صلی الله علیه وسلم قولاً یا عملاً د جهر کولو تلقین فرمائیلے دے هلته جهر کول پکار دی، د دینه علاوه په نورو حالاتو او ځایونو کښې پټ ذکر غوره او فائده مند دے۔

د آیت په آخر کښې ارشاد فرمائی: إِنَّهُ لَا يُحِبُّ الْمُعْتَدِينَ، معتدین د اعتداء نه مشتق دے، د اعتدا معنیٰ ده د حد نه تجاوز کول، معنیٰ دا ده چه "الله تعالیٰ د حد نه تجاوز کوونکی نه خوښوی" د حد نه وړاندې تیریدل خواه په دُعا کښې وی یا په بل عمل کښې د ټولو دا حال دے چه دغه د الله تعالیٰ خوښ نه وی- بلکه که په غور سره او کتے شی نو دین د اسلام نوم دے د حدونو او د قیدونو د پابندئ او د فرمان بردارئ، مونځ، روژه، حج، زکوٰة او په ټولو معاملاتو کښې د حدود شرعیو نه تجاوز او کړے شی نو دغه په ځائے د عبادت ګناه جوړ شی-

په دُعاء کښې د حد نه د تجاوز کولو څو صورتونه دی، یو دا چه په دُعاء کښې لفظی تکلفات قافیئے وغیره اختیار کړے شی چه په دے سره په خشوع او خضوع کښې فرق پریوځی، دویم دا چه په دُعاء کښې غیر ضروری قیدونه او شرطونه او لګولے شی، لکه چه په حدیث کښې دی چه حضرت عبدالله بن مغفلؓ اولید وچه د ده ځوئ دا سے دُعاء غواړی چه یا الله زه ستا نه په جنت کښې د سپین رنګ ښئ بجانب والا محل غواړم- نو دوئ منع کړو- او اوئے فرمائیل چه په دُعا کښې دا سے قیدونه او شرطونه لګول د حد نه تجاوز دے چه په قرآن او حدیث کښې منع شوی دی (مظهری په روایت د ابن ماجه وغیره)

دریم صورت د حد نه د تجاوز دادے چه د عامو مسلمانانو د پاره بده دُعاء کوی یا څه دا سے شے غواړی چه د عامو خلقو د پاره مضر وی، دغه شان یو صورت د حد نه د تجاوز دا هم دے کوم چه دلته ذکر دے چه په دُعاء کښې بے ضرورته آواز پورته شی (مظهری، احکام القرآن)

په دویم ایت کښې ارشاد فرمائی: وَلَا تُفْسِدُوْا فِي الْاَرْضِ بَعْدَ اِصْلَاحِهَا: په دے کښې دوه لفظونه متضاد او متقابل راغلی دی، صلاح او فساد، دَ صلاح معنیٰ درُستی او دَ فساد معنیٰ خرابی ده، امام راغب په مفردات القرآن کښې فرمائی چه فساد وائی دَ یو شی دَ اعتدال نه وتلو ته خواه دا وتل لګ وی او که ډیر او په هر فساد کښې دَ کمی زیاتی مدار دَ دے اعتدال نه په وتلو سره دے څومره چه دا وتل زیات وی فساد زیاتیږی، دَ اِفساد معنیٰ خرابی پیدا کول دی او دَ اصلاح معنیٰ درُستی کول دی، په دے وجه: وَلَا تُفْسِدُوْا فِي الْاَرْضِ بَعْدَ اِصْلَاحِهَا: معنیٰ دا شوه چه "په زمکه کښې خرابی مه پیدا کوئ پس دَ دے نه چه الله تعالیٰ دا درُسته کړے ده"

امام راغبؒ فرمائی چه دَ الله تعالیٰ دَ یو شی اصلاح کولو څو صورتونه کیدے شی یو دا چه دے لره دَ اول نه ټهیک ټهیک او درست پیدا کړی، لکه: وَاَصْلَحَ بَالَهُمْ: دویم دا چه په دے کښې څه فساد راغلے وی هغه لرے کړی لکه: يُصْلِحْ لَكُمْ اَعْمَالَكُمْ: دریم دا چه دے لره دَ صلاح حکم ورکړے شی، په دے ایت کښې چه کوم دا ارشاد دے چه هرکله الله تعالیٰ دَ زمکے اصلاح او درستی فرمائیلے ده نو دَ دے نه پس تاسو په دے کښې فساد او خرابی مه اچوئ۔ په دے کښې دَ زمکے دَ درستئ کولو دوه معنے کیدے شی، یوه ظاهرا درستی چه زمکے لره په فصل او وُلو بو تهو سره تر و تازه کړی دَ وریځو نه پرې اُوبه او وَرَوی ګلونه او میوے ترې راؤباسی، دَ انسان او دَ نورو ځناورانو دَ پاره دَ زمکے نه هر قسم دَ ژوند ضرورتونه او دَ آرام سامان پیدا کړی۔

دویمه معنیٰ ئے دا ده چه دَ زمکے باطنی او معنوی اصلاح او فرمائی دا سے چه زمکے ته خپل رسولان کتابونه او هدایات اولیږی دَ کفر او شرک او ګمراهئ نه ئے پاکه کړی۔ او کیدے شی چه دا دواړه معنے یعنی ظاهرا او باطنی هر قسم اصلاح په دے ایت کښې مراد وی نو او س دَ ایت معنیٰ دا شوه چه الله دَ زمکے ظاهری او باطنی درستی فرمائیلے ده او س تاسو په خپلو ګناهونو او نافرمانو سره په دے کښې فساد مه خوروئ، او خرابی پکښې مه پیدا کوئ۔

---

دَ زمکے درستی او خرابی څهٔ ده او دَ خلقو دَ گناهونو په دې څهٔ اثر دے؟

لکه څنګه چه دَ اصلاح دوه قسمونه ظاهري او باطني دي دغه شان دَ فساد هم دوه قسمونه دي- دَ زمکے ظاهري اصلاح خو داده ، چه الله تعالیٰ دے لره اسے جسم جوړ کړے دے چه نه دَ اُوبو پشان نرمه ده چه قرار پرِ نه راځی او نه دَ کټے اُو سپنے پشان سخته ده چه کنستلے کیږی نه په یو درمیانی حالت کښے پیدا کړے ده چه انسان دے لره نرمه کړی فصلونه او اونے بوټی پکښے اوکری او په کنستلو سره پکښے کوهی او خندقونه نهرونه جوړ کړلے شی دَ مکانونو بنیادونه پکښے محکم کړی ، بیائے دَ دے زمکے دننه او باهر داسے سامان پیدا کړو پکوم سره چه دَ دے ابادی کیږی په دے کښے شینکی او کلونه میوے راتو کیږی، دَ باهر نه هوا، رنړا ، گرمی یخنی ئے پیدا کړه، او بیائے دَ وریځو په ذریعه په دے اُوبه راوورولے چه ونے بوټی فصلونه پرِ پیدا اشی دَ مختلفو ستورو او سیارو یخے گرمے پلو شے ئے پرِ واچولے چه په دے سره په کلونو او میوو کښے رنګ او رس راشی ، انسان ته ئے پوهه او عقل ورکړو چه دَ دے په ذریعه دَهٔ دَ زمکے نه دَ راوتونکو خامو موادو لرګو، اُوسپنے ، تانبے پیتلو، ایلومنیم وغیره جوړتوړ او نګوَل دَ مصنوعاتو دَ یو بے نوے دنیا بنائے جوړه کړه دا ټول دَ زمکے ظاهري اصلاح ده کومه چه الله تعالیٰ پخپل کامل قدرت سره فرمائیلے ده-

او دَ باطني اصلاح او روحاني مدار دَ الله په ذکر دَ الله تعالیٰ سره په تعلق او دَ هغهٔ په اطاعت باندِ دے - دَ دے دَ پاره اول خو الله تعالیٰ دَ هر انسان په زړهٔ کښے یو ماده او جذبه دَ خدائے دَ اطاعت او دَ یاد وا یخودے ده ...

: فَأَلْهَمَهَا فُجُورَهَا وَتَقْوَاهَا : او دَ انسان نه گیر چاپیره په هر ذره ذره کښے ئے دَ خپل کامل قدرت او عجیبه کاریګرئے داسے مظاهر ایخودی دی چه دَ دے په لید و سره دَ معمولی فهم او پوهے خاوند هم وئیلے شی چه: فَتَبَارَكَ اللَّهُ أَحْسَنُ الْخَالِقِينَ: دَ دے نه علاوه ئے خپل رسولان راولیګل، کتابونه ئے نازل کړل چه دَ دے په ذریعه ئے دَ مخلوق رشته دَ خالق سره دَ ترلو پوره انتظام او فرمایه-

دغه شان گویا دَ زمکے مکمل اصلاح ظاهرا او باطنا اوشوه ، او س حکم دا دے

چه موښږ دے زمکے لره درسته کړے ده تاسو دے لره مه خرابوئ -

لکه څنګه چه د اصلاح دوه قسمونه ظاهري او باطني دي، دغه شان د دے په مقابله کښے د فساد هم دوه قسمونه ظاهري او باطني دي او د الله تعالیٰ د دے ارشاد په ذريعه د دواړو ممانعت شوے دے -

اګر چه د قرآن او نبي کريم صلے الله عليه وسلم اصل وظيفه او فرض منصبي د باطني اصلاح ده، او د دے په مقابله کښے د باطني فساد د نه منع کول دي ليکن په دے دنيا کښے د ظاهر او باطن په اصلاح او فساد کښے يو داسے ربط دے چه د يو فساد د بل د فساد موجب جوړيږي، په دے وجه قرآني شريعت چه څنګه د باطني فساد دروازے بندے کړے دي دغه شان ظاهري فساد ئے هم منع کړے دے، غلا، ډاکه، قتل او د بے حيائي ټول طريقے په دنيا کښے ظاهري او باطني هر قسم فساد پيدا کوي، په دے وجه په دے څيزونو ئے په خصوصيت سره پابندئ سختے سزاګانے مقرر کړي دي، او عام ګناهونه او جرمونه ئے هم منع کړي دي، ځکه چه هر جرم او ګناه کله د ظاهري فساد سبب جوړيږي او کله د باطني، او که په غور سره اوکتے شي نو ظاهري فساد د باطني فساد سبب جوړيږي او هر باطني فساد د ظاهري فساد سبب وي -

د ظاهري فساد خو د باطني د پاره لازميدل په دے وجه ښکاره دي چه دا د الله تعالیٰ د فرمانبردارئ او احکامو خلاف ورزي ده او د خدائے تعالیٰ نافرماني دويم باطني فساد دے - البته باطني فساد څنګه چه د ظاهري فساد سبب جوړيږي د دے پيژندل لګه د غور او فکر محتاج دي - وجه دا ده چه دا ټول جهان او د دے هر لوئے وړوکے شے ټول د مالک الملک والملکوت جوړ کړي شوي دي او د دهٔ د فرمان تابع دي - ترڅو پورے چه انسان د الله تعالیٰ تابع فرمان وي نو دا ټول څيزونه د انسان صحيح صحيح خدمتګاران وي او کله چه انسان د الله تعالیٰ نافرماني شروع کړي نو د دُنيا ټول څيزونه در پرده د انسان نافرمانه شي، چه په ظاهره ئے انسان پخپلو سترګو سره نه وينئ ليکن د دے څيزونو په نښو خواصو او نتيجو او فائدو کښے د غور کولو نه په بديهي طور سره د دے ثبوت ملا ويګي -

په ظاهر کښې خو د دُنیا دا ټول څیزونه د انسان په استعمال کښې وی، او په دخلق نه تیږے شی نو د تندے ما تو لو نه انکار نه کوی، خوراک د دهٔ د لوږے دفع کو لو نه نهٔ منع کیږی، لباس او مکان د دهٔ نه د گرمئ او یخنئ دفع کو لو نه انکار نه کوی،

لیکن چه عاقبتونو او نتیجو ته اُوکتے شی نو دا سے معلومیګی چه په دوی کښې یو شے هم خپل کار پوره نه کوی، ځکه چه اصل مقصد د دے ټولو څیزونو او د دوی د استعمال دا دے چه انسان ته آرام او راحت حاصل شی، د دهٔ پریشانی او تکلیف لرے شی او د بیمارونه شفا حاصله کړی۔

اوس د دُنیا په حالاتو باندے نظر واچوئ نو معلومه به شی چه نن صبا د راحتونو د سامان او د بیمارونه د شفا د سامانونو د اندازے نه د باهر زیاتوالی باوجود د انسانانو اکثریت په انتهائی پریشانو او بیمارو کښې اَخته دی، نوی نوی مرضونه نوی نوی مصیبتونه راپیدا کیږی، د لوړو نه لوئے انسان هم په خپل ځائے مطمئن او په آرام نه دے، بلکه څومره چه د اسامانونه زیاتیګی په دغے اندازه مصیبتونه او آفتونه او مرضونه او پریشانئ سوا کیږی، ے څومره چه علاج کوی هومره مرض زیاتیږی ؛

د نن انسان کوم لره چه برُق او بړاس او نورو مادی رنګینو مسحور کړے دے، که لږ د دے څیزونو نه او چت سوچ اُوکړی نو دهٔ ته به معلومه شی چه زمونږ ټول کوششونه ټول مصنوعات او ایجادات زمونږ په اصل مقصد یعنی اطمینان او راحت راوستلو کښې فیل او ناکامه دی، د دے وجه بغیر د دے معنوی او باطنی سبب نه بل نهٔ دے چه مونږ د خپل ربّ او مالک نافرمانی اختیار کړه نو د هغهٔ مخلوقات په معنوی طور سره زمونږ نه نافرمانی شروع کړه ؛ ے

چون از وگشتی همه چیز از تو گشت

(یعنی چه تا د هغهٔ نافرمانی اختیار کړه هر شی ستا نافرمانی اختیار کړه)

چه زمونږ د پاره اوس حقیقی آرام او راحت نه تیار دی - مولانا رومی

رحمة الله علیه ښه بیئه فرمائی : ؎

خاک وباد وآب آتش بنده اند

با من وتو مرده با حق زنده اند

(یعنی مٔکه اوبه باد اوبه او اور د خدائے د حکم تابع فرمان دی، ما او تا ته مړه ښکاری خو د خدائے حق تعالیٰ په نزد ژوندی دی)

بیخوبه د خبرے دا دے چه هر کله په غور سره اوکتے شی نو هر یو گناه او د خدائے تعالیٰ نه غفلت او د خدائے نافرمانی په دنیا کښے نه صرف باطنی فساد پیدا کوی بلکه ظاهری فساد هم د دے لازمی ثمره وی۔ هم د دے خبرے لره مولانا رومیؒ فرمائیلے دہ : ؎

ابر نایداز پئے منع زکوٰۃ

وز زنا افتد وبا اندر جهات

(یعنی د زکوٰۃ په منع کولو سره باران بند یږی، او په زنا سره په دنیا کښے هر طرف ته وباگانے راځی)

او دا خبره شاعرانه خیالات نه دی بلکه هغه حقیقت دے چه قرآن او حدیث پرے ناطق دی، لیکن د سزا ښکه شان نمونه په دے دنیا کښے د مرضونو، وباگانو، طوفانونو او سیلابونو په صورت کښے مخے ته راځی،

په دے وجه د : لَا تُفْسِدُوْا فِی الْاَرْضِ بَعْدَ اِصْلَاحِهَا : په معنی کښے چه څنگه هغه جرمونه او گناهونه داخل دی د کومو نه چه په ظاهر طور سره په دنیا کښے فساد پیدا کیږی، دغه شان هر نافرمانی او د خدائے تعالیٰ نه غفلت او گناه هم په دے کښے شامل دی۔ په دے وجه په ذکر شوی آیت کښے ئے د دے نه پس اوفرمائیل : وَادْعُوْهُ خَوْفًا وَّ طَمَعًا : یعنی الله تعالیٰ لره بلئی په یره او طمع سره یعنی په داسے طور سره چه یو طرف ته د دعا د نه قبلیدو یره وی او بل طرف ته د هغهٔ د رحمت نه پوره امید هم وی او دا امید او یره په طریقه د استقامت کښے د انسانی روح دوه ښانگونه دی چه په دے سره دے پرواز کوی او اوچتے درجے حاصلوی۔

دَ دے عبارت نه دا هم ظاهر ده چه اُمید او یره دواړه په مساوي یعنی برابر درجه کښے پکار دي، او بعضِ عالمان فرمائي چه مناسب دا ده چه دَ تندرستۍ په زمانه کښے یره غالبه ساتي چه په اطاعت کښے کوتاهي نه راځي او کله چه دَ مرګ وخت نزدے راشي نو اُمید دِ غالب ساتي ځکه چه اوس دَ عمل طاقت رخصت شوے دے، دَ رحمت اُمید دَ دهٔ عمل پاتے شوے دے (بحر محیط)

او بعضِ محققین فرمائي چه اصل مقصد دَ دین په صحیح لار باندِ قائم پاتے کیدل او دَ الله تعالیٰ په اطاعت باندِ همیشوالے دے۔ او مزاجونه او طبیعتونه دَ انسانانو مختلف وي، چا ته دَ غلبے دَ یرے نه دا مقام دَ استقامت او دَ اطاعت حاصلیږي، او چا ته دَ غلبے دَ محبّت او دَ اُمید نه۔ پس چا ته چه پکوم حالت کښے دَ دے مقصد حاصلول مره ملاؤ شي دَ دے دَ حاصلولو فکر دِ کوي۔

لنډه دا چه دَ دُعاء دوه آدابونه دَ دے نه په وړاندِ ایت کښے خودلی شوي دي یو په زاریٔ او عاجزیٔ سره، دویم په پټه او په رو سره، دا دواړه صفتونه دَ انسان دَ ظاهري جسد سره تعلق لري ځکه چه دَ عاجزۍ نه مراد دا دے چه خپل هیئت دَ دُعاء په وخت کښے عاجزانه او فقیرانه جوړه کړي۔ متکبرانه یا بے نیازانه نهٔ وي۔ او دَ پټوالي تعلق هم دَ خُولے او دَ ژبے سره دے۔

په دے ایت کښے دَ دُعا دَ پاره دوه باطني ادبونه نور هم خودلے شوي دي چه تعلق ئے دَ انسان دَ زړهٔ سره دے هغهٔ دا چه دَ دعا کوونکي په زړهٔ کښے دَ دے یره هم پکار ده چه شائد زما دعا قبوله نه شي، او اُمید هم پکار دے چه زما دُعا قبلیدے شي۔ ځکه چه دَ خپلو خطاګانو او دَ ګناهونو نه بے فکره کیدل هم دَ ایمان نه خلاف دي، او دَ الله تعالیٰ دَ لوئے رحمت نه مایوسه کیدل هم کفر دے، دَ دُعاء دَ قبلیدو هله توقع کیدے شي کله چه دَ دے دواړو حالتونو په مینځ مینځ کښے وي۔

بیا دَ ایت په اخر کښے فرمائي: إِنَّ رَحْمَتَ اللَّهِ قَرِيبٌ مِّنَ الْمُحْسِنِينَ: "یعنی دَ الله تعالیٰ رحمت نزدے دے نیک کارکوونکو ته" په دے کښے اِشاره دے

خبرے ته ده چه اګرچه په وخت د دُعاء د یرے او اُمید دواړه حالتونه پکار دی لیکن په دے دواړو حالتونو کښے د اُمید جانب راجح دے۔ ځکه چه رب العٰلمین اورحیم الرّحماء په سخا او احسان کښے نه څهٔ کمے شته او نه بُخل، هغهٔ د بد ونه د بد انسان بلکه د شیطان هم دُعا قبلوی، البته که د نهٔ قبلیدو څهٔ یره کیدے شی نو هغه د خپلو بدو عملونو او ګناهونو نحوست کیدے شی، ځکه چه د الله تعالیٰ د رحمت نزدے کیدو د پاره محسن یعنی نیک عمله کیدل پکار دی۔

په دے وجه نبی کریم صلے الله علیه وسلم فرمائیلی دی چه بعض خلق... اوګدے اوګدے سفرونه کوی او خپل هیئت فقیرانه جوړوی او د الله تعالیٰ په وړاندې د دُعاء د پاره لاسونه اوچتوی مګر د دوی خوراک هم حرام دے څښل ئے هم حرام دی او لباس ئے هم حرام دے پس د داسے سړی دُعاء څنګه قبلیدے شی (مسلم، ترمذی عن ابی هریره رض)

او په یو حدیث کښے دی چه نبی کریم صلے الله علیه وسلم فرمائیلی دی چه د بنده دُعاء تر هغه وخته پورے قبلیدے شی ترڅو چه دے د څهٔ ګناه یا د خپلوئ پریښودو دُعا نه کوی، او جلد بازی نه کوی، صحابه کرامو رض تپوس اوکړو چه د جلد بازئ څهٔ مطلب دے؟ دوی اوفرمائیل چه مطلب دا دے چه داسے خیال اوکړی چه زهٔ د دومره وخت نه دُعا غواړم او لا تراوسه قبوله نه شوه تر دے چه مایوسه شی او دعا پاتے کړی (مسلم، ترمذی)

او په یو حدیث کښے دی چه نبی کریم صلے الله علیه وسلم فرمائیلی دی چه د الله تعالیٰ نه کله دُعا غواړئ نو په داسے حالت کښے غواړئ چه تاسو ته د هغے په قبلیدو کښے هیڅ شک نه وی۔

مراد دا دے چه د الله د رحمت لوئے والے ځان ته وړاندې کړئ زړهٔ په دے کلک کړئ چه زما دُعا به خامخا قبوله شی، دا د دے منافی نه ده چه د خپلو ګناهونو د شامته دا یره هم محسوس کړئ چه شاید زما ګناهونه د دُعا په قبلیدو کښے آړ جوړ شی (وصلے الله تعالیٰ علیٰ نبینا محمد صلے الله علیه وسلم)

---

وَهُوَ الَّذِي يُرْسِلُ الرِّيٰحَ بُشْرًا بَيْنَ يَدَيْ رَحْمَتِهٖ ۚ

او هغه داسې ذات دے چه چلوی هواګانے خوشخبری راوړونکے د باران نه وړاندې

حَتّٰٓى إِذَآ أَقَلَّتْ سَحَابًا ثِقَالًا سُقْنٰهُ لِبَلَدٍ مَّيِّتٍ

تر دے چه کله دغه هواګانے اوچتے کړی درنے وریځے نو شړو مونږه دغو وریځو لره ښار مړ

فَأَنْزَلْنَا بِهِ الْمَآءَ فَأَخْرَجْنَا بِهٖ مِنْ كُلِّ

طرفته بیا مونږ نازل لوو دے وریځے نه اوبه پس راوباسو په دے سره د هر قسم

الثَّمَرٰتِ ۚ كَذٰلِكَ نُخْرِجُ الْمَوْتٰى لَعَلَّكُمْ

میوے - دغه شان به مونږ راوباسو مړو لره د دے دپاره چه تاسو

تَذَكَّرُوْنَ ﴿٥٧﴾ وَالْبَلَدُ الطَّيِّبُ يَخْرُجُ نَبَاتُهٗ

غور اوکړئ او کومه زمکه چه پاکیزه ده د هغے سبزه راوځی

بِإِذْنِ رَبِّهٖ ۚ وَالَّذِي خَبُثَ لَا يَخْرُجُ إِلَّا

د دے د رب په حکم سره - او کومه چه خرابه ده په دے کښے نه راوځی مګر

نَكِدًا ۚ كَذٰلِكَ نُصَرِّفُ الْآيٰتِ لِقَوْمٍ يَّشْكُرُوْنَ ﴿٥٨﴾

ناقصه - دغه شان په هر څه بیانوو مونږ آیاتونه د حق منونکو د پاره -

# لنډ تفسیر

او هغه (الله) داسے دے چه د خپل باران د رحمت نه وړاندې هواګانے لیږی چه دغه د باران خوشخبری ورکوی زړه لره) خوشحالوی تر دے چه کله دغه هواګانے درنو وریځو لره اوچتوی نو مونږ دے وریځو لره یوے اوچے زمکے

طرف ته شړو، بیا دے وړیځې نه اُوبه ورووبیا په دے اُوبو سره هر قسم میوے راوباسو، (چه په دے سره د الله تعالیٰ توحید او قدرتِ مطلقه مړو لره ژوندی کول ثابتیږی، په دے وجه فرمائی) هم دغسے به ړد قیامت په ورځ) مونږ مړو لره (د زمکے نه) راوباسو اُو دَرد دو (داتهولے خبرے در ته ځکه واورَولے) چه تاسو پوهه شئ (او د قرآن او نبی کریم صلے الله علیه و سلم هدایت اگرچه د ټهولو د پاره عام دی مګر د دے نه فائده اغستونکی کم خلق دی د دے مثال دغه باران پشان اوګنړئ چه باران خو په هره زمکه وریګی مګر فصلونه او وُنے هرځائے نه پیدا کیږی صرف په هغه زمکه پیدا کیږی پکومه کښے چه صلاحیت وی، په دے وجه فرمائی) کومه زمکه کښے پاکه وی د هغے پیداوار خو د خدائے په حکم سره ښه کیږی او کومه چه خرابه وی د هغے پیداوار (که را اوځی هم خو) ډیر کم را اُوځی داسے مونږ د رهمیشه) دلیلونه په قسم قسم سره بیا بیا نو (مګر دغه ټهول) د هغو خلقو د پاره (نفع کوی) کوم چه (د دوی) قدر کوی۔

## معلومات او مسئلے

په تیرو ایاتونو کښے الله تعالیٰ د خپلو خاصو خاصو لویو لویو نعمتونو ذکر فرمائیلے دے چه په هغوی کښے د آسمان، زمکے، شپے ورځے، نمر سپوږمئ او د عامو ستورو د پیدا ائیش او د دوی د انسان د ضرورتونو تیارولو او د دوئ په خدمت کښے د لګیدو ذکر دے او کړو په دے ئے خبرداره اوفرمایه چه هرکله زمونږ د ټهولو ضرورتونو او ټهولو راحتونو سامان پیدا کوونکے یو ذات پاک دے، نو په هر حاجت او ضرورت کښے مونږ لره دُعاء او درخواست هم د هغهٔ نه کول پکار دی، او د هغهٔ طرف ته رجوع کول د خپل ځان د پاره د کامیابئ کنجی ګنړل پکار دی۔

په ذکر شوو ایاتونو ځنے په اوّل آیت کښے هم د دے قسم د اهمو اولویو نعمتونو ذکر دے، پکومو چه د انسان او د زمکے د ټول مخلوقات د ژوندا او بقاء مدار دے۔ مثلاً باران او د دے نه پیدا کیدونکی

وُنې او فصلونه ترکاریٔ وغیره - فرق دا دے چه په تیرو ایاتونو کښې د نعمتونو
ذکر وَه کوم چه د اوچت عالم سره تعلق لری، او په دے کښې د هغو نعمتونو ذکر
دے کوم چه د لاندِ عالم سره تعلق لری (بحر محیط)

او په دویم ایت کښې یوه خاص خبره دا خودَلے شوے ده چه زمونږ
دا عظیم الشان نعمتونه اګرچه د زمکے په هرهٔ حصه باندِ عام دی، باران کله
ورېږی نو په دریاب هم ورېږی او په غرٔ هم، په بنجرو او خرابه زمکه او بنهٔ
او غوره زمکه یو شان ورېږی، لیکن فصلونه وُنے سبزیانے صرف په
هغه زمکه کښې پیدا کیږی پکومه کښې چه صلاحیت وی د فصل د تهوکولو- کاږچنے
او شکلنے زمکے د دے باران نه هیڅ فائده نه شی اَغستے -

د اوّل ایت نه ئے دا نتیجه راوُیستله اُوئے خودَ له چه کوم پاک ذات د
مړے زمکے نشونما کوی ژوندے ورله ورکوی، د هغهٔ د پاره دا ډیر مشکله ده
چه کوم انسان اوّل ژوندے وُو بیا مړ شو، په دهٔ کښې دوباره ژوند
پیدا کړی، دے نتیجے له ئے په دے ایت کښې په واضح طور سره اوُ خودَله
او د دویم ایت نه ئے دا نتیجه راویستله چه د الله تعالیٰ د طرف نه، اسمانی
کتابونه، او انبیاء علیهم السلام بیا د هغوی نائبان عالمان او مشائخ
د دوی تعلیم او تربیت هم د باران پشان د هر انسان د پاره عام دے
مګر لکه څنګه چه د باران د رحمت نه هره زمکه فائده نه شی اُوچتولے
دغه شان د دے روحانی باران نه فائده هم صرف هغه خلق حاصلولے
شی په چا کښې چه دا صلاحیت وی، او د کومو خلقو زړونه چه د کاږچنے
یا شکلنے زمکے پشان د نشونما قابلیت نه لری هغوی د تهولو واضحو
ایاتونو باوجود بچلے ګمراهئ اَړوی -

د دے نتیجے طرف ته د دویم ایت په اخری جمله کښې ارشاد فرمائی: كَذٰلِكَ
نُصَرِّفُ الْاٰيٰتِ لِقَوْمٍ يَّشْكُرُوْنَ: یعنی مونږ دغه شان خپل دلیلونه په
شان شان سره بیانوُو د هغو خلقو د پاره کوم چه قدر کوی، مطلب دا دے
چه اګرچه فی الواقع دا بیان خو د تهولو د پاره وَه، مګر د نتیجے په طور باندِ
فائده ئے د هغو د پاره ثابته شوه په چا کښې چه د دے صلاحیت دے،

اوهغوی ته قدرومنزلت پیژنی، دغه شان ذکرشوی دواړه ایاتو نه
د اوّل پیدائیش او کد وباره ژوندی کیدو په اهمومسئلو باندې مشتمل دی
اوس د دے دواړو ایاتو تفصیل واورئ، په اوّل ایت کښے ارشاد دے:-

وَهُوَ الَّذِي يُرْسِلُ الرِّيَاحَ بُشْرًا بَيْنَ يَدَيْ رَحْمَتِهِ : په دے کښے رِیاح د ریح
جمع ده، چه معنیٰ ئے ده "هوا" او د بُشْرًا: معنی زیرے او خوشخبری ده۔ او د
رحمت نه مراد باران دے د رحمت، یعنی دا الله تعالیٰ دے چه را لیګی د باران د
رحمت نه وړاندې هواګانې د خوشخبرئ ورکولو د پاره -

مطلب دا دے چه عام عادت د الله تعالیٰ دا دے چه د باران نه وړاندې
یخے هواګانې را لیګی د کوم نه چه انسان ته پخپله راحت او تازګی حاصلیګی
او دغه ګویا د راتلونکی باران خبر د وړاندې نه ورکوی، په دے وجه دا
هواګانې د دوه نعمتونو جمع کوونکے دی۔ پخپله هم د انسانانو او عام مخلوقات
د پاره نفع منده دی، او د باران د راتلو نه وړاندې د باران خبر هم ورکوئ
ځکه چه انسان یو لطیف او نازک مخلوق دے چه د ده ډیر ضرورتونه
د باران نه بندوی - هرکله چه د باران د څه وړاندې نه اطلاع ملاؤ
شی نو دے خپل انتظام اوکړی۔ د دے نه علاوه پخپله د ده وجود او د ده
سامان د باران برداشت نه شی کولے، دے چه د باران نیټے او وینی د خپل سامان
او خپل ځان حفاظت اوکړی۔

د دے نه پس فرمائی: حَتَّىٰ إِذَا أَقَلَّتْ سَحَابًا ثِقَالًا: د سحاب معنیٰ وریځ ده - او
ثقال د ثقیل جمع ده چه معنیٰ ئے ده درونه۔ یعنی کله چه هغه هواګانې درنے وریځے
اوچتے کړی، د درنو وریځو نه مراد د اوبو نه ډکے وریځے دی چه د هوا په
اوګو سورے شی بره ځی۔ او دغه شان دا په زرګونو منه اوبه په هوا
سورے شی بره ځی، او حیرانونکے خبره دا ده چه نه په دے کښے څه مشین کارکوی
او نه څهٔ انسان په دے کښے محنت کوی، هرکله چه د الله تعالیٰ حکم اوشی نو خود
بخود د دریاب نه بخارات (مون سون) پورته کیدل شروع شی او بره لاړ شی
وریځ جوړه شی او دا په زرګونو بلکه په لاکونو ګیلنه د اوبو نه ډک جهاز خود بخود
د هوا په اوګو سور شی آسمان ته خیژی -

دَ دینه پس فرمائی، سُقۡنٰهُ لِبَلَدٍ مَّيِّتٍ، دَ سوق معنیٰ ده دَ یو جانور را بیکول او چلول، او دَ بلد معنیٰ ده ښهر یا کلی، دَ میت معنیٰ ده مړ۔

معنیٰ داده چه کله هوا گانو دړنے وریځے اوچتے کړے نو مونږ دے وریځو لره او شړلے یو مړ ښار طرف ته، دَ مړ ښار نه مراد هغه ځائے دے چه دَ اوبو نه مونډ وپه وجه وران شوے وی، او دلته په ځائے دَ عامے په خصوصیت سره دَ ښار او کلی ذکر کول په دے وجه مناسب معلوم شو چه اصل مقصد دَ برق وباران او په دے سره دَ زمکے دَ سیرابۍ نه دَ انسان ضروریات تیارول دی چه ځائے دَ او سیدو ئے ښار دے، ورنه دَ بیابان شین زرغون کول یخپله څهٔ مقصد نهٔ دے۔

تر دے ځائے پورے دَ ذکر شوی ایت دَ مضمون څو اهم خیزونه ثابت شو اوّل داچه باران دَ وریځو نه وریږی لکه چه لیدے شی۔ دَ دینه معلومه شوه چه په کوم ایاتو کښے دَ اسمان نه باران وریدل ذکر دی هلته هم دَ لفظ دَ سمانه مراد وریځ ده، او دا هم څه لرے نه ده چه څنے وخت دَ دریابۍ مونسون په ځائے نیغ په نیغه دَ اسمان نه وریځ پیدا شی او باران تر او شی۔

دویم داچه دَ وریځو یو خاص طرف او خاصے زمکے ته تلل نیغ په نیغه دَ الله تعالیٰ دَ حکم متعلق دی هغه چه کله غواړی کوم ځائے غواړی څومره غواړی دَ باران وُرَدَ لو حکم کوی۔ وریځ دَ الله تعالیٰ دَ حکم تعمیل کوی۔ دَ دے مشاهده هر ځائے داسے کیدے شی چه ډیر کرته په یو ښار یا کلی وریځ خوره وی او هلته دَ باران ضرورت هم وی لیکن هغه وریځ دلته یوه قطره او به هم ورنه کړی، بلکه دَ کوم ښار یا کلی کوته چه دَ الله په حکم مقرر شوے وی هلته لاړه شی او وریږی۔ دَ چا مجال نیشته چه دَ هغ ښار نه علاوه بل ځائے دَ دغے وریځے نه اوبه حاصلے کړی۔

پخوانو او نوو فلاسفرانو دَ مونسون او هوا گانو دَ حرکت دَ پاره څهٔ ضابطے او اصول راویستلی دی چه دَ هغوی په ذریعه دوی ښائی چه فلانے مونسون چه دَ فلانی سمندر نه پورته کیږی کوم طرف ته به ځی، کوم ځائے به وریږی،

څو مره اُو به به وَرَوي، په عامو ملکو نو کښې دَ موسمياتو محکمې دَا قسم معلومات
تيارَ، وَ لو دَپاره قائمُولے شي، ليکن تجربه ګواه ده چه دَ موسمياتو دَ محکمې
وَرکړې شوي خبرونه اکثر غلط وي، او کله چه دَ الله حکم دَ دې خلاف اُوشي
نو دَ دوي ټولے ضابطے او قاعدے دَ غسے پاتې شي، هواګانے او مون سون خپل
رُخ دَ دوي دَ ورکړو شوو خبرونو خلاف بل طرف ته اوګرځوي، او دَ موسمونو
محکمے دغسے حيرانے پاتې شي -

دې نه علاوه کومے ضابطے قاعدے چه دَ هواګانو دَ حرکت دَ پاره دَ
فلاسفرانو تجويز کړې دي هغه هم څهٔ دَ دے منافي نه دي چه دَ ورَ يځو
حمل او نقل دَ الله تعالىٰ دَ حکم تابع دے، ځکه چه دَ الله تعالىٰ عادت دَ دے
عالم په ټول کاروبار کښې دا دے چه دَ الله تعالىٰ حکم دَ طبعي اسبابو په پردو
کښې ظاهريږي، دَ دے طبعي اسبابو نه انسان څهٔ ضابطه قاعده جوړولے
شي، ورنه حقيقت هغه دے کوم چه حافظ شيرازيؒ خودَلے دے: ؎

کار زلف تست مشک افشاني امّا عاشقان
مصلحت را تهمتي بر آهوئے چين بسته اند

(يعني بوئې دَ مشکو ستا دَ زلفو په وجه دے خو عاشقانو دَ پاره دَ
مصلحت تهمت په هوسئ دَ چين پورے تړلے دے) -

دَ دې نه پس ارشاد فرمائي : فَأَنزَلْنَا بِهِ الْمَاءَ فَأَخْرَجْنَا بِهِ مِن كُلِّ الثَّمَرَاتِ:
"يعني مونږ په دے مړ بنار باندې اُوبه اُوورَولے بيا په دے اُوبو سره دَ
هر قسم ګلونه او ميوے را اوويستلے"

دَ آيت په آخر کښې ارشاد فرمائي : كَذَٰلِكَ نُخْرِجُ الْمَوْتَىٰ لَعَلَّكُمْ تَذَكَّرُونَ:
"يعني مونږ دغه شان را اوباسو مړو لره دَ قيامت په ورځ شايد تاسو پوهه شئ"
مطلب دا دے چه څنګه مونږ مړے زمکے لره ژوندۍ کړه او دَ دے نه مو
وُنے ګلونه او ميوے را اوويستلے دغه شان دَ قيامت په ورځ به مړو لره دوباره
ژوندي کړو را اوبه ئے باسو، او دا مثالونه مونږ دَ دے دَ پاره بيان کړي
دي چه تاسو ته دَ سوچ او غور کولو موقع ملاؤ شي -

په روايت دَ حضرت ابو هريرهؓ نقل دي چه نبي کريم صلے الله عليه وسلم

فرمائیلی دی چه په قیامت کښې به شپیلۍ دوه پیرے پوکلے شي په اوّله شپیلۍ به ټول عالم فنا شي یو شے به هم ژوندے پاتے نه شي. او په دویمه به بیا د نوی سره عالم پیدا شي او ټول مړی به ژوندی شي، په دے ذکر شوی حدیث کښې دی چه د دے دواړو شپیلو په مینځ کښې به څلویښت کاله فاصله وی او په دے څلویښت کاله کښې به مسلسل باران وریګی. په دے زمانه کښې به د هر مړی انسان او جانور اجزاء د بدن د ده سره جمع شي د هر یو مکمله ډانچه به جوړه شي، او بیا به دویم وارے شپیلۍ وهلو په وخت په دے لاشونو کښې روح راشي او ژوندی به او ودرولے شي. د دے روایت اکثره حصه په بخاری او مسلم کښې موجود ده او د دے روایت بعض اجزاء د ابن ابی داؤد د کتاب البعث نه اغستے شوی دی۔

په دویم آیت کښې ارشاد دے: وَالْبَلَدُ الطَّيِّبُ يَخْرُجُ نَبَاتُهُ بِإِذْنِ رَبِّهِ وَالَّذِي خَبُثَ لَا يَخْرُجُ إِلَّا نَكِدًا: نَكِدْ: وائی هغه څیز ته کوم چه بے فائدے هم وی او بیا په مقدار کښې هم کم وی، معنیٰ دا ده چه "اګرچه د باران د رحمت فیض په هر ښار هره زمکه یو شان وی، لیکن د نتیجو او فائدو په اعتبار سره د زمکے دوه قسمونه وی یوه عمده او ښه زمکه چه په هغے کښې د نشونما صلاحیت وی په دے کښې خو د هر قسم ګلونه او میوے کیږی او فائدے ترے حاصلیږی، دویمه هغه سخته او خرابه زمکه چه په هغے کښې د ټوکیدو صلاحیت نه وی، په دے کښې اوّل خو څه پیدا کیږی نه، بیا که پکښې څه پیدا هم شي نو هغه ډیر په کم مقدار کښې وی، او څومره چه پیدا کیږی هغه هم بے کاره او خراب وی۔

د آیت په آخر کښې ارشاد فرمائی: كَذَٰلِكَ نُصَرِّفُ الْآيَاتِ لِقَوْمٍ يَشْكُرُونَ: یعنی مونږ خپل د قدرت دلیلو نه په شان شان سره بیانوو د هغو خلقو د پاره کوم چه قدر کوونکی دی"۔

په دے کښې اشاره ده چه اګرچه د باران د رحمت د عام فیض په شان، د الله هدایت او د ښکاره آیاتونو فیض هم د ټولو انسانانو د پاره عام دے مګر لکه څنګه چه هره زمکه د باران نه فائده نه شي اغستے دغه شان هر انسان

دَ الله تعالیٰ دَ هدایت نه نفع نه شی حاصلولے، بلکه نفع صرف هغه خلق حاصلولے شی کوم چه قدرشناس او شکرکن اروی -

لَقَدْ اَرْسَلْنَا نُوْحًا اِلٰى قَوْمِهٖ فَقَالَ يٰقَوْمِ اعْبُدُوا

بے شکه او لیږه مونږه نوح لره دَ دهٔ دَ قوم طرف ته پس دهٔ اووے اے زما قومه بندګی کوئ

اللّٰهَ مَا لَكُمْ مِّنْ اِلٰهٍ غَيْرُهٗ ؕ اِنِّيْٓ اَخَافُ عَلَيْكُمْ عَذَابَ

دَ الله - هیڅوک نیشته ستاسو معبود دَ هغهٔ نه سوا - زهٔ یریږم پتاسو دَ عذاب د

يَوْمٍ عَظِيْمٍ ﴿۵۹﴾ قَالَ الْمَلَاُ مِنْ قَوْمِهٖٓ اِنَّا لَنَرٰىكَ فِيْ

ورځے لوئے نه - اووے سردارانو دَ دهٔ دَ قوم مونږ وینو تا لره په

ضَلٰلٍ مُّبِيْنٍ ﴿۶۰﴾ قَالَ يٰقَوْمِ لَيْسَ بِيْ ضَلٰلَةٌ وَّلٰكِنِّيْ

ښکاره بے لارے کید وکښے - اوئے وے اے زما قومه زهٔ هرګز بے لارے نه یم او لیکن زهٔ

رَسُوْلٌ مِّنْ رَّبِّ الْعٰلَمِيْنَ ﴿۶۱﴾ اُبَلِّغُكُمْ رِسٰلٰتِ رَبِّيْ

رالیګلے شوے یم دَ جانب دَ رب دَ جهان نه - پیغام رسوم تاسو ته دَ خپل رب دَ طرف نه

وَاَنْصَحُ لَكُمْ وَاَعْلَمُ مِنَ اللّٰهِ مَا لَا تَعْلَمُوْنَ ﴿۶۲﴾

او نصیحت کوم تاسو ته او پیژنم دَ الله تعالیٰ دَ طرف هغه خبرے کوم چه تاسو نه پیژنئ -

اَوَعَجِبْتُمْ اَنْ جَآءَكُمْ ذِكْرٌ مِّنْ رَّبِّكُمْ عَلٰى رَجُلٍ

آیا تاسو تعجب کوئ دَ دے نه چه راغے تاسو ته نصیحت ستا دَ رب دَ طرف نه دَ یو سړی په ژبه چه

مِّنْكُمْ لِيُنْذِرَكُمْ وَلِتَتَّقُوْا وَلَعَلَّكُمْ تُرْحَمُوْنَ ﴿۶۳﴾

ستاسو نه دے چه هغه تاسو لره اویروی او چه تاسو ځان اوساتئ او چه په تاسو رحم اوشی -

فَكَذَّبُوْهُ فَاَنْجَيْنٰهُ وَالَّذِيْنَ مَعَهٗ فِى الْفُلْكِ وَ

بیا دوی هغه دروغژن کړو بیا مونږ بچ کړو هغهٔ لره او هغو لره چه دهٔ سره په کشتۍ کښې وو او

اَغْرَقْنَا الَّذِيْنَ كَذَّبُوْا بِاٰيٰتِنَا ؕ اِنَّهُمْ كَانُوْا

غرق کړه مونږ هغو لره چه دروغژن کول ئې زمونږ آیاتونه ـ بے شکه دغه خلق وو

قَوْمًا عَمِيْنَ ﴿۶۴﴾

پړاندهٔ ـ

ع ۸ ۱۵

# لنډ تفسیر

مونږ نوح (علیه السلام) لره (پیغمبر جوړ کړو) دَ هغه قوم طرف ته او لیږهٔ پس هغوی (دے قوم ته) او فرمائیل چه اے خما قومه تاسو (صرف) دَ الله تعالیٰ عبادت کوئ دَ هغهٔ نه سوا ایل څوک ستاسو (دعبادت قابل) معبود نیشتے راو دَ بتانو عبادت پرېدئ دَ کومو نومونو چه په سورتِ نوح کښے دی، وَدّ او سواع او یغوث او یعوق او نسر) خما سره ستاسو دَ پاره (که خما خبره اونه منئ) دَ یوے لوئے (سختے) ورځے دَ عذاب یره ده (چه هغه ورځ دَ قیامت یا ورځ دَ طوفان) دَ دهٔ دَ قوم مشرانو خلقو اووے چه مونږ تا لره په صریح غلطئ کښے (راخته) وینو (چه دَ توحید تعلیم کوے او دَ عذاب نه یروَل کوے)، دوئی (په جواب کښے) اوفرمائیل چه اے خما قومه په ما کښے یوه ذرّه هم غلطی نیشته لیکن (چونکه) زهٔ دَ پروردګارِ عالم (را لیګلے شوے) پیغمبر یم (هغهٔ ما ته دَ توحید دَ رسَوَلو حکم را کړے دے په دے وجه خپل منصبی کار کوم چه) تاسو ته دَ خپل پروردګار پیغام (او احکام) او رَسَوُم او په دے رَسَولو کښے خما خپل څهٔ دینوی غرض نیشته بلکه محض) ستاسو خیر خواهي کوم (ځکه چه په توحید کښے ستاسو نفع ده) او زهٔ لوئے ورځے دَ عذاب نه کوم چه تاسو ته تعجّب دے نو دا ستاسو غلطی ده ځکه چه) زهٔ دَ خدائے دَ طرف نه

دَ دے خبرو خبرلوم ډ کوموچه تاسو ته خبر نیشتے (نو الله تعالیٰ ما ته خودلی دی چه په ایمان نه راوړو سره به عذاب دَ لوئے ورځے واقع کیږی) او (تاسو چه ځما دَ رسول کیدو نه په وجه دَ بشر کیدو انکار کوئ لکه چه په سورت مؤمنون کښے ئے وضاحت دے: مَا هٰذَآ اِلَّا بَشَرٌ مِّثْلُكُمْ يُرِيْدُ اَنْ يَّتَفَضَّلَ عَلَيْكُمْ وَلَوْ شَآءَ اللّٰهُ لَاَنْزَلَ مَلٰٓئِكَةً الخ: نو) آیا تاسو په دے خبره سره تعجب کوئے چه ستاسو رب دَ طرف نه تاسو ته دَ یو داسے سړی په معرفت چه ستاسو دَ جنس نه (بشر) دے دَغه نصیحت خبره راغله (هغه دَ نصیحت خبره دغه ده چه ذکر شوه: يٰقَوْمِ اعْبُدُوا اللّٰهَ الخ: تو: اِنِّيْٓ اَخَافُ: پورے) دَ دے دَ پاره چه دغه سړے تاسو لره (دَ خدائے په حکم سره) دَ عذاب نه اُویَروی او دَ دے دَ پاره چه تاسو (په دے یَرَ ولو سره) اَوْ یَرېږئ او دَ دے دَ پاره چه (په دے یرے سره مخالفت پریدئ چه په دے سره به) په تاسو رحم اُوشی پس (سره دَ دے ټولو خبرو) دغے خلقو دَ لره دروغژن کړلو نو مونږ نوح (علیه السلام) لره او کوم خلق چه دَ ده سره په کشتئ کښے وُو (دَ طوفان دَ عذاب نه) بچ کړل او کوم خلقو چه زمونږ آیاتو نه دروغژن کړی وُو دوی لره مونږ ه (په طوفان کښے) غرق کړل بے شکه دغه خلق (دَ الله وُو (دَ حق باطل او نفع نقصان هیڅ سوچ ئے نه کولو) -

# مَعلومَات او مَسئلے

دَ سورتِ اعراف دَ شروع نه تر دے ځائے پورے دَ اسلام دَ اُصولو، توحید، رسالت، اخرت په مختلفو عنوانا تو او دلیلو نو سره دَ ثابتولو او خلقو تَه دَ دے دَ تابعدارئ ترغیب او دَ دے په مخالفت دَ عذاب وَعید و نه او ترهیب، او دَ دے په ضمن کښے دَ شیطان دَ ګمراه کوُنکی مکر و فریب وغیره بیان وُه۔ او سَ دَ آتمے رکوع نه تقریبًا دَ آخر سورت تَه پورے دَ څو پیغمبرانو علیهم السلام او دَ دوی دَ امتونو بیان دے۔ چه په دے کښے ټول پیغمبران علیهم السلام په متفقه طور سره دَ ذکر شوُو اصولو توحید، رسالت، اخرت طرف تَه خپلو خپلو امتونو ته دعوت ورکول، او دَ منونکو دَ اَجر او ثواب، او په نه منونکو باندے دَ قسم قسم عذاب او دَ دوی دَ بد انجام په تفصیل سره بیان په څوار لسو رکوعګانو

کښې راغلې دے چه کوم کښې په ضمن کښې په سوونو اصولی او فروعی مسئلے هم راغلی دی - او موجوده قوموںتهٔ د تیرو قومونو د انجام نه د عبرت حاصلولو موقع فراهم کړے ده - د نبی کریم صلے الله علیه وسلم د پاره د تسلیٔ سامان او شه چه د تیرو ټولو پیغمبرانو سره هم داسے معاملے شوی دی -

ذکر شوی آیاتو نه د سورتِ اعراف پوره اتمه رکوع ده، په دے کښې د حضرت نوح علیه السلام او د هٔ د امّت د حالاتو او خبرو بیان دے -

په سلسله د انبیاؑ کښې د ټول نه اوّل نبی اګرچه آدم علیه السلام دے لیکن د هٔ په زمانه کښې د کفر او ګمراهیٔ مقابله نه وه، د هٔ په شریعت کښې هم زیات تر احکام د زمکے د آبادکاریٔ او د انسانی ضرورتونو متعلق وُو - د کفر او کافرچرته وجود هم نه وُه - د کفر او د شرک مقابله د حضرت نوح علیه السلام نه شروع شوه - او د رسالت او شریعت په حیثیت سره دے په دنیا کښې د ټولو نه اوّل رسول دے - د دے نه علاوه په طوفان کښې د ټولے دنیا غرقیدو نه پس چه کوم خلق باقی پاتے شو، دغه حضرت نوح علیه السلام او د هٔ د کشتیٔ ملګری وُو، د دوی نه نوے دُنیا آباده شوه په دے وجه د هٔ ته آدم اصغر (یا آدم ثانی) وائی، دغه وجه ده چه د انبیاؤ د قصو شروع هم د دی نه اوشوه - چه په دے کښې نهه نیموسوؤ کالو په لوئے عمر کښې د د وی د پیغمبرانه جد وجهد او په دے کښې د اکثر امّت د نه منلو او د دے په نتیجه کښې بغیر د لږو مؤمنانو نه باقی د ټولو غرقیدل کیدل بیان شوی دی - تفصیل ئے دا دے -

په اوّلنی آیت کښې ارشاد دے: وَلَقَدْ اَرْسَلْنَا نُوْحًا اِلٰی قَوْمِهٖ:

نوح علیه السلام د آدم علیه السلام نه په اتم پُښت کښې دے - په مستدرک حاکم کښې په روایت د ابن عباس رضؓ نقل دی چه د آدم علیه السلام او نوح علیه السلام په منځ کښې لس قرنه تیر شوی دی - او دا مضمون طبرانی په روایت د ابی ذرؓ د نبی کریم صلے الله علیه وسلم نه نقل کړے دے (تفسیر مظهری)

قرن په عام طور سره سلو کالو ته وئیلے شی په دے وجه کړے دوا هزو

په مینځ کښې ذده روایت مطابق زر کاله زمانه شوه، ابن جریرؒ نقل کړې دي
چه د نوح علیه السلام ولادت د آدم علیه السلام د وفات نه آته سوه
شپږ ۸۲۶ ویشت کاله پس شوې ده. او د قرآن په وضاحت سره د دوی عمر
نهه سوه پنځوس ۹۵۰ کاله دې، او د آدم علیه السلام د عمر متعلق په یو حدیث
کښې دي چه څلویښت کم زر کاله دې، د غه شان د آدم علیه السلام د پیدائش
نه د نوح علیه السلام د وفات پورې ټول دوه زره آته سوه شپږ پنځوس ۲۸۵۶ کاله
شو (مظهری) د نوح علیه السلام اصلی نوم شاکر، او په بعضو روایتونو کښې
سکن او په بعضو کښې عبدالغفار، راغلی دې.

په دې کښې اختلاف دې چه د دهٔ زمانه د حضرت ادریس علیه السلام نه
وړاندې ده او که روستو. د اکثرو صحابهؓ قول دا دې چه حضرت نوح علیه
السلام د ادریس علیه السلام نه وړاندې دې (بحر محیط)

په مستدرک حاکم کښې په روایت د ابن عباسؓ نقل دي چه نبی کریم صلی
الله علیه وسلم فرمائیلی دي چه نوح علیه السلام ته د څلویښتو کالو په
عمر کښې نبوت ورکړې شو او د طوفان نه پس شپیته کاله ژوندې وه.

د قرآن د آیت: وَ لَقَدْ اَرْسَلْنَا نُوْحًا اِلٰی قَوْمِهٖ: نه ثابته ده چه د نوح علیه
السلام رالیګل او نبوّت صرف د خپل قوم د پاره وو، د ټولې دُنیا د پاره
عام نه وو، او د دهٔ قوم په عراق کښې آباد په ظاهره مهذب مګر په شرک
کښې اخته وو. حضرت نوح علیه السلام چه خپل قوم ته کوم دعوت ورکړو
هغه دا وه: یٰقَوْمِ اعْبُدُوا اللّٰهَ مَا لَکُمْ مِّنْ اِلٰهٍ غَیْرُهٗ ؕ اِنِّیْۤ اَخَافُ عَلَیْکُمْ عَذَابَ
یَوْمٍ عَظِیْمٍ: "یعنی اے زما قومه تاسو د الله عبادت کوئ د هغهٔ نه سِواسته
بل څوک معبود نیشته، زما په تاسو یوې لوئې وَرځې د عذاب یره ده" د
دې په اوّل جمله کښې د الله تعالیٰ د عبادت طرف ته بلنه ده چه اصل اُصول دې
په دویمه جمله کښې د کفر او شرک نه د پرهیز کولو تلقین دې کوم چه په دې
قوم کښې د وبا په شکل خور شوې وه. په دریمه جمله کښې د هغه لوئې عذاب
د یرې نه خبر ول دي کوم چه د خلاف ورزئ په صورت کښې دوی ته مخې ته
راتلونکې دې. د دې لوئې عذاب نه مراد د اخرت عذاب هم کیدې شي، او په

دُنیا کښې د طوفان عذاب هم (کبیر)

د دهٔ قوم دهٔ ته په جواب کښې او وے:-

قَالَ الْمَلَاُ مِنْ قَوْمِهٖۤ اِنَّا لَنَرٰىكَ فِیْ ضَلٰلٍ مُّبِیْنٍ: لفظ د "مَلَاء" د قوم سوداران او د خاندان مشرانو ته ویلے شی۔ مطلب دا دے چه د حضرت نوح علیه السلام د دے دعوت په جواب کښې د قوم سردارانو او وے چه موږ خو دا گنړو چه ته په ښکاره گمراهئ کښې پریوتے یې، چه زموږ د پلارنیکه د دین نه زموږ و یستل غواړے، او په قیامت کښې دوباره ژوندی کیدل او د جزا او سزا مو ندلو خیالات دا تول خیالات او وهمونه دی۔

د دے دِلْ آزار او دِل خراش جواب په بدل کښې حضرت نوح علیه السلام په پیغمبرانه لهجه کښې چه کوم جواب ورکړو هغه د تبلیغ کوونکوا و اصلاح کوونکو د پاره یو اهم تعلیم او هدایت دے۔ چه د قهر ولو په خبره با ندې..... په ځائے د دے چه قهر شی او په غضب شی په ساده الفاظو کښې د دوی د شبهو ازاله فرمائی: قَالَ یٰقَوْمِ لَیْسَ بِیْ ضَلٰلَةٌ وَّ لٰكِنِّیْ رَسُوْلٌ مِّنْ رَّبِّ الْعٰلَمِیْنَ ۝ اُبَلِّغُكُمْ رِسٰلٰتِ رَبِّیْ وَ اَنْصَحُ لَكُمْ وَ اَعْلَمُ مِنَ اللّٰهِ مَا لَا تَعْلَمُوْنَ ۝:

"یعنی اے زما قومه په ما هیڅ گمراهی نیشته مگر خبره دا ده چه زهٔ ستاسو په شان د پلارنیکه د جاهلی رسمونو پا بند نهٔ یم بلکه زهٔ د رب العلمین د طرف نه رسول یم ځکه چه زهٔ وایم د الله تعالیٰ د هدایتونو نه وایم او د الله تعالیٰ پیغام تاسو ته رسوم چه ستاسو په کښې خیگړه ده نو په دے کښې د الله تعالیٰ څهٔ فائده شته او نه پکښې زما څهٔ غرض دے۔ په دے کښې د رب العلمین لفظ د شرک په عقیده با ندې سخت گوزار دے چه په دے کښې د غور کولو نه پس نه د دیوتاو دیوتا ځه ځایاتے کیږی او نه د یزدان او اَهرمن - د دینه پس فرمائی چه ستاسو د قیامت په عذاب کښې کومے شبهې دی د هغې وجه ستاسو بے خبری او نا پوهی ده ما ته د الله تعالیٰ د طرفه د دے یقینی علم را کړے شوے دے۔

د دینه پس د دوی د دویمے شبهې جواب دے کوم چه په سورت مؤمنون کښې په وضاحت سره ذکر دے: مَا هٰذَاۤ اِلَّا بَشَرٌ مِّثْلُكُمْ یُرِیْدُ اَنْ یَّتَفَضَّلَ عَلَیْكُمْ وَ لَوْ شَآءَ اللّٰهُ لَاَنْزَلَ مَلٰٓىِٕكَةً الخ: یعنی د دهٔ قوم د نوح علیه السلام په دعوت با ندې

يوه شبهه دا هم اوکړه، چه دا خو زمونږ پشان يو بشر او انسان دے زمونږ
پشان خورى شکى اوده کيږى ويخيږى دَ لره مونږ ځنګه خپل مقتدا اوګڼو
که الله تعالیٰ مونږ ته څه پيغام راليږلے نو هغه فرشتو لاسه راليږلے چه امتياز او
برائى به ئے مونږ ته ښکاره وه، اوس خو دَ دے نه سوا بله خبره نيشته چه زمونږ
دَ قوم او نسل يو سړے په مونږ خپله مشرى او لوئى قائمول غواړى۔

دَ دے په جواب کښے ئے اوفرمائيل: اَوَعَجِبْتُمْ اَنْ جَآءَكُمْ ذِكْرٌ مِّنْ رَّبِّكُمْ
عَلٰى رَجُلٍ مِّنْكُمْ لِيُنْذِرَكُمْ وَلِتَتَّقُوْا وَلَعَلَّكُمْ تُرْحَمُوْنَ: "يعنى آيا تاسو په دے
خبره باندِ تعجب کوئ چه ستاسو دَ رب پيغام ستاسو طرف ته دَ يو داسے سړى په
معرفت راغے چه ستاسو دَ جنس نه دے، چه هغهٔ تاسو او يَروى او چه تاسو اوُ
يَريږئ او چه په تاسو رحم اوشى" يعنى دَ دهٔ په يَرَ دَ لو سره تاسو خبر شئ او
مخالفت پاتے کړئ چه دَ دے په نتيجه کښے په تاسو رحمت اوُشى۔

مطلب دا دے چه دا څهٔ دَ تعجب خبره نه ده چه بشر لره رسول جوړ کړے شى
اوّل خو الله تعالیٰ مختار مطلق دے چا لره چه غواړى هغهٔ لره خپل نبوّت او
رسالت ورکوى په دے کښے چا ته دَ چون چرا مجال نيشته، دَ دے نه علاوه که په
اصل معامله غور اوُشى نو واضحه به شى چه عام وانسانانو ته دَ رسالت او نبوت
مقصد دَ بشر په ذريعه پوره کيدے شى دَ فرشتو نه دا کار نه شى پوره کيدے۔

ځکه چه اصل مقصد دَ رسالت دا دے چه دَ الله تعالیٰ په کامل اطاعت او
عبادت باندِ خلقو لره قائم کړے شى او دَ هغهٔ دَ حکمونو دَ مخالفت نه بچ کړے
شى، او دا حله کيدے شى چه دَ دوى دَ جنس يو بشر عملى نمونه جوړه شى دوى
ته او ښائى چه دَ بشرى تقاضو او خواهشونو سره هم دَ الله تعالیٰ دَ احکامو
اطاعت او دَ هغهٔ عبادت جمع کيدے شى۔ که فرشتو دا دعوت راوړے او خپل
مثال ئے خلقو ته وړاندِ کړے نو دَ ټولو خلقو دا عذر به ښکاره وُو چه فرشتے
خو دَ بشرى خواهشاتو نه پاکے دى نه ورلره لوږه تنده راځى او نه ورلره
خوب راځى او نه ستومانى، نو مونږ دَ هغوى پشان ځنګه جوړ شو۔ ليکن
هرکله چه زمونږ پشان زمونږ همجنس بشر دَ ټولو بشرى خواهشاتو او دَ
خصوصياتو لرلو باوجود دَ الله تعالیٰ دَ دغه احکامو مکمل اطاعت اوکړى او ښائى

نو دَ دوی دَ پاره هیڅ عذر نه پاتې کیږی۔

دے خبرے ته دَ اشارے کولو دَ پاره فرمائی: لِيُنذِرَكُمْ وَلِتَتَّقُوا: مطلب دادے چه دَ چا دَ یرَ وَلو په وجه چه خلق یریږی دا ځغه کیدے شی کوم چه دَ دوی هم جنس او دَ دوی پشان بشر د خصوصیاتو لره جمع کوونکے وی۔ دا شبهٔ دَ اکثرو امتونو کافرانو پیش کړه چه څوک بشر دی نبی او رسول نه دی کیدل پکار، او قرآن دَ ټولو دغه جواب کړے دے۔ افسوس دے چه دَ قرآن دَ دومره وضاحتونو باوجود نن هم څهٔ خلق دَ نبی کریم صلی الله علیه وسلم دَ بشریت نه دَ انکار کولو جرأت کوی، مګر جاهل انسان په دے حقیقت نه پوهیږی دے دَ چا خپل هم جنس برتری منلو ته تیار نه وی۔ دا وجه ده چه دَ خپلے زمانے دَ اولیاؤ او عالمانو سره دَ نفرت او سپکاوی سلوک دَ جاهلانو همیشه کار جوړ شوے دے۔ چه دَ خپلے زمانے عالم او وَلی ته سپک کوری۔

دَ نوح علیه السلام دَ قوم دَ زړهٔ آزاره کلام په جواب کښے دَ حضرت نوح علیه السلام دا مشفقانا او دَ نصیحت نه ډکے رَویّے هم په دے بے حسه قوم څهٔ اثرا ونه کړو۔ بلکه نور هم پاندہ جوړ شو دروغژن کولو پسے شو، نو الله تعالی په دوی دَ طوفان عذاب راولیګه۔ ارشاد فرمائی:۔

: فَكَذَّبُوهُ فَأَنجَيْنَاهُ وَالَّذِينَ مَعَهُ فِي الْفُلْكِ وَأَغْرَقْنَا الَّذِينَ كَذَّبُوا بِآيَاتِنَا إِنَّهُمْ كَانُوا قَوْمًا عَمِينَ: "یعنی دَ نوح علیه السلام ظالم قوم دَ دوئی دَ نصیحت او خیرخواهئ څهٔ پرواه اُو نه کړه او په مخه ئے دروغژن خیل کسبو کړو، چه نتیجه ئے دا شوه چه مونږ نوح علیه السلام او دَ هغهٔ ملګرو لره په یوه کشتئ کښے سواره کړل دَ طوفان نه مو خلاص کړل، او کوم خلقو چه زمونږ ا یاتو نه دروغژن کول هغهٔ مو غرق کړل، بے شکه دا خلق ړانده وو"

دَ حضرت نوح علیه السلام قصه او دَ دهٔ دَ قوم غرقیدل او دَ کشتئ والو دَ نجات پوره تفصیل به په سورت نوح او سورتِ هود کښے راشی دلته دَ مقام په مناسبت سره ئے پخوپه بیان شو۔ حضرت زید بن اسلم فرمائی چه په

قوم دَ نوح علیه السلام دَ طوفان عذاب حغه وخت راغلے کله چه دوی دَ خپل ډیروالی او قوّت په اعتبار سره بشهٔ پوره وُو- دَ عراق زمکه او غرونه دَ دوی دَ ډیروالی په وجه په دوی تنګیدل، او همیشه دَ الله تعالیٰ دا دستور راغلے دے چه نافرمانه خلقو ته صبر کوی ډیل ورکوی، عذاب حغه وخت را لیګی کله چه دوی دَ خپل ډیروالی قوّت او دولت حرشان انتها ته اورسی او په دے کښے بد مَستهٔ شی- (ابن کثیر)

دَ حضرت نوح علیه السلام سره په کشتئ کښے څومره سړی وُو، په دے کښے روایتونه مختلف دی، ابن کثیر په روایت دَ ابن ابی حاتم حضرت عبد الله بن عباس ؓ نه نقل کړے دے چه اتیا سړی وُو چه دَ یو نوم پکښے جُرهم وُه دَ هٔ به عربی ژبه وئیله (ابن کثیر)

په بعض روایتونو کښے دا تفصیل هم راغلے دے چه دَ اتیاؤ په دے شمار کښے څلویښت سړی او څلویښت ښځے وے- دَ طوفان نه پس چه دا ټول حضرات دَ موصل په کوم ځائے کښے جمع شو دَ حغه کلی نوم ثمانون مشهور شو-

غرض دا دے چه دلته ئے دَ نوح علیه السلام لنډ شان قصه بیان کړه یوه خو ئے دا اوخوده چه دَ ټولو پخوانو پیغمبرانو دَعوت او اصول دَ عقیدو یو شان وُو- دویم ئے دا اوخودل چه الله تعالیٰ دَ خپلو رسولانو تائید او حمایت په څنګه حیرانوونکے طریقه سره کوی چه دَ غرونو سرونو ته په ختو نکی طوفان کښے هم دَ دوی سلامتیا ته څهٔ خطره نه وی، دریم ئے دا واضحه کړه چه دَ انبیاء علیهم السلامو دروغژن کول دَ الله عذاب ته بلنه ورکول دی- لکه څنګه چه تیر امتونه دَ پیغمبرانو دَ دروغژن کولو په سبب په عذاب کښے ګرفتار شو، دَ ننن زمانے خلقو لره هم دَ دے نه بے یرے کیدل نه دی پکار-

---

وَإِلَىٰ عَادٍ أَخَاهُمْ هُودًا ۗ قَالَ يَٰقَوْمِ ٱعْبُدُوا۟ ٱللَّهَ

او دَ عاد قوم طرف ته موليګلے وُه دَ دوی رور هود لره- اُوئے وئیل اے زما قومه بندګی کوئ دَ الله

مَا لَكُمْ مِّنْ اِلٰهٍ غَيْرُهٗ ؕ اَفَلَا تَتَّقُوْنَ ﴿٦٥﴾ قَالَ الْمَلَاُ

نشته څوک تاسو لره معبود ده غه نه سوا - آيا تاسو نه ويريږئ ؟ اووې سردارانو

الَّذِيْنَ كَفَرُوْا مِنْ قَوْمِهٖۤ اِنَّا لَنَرٰىكَ فِيْ سَفَاهَةٍ

کوم چه کافران وو ده ده په قوم کښې مونږ وينو تا لره بې عقله

وَّاِنَّا لَنَظُنُّكَ مِنَ الْكٰذِبِيْنَ ﴿٦٦﴾ قَالَ يٰقَوْمِ لَيْسَ

او مونږ په تا د دروغژن گمان کوو - او وې اې زما قومه زه نه يم

بِيْ سَفَاهَةٌ وَّلٰكِنِّيْ رَسُوْلٌ مِّنْ رَّبِّ الْعٰلَمِيْنَ ﴿٦٧﴾

بې عقله ليکن زه را ليږلې شوې يم د پروردګار د عالم د طرف نه -

اُبَلِّغُكُمْ رِسٰلٰتِ رَبِّيْ وَاَنَا لَكُمْ نَاصِحٌ اَمِيْنٌ ﴿٦٨﴾

رسوم تاسو ته پيغام د خپل رب او زه ستاسو خيرخواه يم امانت داري سره -

اَوَعَجِبْتُمْ اَنْ جَآءَكُمْ ذِكْرٌ مِّنْ رَّبِّكُمْ عَلٰى رَجُلٍ

آيا تاسو تعجب کوئ چه راغې تاسو ته نصيحت ستاسو د رب د طرف نه د يو سړي په ژبه

مِّنْكُمْ لِيُنْذِرَكُمْ ؕ وَاذْكُرُوْۤا اِذْ جَعَلَكُمْ خُلَفَآءَ

ستاسو نه دې چه تاسو او يروي - او ياد کړئ کله چه يې تاسو سرداران کړئ پس

مِنْۢ بَعْدِ قَوْمِ نُوْحٍ وَّزَادَكُمْ فِي الْخَلْقِ بَصْۜطَةً ۚ

د قوم د نوح نه او زياتې کړو ستاسو د بدن غټو الې -

فَاذْكُرُوْۤا اٰلَآءَ اللّٰهِ لَعَلَّكُمْ تُفْلِحُوْنَ ﴿٦٩﴾ قَالُوْۤا

پس ياد کړئ د الله احسان چه ستاسو د ياره بنه شي - اووې

أَجِئْتَنَا لِنَعْبُدَ اللّٰهَ وَحْدَهٗ وَنَذَرَ مَا كَانَ

آیا ته په دې وجه موږ ته راغلې چه موږ بندګي اوکړو د یو الله او پرېږدو هغو لره د کوم

يَعْبُدُ اٰبَآؤُنَا ۚ فَاْتِنَا بِمَا تَعِدُنَآ اِنْ كُنْتَ مِنَ

چه عبادت کاوه زموږ پلارنیکه - پس ته راوړه موږ ته د کوم شي چه ته موږ یروې، که ته

الصّٰدِقِيْنَ ﴿۷۰﴾ قَالَ قَدْ وَقَعَ عَلَيْكُمْ مِّنْ رَّبِّكُمْ

د ښتونو یې - او وې په تاسو واقع شوې دې د رب ستاسو نه

رِجْسٌ وَّغَضَبٌ ؕ اَتُجَادِلُوْنَنِيْ فِيْٓ اَسْمَآءٍ

عذاب او غصه - ولې جګړه کوئ تاسو سره په هغو نومو نو کښې

سَمَّيْتُمُوْهَآ اَنْتُمْ وَاٰبَآؤُكُمْ مَّا نَزَّلَ اللّٰهُ بِهَا

چه ایښودلي دي تاسو او ستاسو پلارنیکه، نه دې نازل کړې الله په دې باندې

مِنْ سُلْطٰنٍ ؕ فَانْتَظِرُوْٓا اِنِّيْ مَعَكُمْ مِّنَ

څه سند - پس انتظار کوئ زه هم ستاسو سره د

الْمُنْتَظِرِيْنَ ﴿۷۱﴾ فَاَنْجَيْنٰهُ وَالَّذِيْنَ مَعَهٗ بِرَحْمَةٍ

انتظار کوونکو نه یم - بیا موږ بچ کړو هغه لره او هغوی چه هغه سره وو په خپل رحمت

مِّنَّا وَقَطَعْنَا دَابِرَ الَّذِيْنَ كَذَّبُوْا بِاٰيٰتِنَا

سره او ذیلې مو پرې کړې د هغو کومو چه دروغژن کړل زموږ آیاتونو لره

وَمَا كَانُوْا مُؤْمِنِيْنَ ﴿۷۲﴾ ع

او نه وو مومن -

ع ۹ ۸ ۱۶

# لنډ تفسير

او مونږ د عاد قوم طرف ته د دوی (د برادرۍ یا وطن) ورور (حضرت) هود
(علیه السلام) لره (پیغمبر جوړ کړو) اُولیږه دوی (خپل قوم ته) وفرمائیل
اے زما قومه تاسو (صرف) د الله عبادت کوئ د هغه نه سوا ستاسو بل معبود
(قابل د عبادت) نیشته (او بُت پرستي پریږدئ لکه چه وړاندې د: وَنَذَرَ مَا كَانَ
يَعْبُدُ اٰبَآؤُنَا: نه معلومیږي) پس آیا تاسو داسے لوئے جُرم یعنی شرک کوئ
(د الله د عذاب نه) نه یریږئ د دوی په قوم کښې چه کوم مشران کافران خلق وو هغوی
(په جواب کښې) اُووے چه مونږ خو تا لره په کم عقلئ کښې (مبتلا) وینو (چه د توحید تعلیم
کوے او د عذاب نه یرَوَل کوے) او بے شکه مونږ تا په دروغژنو خلقو کښې
ګڼړو (یعنی نعوذ بالله نه خو توحید صحیح مسئله ده او نه د عذاب راتلل
صحیح دی) دوی اُوفرمائیل چه اے زما قومه په ما کښې ذرّه هم کم عقلي نیشته
لیکن (چونکه) زه د پروردګار (عالم) رالیږلے شوے پیغمبر یم (هغه ما ته د
توحید د تعلیم او د عذاب نه د یرَوَلو حکم کړے دے په دے وجه خپل
منصبي کار کوم چه) تاسو ته د خپل پروردګار پیغام (او احکام) د رسوم
او زه ستاسو خیرخواه امانت دار یم (لکه چه په توحید او ایمان کښې
ستاسو نفع ده) او (تاسو چه کوم زما د بشر والي په وجه زما د نبوّت نه
انکار کوئ لکه چه په سورت ابراهیم کښې پس د ذکر د قوم د نوح او عاد
او ثمود نه دی: قَالُوْٓا اِنْ اَنْتُمْ اِلَّا بَشَرٌ مِّثْلُنَا: او په سورت فصّلت کښې پس
د ذکر د عاد او ثمود نه دی: قَالُوْا لَوْ شَآءَ رَبُّنَا لَاَنْزَلَ مَلٰٓئِكَةً الخ: نو) آیا
تاسو د دے خبرے نه تعجب کوئ چه ستاسو د پروردګار د طرف نه تاسو
ته د یو داسے سړي په معرفت چه ستاسو د جنس نه (بشر) دے څه د نصیحت
خبره راغله (دغه د نصیحت خبره هغه ده چه کومه ذکر شوه: يٰقَوْمِ اعْبُدُوا
اللّٰهَ: تر: اَفَلَا تَتَّقُوْنَ: پورے) د دے د پاره چه دغه سړے تاسو لره
(د عذاب د الله نه) اُویرَوی (یعنی دا خو څه د تعجب خبره نه ده آیا بشر والے
او نبوّت څه لرے دی د یو بل نه، بره په: اَفَلَا تَتَّقُوْنَ: کښې یرَوَل وو، اُوس

ورانئ ترغیب دے) او را ے قومه) تاسو هغه حالت لیا دکړئ را و یاد کړئ
احسان او منئ او اطاعت کوئ) چه الله تعالیٰ تاسو لره د قوم د نوح نه پس
ریه ځ د ځمکے بانئ) آباد کړل او په شکل صورت کښے ئے تاسو لره غټه والے رجم)
زیات در کړو پس د خدائے تعالیٰ د دے نعمتونو یاد اوکړئ
(احسان او منئ او اطاعت کوئ) چه تاسو د هر شان) فلاح بیا مومئ دغه
خلقو اووے چه آیا ر مبنهٔ نو) ته مونږ ته په دے وجه راغلے چه مونږه
صرف د الله عبادت اوکړو او د کوم ربتا نو) چه زمونږ پلار نیکه عبادت
کاوه مونږه هغوی لره ربعنی د هغو عبادت لره) پاتے کړو ربعنی مونږ به داسے
اونه کړو) اومونږ ته چه ربه نه منلو) د کوم عذاب یره را کوے رلکه
چه د: اَفَلَا تَتَّقُوْنَ: نه معلومیږی) دغے رعذاب) لره مونږ ته را اوغواړه
که ته رشتونے ئے، دوی اوفرمایئل چه رستاسو د سرکښئ چه هر کله دا
حالت دے نو) بس اوس په تاسو د خدائے د طرف نه عذاب او غضب
را تلل دی رپس په عذاب کښے د شبهے جواب خو به هغه وخت معلوم
شی او پاتے شوه کومه شبه چه ستاسو په توحید کښے ده چه دے بتانو
ته معبودان وایئ د کوموټو چه تاسو معبودا نخودے دے لیکن په
واقع کښے د دوی د معبودکید و هیڅ دلیل نیشته نو) آیا تاسو ځما سره
د داسے ربے حقیقته) نومونو په باره کښے جګړه کوئ ربعنی دغه نومونه
انخودی شوی په منزله د بعضِ نومونو شان دی) کوم لره چه تاسو او ستاسو
پلار نیکه رد ځانه) مقرر کړی دی رلیکن) د دوی د معبود والی خدائے تعالیٰ
څهٔ دلیل رعقلی یا نقلی) نه دے لیګلے ربعنی په جګړه کښے د مدعی په ذمه دلیل
دے او د مقابل د دلیل جواب هم، پس تاسو نه دلیل قائم کولے شئ نه ځما د
دلیل جواب راکولے شئ، بیا د جګړے معنیٰ څهٔ ده) پس تاسو را وس جګړه ختم
کړئ او د الله د عذاب) منتظر اوسئ زهٔ هم ستاسو سره انتظار کوونکے یم غرض
رعذاب راغے او) مونږ دهٔ لره او د دهٔ ملګرو لره ربعنی مؤمنانو لره) په خپل رحمت
راو کوم) سره ردَدے عذابانه) بچ کړل او د دغے خلقو زیلے موپریکړے ربعنی
بالکل مو هلاک کړل) چا چه زمونږ ایاتو نو لره دروغژن کړی وُو او دوی

ړیوجه د ډیرے کم بختۍ) ایمان راوړونکی نه وُو ریعنی که هلاک شوی نه وے بیا هم دوی ایمان نه راوړو په دے وجه موږ د دغه وخت د حکمت د مقتضا مطابق د دوی خاتمه اوکړه)۔

# مَعلومَات او مَسئلے

## دَعاد او ثمود لنډ تاریخ

عَاد په اصل کښے دَیو سړی نوم دے چه دَ نوح علیه السلام نه په پنځم نسل او دَ دهٔ دَ ځوئ سام په نسل کښے دے، بیا دَ دے سړی اولاد او پوره قوم دَ عاد په نوم سره مشهور شو، په قرآن کریم کښے دَ عاد سره کله لفظ دَ عاد اُولیٰ او کله اِرَمَ ذَاتِ الْعِمَادِ: هم راغلے دے، دَ دے نه معلومیګی چه قوم دَ عاد ته اِرَمَ هم وئیلے شی، او دَ عاد اُولیٰ په مقابله کښے څوک عاد ثانیه هم دی۔ دَ دے په تحقیق کښے دَ تفسیر لیکوُنکو او تاریخ لیکوُنکو خبرے مختلفے دی، زیاته مشهوره دا ده چه دَ عاد دَ نیکه نوم اِرَم دے، دَ دهٔ دَ یو ځوئ یعنی دَ عوص په اولاد کښے عاد دے دهٔ ته عاد اولیٰ وائی، او دَ بل ځوئ جثو ځوئ ثمود دے، دهٔ ته عاد ثانیه وائی، دَ دے تحقیق نچوړ دا دے چه عاد او ثمود دواړه دَ اِرم دوه شاخونه دی، یو شاخ ته عاد اُولیٰ او دویم ته ثمود یا عاد ثانیه هم وائی، او لفظ دَ اِرَم عاد او ثمود دواړو لره شامل دے

او بعض تفسیر لیکوُنکی فرمائی چه په قوم دَ عاد باندِ څه وخت عذاب راغے نو دَ دوی یو وفد مکے معظمے ته تلے وه هغه دَ عذاب نه محفوظ پاتے شو چه دوی ته عادِ ثانی وائی (بیان القرآن)

او هود علیه السلام دَ یونبی نوم دے دے هم دَ نوح علیه السلام په پنځم نسل دَ سام په اولاد کښے دے، دَ قوم دَ عاد او دَ حضرت هود علیه السلام نسب نامه په څلورم پُشت کښے په سام جمع کیږی، په دے وجه هود علیه السلام دَ عاد نسبی رورد ے په دے وجه ئے؛ اَخَاهُمْ هُوْدًا: فرمائیلی دی۔ (چه دے ئے نسبی رور دے)۔

دَ عاد دَ قوم دیارلس خاندانونه وُو۔ دَ عمان نه واخله تر حضرموت او یَمَنه پورے دَ دیٔ کلی وُو، دَ دیٔ زمکے ډیرے سرسبزه او شادابے وے، دَ هر قسم باغونه وُو، دَ او سید ودَ پاره به ئے لوئے لوئے شاندار محلونه جوړول ډیر ډنډ غټ او قوی جُوثه والا خلق وُو، په ذکر شوو آیا تو نو کښے دَ: زَادَكُمْ فِي الْخَلْقِ بَصْطَةً: هم دا مطلب دے۔ الله تعالیٰ دَ دُنیا دَ ټولو نعمتونو دروازے په دوی پرانستے وے مگر دَ دوی غلط فهمیٔ دغه نعمتونه دَ دوی دَ پاره وَبالِ جان جوړ کړل، دَ خپل قوت او شوکت په نشه کښے بد مسته شو دَ: مَنْ أَشَدُّ مِنَّا قُوَّةً: د و لکی غږ و لو ئے شروع کړل۔

او ربّ العٰلمین لره دَ چا دَ نعمتونو باران چه په دوی کیدو هغه ئے پریښودو په بُت پرستیٔ کښے اَخته شو۔

دَ حضرت هود علیه السلام | الله تعالیٰ دَ دوی دَ هدایت دَ پاره حضرت هود نسب نامه او بعضے حالات علیه السلام پیغمبر جوړ کړو را او ئے لیږلو، کوم چه پخپله دَ دوی دَ خاندان نه وُه۔ او اَبو البرکات جون چه دَ عربو په نسبو نو کښے ډیر ماهر مشهور وے لیکلی دی چه دَ هود علیه السلام ځو ئی یَعرب بن قحطان وے چه یمن ته لاړ شو او آباد شو او یمنی اقوام دَ دهٔ دَ نسل نه دی، او دَ عربی ژبے ابتداء دَ دوی نه شوے ده، او دَ یَعرب په مناسبت سره دَ ژبے نوم عربی او دَ یځو نکو ته ئے عرب او وئیلے شو (بحر محیط)

مگر صحیح دا ده چه عربی ژبه دَ نوح علیه السلام دَ زمانے نه جاری وَه۔ دَ نوح علیه السلام دَ کشتیٔ یو ملګرے جُرهم وُه چه عربی ژبه ئے وئیله (بحر محیط) او دا جُرهم دے دَ کومونه چه دَ مکے معظمے آبادی شروع شوه هاں دا کیدے شی، چه په یمن کښے دَ عربی ژبے ابتداء دَ یعرب بن قحطان نه شوی وی۔ او دَ ابو البرکات دَ تحقیق دا مطلب وی۔

حضرت هود علیه السلام چه قوم دَ عاد ته دَ بت پرستیٔ پریښودو او دَ توحید اختیار ولو، دَ ظلم زیاتی پریښودلو عدل انصاف اختیار ولو تلقین او فرمایه۔ مگر دا خلق دَ خپل دولت او قوت په نشه کښے بد مست وُو خبره ئے او نه منله نو په نتیجه کښے ئے اوّل عذاب په دوی خو دا راغے چه درے

کاله پورې مسلسل باران بند شو، دَ دوی زمکې اوچې ریګستانی صحرا ګانې جوړې شوې باغونه ئې اُوسُو، مګر په دې باندې هم دا خلق دَ شرک او بُت پرستئ نه واپس نه شو، نو آته وُرځې اَو اُووه شپې په دوی باندې سخت قسم دَ سیلئ عذاب مسلّط شو، چه په دې سره دَ دوی پاتې باغونه او محلونه دَ زمکې سره هَوار شو، دَ دوی سړی او څاروی به په هوا کښې اَلوتل او بیا به سَر دَ لاندې راغورزیدل، دغه شان دا قوم دَ عاد پوره په پوره هلاک کړې شو، په ذکر شوُو ایاتونو کښې چه ارشاد دې، وَ قَطَعْنَا دَابِرَ الَّذِیْنَ کَذَّبُوْا: یعنې مونږ دَ دروغ ژن کونُکو نسل پرېکړو، دَ دې مطلب بعضې حضراتو دا مقرر کړې دې چه دغه وخت کوم خلق موجود وُو هغوی ټول فنا کړې شو، او بعضې حضراتو دَ دې لفظ دا معنیٰ مقرر کړې ده چه دَ آئینده دَ پاره هم دَ عاد دَ قوم نسل الله تعالیٰ قطع کړو۔

دَ حضرت هود علیه السلام دَ خبرې نه منلو او په کفر او شرک کښې په مبتلا پاتې کیدو باندې چه کله دَ دهٔ په قوم عذاب راغې نو هود علیه السلام او دَ دهٔ ملګرو په یوه حَظِیرَه (کټګوره) کښې پناه واغسته۔ دا عجیبه خبره وه چه په دې طوفانی هوا لوئې لوئې محلونه نړیدل مګر دې کټګوره ته چه به کله هوا راتله نو ډیره نرمه به شوه۔ دَ هود علیه السلام ټول ملګری عینِ دَ عذاب دَ نازلیدو په وخت کښې هم دلته ښهٔ مطمئن ناست وُو۔ دوی ته هیڅ قسم تکلیف پیښ نه شو۔ دَ قوم دَ هلاکیدو نه پس مکې معظّمې ته دوی مُنتقل شو۔ (بحر محیط)

دَ عاد دَ قوم عذاب دَ هوا دَ طوفان په صورت کښې په قرآن مجید کښې ښهٔ صراحةً ذکر دې، او په سورتِ مؤمنون کښې دَ قصّې دَ نوح علیه السلام دَ ذکر کولو نه پس چه کوم ارشاد دې، ثُمَّ اَنْشَاْنَا مِنْ بَعْدِهِمْ قَرْنًا اٰخَرِیْنَ: یعنې بیا مونږ دَ دوی نه پس یو بل جماعت پیدا کړو، ظاهره داده چه دَ دې جماعت نه مراد قوم دَ عاد دې بیا دَ دې جماعت دَ کارونو او خبرو بیانولو نه پس ارشاد فرمائی: فَاَخَذَتْهُمُ الصَّیْحَةُ بِالْحَقِّ: یعنې او نیول دوی لره یو سخت آواز۔ دَ قرآن دَ دې ارشاد په بنا باندې بعضې تفسیر لیکونکی حضرات

فرمائي چه په قوم دَ عاد باندِ سخت قسم هیبت ناک آواز عذاب مسلّط شوے وُه - مګر په دے دواړو خبرو کښے څهٔ تعارض نیشته - کیدے شی چه سخت آواز هم شوے وی او دَ هوا طوفان هم -

دا لنډه واقعه ده دَ قوم دَ عاد او دَ حضرت هود علیه السلام، دَې تفصیل په قرآنی الفاظو کښے دا دے :-

په اَوَلنۍ آیت کښے : وَإِلَىٰ عَادٍ أَخَاهُمْ هُودًا ۗ قَالَ يَا قَوْمِ اعْبُدُوا اللَّهَ مَا لَكُم مِّنْ إِلَٰهٍ غَيْرُهُ ۚ أَفَلَا تَتَّقُونَ ۝ : یعنی مونږ قوم دَ عاد طرف ته دَ دوی رور هود علیه السلام لره دَ هدایت دَ پاره اُو لیږه نودهٔ اُو فرمائیل اے زما قومه تاسو صرف دَ الله عبادت کوئ دَ هغهٔ نه سِوا څوک ستاسو معبود نیشته - آیا تاسو نهٔ یریږئ ؟

دَ عاد دَ قوم نه وړاندِ دَ نوح علیه السلام دَ قوم لوئے عذاب لا تراوُسه دَ خلقو دَ ذهنونو نه ورک شوے نه وُو - په دے وجه حضرت هود علیه السلام ته دَ عذاب دَ سختوالی او لوئے والی بیانولو ضرورت نه وُه صرف دومره فرمائیل ئے کافی اوګڼړل چه آیا تاسو دَ الله تعالیٰ دَ عذاب نه نهٔ یریږئ -

په دویم آیت کښے دی : قَالَ الْمَلَأُ مِن قَوْمِهِ إِنَّا لَنَرَاكَ فِي سَفَاهَةٍ وَإِنَّا لَنَظُنُّكَ مِنَ الْكَاذِبِينَ : یعنی دَ قوم سردارانو اُووے چه مونږ خو تا لره په ناپوهئ کښے مبتلا مُومُو، او زمونږ ګمان دا دے چه تهٔ دَ دروغ وَیوُ نکو څخنی یئے -

دا تقریباً داسے جګړه ده کومه چه دَ حضرت نوح علیه السلام قوم دهٔ سره کړے وَه - صرف دَ بعضو الفاظو فرق دے، په دریم او څلورم آیت دَ دے جواب هم تقریباً په هغه انداز سره دے لکه چه نوح علیه السلام ورکړے وُه - یعنی دا چه په ما کښے ناپوهي هیڅ نیشته خبره صرف دومره ده چه زهٔ دَ رَبُّ الْعٰلَمِیْن دَ طرف نه رسول او پیغمبر جوړ شوے راغلے یم، دَ هغهٔ پیغامونه تاسو ته رَسوُم، او زهٔ په واضح طور سره ستاسو خیرخواه یم، په دے وجه ستاسو دَ پلارنیکه پَجهالتونو او غلطو کښے ستاسو سره دَ ملګوی کیدو

په ځائې زۀ ستاسو د طبیعتونو نه خلاف حقه خبره تاسو ته رسوم کو مه چه تاسو بده ګڼړئ۔

په پنځم ایت کښې د عاد د قوم هغه اعتراض ذکر شوے دے کوم چه د دوی نه وړاندې قوم د نوح علیه السلام پیش کړے وۀ چه موږ چا د ځان پشان بشر او انسان لره څنګه خپل مشر او پیشوا اُومنو۔ که څۀ فرشته وے نو ممکنه وه چه موږ منلے وے۔ د دے جواب هم قرآن کریم هغه ذکر کړو کوم چه نوح علیه السلام ورکړے وۀ۔ چه دا څۀ د تعجب خبره نه ده چه یو انسان د الله رسول او نبي جوړ شي خلقو ته د یرَ ولو د پاره راشي ځکه چه په حقیقت کښې د انسان د پوهه کولو د پاره د انسان پیغمبر کیدل زیات اثرناک کیدے شي۔

د دے نه پس هغه انعامونه ورته را یاد وی کوم چه الله تعالیٰ په دے قوم باندې فرمائیلی دی، ارشاد فرمائي: وَاذْكُرُوْٓا اِذْ جَعَلَكُمْ خُلَفَاۗءَ مِنْۢ بَعْدِ قَوْمِ نُوْحٍ وَّزَادَكُمْ فِي الْخَلْقِ بَصْۜطَةً ۚ فَاذْكُرُوْٓا اٰلَاۗءَ اللّٰهِ لَعَلَّكُمْ تُفْلِحُوْنَ:

یعنی دے خبرے لره یاده کړئ چه الله تعالیٰ تاسو لره د قوم د نوح نه پس د زمکے ما لکان او تصرف کوونکی جوړ کړل، او په شکل صورت کښې ئے تاسو لره غټې والے هم زیات درکړو د هغۀ دے نعمتونو لره یاد کړئ نو ستاسو د پاره به ښۀ شي۔

مګر دے سرکشه او بد مسته قوم یو هم اُونه منله او هغه جواب ئے ورکړو کوم چه په عام طور سره ګمراه خلق ورکوی، چه آیا تۀ دا غواړے چه زموږ د پلار نیکه مذهب په موږه پاتے کړے او تول دیوتاګان پرید وموږ صرف د یو خدائے منوونکی شو۔ دا خو به ز موږ نه اُونه شي، تۀ چه د کوم عذاب یره موږ لره راکوے هغه عذاب را اُوغواړه که تۀ رشتونے ئے۔

په شپږم ایت کښې هود علیه السلام جواب ورکړو چه هر کله ستاسو د سرکشۍ او بے هوشۍ دا حالت دے نو اوس په تاسو د خدائے تعالیٰ غضب او عذاب راتلونکے دے تاسو هم انتظار کوئے او موږ هم اوس د هغے انتظار کوو۔ د قوم په دے قهر ور وستوونکی جواب باندې د عذاب راتلو خبر خوئے ورکړو

لیکن پیغمبرانه شفقت اَو محبّت اَو نصیحت بیا هم مجبور ه کړو چه دَ دے کلام په دوران کښے ئے دا هم اُو فرمائیل چه افسوس دے تاسو او ستاسو پلار نیکونو بے عقله او بے روحه څیز ونه خپل معبودان جوړ کړل دَ کوم چه په معبود کیدو باندِ نه څهٔ عقلی دَ لیل شته نه نقلی، اَو بیا تاسو دَ دوی په عبادت کښے دا سے پا بندهٔ شوی یئ چه دَ دوی په حمایت کښے څما سره جګړه کوئے -

په اخری ایت کښے ارشاد فرمائی چه دَ هود علیه السلام دَ قول کوشش او دَ عاد قوم دَ سرکشئ اخری انجام دا شو چه موږ هود علیه السلام لره او هغو خلقو لره کوم چه په دهٔ ایمان راوړے وَه دَ عذاب نه محفوظ کړل او دَ دروغژن کوونکو زیلے موږ یکړے او دغه ایمان راوړونکی نه وُو -

په دے قصه کښے دَ غافلو انسانانو دَ پاره دَ خدائے دَ یاد وَلو او په اطاعت کښے دَ لګیا کیدلو هدایت او دَ خلاف وَرزی کوونکو دَ پاره سامان دَ عبرت او دَ تبلیغ کوونکو او اصلاح کوونکو دَ پاره دَ پیغمبرانه طریقے دَ تبلیغ او دَ اصلاح تعلیم دے -

---

وقف لازم

وَإِلَىٰ ثَمُودَ أَخَاهُمْ صَٰلِحًا ۗ قَالَ يَٰقَوْمِ ٱعْبُدُوا۟

او ثمود یانو ته لیږلے وَه دَ دوی ورور صالح لره - اُو ئے وے اے څما قومه بندګی کوئ

ٱللَّهَ مَا لَكُم مِّنْ إِلَٰهٍ غَيْرُهُۥ ۖ قَدْ جَآءَتْكُم بَيِّنَةٌ

دَ الله نیشته تاسو لره معبود دَ هغهٔ نه سوا - تاسو ته راغلے دے دلیل ستاسو

مِّن رَّبِّكُمْ ۖ هَٰذِهِۦ نَاقَةُ ٱللَّهِ لَكُمْ ءَايَةً ۖ فَذَرُوهَا

دَ رب دَ طرف نه - دا اوښه دَ الله ده ستاسو دَ پاره نښه پس پریږدئ لره پریږدئ

تَأْكُلْ فِىٓ أَرْضِ ٱللَّهِ ۖ وَلَا تَمَسُّوهَا بِسُوٓءٍ فَيَأْخُذَكُمْ

چه خوری دَ الله په زمکه کښے او دے له لاس مه وَروړئ په بد نیت بیا به تاسو لره اُونیسی

عَذَابٌ اَلِيۡمٌ ﴿۷۳﴾ وَاذۡكُرُوۡۤا اِذۡ جَعَلَكُمۡ خُلَفَآءَ

عذاب دردناک - او یاد کړئ کله چه ئې تاسو سرداران کړئ

مِنۡۢ بَعۡدِ عَادٍ وَّبَوَّاَكُمۡ فِى الۡاَرۡضِ تَتَّخِذُوۡنَ

دَعاد یانو نه وروستو او ځائې ئې درکړو تاسو لره په زمکه کښې چه جوړ وئ

مِنۡ سُهُوۡلِهَا قُصُوۡرًا وَّتَنۡحِتُوۡنَ الۡجِبَالَ بُيُوۡتًا‌ۚ

په نرمه زمکه کښې محلونه او تراشئ په غرونو کښې کورونه -

فَاذۡكُرُوۡۤا اٰلَاۤءَ اللّٰهِ وَلَا تَعۡثَوۡا فِى الۡاَرۡضِ مُفۡسِدِيۡنَ ﴿۷۴﴾

پس یاد کړئ احسان دَ الله او مهٔ خوَر وئ په زمکه کښې فساد -

قَالَ الۡمَلَاُ الَّذِيۡنَ اسۡتَكۡبَرُوۡا مِنۡ قَوۡمِهٖ لِلَّذِيۡنَ

اُووې سردارانو کوم چه متکبران وُو دَ دهٔ په قوم کښې غریبو

اسۡتُضۡعِفُوۡا لِمَنۡ اٰمَنَ مِنۡهُمۡ اَتَعۡلَمُوۡنَ اَنَّ

خلقو ته کوم چه په دوی کښې ایمان ئې راوړے وهٔ آیا تاسو یقین کوئے چه

صٰلِحًا مُّرۡسَلٌ مِّنۡ رَّبِّهٖ‌ ؕ قَالُوۡۤا اِنَّا بِمَاۤ اُرۡسِلَ

صالح لېږلے شوے دے دَ دهٔ رب - اوئې وے چه مونږ خو په هغې چه دے پر

بِهٖ مُؤۡمِنُوۡنَ ﴿۷۵﴾ قَالَ الَّذِيۡنَ اسۡتَكۡبَرُوۡۤا اِنَّا

رالیږلے شوے دے یقین کوُو - اُووے هغو خلقو چه متکبران وُو پکوموچه

بِالَّذِىۡۤ اٰمَنۡتُمۡ بِهٖ كٰفِرُوۡنَ ﴿۷۶﴾

ستاسو یقین دے مونږ هغه نه منو -

# لنډ تفسیر

او موږ قوم د ثمود ته د دوی رور صالح (علیه السلام) لره (پیغمبر جوړ کړه)
او ولیږه د دوی له ډلې (خپل قوم ته) او وویل اې زما قومه تاسو (صرف) د الله تعالی
عبادت کوئ د هغه نه سوا بل څوک ستاسو (قابل د عبادت) معبود نیشته (نو
دوی د یو خاص معجزې درخواست او کړو چه کله د دې کتې نه یوه اوښه
پیدا شي نو موږ به ایمان راوړو چنانچه د دوی په دعا سره داسې اوشوه
چه هغه کته اوچاؤده او د مینځ نه یې یوه اوښه را او وته: رواه محمد
بن اسحق: دوی او فرمایل چه) تاسو ته ستاسو د پروردګار د طرفه یو
واضح دلیل (زما په رسالت) راغلې دې (وړاندې ذکر دې بیان دې) دا اوښه
ده د الله چه ستاسو د پاره دلیل (جوړه شوې ظاهر) دې راو ځکه
ورته د الله اوښه وائي چه د الله دلیل دې) پس (علاوه د دې چه زما په
رسالت دلیل دې پخپله د دې هم څه حقونه دي چه په هغو کښې یو دا دې
چه) دې لره پرېدئ چه د الله په زمکه کښې (ګیاه) خوري ګرځي (د غه شان
د خپل وار په ورځ اوبه څښي لکه چه په بل آیت کښې دي) او دې لره په
بده (او په تکلیف رسولو) سره لاس مه وروړئ چرته تاسو به دردناک
عذاب اونیسي او را یاد کړئ (اې قومه) تاسو دا حالت یاد کړئ راو احسان
او منئ او اطاعت کوئ) چه الله تعالی تاسو لره د (قوم د) عاد نه پس (په ځمکه
د ځمکې) آباد کړل او تاسو لره ئې په زمکه کښې د اوسیدو (د ژوند) ځائې
درکړو چه په نرمه زمکه (ځمکه) لوئې لوئې محلونه جوړه وئ او په
غرونو کښې په تراشلو سره په دې کښې (رهم) کورونه جوړه وئ پس د خدائې
تعالی (ددې) نعمتونو لره (او نورو نعمتونو لره هم) یاد کړئ او د کفر
او شرک په ذریعه) په زمکه کښې فساد مه خوروئ (یعني ایمان راوړئ
مګر سره د دومره پوهه کولو څه غریبانو ایمان راوړو او د دوی او د
سردارانو په مینځ کښې دا خبرې او شوې یعني) د ده په قوم کښې چه کوم
متکبران سرداران وو هغوی غریبو خلقونه اوئیل کوم چه په دوی کښې ایمان

راؤړے دہ تپوس اُو کړو چه آیا ستا سو په دے خبره یقین دے چه صالح (علیه السلام) دَخپل ربّ دَطرف نه (پیغمبر جوړشوے) رالیگلے شوے دے دوی (په جواب کښے) اُووے چه بے شکه مونږ خو په دے (حکم) باندې پوره یقین لرو کوم چه دَهٔ لوه ورکړے شوے اورالیگلے شوے دے دغو متکبرو خلقو اُووے چه تاسو په کوم شی یقین راؤړے دے مونږ دَهغے نه منکر یو ـ

# مَعلومَات اومَسئلے

په دے آیا تو نوکښے دَحضرت صالح علیه السلام اوَدهغهٔ دَ قوم ثمود دَحالا تو ذکر دے چه دَدے نه وړا ندِ دَ قوم دَ نوح اودَ قوم دَ هود علیهما السلام ذکر راغلے دے اودَسورتِ اعراف تراخره پورے هم دَتیرو پیغمبرانو اودَدوی دَقومونو حالات دَانبیاؤ دَحق په دعوت باندِ دَدوی دَکفر او انکار دَبد انجام بیان دے ـ

دَذکرشوو آیا تو نو په اولنی آیت کښے ارشاد فرمائی: وَاِلٰی ثَمُوْدَ اَخَاهُمْ صٰلِحًا: دَدے نه اول دَقوم عاد په بیانکښے ذکرشوی وُوچه عاد او ثمود دَیونیکه په اولاد کښے دَدوه سړو ... نومونه دی، دَدوی اولادهم دَدوی په نومونو سره یادشو دوه قومونه جوړشو، یو قوم ته عاد اوبل ته ثمود وائی دَعرب په شمال مغرب کښے اوسیدل او دَدوی دَلوئے ښار نوم حِجر وُوچه اوس ورته په عام طورسره مدائنِ صالح وئیلے شی دَعاد ہانوپشان ثمودیان هم دولت مند قوی او بهادر قوم او په سنګ تراشئ اوفنِ عمارت کښے ماهران وُو، په ډاګه زمکه دَلویو لویو محلونو جوړ دَلونه علاوه غرونو لوه بهٔ ئے کَنستل او په دی کښے بهٔ ئے قسم قسم عمارتونه جوړول ـ په آرض القرآن کښے مولاناسیّد سلیمان صاحبؒ لیکلی دی چه دَدوی تعمیری یادګارونه تراوسه پورے باقی دی په دوی باندِ په اِرمیؒ او ثمودی خط کښے کتبے نقش دی ـ

دَدنیا دَدولت او ثروت نتیجه په عام طورسره دا وی چه داسے خلق دَ خدائے او آخرت نه غافله شی په غلطولاروباندِ روان شی دَثمو یانو هم داحال شو ـ

حال دا دے چه دَ دوی نه وړاندِ دَ نوح علیه السلام دَ قوم دَ عذاب واقعه تېره شوې وه او دغه وخت دا واقعه ورته پوره په دُنیا کښې موجود وه، او بیا دَ دوی دَ رور قوم عادیانو واقعه دَ هلاکت خو تازه وه - مګر دَ دولت او قوّت دَ نشے خاصه داده چه اوس دَ یوسړی بنیادونه نړیګی او بل په دغه ډیری دَ بناؤ رو خپله آبادی کوی او دَ اوّل دغه واقعات هیرَوی - دَ عادیانو دَ تباهئ او هلاکت نه پس قوم دَ ثمود دَ دوی دَ مکانونو او زمکو وارثان شو او په دغو ځایونو ئے خپلے عشرت ځایونه آباد کړل - پکو موچه دَ دوی رونړه تباه شوی وُو، او ټیک هم هغه کارونه او عملونه ئے شروع کړل کوم چه عادیانو کړی وُو، چه دَ خدائے او اخرت نه غافله شو په شرک او بت پرستئ کښے او ګکیدل - الله تعالیٰ دَ خپل روان عادت مطابق دوی ته دَ هدایت کولو دَ پاره حضرت صالح علیه السلام لره پیغمبر جوړ کړو او ئے لیږلو - صالح علیه السلام دَ نسب او وطن په لحاظ سره دَ ثمودیانو دَ قوم یو فرد وه - ځکه چه دے هم دَ سام په اولاد کښے وه - په دے وجه په قرآن کریم کښے ئے ده ته دَ ثمودیانو رور فرمائیلے دے : اَخَاهُمْ صَالِحًا: صالح علیه السلام چه خپل قوم ته کوم دعوت ورکړو هغه هم هغه دعوت دے کوم چه دَ آدم علیه السلام نه واخله تر دے وخته پورے تولو انبیاؤ علیهم السلام ورکړے دے لکه چه په قرآن کریم کښے دی : وَلَقَدْ بَعَثْنَا فِي كُلِّ اُمَّةٍ رَّسُوْلًا اَنِ اعْبُدُوا اللّٰهَ وَاجْتَنِبُوا الطَّاغُوْتَ : یعنی مونږ په هر اُمّت کښے یو رسول او لیګه چه دے خلقو ته دا هدایت او کړی چه دَ الله تعالیٰ عبادت کوئ او دَ بت پرستئ نه ځان ساتئ - دَ عام و تیرو پیغمبرانو پشان صالح علیه السلام هم قوم ته دا او فرمائیل چه الله تعالیٰ خپل رب او خالق او مالک او ګنړئ - دَ هغهٔ نه سوا هیڅوک دَ معبود جوړولو قابل نیشتے، او ئے فرمائیل : یٰقَوْمِ اعْبُدُوا اللّٰهَ مَا لَكُمْ مِّنْ اِلٰهٍ غَيْرُهٗ :

دَ دے سره ئے دا هم او فرمائیل : قَدْ جَآءَتْكُمْ بَيِّنَةٌ مِّنْ رَّبِّكُمْ : یعنی اوس خو یو ښکاره نښه هم ستاسو دَ رب دَ طرف نه تاسو ته دا رسیدَ لے ده - دَ دے نښے نه مراد یو عجیبه اونا اشنا اُوښه ده چه دَ دے اجمالی ذکر

په دے آيت کښے هم دے - او د قرآن کريم په مختلفو سورتونو کښے د دے زيات تفصيلات ذکر دی - واقعه د دے اُو بنے داوه چه حضرت صالح عليه السلام د خپلے ځوانئ د زمانے نه خپل قوم ته د توحيد دعوت ورکول شروع کړل - او برابر په دے کښے لګيا وُه ترد ے چه د زوړ والی نښے ئے شروع شوے - چه د صالح عليه السلام د بار بار اصرار نه تنګ شو نو قوم دا خبره مقرر کړه چه د دۀ نه څۀ داسے مطالبه اوکړو چه د ے ئے پوره نه کړے شی او مونږ د دۀ په مخالفت کښے رونړې شو - مطالبه ئے دا اوکړه چه که ته واقعی د الله رسول ئے نو زمونږ د فلانی غر نه چه نوم ئے تبه وُه ، د دۀ د دننه نه يوه داسے اوښه راوباسه چه د لسو مياشتو بلاربه وی او قوی او تندرسته وی. صالح عليه السلام اوّل د دوی نه عهد واغستو چه که زۀ ستاسو دا مطالبه پوره کړم نو تاسو به ټول په ما او ځما په دعوت ايمان راوړی کله چه ټولو معاهده اوکړه ، نو صالح عليه السلام دوه رکعته مونځ اوکړو د الله تعالیٰ نه ئے دُعا اُوغوښته چه ستا د پاره هيڅ کار ګران نۀ دے د دوی دا مطالبه پوره کړے. د دُعا کولو سره په غرۀ کښے حرکت پيدا شو او د دغے غرۀ يوه غټه ټټره اُوچاوده د دے نه يوه اُوښه هم د غسے راوُوته لکه څنګه چه دوی مطالبه کړے وه -

د صالح عليه السلام دا ښکاره حيرانونکے معجزه چه اُوليده نو په دوی کښے څۀ خلق خو مسلمانان شو ، او پاتے ټول قوم هم اراده اوکړه چه ايمان راوړی ، مګر د قوم يو څو سردارانو کوم چه د بتانو خاص مجاور او د بت پرستئ امامان وُو دے خلقو لره ئے اُوغولول او د ايمان د راوړو نه ئے منع کړل - حضرت صالح عليه السلام چه اوکتل چه قوم عهد لوه مات کړو او ويره پيدا شوه چه په دوی به څۀ عذاب راشی نو د پيغمبرانه شفقت په بنا باندے ئے دوی ته دا نصيحت اوفرمايه ، چه د دے اُوښے حفاظت کوئ دے ته څه تکليف او نۀ رسوئ نو شايد چه تاسو د عذاب نه محفوظ شئ ورنه فورًا به په تاسو عذاب راشی - دا مضمون

د ذکر شوی آيت په دے جملو کښے ارشاد شوے دے : هٰذِهٖ نَاقَةُ اللّٰهِ

لَكُمْ اٰيَةً فَذَرُوْهَا تَاْكُلْ فِيْٓ اَرْضِ اللّٰهِ وَلَا تَمَسُّوْهَا بِسُوْٓءٍ فَيَاْخُذَكُمْ عَذَابٌ اَلِيْمٌ:
یعنی دا اوښه ده د الله چه ستاسو د پاره د دلیل دے په، دا پریدئ چه د الله
په زمکه کښې خوری کرځي او په بده سره دے لره لاس مه وروړئ ورنه
تاسو لره به دردناک عذاب اونیسي، دے اوښې ته د الله اوښه ځکه او
ویلے شوه چه د الله د کامل قدرت د دلیل او د حضرت صالح علیه السلام د
معجزے په طور سره په حیرانونکے طریقے سره پیدا شوه لکه چه حضرت عیسیٰ
علیه السلام ته ئے روح الله فرمائیلی دی چه د هغهٔ پیدائش هم په معجزانه
انداز سره شوے وه۔ په: تَاْكُلْ فِيْٓ اَرْضِ اللّٰهِ: کښې اشاره ده دے طرف ته
چه د دے اوښې په خوراک سکاک کښې ستاسو د ملکیّت او ستاسو د کورنه
هیڅ نه ځي زمکه د الله ده د دے د پیدا او ارپیدا کوونکے هغه دے، د هغهٔ
اوښه د هغهٔ په زمکه کښې آزاده پریدئ چه په عام وچراګاهو کښې خوری
ثمود یا نوچه به د کوم کوهی نه اوبه شکلے شکولے د هغهٔ نه به دے
اوښې هم اوبه شکلے، مګر دے عجیب الخلقت اوښې چه به کله اوبه شکلے
نو د ټول کوهی اوبه به ئے ختمولے، حضرت صالح علیه السلام د الله پاک
په اجازت سره دا فیصله کړے وه چه یوه ورځ به دا اوښه اوبه شکی او
په بله ورځ به د قوم ټول خلق اوبه سکی او وړی به۔ او په کومه ورځ
چه دا اوښه اوبه اوسکی نو نورو ته به د اوبو په ځائے د اوښې پئ په
دومره مقدار کښې ملاویدل چه دوی به ترخپل ټول لوښي ډک کړل
په قرآن کښې بل ځائے د دے تقسیم ذکر داسے راغلے دے: وَنَبِّئْهُمْ اَنَّ
الْمَآءَ قِسْمَةٌۢ بَيْنَهُمْۚ كُلُّ شِرْبٍ مُّحْتَضَرٌ: یعنی اے صالح علیه السلام ته ئے خپل
قوم خبر کړه چه د کوهی اوبه د دوی او د الله د اوښې په مینځ کښې به تقسیم
وی یوه ورځ به د اوښې وی او بله ورځ به د ټول قوم وی او په دے تقسیم
به د الله تعالیٰ د طرف نه د فرشتو نګرانی وی چه څوک به ئے خلاف نه شی کړے
او په یو بل ایت کښې دی: هٰذِهٖ نَاقَةٌ لَّهَا شِرْبٌ وَّلَكُمْ شِرْبُ يَوْمٍ مَّعْلُوْمٍ:
یعنی دا د الله اوښه ده یوه ورځ د اوبو حق د دے دے، او د دویم ورځ
اوبه ستاسو د پاره معیّن او مقرر دی۔

په دريم ايت کښې دَ دے وعده هيرَوُنکی سرکشه قوم دَ خير خواهئ او دوی لره دَ الله دَعذاب نه دَ بچ کوَ لوَ پاره بيا دوی ته دَ الله تعالیٰ انعامونه او احسانونه ياد وی چه اوس خو دِ دا خلق دَ خپلے سرکشئ نه واپس شی فرمائی: وَاذْكُرُوا إِذْ جَعَلَكُمْ خُلَفَاءَ مِنْ بَعْدِ عَادٍ وَبَوَّأَكُمْ فِي الْأَرْضِ تَتَّخِذُونَ مِنْ سُهُولِهَا قُصُورًا وَتَنْحِتُونَ الْجِبَالَ بُيُوتًا: په دے کښې خُلَفَاءَ، دَ خليفه جمع ده چه معنیٰ ئے ده قائمقام او نائب: او: قُصُور: دَ قصر جمع ده اوچت عالی شان محل او ابادئ ته ويلے شی، تَنْحِتُونَ: دَ نحت نه مشتق دے چه معنیٰ ئے ده سنلک تراشی يعنی کټے تراشی، جِبَال: دَ جَبَل جمع ده معنیٰ ئے ده غر -: بُيُوتًا: دَ بَيت جمع ده چه دَ کور کمرے ته ويلے شی- معنیٰ دا ده چه دَ الله تعالیٰ دے نعمت لره ياد کړئ چه هغهٔ عاديان هلاک کړل دَ هغوی په ځائے ئے تاسو آباد کړئ دَ هغوی زمکے او مکانونه ئے ستاسو په قبضه کښې ورکړل او تاسو ته ئے دا کاريگری او خودله چه په ډاگه زمکه لوئے لوئے محلونه جوړ وئ، او غرونه تراشئ کوئ په هغوی کښې کمرے او مکانونه جوړ وئ، په اخر ايت کښې فرمائی: فَاذْكُرُوا آلَاءَ اللَّهِ وَلَا تَعْثَوْا فِي الْأَرْضِ مُفْسِدِينَ: يعنی دَ الله تعالیٰ نعمتونه ياد کړئ او دَ هغهٔ احسان اُومنئ دَ هغهٔ اطاعت اختيار کړئ او په زمکه کښې فساد خوروونکی مه کرځئ -

## حکمونه او مسئلے

دَ ذکرشوو ايا تونو نه څو اُصولی او فروعی مسئلے معلومے شوے:

اوّل دا چه دَ عقيدو په اُصولو کښې ټول انبياء عليهم السلام متفق دی- او دَ دوی شريعتونه يَو دی- دَ ټولو دعوت دَ توحيد دے او دَ الله تعالیٰ عبادت کول او دَ هغهٔ په خلاف کولو باندِ دَ دُنيا او اخرت دَ عذاب نه يَرَوَل دی-

دوَيم دا چه په ټولو تيرو اُمتونو کښې دا سے شوے ده چه دَ قومونو لويو دولت منده او مخوريزو خلقو دَ دوی دعوت نه دے قبول کړے او دَ دے په نتيجه کښې په دنيا کښې هم هلاک او برباد شوی دی او په اخرت کښې هم دَ عذاب مستحق شو-

دريم په تفسير قرطبی کښې دی چه دَ دے ايت نه معلومه شوه چه دَ

الله تعالیٰ نعمتونه په دنیا کښې کافرانو ته هم ورکیدے شی لکه چه په قوم دَ عاد او ثمود الله تعالیٰ دَ دولت او قوّت دروازے پرانستلے وی۔

څلورم په تفسیر قرطبی کښې لیکلی دی چه دَ دے ایت نه معلومه شوه چه لوئے لوئے محلونه او عالی شان مکانونه جوړول هم دَ الله تعالیٰ نعمت دے او دَ دے جوړول جائز دی۔

دا بله خبره ده چه دَ الله تعالیٰ پیغمبرانو او اولیاؤ دے لره نه دی خوښ کړی ځکه چه دا څیزونه انسان لره په غفلت کښې غورزوونکی دی۔ نبی کریم صلے الله علیه وسلم نه چه دَ دنګو مکانونو په باره کښې کوم روایتونه نقل دی هغهٔ دَ دے انداز نه دی۔

په دریم او څلورم ایت کښې هغه خبرے اترے او مباحثه ذکر ده کومه چه دَ ثمودیانو دَ دوه ډلو په مینځ کښې شوے ده، یوه هغه ډله چه په صالح علیه السلام ئے ایمان راوړے وه او دویمه دَ منکرانو او کفارو ډله، ارشاد فرمائی: قَالَ الْمَلَأُ الَّذِينَ اسْتَكْبَرُوا مِنْ قَوْمِهِ لِلَّذِينَ اسْتُضْعِفُوا لِمَنْ آمَنَ مِنْهُمْ: یعنی اُو وے دَ صالح علیه السلام په قوم کښې هغو خلقو کوم چه تکبّر او کړو هغو خلقو ته کوم چه سپک او ذلیل ګنړلے شو یعنی کوم چه ایمان راوړے وه۔

امام رازی په تفسیر کبیر کښې فرمائی چه دلته دَ دے دواړو ډلو دوه صفتونه قرآن کریم او خودل مګر دَ کفارو صفت ئے په صیغه دَ معروف سره اوخودو: اِسْتَكْبَرُوا: او دَ مؤمنانو صفت ئے په صیغه دَ مجهول سره اوخودو: اُسْتُضْعِفُوا: په دے کښې اشاره موندے شی چه دَ کفارو دا حال چه دوی تکبّر کاوه دا دَ دوی خپل فعل وه چه قابل دَ مؤاخذے او دَ ملامتا او انجام ئے موجب دَ عذاب شو۔ او دَ مؤمنانو چه کوم وصف دے خلقو بیانوو چه دوی ذلیل حقیر او ضعیف دی دا دَ کفارو وینا ده پخپله دَ مؤمنانو واقعی حال او وصف نه دے، چه په دوی څهٔ ملامته راشی بلکه ملامته په هغو خلقو باندِ ده چه بے وجې ئے دوی ته سپک او ذلیل وے او ګنړل ئے وړاندِ هغه مکالمه چه دَ دواړو ډلو په مینځ کښې او شوه دا ده چه کفارو مؤمنانو

اُودے چہ آیا تا سو واقعی پہ دے باندے پوھہ یئ چہ صالح علیہ السلام دَ خپل ربّ دَ طرف نہ رالیگلے شوے رسول دے؟

مؤمنانو جواب ورکړو چہ کوم ھدایت دۂ تہ دَ اللہ دَ طرف نہ ورکړے شوے دے او دۂ راوړے دے پہ دے ټول مونږ یقین او ایمان لرو۔

پہ تفسیر کشاف کښے دی چہ دَ قوم دَ ثمود مؤمنانو څنگہ بلیغ جواب ورکړے دے چہ تاسو پہ کوم بحث کښے پراتہ یئ چہ دا رسول دے او کہ نہ دے دا خبرہ دَ سرہ دَ بحث قابلہ نہ دہ بلکہ دا خو بدیھی او یقینی دہ او دا ھم یقینی دہ چہ دے څۂ فرمائی دَ غہ دَ اللہ تعالیٰ دَ طرف نہ راوړے شوے پیغام دے، خبرہ ھرڅہ کیدے شی خو دا چہ څوک پہ دۂ ایمان راوړی او څوک نہ، پس مونږ خو الحمد للہ دَ دۂ پہ راوړو ټولو ھدایتونو باندے ایمان لرو۔

مگر دَ دوی پہ دے بلیغ جواب باندے ھم قوم ھغہ دَ سرکشئ خبرہ اوکړہ چہ پہ کوم شی تاسو ایمان راوړے مونږ دَ ھغے نہ منکر یُو۔ دَ دنیا دَ محبت دولت او قوت دَ نشے ندے اللہ آمان راکړی چہ دَ غہ دَ انسان پہ سترگو پردے چوړے شی او بیا دے دَ بدیھی یعنی واضحہ او ښکارہ څیزونو نہ ھم انکار کوی۔

فَعَقَرُوا النَّاقَةَ وَعَتَوْا عَنْ أَمْرِ رَبِّهِمْ وَقَالُوا

بیا دوی پریکړہ او بیخے لرہ او واپس شو دَ خپل ربّ دَ حکم نہ او اُوئیل

يَا صَالِحُ ائْتِنَا بِمَا تَعِدُنَا إِن كُنتَ مِنَ الْمُرْسَلِينَ ﴿٧٧﴾

اے صالحہ راوَلہ پہ مونږ دَ کوم نہ چہ تا مونږ یرَولو کہ تۂ رسول یئ۔

فَأَخَذَتْهُمُ الرَّجْفَةُ فَأَصْبَحُوا فِي دَارِهِمْ

پس رونیول دوی لرہ زلزلے بیا سحر لہ شو دوی پہ خپلو کورونو کښے

جَاثِمِينَ ﴿٧٨﴾ فَتَوَلَّىٰ عَنْهُمْ وَقَالَ يَا قَوْمِ لَقَدْ

نسکور پراتۂ۔ بیا صالح واپس شو دَ دوی نہ او اُوئے وئیل اے قامہ تو مہ

اَبْلَغْتُكُمْ رِسَالَةَ رَبِّيْ وَنَصَحْتُ لَكُمْ وَلٰكِنْ

ما او رَسَاوَه تاسو ته پیغام دَ خپل ربّ او خیرخواهي مې اوکړه ستاسو لیکن

لَّا تُحِبُّوْنَ النّٰصِحِيْنَ ﴿۷۹﴾

تاسو محبت نه کوئ دَ خیرخواهانو سره۔

# لنډ تفسیر

غرض دغه خلقو په صالح علیه السلام ایمان رانه وړو او نه ئې دَ الله حقونه اَدا کړل بلکه دغې اوښې له ئې (هم) مړه کړه او دَ خپل پروردګار دَ حکم منلو نه ئې (هم) انکار اوکړو (دغه حکم عقیده دَ توحید او رسالت وه) او (په دې کار باندې) ئې داسې باکي اوکړه چه) او ئې وئیل چه اے صالحه دَ کوم (عذاب) چه ته مونږ ته یره راکوې هغه را اوغواړه که ته پیغمبر یې (ځکه چه دَ پیغمبر صادق کیدل لازم دي) پس اونیول دوی لره زلزلې پس په خپلو کورونو کښې نسکور پراته پاتې شو دغه وخت صالح (علیه السلام) دَ دوی نه مخ واړاوه روان شو او (په طور دَ افسوس ئې فرضي خطاب اوکړو) او ئې فرمائیل چه اے زما قومه ما خو تاسو ته دَ خپل پروردګار حکم رسولې وو (چه په هغې عمل کول دَ فلاح سبب وو) او ما ستاسو (ډیره) خیرخواهي اوکړه (چه خو مره په شفقت مې تاسو پوهه کړئ) لیکن (افسوس خو دا دے چه) تاسو خلقو (خپلو) خیرخواهانو لره نه خوښوئ (په دې وجه تاسو بوه وانه وریده او اخر بد ورځ مو اولیده)۔

# معلومات او مسئلے

په تیرو ایاتو نو کښې راغلي دي چه دَ حضرت صالح علیه السلام په دُعا سره دَ غرۀ یوه غټه تږه اوچاوده او یو عجیبه اوښه اَشنا او بیله ترې پیدا شوه او الله تعالیٰ دے اوښې لره هم دَ دے قوم دَ پاره اخرنی امتحان داسے جوړ کړو

چه د کوم کوهی نه د تهول کلی خلقو او د دوی څاروو او به څښکلې دے په د غه تولے اوبه څښکلې، په دے وجه صالح علیه السلام د دوی د پاره وار مقرر کړے وه چه یوه ورځ به دا اوښه اوبه څښکی او بله ورځ د کلي خلق۔

ثمودیان د دے اوښې په وجه په یو تکلیف کښې پریوتل۔ او غوښتل ئے چه په څهٔ شان سره دا اوښه هلاک شی، خو پخپله د دا سے کولو نه یریدل چه د الله تعالیٰ عذاب به راشی۔

د شیطان د ټولو نه لوئے هغه فریب پکوم کښې چه انسان مبتلا شی نو خپل عقل او هوش ترلاسه شی هغه د ښځو فتنه ده۔ د قوم دوه خائسته او خوبصورته ښځو دا شرط اولګاوو چه کوم سړے دے اوښې لره قتل کړی نو په موږ او زموږ په لونړو کښې چه کومه یوه دے غواړی د ده به وی۔

د قوم دوه ځوانان مِصْدَعْ او قُدَار په دے نشه کښې مست شو د دے اوښې د قتل کولو د پاره اووتل او د اوښې په لاره کښې د یو تړے لاندې پټ کیناستل هرکله چه اوښه مخې له راغله نو مصدع پرې د غشی گذار اوکړو او قدار ورلره په توره خپې پریکړے قتل ئے کړه۔

قرآن کریم دوی لره د ثمودیانو د ټولو نه لوئے بدبخته او سخت زړے مقرر کړی دی؛ اِذِ انْبَعَثَ اَشْقٰهَا؛ ځکه چه د دوی په سبب ټول قوم په عذاب کښې ګېر شو۔

حضرت صالح علیه السلام ته چه د اوښې د قتل واقعه معلومه شوه، نو قوم ته ئے د خدائے په حکم سره او خود له چه اوس ستاسو د ژوند صرف درے ورځې باقی دی؛ فَتَمَتَّعُوْا فِیْ دَارِكُمْ ثَلٰثَةَ اَیَّامٍ ذٰلِكَ وَعْدٌ غَیْرُ مَكْذُوْبٍ؛ یعنی درے ورځې نورے پخپلو کورونو کښې آرام اوکړئ (د دے نه پس عذاب راتلونکے دے) او دا وعده رشتونے ده په دے کښې د خلاف څهٔ امکان نیشتې۔ مګر د کوم قوم چه وخت خراب راځی په دوی باندې هیڅ نصیحت او پوهه کول اثر نه کوی۔ د حضرت صالح علیه السلام په دے ارشاد باندې هم دے بدبخت قوم مسخرے او خندا اکلاے کولے او ویل ئے چه دا عذاب به څنګه او د کوم ځائے نه راځی او نښه به ئے څهٔ وی؟۔

حضرت صالح علیه السلام اُو فرمایل چه لښتمے هم واوره، صبا د زیارت په ورځ به ستاسو د تولو مخونه سخت زیړ شی سرے بنځے بچی بوډا کان هیڅوک به د دے نه مستثنٰی نه وی بیا به په بله ورځ د جمعے د تولو مخونه سخت سره شی او په بله ورځ د هفتے به د تولو مخونه سخت تور شی، او دا ورځ به ستاسو د ژوند اخری ورځ وی. بد نصیب قوم چه دا واوریدل نو په ځائے د دے چه توبه او استغفار طرف ته متوجه شوی وے دا فیصله ئے اوکړه چه صالح علیه السلام دِ قتل کړے شی. ځکه چه که دے رشتونے وی او په مونږ باندِ عذاب راځی نو مونږ دے د ځان نه وړاندِ ولے نه ختمو، او که دروغژن وی نو د خپلو دروغو سزا به ورته ملاؤ شی. د قوم د دے ارادے ذکر په قرآن شریف کښے بل ځائے په تفصیل سره ذکر دے. د قوم د دے متفقه فیصلے تحت ځنے خلق د شپے د حضرت صالح علیه السلام کور ته د دهٔ د قتل په اراده لاړل مګر الله تعالٰی په لاره کښے په دوی کانړی اُووَرَول هلاک ئے کړل: فَمَكَرُوْا مَكْرًا وَّمَكَرْنَا مَكْرًا وَّهُمْ لَا يَشْعُرُوْنَ: یعنی دوی هم یو پټ تدبیر اوکړو او مونږ هم یو داسے تدبیر اوکړو چه دوی ته د دے نه خبر نه شو.

او کله چه د زیارت د ورځے سحر شو نو د صالح علیه السلام د وینا مطابق د تولو مخونه داسے زیړ شو لکه چه زبردست زیړ رنګ پورے چا راخکو دے وی، د عذاب د اول نښے د رښتیا کیدو نه پس هم د ظالمانو دے طرف ته توجه اُونه شوه چه په الله تعالٰی ئے ایمان راوړے وے او د خپلو غلطو نه واپس شوی وے بلکه قهر او غصه ئے په حضرت صالح علیه السلام باندِ نوره زیاته شوه. او تول قوم د دهٔ د قتل په فکر کښے روان شو. الله تعالٰی دِ مونږ د خپل قهرنه بچ کړی د دهٔ هم نښے وی چه زړونه او دماغ اُلټه شی نفع له نقصان او نقصان له نفع، ښهٔ له بد او بد له ښهٔ ګنړل شروع شی.

اخر دویمه ورځ راغله نو د پیشګوئۍ مطابق د تولو مخونه سره شو او په دریمه ورځ سخت تور شو، او س خو دا تول د خپل ژوند نه نااُمید شو انتظار ئے شروع کړو چه عذاب به د کوم طرف نه څنګه راځی.

په دے حالت کښې د زمکې نه یو سخته زلزله راغله او د بره نه یو سخت هیبناک آواز او چغه او شوه یکوم سره چه دوی ټول په یو وخت په ناسته ناستے ښکور په یو ځائے مړه شو۔ د زلزلے ذکرخو په دے بره ایا تونو کښې موجود دے: فَاَخَذَتۡهُمُ الرَّجۡفَةُ، د رَجۡفه معنیٰ ده زلزله۔
او په نورو ایاتونو کښې: اَخَذَتۡهُمُ الصَّيۡحَةُ: هم راغلے دے، د صیحه معنیٰ ده چغه او سخت آواز، د دواړو ایاتونو نه معلومه شوه چه دا دواړه قسمه عذاب په دوی جمع شوے وُو۔ د زمکے نه زلزله او د بره نه صَیحه یعنی چغه د دے نتیجه دا شوه چه: فَاَصۡبَحُوۡا فِیۡ دَارِهِمۡ جٰثِمِیۡنَ: جٰثِمِیۡن د جثوم نه مشتق دے چه معنیٰ ئے ده بے حِس و حرکت کیدل په یو ځائے پریوتل یا کیناستل (قاموس) معنیٰ ئې دا ده چه څوک په څهٔ حال کښې وُو هم په هغه ځائے چیرے شو۔ نَعُوۡذُ بِاللّٰهِ مِنۡ قَهۡرِهٖ وَعَذَابِهٖ (یا الله مونږ د خپل قهر او عذاب نه په امان کړے)
د ثمود یانو د دے قصے اهم اجزاء خو پخپله د قرآن شریف په مختلفو سورتونو کښې ذکر دی۔ او څهٔ اجزاء ئے د حدیثو په روایتونو کښې ذکر دی څهٔ هغه هم دی کوم چه تفسیر لیکونکو د اسرائیلی روایتونو نه را غستی دی مګر په دے بانې د څهٔ واقعے او حقیقت د ثبوت مدار نیشتے۔
د صحیح بخاری په یو حدیث کښې دی چه د تبوک د غزا په سفر کښې د نبی کریم صلے الله علیه وسلم او صحابه کرامو ګذر د حِجر په مقام باندې اوشو کوم ځائے چه په ثمودیانو عذاب راغلے وُو نو دوی صحابه کرامو ته هدایت اوفرمایه چه دے عذاب وهلے زمکے ته څوک د ننه مه ځئ او مه د دے د کوهی اُوبه استعمالوئ (مظهری)
او په بعض روایتونو کښې دی چه نبی کریم صلے الله علیه وسلم فرمائیلی دی چه په ثمودیانو کله عذاب راغے نو په دوی کښې بغیر د یو سړی ابورغال نه څوک نه دے بچ شوے، دا سړے دغه وخت د مکے حرم ته رسیدلے وُو۔ الله تعالیٰ د مکے د حرم د احترام په سبب دغه وخت دے د عذاب نه بچ کړو او اخر کله دے د حرم نه او وتلو نو هغه عذاب چه د دهٔ

په قوم باندې راغلې وه په دغه هم راغې او هلته هلاک شو- نبی کریم صلی الله
علیه وسلم خلقو ته د مکے نه باهر د ابو رغال د قبر نښه هم اوخوده او دا ئې
هم او فرمائیل چه د دغه سره د سرو زرو یوه همسا هم دفن شوې ده صحابه
کرامو قبر او سپړه و نو د سرو زرو همسائې بیا مونده هغه ئې راواوویستله په
دې روایت کښې دا هم دی چه د طائف اوسیدونکی بنو ثقیف د دغه ابو رغال
اولاد دے- (مظهری)

د دے عذاب شوو قومونو کلی الله تعالیٰ د راتلونکو نسلونو د پاره د
عبرت لپاره پاتے کړی دی او قرآن کریم د عربو خلق بار بار په دے خبر کړی
دی چه ستا سو د شام د سفر په لاره باندې دا ځایونه نن هم د عبرت
قصے جوړے شوی دی؛ لَمْ تُسْكَنْ مِّنْۢ بَعْدِهِمْ اِلَّا قَلِيْلًا ؛

د صالح علیه السلام د قوم د عذاب په واقعه کښې په آخر کښې ارشاد دے:-
؛ فَتَوَلّٰى عَنْهُمْ وَقَالَ يٰقَوْمِ لَقَدْ اَبْلَغْتُكُمْ رِسَالَةَ رَبِّيْ وَنَصَحْتُ لَكُمْ وَلٰكِنْ
لَّا تُحِبُّوْنَ النّٰصِحِيْنَ ؛ یعنی په قوم د عذاب نازلیدو نه پس حضرت صالح علیه
السلام او په دوی ایمان راوړونکی مؤمنانو هم دا ځائے پاتے کړو چرته بل
ځائے ته لاړل، په بعض روایتو نو کښې دی چه د حضرت صالح علیه السلام
سره څلور زره مؤمنان وو دا ټول د یمن علاقے حضرموت ته لاړل، او
هلته حضرت صالح علیه السلام وفات شو، او د بعضے روایتو نو نه د دوی
مکے مکرمے ته تلل او هلته د صالح علیه السلام وفات کیدل معلومیګی-

د عبارت د ظاهر نه معلومیګی چه حضرت صالح علیه السلام د تلو په وخت
کښې خپل قوم ته خطاب اوکړو او وئې فرمائیل چه اے زما قومه ما تاسو ته
د خپل رب پیغام اورسا وه او ستاسو خیر خواهی م اوکړه مګر افسوس
چه تاسو خیر خواهان نه خوښوئ-

دلته دا سوال پیدا کیږی چه کله ټول قوم په عذاب هلاک شو نو دوی
ته د خطاب کولو څه فائده وه، جواب دا دے چه یوه فائده خو دا ده چه
د خلقو د پاره عبرت شی او دا خطاب داسے دے لکه نبی کریم صلی الله علیه
وسلم چه په غزاګ بدر کښې د قریشو مړو ته خطاب کړے وه څه کلمے ئې فرمائیلې وې

او دا هم ممکنه ده چه د حضرت صالح علیه السلام دا فرمائیل د عذاب نازلید و او هلاکت د وخت نه وړاندې شوې وي اګر چه په بیان کښې ورستې ذکر شوې دے۔

وَلُوْطًا اِذْ قَالَ لِقَوْمِهٖٓ اَتَاْتُوْنَ الْفَاحِشَةَ مَا سَبَقَكُمْ

او لیږلے وُه لوط لره هر کله چه او وے دهٔ قوم خپل ته آیا تاسو کوئ دا سې بے حیائي چه ستاسو نه وړاندې

بِهَا مِنْ اَحَدٍ مِّنَ الْعٰلَمِيْنَ ﴿۸۰﴾ اِنَّكُمْ لَتَاْتُوْنَ

نه دهٔ کړے دے لره هیچا په جهان کښې - تاسو راځئ

الرِّجَالَ شَهْوَةً مِّنْ دُوْنِ النِّسَآءِ ؕ بَلْ اَنْتُمْ

سړو ته په شهوت سره بنځې پاتے کوئ - بلکه تاسو خلق یئ

قَوْمٌ مُّسْرِفُوْنَ ﴿۸۱﴾ وَمَا كَانَ جَوَابَ قَوْمِهٖٓ اِلَّآ

د حد نه تیریدونکی - او هیڅ جواب ورنهٔ کړو د دهٔ قوم مګر

اَنْ قَالُوْٓا اَخْرِجُوْهُمْ مِّنْ قَرْيَتِكُمْ ۚ اِنَّهُمْ اُنَاسٌ

دا ئے او وے چه اُوباسئ دوی لره د خپل ښار نه - دا خلق دي

يَّتَطَهَّرُوْنَ ﴿۸۲﴾ فَاَنْجَيْنٰهُ وَاَهْلَهٗٓ اِلَّا امْرَاَتَهٗ ۖ

پاک اُوسیدل غواړي - بیا بچ کړو مونږ دهٔ لره او د دهٔ کور والو لره مګر د ده ښځه

كَانَتْ مِنَ الْغٰبِرِيْنَ ﴿۸۳﴾ وَاَمْطَرْنَا عَلَيْهِمْ مَّطَرًا ؕ

چه پاتے شوه د دغه ځائے په اوسیدونکو کښې - او اُووَرَوَلو مونږ په دوی باران یعني د کاڼو -

فَانْظُرْ كَيْفَ كَانَ عَاقِبَةُ الْمُجْرِمِيْنَ ﴿۸۴﴾ ع

بیا اوګوره چه څنګه شو انجام د ګناه ګارانو -

# لنډ تفسير

او مونږ لوط (عليه السلام) لره (يو شو کلو طرف ته پيغمبر جوړ کړو)
او ليږو هر کله چه دوی خپل قوم (يعني خپل امت) ته او فرمائيل آيا تاسو
داسې فحش کار کوئ کوم لره چه ستاسو نه وړاندې هيچا په جهان والو کښې نه
دے کړے (يعني) تاسو د سړو سره شهوت رانی کوئ ښځې پاتې کوئ را وړه دې
کار کښې څۀ داسې نه ده چه کوم نې تاسو د وکه شوی يئ) بلکه (په دے باره کښې)
تاسو د حد (د سړيتوب) نه تير شوی يئ او (د دے مضامينو) د دۀ د
قوم نه څۀ (معقول) جواب جوړ نه شو بغير د دے نه چه را اخرے د عبث گوئي
په سبب) يو بل ته اُو وے چه دے خلقو لره (يعني لوط عليه السلام لره او د
دۀ ملګرو لره چه مؤمنان دی) تاسو د خپل (دے) کلی نه اُو باسئ (ځکه چه)
دا خلق ډير پاک صاف جوړيدل غواړی (او مونږ ته ګنده وائی بيا په
ګنده وُو کښے د پاک و څۀ کار دے؟ دا خبره دوی په مسخره سره کړے وه) پس
(هر کله چه دے حد ته نوبت اورسيد و نو) مونږ (په دے قوم عذاب
نازل کړو او) لوط (عليه السلام) لره او د دۀ سره تعلق لرونکو لره (يعني د
د دۀ کور والؤ لره او نور وايمان دارو لره هم د دے عذاب نه) بچ کړل (دا سے
چه د دغه ځائے نه ورته د وتلو وړاندې حکم او شو) بغير د دۀ د ښځې نه چه هغه
(په وجه د ايمان نه راوړو) په دغو خلقو کښے پاتے شوه کوم چه په عذاب کښے
پاتے شوی وُو او (دغه عذاب کوم چه په دوی نازل شو دا وُه چه) مونږه
په دوی باندې يو نوے قسم باران اُو ورا وُه (چه دغه د کا ڼو باران وُه) پس
را لے ليد ونکيه) او ګوره چه د دے مجرمانو انجام څنګه شو (که ته په غور
سره اوګورے نو تعجب به اوکړے او پوهه به شے چه د نا فرمانئ څۀ انجام وی)-

# معلومات او مسئلے

د انبياؤ عليهم السلام او د دوی د امتونو د قصو کوم سلسله چه د ډيرو نه
دا روانه ده د هغې څلورمه د حضرت لوط عليه السلام ده -

لوط علیه السلام دَ حضرت خلیل الله ابراهیم علیه السلام وُراره وَ دے دَ دوا پوا اصلی وطن په مغربی عراق کښې بصرے ته نژدے دَ بابل په نوم سره مشهور وَه په دے کښې دَ بُت پرستئ عام رواج وَه - دَ خلیل الله علیه السلام کورنئ ځپله په بُت پرستئ کښې اخته وه، الله تعالیٰ دَ دوی دَ هدایت دَ پاره ابراهیم علیه السلام لره پیغمبر جوړ کړو اَو لیږه، قوم ئے مخالفت اَوکړو چه دَ دے نوبت دَ نمرود دا اورته اُورسیدو، ځپله ورلره پلار دَ کوره دَ ویستلو دهمکئ زیره) ورکړه -

په ځپل کورکښې ئے صرف بی بی محترمه حضرت ساره او وُراره حضرت لوط علیه السلام مسلمانان شوی وُو: فَاٰمَنَ لَهٗ لُوْطٌ : اٰخر دا دواړه ئے دَ ځان سره کړل دَ ځپل وطن نه ئے شام طرف ته هجرت او فرمایه - دَ اُردن نهرته دَرسیدو نه پس دَ الله تعالیٰ په حکم بانی حضرت ابراهیم علیه السلام دَ کنعان علاقے ته لاړه شو مقیم شو کوم چه بیت المقدس ته نژدے - او لوط علیه السلام ته هم الله تعالیٰ نبوّت ورکړو دَ اُردن او بیت المقدس دَ درمیانی مقام سدُوم خلقو ته ئے دَ هدایت دَ پاره اولیږو - دا علاقه په پنځو ښو ښارونو بانی مشتمله وَه - چه نومونه ئے سدوم، عموره، ادمه، صبوییم، او بالع یا صوغر وَه - دَ دوی مجموعے ته قرآن کریم: مؤتفکة: اودَ: مُؤتفکات: په الفاظو سره ځو ځایه بیان کړے دے - سدوم دَ دے ښارونو دارالحکومت او مرکز گڼلے کیده - حضرت لوط علیه السلام دلته قیام او فرمایه زمکه سرسبزه او شادابه وَه دَ هر قسم غلے او میوے په کښې ډیرے وے ردا تاریخی تفصیلات په بحر محیط، مظهری، ابن کثیر، المنار وغیره کښې ذکر دی)

دَ انسان عام عادت تو نه قرآن کریم بیان کړی دی: كَلَّآ اِنَّ الْاِنْسَانَ لَيَطْغٰٓى ه اَنْ رَّاٰهُ اسْتَغْنٰى ه یعنی انسان په سرکشئ کولو شروع شی کله چه دے اُوویني چه دے دَ چا محتاج نه دے: په دے خلقو هم الله تعالیٰ دَ ځپلو نعمتونو دروازے پرانستے دے، دَ عام انسانی عادت تحت دَ دولت او مالدارئ په نشه کښې اخته شوی دَ عیش وعشرت او هوا وهوس هغے غایے ته رسیدلی وُو چه دَ انسانی غیرت او حیا او دَ ښه بد فطری تمیز ترې هم ورک شوے وَه - په دا سے غیر فطری

بے باکو کښے اخته شوی وُو۔ کوم چه دَ حرامو الی او ګناه نه علاوه دَ فطرتِ سلیمه دَپاره داسے دَ نفرت او سخاوالی کار دے چه عام جانوران ورته هم نه نزدے کیږی۔

حضرت لوط علیه السلام لره الله تعالیٰ کَ دوی دَ هدایت دَپاره ماموره کړو، دوی خپل قوم ته خطاب اوکړو او وُئے فرمائیل: أَتَأْتُونَ الْفَاحِشَةَ مَا سَبَقَكُم بِهَا مِنْ أَحَدٍ مِّنَ الْعَالَمِينَ ۔ یعنی په طور دَخبردار کولو ئے او فرمائیل آیا تاسو داسے فحش کار کوئ کوم چه ستاسو نه وړاندے په ټول جهان هیچا نه دے کړے۔

دَ زنا په باره کښے خو قرآن کریم إِنَّهُ كَانَ فَاحِشَةً: بغیر دَ الف لام نه ذکر کړے دے او دلته ئے دَ الف لام سره: اَلْفَاحِشَةَ: او فرمایه دے طرف ته ئے اشاره اوکړه چه دا دَ فطرت نه خلاف بد کاری ګویا دَ ټولو فاحشه وُو مجموعه او دَ زنا نه زیات سخت جرم دے۔

بیائے دا اُو فرمائیل چه دا بدکاری ستاسو نه اوّل په ټول جهان کښے هیچا نه ده کړے۔ عمرو بن دینار فرمائی چه دَ دے قوم نه اول په دنیا کښے چرته داسے حرکت نه دے لیدَلے شوے (مظهری) او نه دَ اصلِ سد وم نه اوّل دَ چا ناکاره نه ناکاره انسان ذهن دے طرف ته تلے وُو۔ اُموی خلیفه عبدالملک به وے چه که دَ قوم لوط قصه په قرآن کریم کښے نه وے ذکر شوے نو ما به چرته ګمان نه وُو کړے چه یو انسان هم داسے کار کولے شی۔۔ (ابن کثیر)

په دے کښے ئے دَ دوی په بے حیائی باندِ په دوه حیثیته سره خبردارے ورکړے دے۔ اوّل خو دا چه په ډیرو ګناهونو کښے انسان دَ خپل ماحول یا دَ خپلو مشرانو دَ تقلید په وجه اخته کیدے شی۔ اګر چه دغه هم څه شرعی عذر نه دے، خو عُرفاً دَ ته په څهٔ نه څهٔ درجه کښے معذور و ګڼلے شی مګر داسے ګناه کوم چه دَ وړاندِ نه چانهٔ وی کړے او نهٔ دَ دے دَپاره څهٔ خاص غوښتنه وی یعنی حاجت وی، دغه نور هم زیات وبال دے۔ دوّیم په دے حیثیت سره چه څهٔ بَد کار یا بَد رسم کوم سړے ایجادوی په دَهٔ دَ دے

خپل کار گناه او عذاب خووی او کړے سره د هغو تولو خلقو د عذاب
او وبال نهم د دهٔ په کړه دن باندې وی کوم چه تر قیامته پورے د دغے کار نه
متأثره کیږی او اخته کیږی پکښې -

په دویم ایت کښې ئے د دوی دا بے حیائی په زیاتو واضحو الفاظو کښې دا سے
بیان کړه چه "تاسو ښځے پاتے کوئ د سړو سره شهوت رانی کوئ"۔ په دے کښې ئے
اشاره او کړه چه د انسان د طبعي او فطری خواهش د پوره کولو د پاره الله تعالیٰ
یوه حلال او جائز طریقه د ښځو سره د نکاح کولو مقرر کړے ده، دا پاتے
کول او غیر فطری طریقه اختیارول د نفس د خباثت او د ذهنی گندگئ
ثبوت دے -

په دے وجه صحابهؓ او تابعینوؒ او مجتهدینو امامانو دے جرم لره
د عامے بد کارئ نه زیات سخت جرم او گناه مقرر کړے دے، امام اعظم
ابوحنیفهؒ فرمائی دا سے کار کوونکی لره دا سے سزا ورکول پکار دی لکه څنګه
چه د لوطؑ قوم ته د الله تعالیٰ د طرف نه ورکړے شوے ده چه د اسمان
نه پرے کانړی اُووریدل او زمکه پرینکوره شوه- نو په دے وجه دا سے
سړے د یو دنګ غرنه راأوغورزولے شی او د پاسه دپرے کانړی اُوشی-

په مسند احمد، ابوداؤد، ترمذی، ابن ماجه کښې په روایت د ابن عباسؓ
ذکر دی، چه نبی کریم صلے الله علیه وسلم د دا سے کار کوونکو په باره کښې
فرمائیلی دی: فَاقْتُلُوا الْفَاعِلَ وَالْمَفْعُولَ بِهٖ: یعنی کړ دے کار کوونکی فاعل او
مفعول دواړه قتلوئ - (ابن کثیر) -

د ایت په اخر کښې فرمائی: بَلْ اَنْتُمْ قَوْمٌ مُّسْرِفُوْنَ: یعنی تاسو دا سے
قوم یئ چه د انسانیت د حد نه وتلی یئ- یعنی ستاسو اصل مرض دا دے
چه تاسو په هر کار کښې د هغهٔ د حد نه اُوځئ- د جنسی خواهش په باره کښې
هم دا سے او شوه چه د خدائے تعالیٰ د مقرر کړی حد نه اُووتلئ د فطرت
نه خلاف کار کښې اخته شوئ -

په دریم ایت کښې د حضرت لوط علیه السلام د نصیحت په جواب کښې د دهٔ
د قوم جواب دا سے ذکر شوے دے چه کړ دے خلقو نه څهٔ معقول جواب خو جوړ

نه شو په ضد کښې راغله یو بل ته ئے او وے چه داخلق ډیر د پاکئ او صفایئ دعوه کوی دَ دوی علاج دادے چه دوی دَ خپل کلی نه اوباسُو۔

په دریم او څلورم آیاتونو کښې دَ سدُوم دَ قوم په دے بے حیایئ او بے باکئ باندِ دَ آسمانی سزا ذکر دے، او داچه په دے ټول قوم باندِ دَ الله تعالیٰ عذاب نازل شو صرف لوط علیه السلام او دَ دهٔ یو څو ملګری دَ عذاب نه محفوظ پاتے شو، دَ قرآن کریم په الفاظو کښې: فَأَنجَيْنَٰهُ وَأَهْلَهُۥٓ؛ راغلی دی یعنی مونږ لوط علیه السلام او دَ دهٔ اهل لره دَ عذاب نه نجات ورکړو۔ دا آهل کوم خلق وُو؛ دَ بعضے تفسیر لیکُونکو حضراتو وَئیلی دی چه په اَهل کښې دوه جینکئ وے کومے چه مسلمانانے شوے وے، بنځه ئے هم نه وَه مسلمانه شوے، دَ قرآن مجید په یو بل آیت کښې: فَمَا وَجَدْنَا فِيهَا غَيْرَ بَيْتٍ مِّنَ الْمُسْلِمِينَ؛ ذکر دے چه په دغو ټولو کلو کښې سِوا دَ یو کور نه څوک مسلمان نه وُو۔ دَ دے نه په ظاهره دا معلومیګی چه صرف دَ لوط علیه السلام دَ کور خلق مسلمانان وُو کوم ته دَ عذاب نه نجات ملاؤ شو، په دوی کښې ئے بنځه هم داخله نه وه، او بعضِ تفسیر لیکُونکی فرمائی چه دَ آهل نه مراد عام دے خپل کور والا او نور متعلقین کوم چه مسلمانان شوی وُو۔ لنډه دا ده چه دَ شمار یو څو تنه مسلمانان وُو کوم ته چه الله تعالیٰ دَ عذاب نه دَ بچ کولو دَ پاره حضرت لوط علیه السلام ته حکم ورکړو چه دَ بنځے نه سِوا نور اهل او متعلقین روان کړه او دَ شپے په آخر کښې دَ دے کلی نه اووځه، او شاته به نهٔ ګورئ ځکه چه کوم وخت تاسو دَ دے کلی نه اُووځئ نو په دے کلی باندِ به فورًا عذاب راځی۔

حضرت لوط علیه السلام دَ خپل رب حکم اومنلو خپل اهل او متعلقین ئے دَ شپے په آخر کښې دَ سدوم کلی نه اوویستل۔ دَ بنځے متعلق ئے دوه روایتونه دی یو دادے چه هغهٔ ورسره نه دهٔ وَتلے، دوېم داچه څهٔ ځائے پورے لاړه مګر دَ الله تعالیٰ دَ حکم خلاف ئے شاته اوکتل چه دَ کلی دَ خلقو حال اووینی۔ هغو عذاب راؤ نیوه۔ دَ قرآن مجید په مختلفو ځایونو کښې ئے دے واقعے لره کله مجمله او کله په تفصیل سره بیان کړے ده۔ دلته په دریم آیت کښې صرف دومره ذکر دی چه مونږ لوط علیه السلام او دَ دهٔ اهل او متعلقینو لره دَ عذاب نه نجات ورکړو مګر دَ دهٔ بنځه په عذاب کښې پاتے شوه۔ دَ نجات ورکولو دا صورت

چه دا خلق دې په آخره شپه کښې د کلي نه اوځي او په روستو دې نه ګوري په نورو آيتونو کښې ذکر دی -

په څلورم آيت کښې په دې قوم د نازل شوي عذاب په لنډو لفظونو کښې صرف دومره ذکر شوی دی، چه په دوی يو عجيبه قسم باران اوليګلې شو، او په سورتِ هود کښې د دې عذاب مفصّل کيفيّت داسې بيان شوی دی

: فَلَمَّا جَآءَ اَمْرُنَا جَعَلْنَا عَالِيَهَا سَافِلَهَا وَ اَمْطَرْنَا عَلَيْهَا حِجَارَةً مِّنْ سِجِّيْلٍ مَّنْضُوْدٍ مُّسَوَّمَةً عِنْدَ رَبِّكَ وَمَا هِيَ مِنَ الظّٰلِمِيْنَ بِبَعِيْدٍ : يعنې کله چه زمونږ عذاب راغې نو کړو مونږه لاندې باندې آو او ورولې مونږه په دوی کڼې د ګټې کانړو قطع په قط نښه کړې شوې ستا د رب سره او نه دې دغه کلې د دې ظالمانو نه څه لرې -

د دې نه معلومه شوه چه د برې نه پړې د کانړو باران هم اوشو او د لاندې نه جبرئيل امين د غه ټول زمکه اوچته کړه نسکوره ئې را اوغورزوله او د کومو ګټو باران چه پرې اوشو هغه قط په قط دے - يعنې داسې مسلسل باران پرې اوشو چه قط په قط جمع شوے او دا ګټې نښه کړے شوے وے - بعض تفسير ليکونکي فرمائي چه په هر يوه ګټه د هغې سړي نوم ليک وه د کوم د هلاکت د پاره چه راغوزاره شوے وه - او د سورتِ حِجر په آيتونو کښې د دې عذاب نه وړاندې داهم ذکر دی: فَاَخَذَتْهُمُ الصَّيْحَةُ مُشْرِقِيْنَ : يعنې اونيول دوی لره چغې د نمر ختو په وخت کښې -

د دينه معلومه شوه چه اوّل د آسمان نه سخت آواز د چغې په صورت کښې راغلے دے بيا د دے نه پس دويم عذاب راغې - د الفاظو د ظاهر نه دا معلوميږي چه د چغې نه پس اوّل زمکه نسکوره شوے وه بيا د زيات ذلّت او سپکاوي د پاره پرې ګټې اوورولے شوے - او دا هم ممکنه ده چه اوّل پرې ګټې وروِلے شوې وي بيا زمکه نسکوره شوے وي، ځکه چه د قرآن د بيان په طريقه کښې دا ضروري نه ده چه د کوم شي ذکر اوّل شوے وي هغه دے واقع شوے هم اوّل وي -

د لوط عليه السلام د قوم په حيتنا کو عذابونو کښې د زمکې د نسکورولو سزا د دوی د فحش او بې حيائۍ د کار سره خاص مناسبت هم لري چه دوی د اکته ځائے نه کار اخستے دے -

دَ سورتِ هود دَ آیت په آخر کښې قرآن کریم دَ عربو دَ زیاتو خبردارکولو دَ پاره دا هم فرمائی: وَمَا هِيَ مِنَ الظّٰلِمِيْنَ بِبَعِيْدٍ، یعنی دا نسکورې شوې کلې دَ دې ظالمانو نه څهٔ لرې نه دی۔ دَ شام دَ سفر په لاره باندِ هر وخت دا دَ دوی په وړاندې وی مګر حیرانی دا ده چه دوی ترې عبرت نه حاصلوی۔

او دا نظاره صرف دَ قرآن دَ نزول په وخت کښې نه بلکه نن هم موجوده دهٔ دَ بیت المقدس او دَ اُردن دَ نهر په مینځ کښې نن هم دغه ټوټه دَ زمکے دَ بحرِ لوط یا بحرِ میّت په نوم سره یادیږی۔ دَ دې زمکه دَ سطحِ سمندر نه یو ډېره ژوره ده او دَ دې په یو خاص حصه باندِ دَ دریاب په صورت کښې یو عجیبه قسم اُوبهٔ موجودے دی چه هیڅ جاندار مهے چندخ وغیره پکښې ژوندے نه شی پاتے کیدے۔ په دے وجه دهٔ ته مړه دریاب وائی۔ دے مقام ته سدوم وئیلے شی۔ نَعُوْذُ بِاللّٰهِ مِنْ عَذَابِهٖ وَغَضَبِهٖ: (یا الله موبن دَخپل قهر او غضب نه په امان کړے)۔

وَ اِلٰى مَدْيَنَ اَخَاهُمْ شُعَيْبًا ؕ قَالَ يٰقَوْمِ اعْبُدُوا

او مدین طرف ته لیگلے وه دَ دوی رور شعیب لره اُوئے وئیل اے زما قومه بندګی کوئ

اللّٰهَ مَا لَكُمْ مِّنْ اِلٰهٍ غَيْرُهٗ ؕ قَدْ جَآءَتْكُمْ بَيِّنَةٌ

دَ الله نیشته څوک تاسو لره معبود دَ هغهٔ نه سِوا۔ تاسو ته رسید لے دے دَلیل

مِّنْ رَّبِّكُمْ فَاَوْفُوا الْكَيْلَ وَ الْمِيْزَانَ وَلَا تَبْخَسُوا

ستاسو دَ ربّ دَ طرف نه پس پوره کرئ ناپ او تول او مهٔ کموئ

النَّاسَ اَشْيَآءَهُمْ وَلَا تُفْسِدُوْا فِى الْاَرْضِ بَعْدَ

خلقو لره دَ هغو څیزونه۔ او خرابی مهٔ غورزوئ په زمکه کښې دَ دے دَ

اِصْلَاحِهَا ؕ ذٰلِكُمْ خَيْرٌ لَّكُمْ اِنْ كُنْتُمْ مُّؤْمِنِيْنَ ﴿۸۵﴾

اصلاح نه پس۔ دا غوره ده ستاسو دَ پاره که تاسو ایمان دار یئ۔

وَلَا تَقْعُدُوْا بِكُلِّ صِرَاطٍ تُوْعِدُوْنَ وَتَصُدُّوْنَ

او مه کینئ په لارو باندې چه یره وئ او بندوئ

عَنْ سَبِيْلِ اللّٰهِ مَنْ اٰمَنَ بِهٖ وَتَبْغُوْنَهَا عِوَجًا ۚ وَ

د الله د لارے نه هغو لره کوم چه ایمان راوړي په هغهٔ او لټوئ په کښې عیب - او

اذْكُرُوْٓا اِذْ كُنْتُمْ قَلِيْلًا فَكَثَّرَكُمْ ۠ وَانْظُرُوْا كَيْفَ

یاد کړئ کله چه وئ تاسو ډیر لږ بیا ئے تاسو زیات کړئ او اُوګورئ چه څنګه شو

كَانَ عَاقِبَةُ الْمُفْسِدِيْنَ ﴿۸۶﴾ وَاِنْ كَانَ طَآئِفَةٌ

انجام د فساد کوونکو - او که په تاسو کښے یوه فریقه

مِّنْكُمْ اٰمَنُوْا بِالَّذِيْٓ اُرْسِلْتُ بِهٖ وَطَآئِفَةٌ لَّمْ

ایمان راوړي په هغې چه ځما په لاس رالیږلے شوے دے او یوه فریقه ایمان

يُؤْمِنُوْا فَاصْبِرُوْا حَتّٰى يَحْكُمَ اللّٰهُ بَيْنَنَا ۚ وَهُوَ

رانه وړي نو صبر کوئ ترهغې چه الله فیصله اوکړي په مینځ زمونږ کښے او هغهٔ

خَيْرُ الْحٰكِمِيْنَ ﴿۸۷﴾

د ټولو نه غوره فیصله کوونکے دے -

# لنډ تفسیر

او مونږ مَدین (والو) طرف ته د دوي رور شعیب (علیه السلام) لره (پیغمبر جوړ کړو) او لیږه د دوي (مدین والو ته) او فرمائیل چه ځما قومه تاسو (صرف) د الله تعالیٰ عبادت کوئ د هغهٔ نه سِوا ستاسو څوک معبود (د عبادت قابل) نیشته تاسو ته ستاسو

دَ پروردِگار دَ طرف نه (ځما په نبوّت باندِ) واضح دلیل (چه څهٔ معجزه ده) راغلے دے (کله چه ځما نبوّت ثابت دے) نو (په شرعی حکمونو کښے ځما خبره اُومنئ چنانچه زهٔ وایم چه) تاسو ناپ او تول پوره پوره کوئ او خلقو لره دَ دوی په څیزونو کښے نقصان مَه کوئ (لکه چه ستاسو عادت دے) او په مځ دَ زمکے کښے پس دَ دے نه چه (په تعلیم توحید او رالېږلو دَ پیغمبرانو او واجبېدو دَ عدل او ادا کولو دَ حقونو دَ پېمانے او تَلے سره) دَ دے دُرستی شوے ده فساد مَهٔ خوروئ (یعنی دَ دے حکمونو نه مخالفت او کفر مَه کوئ چه موجب دَ فساد دے) دا (څهٔ چه زهٔ وایم په دے عمل کول) ستاسو دَ پاره (په دُنیا او آخرت دواړو کښے) نفع ده که تاسو (ځما) تصدیق کوئ (چه په دے دلیل قائم دے، او دَ تصدیق سره عمل کوئ نو په ذکر شوو کارونو کښے دَ دواړو وجهانو نفع ده، په آخرت کښے خو ظاهره ده چه نجات به وی او په دُنیا کښے عمل په شریعت سره اَمن او انتظام قائم وی او خاصکر په ناپ تول کښے پوره والے کول دَ تجارت دَ ترقۍ سبب دے) او تاسو په سړکونو باندِ په دے غرض مَه کېنئ چه په الله ایمان راوړونکو لره دَ ایمان راوړلو له کبله (یَرَ وئ او (دوی لره) دَ الله دَ لارے (یعنی ایمان) نه منع کړئ او په دے (لارے) کښے کوږ والے (او شُبهات) تلاش کوئ (چه بے ځایه اعتراضونه جوړ وئ خلق غوُلوئ، دا خلق دَ ذکر شوے گمراهۍ سره په دے گمراهۍ کښے هم اَخته وُو، چه په سړکونو به کېناستل راتلونکی خلق به ئے ګمنراه کول چه په شعیب علیه السلام ایمان مه راوړئ ورنه مونږ به تاسو لره ضرر کړو) درانو دَ نعمت په یاد ولو سره ترغیب دے او په یادَ ولو دَ بهتنه سره ترهیب دے یعنی) او هغه حالت لره یاد کړئ کله چه تاسو (په شمار یا مال کښے) کم وئ بیا الله تعالیٰ تاسو لره (په شمار یا مال کښے) زیات کړئ (دا اوتعیب وهٔ دَ ایمان راوړلو دَ پاره) او اوګورئ چه څنګه بد انجام شو دَ فساد (یعنی دَ کفر او دروغژن کولو او ظلم) کوونکو (لکه قوم دَ نوح او عاد او ثمود چه تیر شوی دی، دَ هغه شان په تاسو دَ عذاب راتلو یَره ده دا ترهیب یعنی یَرَ وَل دی په کفر) او که چرے (تاسو ته دَ عذاب نه راتلو په دے سره شُبهَ وی چه په تاسو کښے بعضو (خو) په دے حکم په کوم چه زهٔ رالیږلے شوے یم ایمان راوړے دے

او بعضو ایمان نه دے راوړے او بیا هم دواړه فریقه په یو شان حالت کښے دی دا سے نه ده چه په ایمان نه راوړونکو باندِ عذاب راغلے وی، کوم چه نه معلومیګی چه ستاد عذاب نه دا یرول بے معنی دی) نو د دے شبهے جواب دا دے چه فورًا عذاب نهٔ راتلو نه دا خنګه معلومه شوه چه عذاب به نه راځی) لږ صبر او کړئ تر دے چه زمونږ (دواړو فریقو) په مینځ کښے الله تعالیٰ عملی فیصله کوونکے دے (یعنی عذاب به نازل کړی مؤمنا نو ته به تبجات ورکړی او کفا رو له بهتر هلاک کړی) او هغهٔ د ټولو فیصله کوونکو نه غوره دے (چه د هغهٔ فیصله بالکل مناسب وی)۔

# معلومات او مسئلے

د انبیاء علیهم السلام و قصے د کوم سلسلے چه د تیرو ایا تو نو نه راروانه ده، په دوی کښے پنځمه قصه د حضرت شعیب علیه السلام او د دهٔ د قوم ده کومه چه په ذکر شوو ایا تو نو کښے بیان شوے ده۔

حضرت شعیب علیه السلام د محمد بنِ اسحٰق د روایت مطابق د حضرت ابراهیم علیه السلام د ځوئ مَدیَن په اولاد کښے دے او د حضرت لوط علیه السلام سره هم د خپلوئے رشته لری، مَدیَن د حضرت ابراهیم علیه السلام اولاد دے د دهٔ نسل او اولاد هم د مَدیَن په نوم سره مشهور شو، او یکوم کلی کښے چه دوی اوسیدل هغے ته هم مَدیَن وائی، ګویا مَدیَن د یو قوم هم نوم دے او د یو ښار هم۔ دا ښار نن هم د اردن مشرقی بندرګاه معان ته نزدے موجود دے، په قرآن کریم کښے بل ځائے د موسیٰ علیه السلام په قصه کښے ارشاد دے: وَلَمَّا وَرَدَ مَاءَ مَدْيَنَ: په دے کښے هم دغه کلے مراد دے (ابن کثیر)

حضرت شعیب علیه السلام ته کدهٔ د ښهٔ بیان په وجه سره خطیب الانبیاء ویلے کیده (ابن کثیر، بحر محیط)

حضرت شعیب علیه السلام چه کوم قوم ته لیګلے شوے دے په قرآن کریم کښے کچرته دوی ته اهلِ مَدیَن او اصحاب مَدیَن په نوم سره ذکر کړی دی او چرته د اصحاب اَیکه په نوم سره، د اَیکه معنیٰ ځنګل او بنړ ده۔

بعضے تفسیر لیکونکی حضرات فرمائی چه دا دواړه قومونه جُدا جُدا وُو. د دواړو کلی هم جُدا وُو- حضرت شعیب علیه السلام په دوی کښے اوّل یو قوم ته اُولیږلے شو د دوی د هلاکت نه پس بل قوم ته مقرر شو- په دواړو قومونو باندِ چه کوم عذاب راغلے دے د هغے الفاظ هم مختلف دی په اصحاب مَدْیَنْ باندِ چرته د: صَیحة: او چرته د: رجفة عذاب ذکر دے او په اصحاب ایکه باندِ عذاب د: ظُلّة: ذکر شوے دے- د صیحة معنیٰ چغه او سخت آواز دے د رجفة معنیٰ زلزله ده- او ظلّة سائبان (چترئ) ته وئیلے شی، په اصحاب اَیکه باندِ د عذاب دا صورت جوړ شو چه اوّل په ټول کلی سخته ګرمی پریوته چه ټول قوم ترِ په چغو شو، بیا دوی ته په نزدے ځنګل باندِ یو ګوره وریځ راغله چه په دغه ځنګل باندِ سورے شو او یخے هواګانے پکښے او چلیدے چه دائے او لیدل نو د ټول کلی خلق د دغے وریځے لاندِ راجمع شو، دغه شان دا خدائی مجرمان بغیر د څه وارنټ او سپاهیانو نه پخپلو خپو راغلل د خپل هلاکت په ځائے کښے جمع شول هر کله چه ټول راغونډ شو نو د وریځے نه پرِ اور را اُوورید و او په زمکه هم زلزله راغله چه دا ټول پرِ یخی هلاک شو-

او بعض تفسیر لیکونکی حضرات فرمائی چه اصحاب مَدْیَنْ او اصحاب اَیکه د یو قوم نوم دے- او د عذاب کوم درے قسمونه چه اوس ذکر شو درے واړه په دے قوم جمع شوی دی، اوّل د وریځے نه اُور اُوورید و، بیا سخت آواز راغے بیا زلزله راغله- ابن کثیر دے له اختیار کړے ده-

به هر حال که دا دواړه قومونه جُدا جُدا وی او که د یو قوم دوه نومونه وی- حضرت شعیب علیه السلام چه کوم پیغام حق دوی ته ورکړو هغه په اوّل او دویم آیاتونو کښے ذکر دے د دے پیغام د تفسیر نه اوّل په دے پوهه شئ چه اسلام کوم چه د ټولو پیغمبرانو علیهم السلام مشریک دعوت دے، د دے څو بر د حقو نو اداکول دی - بیا حقو نه په دوه قسمه دی یو هغه په نیغه د الله تعالیٰ حقونه چه د دے په کولو یا پاتے کولو پورے د انسانانو څه معتدلا نفع نقصان متعلق نه دی لکه عبادتونه مونځ روژه وغیره، دویم د بندګانو

حقونه دي چه تعلق ئې د انسانانو سره وي، او دا قوم د دې دواړو حقونو نه بې خبره او د دواړو خلاف کارئې کولو.

د خلقو په الله تعالیٰ او د هغهٔ په رسولانو ایمان رانهٔ وړو د الله تعالیٰ د حقونو خلاف ورزي ئې کوله- او د دې سره به ئې په اخستلو خرڅولو کښې ناپ تول کمولو د خلقو حقونه به ئې ضائع کول- او په دې د پاسه دا چه په لارو او سړکونو باندې به کیناستل او راتلونکو لره به ئې یرول او لوټ کول به ئې او په شعیب علیه السلام باندې د ایمان راوړونه به ئې خلق منع کول- د غه شان ئې په مځکه یو فساد پورته کړے وه- دا د دوی سخت جرمونه وو د کوم د اصلاح د پاره چه شعیب علیه السلام رالیږلے شوے وه-

د ذکر شوو آیاتونو په اولنو دوه وو آیاتونو کښې د دې قوم د اصلاح د پاره حضرت شعیب علیه السلام درې خبرې فرمائي- اول: يٰقَوْمِ اعْبُدُوا اللّٰهَ مَا لَكُمْ مِّنْ اِلٰهٍ غَيْرُهٗ: یعنې اے زما قومه تاسو د الله تعالیٰ عبادت کوئ د هغه نه سوا بل څوک ستاسو لائق د عبادت نیشته- دا د توحید هغه دعوت دے چه ټولو پیغمبرانو ورکړے دے او کوم چه د ټولو عقیدو او عملونو روح دے- څونکه دا قوم هم په مخلوق پرستئ کښې اخته او د الله تعالیٰ د ذات او صفاتونه او د هغهٔ د حقونو نه غافله وو- په دې وجه دوی ته هم د ټولونه اول دا پیغام ورکړے شو- او اوئې فرمائیل: قَدْ جَآءَتْكُمْ بَيِّنَةٌ مِّنْ رَّبِّكُمْ: یعنې تاسو ته ستاسو د رب د طرف نه واضح دلیل راغلے دے- دلته د واضح دلیل نه مراد هغه معجزې دي کومې چه د حضرت شعیب علیه السلام په لاسو ظاهرے شوے- په تفسیر بحر محیط کښې مختلف صورتونه د دے معجزو ذکر شوی دی-

په دویم آیت کښې دا فرمائي: فَاَوْفُوا الْكَيْلَ وَالْمِيْزَانَ وَلَا تَبْخَسُوا النَّاسَ اَشْيَآءَهُمْ: په دے کښې د کیل معنیٰ ده ناپ پیمانه او میزان په معنیٰ د وزن (تللو) په معنیٰ کښې دے- او د بخس معنیٰ ده د چا په حق کښې کمے کول نقصان رسول دی- معنیٰ د آیت داده چه تاسو ناپ تول پوره کوئ او د خلقو په څیزونو کښې کمے کول او نقصان رسول مه کوئ-

په دے کښې خو ئے اوّل دَ یو خاص جُرم نه منع او فرمائیله کوم چه به ئے دَ اغستلو خرڅولو په وخت کښې دَ ناپ تول دَ کمی په صورت کښې کولو. بیا ئے ؛ لَا تَبْخَسُوا النَّاسَ اَشْیَآءَهُمْ : او فرمائیل دَ هر قسم په حقونو کښې ئے کے اوکوتاهی عامه که خواه دَ مال سره تعلق لری او که دَ عزّت او آبرو سره یا دَ بل څه شی سره (بحرِ محیط)

دَ دینه معلومه شوه چه څنګه په ناپ تول کښې دَ حق نه کم ورکول حرام دی دغه شان په نورو انسانی حقونو کښې کے کول هم حرام دی، دَچا په عزت او آبرو باندِ حمله کول، یا دَ څه درجے او مرتبے موافق دَ دهٔ احترام نه کول، دَ چا حکم منل چه واجب دی دَ هغوی په حکم منلو کښې کوتاهی کول، یا دَکوم سړی تعظیم او عزّت چه واجب دے په هغے کښې کوتاهی کول، دا ټول کارونه په دے جُرم کښې داخل دی - کوم چه دَ شعیب علیه السلام قوم کول. دَ حَجّة الوداع په خُطبه کښې نبی کریم صلے الله علیه وسلم دَ خلقو عزّت دَ دوی دَ وینے برابر واجب الاحترام او دَ حفاظت قابل مقرر کړی دی. دَ دے هم حاصل دا دے -

په قرآن مجید کښې چه کوم ځائے دَ مُطَفِّفِيْن او تَطْفِیْف ذکر راغلے دے په دے کښې دا ټول څیزونه داخل دی، حضرت فاروقِ اعظمؓ یو سړے زر زر په رکوع سجده کولو باندِ اولیدو نو اوئے فرمائیل : قَدْ طَفَّفْتَ : یعنی تا په ناپ تول کښې کمے اوکړو (موطا امام مالکؒ) مراد دا دے چه دَ مانځه کوم حق دے هغهٔ تا پوره نه کړو په دے کښې دَ مانځه حق پوره نه ادا کولو لره ئے دَ تطفیف په لفظ سره تعبیر کړے دے -

دَ آیت په آخر کښې فرمائی : لَا تُفْسِدُوْا فِی الْاَرْضِ بَعْدَ اِصْلَاحِهَا : یعنی دَ ذمکے دَ درستئ نه پس په دے کښې فساد مه خوروئ - دا جمله په دے سورتِ اعراف کښې مخکښے هم راغلے ده هلته دَ دے معنی په تفصیل سره بیان شوے ده، چه دَ ذمکے ظاهری اصلاح خو هر شی پخپل ځائے کښې خرچ کول او دَ حدودو رِعایت کول او دَ عدل او انصاف په قائمولو باندِ موقوفه ده- او باطنی اصلاح ئے دَ الله تعالیٰ سره په تعلق او دَ الله تعالیٰ دَ حکمونو په اطاعت باندِ

دغه شان د زمکے ظاهري او باطني فساد کړے اصولو په پاتے کولو باندې پیدا کیږي
د شعیب علیه السلام قوم دا تول اصول نظر انداز کړي وو چه کوم دے په وجه
سره په زمکه کښے ظاهري او باطني فساد را پورته شوے وه - په دے وجه دوي
ته دا نصیحت اوشو چه ستاسو عملونه تول په زمکه کښے فساد پورته کوئ نکي
او زمکے لره خرابوونکي دي په دے وجه کړے نه یم شئ -

بیا فرمائي: ذٰلِكُمْ خَيْرٌ لَّكُمْ إِن كُنتُم مُّؤْمِنِينَ: یعني دا خبره ستاسو د پاره
نفع منده ده که تاسو څما خبره اومنئ - مطلب دا دے چه که تاسو کړے
خپلو ناجائزو کارونو نه واپس شئ نو په دے کښے ستاسو د دین او دنیا کامیابي
او بهبود دے - د دین او اخرت کامیابي خو ښکاره ده چه د الله تعالیٰ د
حکمونو په منلو پورے تړلے ده، او د دنیا کامیابي په دے وجه چه کله خلقو
ته معلومه شي چه فلانے سړے په ناپ تول کښے او په نورو حقونو کښے په
دیانتداري سره کار کوي نو په بازار کښے د ده اعتبار قائم شي او تجارت ئے
ترقي کوي -

په دریم ایت کښے چه کوم دا ارشاد دے چه تاسو خلقو لره د یرې ولو او
تړلو او د الله د لارے نه د منع کولو د پاره په لارو سرکونو مه کینئ د دے
مطلب بعضے تفسیر لیکوونکو دا مقرر کړے دے چه دا دواړه جملے یو مطلب
لره ادا کوي چه دا خلق په لارو باندې کیني حضرت شعیب علیه السلام ته
راتلوونکي منع کوي او یرې وي تړوي ئے د دے نه ئے منع کړل -

او بعضے حضرات فرمائي چه د دوي دا دواړه جرمونه جدا جدا وو - په
لارو کښے به کیناستل لوټ مار به ئے هم کولو، او په حضرت شعیب علیه السلام
باندې د ایمان راوړو نه هم منع کول - په اول جمله کښے اول مضمون او په دویمه
کښے دویم مضمون بیان شوے دے - په تفسیر بحر محیط وغیره کښے ئے دے لره
اختیار کړے ده - او په لارو کښے کیناستلو لوټ مار کولو کښے ئے دے لره هم داخله
کړے ده کوم چه د شریعت نه خلاف ناجائز ټیکس وصولو لو د پاره په لارو
کښے چوکۍ جوړوي -

علامه قرطبي فرمائي چه کوم خلق په لارو کښے کیني ناجائز ټیکس وصولوي دوي هم

دَ شعیب علیه السلام دَ قوم پښتانه مېلمانه دي، بلکه دَ دوی نه زیات ظالمان او جابران دي.
دَ ایت په اخر کښې فرمائي: وَتَبْغُوْنَهَا عِوَجًا: یعنې تاسو خلق دَ الله په لاره کښې عیبونه لټوئ چه چرته دَ کوتې ځائې مِلاؤ شي نو دَ اعتراضونو او شبهو دفترونه پسې سپړئ - او خلقو له دَ حق دین نه دَ وېرېدو کولو کوشش کوئ -

دَ دې نه پس دَ ایت په اخر کښې فرمائي: وَاذْكُرُوْٓا اِذْ كُنْتُمْ قَلِيْلًا فَكَثَّرَكُمْ وَانْظُرُوْا كَيْفَ كَانَ عَاقِبَةُ الْمُفْسِدِيْنَ: په دې کښې دغو خلقو دَ پاره دَ ترغیب او ترهیب دواړه اړخونه استعمال شوي دي - اوّل خو دَ ترغیب دَ پاره ئې دَ الله تعالیٰ دا نعمت وریاد کړو چه تاسو وړاندې په شمار او عدد کښې کم وئ الله تعالیٰ ستاسو نسلونه زیات کړه یو لوئې قوم ئې درنه جوړ کړو - یا دَ مال او سامان په اعتبار سره کم وئ الله تعالیٰ دولت درکړو غنیان ئې کړئ بیا دَ یرَدَ لو دَ پاره فرمائي چه دَ ځان نه دَ وړاندې فسادکوونکو قومونو په انجام باندې نظر واچوئ چه په قوم نوح، عاد، ثمود او لوط باندې کوم کوم عذابونه راغلي دي، چه تاسو د پوهې نه کار واخلئ -

په پنځم ایت کښې دَ دې قوم دَ یوې شبهې جواب دې، چه دَ شعیب علیه السلام دَ ایمان دَ دعوت نه پس دا قوم په دوه حصو کښې تقسیم شو چا ایمان راوړو او څوک مُنکر پاتې شو، مګر په ظاهري اعتبار سره په دواړو کښې څه فرق نه وُه دواړه قومونه یو شان په ارام او عیش کښې وُو - نو که مُنکر والې څه جُرم وې نو مجرم ته به سزا مِلاؤ ویده - دَ دې په جواب کښې فرمائي: فَاصْبِرُوْا حَتّٰى يَحْكُمَ اللّٰهُ بَيْنَنَا: یعنې جلد بازي مه کوئ الله تعالیٰ پخپله بُرد باري او کرم سره مجرمانو ته مُهلت ورکوي. کله چه هغوئ بالکل سرکشه شي نو بیا فیصله کوَلې شي - ستاسو هم دا حال دې که تاسو دَ خپل انکار نه واپس نه شوئ نو ډېر زر به په مُنکرانو فیصله کُن عذاب راشي.

# آتمه پاره ختمه شوه

وَالْحَمْدُ لِلّٰهِ رَبِّ الْعٰلَمِيْنَ

(کتابت ومترجم: ابوحسین) (۲۷ رجب ۱۴۰۹ھ)

# تفسیر معارف القرآن پښتو

## پاره
## ۹

**تالیف : مولانا مفتي محمد شفیع** رحمة الله علیه


**مجلس ترجمه ونظر ثانی**

1 **ډاکټر قاضي محمد مبارک** سابق مدرس دارالعلوم سرحد وپروفیسر شعبه عربی پېښور یونیورستی

2 **ابو حسین مولانا ګل برخان سواتی**: فاضل علوم اسلامیه عربیه

3 **مولانا سیف الحنان حقانی** فاضل حقانیه ووفاقالمدارس جامعه بهاورلپور تلمیذ علامه شمس الحق افغانی ومولانا احمد علی لاهوري

**باهتمام : ډاکټر محمددین** : فاضل وفاق المدارس ایم اي عربی ایم اي اسلامیات


برېښنايي کوونکی : عزت الله سلطانزي

داتفسیر د باور کتابتون څخه ښکته شوی

قَالَ الْمَلَأُ الَّذِينَ اسْتَكْبَرُوا مِن قَوْمِهِ لَنُخْرِجَنَّكَ

اوُ وے سردارانو کوم چہ متکبّران وُو دَ دهٔ پہ قوم کښے مونږ بہ خامخا اوُباسو

يَا شُعَيْبُ وَالَّذِينَ آمَنُوا مَعَكَ مِن قَرْيَتِنَا أَوْ

اے شعیبه تا او هغو لره کوم چہ ایمان راوړی ستا سره دَ خپل ښار نه۔ یا دا

لَتَعُودُنَّ فِي مِلَّتِنَا ۚ قَالَ أَوَلَوْ كُنَّا كَارِهِينَ ﴿٨٨﴾

چہ تاسو واپس شئ زمونږ دین ته۔ اوُئے وئیل اگر کہ مونږ ئے بد گنڑو هم۔

قَدِ افْتَرَيْنَا عَلَى اللَّهِ كَذِبًا إِنْ عُدْنَا فِي مِلَّتِكُم

بے شکه مونږ به دروغ جوړ کړو په الله باندې که واپس شو ستاسو دین ته

بَعْدَ إِذْ نَجَّانَا اللَّهُ مِنْهَا ۚ وَمَا يَكُونُ لَنَا أَن نَّعُودَ

پس دَ دے چہ نجات راکړو مونږ ته الله دَ دے نه۔ او نه دی لائق مونږ لره چہ واپس شو

فِيهَا إِلَّا أَن يَشَاءَ اللَّهُ رَبُّنَا ۚ وَسِعَ رَبُّنَا كُلَّ شَيْءٍ

دے ته مگر دا که اوغواړی الله رب زمونږه۔ گیر کړیدے هر یو شی لره رب

عِلْمًا ۚ عَلَى اللَّهِ تَوَكَّلْنَا ۚ رَبَّنَا افْتَحْ بَيْنَنَا وَبَيْنَ

زمونږه په خپل علم کښے۔ خاص په الله مونږ توکل کړے دے۔ اے زمونږ ربه فیصله اوکړے په مینځ

قَوْمِنَا بِالْحَقِّ وَأَنتَ خَيْرُ الْفَاتِحِينَ ﴿٨٩﴾ وَقَالَ

زمونږ او زمونږ دَ قوم کښے په انصاف سره او ته دَ ټولو نه غوره فیصله کوونکے ئے۔ او اوُ وئیل

الْمَلَأُ الَّذِينَ كَفَرُوا مِن قَوْمِهِ لَئِنِ اتَّبَعْتُمْ شُعَيْبًا

سردارانو کوم چہ کافران وُو دَ دهٔ په قوم کښے که تابعداری اوکړه تاسو د شعیب ؑ

إِنَّكُمْ إِذًا لَّخٰسِرُوْنَ ﴿٩٠﴾ فَأَخَذَتْهُمُ الرَّجْفَةُ

نو تاسو به بې شکه خراب یئ - بیا اونیول دوی لره زلزلې.

فَأَصْبَحُوْا فِيْ دَارِهِمْ جٰثِمِيْنَ ﴿٩١﴾ الَّذِيْنَ كَذَّبُوْا

پس سحر له شو په خپلو کورونو کښې نسکور پراته - چا چه دروغژن کړے وُه

شُعَيْبًا كَأَنْ لَّمْ يَغْنَوْا فِيْهَا ۚ الَّذِيْنَ كَذَّبُوْا شُعَيْبًا

شعیب لره ګویا چه چرته هم دغه ځائے نه وُو - چا چه دروغژن کړے وُه شعیب لره

كَانُوْا هُمُ الْخٰسِرِيْنَ ﴿٩٢﴾ فَتَوَلّٰى عَنْهُمْ وَقَالَ

هغوی شو خراب - پس واپس شو دوی نه او اُوئے وئیل

يٰقَوْمِ لَقَدْ أَبْلَغْتُكُمْ رِسٰلٰتِ رَبِّيْ وَنَصَحْتُ لَكُمْ ۚ

اے ځما قومه ما اورساوه تاسو ته پیغام د خپل ربّ او خیرخواهی م اوکړه ستاسو

فَكَيْفَ اٰسٰى عَلٰى قَوْمٍ كٰفِرِيْنَ ﴿٩٣﴾

او س څه افسوس اوکړم په کافرانو باندِ -

# لنډ تفسیر

د دۀ د قوم متکبرانو سردارانو چه کله دا خبرے واورید ے نو دوی په ګستاخۍ سره اُووے چه اے شعیبه ریاد ساته) مونږ به تا لره او ستا ملګرو لره کوم چه ایمان راوړے دے د خپل کلی نه اُوباسُو، یا به دا سے اوشی چه تاسو زمونږ مذهب ته واپس راشئ رنو البته مونږ به در ته هیڅ نه وایُو، دا خبره ئے د مؤمنانو د پاره ځکه اوکړه چه دغه خلق د ایمان نه وړاندِ په دے طریقه د کفر باندِ وُو، - لیکن د شعیب علیه السلام په حق کښې سره د دے چه د انبیاوُ نه

چرته هم کفر نه وي صادر شوي خو په دې وجه ئې اووې چه د پيغمبر کيدو نه
وړاندې د دوي په چپ پاتې کيدو دوي دا گنړله چه د دوئ عقيده به هم زمونږ
پشان وي) شعيب (عليه السلام) جواب ورکړو چه آيا مونږ به ستاسو مذهب
ته راشو اگرچه مونږ (په دليل د بصيرت سره) دې لره بد او د نفرت قابل) هم
گنړو (يعنې هرکله چه د دې په باطل والي دليل قائم دے نو مونږ ده څنګه دې لره
اختيار کړو) مونږ خو به په الله لويه د دروغو تهمت لګوونکي شو (که خدائے
مه کړه) مونږ ستاسو مذهب ته راشو (خاصکر) پس د دې نه چه الله تعالیٰ
ترې مونږ ه خلاص کړي يو (ځکه چه اول خو مطلقاً کفر لره حق دين گنړل
دا په الله تهمت لګول دي چه دا دين (معاذالله) د الله خوښ دے، او خاصکر
د مؤمن کافر کيدل چونکه پس د علم نه او د حق دليل قبلولو نه دي نو دا خو
نور زيات تهمت دے، يو خو هغه تهمت دويم دغه تهمت چه الله ما ته د
دليل علم راکړے وه کوم لره چه ما حق گنړلو هغه علم ئې غلط راکړے وه.
او شعيب عليه السلام لفظ د واپس کيدو د نورو د غلبے په وجه ويلے دے او يا
د دوي د ..... گمان په وجه ئې (فرضاً) ويلے دے) او زمونږ نه ممکنه نه ده چه ستاسو
مذهب ته واپس راشو ليکن هسے که چرے الله چه زمونږ مالک دے (زمونږ
تقدير کښې) مقرر کړے وي (چه د دې مصلحت د هغهٔ په علم کښې دے
نو خير دا بله خبره ده) زمونږ رب علم هر شي لره گيرووونکے دے (او په
دغه علم سره د ټولو تقديرو نو مصلحتونه ورته معلوم دي مکو) مونږ په
الله بهروسه لرو (او د بهروسے سره دا اُميد کوو چه هغهٔ به مونږ په حق
دين باندې ثابت اولري، او به دے سره دا شبهه نه شي کيدے چه د دوي د
خپلے خاتمے په خير سره کيدو باندې يقين نه وو، انبياؤ ته د دے يقين ورکولے
شي، بلکه د دے نه مقصود خپله عاجزي ظاهرول او ځان مالک ته سپارل
دي، چه د نبوت د کمال سره لازمي دي، او که د نورو مؤمنانو په اعتبار سره
واغستے شي نو بيا خو پکښې هيڅ واشکال نيشته، دا جواب ئې ورکړو نو کله ئې (چې) اوو
ليدل چه په دوي خبره اثر نه کوي او د ايمان راوړو ئې بالکل اُميد نيشتے
نو دوي ته ئې خبره کول پاتې کړل، د الله تعالیٰ نه ئې سوال اوکړو چه) اے

زمونږ پر وړاندې ګاره زمونږ او زمونږ د (دې) قوم په مینځ کښې فیصله اوکړه (کومه چې همیشه) د حق موافق کوي، ځکه چې د خدائي فیصلې سره حق والې لازم دے، یعنې اوس په عملي طور باندې د حق حقوالې او د باطل باطلوالې واضح کړے) او ته د ټولو نه ښه فیصله کوونکے یې او د دغه د قوم (د غو ذکر شوو) کافرو سردارانو (چې د شعیب علیه السلام دا بلیغ تقریر واؤرېدو نو یره ورسره پیدا شوه چې هسې نه په اورېدونکو یې اثر اونه شي په دې وجه دوی نورو کافرانو ته) اووې چې که تاسو د شعیب (علیه السلام) په لاره روان شوئې نو بې شکه لوئې نقصان به اوکړئ (د دین هم ځکه چې زمونږ مذهب حق دے او حق پاتې کول خساره ده، او د دُنیا هم ځکه چې په پوره ناپ تول کښې به بچت کم وي، غرض دغه ټول په خپل کفر او ظلم جګ شو نو اوس عذاب راغې) پس دوی لره زلزلې اونیول پس په خپلو کورونو کښې نسکور پراته پاتې شو چا چې شعیب (علیه السلام) لره دروغژن کړے وه (او مسلمانانو لره د دوی د کورونو نه ویستلو ته تیار وو په خیله) د دوی دا حالت شو لکه چې دوی په خپلو کورونو کښې چرته اوسیدلي نه وو، چا چې شعیب (علیه السلام) لره دروغژن کړے وه (او د دغه تابعداري کوونکو ته یې تاوان کوونکي وئیلي وو په خپله) دوی په تاوان کښې پریوتل، دغه وخت شعیب (علیه السلام) د دوی نه مخ واړوه روان شو او (په طور د افسوس یې فرضي خطاب اوکړو) او وئې فرمائیل چې اے زما قومه ما خو تاسو ته د خپل پروردګار احکام رسولي وو (پکوم چې عمل کول د هر قسم کامیابئ سبب وه) او ما خو ستاسو (ډیره) خیرخواهي اوکړه (چې په قسم قسم مې تاسو پوهه کړئ مګر افسوس چې تاسو اونه منله او دا بده ورځ مو اوکتله، بیا یې د دوی عناد او کفر وغیره لره یاد کړو او وئې فرمائیل چې هرکله دوی په خپلو لاسونو دا مصیبت واخستو نو) بیا زه په دے کافرانو خلقو (د دوی په هلاکت) ولې غم اوکړم -

# معلومات او مسئلې

شعیب علیه السلام ته چه هر کله قوم دا او وې چه که ته په حقه وې نو ستا منونکی به بنه په ناز و نعمت کښې وو او چه نه منونکو به عذاب راتلو، مګو کیږي داسې چه دواړه فریقه په برابر درجه کښې د آرام ژوند تیروي نو مونږ تا له ځنګه رشتونی او ګنړو - نو په دې باندې حضرت شعیب علیه السلام او فرمائیل چه جلد بازي مه کوئ چیر ژر به الله تعالیٰ زمونږ او ستا سو په مینځ کښې فیصله اوکړي - په دې باندې د قوم تکبر کوونکو سردارانو هم هغه خبره اوکړه کومه چه همیشه ظالمان او متکبره خلق کوي - چه اے شعیبه یا خو ته او کو مو خلقو چه په تا ایمان راوړی دی هغه ټول زمونږ مذهب ته واپس راشئ ورنه مونږ به تاسو ټول د خپل کلي نه اوباسو -

د دوي مذهب ته واپس راتلل د شعیب علیه السلام د قوم د مؤمنانو متعلق خو په دې وجه رشتونی دی چه دغه ټول وړاندې د دوي په مذهب او طریقه باندې وو - بیا د شعیب علیه السلام په دعوت باندې مسلمانان شو - مګر حضرت شعیب علیه السلام خو یوه ورځ هم د دوي په باطل مذهب او طریقه باندې نه دې پاتې شوې، او نه څوک د الله رسول چرته هم د څه مشرکانه باطل مذهب پیروي کولې شي، نو بیا کده د پاره دا ویل چه زمونږ مذهب ته واپس راشه غالبًا په دې وجه سره وه چه د پیغمبر کیدو نه وړاندې حضرت شعیب علیه السلام د دې خلقو په باطلو خبرو او کارونو باندې خاموش وه او په قوم کښې شریک او سیدو، په دې وجه د دوي خیال د حضرت شعیب علیه السلام په باره کښې هم دا وه چه دې هم زمونږ هم خیال او زمونږ مذهب کښې دې، د ایمان د دعوت نه پس دوي ته معلومه شوه چه د دۀ مذهب زمونږ نه جُدا دے، او خیال ئې اوکړو چه دے زمونږ د مذهب نه واپس شو -

حضرت شعیب علیه السلام جواب ورکړو: أَوَلَوْ كُنَّا كَارِهِينَ : یعنی آیا ستا سو دا مطلب دے چه ستا سو مذهب له نا خوښه او باطل ګنړلو باوجود مونږه

ستا سو په مذهب کښې داخل شو - او مراد د دے نه دا دے چه دا سے هرګز نه شي کيدے تر دے مخائے پورے د اوّلني ايت مضمون دے -

په دويم ايت کښے دی چه حضرت شعيب عليه السلام خپل قوم ته او فرمائيل چه ستا سو د باطل مذهب نه الله تعالىٰ مونږ لره نجات را کړهٔ نو د دے نه پس که مونږ ستا سو باطل مذهب ته واپس شو نو دا به زمونږ د طرف نه په الله تعالىٰ سخت د دروغو بهتان وی -

ځکه چه اول خو په خپله شرک او کفر او خپل مذهب جوړول دا معنىٰ لری چه دا د الله تعالىٰ حکم دے نو دا په هغهٔ بهتان او دروغ جوړول دی - د دے نه علاوه د ايمان راوړو او علم او پوهے حاصکولو نه پس بيا کفر طرف ته واپس کيدل ګويا داوئيل دی چه اوّلنئ طريقه باطله او غلطه وه حق او صحيح دا طريقه ده کومه چه م اوس اختيار کړه او ظاهره ده چه دا غبرګ دروغ او بهتان دے، چه حق ته ئے باطل او وے او باطل ته حق -

د حضرت شعيب عليه السلام په دے وينا کښے يو قسم دعوه وه چه مونږ اوس ستا سو مذهب ته نه شو واپس کيدے، او دا سے دعوه کول په ظاهره د بندګئ نه خلاف ده کومه چه د الله تعالىٰ د دربار نزديکا نو او اهل معرفت والو د شان لائقه نه ده په دے وجه فرمائی، مَا كَانَ لَنَآ اَنْ نَّعُوْدَ فِيْهَآ اِلَّآ اَنْ يَّشَآءَ اللّٰهُ رَبُّنَا ۚ وَسِعَ رَبُّنَا كُلَّ شَيْءٍ عِلْمًا ۚ عَلَى اللّٰهِ تَوَكَّلْنَا ؛ يعنی مونږ ستا سو مذهب ته هرګز نه شو واپس کيدے بغير د دے چه (خدائے مه کړه) زمونږ د رب رضا او اراده زمونږ د ګمراه کولو اوشي، زمونږ د رب علم هر شي لره ګيره ونکے دے مونږ په هغهٔ بانډی بهروسه کړے ده -

په دے کښے د خپلے عاجزئ او کمزورئ اظهار او په الله تعالىٰ باندی توکّل او ګمان ورته سپارل دی کوم چه د کمالاتو د نبوّت نه دی - چه مونږ څهٔ يُوچه د يو کار د کولو يا ترِ د ګمان سا تلو دعوه اوکړو - د يو نيکئ کول يا د يوے بدئ نه بچ کيدل تول د الله تعالىٰ په فضل سره دی، لکه چه نبی کريم صلے الله عليه وسلم فرمائيلی دی:

لَوْ لَا اللّٰهُ مَا اهْتَدَيْنَا وَلَا تَصَدَّقْنَا وَلَا صَلَّيْنَا ؛ يعنی که د الله تعالىٰ فضل نه وے

نو موږ ته به د صحيح لارے هدايت نه وَه شوے او نه به موږ صدقه او خيرات کړي وُو او نه به موږ مونځ کړے وَه ـ

تر دے پورے چه د قوم متکبره سردارانو سره د خبرو کولو نه پس کله چه حضرت شعيب عليه السلام ته دا اندازه اُوشوه چه په دے خلقو د څه خبرے هيڅ اثر نه کيږي نو اوس ئے دوی ته خطاب کول پاتے کړل الله تعالیٰ ته ئے سوال اوکړو : رَبَّنَا افْتَحْ بَيْنَنَا وَبَيْنَ قَوْمِنَا بِالْحَقِّ وَاَنْتَ خَيْرُ الْفٰتِحِيْنَ : يعنی اے زموږ پروردګاره زموږ او زموږ د قوم په مينځ کښے فيصله اوکړے د حق موافق او ته د ټولو نه بنهٔ فيصله کوونکے ئے۔

حضرت عبد الله بن عباسؓ فرمائی چه د لفظ د فَتْح معنیٰ دلته د فيصلے کولو ده۔ په دے معنیٰ سره فاتح په معنیٰ د قاضی سره راځی (بحر محيط)

او په حقيقت کښے په دے الفاظو سره د حضرت شعيب عليه السلام د خپل قوم نه د کفارو د پاره د هلاکت دُعا وه۔ کومه چه الله تعالیٰ قبوله کړه او دے خلقو له ئے د زلزلے په ذريعه هلاک کړل۔ د دويم ايت مضمون ختم شو۔

په دريم ايت کښے د حضرت شعيب عليه السلام د قوم د متکبرو سردارانو داپوه ګمراه کوونکے خبره کړے ده چه دوی په خپل مينځ کښے اُووے يائے خپلو تابعدارو ته اُووے چه که تاسو د شعيبؑ تابعداری اوکړه نو تاسو به ډير بے وقوفه او جاهلان اُګرځے شئ (بحر محيط عن عطاء)

په څلورم ايت کښے ئے د دے سرکش قوم د عذاب واقعه داسے ذکر کړے ده:-

فَاَخَذَتْهُمُ الرَّجْفَةُ فَاَصْبَحُوْا فِيْ دَارِهِمْ جٰثِمِيْنَ : يعنی دوی له سخته او لوئے زلزلے اونيول چه په دے سره دوی پخپلو کورونو کښے نسکور پراته پاتے شو۔

د شعيب عليه السلام د قوم عذاب په دے ايت کښے زلزله راغلے ده او په نورو اياتونو کښے : اَخَذَهُمْ عَذَابُ يَوْمِ الظُّلَّةِ : راغلے دے۔ چه د دے معنیٰ دا ده چه دوی له د : يوم الظلة : عذاب اونيول کړ : يوم الظلة : معنیٰ ده د سوری ورځ۔ چه د دے مطلب دا دے چه په دوی بانډ اول ګوره وريځ راغله چه ټول ترلاندِ جمع شو نو د دغے وريځے نه په دوی بانډ کانړی یا اُور اُووريدلے شو۔

حضرت عبد الله بن عباسؓ په دے دواړو اياتونو کښے د مطابقت د پاره فرمائی،

چه د شعیب علیه السلام په قوم باندې اول خو دا سخته ګرمي مسلطه شوه لکه د جهنم دروازه چه ئې د دوی طرف ته پرانته کړې وي چه په دې سره د دوی ساه بندیدل شروع شو نه په چاته په سوړې آرام راتلو او نه په او بو کښې، دا خلق د ګرمۍ د تاؤ نه تښته خانو ته ننوتل نو هلته ئې لیا سه نه هم سخته ګرمي او شوه، ډیر پریشانه شو نو د بنار نه ځنګل طرف ته او تختیدل، هلته ورته الله تعالیٰ یوه ګوره وریځ راولیګله، چه لاندې ئې یخه هوا وه، دا ټول خلق د ګرمۍ د ویرې نه د دې وریځې د لاندې راجمع شو دغه وخت دا ټوله د ریځ اور جوړ شو په دوی باندې راؤوریدو او زلزله پرې هم راغله چه په دې سره دا ټول خلق د ایرو ډیرې شو۔ د دغه شان په دې قوم زلزله او عذاب د ظله دواړه جمع شو (بحر محیط)

او بعضې تفسیر لیکونکي فرمائي چه دا هم ممکنه ده چه د شعیب علیه السلام قوم مختلف حصې شوې وي په څنو زلزله راغلې وي او په څنو عذاب د ظله راغلې وي او هلاک شوي وي۔

په پنځم ایت کښې د شعیب علیه السلام د قوم د واقعې نه ئې نورو ته د عبرت سبق ورکړې دې۔ کوم چه د دې واقعې د بیانولو اصل مقصود دې، فرمائي:۔

الَّذِيْنَ كَذَّبُوْا شُعَيْبًا كَاَنْ لَّمْ يَغْنَوْا فِيْهَا: د لفظ د غِنیٰ یوه معنیٰ په یو مقام باندې په خوشحالۍ سره تیرولو ته هم وائي۔ دلته دا معنیٰ مراده ده۔ مطلب دا دې چه دې خلقو په کومو مکانانو کښې په ارام او عیش سره ژوند تیر کړلو، د دې عذاب نه پس داسې شو چه ګویا چرته هم دلته د آرام او عیش نوم هم نه وؤ۔ بیا فرمائي:۔

: اَلَّذِيْنَ كَذَّبُوْا شُعَيْبًا كَانُوْا هُمُ الْخٰسِرِيْنَ : یعنې کومو خلقو چه شعیب علیه السلام لره دروغژن کړو دغه خلق په خساره کښې پریوتل۔ په دې کښې اشاره دې طرف ته ده چه دې خلقو حضرت شعیب علیه السلام او د هغهٔ مؤمنانو ملګرو لره د خپل کلي نه د ویستلو دهمکې ورکولې خو انجام کار خساره په دوی پریوتله۔

په شپږم ایت کښې فرمائي: فَتَوَلّٰى عَنْهُمْ : یعنې په قوم چه ئې د عذاب راتلل او لیدل نو شعیب علیه السلام او د دهٔ ملګري د دې ځائې نه روان شو۔ جمهور تفسیر لیکونکي فرمائي چه دا حضرات د دې ځائې نه مکې معظمې ته لاړل۔ او تر اخره پورې بیا دلته پاتې شو۔

د قوم د انتهائي سرکشئ او نافرمانئ نه مايوسه شو شعيب عليه السلام ښېرې
خوا وکړې مګر کله چه ئې په قوم باندې عذاب راغے نو د پيغمبرانه شفقت او رحمت په
سبب ئې زړه اُو درديدلو، نو خپل زړه له ئې د تسلئ ورکولو د پاره قوم ته خطاب
اوفرمائيلو چه ما تاسو ته ستاسو د رب حکمونه رسولي وُو او د هر قسم نه رم
ستاسو خير خواهي اوکړه مګر نه په کافر قوم ترڅو پورې به غم کوم۔

وَمَآ اَرْسَلْنَا فِيْ قَرْيَةٍ مِّنْ نَّبِيٍّ اِلَّآ اَخَذْنَآ اَهْلَهَا بِالْبَاْسَآءِ

او نه دے ليګلے مونږ يو کلي ته يو نبي چه نه وي نيولي مونږ د هغه ځائے خلقو لره په سختئ

وَالضَّرَّآءِ لَعَلَّهُمْ يَضَّرَّعُوْنَ ﴿۹۴﴾ ثُمَّ بَدَّلْنَا مَكَانَ

او تکليف کښې چه دوی عاجزي اوکړي - بيا بدله کړه مونږ په ځائے

السَّيِّئَةِ الْحَسَنَةَ حَتّٰى عَفَوْا وَّقَالُوْا قَدْ مَسَّ اٰبَآءَنَا

د بدئ ښيګړه تر دے چه دوی زيات شو او دوئ دا وئيل چه رسيدلي وې زمونږ پلار نيکه

الضَّرَّآءُ وَالسَّرَّآءُ فَاَخَذْنٰهُمْ بَغْتَةً وَّهُمْ لَا

ته هم تکليف او خوشحالي بيا او نيول مونږ دوی لره ناڅاپه او دوی

يَشْعُرُوْنَ ﴿۹۵﴾ وَلَوْ اَنَّ اَهْلَ الْقُرٰٓى اٰمَنُوْا وَاتَّقَوْا

خبر نه وُو - او که کلو والو ايمان راوړے او پرهيزګاري ئې کړې ﻟﮯ

لَفَتَحْنَا عَلَيْهِمْ بَرَكٰتٍ مِّنَ السَّمَآءِ وَالْاَرْضِ وَلٰكِنْ

نو مونږ به پرانستلي وو په دوی برکتونه د آسمان او د زمکے ليکن دوی

كَذَّبُوْا فَاَخَذْنٰهُمْ بِمَا كَانُوْا يَكْسِبُوْنَ ﴿۹۶﴾ اَفَاَمِنَ

دروغژن کړل پس او نيول مونږ دوی لره د دوی د عملونو په بدل کښې - او س آيا بې ويره شو

أَهْلُ الْقُرَىٰٓ أَن يَأْتِيَهُم بَأْسُنَا بَيَٰتًا وَهُمْ نَآئِمُونَ ﴿۹۷﴾

دَ کلو خلق دَ دے خبرے نه چه راشی په دوی عذاب زمونږه دَ شپے کله چه دوی اُوده وی۔

أَوَأَمِنَ أَهْلُ الْقُرَىٰٓ أَن يَأْتِيَهُم بَأْسُنَا ضُحًى وَهُمْ

یا بے ویرے شو دَ کلو خلق دَ دے خبرے نه چه راشی په دوی عذاب زمونږ په څاښت کښے او دوی

يَلْعَبُونَ ﴿۹۸﴾ أَفَأَمِنُوا۟ مَكْرَ ٱللَّهِ ۚ فَلَا يَأْمَنُ مَكْرَ ٱللَّهِ

لوبے کوی۔ آیا بے یرے شو دَ الله دَ تدبیر نه۔ پس نه بے یرے کیږی دَ الله دَ تدبیر نه

إِلَّا ٱلْقَوْمُ ٱلْخَٰسِرُونَ ﴿۹۹﴾

مګر په ضرر ابی کښے پریوتلی۔

# لنډ تفسیر

او مونږ (دے ذکر شوو او دَ دوی نه علاوه هم دَ نورو کلو نه) یو کلی ته یو نبی نه دے لیګلے چه دَ هغهٔ ځائے اوسیدونکو لره (دَ دغے نبی په نهٔ منلو باندِ اوّل اوّل دَ خبردار کولو په غرض سره دوی لره) په محتاجۍ او بیمارۍ کښے مو نږه نه وی نیولی دَ دے دَپاره چه دوی سُست پریوځی (او دَ خپل کفر او دروغژن کولو نه توبه اوکړی) بیا (کله چه په دے سره پوهه نه شو نو استدراجًا یا په دے غرض سره چه دَ مصیبت نه پس کوم نعمت وی دَ هغے قدر زیات وی او بنده دَ نعمت ورکوونکی طبعًا اطاعت کول شروع کوی) مونږ دَ دغے بد حالۓ په ځائے خوشحالی بدله کړه تر دے چه دوی لره (دَ غِنا او صحت سره په مال او اولاد کښے هم) ښهٔ ترقی اوشوه او (دغه وخت دَ عناد نه) ئے او وئیل چه (دغه اوّلنے مصیبت په مونږ باندِ دَ کفر او دروغژن کولو په سبب نه وه ورنه بیا به خوشحالی وَلے وه بلکه دا دَ زمانے دَ اتفاقاتو نه دی چنانچه) زمونږ پلارنیکه ته هم (دا دوه حالتونه کله) تنګی او (کله) راحتونه راغلی دی (دغه شان په مونږ هم دا دوه حالتونه تیرشوهٔ کله

چه دوی په دے ناپوهی کښے پریوتل) نو (دغه وخت) مونږ دوی لره ناخاپه (په هلاکوونکی عذاب کښے) اونیول او دوی ته (د دے عذاب د راتلو) خبر هم نه وه (یعنی دوی ته انبیاؤ خبر ورکړے وه مګر چونکه دوی دغه خبر غلط ګڼړلو او په عیش او آرام کښے ورک وو په دے وجه د دوی ګمان نه وه) او (مونږ چه دوی لره په هلاکوونکی عذاب کښے اونیول نو د دے سبب صرف د دوی کفر او مخالفت وه ورنه) که د دے کلو او سیدونکو (په پیغمبرانو) ایمان راوړے او (د دوی د مخالفت نه) ځان ئے ساتلے نو مونږ به (په ځائے د دا فتونو د اسمان او د زمکے) په دوی د اسمان او زمکے برکتونه سپړدلی وو (یعنی د اسمان نه باران او د زمکے نه پیداوار به دوی ته د برکت سره ورکړے شوے وه، او اګرچه د دے هلاکت نه وړاندې دوی ته خوشحالی په یو حکمت سره ورکړے شوے وه لیکن په دے خوشحالئ کښے په دے وجه برکت نه وه چه اخر ئے دغه وبالِ جان جوړ شو په خلاف د هغو نعمتونو نه کوم چه د ایمان او اطاعت سره ملاویګی چه په دوی کښے داخیر او برکت وی چه هغه وبال چرته نه جوړیګی نه په دنیا کښے نه په اخرت کښے، پخوړ دا شو چه که دوی ایمان او تقوی اختیار کړے وے نو دوی ته به هم دا برکتونه ورکړی شوی وو) لیکن دوی خو (پیغمبرانو لره) دروغژن کړل نو مونږ ه (هم) د دوی د (بد) عملونو په وجه سره دوی لره په هلاکوونکی عذاب کښے اونیول (کوم لره چه ئے بره په : اَخَذْنٰهُمْ بَغْتَةً : سره تعبیر فرما ئیلے دے - وړاندې موجوده کفارو ته عبرت ورکوی) آیا (د دے قصو په اوریدو سره بیا هم د دے (موجوده) کلو اوسیدونکی (کوم چه د نبی کریم صلے الله علیه وسلم د نبوت په دور کښے موجودی) د دے خبرے نه بے فکره شوی دی چه په دوی (هم) زمونږ عذاب د شپے په وخت کښے راشی او دوی اوده وی او آیا د دے (موجوده) کلو اوسیدونکی (سره د کفر او دروغژن کولو کوم چه د تیرو کفارو د هلاکت سبب وه) د دے خبرے نه بے فکره شوی دی چه (د دغو تیر شوی نیشان) په دوی زمونږ عذاب د ورځے په غرمه کښے راشی کوم وخت چه دوی پخپلو بے فائده قصو کښے مشغول وی (مراد د دے نه د دُنیا کاروبار دے) هغه نو آیا دوی د الله تعالیٰ د دے (ناګهانی) نیولو نه (د کوم چه بره بیان شوے دے) بے فکره شو

پس ربوهه شئ چه الله تعالیٰ ئینولو نه بغیر د هغوئ د چا چه کم بختی راغلی وی نو دهیځوک به فکره کیدے نه شی۔

## معلومات او مسئلے

د تیرو انبیاؤ علیهم السلام او د دوی د قومونو د تاریخ او د دوی د عبرتناکو حالاتو او واقعاتو نه د کومو سلسله چه د څور کوع نه روان ده تر دے ځائے پورے د پنځو پیغمبرانو علیهم السلام د قصو بیان شوے دے شپږم قصه د حضرت موسیٰ علیه السلام او د دهٔ د قوم بنی اسرائیلو ده چه نهمٔ ایاتونه پس په تفصیل سره راتلونکے ده۔

دا خبره وړاندې اول بیان شوے ده چه قرآن کریم د دُنیا او د دنیا د قومونو د تاریخ حالات بیانوی۔ مگر طریقه د بیان ئے دا وی چه د عامو تاریخی کتابونو او د قصو د کتابونو پشان قصے لره په ترتیب او تفصیل سره د بیانولو په ځائے د هر مقام په مناسبت سره د څهٔ قصے یو حِصّے لره بیانوی او د دے سره د دے نه د حاصلو شوؤ عبرتونو نتیجے ذکر کوی۔ په دے طریقه سره دلته د دے پنځو قصو بیانولو نه پس په دے بڼه لیکلو شوؤ ایاتونو کښے څهٔ تنبیهات یعنی خبردارکول ذکر دی،

په اول ایت کښے ارشاد فرمائی چه د نوح علیه السلام د قوم او د عاد یانو او ثمودیانو سره چه کوم واقعات اوشو، دغه څهٔ په دوی پورے خاص نه دی بلکه د الله تعالیٰ شانهٔ عادت دادے چه د قومونو د هدایت او د دوی د اصلاح او فلاح د پاره پیغمبرانو علیهم السلام و لره لیږی، کوم خلق چه دے لره په غوږ وانهٔ چوی نو اول خو دوی لره د دنیا په مصیبتونو او تکلیفونو کښے گیر وے شی چه تکلیف او مصیبت کے دوی مخ الله طرف ته را وګرځوی ځکه چه انسان ته فطرتاً د مصیبت په وخت کښے خدائے یادیږی، او دا ظاهری تکلیف او مصیبت په حقیقت کښے د رحمان او رحیم رحمت او عنایت وی لکه چه مولانا رومیؒ فرمائی :-

خلق را با تو چنین بد خو کنند تا ترا ناچار رو آنسو کنند

د ذکر شوی ایت: اَخَذْنَآ اَهْلَهَا بِالْبَاْسَآءِ وَالضَّرَّآءِ لَعَلَّهُمْ یَضَّرَّعُوْنَ:
هم دا مطلب دے - د: بُؤس: او: بَاْسَآء: معنیٰ فقیری او لوږه ده - او د: ضَرّ:
او: ضَرَّآء: معنیٰ بیماری او مرض دے - په قرآن مجید کښے دا لفظ ځائے په ځائے په
دے معنیٰ کښے راغلے دے - حضرت عبد الله بن مسعودؓ کړدے دا معنیٰ فرمائی - او
بعضے د لغت خاوندانو وئیلی دی چه: بؤس: او: بَاْسآء: مالی نقصان ته وئیلے
شی او: ضَرّ: او: ضَرَّآء: جانی نقصان ته - کړدے هم دا حاصل دے -
مطلب د ایت دا دے چه کله مونږ یو قوم ته پیغمبر او لیږلو او هغوی د
دهٔ خبره او نه منله نو زمونږ عادت دا دے چه اوّل دوی لره په دنیا کښے په مالی
او جانی تنګئ او بیمارئ وغیره کښے اخته کړو چه دوی لږ شان سُست شی
او په انجام نظر اوکړی الله طرف ته راواګرځی - کړدے نه پس په دویم
ایت کښے فرمائی: ثُمَّ بَدَّلْنَا مَکَانَ السَّیِّئَةِ الْحَسَنَةَ حَتّٰی عَفَوْا: په دے کښے
د سیئة: نه مراد هغه فقیری او لوږه ده یا بیماری او بد حالی ده کوم ذکر
چه بره راغے - او د: حَسَنَة: نه مراد کړدے په مقابله کښے د مال ډیر والے
او فراخی او په بدن کښے صحت او سلامتی ده - او لفظ د: عَفَوْا: د عفو نه
جوړ دے - چه کړدے یوه معنیٰ د زیاتید و او ترقئ کولو ده وئیلے شی: عَفَاالنَّبَاتُ:
ګیاه یا اُونه لویه شوه: عَفَاالشَّحْمُ وَالْوَبَرُ: د څاروی چربی او وښته لوئے
شو - په دے معنیٰ سره دلته د عفوا معنیٰ ده زیات شوا و ترقی ئے اوکړه -
مطلب دا دے چه اوّل امتحان د دے خلقو نه په فقیرئ لوږه او بیمارئ وغیره
سره وا غستے شو، هر کله چه په دے کښے ناکامه شو یعنی الله تعالیٰ طرف ته ئے
رجوع اونه شوه نو دویم امتحان تر دا سے وا غستے شو چه د فقیرئ او لوږے
په ځائے ورلره د مال دولت فراخی او د بیمارئ په ځائے صحت او سلامتی دوی لره ورکړے
شوه - تر دے چه دوی ښهٔ زیات شوا و په هر شی کښے ئے ښهٔ ترقی اوکړه،
د دے امتحان غرض دا وه چه د مصیبت نه پس په راحت او دولت به دوی شکر
ګزار شی، او دغه شان به دوی الله تعالیٰ طرف ته رجوع اوکړی - بلکه دا په غفلت
کښے ډوب په مادی راحتونو او خوند ونو کښے بد مستهٔ په دے سره هُم
هوښیار نه شو بلکه دائے اُووے :-

وَقَالُوْا قَدْ مَسَّ اٰبَآءَنَا الضَّرَّآءُ وَالسَّرَّآءُ : یعنی داخهٔ نوے خبره نه ده او نه داغه د سبته یا بد عمل نتیجه ده - بلکه د زمانے عادت داسے دے چه کله راحت کله رنځ، کله بیماری کله صحت، کله تنگی او کله فراخی وی، زمونږ پلار نیکه ته هم داسے حالات مخے ته راغلی دی -

لنډه داده چه اول لږ امتحان په تکلیف او مصیبت سره واغستے شو چه په دے کښے ناکامه شو نو بل امتحان تر په دولت او راحت سره واغستے شو، په دے کښے هم ناکامه شو او په هیڅ شان سره د خپلے گمراهئ نه واپس نه شو نو ناڅاپه په عذاب کښے اونیولے شو : اَخَذْنٰهُمْ بَغْتَةً وَّهُمْ لَا یَشْعُرُوْنَ د : بَغْتَةً : معنیٰ ده ناڅاپه ، مطلب داد ے چه هر کله داخلق په دواړه قسمه ازمیښتونو کښے ناکامه شو او پوهه نه شو نو بیا مونږ دوی لره ناڅاپه داسے په عذاب کښے اونیول چه دوی ته ئے خبر هم نه وه -

په دریم آیت کښے ارشاد فرمائی : وَلَوْ اَنَّ اَهْلَ الْقُرٰی اٰمَنُوْا وَاتَّقَوْا لَفَتَحْنَا عَلَیْهِمْ بَرَکٰتٍ مِّنَ السَّمَآءِ وَالْاَرْضِ وَلٰکِنْ کَذَّبُوْا فَاَخَذْنٰهُمْ بِمَا کَانُوْا یَکْسِبُوْنَ : یعنی که د دے کلو اوسیدونکو ایمان راوړے او د نافرمانۍ نه ئے ځان ساتلے نو مونږ به په دوی د آسمان او د زمکے برکتونه سپړ دلی وو- لیکن دوی دروغژن کړل نو مونږ دوی لره د دوی د عملونو په وجه اونیول -

د برکت لفظی معنیٰ زیاتے دے د آسمان او د زمکے د برکتونو نه مراد دادے چه د هر قسم خیر به د هر طرفه دوی ته پرانستے شوے وه ، د آسمان نه به اوبه د ضرورت مطابق په وخت وریدلے - د زمکے نه به هر شے د خواهش مطابق پیداکیدو ، بیا به د دے څیزونو نه د نفع اغستو او راحت حاصلو سامان جمع کړلے شو چه هیڅ پریشانی او فکر به ورسره نه وو د کوم په وجه سره چه د لوئے نه لوئے نعمت ترخ شی په هر شی کښے به برکت یعنی زیاتے وه-

بیا برکت په دنیا کښے په دوه قسمه سره ښکاره کیږی کله اصل شے په واقع کښے زیات شی - لکه د نبی کریم صلی الله علیه وسلم په معجزو کښے د یو معمولی لوښی په اوبو سره د ټولے قافلے مړیدل یا په لږ خوراک با ندِ د ټولو خلقو مړیدل ، په صحیح روایتونو کښے ذکر دی - او کله داسے هم کیږی چه اکر که

په ظاهري طور سره په دغو څیزونو کښې څۀ زیاتے نۀ وي شوے په مقدار کښې هم دومره وي لکه څومره چه وُو- لیکن کار پرې دومره اوشي چه کۀ دغو نه په دوچند درې چند بلکه څلورچند سره کیدے شي - او کۀ دے نۀ وي نو په عام طور سره کیدے شي، چه څۀ لوښے، کپړه، کور یا دَ کور سامان داسے مبارک وي چه ټول عمر ترې بنده فائده او آرام مومي او دغه بیا هم پخپل ځائے وي، او بعضے څیزونه داسے وي چه دَ جوړېدو سره مات شي یا که روغ هم وي خو ترې دَ نفعے اغستو موقع رانه شي یا ترې نفع هم واخلي خو پوره فائده ترې حاصله نه شي -

او دا برکت دَ انسان په مال کښې هم وي په بدن کښې هم وي په کار کښې هم وي او په وخت کښې هم وي - بعضے وخت یوه نمړئی داسے وي چه دَ انسان دَ قوت او صحت سبب جوړه شي، او بعضے وخت دَ لویو نه لوئے خوراک او طاقتو رخوراک او دوائي کار نه کوي، دغه شان په بعض وخت کښې برکت وي نو په یوه گنټه کښې دومره کار اوشي چه په نورو وختونو کښې په څلورو گنټو کښې هم نه کیږي- په دے ټولو صورتونو کښې اګرچه دَ مقدار په اعتبار سره نه مال زیات وي او نه وخت مګر برکت پکښې داسے ښکاره شي چه کار پکښې ډیر اُوشي -

دے آیت دا خبره واضحه کړه چه دَ آسمان او زمکے دَ ټولو مخلوقاتو او موجوداتو برکتونه په ایمان او تقوی باندې موقوف دي- کۀ دا اختیار کړے شي نو دَ آخرت دَ کامیابئ سره به دَ دُنیا کامیابي او برکتونه هم حاصل شي - او دَ ایمان او تقوی په پاتے کولو به دَ دے برکتونو نه محرومي وي- دَ نن دنیا په حالاتو چه غور اوکړے شي نو دا خبره به دَ یو حقیقت په شکل کښې مخے ته راشي چه نن صبا په ظاهري طور باندې دَ زمکے پیدا وار دَ وړاندې په نسبت ډیر زیات دے او دَ استعمالیدونکو څیزونو نوې نوې والے او نوي نوي ایجادات خو دومره دي چه دَ تیرو نسلونو خو هډو په تصوّر کښې هم نه راتلل - مګر دَ دے ټولو څیزونو او سامان دَ ډیر والي او زیاتي باوجود دَ نن انسان سخت پریشانه، بیمار، او تنګدست په نظر راځي دَ آرام او راحت- امن او اطمینان خو چرته وجود هم نیشته دے دَ دے سبب دَ دے نه سوا بل څۀ کیدے شي چه سامانونه ډیر او ټول موجود دي مګر دَ دوي برکت ختم شوے دے -

دلته دا خبره هم دَ غور قابله ده چه دَ سورتِ انعام په یو ایت کښې دَ
کافرانو او فاجرانو په باره کښې راغلی دی: فَلَمَّا نَسُوْا مَا ذُكِّرُوْا بِهٖ فَتَحْنَا
عَلَيْهِمْ اَبْوَابَ كُلِّ شَيْءٍ؛ یعنی هر کله چه دے خلقو دَ الله حکمونه هیر کړل نو
مونږ په دوی باندې دَ هر شی دروازے پرانستلے او بیا ناڅاپه مونږ دوی په
عذاب سره اونیول - دَ دے نه معلومیګی، چه دَ دنیا دَ هر شی دروازے په
چا باندې پرانستل څهٔ حقیقی انعام نه دے ' بلکه دا یو قسم له دَ الله تعالیٰ قهر هم
کیدے شی، او دلته دا اوخودے شوه چه که دوی ایمان او تقوای اختیار کړے
نو مونږ به په دوی دَ اسمان او زمکے برکتونه پرانستلی وُو - دَ دے نه معلومیګی
چه دَ اسمان او زمکے برکتونه دَ الله تعالیٰ انعامات او دَ هغهٔ دَ رضا نښه
ده او علامه ده -

خبره دا ده چه دَ دُنیا نعمتونه او برکتونه کله دَ دوی دَ جُرم او سرکشئ په
وجه زیات کړے شی او دا صرف یو څو ورځے وی دا دَ قهر او غضب علامه وی
او کله دَ رحمت او مهربانئ په سبب دَ دائمی صلاح او کامیابئ دَ پاره وی، دا
دَ ایمان او تقوای نتیجه وی - دَ صورت په اعتبار سره په دے کښې فرق کول ګران
وی 'ځکه چه دَ انجام او عاقبت حال هیچا ته معلوم نه دے - لیکن خدائی خلقو
دَ نښو په ذریعه دَ دے معلومول خو دَ لی دی - چه کله دَ مالی او دولت او
عیش او ارام سره دَ الله تعالیٰ دَ شکر او عبادت نور زیات توفیق وی - نو
دا سے ګنړلے شی چه دا رحمت دے، او که دَ مال دولت عزت او راحت سره دَ
الله تعالیٰ نه مخ اړه وَل او دَ ګناهونو ډیر والے وی - نو دا نښه دَ دے ده
چه دا دَ خدائے دَ قهر یوه علامه ده، الله دِ ترمونږ په امان کړی -

په څلورم ایت کښې بیا دَ دُنیا ټولو قومونو ته دَ خبر دَ لو دَ پاره فرمائی - چه
دَ دے کلو او سیدونکی دَ دے خبرے نه بے فکره شو چه زمونږ عذاب دوی لره
په داسے حالت کښې اُونیسی کله چه دوی دَ شپے اُوده وی - او آیا دَ دے کلو خلق
دَ دے نه بے فکره شو چه زمونږ عذاب دوی لره په داسے حال کښې اونیسی کله چه
دوی دَ ورځے ښکېلو لهو لعبو کښې مشغول وی - آیا دا خلق دَ الله تعالیٰ دَ پټ تدبیر
او تقدیر نه مطمئن شو؟ پس پښهٔ پوهه شئ چه دَ الله تعالیٰ دَ پټ تدبیر او

تقدیر نه هغه قوم بے فکره کیدے شی کوم چه په خساره کښے پریوتی وی۔
لنډه دا چه دے خلقو کوم چه د دنیا په عیشونو او راحتونو کښے مست شو خدائے ئے هیر کړو، دوی لره د دے خبرے نه بے فکره کیدل نه دی پکار، چه د الله تعالیٰ عذاب په دوی د شپے په وخت کښے یا د ورځے په وخت کښے په هرڅه حالت کښے هم راتلے شی لکه چه د تیرو قومونو د عذاب د واقعاتو ذکر بره راغلے دے د هوښیار کار دا دے چه د نورو د حالت نه عبرت حاصل کړی او کوم کار چه د نورو د هلاکت او بربادئ سبب جوړ شوے دے د هغے نه ځان اوساتی او نزدے ورته نه شی۔

اَوَلَمْ يَهْدِ لِلَّذِيْنَ يَرِثُوْنَ الْاَرْضَ مِنْۢ بَعْدِ

آیا نه ده ښکاره شوے په هغو خلقو باندې کوم چه وارثان شوی دی د زمکے د هغه ځائے د

اَهْلِهَآ اَنْ لَّوْ نَشَآءُ اَصَبْنٰهُمْ بِذُنُوْبِهِمْ ۚ وَنَطْبَعُ عَلٰى

خلقو د هلاکیدو نه پس چه که مونږ او غواړو نو دوی لره به اورسوو د دوی په ګناهونو او مونږ مهر وهلے

قُلُوْبِهِمْ فَهُمْ لَا يَسْمَعُوْنَ ﴿۱۰۰﴾ تِلْكَ الْقُرٰى نَقُصُّ عَلَيْكَ

دے د دوی په زړونو نو پس دوی نه آوری - دا کلی دی چه آورو مونږ تا ته د

مِنْ اَنْۢبَآئِهَا ۚ وَلَقَدْ جَآءَتْهُمْ رُسُلُهُمْ بِالْبَيِّنٰتِ ۚ فَمَا

دوی څه حالات - او بے شکه دوی ته رسیدلی وو د دوی پیغمبران د نښنو سره - بیا هرګز

كَانُوْا لِيُؤْمِنُوْا بِمَا كَذَّبُوْا مِنْ قَبْلُ ۚ كَذٰلِكَ يَطْبَعُ

او نه شو چه ایمان راوړی په هغه خبره چه اول ئے دروغژن کړے وه - د غسے مهر وهی

اللّٰهُ عَلٰى قُلُوْبِ الْكٰفِرِيْنَ ﴿۱۰۱﴾ وَمَا وَجَدْنَا لِاَكْثَرِهِمْ

الله په زړونو د کافرانو باندې - او نه دی موندلی مونږه اکثر په خلقو کښے

مِّنْ عَهْدٍ ۚ وَإِنْ وَّجَدْنَآ أَكْثَرَهُمْ لَفٰسِقِيْنَ ﴿١٠٢﴾

د وعدې پوره کوونکي - او اکثر په دوی کښې بیاموند مونږ ه نافرمانه -

# لنډ تفسیر

دوړاندې دې علت بنائي چه دوی لره د عذاب نه ولې پریدل پکاردي، او هغه علت د دوی د تیرو اُمتونو سره په جُرم او کفر کښې شریکیدل دي یعنې) او د دغو (تیرو) په زمکه د اوسیدونکو نه پس چه کوم خلق (اوس) په زمکه د دوی په ځائې اوسي آیا د دې ذکرشوو واقعاتو نه دوی ته دا خبره (لاتر اوسه) نه ده معلومه شوې چه که مونږ اوغواړو نو دوی لره به (هم پشان د تیرو اُمتونو) د دوی د جرمونو (کفر او درو غژن کولو) په سبب هلاک کړې وُو. (ځکه چه تیر امتونه د دې جرمونو په سبب هلاک شوي دي) او (واقعي دا واقعات خو داسې دي چه د دې نه عبرت اَخِستل پکار وُو لیکن اصل دا دې چه) مونږ د دوی په زړونو باندې مهر ونه لګولی دی نو په دې سره (حقه خبره په زړه سره) آوري (هم) نه (او مثل خولا پریږده په دې بند یعنې مهر لګولو سره د دوی زړونه نور سخت شو چه د داسې عبرتناکو واقعاتو نه هم عبرت نه اَخلي، او د دې مهر لګولو سبب د دوی په اوّل کښې کفر کول دي" لکه چه الله تعالیٰ فرمائي: بَلْ طَبَعَ اللّٰهُ عَلَيْهَا بِكُفْرِهِمْ؛ وړاندې شاید چه نبي کریم صلی الله علیه وسلم ته د تسلّئ د پاره د ټول مضمون نچوړ دې چه) د دې (ذکرشوو کلو ځنې قصې مونږ تا ته بیان کړې دي او د دې ټولو (د کلو اوسیدونکو) ته د دوی پیغمبران د معجزو سره راغلي وُو (مګر) بیا (هم د د دوی د ضد او ناپوهۍ دا حال وُه چه) کوم شی ته چه دوی په اوّل کښې دروغ اُووې داسې خبره اونه شوه چه بیائې هغه منلې وې (او لکه څنګه چه دوی د زړونو سخت وُو) الله تعالیٰ دغه شان د کافرانو په زړونو باندې مُهر لګوی او (په دوی کښې بعضې خلق په مصیبتونو کښې د ایمان راوړو عهد هم کوی لیکن) په اکثرو خلقو کښې مونږ د عهد پوره کول اُو نه لیدل (یعنې د مصیبت لرې کیدو نه

پس بیا هم دغسې پاتې کیدل) او مونږ اکثرو خلقو لره د سره د لیکلو د رسولانو او د معجزو ظاهرېدلو او د واضحو دلیلو نوراتلو او سره د معاهدو کولو) نافرمانه بیا موندل د پس کفار د همیشه دا سې وي نو ته هم غم مه کوه) -

# مَعلومَات او مَسئلې

په ذکر شوو آیاتونو کښې هم د تیرو قومونو د حالاتو او واقعاتو بیانولو نه موجوده عرب او عجمو قومونو ته داخودل مقصود دي، چه په دې آیاتونو کښې ستا سو د پاره د عبرت لوئې سبق دې چه د کومو کارونو په وجه په تیرو خلقو باندې د الله غضب او عذاب نازل شوې ته د نه ورنزدې کیږئ او د کومو کارونو په وجه سره چه انبیاء علیهم السلام او د دوي تابعدارانو ته کامیابي حاصله شوه هغو لره اختیار کړئ - چنانچه په اول آیت کښې ارشاد دې:

اَوَلَمْ یَهْدِ لِلَّذِیْنَ یَرِثُوْنَ الْاَرْضَ مِنْۢ بَعْدِ اَهْلِهَآ اَنْ لَّوْ نَشَآءُ اَصَبْنٰهُمْ بِذُنُوْبِهِمْ :-

د: هدای: یَهْدِ: معنیٰ نښاندهي کول او خودل دي - دلته د دې فاعل هغه واقعات او حالات دي د کوموچه بره ذکر شوې دې، معنیٰ داده چه د موجوده زمانې خلق کوم چه د تیرو قومونو د هلاکیدو نه پس د دوي د زمکو مکانونو وارثان جوړ شو یا آئینده جوړیګي آیا دوي ته تیرو عبرتناکو واقعاتو دا او نه خودله، چه د کفر او انکار او د الله تعالیٰ د حکمونو نه د خلاف ورزئ په نتیجه کښې څنګه د دوي نه وړاندې قومونه هلاک او برباد شوي دي، د غه شان که دوي هم دغه کارونه کوي نو په دوي هم د الله تعالیٰ قهر او غضب راتلے شي -

د دې نه پس فرمائي: وَنَطْبَعُ عَلٰی قُلُوْبِهِمْ فَهُمْ لَا یَسْمَعُوْنَ : د: طبع: معنیٰ چاپ کول او مهر لګول دي - او معنیٰ داده چه دا خلق د تیرو واقعاتو نه هم څۀ عبرت او هدایت نه حاصلوي چه نتیجه ئې دا شي چه د الله غضب د دوي په زړونو مهر او لګي بیا دوي هیڅ نۀ آوري -

په حدیث کښې د نبي کریم صلی الله علیه وسلم ارشاد دې چه کله یو انسان

اول اول گناه کوی نو د ده په زړه یوه تورتکے (نقطه) جوړیږي چه دویم گناه کوی نو دویم او چه دریم کوی نو دریم تکے لګي او دغسے چه د ے ګناهونه کوی نو دغه تکي زیاتیږي او چه توبه نه کوی نو دا تورتکي د ده ټول زړه اونیسي، او د انسان په زړه کښې چه الله تعالیٰ کومه د ښه بد پیژندلو فطري ماده ایښودلے ده هغه ختمه او فنا شي، او نتیجه ئے دا شي چه د ے ښه لره بد او بد لره ښه مفید لره مُضر او مُضر لره مُفید خیال کوی، د ے حالت لره په قرآن کښې په رَانَ : سره تعبیر کړے دے یعنی د زړه په زنګ سره - او د دے حالت آخري نتیجه هغه ده کوم بیان چه ئے په: طَبَع: یعنی مهر لګولو سره په دے آیت کښې او په ډیرو نورو آیاتونو کښې تعبیر کړے ده -

دلته د اخبره د نظر قابله ده چه په زړه د مُهر لګیدو نتیجه خوعقل او پوهه وُرکیدل دی د غوږونو په آورید و خو د دے څه اثر نه کیږي نو په دے آیت کښې موقع د دے وه چه دلته ئے : فَهُمْ لَا يَفْقَهُوْنَ: فرمائیلي وے " یعنی دوی نه پوهیږی " لیکن په قرآن کریم کښې دلته : فَهُمْ لَا يَسْمَعُوْنَ: راغلی دے " یعنی دوی نه آوری " سبب دا دے چه د اوریدو نه دلته مراد مَنَل او اطاعت کول دی کومه چه نتیجه وی د پوهیدلو - مطلب دا دے چه په زړونو د مهر لګیدو په سبب سره دوی څه حقے خبرے منلو ته نه تیاریږي، او دا هم وئیلے شي چه د انسان زړه د ده د ټولو اندامونو او جوړښت مرکز دے، کله چه د زړه په کارونو کښې خلل راشي نو د ټولو اندامونو کارونه وران شي، کله چه په زړه کښې د یو شي ښه والے یا بدوالے ځائے شي نو بیا په هرشي کښې ده ته په سترګو سره هم دغه په نظر راځي، په غوږونو سره هم دغه ورته آوریږی : ے

چشم بد اندیش که برکنده باد     عیب نماید هنرش در نظر

(یعنی د دشمن سترګو ته د بنده هنرهم عیب ښکاره کیږي)

په دویم آیت کښې ارشاد فرمائی : تِلْكَ الْقُرٰى نَقُصُّ عَلَيْكَ مِنْ اَنْۢبَآئِهَا :

اَنْبَاء : د نَبَأ جمع ده چه معنیٰ ئے ده یو عظیم الشان خبر - معنیٰ دا ده چه د هلاک شوکلو بعضے واقعات مونږ تا ته بیا نوُو - په دے کښې ئے

دَحرف : مِنْ بِس ئے اشاره دے تا اوکړه چه دَ تیرو قومونو حالات او واقعات کوم چه ذکر شوی دی دا ټول واقعات نه دی بلکه دَ ذرکو نو واقعاتو نه دَ یو څو رهو واقعاتو بیان دے -

دَ دے نه پس فرمائی : وَلَقَدْ جَآءَتْهُمْ رُسُلُهُمْ بِالْبَيِّنٰتِ فَمَا كَانُوْا لِيُؤْمِنُوْا بِمَا كَذَّبُوْا مِنْ قَبْلُ : یعنی دے ټولو خلقو ته رسولان دَ معجزو سره راغلی دی دَ کومو په ذریعه چه به دَ حق او دَ باطل فیصله کیده مګر دَ دوی دَ ضد او دَ ناپوهئ دا حال وُو چه دَ کوم شي متعلق به یو وارے دَ دوی دَ ژبے نه دا اُووتل چه دا غلط او دروغ دی بیا که به هر څومره معجزے او دلیلونه دَ دغے دَ حق والی او رشتونوالی دَ پاره دوی ته راغلل خو دوی به دَ دغه خبر تصدیق او اقرار ته نه تیار ریدل -

دَ دے ایت نه یو خو دا معلومه شوه چه ټولو رسولانو او انبیاؤ ته معجزے ورکړے شوی دی چه دَ دے څخه دَ بعضو معجزو ذکر په قرآن شریف کښے راغلے دے او دَ ډیرو نه دے راغلے - دَ دے نه دا خبره کُزل نه صحیح کیږی چه دَ کومو معجزو ذکر په قرآن کښے نه دے راغلے هغه دے نه څهٔ معجزه نه ثابتیږی، او په سورتِ هود کښے چه دَ حضرت هود علیه السلام دَ قوم کوم دا قول ذکر دے چه : مَا جِئْتَنَا بِبَيِّنَةٍ ؛ یعنی تا څهٔ معجزه نه ده راوړے : دَ دے ایت نه معلومه شوه چه دَ دوی دا خبره محض په عناد او ناپوهئ باندِ وَه یا دا چه دَ دهٔ معجزے ئے معمولی او کمزورے تو دا سے ئے اووئیل -

دویمه دا خبره دَ توجه قابل ده چه په دے ایت کښے دَ دغو خلقو کوم حال خودَلے شوے دے چه کومه غلطه خبره به ئے دَ خولے نه اووتله نو بیا به ئے دَ هغے پالنه کوَله دَ دے خلاف که څومره واضح دلیلونه به ورله راغلل - دا څخا اے نهٔ دَ منکرو او کافرو قومونو خو دوی به دَ خپلے خبرے بچاؤ کوَلو - دا څخا اے نهٔ دَ منکرو او کافرو قومونو حال دے - په کوم کښے چه ډیر مسلمانان بلکه بعضے علماء او خواص هم په دے آخته موندے شی چه کوم شی ته ئے په اوّل وارے غلط یا دروغ اُووئیے نو اوس دَ دے دَ رشتونوالی په ذرکو نو دلیلو نه که هم مخے ته راشی خو دوی به دَ خپلے غلطے خبرے پیروی کوی - دا حالت دَ خدائے دَ قهر او غضب موجب دے (از رسائل السلوک)

دَ دے نه پس فرمائي: كَذٰلِكَ يَطْبَعُ اللّٰهُ عَلٰى قُلُوْبِ الْكٰفِرِيْنَ: يعني څنګه چه دَ دے خلقو په زړونو باندِ مهراو لګوَلے شو، دغه شان دَ عامو کافرانو په زړونو الله تعالیٰ مهر لګوی - چه بیا پکښے دَ نیکئ قبلولو صلاحیت باقی نه پاتے کیږی -

په دریم ایت کښے ارشاد فرمائي: وَمَا وَجَدْنَا لِاَكْثَرِهِمْ مِّنْ عَهْدٍ: يعني په دوی کښے اکثرو خلقو لره مونږ عهد پوره کوونکی اُو نه موندل -

حضرت عبد الله بن عباسؓ فرمائي چه دَ عهد نه مراد عهد دَ اَلَسْتُ دے چه په ازل کښے دَ ټول مخلوقات دَ پیدا کولو نه اوّل ئے دَ دوی ټولو روحونه پیدا کړل او الله تعالیٰ ورته او فرمائیل: اَلَسْتُ بِرَبِّكُمْ: یعني آیا زهٔ ستاسو پروردګار نه یم، دغه وخت دَ ټولو انسانانو روحونو دَ اقرار او عهد په طورسره جواب ورکړو: بَلٰى: يعني خامخا تهٔ زمونږ رب ئے - دُنیا ته چه راغلل نو اکثرو خلقو دَ ازل دا عهد هیر کړو، خدائے تعالیٰ ئے پاتے کړو دَ مخلوق پرستئ په لعنت کښے ګرفتار شو، په دے وجه په دے ایت کښے فرمائي چه مونږ په دوی کښے اکثرو خلقو لره په عهد پوره کولو بیا نه موندل (کبیر)

او حضرت عبد الله بن مسعودؓ فرمائي چه دَ عهد نه مراد عهد دَ ایمان دے لکه چه په قرآن شریف کښے فرمائي: اِلَّا مَنِ اتَّخَذَ عِنْدَ الرَّحْمٰنِ عَهْدًا: په دے کښے دَ عهد نه مراد عهد دَ ایمان او طاعت مراد دے - نو دَ ایت لنډ مطلب داشو چه په دے خلقو کښے اکثرو دَ ایمان او طاعت عهد مونږ سره کړے وه بیائے دَ دے خلاف وَرزی اوکړه - دَ عهد تړلو نه مراد دادے چه په عام طورسره انسان کله په څهٔ مصیبت کښے ګیرشی نو دغه وخت که هرڅومره فاسق او فاجر وی خو دهٔ ته هم خدائے یادیګی او اکثر په زړهٔ کښے یا په ژبه سره عهد کوی چه که دَ دے مصیبت نه راته نجات ملاؤ شو نو دَ الله تعالیٰ په طاعت او عبادت کښے به شروع شم نافرمانی به نه کوم - لکه چه په قرآن کریم کښے دَ ډیرو خلقو دا حال ذکر شوے دے - لیکن هر کله چه دوی ته نجات ملاؤ شی او دَ دغے مصیبت نه خلاص شی آرام او راحت بیا مومی نو بیا په خواهشاتو کښے ګیر شی او دغه عهد هیر کړی -

په ذکر شوی ایت کښې د لفظ د "اکثر" نه دے طرف ته هم اشاره موندے شی ځکه چه ډیر خلق خو داسے بد بخته وی چه د مصیبت په وخت کښې هم دوی ته خدائے نه یادیګی او دغه وخت هم دوی د ایمان او اطاعت عهد نه کوی نو د دوی نه د وعدے ما تولو د شکایت کولو خو هډو څه معنیٰ نیشتے ۔ او ډیر خلق هغه هم دی چه عهد لره پوره کوی د ایمان او طاعت حقونه پوره کوی په دے وجه ئے اوفرمائیل: وَمَا وَجَدْنَا لِاَكْثَرِهِمْ مِّنْ عَهْدٍ: یعنی مونږ په دوی کښې اکثرو خلقو لره عهد پوره کوونکی بیا نه موندل۔

د دے نه پس فرمائی: وَاِنْ وَّجَدْنَآ اَكْثَرَهُمْ لَفٰسِقِیْنَ: یعنی مونږ په دوی کښې اکثرو خلقو لره د اطاعت او فرمانبردارئ نه باهر بیا موندل۔

تو دے ځائے پورے ئے د پنځو پیغمبرانو عَلَیْهِمُ السلام او د دوی د قومونو پنځه واقعات بیان کړل موجوده خلقو ته ئے د دی نه د عبرت او نصیحت حاصلولو د پاره خبردارے او فرمائیلو۔

د دے نه پس شپږمه قصّه د حضرت موسیٰ علیه السلام په تفصیل سره بیا نیګی۔ چه په دے کښې د واقعاتو په ضمن کښې په سوونو حکمونه او مسئلے او د عبرت او نصیحت بے شماره موقعے دی۔ او د دے د پاره په قرآن کریم کښې د دے واقعے اجزاء بار بار بیان شوی دی۔

---

ثُمَّ بَعَثْنَا مِنْۢ بَعْدِهِمْ مُّوْسٰى بِاٰیٰتِنَآ اِلٰى فِرْعَوْنَ

بیا اولیږلو مونږه د دوی نه روستو موسیٰ ع لره د خپلو نښنو سره فرعون ن او

وَمَلَا۟ئِهٖ فَظَلَمُوْا بِهَا ج فَانْظُرْ كَیْفَ كَانَ عَاقِبَةُ

د ده سردارانو ته پس کفر اوکړو دوی د ده په مقابله کښې ۔ پس او ګوره چه څه انجام شو

الْمُفْسِدِیْنَ ﴿۱۰۳﴾ وَقَالَ مُوْسٰى یٰفِرْعَوْنُ اِنِّیْ رَسُوْلٌ

د فساد کوونکو ۔ او اووے موسیٰ ع اے فرعونه ! زه رسول یم

مِّنْ رَّبِّ الْعٰلَمِيْنَ ﴿۱۰۴﴾ حَقِيْقٌ عَلٰٓى اَنْ لَّآ اَقُوْلَ عَلَى

د پروردګار عالم لہ اړخہ - قائم یم په دے خبره باندې چه اونه وائیم د

اللّٰهِ اِلَّا الْحَقَّ ؕ قَدْ جِئْتُكُمْ بِبَيِّنَةٍ مِّنْ رَّبِّكُمْ

الله د طرف نه مګر کومه چه رشتیا ده - راوړې م دی تاسو ته نښے ستاسو د رب د طرف نه

فَاَرْسِلْ مَعِىَ بَنِىٓ اِسْرَآءِيْلَ ﴿۱۰۵﴾ قَالَ اِنْ كُنْتَ جِئْتَ

پس او لیږه ما سره بنی اسرائیلو لره - اُوئے وئیل که تا څه نښه راوړے

بِاٰيَةٍ فَاْتِ بِهَآ اِنْ كُنْتَ مِنَ الصّٰدِقِيْنَ ﴿۱۰۶﴾ فَاَلْقٰى

وی نو راوړه هغې لره که ته رشتو ئے - پس اُغورزوله ده

عَصَاهُ فَاِذَا هِىَ ثُعْبَانٌ مُّبِيْنٌ ﴿۱۰۷﴾ وَّنَزَعَ يَدَهٗ فَاِذَا

خپله همسا نو دغه وخت شوه اژدها ښکاره - او راو یستلوئے خپل لاس نو دغه وخت

هِىَ بَيْضَآءُ لِلنّٰظِرِيْنَ ﴿۱۰۸﴾ قَالَ الْمَلَاُ مِنْ قَوْمِ

هغه سپین ښکاریدو کتونکو ته - اُووے سردارانو د قوم

فِرْعَوْنَ اِنَّ هٰذَا لَسٰحِرٌ عَلِيْمٌ ﴿۱۰۹﴾ يُّرِيْدُ اَنْ

د فرعون دا خو خوک لوئے پوهه جادوګر دے - ویستل غواړی

يُّخْرِجَكُمْ مِّنْ اَرْضِكُمْ ۚ فَمَاذَا تَاْمُرُوْنَ ﴿۱۱۰﴾

تاسو لره ستاسو د ملک نه اوس ستاسو څۀ صلاح ده -



# لنډ تفسير

بیان د دی (ذکر شوو پیغمبرانو) نه پس مونږ (حضرت) موسیٰ (علیه السلام) لره
د خپلو دلیلو نو (یعنی معجزو) سره فرعون او د هغهٔ سردارانو ته (د دوی د
هدایت او تبلیغ د پاره) اُولیږلو پس (کله چه موسیٰ علیه السلام دغه دلیلونه
ظاهر کړه نو) دغو خلقو د دی (دغو معجزو) بالکل حق اَدا نه کړو (ځکه چه د دے
حق او مقتضیٰ دا وه چه ایمان ئے راوړے وے) پس اوګوره ئی د دے فساد کوونکو
څهٔ (بد) انجام شو (کله چه بل ځائے د دوی غرقیدل او هلاکیدل ذکر دی، دا خو
د ټولے قصے اجمال وُه وړاندے ئے تفصیل دے یعنی) او موسیٰ (علیه السلام) فرعون ته
لاړو د الله په حکم ئے) او فرمائیل چه زهٔ د رب العٰلمین د طرف نه (ستاسو خلقو د هدایت
د پاره) پیغمبر (مقرر شوے) یم (نو څوک چه ما ته دروغژن وائی د دهٔ غلطی ده
ځکه چه) ما سره دا مناسب نه دی چه بغیر د رښتیا څهٔ نه د خدائے طرف ته د څهٔ
خبرے نسبت او نه کړم (او زهٔ خالی د رسالت دعوه نه کوم بلکه) ما تاسو ته ستاسو
د ربّ د طرف نه یو لوئے دلیل (یعنی معجزه) هم راوړے ده (کومه چه ئے د طلب
کولو په وخت کښے خودلے شم) پس (هر کله چه زهٔ سره د دلیل نه رسول یم
نو زهٔ چه څهٔ وایم دا منئ چنانچه په دے کارونو کښے یو زهٔ دا وایم چه) تهٔ
بنی اسرائیلو لره (د خپل بیګار نه آزاد کړه) ځما سره ئے (د شام ملک ته، چه
د دوی اصلی وطن دے) او لیږه فرعون اُووے چه که تا (د الله تعالیٰ د
طرف نه) څهٔ معجزه راوړے وی نو اوس ئے پیش کړه که چرے تهٔ (په دے
دعوه کښے) رښتونے ئے پس دوی (فوراً) خپله همسا (په زمکه) او غورځوله
پس ناڅاپه هغهٔ یو اژدها جوړه شوه (داسے چه په اژدها کیدو کښے ئے
هیڅ شک شبه نه شوه کیدے) او (دویمه معجزه ئے دا ظاهر کړه چه)
خپل لاس ئے (د ګریوان د ننه کړو) باهر ئے راواُویستلو پس هغه یکدم
ټولو کتونکو ته صاف ډیر پرقیدونکے شو (چه دا هم ټولو اولیدلو، حضرت
موسیٰ علیه السلام چه دا معجزے لوئے ظاهرے کړے نو فرعون درباریانو
ته اُووے چه دا سړے لوئے جادوګر دے د دهٔ اصل مقصد دا دے چه

په خپل جادو سره په تاسو خلقو باندې غالب راشي دې د دې ځائے سرداران شي او تاسو لره په دے ځائے کښې اباديدو ته پرې نه ږدي، پس په دے باره کښې ستاسو څهٔ مشوره ده دا قول د فرعون په سورتِ شعراء کښې نقل دے، د دے په آورېدو سره لکه څنګه چه د بادشاهانو د درباريانو په هان کښې د هان ملاؤ هلو عادت وي د فرعون د وينا د تصديق او د دهٔ سره د موافقت د پاره) د فرعون په قوم کښې چه کوم سرداران (او د دربار) خلق وو هغوی ويل ته) او وے چه واقعی رلکه څنګه چه زمونږ بادشاه وائي چه) دا سړے لوئے ماهر جادوګر دے (خامخا دے غواړي چه رخپل جادو په زور سره بچيله سره د بني اسرائيلو سردار شي او) تاسو لره (په وجه د دے چه د بني اسرائيلو په نظر کښې اُزغي يئي) ستاسو د ردے) زمکے نه باهر کړي پس تاسو خلق (لکه څنګه چه بادشاه تپوس کوي) څهٔ مشوره ورکوئ -

# معلومات او مسئلے

په دے سورت کښې چه څو مره قصے او واقعات د پيغمبرانو عليهم السلام او د دوی د امتونو ذکر شوي دي دا په هغوی کښې شپږم قصه ده د دے د زياتے په تفصيل او تشريح سره د بيانولو سبب دا هم دے چه حضرت موسیٰ عليه السلام معجزے په نسبت د نورو تيرو پيغمبرانو په شمار کښې هم زياتے دي او په قوت د ظهور کښې هم، د غه شان د دهٔ په مقابله کښې د دهٔ د قوم بني اسرائيل جهالت او ناړامي هم د تيرو امتونو په مقابله کښې زياته سخته ده، او دا هم دهٔ چه د دے قصے په ضمن کښې ډير معلومات او مسئلے او احکام هم راغلي دي -

په اولني ايت کښې ارشاد فرمائي چه د دوی نه پس يعني د نوح، هود، صالح لوط، او شعيب عليهم السلام نه يا د دوی د قومونو نه پس مونږ موسیٰ عليه السلام لره خپلے معجزے ورکړے فرعون او د دهٔ قوم ته موا ولېږهٔ - د ايا تونو نه مراد د تورات ايا تونه هم کيدے شي او د موسیٰ عليه السلام معجزے هم - او فرعون په دغه زمانه کښې د مصر د هر يو بادشاه لقب وهٔ -

دَموسیٰ علیه السلام دَ زمانے دَ فرعون نوم قابوس بیا نو لے شی۔ (قرطبی)

دَ: فَظَلَمُوا بِهَا: ضمیر مجرور ایاتو طرف ته راجع دے۔ معنیٰ داده چه دے خلقو زمونږ په ایاتو نو ظلم اوکړو۔ او دَ الله تعالیٰ په ایاتو نو دَ ظلم کولو مراد داده چه دے خلقو دَ الله دَ ایاتو نو قدر او نه پیژندو۔ او په دیٔ یٔ دَ شکر په ځائے نا شکری، دَ اقرار په ځائے انکار، دَ ایمان په ځائے یٔ کفر اختیار کړو، ځکه چه دَ ظلم اصلی معنیٰ داده چه یو شی لره دَ هغهٔ دَ محل او موقع خلاف استعمال کړی۔

بیا فرمائی: فَانْظُرْ كَيْفَ كَانَ عَاقِبَةُ الْمُفْسِدِيْنَ: یعنی اوګوره چه بیا دَ دے فساد کوونکو څهٔ انجام شو، مراد دا دے چه دَ دوی په حالاتو او انجام باندِ غور اوکړیٔ او عبرت ترِ حاصل کړیٔ۔

په دویم ایت کښے فرمائی چه، موسیٰ علیه السلام فرعون ته اووے چه زهٔ دَ رب العلمین رسول یم ځما دَ حال او مرتبے دَ نبوّت تقاضا داده چه زهٔ الله تعالیٰ طرف ته بغیر دَ رشتیا وُ نه دَ بلے خبرے نسبت او نه کړم ځکه چه پیغمبرانو ته کوم پیغام دَ الله تعالیٰ دَ طرف نه ورکولے شی هغهٔ دَ دوی سره دَ خدائے امانت وی، په دے کښے دَ خپل طرف نه کے زیاتے کول خیانت دے او ټول پیغمبران علیهم السلام دَ خیانت او هر ګناه نه پاک او معصوم دی۔ دَ دے مطلب دا دے چه تاسو خلقو لره ځما په خبره ځکه یقین کول پکار دی چه ځما رشتو نوالے ستاسو دَ ټولو دَ وړاندِ دے ما نهٔ چرِ ته دروغ وئیلی دی او نهٔ وئیلے شم دَ دے نه علاوه: قَدْ جِئْتُكُمْ بِبَيِّنَةٍ مِّنْ رَّبِّكُمْ فَأَرْسِلْ مَعِيَ بَنِيْٓ اِسْرَآئِيْلَ: یعنی صرف دا خبره نه ده چه ما چرِ ته دروغ نه دی وئیلی بلکه ځما په دعوىٰ باندِ دلیل ځما معجزے هم دی۔ په دے وجه دَ دے ټولو خیز و نو تقاضا داده چه تاسو ځما خبره واؤ رئ او اُومنئ۔ بنی اسرآئیلو له چه تاسو غلامان جوړ کړی دی دَ دے نه یٔ ازاد کړیٔ ځما سره یٔ کړیٔ۔ دَ فرعون یوه خبره بله هم په غوږ کونوا او نه لګیده، دَ معجزے لید و مطالبه یٔ اوکړه او اُوئے وئیل: اِنْ كُنْتَ جِئْتَ بِاٰيَةٍ فَأْتِ بِهَآ اِنْ كُنْتَ مِنَ الصّٰدِقِيْنَ: یعنی که تا واقعی څهٔ معجزه راوړے وی نو پیش کړه که په خپله خبره کښے رشتونے یٔ۔

حضرت موسیٰ علیه السلام د دهٔ مطالبه اومنله خپله همسا ئے زمکے ته واچوَله
هغه اژدها جوړه شوه: فَإِذَا هِيَ ثُعْبَانٌ مُّبِينٌ: ثعبان: لوئے اژدها ته وئیلے
شي- او د دے صفت ئے: مبین: ذکر کړو او ئے خودله چه د دے همسا نه مار
جوړیدل څهٔ داسے واقعه نه وه چه په تیارے یا یوکوټ کښے دا کار شوے
وی چه څوک ئے وینی او څوک ئے نه وینی، لکه په عام طور سره چه مداریان
او جادوګر ئے کوی، بلکه دا واقعه په ډک دربار کښے د ټولو د وړاندِ اوشوه
او ټولو اولیده.

په بعضے تاریخی روایتونو کښے د حضرت ابن عباسؓ نه نقل دی چه د دے
اژدها د فرعون طرف ته خوله وازه کړه نو اویرید او د تخت نه ئے راټوپ
کړو او د حضرت موسیٰ علیه السلام نه شاته شو څان ئے تِرپنا د کړو او د
دربار په زرګونو خلق د یرے نه مړه شو (تفسیر کبیر)

د همسا نه بالکل په رشتیا سره مار جوړیدل ناممکن یا محال شے نه دے هاں
د عام عادت نه د خلاف کیدو په وجه حیرانوونکے او د تعجب خبره خامخا ده
او د معجزے او کراماتو منشاء هم دا وی چه عام خلق ئے نه شی کولے. دغه د
انبیاء علیهم السلام و په لاسونو د الله تعالیٰ د طرف نه جاری کولے شی د دے
د پاره چه عوام پرے پوهه شی چه د دوی سره څهٔ خدائی طاقت کار کوی،
په دے وجه د حضرت موسیٰ علیه السلام د همسا نه مار جوړیدل څه د
تعجب او انکار خبره نه شی کیدے.

د دے نه پس فرمائی: وَنَزَعَ يَدَهُ فَإِذَا هِيَ بَيْضَاءُ لِلنَّاظِرِينَ: د: نَزَعَ: معنیٰ ده
یو شے د بل شی نه په څهٔ قدر سختئ سره راویستل، مراد دا دے چه خپل لاس
ئے راښکود راوُ ئے ویستلو، دلته دا ذکر نیشتے چه د څهٔ شی نه ئے راوُ ویستلو
په نورو آیاتونو کښے دوه ځیزونه ذکر دی یو ځائے: أَدْخِلْ يَدَكَ فِي جَيْبِكَ:
راغلے دے چه معنیٰ ئے دا ده چه خپل لاس بګریوان کښے د ننه کړه، بل ځائے
: وَاضْمُمْ يَدَكَ إِلَىٰ جَنَاحِكَ: ذکر دے چه معنیٰ ئے دا ده چه خپل لاس بګیل ترخ کښے
ورا منده. د دے دواړو وآیاتونو نه معلومه شوه چه لاس راو یستل
د ګریوان د دننه نه یا د ترخ د لاندِ نه وُو- یعنی کله به ئے د ګریوان د دننه نه

په لاس راوبیستلو سره او کله د ترخ د لاندې نه په راوبیستلو سره دا معجزه ظاهریده چه: فَاِذَا هِيَ بَيْضَاءُ لِلنّٰظِرِيْنَ: یعنی دغه لاس به په قید ونکے شو کتونکو ته -

د: بَيْضَاءُ: لفظی معنیٰ سپین ده- او د لاس سپین والے کله د برص د بیمارۍ په سبب هم کیږی- په دے وجه په یو بل ایت کښے دلته د: مِنْ غَيْرِ سُوْٓءٍ: لفظ هم راغلے دے چه معنیٰ ئے داده چه دا د لاس سپینوالے د څهٔ بیمارۍ په سبب نه وه- او د حضرت عبدالله بن عباسؓ د روایت نه معلومیږی چه دا سپینوالے هم معمولی سپینوالے نه وه بلکه د دے سره به رنړا کیده چه تول خواوشا به تړ روښا نه کیدل، (قرطبی)

دلته لفظ د: لِلنّٰظِرِيْنَ: ئے زیات کړو د دے رنړا د عجیبه او ناآشنا والی طرف ته ئے اشاره فرمائیلے ده چه دا دا سے عجیبه رنړا وه چه د دے لیدو ته به کتونکی جمع کیدل-

دا وخت د فرعون په مطالبه باندې حضرت موسیٰ علیه السلام دوه معجزے اوخودلے، یوه د همسا نه اژدها جوړیدل دویم د لاس په ګریوان یا ترخ کښے منډلو او بیا راوبیستلو سره په دے کښے رنړا پیدا کیدل، اول معجزه د مخالفینو د یرولو د پاره، او دویمه معجزه د دوی د ترغیب او د نزدے راوستلو د پاره، چه په دے کښے اشاره وه چه د موسیٰ علیه السلام تعلیم د هدایت یو نور لری د دے تابعداری د فلاح باعث دے-

قَالَ الْمَلَاُ مِنْ قَوْمِ فِرْعَوْنَ اِنَّ هٰذَا لَسٰحِرٌ عَلِيْمٌ: لفظ د: مَلَاُ: د یو قوم با اثره سردارانو ته وئیلے شی- معنیٰ داده چه د فرعون د قوم سردارانو دا معجزے اولیدے خپل قوم ته ئے خطاب اوکړو او ئے وے چه دا خولوے ماهر جادوګر دے، وجه داوه چه: ؎

فکر هر کس بقدر همت اوست

(یعنی د هر سړی فکر د ده د پوهے په مقدار باندې وی)

دے عاجزانو ته د خدائے تعالیٰ او د ده د کامل قدرت څهٔ خبر وه- چا چه تول عمر فرعون لره خپل خدائے او جادوګرو لره خپل رهبران او ګنړل، او د جادوګرو چالاکئ ئے لیدلے وے دوی د دے حیرانونکے واقعے په لیدو باندې

د دې نه سوائې نور څه وئيلې شو چه دا هم يولوئې جادو دے - ليکن د دې خلقو هم دلته د: سَاحِرٌ، سره د: عَلِيمٌ: لفظ زيات کړو دا ئې ظاهره کړه چه د حضرت موسیٰ عليه السلام د معجزې متعلق دا احساس دوی ته هم شوے وَه چه دا کار د عامو جادوګرو د کار نه ممتاز او مختلف دے، په دې وجه دومره ئې اقرار ئې اوکړو چه دا لوئې ماهر جادوګر دے -

**په معجزه او په جادو کښې فرق**

او الله تعالیٰ هميشه د انبياء عليهم السلام و معجزو له په داسې انداز سره ظاهر وی چه که کتونکی لږ هم غور اوکړی او ناروا اختيار نه کړی نو د معجزې او سحر په فرق به خود بخود پوهه شي - سحر کوونکی عام طور سره په ناپاکئ او ګندګئ کښې اوسی، او څومره چه زيات په ګندګئ او ناپاکئ کښې وی دومره د دوی جادو زيات کامياب وی په خلاف د پيغمبرانو نه چه پاکی او صفائی د دوی طبيعت ثانيه وی، او دا هم د الله تعالیٰ د طرف نه ښکاره فرق دے چه د نبوّت د دعوه کوونکی سره د چا جادو هم نه چليګی -

او د پوهې خاوندان خو اصل حقيقت له پيژنی چه په جادو سره کوم څيزونو له ظاهر وَلې شی هغه ټول په دائره د طبعی اسبابو کښې وی - فرق صرف دومره وی چه دغه اسباب عامو خلقو ته ښکاره نه وی، بلکه پټ اسباب وی، په دې وجه دوی داسې ګڼړی چه دا کار بغير د څه ظاهری سبب نه اوشو - په خلاف د معجزې نه چه په دې کښې د طبعی اسبابو مطلق څه دخل نه وی دغه نيغ په نيغه د قدرتِ حق کار وی. په دې وجه ئې د دې نسبت په قرآن شريف کښې الله تعالیٰ طرف ته کړے دے: وَلٰكِنَّ اللّٰهَ رَمٰى: -

د دې نه معلومه شوه چه د معجزې او سحر حقيقتونه بالکل مختلف او جُدا دی، حقيقت پيژندونکی ته پکښې هيڅ التباس ( کډون ) نيشته عوامو ته التباس کيدے شو مګر الله تعالیٰ د دې التباس لرې کولو د پاره هم داسې فرقونه پکښې کيخودل چه په دې سره خلق د دوکے نه بچ شی -

لنډه دا ده چه د فرعون قوم هم د موسیٰ عليه السلام معجزے له د خپلو جادوګرو د کارونو نه څه ممتاز او مختلف بيامونده و - په دې وجه

په دے مجبوره شو چه دا اُو وائی چه دا الوئے ماهر جادوګر دے چه عام جادوګران د ده په شان کار نه نهٔ شي خوډلے۔

يُرِيدُ اَنْ يُّخْرِجَكُمْ مِّنْ اَرْضِكُمْ فَمَاذَا تَاْمُرُوْنَ: يعنى دا ماهر جادوګر داغواړى چه تاسو لره ستاسو د ملک نه اُو باسى نو اُوس او وائى چه ستاسو څهٔ رائے ده؟ څهٔ مشوره ورکوئى؟ -

قَالُوْٓا اَرْجِهْ وَاَخَاهُ وَاَرْسِلْ فِى الْمَدَآئِنِ حٰشِرِيْنَ ﴿١١١﴾

اوئے وئيل مهلت ورکړه ده ته او ورور ده ته او اُو ليږه په ګټو (ښهرونو) ترجمع کوُنکى -

يَاْتُوْكَ بِكُلِّ سٰحِرٍ عَلِيْمٍ ﴿١١٢﴾ وَجَآءَ السَّحَرَةُ فِرْعَوْنَ

چه راجمع کړى تا ته کوم چه وى کامل جادوګر - او راغلل جادوګر فرعون ته

قَالُوْٓا اِنَّ لَنَا لَاَجْرًا اِنْ كُنَّا نَحْنُ الْغٰلِبِيْنَ ﴿١١٣﴾ قَالَ

اوئے وئيل زمونږ د پاره څهٔ مزدورى شته که مونږ غالب شو - اوئے وئيل

نَعَمْ وَاِنَّكُمْ لَمِنَ الْمُقَرَّبِيْنَ ﴿١١٤﴾ قَالُوْا يٰمُوْسٰٓى

هاں او بے شکه تاسو به مقربين شئ - اوئے وئيل اے موسىٰ ع

اِمَّآ اَنْ تُلْقِىَ وَاِمَّآ اَنْ نَّكُوْنَ نَحْنُ الْمُلْقِيْنَ ﴿١١٥﴾

ياخو ته اوغورزوه او يا مونږه غورزوُو -

قَالَ اَلْقُوْا ۚ فَلَمَّآ اَلْقَوْا سَحَرُوْٓا اَعْيُنَ النَّاسِ وَ

اوئے وئيل اوغورزوئى بيا چه کله هغو او غورزول اُوئے تړلے سترګے د خلقو او

اسْتَرْهَبُوْهُمْ وَجَآءُوْ بِسِحْرٍ عَظِيْمٍ ﴿١١٦﴾ وَاَوْحَيْنَآ

ووئے ډيرولے اُويرول او راوئے وړو لوئے جادو - او مونږ حکم اُو ليږه

إِلَىٰ مُوسَىٰٓ أَنْ أَلْقِ عَصَاكَ ۖ فَإِذَا هِيَ تَلْقَفُ مَا يَأْفِكُونَ ﴿١١٧﴾

موسیٰ ع ته چه او غورزوه خپله همسا - پس هغه به تیرول شروع کړو دغه تماشے چه دوی جوړ کړی و

فَوَقَعَ الْحَقُّ وَبَطَلَ مَا كَانُوا يَعْمَلُونَ ﴿١١٨﴾ فَغُلِبُوا

پس ظاهر شو حق او باطل شو هغه چه دوی کول - پس اوئے بائیلله

هُنَالِكَ وَانْقَلَبُوا صَاغِرِينَ ﴿١١٩﴾ وَأُلْقِيَ السَّحَرَةُ

دغلته او واپس شو ذلیله - او پریواته جادوګر

سَاجِدِينَ ﴿١٢٠﴾ قَالُوا آمَنَّا بِرَبِّ الْعَالَمِينَ ﴿١٢١﴾ رَبِّ

په سجده کښے - اوئے وئیل موږ ایمان راوړو په پروردګار د عالم - کوم چه رب دے

مُوسَىٰ وَهَارُونَ ﴿١٢٢﴾

د موسیٰ ع او د هارون ع -

# لنډ تفسیر

(غرض مشوره ئے اوکړه دوی (فرعون ته) او وئیل چه ته ده (موسیٰ علیه السلام) ته او د ده رور (هارون علیه السلام) ته مهلت ورکړه او په خپلو خلقو د حکومت کښے) ښهرونو ته (راغونډونکو یعنی) چپړاسیانو له (حکمنامے ورکړه) او لیږه چه دوی د ټولو ښهرونو نه) ټولو ماهرانو جادوګرانو له (جمع کړی) تا ته ئے حاضر کړی (چنانچه داسے انتظام اوکړے شو) او هغه جادوګران فرعون ته حاضر شو (او) اوئے وئیل چه که موږه (په موسیٰ علیه السلام) غالب راغلو نو (آیا) موږ ته به څه لویه صله (او انعام) ملاؤ شی؟ فرعون او وئیل چه هاں (انعام به هم لوئے ملاؤ شی) او (په دے د پاسه به دا اوشی چه) تاسو به (ځما) په نزدیکانو خلقو کښے داخل شئ؛

(غرض موسیٰ علیه السلام ته دَ فرعون دَطرفه دَدې خبر ورکړے شو ... او دَ مقابلے دَپاره تاریخ مقرر شو او په دغه تاریخ ټول په یومیدان کښې جمع شو دَغه وخت) دے ساحرانو (موسیٰ علیه السلام ته) عرض اوکړو چه اے موسیٰ (مونږ تا ته اختیار درکوُو) چه ته (اوّل خپله همسا میدان ته) واچوَه (کومے ته چه ته خپله معجزه والئے) او یا (ته اووایه نو) مونږ (خپلے رسئ او همسا کانے میدان ته) غورزَوُو (موسیٰ علیه السلام) او فرمائیل چه تاسو (اوّل) اُوغورزَوَئ هرکله چه هغوی (خپلے رسئ او همسا کانے) او غورزَولے نو (په جادو سره ئے دَ لیدونکو) خلقو لره ئے نظرونه بند کړل (چه په دے سره هغه همسا کانے او رسئ دَمارانو په شکل کښے خوزیدونکی لیدے شو) او په دوی ئے هیبت راوستو او یو قسم لوئے جادو ئے او خودَلو او (دغه وخت) مونږ موسیٰ (علیه السلام) ته (په ذریعه دَ وحئ) حکم اوکړو چه ته خپله همسا اوغورزَوه (لکه څنګه چه غورزَولے شی) پس دَ همسا غورزَول وُو چه هغے (داژدها جوړیدو سره) دَدوی ټولے جوړے کړے تماشے تیرَوَل شروع کړو پس (دغه وخت) حق (رحقوالے) ظاهر شو او دوی (یعنی ساحرانو) چه څۀ جوړکړی وُو ټول لاړه ختم شو پس دغو خلقو (یعنی فرعون او دَدۀ قوم) په دے موقعه او بائیلله او بیئۀ ذلیله شو (او حیران پاتے شو) او کوم چه ساحران وُو هغوی په سجده پریوتل (او په چغو چغو ئے) اووئیل چه مونږ ایمان راوړو په رب دَمخلوقاتو کوم چه دَموسیٰ او هارون (علیهما السلام) هم رب دے۔

# معلومات او مسئلے

په دے ایاتونو کښے دَموسیٰ علیه السلام باقی قصه ذکر دہ چه هرکله فرعون دَحضرت موسیٰ علیه السلام ښکاره معجزه اولیده چه دَ همسا نه مارجوړ شو او بیا چه کله ئے په لاس کښے اونیوُو نو بیا همسا جوړه شوه او چه لاس ئے دَګریوان نه راوویستلو نو ځلیدو۔ دَ دے قدرتی ښنو دَلیدو خو تقاضا داوَه چه په موسیٰ علیه السلام ئے ایمان راوړے وے مګر لکه څنګه چه دَ باطلو خلقو عام طرز دے چه په حق دَپردے غورزَولو

او د انکار کولو د پاره صحیح شے غلط ښکاره کوی - فرعون او د ده قوم سردارا نو
هم خلقو ته دا اُووے چه دا لوئے ماهر جادوګر دے او د ده مقصد دا دے
چه ستا سو په ملک قبضه اوکړی تا سو تړ اوباسی ، اوس تاسو اووایئ چه
څه کول پکار دی؟

د فرعون قوم چه دا واوریدل نو جواب ئے ورکړو : اَرْجِهْ وَاَخَاهُ وَاَرْسِلْ
فِي الْمَدَآئِنِ حٰشِرِيْنَ يَاْتُوْكَ بِكُلِّ سٰحِرٍ عَلِيْمٍ ، په دے کښے لفظ د : اَرْجِهْ : د
: اِرْجَاءٌ : نه مشتق دے چه معنیٰ ئے مهلت ورکول او امید ورکول دی او
: مَدَآئِنْ : د : مَدِيْنَةٌ : جمع ده چه هر لوئے ښهر ته وئیلے شی : حٰشِرِيْنَ :
د : حَاشِرٌ : جمع ده چه معنیٰ ئے ده پورته کونکے او جمع کونکے ، مراد د دے نه
سپاهیان دی چه د ملک د اطرافو نه جادوګرانو لره جمع کړی راولی -

مطلب د ایت دا دے چه د قوم خلقو دا مشوره ورکړه چه که دے
جادوګر وی او د جادو په زور زمونږ ملک فتح کول غواړی نو د ده
مقابله زمونږ د پاره څه مشکله نه ده - زمونږ په ملک کښے لوئے لوئے
ماهران جادوګران دی هغوی به ده لره پچپل جادو سره شکست ورکړی
څه سپاهیان د ملک اطرافو ته اولیږئ چه د هر ښهر نه جادوګران
را اُوغواړی را اُبلی -

وجه دا وه چه په دغه زمانه کښے د جادو (سحر) رواج عام وه او په
عامو خلقو د جادوګرانو اقتدار وه - او شاید حضرت موسیٰ علیه السلام ته
د همسا او سپین لاس معجزه په دے وجه ورکړے شوه چه د جادوګرانو سره
مقابله اوکړی او د معجزے په مقابله کښے د جادو رسوائی ټول خلق په
سترګو سره اووینی - لکه چه د الله تعالیٰ پخوانے عادت هم دا دے چه د هرے
زمانے پیغمبر ته د دغے زمانے مناسب معجزے ورکوی - د حضرت عیسیٰ علیه
السلام په زمانه کښے یونانی حکمت او طب ښه په عروج او ترقئ باندے وه ، نو
هغهٔ ته ئے معجزه دا ورکړه چه د مور نه پیدا ړانده به ئے جوړول او جذامیان
به ئے ښه کول ، د نبی کریم صلی الله علیه وسلم په زمانه کښے د عربو د ټولو نه
لوئے کمال فصاحت او بلاغت وه نو د نبی کریم صلی الله علیه وسلم د ټولو نه لویه

معجزه ئے قرآن شریف جوړ کړو چه د دے د مقابلے نه ټول عرب او عجم عاجزه شو۔

؛ وَجَآءَ السَّحَرَةُ فِرْعَوْنَ قَالُوْٓا اِنَّ لَنَا لَاَجْرًا اِنْ كُنَّا نَحْنُ الْغٰلِبِيْنَ ۝ قَالَ نَعَمْ وَاِنَّكُمْ لَمِنَ الْمُقَرَّبِيْنَ ۝ : يعنى د خلقو د مشورے مطابق د ټول ملک نه د جادوګرو د جمع کولو انتظام اوشو، او دا جادوګران فرعون ته را اورسيدل، نو دوی د فرعون نه تپوس اوکړو چه که مونږ په موسیٰ (عليه السلام) غالب راغلو نو مونږ ته به د دے څۀ اجرت او انعام هم ملاؤشی؟ فرعون اووے چه هاں اجرت به هم ملاؤشی، او په دے د پاسه به دا انعام وی چه تاسو ټول به څما په مقربينو کښے داخل شئ۔

دا جادوګران کوم چه د حضرت موسیٰ عليه السلام د مقابلے د پاره د ټول ملک نه جمع کړے شوی وُو، د دوی په شمار کښے تاريخی روايتونه مختلف دی د نهو سوؤ نه واخله تر درے لاکو پورے روايتونه دی۔ د دوی سره د همسا کا نو او رسو يو انبار وو چه په درے سوه اوښا نوئے بار کړے راوړے وے (قرطبی)

فرعونی جادوګرو د راتلو سره اول خبره د سوداباز ئ شروع کړه چه مونږ مقابله اوکړو او غالب راشو نو مونږ ته به څۀ ملاؤشی؟ وجه دا ده چه د باطلو خلقو په وړاندِ صرف د دُنيا فائدے وی، په دے وجه د هر کار کولو نه اول د معاوضے او اجرت سوال مخے ته راځی، په خلاف د پيغمبرانو عليهم السلام نه او د دوی د نائبينو نه چه دوی په هر قدم دا اعلان کوی چه

: وَمَآ اَسْـَٔلُكُمْ عَلَيْهِ مِنْ اَجْرٍ اِنْ اَجْرِىَ اِلَّا عَلٰى رَبِّ الْعٰلَمِيْنَ : يعنى مونږ چه کوم پيغام د حق ستاسو د فائدے د پاره تاسو ته رسوؤ په دے ستاسو نه څۀ معاوضه نه غواړو، بلکه زمونږ معاوضه صرف په رب العٰلمين باندِ ده۔ فرعون دوی ته اووے چه تاسو خلق اجرت غواړئ، زۀ به اجرت هم درکړم او د دے نه زياتی دا هم چه تاسو به د شاهی دربار مقرب جوړ کړم۔

د فرعون سره د دے خبرو نه پس ساحرانو د حضرت موسیٰ عليه السلام سره د مقابلے د ځائے او وخت تعين اوکړو۔ نو يو اوارټ ميدان او د اختر د ورځے

دَ نمر اوچتید دنه پس وخت کړ دے کار دَ پاره مقرر شو، ځکه چه دَ قرآن شریف په نورو ایاتو نو کښے دی: قَالَ مَوْعِدُكُمْ يَوْمُ الزِّينَةِ وَأَنْ يُحْشَرَ النَّاسُ ضُحًى:

په بعض روایتو نو کښے دی چه په دے موقع حضرت موسیٰ علیه السلام دَ ساحرانو سردارته اووے چه که زهٔ په تاسو غالب راغلم نو آیا تاسو به په ما ایمان راوړئ؟ هغهٔ اُووے چه زمونږ سره داسے جادو دے چه په دے څوک دَ سره غالب کیدے نه شی په دے وجه زمونږ دَ مغلوب کیدو هیڅ سوال نه پیدا کیږی، او که بالفرض ته غالب راغلے نو مونږ به علی الاعلان دَ فرعون په وړاندے په تا ایمان راوړو ـ (مظهری وقرطبی)

قَالُوا يٰمُوسٰى إِمَّا أَنْ تُلْقِيَ وَإِمَّا أَنْ نَكُونَ نَحْنُ الْمُلْقِينَ: دَ اِلقاء معنیٰ غورزول دی مراد دا دے چه کله دَ مقابلے میدان ته اُورسیدل نو جادوګرو حضرت موسیٰ علیه السلام ته اُووے چه یا ته اول او غورزوه یا مونږ مخکښے غورزوونکی شو، دَ جادوګرو دا وینا دَ خپلے بے فکرئ او لوئي ښودلو دَ پاره وه چه مونږ دَ دے پرواه نه کوو چه ابتداء زمونږ نه اوشی، ځکه چه مونږ په هرحالت کښے په خپل فن اطمینان لرو، دَ دوی دَ بیان دَ انداز نه خو داسے معلومیږی چه غوښتل خو ئے دا چه اول وار دَ دوی شی ځکه دَ قوت ښکاره کولو دَ پاره ئے دَ حضرت موسیٰ علیه السلام نه تپوس اوکړو چه اول ته وار کول غواړے او که مونږ اوکړو ـ

حضرت موسیٰ علیه السلام دَ دوی په منشاء پوهه شو نو په خپل معجزه دَ مکمل اطمینان په سبب ئے اول موقعه دوی له ورکړه ـ او اُووئے فرمائیل چه: اَلْقُوْا: یعنی تاسو اول او غورزوئ ـ

او ابن کثیر فرمائی چه جادوګرو دَ حضرت موسیٰ علیه السلام سره دَ ادب او احترام معامله اوکړه چه دَ اول موقعے ئے دویته دَ ورکولو پیش کش اوکړو دَ هغے دا اثر وو چه دوی ته دَ ایمان توفیق اوشو ـ

دلته یو سوال دا پیدا کیږی چه اول خو جادو او بیا په خپله یو حرام کار دے او بیا کله چه هغه یو پیغمبر ته دَ شکست ورکولو دَ پاره استعمالولے شی نو بے شکه کفر دے ـ نو بیا موسیٰ علیه السلام څنګه دے خلقو ته دَ اجازت ورکولو

دَ پاره فرمائی: اَلْقُوْا: یعنی تاسو اوغورزوئ - لیکن دَ حال په حقیقت چه غور اوشی نو داسوال ختمیږی - ځکه چه دلته خو یقینی وَه چه داخلق به خپل سحر دَمقابلې دَپاره خامخا پیش کوی، خبره صرف په اوّل او په ورستی کیدو وَه، په دے کښے حضرت موسیٰ علیه السلام دَ خپلے اُوچتے ارادے دَ ثبوت ورکولو دَ پاره دوی ته موقع ورکړه، دَدے نه علاوه په دے کښے یوه فائده داهم وَه چه اول دوی یعنی جادوګران دَ خپلو همساګانو اورسونه ماران جوړکړی، نو بیا به دَ موسیٰ علیه السلام دَ همسا معجزه صرف دانه چه هغهٔ به هم مار جوړ شی - بلکه داسے به ظاهر شی چه دَ جادوګرو ټول ماران به تیر کړی چه په اول قدم باندِ جادوګری شکست اوخوری - (بیان القرآن)

او دا هم وئیلے شی چه دَ موسیٰ علیه السلام داارشاد دوی ته دَجادوګرئ کولو اجازت ورکول نهٔ وُ بلکه دَدوی دَ رسوائئ ښکاره کولو دَپاره وُو چه ښهٔ ده تاسو اوغورزوئ نو ګورئ چه ستاسو دَجادوګرئ څهٔ انجام کیږی -

فَلَمَّآ اَلْقَوْا سَحَرُوْٓا اَعْيُنَ النَّاسِ وَاسْتَرْهَبُوْهُمْ وَجَآءُوْ بِسِحْرٍ عَظِيْمٍ: یعنی کله چه جادوګرانو خپلے همساګانے اورسئ اُوغورزولے نو دَ خلقو نظر بندی ئے اُوکړه او په دوی باندِ ئے هیبت غالب کړو او لوئے جادوئے اوخودلو -

دَدے آیت نه معلومه شوه چه دَدے خلقو جادو یو قسم نظر بندی او خیال وُهٔ چه لیدونکو ته به دا محسوس کیده چه دا همساګانے اورسئ ماران جوړ شو منډے وَهی حال دا دے چه دوی به په واقع کښے هم هغه شان همساګانے او رسئ وے - ماران به نه وُو جوړ شوی - دا یو قسم دَ مسمریزم وَه چه اثر ئے دَ انسان خیال او نظر مغلوب کوی -

لیکن دَدے نه دا نهٔ لازمیګی چه دَ سحر صرف دا یو قسم دے - دَ سحر په ذریعه ماهیت نهٔ شی بدلیدے ځکه چه څهٔ شرعی یا عقلی دلیل دَدے په نشتوالی قائم نهٔ دے، بلکه دَ سحر مختلف قسمونه په واقعاتو سره ثابت دی - کله خو صرف دَ لاس چالاکی وی چه دَدے په ذریعه لیدونکو ته مغالطه لګی - کله صرف خیال او نظر بندی وی لکه په مسمریزم سره - او چرته په بدلیدو دَ ماهیت سره هم کیدے شی - چه دَ انسان نه کټه جوړه شی - نو دا هم دَ څهٔ شرعی یا عقلی

دلیل نه خلاف نه ده -

وَاَوْحَيْنَآ اِلٰى مُوْسٰٓى اَنْ اَلْقِ عَصَاكَ فَاِذَا هِىَ تَلْقَفُ مَا يَاْفِكُوْنَ: یعنی موږ موسیٰؑ ته حکم اوکړو چه خپله همسا اوغورزوه - هغهٔ په زمکه پریوتو سره د ټولو نه لوئے مارجوړشو د دوی ټول ماران ئے تیرول شروع کړه کوم چه جادوګرو په جادو سره ښکاره کړی وو -

په تاریخی روایتو نو کښے دی چه د زرګونو جادوګرو په زرګونو همساګانے اورسئ چه کله ماران جوړشو منډے ئے وهلے نو ټول میدان د ماراونو ډک شو او یو عجیبه شان هیبت په ټولو جمع شوو خلقو باندِ راغلو . لیکن کله چه د حضرت موسیٰ علیه السلام همسا د یوے لوئے اژدها په صورت کښے مخے ته راغله نو دا ټول ماران ئے تیرکړل ختم ئے کړه -

فَوَقَعَ الْحَقُّ وَبَطَلَ مَا كَانُوْا يَعْمَلُوْنَ: یعنی حق ظاهرشو او څهٔ چه ساحرانو جوړکړی وُو هغه ټول باطل او هوا شو -

فَغُلِبُوْا هُنَالِكَ وَانْقَلَبُوْا صٰغِرِيْنَ: یعنی په دے موقع دوی ټولو دباټیلله او بنهٔ رسوا شو -

وَاُلْقِىَ السَّحَرَةُ سٰجِدِيْنَ ۝ قَالُوْٓا اٰمَنَّا بِرَبِّ الْعٰلَمِيْنَ ۝ رَبِّ مُوْسٰى وَهٰرُوْنَ ۝: یعنی جادوګر په سجده کولو مجبوره شو او اُوئے وئیل چه موږ په رب العلمین یعنی په رب د موسیٰ او هارون ایمان راوړو -

په سجده کولو مجبوره شو - اُو وئیل دے طرف ته ئے اشاره اوکړه چه د موسیٰ علیه السلام معجزه ئے اولیده داخلق څهٔ داسے بے ځانه او مجبوره شو چه بے اختیاره په سجده پریواته - او دے طرف ته هم اشاره کیدے شی چه الله تعالیٰ ورلره توفیق ورکړو په سجده ئے اوغورزول - او د رب العلمین سره ئے " رَبِّ مُوْسٰى وَهٰرُوْنَ ۝" زیات کړو خپله خبره ئے د فرعون په مقابله کښے واضحه کړه - ځکه چه دغه بے وقوفه به خپل ځان ته رب العلمین وئیل په دے وجه ئے " رَبِّ مُوْسٰى وَهٰرُوْنَ " او وئیل دهٔ ته ئے اُو خوده چه موږ ستا د خدائیئ قائل پاتے نه شو -

---

قَالَ فِرْعَوْنُ اٰمَنْتُمْ بِهٖ قَبْلَ اَنْ اٰذَنَ لَكُمْ ج

او وې فرعون آیا تاسو ایمان راوړو په دهٔ مخکې د اجازت نه ورکولو ستاسو ته

اِنَّ هٰذَا لَمَكْرٌ مَّكَرْتُمُوْهُ فِي الْمَدِيْنَةِ لِتُخْرِجُوْا

دا خو مکر دے چه جوړ کړے دے تاسو ټولو په دے ښار کښې چه اوباسئ د

مِنْهَآ اَهْلَهَا ج فَسَوْفَ تَعْلَمُوْنَ ﴿۱۲۳﴾ لَاُقَطِّعَنَّ

دے ښهر نه د دے اوسیدونکی بس اوس به تاسو ته معلومه شي - زهٔ به خامخا پرې کړم

اَيْدِيَكُمْ وَاَرْجُلَكُمْ مِّنْ خِلَافٍ ثُمَّ لَاُصَلِّبَنَّكُمْ

ستاسو لاس او د بل طرف نه خپه بیا به په سولۍ کړم

اَجْمَعِيْنَ ﴿۱۲۴﴾ قَالُوْٓا اِنَّآ اِلٰى رَبِّنَا مُنْقَلِبُوْنَ ﴿۱۲۵﴾ ج وَ

تاسو ټولو لره - هغو اووے زمونږ خو خپل رب طرف ته واپس تلل دی - او

مَا تَنْقِمُ مِنَّآ اِلَّآ اَنْ اٰمَنَّا بِاٰيٰتِ رَبِّنَا لَمَّا جَآءَتْنَا ط

ستا زمونږ سره دا دشمني ده چه او منلے مونږ د خپل رب نښو لره کله چه هغهٔ مونږ ته راغلے -

رَبَّنَآ اَفْرِغْ عَلَيْنَا صَبْرًا وَّتَوَفَّنَا مُسْلِمِيْنَ ﴿۱۲۶﴾ ع

اے زمونږ ربه را توئے کړے په مونږ صبر او وفات کړے مونږ مسلمانان -

وَقَالَ الْمَلَاُ مِنْ قَوْمِ فِرْعَوْنَ اَتَذَرُ مُوْسٰى

او اووے سردارانو د قوم د فرعون د لے پریږدے ته موسیٰ لره

وَقَوْمَهٗ لِيُفْسِدُوْا فِي الْاَرْضِ وَيَذَرَكَ

او د دهٔ قوم لره چه فساد جوړ کړي په زمکه کښې او پاتے کړي تا لره

وَ اٰلِهَتَكَ ؕ قَالَ سَنُقَتِّلُ اَبْنَآءَهُمْ وَنَسْتَحْيٖ

او ستا بتانو لره - او وئے وئیل اوس به مونږ وژنو د دوی ځامن او ژوندی به پریږدو

نِسَآءَهُمْ ۚ وَاِنَّا فَوْقَهُمْ قٰهِرُوْنَ ﴿۱۲۷﴾

د دوی ښځے - او مونږ په دوی زور آور یو -

# لنډ تفسیر

فرعون ډیر اوډیږید و چه هسے نه ټول رعیت مسلمانان شی نو ځکه نه ئے خبره جوړه کړه ساحرانو ته ئے او وے چه هاں تاسو په موسیٰ (علیه السلام) ایمان راوړو په غیر د دے چه زه تاسو ته اجازت اوکړم بے شکه (معلومیږی چه) دا (کوم چه د زرګری (د چل ول) د جنګ په طور اوشو) یوه کارروائی وه چه په دے ستاسو عمل درآمد شوے دے په دے ښار کښے (ریت) سازش شوے دے چه ته دا سے اوکړه مونږ به دا سے اوکړو بیا به دغه شان کته بیلا د ظاهر کړو او دا کارروائی اوډیو بل سره جوړه ختمو په دے وجه کړے دے) چه تاسو ټول (یوشئ) د دے ښار نه د دے ځائے او سیدونکی با هر او باسئ را و بیا په فارغ زړه ټول یوځائے دلته حکومت کوئ) پس (ښه ده) اوس به تاسو ته حقیقت معلوم شی را وخغه دا چه) زه به ستاسو د یو طرف لاس او د بل طرف خپه پریکړم بیا به تاسو ټولو لره په سولئ او خیژ وم (چه نور درنه عبرت واخلی) دوی جواب ورکړ وچه (هیڅ پرواه نیشتے) مونږ چه مړه شو (نو څه نا کاره ځائے ته خو به لاړ نه شو بلکه) خپل مالک ته به لاړ شو (کوم ځائے چه د هر قسم امن او راحت دے پس په دے کښے زمونږ نقصان څه دے) او تا په مونږ کښے کوم عیب لیدلے دے (چه د ومره په شور زوګ ئے) بغیر د دے چه مونږ د خپل رب په حکمونو ایمان راوړو (لیس دا څه د عیب خبره نه ده، بیا ئے د ده نه مخ واړا وه د الله تعالیٰ نه ئے دعا او غوښتله چه) اے زمونږ ربه! په مونږ صبر را تو ئے کړے (د چه کړ دے سختی کوی نو چه مونږ ثابت قدم پاتے شو) او زمونږ روح په حالت د اسلام کښے

او باسے (چه هسے نه دَ ده دَ سختئ نه پریشانه شوا و کا ایمان نه خلاف څه خبره
وانه اونه شی) او (هر کله چه دَ موسیٰ علیه السلام دا عظیمه معجزه په ډاګه ښکاره
شوه او ساحرانو ایمان راوړوا و بعضی نورخلق هم دَ دوی تابع شو دغه وخت)
دَ فرعون دَ قوم سردارانو (کوم چه دَ حکومت مشران وُو. دا ئے اُولیده چه بعضے خلق
مسلمانان کیږی فرعون ته) اُووے چه آیا ته موسیٰ (علیه السلام) او دَ ده قوم
داوتا بعینو لره هم دَ غسے (خپلے خوښے ته آزاد) پاتے کوے چه دوی په ملک کښے
فساد خوروی (فساد دا چه خپله ډله زیاته کړی چه په آخر کښے ئے یره دَ
بغاوت ده) او ده (یعنی موسیٰ علیه السلام) تا لره او ستا (تجویز کړو) معبودانو
لره پاتے کوی (یعنی دَ دوی دَ معبود کیدو نه منکر دی او دَ موسیٰ علیه السلام
قوم هم ور سره په دے عمل کښے شریک دے. څکه دده دے انتظام اُوکړے) فرعون اُووے
چه (چه فی الحال دا انتظام مناسب معلومیګی چه) مونږ به هم دَ دے خلقو
ځامنو لره قتلول شروع کړو (چه دَ دوی زور زیات نه شی) او (چونکه دَ
ښځو په زیاتید وکښے څه یره نیشته او دا رنګ مونږ ته دَ خپل کار او خدمت
دَ پاره هم ضرورت دے په دے وجه) ښځو لره به ئے ژوندئ پریدو او
مونږ په هرشان په دوی زورآوَر یو (په دے انتظام کښے به هیڅ کړانه نه وی)۔

## معلومات اومسئلے

دَ دے نه په وړاندِ ایاتونو کښے ذکر وُو چه فرعون دَ خپل قوم دَ سردارانو
په مشوره دَ موسیٰ علیه السلام دَ مقابلے دَ پاره کو مو ساحرانو لره دَ
ټول ملک نه راجمع کړی وُو هغو دَ مقابلے په میدان کښے او بائیللَه او صرف
دا نه چه خپل هار ئے او منلو بلکه په حضرت موسیٰ علیه السلام ئے ایمان
راوړو۔

په تاریخی روایتو نو کښے دی چه دَ جادوګرو سرداران مسلمانان شو
چه دا ئے اولیدل دَ فرعون دَ قوم نه شپږ لاکو خلقو ایمان په حضرت موسیٰ
علیه السلام باندِ راوړو او اعلان ئے اوکړو۔

دَ دے مقابلے او مناظرے نه وړاندِ خو صرف دوه حضرت موسیٰ علیه السلام

او هارون علیه السلام دَ فرعون مخالف وُو - دا وخت دَ ټولو نه لوئے جادوګران کوم چه په قوم کښې دَ اقتدار مالکان وُو او دَ دوی سره شپږ لاکه عوام مسلمانان شو یو لوئے طاقت په مقابله کښې راغے -

دغه وخت دَ فرعون پریشانی او ګرځ وَرِ کیدل بے ځایه نه وُو - مګر ده دے لره پته کړه دَ یو چالاک او هوښیار سیاست دان په انداز کښې ئے اول خو په جادوګرانو دَ بغاوت دا الزام او نکاؤه چه تاسو دَ حضرت موسیٰ علیه السلام سره پټه سازش اوکړو دا کار مُو دَ خپل ملک او ملت ته دَ نقصان رَسَولو دَ پاره کړے دے -

اِنَّ هٰذَا لَمَكْرٌ مَّكَرْتُمُوْهُ فِي الْمَدِيْنَةِ : یعنی دا یو سازش دے کوم چه تاسو دَ مقابلے میدان ته دَ راتلو نه اوّل په ښهر کښې په خپل مینځ کښې کړے وُو - او بیا ئے جادوګروته اُووے : اٰمَنْتُمْ بِهٖ قَبْلَ اَنْ اٰذَنَ لَكُمْ : یعنی آیا تاسو ځما دَ اجازت نه اوّل ایمان قبول کړو - دا استفهام انکاری په طور دَ زجر او تنبیه وُه - او دَ خپل اجازت نه بغیر دَ ایمان راوړو ذکر ئے اوکړو خلقو ته ئے دَ دے یقین ورکولو کوشش کړے دے چه مونږ په خپله هم دا غوښتله چه که دَ موسیٰ علیه السلام حق والے واضح شی نو مونږ به هم دے اُومنو او خلقو ته به هم اجازت اوکړو چه دوی مسلمانان شی لیکن تاسو خلقو جلد بازی اوکړه - او په حقیقت با ندې دَ ځان پوهه کولو نه بغیر دَ سازش ښکار شوئی -

په دے چالاکئ سره خو یو طرف ته ئے دَ خلقو په وړاندې دَ حضرت موسیٰ علیه السلام معجزه او دَ جادوګرو اسلام دوه منلو لره ئے یو سازش اُګرځولو - دوی لره ئے په ښځوانی ګمراهئ کښې دَ مبتلا کولو انتظام اوکړو - او بل طرف ته ئے سیاسی چالاکی دا اوکړه چه دَ موسیٰ علیه السلام کار او دَ جادوګرو اسلام کوم چه خالص دَ فرعون دَ ګمراهئ ښکاره کَوَ لو دَ پاره وُو دَ قوم او عوام سره دَ دے هیڅ تعلق نه وُه دے لره ئے دَ یو ملکی او سیاسی مسئلے جوړولو دَ پاره اُووے : لِتُخْرِجُوْا مِنْهَآ اَهْلَهَا : یعنی تاسو خلقو دا سازش ځکه اوکړو چه تاسو غواړئ چه په ملک دَ مصر با ندې تاسو غالب راشئ او دَ دے اُوسیدُونکی

دَ دے ځائے نه اوباسئ - دَ دے چالاکو نه پس ئے په دے تهولو دَ خپل رُعب او هیبت اوېرے پریستلو دَ پاره جادوګرانو ته دهمکیانے ورکول شروع کړل اول ئے په مُبهم یعنی غیر واضح انداز کښے اووے: فَسَوْفَ تَعْلَمُوْنَ: یعنی تا سو به اوس او وینئ چه ستاسو دَ دے سازش به څهٔ انجام شی - دَ دے نه پس ئے ورته ښکاره کړه: لَاُقَطِّعَنَّ اَیْدِیَکُمْ وَاَرْجُلَکُمْ مِّنْ خِلَافٍ ثُمَّ لَاُصَلِّبَنَّکُمْ اَجْمَعِیْنَ: یعنی زهٔ به ستاسو لاسو خپے دَ مختلفو طرفو نو نه پریکړم تا سو تهول به په سولئ اوخیژوم - دَ مختلفو طرفو نو نه دَ پریکولو مطلب دا دے چه ښئ لاس او کینړه خپه، چه دواړه طرفونه پرِ زخمی اوبد شکله او بے کاره شی -

فرعون په دے بد حالئ دَ قابو موند وا و دَ خپلو دربا ریانو او عوامو دَ قابو کولو پوره تدبیرونه کړی وُو، او دَ دهٔ ظالمانه سزاګانے دَ وړاندِ نه مشهورے او په خلقو دَ لړزان راوستلو دَ پاره کافی وے -

لیکن ایمان او اسلام یو داسے زبردست قوّت دے چه کله دا دَ چا په زړهٔ کښے ځائے اوکړی نو بیا انسان دَ تهولے دُنیا او دَ دے دَ وَسائلو دَ مقابلے کولو دَ پاره تیار شی -

دے جادوګرو چه دَ اوس نه څو ګنټے اوّل فرعون لره خپل خدا ے منلو او دَ دے ګمراهئ به ئے خلقو ته هم تلقین کولو خو هر کله چه دَ اسلام کلمے ئے اولوستله نو په څو منټو کښے دننه سره په دوی کښے څهٔ شے پیدا شوے وُه، چه دَ فرعون دَ دے تهول دهکو په جواب کښے وائی:؟

اِنَّآ اِلٰی رَبِّنَا مُنْقَلِبُوْنَ: یعنی که ته مونږ قتل کړے نو څهٔ پرواه نیشته مونږه به دَ خپل رب خواته لاړ شو چه هلته به مونږ ته دَ هر قسم راحت ملاؤ شی - دا جادوګر چونکه دَ فرعون دَ دباؤ او زور نه ناخبره نه وُو، نو په دے وجه ئے دا او نهٔ وے چه مونږ ستا په قابو کښے نه شو راتللے یا به مونږه مقابله اوکړو بلکه دَ دهٔ دهمکی ئے صحیح او منله او جواب ئے ورکړو چه دا منو چه په دنیا کښے ته مونږ ته هر قسم سزا راکولو قادر ئے مګر مونږ دَ ایمان راوړونه پس دَ دُنیا ژوند هیڅ شے هم نه ګڼړو چه دَ دنیا نه لاړ شو نو دَ دے نه ښکلے ژوند به راته

ملاؤ شي - او د خپل رب ملاقات به مونه نصيب شي، او دا معنی هم كيدے شي چه په دے ژوند كښې ستا زړه څه غواړي اوكړه الخ به مونږ او تا سو ژ ربّ العٰلمين په وړاندې پيش كيږو، او هغۀ به د ظالم نه د مظلوم بدل واخلي دغه وخت به د خپل عمل نتيجه ستا مخې لره راشي - چنانچه په يو بل آيت كښې په دے موقع د دے جادوګرو دا الفاظ نقل دي : فَاقْضِ مَآ اَنْتَ قَاضٍ اِنَّمَا تَقْضِىْ هٰذِهِ الْحَيٰوةَ الدُّنْيَا : يعنى څه چه ستا زړه غواړي زمونږ په باره كښې حكم اوكړه بس دومره ده چه ستا حكم زمونږ په دے دُنيوي ژوند كښې چليدے شي او ستا د غصے په وجه زمونږ دا ژوند ختميدے شي، مګر د ايمان راوړو نه پس زمونږ په نظر كښې د دے دنيوي ژوند هغه اهميت باقي نه دے پاتے شوے كوم چه د ايمان د راوړو نه اول وو ځكه چه مونږ ته معلومه شوه چه دا ژوند د راحت يا تكليف سره هر څنګه چه وي خو تيريدونكے دے، فكر د هغے ژوند پكار دے د كوم نه پس چه مرګ نيشته، او د كوم چه راحت هم هميشه دے او تكليف هم -

د غور كولو مقام دے چه هغه خلق كوم چه د پرونه پورے په ډيرنا كاره كفر كښې اخته وو چه د فرعون پشان يو بے كاره انسان لره ئے خدائے منلو، د خدائے تعالىٰ د شان او لويئ نه بالكل نا آشنا وو، په دوى كښې يكدم دا سے انقلاب څنګه راغے چه اوس د تيرو ټولو عقيدو او عملونو نه يكسر توبه ګار شو په حق دين دومره پابند شو چه د روح وركولو ته هم تيار شو، او د دُنيا نه رخصت كيدل ځكه خوښوي چه خپل ربّ ته به لاړ شي -

او صرف دا نه چه د ايمان قوت او د الله تعالىٰ په لاره كښې د جهاد همت په دوى كښې پيدا شو، بلكه معلوميږي چه د حقيقي علم او معرفت دروازے دوى ته سپړدے شوے وے - دغه وجه ده چه د فرعون په مقابله كښې د دے زړه ور بيان سره ئے دا دُعا هم اوكړه :

رَبَّنَآ اَفْرِغْ عَلَيْنَا صَبْرًا وَّتَوَفَّنَا مُسْلِمِيْنَ : يعنى اے زمونږ پروردګاره مونږ ته كامل صبر راكړے او د اسلام په حالت كښې مونږ ته وفات راكړے -

په دے كښې اشاره دے معرفت طرف ته ده چه كه الله تعالىٰ نه غواړي نو د انسان قصد او همت هيڅ كار نه شي كولے په دے وجه ئے تر د ثابت قدمئ دُعا

اوکړه- او دا دُعا لکه څنګه چه د حق د معرفت ثمره او نتیجه ده، دغه شان د دے مشکل حل کولو بهترینه ذریعه ګوه- په کوم کښے چه دا خلق دغه وخت آخته وُو. ځکه چه صبر او ثابت قدمی هم هغه شے دے کوم چه انسان له د خپل دُشمن په مقابله کښے د کامیابیدو د ټولو نه لویه ذریعه ده-

د یورپ په تیر جنګ عظیم په اسبابو او نتیجو غور کوُونکی کمیشن خپل رپورټ کښے لیکلی وُو، چه مسلمانان کوم چه په الله او په آخرت باندِ ایمان لروُنکی دی دا هغه قوم دے کوم چه په میدانِ جنګ کښے د ټولو نه زیات بهادر او په مصیبت او مشقت باندِ په صبر کولو کښے د ټولو نه وړاندِ دی-

هم دا وجه ده چه دغه وخت په جرمنی قوموُنو کښے د جنګ په فنونو کښے ماهرانو د دے تاکید کولو چه په فوج کښے د دینداریٔ او د آخرت د یرے د پیدا کولو کوشش اوکړے شی- ځکه چه په دے سره چه کوم قوت حاصلیږی هغه په بل څۀ شی سره نه شی حاصلیدے (تفسیر المنار)

په ساحرانو کښے ایمانی انقلاب د موسیٰ علیه السلام د معجزے همسا او سپین لاس نه هم لوئے وُه

افسوس دے چه نن مسلمانان او مسلمانان حکومتونه د خپل ځان قوی کولو د پاره ټول تدبیرونه اختیار وی مګر دا اکوُئے هیر کړے دے کوم چه د قوت او یو کیدو روح دے- فرعونی جادوګرانو هم په اوّله مرحله کښے دے له معلومه کړے وه. او د ټول عُمر د خدائے نه د ناآشنا او منکرو کافرانو له په یو دم کښے نه فقط مسلمانان بلکه د یو عارف کامل او مجاهد او غازی جوړ د لو دا معجزه د حضرت موسیٰ علیه السلام د همسا او سپین لاس د معجزے نه څۀ کمه نه وه-

په فرعون د حضرت موسیٰ او هارون علیهما السلام د هیبت اثر

د فرعون چالاکیٔ او سیاسی دروغو خو د دهٔ د جاهل قوم د دهٔ سره په څوانیٔ ګمراهیٔ کښے د اخته یاتے کیدو څۀ سامان خو اوکړو، مګر دوی په دے عجیبه خبره پوهه نه شو چه د فرعون د غُصے ټول زور په جادوګرانو ختم شو، موسیٰ علیه السلام چه اصل مخالف وُه د دهٔ په باره کښے د فرعون د ژبے نه هیڅ اُونه وتل نو په دے باندِ دوی او وئیل:-

:اَتَذَرُ مُوسٰى وَقَوْمَهٗ لِيُفْسِدُوْا فِى الْاَرْضِ وَيَذَرَكَ وَاٰلِهَتَكَ: يعنى آيا ته موسىٰ عليه السلام او د ده قوم دغسى پاتى كوې چه دى تا لره او ستا معبودانو لره پاتى كوى په ملک كښې فساد خوروى۔

نو په دې خبره مجبوره شو فرعون او وې: سَنُقَتِّلُ اَبْنَآءَهُمْ وَنَسْتَحْيٖ نِسَآءَهُمْ وَاِنَّا فَوْقَهُمْ قٰهِرُوْنَ: يعنى د دوى معامله زمونږ د پاره د څهٔ فكر قابله نه ده موږ به د دوى سره دا كار اوكړو چه په دوى كښې كوم هلک پيدا كيږى هغهٔ به قتل كړو او صرف جينكو لره به ئے پاتى كوو چه د دې نتيجه به څهٔ وخت پس داسې اوشى چه د دوى قوم به د سړو نه خالى شى صرف ښځې به پاتې شى چه زمونږ خدمتګارانې وينځې به جوړې شى۔ او موږ په دې ټولو پوره قدرت لرو۔ چه څهٔ غواړو كولے شو، دوى زمونږ سره هيڅ نه شى كولے۔

تفسير ليكونكى عالمان فرمائى چه د قوم په دومره حركت وركولو بيا هم فرعون خو دا اُووې چه موږ به د بنى اسرائيلو هلكان قتلوو، ليكن د حضرت موسىٰ او هارون عليهما السلام په باره كښې دا وخت هم د ده په ژبه څهٔ خبره را نهٔ غلهٔ۔ وجه دا ده چه د دې معجزې او واقعې د فرعون په زړهٔ او دماغو باندې د حضرت موسىٰ عليه السلام سخت هيبت كينولے وهٔ۔

حضرت سعيد بن جبيرؒ فرمائى چه د فرعون حال داسې شوې وهٔ چه كله به ئے موسىٰ عليه السلام ليدو نو تشى بول به ئے بهيدل، او دا بالكل صحيح ده، د حق د هيبت هم دا حال وى: ؎

هيبت حق است اين از خلق نيست

(يعنى دا د حق تعالىٰ يره او هيبت دې د خلقو د طرفه نه دې)

او مولانا رومى فرمائى: ؎

هر كه ترسيد از حق و تقوىٰ گزيد ترسد از وے جن و انس و هر كه ديد

(يعنى څوک چه د الله تعالىٰ نه يريږى پيريان بنى آدم او هر شے د ده نه بيا يره كوى)

دلته د فرعون قوم چه دا اُووې، چه موسىٰ عليه السلام تا لره او ستا معبودانو لره پريدى فساد كوى۔ د دې نه معلومه شوه چه فرعون اګرچه د خپل قوم په وړاندې پخپله د خدائى دعويدار وهٔ او: اَنَا رَبُّكُمُ الْاَعْلٰى:

بهٔ وئیل، لیکن پخپله به ئې د بتانو عبادت هم کولو۔

او د بنی اسرائیلو د کمزوری کولو د پاره ئې دا ظالمانه قانون چه کوم هلک پیدا کیږی هغه به قتلولے شی په دویم وار نافذ کړو۔ د دے اولنی نمبر د حضرت موسیٰ علیه السلام د پیدائیش نه وړاندے شوے وه، چه د هغې ناکامه کیدل دوی تر دے وخته پورے لیدل، لیکن کله چه الله تعالیٰ یو قوم لره رسوا کول غواړی د هغې تدبیر ونه هم د غسے کیدے شی چه اخرکار د غه د دوی د تباهئ سامان شی۔ لکه چه وړاندې به معلومه شی چه د فرعون دے ظلم او زیاتی اخرکار دهٔ لره او د دهٔ قوم لره ډوب کړل۔

قَالَ مُوسٰى لِقَوْمِهِ اسْتَعِينُوْا بِاللّٰهِ وَاصْبِرُوْا ۚ إِنَّ

او وئیل موسیٰ قوم خپل ته مدد غواړئ د الله نه او صبر کوئ۔ بے شکه

الْأَرْضَ لِلّٰهِ ۙ يُوْرِثُهَا مَنْ يَّشَآءُ مِنْ عِبَادِهٖ ۖ وَ

زمکه د الله ده وارث کوی ئې چا لره چه او غواړی د خپلو بندګانو نه۔ او چه

الْعَاقِبَةُ لِلْمُتَّقِيْنَ ﴿۱۲۸﴾ قَالُوْٓا اُوْذِيْنَا مِنْ قَبْلِ

اخرکښې خیر دے پرهیز ونکو د پاره۔ هغوی اووے موږ لره تکلیفونه راکړی شوی ستا د

اَنْ تَاْتِيَنَا وَمِنْ بَعْدِ مَا جِئْتَنَا ۚ قَالَ عَسٰى رَبُّكُمْ

راتلو نه وړاندې او ستا د راتلو نه پس۔ او ئې وئیل نزدے ده چه ستا سو رب

اَنْ يُّهْلِكَ عَدُوَّكُمْ وَيَسْتَخْلِفَكُمْ فِى الْاَرْضِ

هلاک کړی ستاسو دشمن لره او خلیفه ګان کړی تاسو لره په ملک کښې

فَيَنْظُرَ كَيْفَ تَعْمَلُوْنَ ﴿۱۲۹﴾ وَلَقَدْ اَخَذْنَآ اٰلَ فِرْعَوْنَ

بیا او ګوری چه تاسو څنګه کار کوئ۔ او موږ او نیول فرعونیانو لره

۱۵ ع ۲ ۵

بِالسِّنِيْنَ وَ نَقْصٍ مِّنَ الثَّمَرٰتِ لَعَلَّهُمْ

په قحطونو کښې او د میوو په نقصان کښې چه دوی

يَذَّكَّرُوْنَ ﴿١٣٠﴾ فَاِذَا جَآءَتْهُمُ الْحَسَنَةُ قَالُوْا

نصیحت اومنی - بیا چه کله اورسیده دوی ته خیر نو اوئې وئیل

لَنَا هٰذِهٖ ج وَاِنْ تُصِبْهُمْ سَيِّئَةٌ يَّطَّيَّرُوْا بِمُوْسٰى

چه دا زمونږ لائق دے - او چه کله ورته اورسیده بده نو بد فالي به ئې گڼله په موسیٰ

وَمَنْ مَّعَهٗ ط اَلَآ اِنَّمَا طٰٓئِرُهُمْ عِنْدَ اللّٰهِ وَلٰكِنَّ

او د هغه په ملګرو - واوره چه د دوی بدبختي الله سره ده لیکن

اَكْثَرَهُمْ لَا يَعْلَمُوْنَ ﴿١٣١﴾ وَقَالُوْا مَهْمَا تَاْتِنَا بِهٖ

اکثر خلق نه پوهیږي - او اوئې وئیل چه کم هرڅومره ته راوړې

مِنْ اٰيَةٍ لِّتَسْحَرَنَا بِهَا لا فَمَا نَحْنُ لَكَ بِمُؤْمِنِيْنَ ﴿١٣٢﴾

مونږ ته نښې چه په هغې سره سحر اوکړې په مونږه خو مونږ هرګز په تا ایمان نه راوړو -

# لنډ تفسير

رد دے مجلس د خبرو اترو خبر چه کله بنی اسرائیلو ته اورسیده و نو په ډیر اوډیډل او موسیٰ علیه السلام ته په فریاد راغلل نو) موسیٰ (علیه السلام) خپل قوم ته اوفرمائیل چه په خدائے تعالیٰ بروسه ساتئ او ثابت قدم او سئ دیریږئ مه) دا زمکه د الله تعالیٰ ده چا له چه غواړی مالک (او حاکم) ئې جوړه وک د خپلو بندګانو نه (پس د څو ورځو د پاره ئې فرعون له ورکړے ده) او اخر کامیابي د هغو خلقو وی څوک چه د خدائے تعالیٰ نه یریږی پس تاسو په ایمان

او تقوی قائم اوسئ، انشاء الله تعالیٰ دا سلطنت به هم تاسو ته ملاویږي د ګلو وربځو د انتظار ضرورت دے) د قوم خلقو (د ډیر افسوس او غم نه چه د دے طبعي تقاضا ده شکایت مکرر کول دی) او وئیل چه (صاحبه) مونږ خو همیشه په مصیبت کښې یو ستا د تشریف راوړو نه وړاندې هم (چه فرعون به را باندې بیګار ونه کول او د زمانے زامن به ئے زمونږ ځامن قتلول) او ستا د تشریف راوړو نه پس هم (چه قسم قسم تکلیفونه راته رارسولے شي تر دے چه اوس بیا د اولاد د قتل تجویز مقرر شو) موسیٰ (علیه السلام) او فرمائیل (مه پریشانه کیږئ) ډیر زر به الله تعالیٰ ستا سو دشمن هلاک کړي او د هغوی په ځائے به تاسو په دے زمکه حاکمان جوړ کړي بیا به ستاسو عمل اوګوري (چه شکر او قدر ئے کوئ او طاعت کوئ، یا بے قدري او غفلت او نافرماني کوئ، په دے کښې ترغیب دے د طاعت او ویره ده د نافرمانئ نه) او (کله چه فرعون او د ده تابعینو مخالفت او انکار ته ملا اوتړله نو) مونږ فرعون والو له (د دے پارے چه اولے ګوګ کښے ذکر شوی عادت مطابق سره د فرعون موږ په دے مصیبتونو کښے کښے) اخته کړل را، قحط سالئ کښې (۲) او د میوو د پیدا وار په کمئ کښې، چه دوی (حقے خبرے له) اوپیژني را او په هغه شي قبوله ئے کړي) پس (بیا هم دوی پوهه نه شو بلکه دا حال ئے وه چه) کله په دوی خوشحالي (یعني ارزاني او پیداواري) راشي نو وائي چه دا خو زمونږ د پاره یکار وه (یعني مونږ نیک بخت یو دا زمونږ د خوش بختئ اثر دے، داسے نه وه چه دا ئے د خدائے نعمت ګنړلے وے شکر ئے ادا کړے وے او فرمانبرداري ئے اختیار کړے وے) او که دوی ته به بد حالي (لکه قحط او د پیدا وار کموالے لکه چه ذکر شو) راپیښه شوه نو د موسیٰ (علیه السلام) او د ده د ملګرو بد بختي به ئے ورته وئیله (چه دا د دوی د بد بختئ نه اوشوه، داسے به اونه شوه چه دا به ئے د خپل کفر او دروغ ګڼلو او بد و عملونو بد بختي اوګنړله چه توبه ترې اوباسي، حال دا دے چه دا تول د دوی د بد و عملونو سزا وه لکه چه فرمائي چه) یاد ساتئ چه د دوی د (دے) بد بختئ (سبب) د الله په علم کښې دے (یعني د دوی د کفر عملونه د الله تعالیٰ په علم کښې دی دا بد بختي د دغو عملونو سزا ده) لیکن (د خپلے بد تمیزئ نه) په دوی کښې اکثر خلق (په دے) نه پوهیږي او (بلکه د تسه پرې دا وائي (چه خو ا ه) که هر څو مره نا آشنا

خبره مونږ ته را وښيې چه د دې په ذريعه ته په مونږ جادو او چلوې خو بيا
هم ستا خبره مونږ هرګز نه منو۔

# معلومات او مسئلې

فرعون د موسیٰ علیه السلام په مقابله کښې د شکست خوړو نه پس په بنی اسرائیلو خپله غصه داسې اوویسته چه د دوی د هلکانو قتلولو او صرف د ښځو باقی پاتې کولو قانون ئې جوړ کړو۔ نو بنی اسرائیل اویریدل چه د موسیٰ علیه السلام د پیدائش نه وړاندې کوم عذاب فرعون په دوی باندې غورزولې وه هغه بیا راغې، او موسیٰ علیه السلام هم دا خبره محسوسه کړه، نو د پیغمبرانه شفقت او حکمت مطابق ئې د دې بلاګانو د نجات حاصلولو د پاره دوی ته د دوه وو خیزونو تلقین اوفرمایه، یو د دشمن په مقابله کښې د الله تعالیٰ نه مدد طلب کول دویم د کار د فراخئ پورې د صبر او همت نه کار اخستل، او دائې ورته هم اوخوده چه که دا نسخه استعمال کړئ نو دا ملک ستاسو دے تاسو به غالب راشئ۔ دا مضمون د اول ایت دے په کوم کښې چه فرمائی :-

اِسْتَعِيْنُوْا بِاللّٰهِ وَاصْبِرُوْا : یعنی د الله تعالیٰ نه مدد طلب کوئ او صبر کوئ۔ او بیا فرمائی :-

اِنَّ الْاَرْضَ لِلّٰهِ يُوْرِثُهَا مَنْ يَّشَآءُ مِنْ عِبَادِهٖ وَالْعَاقِبَةُ لِلْمُتَّقِيْنَ : یعنی ټوله زمکه د الله تعالیٰ ده هغه چه چا لره غواړی د دې زمکې وارث او مالک ئې جوړ وی، او دا خبره مقرره ده چه په اخر کښې کامیابی پرهیزګارانو ته حاصلیږی په دې کښې اشاره دې خبرې طرف ته ده چه که تاسو تقویٰ اختیار کړه د کومې طریقه چه بره ذکر شوې ده چه د الله تعالیٰ نه مدد غوښتل او صبر اختیارول دی نو اخر کار تاسو به د مصر د ملک مالکان او قابضان شئ۔

**د مشکلاتو او مصیبتونو نه د نجات اکسیر نسخه**

حضرت موسیٰ علیه السلام بنی اسرائیلو ته چه کومه حکیمانه نسخه په دشمن د غالب کیدو د پاره تلقین فرمائیلې وه په غور سره اوشی نو دا هم هغه اکسیر نسخه ده چه کله نه خطا کیږی،

چه د دے نه پس کامیابی یقینی وی، د دے نسخې اولنے جز "د الله نه مدد غوښتل دی" کوم چه د دے نسخې اصل روح دے۔ وجه داده چه د کائناتو خالق د چا په مدد باندې وی نو د ټولو کائناتو توجه د ده مدد طرف ته راګرځی - ځکه چه ټول کائنات د هغهٔ د حکم تابع دی: ؎

خاک وآب وباد وآتش بنده اند با من وتو مرده باحق زنده اند

(یعنی خاورے اُوبه باد اور د هغهٔ د حکم تابعداردی، ما او تا ته مړهٔ دی خو د خدائے پاک سره ژوندی دی)

په حدیث کښے دی چه کله الله تعالیٰ د څهٔ کار اراده اوفرمائی نو د هغے اسباب خود بخود تیاریږی، په دے وجه د دشمن په مقابله کښے د لوئے نه لوئے قوت د انسان د پاره دومره کار نه شی کولے خومره چه د الله تعالیٰ نه امداد په طلب کولے شی په دے شرط چه طلب صادق وی۔ محض په ژبه سره څهٔ کلمے وئیل نه وی۔

دویم جز د دے نسخې: صبر دے، د صبر معنیٰ د اصل لغت په اعتبار سره د طبیعت نه په خلاف څیز ونو باندې ثابت قدم پاتے کیدل او نفس لره قابو کول دی په څهٔ مصیبت باندې صبر کولو ته هم په دے وجه صبر وئیلے شی چه په دے کښے د جړا انګولا اوواویلا کولو طبعی جذبے لره قابو کولے شی۔

هر تجربه کار عقلمند پوهیږی چه په دُنیا کښے د هر لوئے مقصد د پاره ډیر خلاف طبع محنت او مشقت برداشت کول لازمی دی۔ کوم سړے چه د محنت او مشقت سره عادت او د خلاف طبع څیز ونو برداشت کونکے جوړ شی هغهٔ اکثر په مقصد ونو کښے کامیاب وی۔

په حدیث کښے د نبی کریم صلے الله علیه وسلم ارشاد دے۔ چه صبر داسے نعمت دے چه د دے نه زیات لوئے نعمت چاته نه دے ملاؤ شوے (ابوداؤد)

د حضرت موسیٰ علیه السلام د دے حکیمانه نصیحت او په دے د مرتب کیدونکے فتح او نصرت اجمالی وعده د ګکو بنی اسرائیلو په پوهه کښے کله را تله د دے هرڅه په آوریدو سره ئے اُووے: اُوْذِيْنَا مِنْ قَبْلِ اَنْ تَاْتِيَنَا وَمِنْ بَعْدِ مَا جِئْتَنَا: یعنی ستا د راتلو نه وړاندې هم مونږ ته ضرر رارسولے شوے او ستا د راتلو نه پس هم۔

مطلب دا دے چه ستا د راتلو نه وړاندې خو مونږ دے اُمید وخت تیر ولے شو چه څوک

پیغمبر به زمونږ د آزادۍ دپاره راشي، او س ستا د راتلو نه پس هم دغه د تکلیفونو سلسله روانه شوه نو مونږ څه اوکړو؟

په دے وجه بیا حضرت موسیٰ علیه السلام د حقیقت واضحه کولو دپاره اوفرمائیل: عَسٰی رَبُّكُمْ اَنْ یُّهْلِكَ عَدُوَّكُمْ وَیَسْتَخْلِفَكُمْ فِی الْاَرْضِ: یعنی دا خبره لرے نه ده چه که تاسو ځما نصیحت او منلو نو ډیر زر به ستاسو دشمن هلاک او برباد شي او په ملک به ستاسو قبضه او اقتدار راشي، مګر د دے سره ئے دا هم اوفرمائیل: فَیَنْظُرَ كَیْفَ تَعْمَلُوْنَ: چه په دے کښې ئے او خوده چه په دُنیا کښې د څه زمکے حکومت او سلطنت بچیله څه مقصد نه دے بلکه په زمکه کښې عدل او انصاف قائمول او د الله تعالیٰ خوده لے شوے نیکی خورول او د بدۍ لرے کولو دپاره چا انسان ته د یو ملک حکومت ورکولے شي، په دے وجه هرکله چه تاسو ته د مصر په ملک باندې اقتدار حاصل شي نو هوښیار شئ، هسے نه چه تاسو هم د حکومت او اقتدار په نشه کښې د ځان نه د وړاندې خلقو انجام هیر کړئ۔

**حکومت او سلطنت د حکمران طبقے د پاره امتحان دے**

په دے ایت کښې خطاب اګرچه خاص بنی اسرائیلو ته دے لیکن الله جل شانهٗ هرے حکمرانے طبقے ته په دے کښې خبردارے فرمائیلے دے چه په حقیقت کښې حکومت او سلطنت د الله تعالیٰ حق دے انسان ته په حیثیت د خلیفه هغهٔ حکومت ورکوی او کله چه غواړی نو اخلی ئے ترے: تُؤْتِی الْمُلْكَ مَنْ تَشَآءُ وَتَنْزِعُ الْمُلْكَ مِمَّنْ تَشَآءُ: دا مطلب دے دار نلېږ دا چه چاته یو کومه زمکه حکومت ورکړے شي دغه په حقیقت کښې د حکمران فرد یا حکمران جماعت امتحان وی چه دوی د حکومت مقصد یعنی د عدل او انصاف قائمول او د امر بالمعروف او نهی عن المنکر قائمول د ترکومه حده پورے پوره کوی۔

په تفسیر بحر محیط کښې دلته نقل شوی دی چه د بنی عباسو دویم خلیفه منصور ته د خلافت ملاویدو نه اول یوه ورځے عمرو بن عبید راغے نو دا ایت ئے اولوستو: عَسٰی رَبُّكُمْ اَنْ یُّهْلِكَ عَدُوَّكُمْ وَیَسْتَخْلِفَكُمْ فِی الْاَرْضِ: چه په دے کښې دوی ته د خلافت ملاویدو زیرے وُه۔ اِتفاقًا د دے نه پس منصور خلیفه جوړ شو او بیا عمرو بن عبید ده ته راغے نو منصور د ده پیشنګوئی چه په ذکر شوی ایت کښې ئے د دے نه وړاندې فرمائیلے وه وریاده کړه نو عمرو بن عبید

بنۀ جواب ورکړو چه هلته د خلیفه کیدو پیشینګوئی خو پوره شوه مګر یو شے باقی دے یعنی: فَيَنْظُرَ كَيْفَ تَعْمَلُوْنَ، مطلب دا دے چه د ملک خلیفه او امیر جوړیدل څۀ د فخر او خوشحالئ شے نه دے ځکه چه د دے نه پس الله تعالیٰ دا هم ګوری چه په خلافت او حکومت کښے د دۀ رویه څۀ او څنګه ده- او س د دے د کتو وخت دے-

د دے نه پس د ذکر شوی ایت وعده پوره کیدل او د فرعونیانو په قسم قسم عذابونو کښے ګرفتاریدل او اخر په دریاب کښے غرقیدل او ختمیدل څۀ قدرے په تفصیل سره بیان شوی دی- چه په دے کښے د ټولو نه اوّل عذاب د قحط او د خیزونو د کمی او د ګرانئ وه کوم چه په فرعونیانو مسلط شو-

په تفسیری روایتو نو کښے دی چه دا قحط په دوی اووه کاله مسلسل وه- او په ایت کښے چه کوم د دے قحط په بیان کښے دوه لفظونه راغلی دی، يو: سنين: بل: نقص ثمرات:- حضرت عبد الله بن عباسؓ او حضرت قتادهؒ وغیره فرمائی چه د قحط او خشک سالئ عذاب خو د کلو د خلقو د پاره وه- او د میوو د کمی د بنارونو د خلقو د پاره وه- ځکه چه په عام طور سره په کلو کښے د غلے پیداوار زیات وی او په بنارونو کښے د میوو باغونه وی نو اشاره دے طرف ته شوه چه نه د غلے پوره فصلونه باقی پاتے شو او نه د میوو باغونه-

لیکن کله چه په یو قوم باندے د الله تعالیٰ قهر راشی، نو صحیح خبره د دوی په خیال کښے نه راځی، فرعونیان هم په دے قهر کښے اخته وو، د عذاب په دے اوّلنئ جټکه باندے هم دوی پوهه نه شو، بلکه دے ته او ختے یو را تلونکی مصیبت په باره کښے به ئے دا وئیل چه دا بدبختی د حضرت موسیٰ علیه السلام او د دۀ د ملګرو ده: فَإِذَا جَاءَتْهُمُ الْحَسَنَةُ قَالُوا لَنَا هَٰذِهِ ۖ وَإِنْ تُصِبْهُمْ سَيِّئَةٌ يَطَّيَّرُوا بِمُوسَىٰ وَمَنْ مَعَهُ: یعنی کله چه دے خلقو ته به څۀ خیګړه ارام او راحت ملاؤ شو نو دا به ئے وئیل چه دا زمونږ حق دے مونږ ته ملاو یدل پکار وو، او کله چه به پرے څۀ مصیبت او بدی راغله نو وئیل به ئے چه دا د موسیٰ علیه السلام او د دۀ د ملګرو بدبختی ده، الله تعالیٰ د دوی په جواب کښے ارشاد فرمائی: أَلَا إِنَّمَا طَائِرُهُمْ عِنْدَ اللَّهِ وَلَٰكِنَّ أَكْثَرَهُمْ لَا يَعْلَمُونَ:-

دَ لفظ دَ: طائر: لغوی معنیٰ دَ مرغۍ ده - عربو به دَ مرغو دَ ښۍ او کینړ طرف ته دَ الوَتلو نه ښهٔ بَدَ فالونه مطلب اغستل - په دے وجه مطلق فال ته به ئے هم: طائر: وئیلو - په دے ایت کښے دَ طائر هم دا معنیٰ ده - او مطلب دَ ایت دا دے چه دَ دوی فال ښهٔ او بَدَ هرڅهٔ چه هم وی دا ټول دَ الله تعالیٰ دَ طرف نه دی هرڅهٔ چه په دے عالم کښے ظاهر یګی ټول دَ الله تعالیٰ دَ قدرت او رضا سره کیږی نهٔ په دے کښے دَ چا دَ بد بختۍ څهٔ دخل شته او نه دَ برکت، دا ټول دَ دوی کچه خیالونه او جهالت دے چه په مرغو الوَتلو او کینا ستلو بانډِ ښهٔ او بَدَ فالونه نیسی او دَ خپلو مقصدونو بنیادونه په دے بانډِ ایږدی -

او په اٰخر کښے فرعونیانو دَ حضرت موسیٰ علیه السلام ټولو معجزو ته سحر اُووے نظر انداز ئے کړے او اعلان ئے اوکړو چه: مَهۡمَا تَاۡتِنَا بِهٖ مِنۡ اٰيَةٍ لِّتَسۡحَرَنَا بِهَا فَمَا نَحۡنُ لَكَ بِمُؤۡمِنِيۡنَ : یعنی که ته هرڅو مره لښے دَ خپل نبوّت پیش کړے په مونږ خپل جادو چلول غواړے خو واوره چه مونږ چه ته هم په تا ایمان راوړونکی نهٔ یو،

---

فَاَرۡسَلۡنَا عَلَيۡهِمُ الطُّوۡفَانَ وَالۡجَرَادَ وَالۡقُمَّلَ وَ

پس اُولیږه مونږ په دوی بانډِ طوفان او ملخان او سپږے او

الضَّفَادِعَ وَالدَّمَ اٰيٰتٍ مُّفَصَّلٰتٍ فَاسۡتَكۡبَرُوۡا

چِندخان او وِینه چیرے لښے جُدا جُدا - بیا هم دوی تکبّر اوکړو

وَكَانُوۡا قَوۡمًا مُّجۡرِمِيۡنَ ﴿۱۳۳﴾ وَلَمَّا وَقَعَ عَلَيۡهِمُ

او وو دوی قوم مجرمان - او کله چه به پریوتو په دوی

الرِّجۡزُ قَالُوۡا يٰمُوۡسَى ادۡعُ لَنَا رَبَّكَ بِمَا عَهِدَ

څهٔ عذاب نو وئیل به ئے اے موسیٰ دُعا اوکړه زمونږ دَ پاره دَ خپل رب نه لکه چه ئے خودلے دَهٔ

عِنْدَكَ ۚ لَئِنْ كَشَفْتَ عَنَّا الرِّجْزَ لَنُؤْمِنَنَّ لَكَ وَ

تا ته ـ که تا لرې کړو زمونږ نه دا عذاب نو بې شکه مونږ به ایمان راوړو درباندې او

لَنُرْسِلَنَّ مَعَكَ بَنِيٓ إِسْرَآءِيلَ ﴿۱۳۴﴾ فَلَمَّا كَشَفْنَا عَنْهُمُ

او پرېږدو به تا سره بنی اسرائیلو لره ـ بیا چه به کله مونږ اوچت کړو د دوی نه

الرِّجْزَ إِلَىٰٓ أَجَلٍ هُم بَٰلِغُوهُ إِذَا هُمْ يَنكُثُونَ ﴿۱۳۵﴾

عذاب تر یوې مودې پورې چه دوی به رسیدل دغه وخت ته په هغه موده نو دوی به عهد مات کړو ـ

فَانتَقَمْنَا مِنْهُمْ فَأَغْرَقْنَٰهُمْ فِي ٱلْيَمِّ بِأَنَّهُمْ

بیا مونږ بدله واغسته د دوی نه پس ډوب مو کړو دوی لره په دریاب کښې په دې وجه چه دوی

كَذَّبُوا۟ بِـَٔايَٰتِنَا وَكَانُوا۟ عَنْهَا غَٰفِلِينَ ﴿۱۳۶﴾

دروغژن کړل آیاتونه زمونږه او د دې نه به ئې ځانونه ناخبره کول ـ

# لنډ تفسیر

د هر کله چه ئې داسې سرکښي اختیار کړه نو) بیا مونږ ورلېږه دوه دوه بلاګانو نه علاوه دا بلاګانې په دوی مسلّطې کړې چه (۳) په دوی مونږ ورلېږه باران) طوفان او لیږه رچه د مالونو او ځانونو د ختمیدو ویره ئې پیدا شوه) او ورلېږه نه او بریدل نو د موسیٰ علیه السلام سره ئې عهد اوکړو چه زمونږ نه دا بلا لرې کړه نو مونږ به ایمان راوړو او وخت چه ته ئې واځې نو هغه به منو، بیا چه کله هغه بلا لرې شوه او د ضرورت مطابق غلّه وغیره پیدا شوه ـ نو بیا بې فکره شو چه او س خو مونږ بچ شو نو مال ئې هم زیات شو او بد ستور پخپله سرکشئ باندې جګ پاتې شو نو مونږ د دوی په فصلونو (۴) ملخان رمسلّط کړل) او د چه کله ئې چه بیا فصلونو لره تباه کیدو نګی او لیدل نو او بریدل او بیا ئې هم هغسې عهد

اوکړو او بیا چه کله د دوئ په دُعا سره هغه بلا لرے شوه او غلّه تیاره شوه کورونو ته ئے راوړه نو بیا بے فکره شو چه اوس خو غلّه په قابو کښے راغله او هم دَغسے په خپل کفر او مخالفت بانډِ جَمْ شو نو مونږ په دے غلّه کښے (۵) دَ سپږئ چینجی (پیدا کړل) او (او کله چه اویږیدل بیا ئے دغه شان عهد اوکړو او په دُعا سره دغه بلا هم لرے شوه او دَ دے نه مطمئن شو چه اوس به غله مونږ اُوړه کړُو او خورو به شکو به ، نو بیا ئے هغه کفر او مخالفت وَه' نو دغه وخت مونږ دَ دوی خوراک دا سے بے مزے کړو چه په دوی مو) (۶) چنګ خان (په ډیر شمار کښے دَ دوی دَ خوراک په لوخو او کټو' وکښے غورزیدل شروع کړل چه ټول خوراکونه ئے پرے بے کاره شو ، او دغه شان پکو رونو کښے کیناستل هم دَ چنګ خانو په وجه مشکل شو ، او دَ سکلو' اُوبۀ ئے هم دَغسے بے مزے شوے چه (۷) دَ دوی اوبه) وینه (کیدے ، چه خولے ته کولے به ئے نو وینه کیدے به ، غرض په دوی دا بلاګانے مسلّطے شوے) چه دا ټولے (دَ موسیٰ علیه السلام) ښکاره ښکاره معجزے وے (چه دَ دوی په درو غږ ن کولو او مخالفت بانډِ به ښکاره کیدے او دا اُووه او همسا او یدِ بیضا چه وَرَ سره شی نو اٰیاتِ تسعه یعنی نُه نښے ورته وئیلے شی) پس (ړ پکار وه چه دا معجزے او دَ قهر نښے ئے لیدَلے وے او سُست شوی وے مګر) دغه خلقو (بیا هم) تکبر کولو او دغه خلق دَ ګناه کونکی (چه په دومره سختئ بیا هم نهٔ واپس کیدل) او کله چه په دوی به څهٔ عذاب (دَ دے ذکر شوو بلاګانو نه) واقع کیدو نو داسے به ئے وئیل ، اے موسیٰ ! زمونږ دَ پاره دَ خپل رب نه دَ دے خبرے دُعا اوکړه دَ کومے چه هغهٔ ستا سره عهد کړے دے (چه هغه خبره لرے کول دَ قهردی زمونږ په واپس کیدو بانډِ' پس مونږ اوس وعده کوُو چه) که تا داعذاب زمونږ نه لرے کړو (یعنی دعا دِ اوکړه او لرے شو) نو مونږ به خامخا ستا په وَئینا سره ایمان راوړو او مونږ به بنی اسرائیل هم آزاد کړو ستا سره به ئے کړو بیا چه کله به (دَ موسیٰ علیه السلام دَ دُعا په برکت سره) دَ دوی نه دغه عذاب دَ یو خاص وخت پورے چه دغے ته به رسیدل وَ ، لرے کړے شو نو دغو به فورًا عهد مات کړو

رکله چه بره بیان شو) بیا رکله چه په هرشان سره اولید ے شو چه دوی
د خپل شرارت نه نهٔ واپس کیدی نو د غه وخت) مونږ د دوی نه ربوره) بدله
واغسته یعنی دوی لره مو په دریاب کښے غرق کړل (رکله چه داسے ذکردی) په
دے سبب سره چه دوی زمونږ ایاتو نو لره دروغژن کول او د دینه ئے بالکل ځانونه
ناخبره کول راو دروغژن کول او غفلت ئے هم داسے نه وه بلکه په اصرار او په
عناد سره چه د حکم منلو دعوه به ئے کوله او بیا به ئے ماتوله)۔

## معلومات او مسئلے

په ذکرشو و ایاتو نو کښے د فرعونیا نو او د موسیٰ علیه السلام باقی قصه
ذکروه چه د فرعون ساحران نو د موسیٰ علیه السلام په مقابله کښے او با ئیلله
او ایمان ئے راوړه و مګر د فرعون قوم هم د غسے پخپله سرکشئ او کفر با ندِ
جٙه پاتے شو۔

د دے واقعے نه پس د تاریخی روایتونو مطابق حضرت موسیٰ علیه السلام
شل کاله په مصر کښے مقیم پاتے شو دے خلقوته ئے د الله تعالیٰ پیغام آورَ ولو
او حق طرف ته به ئے دعوت ورکولو، او په دے موده کښے الله تعالیٰ موسیٰ
علیه السلام ته نهه معجزے ورکړے، د کو مو په ذریعه چه فرعونیانو
لره خبرَ وَلِ او په لارے کَولِ مقصود وُو۔ په قرآن کریم کښے په: وَلَقَدْ اٰتَيْنَا
مُوسٰى تِسْعَ اٰيٰتٍ: کښے د دے نهو معجزو بیان دے۔

په دے نهو معجزو کښے د ټولونه اوّل دوه معجزے سپین لاس او همسا
خو د فرعون په دربار کښے ښکاره شوے وے او د دے دوه وُو معجزو په
ذریعه د جادوګرو په مقابله کښے موسیٰ علیه السلام فتح حاصله کړه۔ د دے نه
پس یوه معجزه هغه وه د کومے ذکر چه د دے نه په وړاندِ ایاتو نو کښے راغلے
دے چه د فرعون په قوم با ندِ د دوی د ضد او نافرمانئ په وجه قحط مسلّط کړے
شو۔ د دوی په زمکو او باغونو کښے پید اوار ډیر کم شو، ټکوم سره چه دوی
سخت پریشانه شو۔ او اخرئے په حضرت موسیٰ علیه السلام باندِ د دے د دفع
کیدو د پاره دُعا وکړه مګر هرکله چه قحط دفع شو نو بیا پخپله سرکشئ کښے

آخته شو او وئيل به ئے داسے چه دا قحط خو د موسیٰ علیه السلام او د ده د ملګرو د بدبختۍ په سبب وه، او س چه قحط لرے شو نو دا زمونږ د حال تقاضا ده۔
باقی د شپږو ولګېدو او معجزو بیان په ذکر شوو ایاتو کښے دے۔

فَاَرْسَلْنَا عَلَيْهِمُ الطُّوْفَانَ وَالْجَرَادَ وَالْقُمَّلَ وَالضَّفَادِعَ وَالدَّمَ اٰيٰتٍ مُّفَصَّلٰتٍ:
یعنی بیا مونږ په دوی باندې طوفان او لیږه او ملخان او سپږۍ او چنګښان اووینه.

په دے کښے په فرعونیانو د مسلط کیدو پنځه قسمه عذابونو ذکر دے چه ورته ئے په دے ایت کښے : اٰيٰتٍ مُّفَصَّلٰتٍ ؛ فرمائیلی دی چه معنا ئے د حضرت عبد الله بن عباس رضی الله عنه د تفسیر مطابق داده چه په دے کښے هر یو عذاب د یو مقرر وخته پورے وه بیا موقوف شو، او څه مهلت ورلوه ورکړے شو د دے نه پس دوېم او دریم عذاب دغه شان جُدا جُدا په دوی راغلل دا ترجمه د شیخ الهند په ترجمه کښے اختیار شوے ده۔

ابن منذر د حضرت عبد الله بن عباس رضی الله عنه د روایت نه نقل کړے دے چه په دے کښے هر یو عذاب په فرعونیانو باندې تر اوو ورځو پورے پاتے شوے دے د هفتے په ورځ به شروع شو د بلے هفتے په ورځ به ختم شو، او بیا به درے هفتے دوی له مهلت ورکولے شو۔

امام بغوی په روایت د ابن عباس رضی الله عنه نقل کړے دے چه هر کله په فرعونیانو په اول وارے د قحط عذاب مسلط شو او د موسیٰ علیه السلام په دُعا سره دفع شو مګر دا خلق د خپلے سرکشۍ نه واپس نه شو، نو حضرت موسیٰ علیه السلام دُعا وکړه چه اے زما پروردګاره! دا داسے سرکشه خلق دی چه د قحط د عذاب اثر پرے هم اونه شو او معاهده ئے اوکړه بیا ترے واپس شو۔ او س په دوی باندې داسے عذاب مسلط کړے چه د دوی د پاره دردناک وی، او زما د قوم د پاره وعظ شی، او د راتلونکو د پاره د عبرت سبق شی۔ نو الله تعالیٰ اول په دوی باندې د طوفان عذاب راوليږه۔ د مشهورو تفسیر لیکونکو په نزد د طوفان نه مراد د اوبو طوفان دے۔ د فرعونیانو ټول کورونه او زمکے د اوبو طوفان اونیول نه چرته د کیناستو ځاے ستو ځائے وه او نه په زمکه کښے د فصل کرلو ځائے وه۔ او عجیبه خبره دا وه چه د فرعونیانو د کورونو او زمکو سره د بنی اسرائیلو مکانونه

اوزمکے وے۔ دَ بنی اسرائیلو مکانونه اوزمکے دَ دړاندِ پشان اُوچے وے چې ته په کښې هم اُوبه نه وے، او دَ فرعونیا نو تهول کورونه او زمکے دَ دے طوفان ښکے وے۔

دَ دے طوفان نه اُویریدل فرعونیا نو موسیٰ علیه السلام ته درخواست اوکړو چه دَ خپل پروردګار نه دُعا اوکړه چه دا عذاب زمونږ نه لرے کړی نو مونږ به ایمان راوړو او بنی اسرائیل به آزاد کړو۔ دَ حضرت موسیٰ علیه السلام په دُعا سره دا طوفان لرے شو او دَ دے نه پس دَ دوی فصلونه زیات تر و تازه شو، نو اوس ئے دا اُووے چه په حقیقت کښے دا طوفان څۀ عذاب نه وَه بلکه زمونږ دَ فائدے دَ پاره راغلے وَه۔ چه نتیجه ئے دا شوه چه زمونږ دَ زمکو پیداوار زیات شو۔ په دے وجه دَ موسیٰ علیه السلام په دے کښے هیڅ دخل نیشته دائے او وے تهولے وعدے ئے نظر انداز کړے۔

دغه شان دا خلق یو ه میاشت په ارام او راحت کښے وُو الله تعالیٰ دوی له دَ غور او فکر کولو مهلت ورکړو مګر دوی په هوش کښے را نغلل نو اوس دویم عذاب دَ ملخانو په دوی مسلط کړے شو ملخانو دَ دوی تهول فصلونه او باغونه اوخوړل، په بعض روایتو نو کښے دی چه دَ لرګو دروازے او چتونه او دَ کورونو تهول سامانونه ملخانو اوخوړل، او دَ دے عذاب په وخت کښے هم دَ موسیٰ علیه السلام دا معجزه لیدے شوه چه دا تهول ملخان صرف دَ فرعونیا نو په کورونو باغونو او فصلونو باندِ خوارهٔ وُو۔ په خوا کښے دَ بنی اسرائیلو کورونه باغونه او فصلونه دَ دے نه محفوظ وُو۔

دا وخت بیا فرعونیا نو چیغے جوړے کړے او حضرت موسیٰ علیه السلام ته ئے خواست اوکړو چه کَه دا یوځل بیا ته الله تعالیٰ ته دُعا اوکړے او دا عذاب لرے شی نو مونږ پخَه وعده کوُو چه ایمان به راوړو او بنی اسرائیل به ازاد کړو موسیٰ علیه السلام بیا دُعا اوکړه او دا عذاب لرے شو۔ مګر دَ عذاب لرے کیدو نه پس دوی اوکتل چه مونږ سره اوس هم دَ غلے دومره ذخیره موجوده دهٔ چه دَ تهول کال دَ پاره زمونږ پوره کیږی۔ نو بیا سرکشه شو او عهد ئے مات کړو نه ئے ایمان راوړو او نه ئے بنی اسرائیل ازاد کړل۔

یوه میاشت بیا الله تعالیٰ دوی لره مهلت ورکړو۔ د دے مهلت نه پس دریم عذاب د: قُمَّل: پرِ مسلط شو۔ لفظ د قُمّل هغے سپږو ته هم وئیلے شی کومے چه د انسان په کپړو او وِیښتو کښے پیدا کیږی او هغے سپږئ ته هم وئیلے شی کومے چه په غله کښے کیږی۔ د قُمّل دا عذاب ممکنه ده چه په دواړو قسمو باندِ مشتمل وی، چه په غلو کښے ئے سپږئ لګیدَلے وی او د انسانانو په بدن او کپړو کښے د سپږو طوفان راپورته شوے وی۔

غلے ورلره سپږو داسے کړے چه د لسو سیر وغنمو نه به درے سیره اوړه هم نه وَتل۔ او د بدن سپږو ورلره وِیښته بانړه او وروځے اوخوړے صفائے کړے۔

آخر بیا فرعونیانو چغے جوړے کړے او موسیٰ علیه السلام ته ئے فریاد اوکړو چه اوس دا پیره به مونږ هرګز وعده ماته نه کړو خو ته دُعا اوکړه د حضرت موسیٰ علیه السلام په دُعا سره دا عذاب هم لرے شو۔ مګر د کومو بد نصیبو چه هلاکیدل مقرر وُو هغو کوم ځائے عهد پوره کولو۔ بیا چه ورته آرام ملاؤ شو هرڅه ئے هیر کړل او منکر شو۔

بیا د یوے میاشتے مهلت ئے دوی لره په داسے آرام او راحت سره دوی لره ورکړو مګر د دے مهلت نه ئے هم څهٔ فائده وانهٔ خسته نو څلورم عذاب د چندَخانو په دوی باندِ مسلّط شو۔ او دومره ډیر چندَخان د دوی په کورونو کښے پیدا شو چه کوم ځائے به کیناستل نو د مرئ پورے به ترے چاپیره چندَخان ډیرے کیدل که خُلاستل به نو د چندَخانو ډیرے به پرے د پاسه جوړیدو، د خوراک لوښی او هرشے به ئے د چندَخانو نهٔ کیدل د دے عذاب نه چه عاجزه شو نو ټول په چړا شو او د وړاندِ نه زیاته په پخو وعدو سره ئے عهد اوکړو۔ بیا د حضرت موسیٰ علیه السلام په دُعا سره دا عذاب هم لرے شو۔

مګر په کوم قوم چه د الله عذاب مسلّط وی د هغوی عقل او هوش او حواس کارنه کوی۔ د دے واقعے نه پس بیا هم د عذاب نه خلاص شو خو د خپلے ناړامئ نه واپس نه شو او اوُئے وئیل چه اوس خو زمونږ نو دم

یقین اوشو، چه موسیٰ علیه السلام لوئے جادوګر دے دا ټول د ده د جادو کرشمې دی رسول نبی هیڅ‌ړے نه دے۔

بیا ورلره الله تعالیٰ د یو بے میاشتې مهلت نور ورکړو مګر د دے مهلت نه هم دوی څهٔ کار وانهٔ غستو نو پنځم عذاب پرد وینې مسلط کړے شو چه د دوی د خوراک سکاک هر شے به وینه جوړیدو، د کوهی نه د حوض نه د هر ځائے نه چه به ئے اوبه را ویستلے وینه به ترے جوړیده له، خوراک به ئے وینه کیده لو۔ او په دے ټولو عذابونو کښے د حضرت موسیٰ علیه السلام دا معجزه وه چه د هر یو عذاب نه به بنی اسرآئیل بالکل محفوظ وُو او په امن وُو۔ د وینه د عذاب په وخت کښے فرعونیانو چه به د بنی اسرائیلو د کورونو نه اوبه اوغوښتلے نو چه د دوی لاسونو ته به اورسیدے وینے به شوے۔ په یو دسترخوان به خوراک ته کیناستل نو چه کومه نمړئ به اسرائیلی خولے ته کوله هغه به پخپل حالت وه او کومه چه به قبطی خولے ته کوله هغه نه وینے کیده۔ دا عذاب هم د وړومبو پشان اووه ورځے وه۔ اخر بیا دے بدکار قوم فریاد اوکړو موسیٰ علیه السلام ته او د وړاندِ نه زیاتے پخے وعدے ئے اوکړے۔ نو دُعائے اوکړه او عذاب لرے شو مګر دا خلق په خپله ناراهئ چه پاتے شو۔ دغه شان دا پنځه عذابونه مسلسل په دوی راغلل مګر دا خلق په خپله ګمراهئ قائم پاتے شو۔ دے لره قرآن کریم داسے فرمائی: ۔

: فَاسْتَكْبَرُوْا وَكَانُوْا قَوْمًا مُّجْرِمِيْنَ : یعنی دے خلقو د تکبر نه کار واغستو او دا خلق لوئے عادی مجرمان وُو۔

د دے نه پس د یو شپږم عذاب ذکر په بل ایت کښے په : رِجز: سره راغلے دے۔ دا لفظ اکثر د طاعون د پاره وئیلے شی۔ د ننکو وغیره وبائی مرضونو د پاره هم استعمالیږی، په تفسیری روایتونو کښے دی چه په دے خلقو د طاعون وبا مسلط شوه چه په دے باندِ د دوی اویا زره ښهری مړه شو دا وخت بیا دے خلقو فریاد اوکړو او بیا په دُعا کولو دا عذاب لرے شو خو بیا هم دے خلقو عهد مات کړو۔ د دومره مسلسل آزمائیښتونو او مهلتونو نه پس هرکله چه په دوی کښے څهٔ احساس پیدا نه شو نو اوس اخری عذاب راغے،

چه ته لو خپلې زمکې مکانونه او سامانونه پاتې کړل په موسیٰ علیه السلام پسې او
وتل او اخر د قلزم دریاب ته ورګډ شو؛ فَاَغْرَقْنٰهُمْ فِی الْیَمِّ بِاَنَّهُمْ كَذَّبُوْا بِاٰیٰتِنَا وَكَانُوْا
عَنْهَا غٰفِلِیْنَ؛

وَاَوْرَثْنَا الْقَوْمَ الَّذِیْنَ كَانُوْا یُسْتَضْعَفُوْنَ مَشَارِقَ

او وارثان کړل مونږه هغه قوم چه کمزوری ګڼلې کیدل د هغې زمکې په مشرق

الْاَرْضِ وَمَغَارِبَهَا الَّتِیْ بٰرَكْنَا فِیْهَا ؕ وَتَمَّتْ كَلِمَتُ

او مغرب کښې هغومه کښې چه برکت اچولې دے مونږه - او پوره شوه د نیکۍ

رَبِّكَ الْحُسْنٰى عَلٰى بَنِیْٓ اِسْرَآءِیْلَ ۙ۬ بِمَا صَبَرُوْا ؕ

وعده ستا د رب په بنی اسرائیلو باندې - په سبب د دوی د صبر کولو -

وَدَمَّرْنَا مَا كَانَ یَصْنَعُ فِرْعَوْنُ وَقَوْمُهٗ وَمَا

او خراب کړه مونږ څهٔ چه جوړ کړی وُو فرعون او قوم د دهٔ او څهٔ چه

كَانُوْا یَعْرِشُوْنَ ﴿۱۳۷﴾ وَجٰوَزْنَا بِبَنِیْٓ اِسْرَآءِیْلَ

ئے او چت خوارهٔ کړی وُو - او پورې باسل مونږه بنی اسرائیلو لره

الْبَحْرَ فَاَتَوْا عَلٰى قَوْمٍ یَّعْكُفُوْنَ عَلٰٓى اَصْنَامٍ لَّهُمْ ۚ

د دریاب نه - نو او رسیدل یو قوم ته چه عبادت ئے کولو د خپلو بتانو -

قَالُوْا یٰمُوْسَى اجْعَلْ لَّنَآ اِلٰهًا كَمَا لَهُمْ اٰلِهَةٌ ؕ

او وئیل اے موسیٰ جوړ کړه مونږ لره هم د عبادت په غرض یو بت لکه چه د دوی بتان دي

قَالَ اِنَّكُمْ قَوْمٌ تَجْهَلُوْنَ ﴿۱۳۸﴾ اِنَّ هٰٓؤُلَآءِ مُتَبَّرٌ

او وئیل تاسو خلق جاهلان یئ - دا خلق، تباه کیدونکي دي

مَّا هُمْ فِيهِ وَبٰطِلٌ مَّا كَانُوا يَعْمَلُونَ ﴿١٣٩﴾ قَالَ

هغه شے چه په کوم کښې دوی لګیدلی دی او غلط دے کوم چه دوی کوی۔ او وئیل

أَغَيْرَ اللّٰهِ أَبْغِيكُمْ إِلٰهًا وَّهُوَ فَضَّلَكُمْ عَلَى

آیا د الله نه سیوا او لټوم ستا سو د پاره څوک بل معبود حال دا دے چه هغهٔ تا سو لره لوئی درکړے ده

الْعٰلَمِينَ ﴿١٤٠﴾ وَإِذْ أَنْجَيْنٰكُمْ مِّنْ اٰلِ فِرْعَوْنَ

په ټول جهان باندې۔ او هغه وخت یاد کړئ کله چه نجات درکړو مونږ تا سو لره د فرعونیانو

يَسُومُونَكُمْ سُوْٓءَ الْعَذَابِ ۚ يُقَتِّلُونَ أَبْنَآءَكُمْ

چه رسا وه به ئے تا سو ته ناکاره عذاب چه وژل به ئے ستا سو ځامن

وَيَسْتَحْيُونَ نِسَآءَكُمْ ۚ وَفِي ذٰلِكُمْ بَلَآءٌ

او ژوندی به ئے پاتے کول ستا سو ښځے۔ او په دے کښې احسان دے

مِّنْ رَّبِّكُمْ عَظِيمٌ ﴿١٤١﴾

ستا سو د رب لوئے۔

ع ١٦

## لنډ تفسیر

او د فرعون او فرعونیانو لره مونږ غرق کړل) مونږ هغو خلقو لره کوم چه بالکل کمزوری شمارلے کیدل (یعنی بنی اسرائیل) د هغے زمکے د مشرق او مغرب (یعنی د ټولو حدونو) مالکان جوړ کړل په کومه کښې چه مونږ برکت اچولے دے (ظاهری برکت په چیر پیداوار سره او باطنی برکت په وجه د او سیدو او دفن کیدو د پیغمبرانو علیهم السلام سره) او ستا د رب ښهٔ وعده د بنی اسرائیلو په حق کښې د دوی د صبر په وجه سره پوره شوه (د کوم چه دوی ته حکم شوے وو چه "اِصْبِرُوْا") او مونږ د فرعون

او وده د قوم جوړ وکارخانو لره او څه چه دوی اوچتې اودانۍ جوړولې
تولو لره درهم برهم یعني تباه برباد کړل او ډوب کوم دریاب کښې چه موږ فرعون غرق
کړو) موږ بني اسرائیلو لره د (دغې) دریاب نه پورې ویستل (چه قصه ئې په
سورتِ شعرآء کښې ده) بیا (د پورې وتلو نه پس) داخلق په یو قوم باندې تیر شو
چه د خپلو څو بتانو نه چاپیره ناست وُو (یعني د دې عبادت ئې کولو) اوئې وئیل
اے موسیٰ زموږ د پاره هم یو (مجسّم) معبود داسې مقرر کړه لکه څنګه چه د
دوی دا معبودان دی دوی اوفرمائیل واقعي په تاسو خلقو کښې لوئې جهالت دے
دا خلق په کوم کار کښې چه لګیدلي دي (دا د الله تعالیٰ د طرف نه هم) تباه به کړے شي
(لکه چه د الله تعالیٰ عادت د همیشه نه داسې جاري دے چه حق لره په باطل غالب
کوي او ده لره تباکوي او برباد وي) او د دوی دا کار محض بے بنیاد دے (ځکه
چه د شرک باطلوالے یقیني او ښکاره دے، او) اوئې فرمائیل آیا د الله تعالیٰ
نه سوا چا بل لره ستاسو معبود جوړ کړم حال دا دے چه هغهٔ تاسو لره
(په بعض نعمتونو کښې) د ټولې دنیا په خلقو باندې اوچتوالے ورکړے دے
او (الله تعالیٰ د موسیٰ علیه السلام د خبرے په تائید کښې ارشاد فرمائي چه) هغه
وخت یاد کړئ کله چه موږ تاسو لره د فرعونیانو (د ظلم او ضررونو) نه بچ کړئ
کوم چه تاسو ته به ئې سخت سخت تکلیفونه رسول چه ستاسو ځامن به ئې چیر
قتل کول او ستاسو ښځې لره به ئې (د خپل بیګار او خدمت د پاره) پریښودلے
او په دے (واقعه) کښې ستاسو د پروردګار د طرف نه ډیر لوئې آزمائیش وه -

# معلومات او مسئلے

په تیرو آیاتو کښې د فرعون د قوم د پرلپسې سرکشئ او د الله تعالیٰ د
طرف نه د قسم قسم عذابونو په ذریعه د دوی د خبردار لو او پوهه کولو بیان
وه - په ذکر شوو آیاتو کښې د دوی د بد انجام او د بني اسرائیلو د فتح او د
کامرانئ ذکر دے -

په اولنی آیت کښې ارشاد دے: وَاَوْرَثْنَا الْقَوْمَ الَّذِیْنَ یُسْتَضْعَفُوْنَ مَشَارِقَ
الْاَرْضِ وَمَغَارِبَهَا الَّتِیْ بٰرَکْنَا فِیْهَا؛ یعنی کوم قوم چه کمزورے کړے شو

هغې لره موږ دَ دغې زمکې دَ مشرق او مغرب مالکان جوړ کړل په کومه کښې چه موږ برکتونه ایښودي دي۔

دَ قرآن په الفاظو غور او کړئ، دا سې ئې او نهٔ فرمائيل چه کوم قوم ضعيف او کمزورے وُه، بلکه دائې او فرمائيل چه کوم قوم لره فرعون ضعيف او کمزورے گنړلے وُه۔ په دے کښې اشاره دے طرف ته ده چه الله تعالیٰ دَ کوم قوم په مدد باندې وي هغه په حقيقت کښې چرته کمزورے او ذليله نهٔ وي اگرچه څهٔ وخت دَ دوي دَ ظاهري حال نه نور خلق دوکه او خوري او دوي کمزوري او گنړي، مگر آخر کار بيا ټولو ته معلومه شي چه هغه کمزوري او ذليله نه وُو۔ ځکه چه په حقيقت کښې قوّت او عزّت دَ الله جلّ شانهٔ په قبضه کښې دي = تُعِزُّ مَنْ تَشَآءُ وَتُذِلُّ مَنْ تَشَآءُ؛

او دَ زمکې دَ مالک جوړولو دَ پاره ئې لفظ دَ: اَوْرَثْنَا: راوړے وو، چه موږ دوي لره وارثان جوړ کړل، په دے کښې اشاره دے طرف ته ده چه څنگه وارث دَ خپل مورث دَ مال مستحق وي، دَ پلار په ژوند کښې هم سړے په دے پوهه وي چه دَ دے مال او جائداد مالکان به آخر کار دَ دهٔ اولاد وي، دغه شان دَ الله تعالیٰ په علم کښې بني اسرائيل دَ مخکښې نه دَ فرعونيانو دَ ملک و مال مستحق وُو۔

مَشَارِقَ: دَ مشرق جمع ده او مَغَارِبَ: دَ مغرب۔ دَ يخنۍ گرمۍ په مختلفو موسمونو کښې دَ مغرب او مشرق بدليدو په وجه دَ جمع لفظ راوړے شو او دَ زمکې نه مراد دلته دَ جمهور و تفسير ليکونکو دَ وينا مطابق دَ شام او مصر زمکه ده۔ په کومه چه الله تعالیٰ دَ فرعون او عمالقه قومونو دَ هلاکيدو نه پس بني اسرائيلو لره قبضه او حکومت ورکړو۔

او په: اَلَّتِيْ بٰرَكْنَا فِيْهَا؛ سره ئې دا او خودله چه په دے زمکو کښې الله تعالیٰ په خصوصيّت سره خپل برکتونه ايښودي دي۔ دَ شام دَ زمکې په باره کښې خو دَ قرآن کريم په څيرو آياتونو کښې دَ برکتي کيدو ذکر راغلے دے: اَلَّتِيْ بٰرَكْنَا حَوْلَهَا: کښې دَ دے بيان دے۔ دغه شان دَ مصر په باره کښې هم دَ برکتي کيدو او ميوه دارے کيدو ذکر دَ څيرو روايتونو او ليدلو نه ثابت دے،

حضرت عمر بن خطابؓ فرمائي چه د مصر دریا د نیل د دریابونو سردار دے۔ او حضرت عبدالله بن عمرؓ فرمائي چه د برکتونو د لسو حصونه نهه په مصر کښې دي او باقي يوه په ټوله دُنیا کښې۔ (بحر محیط)

لنډه دا ده چه کوم قوم لره د غرور او تکبر په نشه مستو په خپله کوتاه نظرئ سره ذلیله او کمزوري ګڼړلي وُو، موږ هغوي لره د دے متکبرانو د دولت او سلطنت او مال او ملک مالکان جوړ کړل چه د الله تعالیٰ او د هغهٔ د رسولانو وعده رشتونې وي۔ ارشاد فرمائي: وَتَمَّتْ كَلِمَتُ رَبِّكَ الْحُسْنٰى عَلٰى بَنِىٓ اِسْرَآءِيْلَ: یعني ستا د رب ښهٔ وعده د بني اسرائیلو په حق کښې پوره شوه۔

د دے ښے وعدے نه مراد یا خو هغه وعده ده کومه چه موسیٰ علیه السلام د خپل قوم سره کړے وه: عَسٰى رَبُّكُمْ اَنْ يُّهْلِكَ عَدُوَّكُمْ وَيَسْتَخْلِفَكُمْ فِى الْاَرْضِ: یعني نزدے ده چه ستا سو رب ستا سو دُشمن هلاک کړي او د هغوي د زمکے تا سو مالکان جوړ کړي۔ او یا هغه وعده ده کومه چه په قرآن کریم کښې بل ځائے پخپله الله تعالیٰ د بني اسرائیلو په حق کښې فرمائیلے ده:-

وَنُرِيْدُ اَنْ نَّمُنَّ عَلَى الَّذِيْنَ اسْتُضْعِفُوْا فِى الْاَرْضِ وَنَجْعَلَهُمْ اَئِمَّةً وَّنَجْعَلَهُمُ الْوٰرِثِيْنَ وَنُمَكِّنَ لَهُمْ فِى الْاَرْضِ وَنُرِىَ فِرْعَوْنَ وَهَامٰنَ وَجُنُوْدَهُمَا مِنْهُمْ مَّا كَانُوْا يَحْذَرُوْنَ: یعني موږ دا غواړو چه په دے قوم باندے احسان او کړو کوم لره چه په دے ملک کښې کمزوري او ذلیل ګڼړلے شي او دوی لره سرداران او حاکمان جوړ کړو او هم دوي لره د دے زمکے وارثان کړو او په دے زمکه باندے دوي لره د تصرّف کولو حق ورکړو، او فرعون او هامان او د دوي لښکر وته هغه شے اوښایو، د کوم د یرے نه چه دوي د موسیٰ علیه السلام خلاف قسم قسم تدبیرونه کوي۔

او حقیقت دا دے چه دا دواړه وعدے یو شان دي یوه وعده ده۔ د الله تعالیٰ د وعدے په بنا باندے موسیٰ علیه السلام د خپل قوم سره وعده کړے وه۔ په دے آیت کښې د دے وعدے پوره کیدل په لفظ د: تَمَّتْ: سره بیان شو۔ ځکه چه وعده تمامیدل هغه وخت ګڼلے شي چه دغه وعده پوره شي۔

ورسره ئې په بنی اسرائیلو د دے انعام او احسان وجه هم بیان کړه
بِمَا صَبَرُوْا: یعنی په دے وجه چه دے خلقو د الله په لاره کښے تکلیفونه برداشت کړل او په دے ثابت قدم پاتے شو،

په دے کښے ئے اشاره اوکړه چه زمونږ دا احسان او انعام څۀ په بنی اسرائیلو پورے خاص نه وُو، بلکه د دوی د عمل صبر او ثابت قدمئ نتیجه وه - کوم سړے یا کوم قوم چه دے عمل لره اختیار کړی زمونږ انعام هرځائے هروخت د دوی د پاره موجود دے: ے

فضائے بدر پیدا کر فرشتے تیری نصرت کو — اُتر سکتے ہیں گردوں سے قطار اندر قطار ابھی

(یعنی د بدر پشان حالات پیدا کړه نو اوس هم ستا مدد ته فرشتے د آسمان نه راکوزیدے شی)

حضرت موسیٰ علیه السلام چه کله د الله تعالیٰ د مدد وعده خپل قوم ته کړے وه داوخت هم دوئی قوم ته دا خو د لے وه چه د الله تعالیٰ نه مدد غوښتل او په مصیبتونو او آفتونو کښے ثابت قدم پاتے کیدل د کامیابئ کنجی ده -

حضرت حسن بصری فرمائی چه په دے آیت کښے اشاره موندے شی چه کله د انسان مقابله د یو داسے سړی یا جماعت سره وی چه دفاع کول ئے د دۀ په قدرت کښے نه وی نو په داسے وخت کښے د کامیابئ او فلاح صحیح طریقه دا ده چه مقابله نه کوی بلکه صبر کوی - دوی فرمائی چه کله یو سړے د چا د ضرر مقابله دۀ ته په ضرر رسولو کوی یعنی د خپل بدل پخپله د اغستو فکر کوی نو الله تعالیٰ دۀ لره هغۀ ته حواله کړی کامیاب کیږی او که ناکامه - او کله چه یو سړے د چا د ضرر رسولو مقابله په صبر او د الله تعالیٰ د مدد په انتظار سره کوی نو الله تعالیٰ پخپله د دۀ د پاره لارے پرانیزی -

او لکه څنګه چه الله تعالیٰ د بنی اسرائیلو سره په صبر او ثابت قدمئ دا وعده فرمائیلے وه چه دوی لره به په دشمن فتح او په زمکه حکومت ورکړی د غه شان د اُمتِ محمدیؐ سره ئے هم وعده فرمائیلے ده کومه چه په سورتِ نور کښے ذکر ده: وَعَدَ اللهُ الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا مِنْكُمْ وَعَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ لَيَسْتَخْلِفَنَّهُمْ فِي الْاَرْضِ: او لکه څنګه چه بنی اسرائیلو د الله تعالیٰ وعده پوره شوے لیدلے وه - امتِ محمدیؐ د دوی نه زیاته په واضح طور سره د الله تعالیٰ د مدد

مشاهده اوکړه چه په پوره ځمکه د دوی حکومت او سلطنت عام شو - (روح البیان)

د لته دے دا شبهٔ نه شی کولے چه بنی اسرائیلو خو د صبر نه کار نه دے اخستے بلکه کله چه موسیٰ علیه السلام دوی ته د صبر تلقین اوکړو نو خفه شو او اُو ویئیل: اُوْذِیْنَا: وجه دا ده چه اول خو د دوی صبر د فرعونی آزارونو په مقابله کښے او په ایمان ثابت قدم پاتے کیدل پرلپسے ثابت دی - کریوپیره تر د شکایت لفظ اُو وتلو هم نو دے ته نه دی کتلی شوی. دویم دا هم ممکنه ده چه د بنی اسرائیلو دا خبره په طور د شکایت نه وی بلکه په طور د ښکاره کولو د رنج او غم وی -

په ذکر شوی آیت کښے د دے نه پس فرمائی = وَدَمَّرْنَا مَا كَانَ يَصْنَعُ فِرْعَوْنُ وَقَوْمُهُ وَمَا كَانُوا يَعْرِشُونَ: یعنی مونږ تباه او برباد کړل هغو ټولو څیزونو لره کوم چه فرعون او د هٔ قوم جوړول او هغوا باد ول یا اُوچتول - د فرعون او د فرعون د قوم په جوړو کړی و څیزونو کښے د دوی مکانونه آبادئ او د کورونو د ضرورت سامان دا رنګ هغه مختلف قسم تدبیرونه کوم چه دوی د موسیٰ علیه السلام د مقابلے د پاره کول ټول داخل دی - او په: وَمَا كَانُوا يَعْرِشُونَ کښے د ننګ مکانونه او محلونه هم داخل دی، او اُوچتے وُنے او هغه د انګورو بوټی هم کوم چه په چتونو باندے خورولے شی -

تر دے ځایه پورے د فرعونیانو د تباهئ ذکروه او وړاندے د بنی اسرائیلو د فتح او کامرانئ نه پس د دوی د سرکشئ او جهالت بیان شروع کیږی - کوم چه د الله تعالیٰ د بے شماره نعمتونو د مشاهدے باوجود د دے خلقو نه اُوشو - چه مقصد ئے نبی کریم صلے الله علیه وسلم لره تسلی ورکول دی چه تیرو پیغمبرانو د خپلو امتونو د لاسه څومره څومره تکلیفونه برداشت کړی دی - د دے په مخ ته کولو سره به د موجوده سرکشانو آزارونه رسول سپک شی -

: وَجَاوَزْنَا بِبَنِي إِسْرَائِيلَ الْبَحْرَ: یعنی مونږ بنی اسرائیل په دریا ب پورے ایستل - بنی اسرائیلو ته د فرعونیانو په مقابله کښے معجزانه کامیابی

حاصله شوه او اطمینان ورته ملاؤ شو نو دے هغه اثر او شو کوم چه په عامو قومونو باندې د عیش عشرت او عزت او دولت کیدو چه په دوی کښے جاهلانه کارونه پیدا شو۔

واقعه داسے او شوه چه اوس اوس کله دا قوم د موسیٰ علیه السلام په معجزه سره د دریاب نه پورے وتل او د فرعون د ټول قوم د غرقید و تماشه ئے په خپلو سترګو اولیده چه لګ وړاندې لاړل نو په یو داسے قوم تیر شو چه د مختلفو بتانو په عبادت کښے لګیا وُو۔ د بنی اسرائیلو د دوی دا طریقه خوښه شان شوه او موسیٰ علیه السلام ته ئے درخواست او کړو چه لکه څنګه د دے خلقو ډیر معبودان دی ته د زمونږ د پاره هم څه داسے معبود جوړ کړه چه مونږ هم یو لیدونکے شے مخے ته کیدو او عبادت ئے کوُو۔ د الله تعالیٰ جل شانهٔ ذات خو مونږ ته ښکاره نه دے۔ موسیٰ علیه السلام او فرمایل : إِنَّكُمْ قَوْمٌ تَجْهَلُونَ : یعنے تاسو خلقو کښے لوئے جهالت دے۔ دا خلق د کومو طریقه چه تاسو خوښه کړه د دوی عملونه ټول ضائع او برباد دی۔ دوی د باطلو څیزونو عبادت کوی تاسو د دے حرص مه کوئ۔ آیا زه تاسو لره د الله نه سوا چا بل لره معبود جوړ کړم حال دا دے چه الله تعالیٰ تاسو لره د جهان په ټولو خلقو باندې فضیلت درکړے دے۔ مراد ترے د دغه وخت د دُنیا خلق دی۔ چه دغه وخت په موسیٰ علیه السلام باندې ایمان راوړونکی د نورو ټولو خلقو نه افضل او اعلیٰ وُو۔

د دے نه پس بنی اسرائیلو ته د دوی تیر حالات را یاد کړے شو چه دوی د فرعون په لاسونو کښے داسے مجبور او مقهور وُو۔ چه د دوی هلکان به ئے قتلول صرف جینکۍ به ئے د خپل خدمت د پاره پاتے کولے۔ الله تعالیٰ د موسیٰ علیه السلام په برکت او دُعا سره د دے عذاب نه نجات ورکړو۔ آیا د دے احسان اثر دا پکار دے چه تاسو د دغه ربّ العٰلمین سره د دُنیا ذلیل ترین څیزونه لره شریکے کړئ۔ دا خو مره عظیم ظلم دے د دے نه توبه او کړئ۔

وَوٰعَدْنَا مُوْسٰى ثَلٰثِيْنَ لَيْلَةً وَّاَتْمَمْنٰهَا بِعَشْرٍ

او وعده اوکړه مونږ د موسیٰ سره د دېرشو شپو او پوره موکړې دی لره په لسو سره

فَتَمَّ مِيْقَاتُ رَبِّهٖٓ اَرْبَعِيْنَ لَيْلَةً ۚ وَقَالَ مُوْسٰى

پس پوره شوه موده ستا د رب څلوېښت شپې - او اُو وېيل موسیٰ ؑ

لِاَخِيْهِ هٰرُوْنَ اخْلُفْنِيْ فِيْ قَوْمِيْ وَاَصْلِحْ وَ

خپل رور هارون ته چه ځما خلیفه شه ځما په قوم کښې او اصلاح کوه او

لَا تَتَّبِعْ سَبِيْلَ الْمُفْسِدِيْنَ ﴿۱۴۲﴾

مه ځه په لارې د فساد کوونکو -

# لنډ تفسیر

او (هر کله چه بنی اسرائیل د تهولو پریشانو نه مطمئن شو نو موسیٰ علیه السلام ته ئې درخواست اوکړو چه که اوس مونږ ته څۀ شریعت ملاؤ شی نو مونږ به پرې په اطمینان سره عمل کوُو، موسیٰ علیه السلام الله تعالیٰ ته درخواست اوکړو، الله تعالیٰ د دې قصه دا سې بیانوی چه) مونږ د موسیٰ (علیه السلام) سره د دېرشو شپو وعده اوکړه (چه طور ته راشه اعتکاف اوکړه نو تا ته به شریعت اوکتاب تورات درکړے شی) او لس شپې مو نورې د دې دېرشو شپو تما میدل جوړ کړل (یعنی تورات مو ورکړو په دے کښې مُولَس شپې د عبادت د پاره نورې زیاتې کړې چه د دې وجه په سورت بقره کښې ذکر شوې ده) دغه شان د دهٔ د پروردګار (مقرر شوې) وخت (ټول یو ځائې شو) پوره څلوېښت شپې شوې او موسیٰ (علیه السلام کوهِ طور د تلو په وخت کښې) خپل رور هارون (علیه السلام) ته وېیلی وُو چه ځما نه پس د دے خلقو انتظام کوه او اصلاح ئې کوه او د فساد کوونکو په رائې عمل مه کوه -

# معلومات او مسئلے

په دے آیت کښے د موسیٰ علیه السلام او بنی اسرائیلو هغه واقعه ذکر ده کومه چه د فرعون د غرق کیدو او د بنی اسرائیلو د مطمئن کیدو نه پس مخے ته راغلے چه بنی اسرائیلو حضرت موسیٰ علیه السلام ته درخواست اوکړو چه اوس مونږ مطمئن شو، اوس که مونږ ته څه کتاب او شریعت ملاؤ شی نو مونږ به په بے فکرئ سره په هغے عمل کوو۔ حضرت موسیٰ علیه السلام الله تعالیٰ ته دُعا اوکړه۔

په دے کښے لفظ د: وٰعَدْنَا: د وعدے نه مشتق دے۔ او د وعدے حقیقت دا دے چه چاته د نفع رسولو نه وړاندے د هغے اظهار اُوکړیشی چه مونږ به ستا فلانے کار اوکړو۔

په دے موقع الله تعالیٰ په موسیٰ علیه السلام د خپل کلام نازلَولو وعده اوفرمائیله۔ او د دے د پاره ئے دا شرط اولګاوه چه دیرش شپے په کوه طور کښے اعتکاف او د الله تعالیٰ په ذکر کښے تیرے کړه او بیا ئے په دے دیرشو د لسو اضافه اوکړه څلویښت ئے کړے،

د لفظ د: وٰاعَدْنَا: اصلی معنیٰ د دواړه طرف نه د وعدے او معاهدے راځی۔ دلته هم د الله جل شانهٗ د طرف نه د تورات ورکولو وعده وه او د موسیٰ علیه السلام د طرف نه د دیرشو څلویښتو شپو د اعتکاف۔ په دے وجه په ځائے د: وٰعَدْنَا: ئے: وٰاعَدْنَا: اوفرمایه۔

په دے آیت کښے څو مسئلے او احکام د غور قابل دی:-

اوّل دا چه کله الله تعالیٰ ته منظوره داوه چه اعتکاف دِ د څلویښتو شپو اوکړے شی، نو اول ئے دیرش اوبیا ئے د لسو اضافه کولو او څلویښتو کولو کښے څهٔ حکمت وهٔ۔ چه د اوّل سر نه ئے د څلویښتو شپو د اعتکاف حکم کړے وے نو څهٔ حرج وهٔ، پس د الله تعالیٰ د حکمتونو احاطه څوک کولے شی بعضے حکمتونه ئے عالمانو بیان کړی دے:-

په تفسیر روح البیان کښے دی چه په دے کښے یو حکمت د تدریج او رو رو کولو دے

چه څهٔ کار دَ چا په ذمه حواله کوَلے شي نوَ دَ اوّل نه دِ په زیات مقدار سره کار دهٔ ته نه شي حواله کوَلے چه دے دغه کار په آسانئ سره برداشت کړي، بیا دِ ورته زیاتی کار حواله کړے شي۔

او په تفسیر قرطبیؒ کښے دي چه په دے طرز کښے حاکمانو او دَ کار حکم کوُنکوته دَ دے تعلیم ورکول دي چه کهٔ چا ته څهٔ کار دَ یو مقرر وخته پورے دَ پوره کولو دَ پاره ورکړي او په دغه مقرر میعاد کښے ئے هغه پوره نه کړے شي نو دهٔ لره دِ زیات نور مُهلت ورکړے شي، لکه چه دَ موسیٰ علیه السلام په واقعه کښے اوشو چه دَ دیرشو شپو دَ پوره کولو نه پس چه کوم کیفیّت حاصلوَل پکار وَو هغه پوره نه شو په دے وجه ئے ورلره زیاتی دَ لسو شپو نور مهلت ورکړو۔ ځکه چه دَ دے لسو شپو دَ زیاتوالی کومه واقعه تفسیر لیکوُنکو ذکر کړے ده هغه داده چه دَ دے دیرشو شپو په اعتکاف کښے موسیٰ علیه السلام دَ قاعدے مطابق دیرش روژے هم پَرلَپسے اُونیولے په مینځ کښے ئے روژه ماته نه کړهٔ دَ دیرشمے روژے پوره کولو نه پس ئے روژه ماته کړه مقرر مقام دَ کوهِ طور ته حاضر شو۔ نو دَ الله تعالیٰ دَ طرف نه ورته ارشاد اوشو چه دَ روژه دارِ دَ خوُلے نه یو خاص قسم بوُئ دَ معدے دَ بخار نه پیدا کیږي هغه دَ الله تعالیٰ خوښ دے۔ تا دَ روژه ماتولو نه پس مسواک اوکړو هغه بوُئ دِ لرے کړو۔ په دے وجه زیاتی لَس روژے نورے اونیسه چه هغه بوُئ بیا پیدا شي۔

او په بعضے تفسیري روایتونو کښے چه دلته دا نقل دي چه دَ دیرشمے روژے نه پس موسیٰ علیه السلام مسواک کړے وو دَ کوم په ذریعه چه هغه بوُئ دَ روژے لرے شوے وو۔ دَ دینه په دے خبره با ندِ دلیل نه شي نیوَلے چه دَ روژه دارِ دَ پاره مسواک کوَلَ مکروه یا منع دي۔ ځکه چه اوّل خو دَ دے روایت څهٔ سند ذکر نه دے، دویم دا هم کیدے شي چه دا حکم دَ حضرت موسیٰ علیه السلام دَ ذات سره متعلق وي، دَ عامو خلقو دَ پاره نه وَي یا دَ موسیٰ علیه السلام په شریعت کښے دا حکم دَ ټولو دَ پاره وي چه دَ روژے په حالت کښے دِ مسواک نه شي کوَلے۔ لیکن په شریعت محمّدیؐ کښے خو په حالت

د روژے د مسواک کولو معمول په حدیث سره ثابت دے، کوم چه بیهقي په روایت د حضرت عائشې رض نقل کړے دے۔ چه نبي کریم صلی الله علیه وسلم فرمائیلي دي:-

| خَيْرُ خِصَالِ الصَّائِمِ السِّوَاكُ | "یعني د روژه دار غوره عمل مسواک دے" |
|---|---|

دے روایت لره ئے په جامع الصغیر کښې نقل کړے دے او حَسَنْ ئے وَئیلي دي۔

**فائده** په دے روایت یو سوال داکیږي چه حضرت موسیٰ علیه السلام کله د خضرع په تلاش کښې سفر کَوَلو، نو نیمه ورځ په لوږه بانِدِ صبر نه شو او خپل ملګري ته ئے اُووے: اٰتِنَا غَدَآءَ نَا لَقَدْ لَقِيْنَا مِنْ سَفَرِنَا هٰذَا نَصَبًا: یعني زمونږ خوراک راوړه ځکه چه دے سفر مونږ ه ډیر ستړي کړو۔ او په کوهِ طور کښې ئے پرلپسے دیرش روژے داسے اُونیوے چه د شپے ئے هم روژه ماته نهٔ کړه، داعجیبه خبره ده؟

په تفسیر روح البیان کښې دي چه دا فرق د دے دواړو سفرونو د نوعیت په سبب سره وه، اوّلنے سفر د مخلوق سره د مخلوق په تلاش کښې وه، او د کوهِ طور سفر د مخلوق نه جدا کیدل د یو ذات حق سبحانهٗ تعالیٰ په لټون کښې وه نو د دے خود بخود داسے اثر کیدل وو چه بشري تقاضے انتهائي کمزورې شوے، د خوراک سکاک حاجت دومره کم شو چه تر دیرشو ورځو پورے ورته هیڅ تکلیف محسوس نه شو۔

| په عبادتونو کښې قمري حساب معتبر دے، په دُنیاوي معاملو کښې د شمسي حساب هم ګنجائش شته | یو بله مسئله د دے ایت نه دا ثابته شوه چه د پیغمبرانو علیهم السلامو په شریعتونو کښې د تاریخ حساب د شپے نه کیږي۔ ځکه چه په دے |
|---|---|

ایت کښې هم د دیرشو ورځو په ځائے د دیرشو شپو ذکر دے۔ وجه دا ده چه د انبیاؤ په شریعتونو کښې میاشتے قمري معتبرے دي۔ او د قمري میاشتے شروع د شپو بدمئ لید ونه کیږي او سپوږمئ د شپے لیدے شي په دے وجه میاشت د شپے نه شروع کیږي، بیا د دے هر یو تاریخ د نمر په یو تونشاریکي،

خو مره اسماني مذهبونه چه دي دَ دے ټولو حساب دغه شان دَ قمري میاشتو نه او دَ تاریخ شروع دَ دے مرېوتونه معتبر دَ لے شي -

قرطبي په حواله دَ ابن عربي نقل کړے دے چه :-

| حِسَابُ الشَّمْسِ لِلْمَنَافِعِ وَحِسَابُ الْقَمَرِ لِلْمَنَاسِكِ - | یعني شمسي حساب دَ دنیوی نفعو دَ پاره دے، او قمري حساب دَ ادا کولو دَ عبادتونو دَ پاره دے " |
| --- | --- |

او دا دیرش شپے دَ حضرت عبد الله بن عباس رض دَ تفسیر مطابق دَ ذي القعدے دَ میاشتے شپے دي او بیا په دے لس شپے دَ ذي الحجے زیاتے کړے شوے - دَ دے نه معلومه شوه چه تورات حضرت موسی علیه السلام ته دَ لوئے اختر په ورځ ملاؤ شوے دے - (قرطبي)

**یوه مسئله**
دَ نفس په اصلاح کښے څلویښتو شپو ورځو لره خاص دخل دے

دَ دے ایت دَ اشارے نه دا هم معلومه شوه چه څلویښتو شپو لره دَ باطني حالاتو په اصلاح کښے خاص دخل دے، لکه چه په یو حدیث کښے دَ نبي کریم صلی الله علیه وسلم ارشاد دے چه کوم سړے څلویښت ورځے په اخلاص سره دَ الله تعالی عبادت اوکړي نو الله تعالی دَ ده دَ زړه نه دَ حکمت چینے جاري کړي (روح البیان)

**انسان ته په ځپلو ټولو کارونو کښے دَ تدریج او رورو کولو تعلیم -**

دَ دے ایت نه ثابته شوه چه دَ ضروري کارونو دَ پاره یو خاص میعاد مقرر ول او په آسانۍ او دَمه دَمه سره ئے کول دَ الله تعالی سنت دي، تلوار او جلتي کول دَ الله تعالی خوښ نه دي -

دَ ټولو نه اول په ځپله الله دَ خپل کار یعني دَ عالم پیدا کولو دَ پاره یو میعاد متعین کړو او دا اصول ئے او خودلي دي - حال دا دے چه الله تعالی له دَ اسمان او زمکے او دَ ټول عالم دَ پیدا کولو دَ پاره دَ یو منټ هم ضرورت نیشتے - هر کله چه هغهٔ څهٔ شي ته دَ پیدا کولو دَ پاره او فرمائي چه اُوشه نو هغه فوراً اُوشي مګر په دے خاص طرز سره دَ کار کولو کښے مخلوق ته دا هدایت ورکول وُو چه خپلو کارونو لره په غور فکر او دَمه دَمه سره کوي - دغه شان حضرت

موسیٰ علیه السلام ته ئې تورات ورکولو نو دې د پاره ئې هم یومیعاد مقرر اوفرمایه، په دې کښې د دې اُصولو خود نه ده - (قرطبی)

او دا هغه اُصول وُو د کوم نظر انداز کول چه د بنی اسرائیلو د گمراهئ سبب جوړ شو، ځکه چه حضرت موسیٰ علیه السلام د الله تعالیٰ د وحیې حکم په مطابق خپل قوم ته دا اُوویې اولاړ شو چه د دیرش ورځو د پاره ځم. دلته چه هر کله د لسو ورځو مُوده زیاته شوه نو د خپلې جلد بازئ په سبب دوی دا وئیلو شروع کړه چه موسیٰ علیه السلام چرته ورک شو - اوس موږ له ره پکار دی چه ځان له ره څوک یل پیشوا جوړ کړو، د دې نتیجه دا شوه چه د سامري په دام کښې اُونختل د "خمی" عبادت ئې شروع کړو - که د غور فکر د خپلو کارو نو دلته د ژورو نو لو او تأمل عادی وے، نو دې ته به نوبت نه وه رسیدلے - (قرطبی)

د ایت په دویمه جمله کښې ارشاد دے: وَقَالَ مُوسَىٰ لِأَخِيهِ هَارُونَ اخْلُفْنِي فِي قَوْمِي وَأَصْلِحْ وَلَا تَتَّبِعْ سَبِيلَ الْمُفْسِدِينَ: د دې جملې نه هم یو څو احکام او مسئلې راوځی -

د ضرورت په وخت کښې د کار منتظم له ره خپل قائمقام جوړول

اول دا چه هر کله موسیٰ علیه السلام د الله تعالیٰ د وعدې مطابق کوه طور ته د اعتکاف د پاره تلو نو خپل ملګری حضرت هارون علیه السلام ته ئې اوفرمایل: اخْلُفْنِي فِي قَوْمِي: یعنی ځما نه وروستو ځما به قوم کښې ځما د قائمقام په حیثیت سره کار وُکوه - د دینه معلومه شوه چه کوم سړے د څهٔ کار ذمه واروی هغه که په څهٔ ضرورت سره چرته ځی نو په دهٔ لازمه ده چه د هغې کار انتظام او کړی او بیا ځی -

دا رنګې دا ثابته شوه چه د حکومت ذمه وار حضرات چه کله چرته په سفر ځی نو خپل قائمقام او خلیفه دِ مقرر کړی نو ځی دے -

د نبی کریم صلی الله علیه وسلم عام عادت دا وه چه کله به چرته د مدینې نه باهر تلو نو څوک سړے به ئې خلیفه جوړ وه هلته به تلو - یو ځل پیره ئې حضرت علی مرتضیٰؓ له ره خلیفه جوړ کړو، یو وارے عبد الله ابن مکتومؓ له ره - دغه شان په مختلفو

وخت نو کښې ئې مختلف صحابه کرام ئې په مدینه منوره کښې خلیفه کان جوړ کړی دی
او با هر ئې تشریف وړے دے (قرطبی)

موسیٰ علیه السلام هارون علیه السلام لره د خلیفه جوړ ولو په وخت
کښې ده ته یو څو هدایات اوکړو۔ د دے نه معلومه شوه چه چا لره قائمقام جوړولو
په وخت کښې دے د ده د اسانئ د پاره ضروری هدایات ورکړی، په دے هدایتونو
کښې اول نے هدایت دا دے چه، اَصْلِحْ: په دے کښې ئې د اَصْلِحْ مفعول ذکر نه کړو،
چه د څه شی اِصْلاح کوه۔ د دینه اشاره عامو الی طرف ته ده چه خپله اِصْلاح
هم کوه او د قوم هم، یعنی کله چه په دوی کښې د فساد څه خبره اُووینے
نو په نتیجه لاړے ئې د د اوستلو کوشش کوه۔ دویم هدایت ئې دا اوکړو چه
: لَا تَتَّبِعْ سَبِيْلَ الْمُفْسِدِيْنَ: یعنی د فساد کوُنکو د لارے تا بعداری مه کوه
بنکاره خبره ده چه هارون علیه السلام نبی دے، په دے وجه د ده د پاره
په فساد کښې د اخته کید و یره خو وه نه۔ نو په دے وجه ده ته د هدایت مطلب
داوُو چه د فساد کوُنکو مدد یا همت افزائی مه کوه۔

چنانچه حضرت هارون علیه السلام کله چه اُولیده چه قوم په سامری پسے
تخې شوے دے تر دے چه د هغهٔ په وینائے د سخی عبادت شروع کړو، نو
قوم لره ئې د دے عبث نه منع کړو او سامرے ئې اوړټلو، بیا موسیٰ علیه السلام
د واپس کید و نه پس کله چه دا خیال اوکړو چه هارون علیه السلام څما نه
پس پخپلو فرضو اداکولو کښې کوتاهی کړے ده نو د ده نه ئې مؤاخذه اوفرمائیلو
د حضرت موسیٰ علیه السلام د دے واقعے نه هغو خلقو لره عبرت اخستل
پکار دی کوم چه بدنظمی او بے فکرئ لره د تهولونه لویه بزرگی گنړی۔

وَلَمَّا جَآءَ مُوْسٰى لِمِيْقَاتِنَا وَكَلَّمَهٗ رَبُّهٗ ۙ قَالَ رَبِّ

او کله چه اورسید و موسیٰ زمونږ ځائے د وعدے ته او خبرے اوکړے د ده سره د ده ربّ اُوئے وئیل

اَرِنِیْٓ اَنْظُرْ اِلَیْكَ ؕ قَالَ لَنْ تَرٰىنِیْ وَلٰكِنِ انْظُرْ

اے ځما ربّه ما ته ځان اوښایه چه تا اووینم۔ اوئے فرمائیل ته ما هرګز نشے لیدے لیکن ته اوګوره

إِلَى الْجَبَلِ فَإِنِ اسْتَقَرَّ مَكَانَهُ فَسَوْفَ تَرَانِي ۚ فَلَمَّا

غر طرف ته که هغه ځپل ځائے قرار پاتے شو نو نه به ما اُو لیدے شے - بیا چه کله

تَجَلَّىٰ رَبُّهُ لِلْجَبَلِ جَعَلَهُ دَكًّا وَخَرَّ مُوسَىٰ صَعِقًا ۚ

تجلّی اوکړه دده رب غر طرف ته نو کړوئے هغه نړیدلے برابر او پریوتے موسیٰ بے هوشه -

فَلَمَّا أَفَاقَ قَالَ سُبْحَانَكَ تُبْتُ إِلَيْكَ وَأَنَا

پس کله چه په هوش کښے راغے اُوئے وئیل پاک ځذات ستا ما توبه اوکړه تا ته او ما ده تو لو نه

أَوَّلُ الْمُؤْمِنِينَ ﴿١٤٣﴾ قَالَ يَا مُوسَىٰ إِنِّي اصْطَفَيْتُكَ

اوّل یقین راوړے وو - اُوئے فرمائیل اے موسیٰ ما تا لره غوره کړے وو

عَلَى النَّاسِ بِرِسَالَاتِي وَبِكَلَامِي فَخُذْ مَا آتَيْتُكَ

دخلقونه په خپل پیغام رسولو او پخپلو خبرو - پس واخلهٔ چه ما تا ته درکړے و

وَكُن مِّنَ الشَّاكِرِينَ ﴿١٤٤﴾ وَكَتَبْنَا لَهُ فِي الْأَلْوَاحِ

او شهٔ شکر کوونکے او اُو لیکل موږ دهٔ ته په تختو باندې

مِن كُلِّ شَيْءٍ مَّوْعِظَةً وَتَفْصِيلًا لِّكُلِّ شَيْءٍ

د هر قسم نصیحت او تفصیل د هر یو شی -

فَخُذْهَا بِقُوَّةٍ وَأْمُرْ قَوْمَكَ يَأْخُذُوا

پس او نیسه دے لره په زور سره او حکم کوه خپل قوم ته چه او نیسی

بِأَحْسَنِهَا ۚ سَأُرِيكُمْ دَارَ الْفَاسِقِينَ ﴿١٤٥﴾

ددے غوره خبرے - چیر زر به زهٔ تا سو ته او ښایم کور د نا فرمانو -

# لنډ تفسير

او کله چه موسیٰ (عليه السلام په دے واقعه کښے) زمونږ په وخت (وعده کړی شوی) باندے راغے (د کوم تفصيل چه بيا نيږی) او د ده رب د ده سره (د ډيرے مهربانئ او عنايت) خبرے اوکړے نو (د ډيرے خوشحالئ نه ئے د ديدار شوق پيدا شو) عرض ئے اوکړو چه اے زما پروردګاره خپل ديدار ما ته اوښايه چه زه تا ته يو نظر اوکړم، ارشاد ورته اوشو چه ما لره ته (په دنيا کښے) هرګز نه شے ليدے (ځکه چه دا سترګے طاقت د جمال نه لری لکه چه په مشکوٰة کښے دی د مسلم نه: لَاَحْرَقَتْ سُبُحَاتُ وَجْهِهٖ) ليکن (ستا د تسلئ د پاره دا يو تجويز کوو چه) ته دے غر طرف ته ګوره (زمونږ په ده يو زلق غورزو، وا پس که دے پخپل ځائے برقرار پاتے شو نو (بيا به) ته هم اوليدے شے (غرض موسیٰ عليه السلام غر طرف ته کتل) پس د ده رب کله چه په ده تجلی اوفرمائيله نو تجلی د ده لره (غر لره) ټوټے ټوټے کړو او موسیٰ (عليه السلام) بے هوشه پريوت، بيا چه کله دے بنه شو نو عرض ئے اوکړو چه بے شکه ستا ذات (د دے سترګو د برداشت کولو نه) منزه (او لوئے) دے زه ستا په جناب کښے (د دے مشتاقانه درخواست نه) معذرت غواړم او (ځه چه د حضور ارشاد دے چه: لَنْ تَرٰىنِيْ:) د ټولو نه اول زه په دے يقين کوم ارشاد اوشو چه اے موسیٰ (دا ډيره ده چه) ما (تا لره) خپل (طرف نه) پيغمبری (عهده ورکړه) او خپل (ځان سره) خبرو کولو (شرافت درکړو او په) دے سره په نورو خلقو باندے تا لره غوره والے درکړے دے نو (اوس) څه چه ما تا لره درکړو (رسالت او خبرے کول او تورات) دے لره واخله او شکر کوه او مونږ په څو تختو باندے د هر قسم (ضروری) نصيحت او (د ضروری احکامو متعلق) د هر څيز تفصيل ده لره ليکلی ورکړو (دا تختئ تورات دی بيا حکم اوشو چه هر کله مونږ دا تختئ درکړے) نو دے لره په کوشش سره (پخپله هم) په عمل کښے راوړله او خپل قوم ته (هم) حکم کوه چه د دے په ښو ښو حکمونو باندے (يعنی په ټولو ځکه چه ټول ښه دی) عمل کوی زه به اوس ډير زر

تاسو خلقو - (یعنی بنی اسرائیلو ته) دَ دے بے حکمو (یعنی فرعونیانو یا عمالقه وُو) مقام او بنایم (په دے کښے زیرے او وعده ده چه مصر یا شام به ډیر ژر ستاسو په تسلط کښے راشی، مقصود دَ دینه ترغیب ورکول دی دَ حکم منلو چه دَ الله تعالیٰ دَ اطاعت دا برکتونه دی) -

# مَعلومَات او مَسئلے

لَنْ تَرٰىنِیْ: یعنی نهٔ ما نهٔ شے لیدے، په دے کښے اشاره ده چه لیدل ناممکن نه دی مګر مخاطب په موجوده حالت سره دَ دے برداشت نه شی کولے، ورنه که لیدل ممکن نه وے نو دَ: لَنْ تَرٰىنِیْ: په ځائے به ئے: لَنْ اُرٰی: وئیلے وَه چه ځما لیدل نه شی کیدے (مظهری) -

دَ دے نه ثابته شوه چه دَ الله تعالیٰ دیدار په دُنیا کښے هم عقلاً ممکن خو دے مګر دَ دے ایت نه دَ دے دَ لیدلو منع والے هم ثابت شو چه په دنیا کښے ئے واقع کیدل منع شو، او دا مذهب دے دَ جمهورو اهلِ سنتو چه په دنیا کښے دَ الله تعالیٰ دیدار عقلاً ممکن دے مګر شرعاً مُمتنع دے - لکه چه دَ صحیح مسلم په حدیث کښے دی :-

لَنْ یَّرٰی اَحَدٌ مِّنْکُمْ رَبَّهٗ حَتّٰی یَمُوْتَ - "یعنی په تاسو کښے هیڅ سړے دَ مرګ نه وړاندے خپل ربّ نه شی لیدے"

وَلٰكِنِ انْظُرْ اِلَى الْجَبَلِ: په دے کښے دَ دے کار شهادت دے چه په موجوده حالت کښے مخاطب دَ الله لیدل نه شی برداشت کولے - په دے وجه ئے په غرهٔ باندِ معمولی شان پرتو راغورزاوَه او وئے خودله چه غرهٔ هم نه شی برداشت کولے نو ضعیف انسان به ئے څنګه برداشت کړی -

فَلَمَّا تَجَلّٰى رَبُّهٗ لِلْجَبَلِ: دَ تجلّی معنیٰ په عربی لغت کښے ظاهر او ښکاره کیدَ وَهٔ - او دَ صوفیانو حضراتو په نزد دَ بالواسطه لیدلو ده لکه یو شے چه دَ اینے په واسطه وُ لیدے شی - په دے وجه تجلّیٰ ته لیدل نه شی وئیلے - په خپله په دے ایت کښے دَ دے شهادت موجود دے، چه الله تعالیٰ دَ لیدلو نفی او فرمائیله او دَ تجلّی اثبات -

امام احمد، ترمذی، حاکم په روایت د انس رض نقل کړے دے او د دے سند حاکم او ترمذی صحیح مقرر کړے دے، چه نبی کریم صلے الله علیه وسلم د دے آیت تلاوت اوفرمایه د لاس د ګچے ګوتے په سر باندې ئے غټه ګوته کیخوده اشاره ئے اوفرمائیله چه د الله جل شانه د نُور صرف دومره قدرے حِصّه ظاهر کړے شوے وه، چه غر پرې ټکړے ټکړے واَلوت- دا ضروری نه ده چه ټول غر دِ ټکړے شوے وی، بلکه په کومه حصّه چه الله تعالیٰ دا تجلّی اوفرمائیله هغهٔ دِ متأثّر شوے وی-

| د موسیٰ علیه السلام سره د الله تعالیٰ خبرے |
|---|

دومره خبره خو د قرآن د واضحه الفاظو نه ثابته ده چه الله تعالیٰ د موسیٰ علیه السلام سره بے د واسطے نه کلام اوفرمایه، بیا په دے کلام کښے یو خو هغه دے کوم چه د نبوت ورکولو په اوّل وخت شوے وه، دویم کلام دا دے کوم چه د تورات ورکولو په وخت کښے اوشو- او د کوم ذکر چه په دے آیت کښے دے، د آیت د الفاظو نه دا هم ثابتیږی چه دے دویم کلام ته په نسبت د اوّل څهٔ زیات خصوصیت حاصل وه- لیکن حقیقت د دے کلام څهٔ او څهٔ رنګے وه، د دے علم د الله تعالیٰ نه سوا هیچا ته نه شی کیدے- په دے کښے چه څومره عقلی احتمالات دا سے وی کوم چه د شریعت د څهٔ حکم نه خلاف نه وی د هغو ګنجائیش یقیناً ضرور شته، مګر په دے احتمالاتو کښے چا یو لره متعیّن کول بے د دلیل نه درُست نه دی- او د تیرو صالحانو صحابوٴ او تابعینو مذهب په دے معامله کښے برابر دے چه دا معامله د خدائے ته حواله کول شی، د احتمالاتو د ویستلو په فکر کښے دِ نه پریوځی (بیان القرآن)

سَاُورِیْکُمْ دَارَ الْفٰسِقِیْنَ: دلته کښے د دارالفٰسقین نه څهٔ مراد دے؟ په دے کښے دوه خبرے دی یو ملک د مصر بل ملک د شام- ځکه چه د حضرت موسیٰ علیه السلام د فتح کولو نه اوّل په مصر باندې د فرعون او د دهٔ قوم حکمران وه او غالب وو- په دے وجه ئے مصر ته دارالفٰسقین- او په ملک د شام باندې د عمالقه وو قبضه وه هغوی هم کافران فاسقان وو په دے وجه دغه وخت شام هم دارالفٰسقین وه-

په دے دواړو کښے دلته کوم ملک مراد دے، په دے کښے اختلافی په دے بُنیاد بانډې دے چه د فرعون د غرق کیدو نه پس بنی اسرائیل مصر ته واپس تلی دی او که نهٔ۔ که دغه وخت مصر ته واپس تلی وی او په مصر بانډې قابض شوی وی لکه چه د آیت: وَاَوْرَثْنَا الْقَوْمَ الَّذِیْنَ: نه د دے تائید اوشو نو په مصر قبضه او غلبه د دے واقعے د طور نه وړاندې شوے ده، په دے کښے د: سَاُوْرِیْکُمْ دَارَ الْفٰسِقِیْنَ: نه ملک د شام متعین کیږی، او که دا وخت واپس نه وی تلی نو دواړه ملکونه تر مراد کیدے شی۔

د وَكَتَبْنَا لَهٗ فِی الْاَلْوَاحِ: د دے نه معلومیږی چه د تورات تختے لیکلے شوے حضرت موسیٰ علیه السلام ته سپارلے شوے وے۔ د دغے تختو د مجموعے نوم تورات دے۔

---

سَاَصْرِفُ عَنْ اٰیٰتِیَ الَّذِیْنَ یَتَکَبَّرُوْنَ فِی الْاَرْضِ

زه ده چه اوبه کړخوم د خپلو ایاتو نه هغو لره چه تکبر کوی په زمکه کښے

بِغَیْرِ الْحَقِّ ؕ وَاِنْ یَّرَوْا کُلَّ اٰیَةٍ لَّا یُؤْمِنُوْا بِهَا ج

ناحقه - او که اووینی تول نښے ایمان نه راوړی په هغوی۔

وَاِنْ یَّرَوْا سَبِیْلَ الرُّشْدِ لَا یَتَّخِذُوْهُ سَبِیْلًا ج

او که اووینی لار د هدایت نو نه نیسی هغے لره لار

وَاِنْ یَّرَوْا سَبِیْلَ الْغَیِّ یَتَّخِذُوْهُ سَبِیْلًا ؕ ذٰلِكَ

او که اووینی لار د گمراهئ نو نیسی هغے لره لار- دا څکه

بِاَنَّهُمْ كَذَّبُوْا بِاٰیٰتِنَا وَكَانُوْا عَنْهَا غٰفِلِیْنَ ﴿۱۴۶﴾

چه دوی دروغ گڼلی دی زمونږ ایاتونه او شوی دی د دے نه ناخبره۔

وَالَّذِيْنَ كَذَّبُوْا بِاٰيٰتِنَا وَلِقَآءِ الْاٰخِرَةِ حَبِطَتْ

او چا چه دروغ اوګڼل زمونږ آيا تونو لره او د آخرت ملاقات لره برباد شو

اَعْمَالُهُمْ هَلْ يُجْزَوْنَ اِلَّا مَا كَانُوْا يَعْمَلُوْنَ ﴿۱۴۷﴾ ع

د دوی محنتونه - هغه بدله به بيا مومی څه چه دوی عمل کا وه -

وَاتَّخَذَ قَوْمُ مُوْسٰى مِنْۢ بَعْدِهٖ مِنْ حُلِيِّهِمْ عِجْلًا

او جوړ کړو قوم د موسیٰ د ده نه روستو د خپلو زيوراتو نه تخے

جَسَدًا لَّهٗ خُوَارٌ اَلَمْ يَرَوْا اَنَّهٗ لَا يُكَلِّمُهُمْ وَ

يو بدن چه په ده کښے د غوا آواز وه - آيا دوی دے ته نه کتل چه دغه خود دوی سره خبره هم نه کوی.

لَا يَهْدِيْهِمْ سَبِيْلًا ۘ اِتَّخَذُوْهُ وَكَانُوْا

او نه ور ته لار خودے شی - معبود ئے جوړ کړو هغه لره او دوی

ظٰلِمِيْنَ ﴿۱۴۸﴾ وَلَمَّا سُقِطَ فِيْٓ اَيْدِيْهِمْ وَرَاَوْا

ظالمان وو - او کله چه خپيما نه شو او پوهه شو

اَنَّهُمْ قَدْ ضَلُّوْا ۙ قَالُوْا لَئِنْ لَّمْ يَرْحَمْنَا رَبُّنَا

چه مونږ بے شکه ګمراه شو نو اُوئے وئيل که رحم او نه کړی په مونږ زمونږ ربّ

وَيَغْفِرْ لَنَا لَنَكُوْنَنَّ مِنَ الْخٰسِرِيْنَ ﴿۱۴۹﴾ وَلَمَّا

او اُونه بخښی مونږ لره نو بے شکه مونږ به تباه شو - او کله چه

رَجَعَ مُوْسٰٓى اِلٰى قَوْمِهٖ غَضْبَانَ اَسِفًا ۙ قَالَ

واپس شو موسیٰ خپل قوم ته د غصے نه ډک افسوس کوونکے او ئے وئيل



ع ۱۷ وقف لازم

بِئْسَمَا خَلَفْتُمُوْنِيْ مِنْ بَعْدِيْ ج اَعَجِلْتُمْ اَمْرَ رَبِّكُمْ ج

څهٔ ناکاره خلافت اوکړو تاسو زما نه وروستو - وَلې تلوار اوکړه تاسو د خپل رب د حکم نه -

وَاَلْقَى الْاَلْوَاحَ وَاَخَذَ بِرَاْسِ اَخِيْهِ يَجُرُّهٗ اِلَيْهِ ط

او اُوئې غورزَولې هغه تختې او اُونیولو سر د رور خپل - چه رابنکوو وئې خپل ځان ته -

قَالَ ابْنَ اُمَّ اِنَّ الْقَوْمَ اسْتَضْعَفُوْنِيْ وَكَادُوْا

دهٔ اُووے اے زما د مور ځویه خلقو ماله کمزورے اوګنړلو او نزدے وو چه

يَقْتُلُوْنَنِيْ صلے فَلَا تُشْمِتْ بِيَ الْاَعْدَآءَ وَلَا تَجْعَلْنِيْ

زهٔ ئې وَژلے وے - پس مهٔ خندَوه په ما پورے دشمنان تولره او مهٔ کرزَوه ماله

مَعَ الْقَوْمِ الظّٰلِمِيْنَ ﴿۱۵۰﴾ قَالَ رَبِّ اغْفِرْ لِيْ وَلِاَخِيْ

سره د ګناه ګارانو نه - اُوئې وئیل اے زما ربه معاف کړه ماله او زما رور لره

وَاَدْخِلْنَا فِيْ رَحْمَتِكَ صلے وَاَنْتَ اَرْحَمُ الرّٰحِمِيْنَ ﴿۱۵۱﴾ ع ۸

او داخل کړه مونږ لره په خپل رحمت کښې - او تهٔ د ټولو نه زیات رحم کوونکے ئې -

## لنډ تفسير

اوس اطاعت طرف ته د ترغيب نه پس په مخالفت باندې د وېرې ولو د پاره ارشاد دے چه) دا سې خلقو لره به د خپلو حکمونو نه اَړه ولی سا تم کوم چه په دنيا کښې د احکامو منلو نه) تکبر کوی د کوم چه دوی ته هيڅ حق حاصل نه دے رځکه چه خپل ځان لوئے ګنړل حق د هغهٔ چا دے چه په واقع کښې لوئے وی او هغه يَو د خدائے ذات دے) او د دَاَړه ولو به په دوی دا اثر وی چه) که ټولے (دَ دُنيا کښې رهم) او وينی خو بيا هم د دَ ډيرے بد بختۍ نه) په دے ايمان نهٔ راوړی

او که د هدایت لار او وینی نو هغې لره خپله طریقه نه جوړه وی او که د ګمراهۍ
لار او وینی نو هغه خپله طریقه جوړه وی (یعنې په حق نه قبلولو سره ئې بیا
زړه سخت شی او د اوړیدلو ئې دے حد ته اورسی) دا (ترددے حده پورے
اوړیدل ئې) په دے سبب سره دی چه دوی زمونږ آیاتونو لره (د تکبر
په وجه) دروغ ګنړل او د دے (په حقیقت کښې د غور کولو) نه بے ځان ناخبره
کول (دا سزا خو ئې په دنیا کښې شوه چه د هدایت نه محروم شو) او (به آخرت
کښې به ئې دا سزا وی چه) دا خلق چا چه زمونږ آیاتونو او د قیامت راتلو ته
دروغ او وئیل د دوی تول کارونه (د کومو نه چه د دوی د نفع توقع وه)
برباد شو او انجام د دے برباد یدو جهنم دے) دوی ته به هغه سزا ورکولے
شی څهٔ چه دوی کول او (کله چه موسیٰ علیه السلام طور ته د تورات راوړو
د پاره تشریف یوړو نو) د موسیٰ (علیه السلام) قوم (یعنې بنی اسرائیلو)
د دوی (د تللو) نه پس د خپلو (مقبوضه) زیوراتو نه (کوم چه دوی د مصر
د راوتلو په وخت کښې د قبطیانو نه په بهانه د وادهٔ غوښتلی وو) یو سخے
(جوړ کړو وچه قصه ئې په سورت طٰهٰ کښې ده. دهٔ لره ئې معبود) اونیولو کوم
چه (صرف دومره حقیقت ئې لرلو چه) یو قالب وهٔ یکوم کښې چه یو آواز وهٔ
(بل په دهٔ کښې هیڅ کمال نه وهٔ یکوم سره چه یو هوښیار ته د دهٔ د معبود
کیدو شک راشی) آیا دوی دا نه لیدل چه (په دهٔ کښې د سړی برابر هم قدرت
نه وهٔ چنانچه) هغهٔ د دوی سره خبرے هم نه شوے کولے او نه ئې دوی
ته (د دنیا یا د دین) څهٔ لار خودلے شوه (او د خدائې پشان صفتونه په دهٔ کښې
د کومه وُو غرض دا چه) د دے (سخی) لره دوی معبود مقرر کړو او (چونکه
په دهٔ کښې اصلاً څهٔ د شک وجه نه وه په دے وجه دوی) لوئے بے شرمه
کار او کړو او (بیا د واپس کیدو د موسیٰ علیه السلام نه چه قصه ئې وړاندې
راځی د دوی په خبرو لو سره) کله چه (پوهه شو او په دے غلط کار باندې)
ستومانه شو او معلومه شوه چه واقعی دا خلق په ګمراهۍ کښې پریوا ته نو
(د خپیمانه کیدو نه ئې په طور د معذرت) او ئې وئیل چه که زمونږ رب په مونږ
رحم اونه کړی او زمونږ (دا) ګناه معاف نه کړی نو مونږ به بالکل تباه شو،

(چنانچه په خاص طریقه سره د دوی ته د توبې د مکمل کولو حکم اوشو چه قصه ئې
د سورتِ بقره په ایت فَاقْتُلُوْۤا اَنْفُسَكُمْ کښې تیره شوې ده) او (موسیٰ علیه
السلام له د خبر ورکولو قصه داسې اوشوه چه) کله موسیٰ (علیه السلام) خپل
قوم طرفته (د طور نه) واپس راغې د غصې او غم نه ډک (ځکه چه دۀ ته په وحی
سره دا معلومه شوې وه، په طٰهٰ کښې دی: قَالَ فَاِنَّا قَدْ فَتَنَّا الخ) نو (اول قوم
ته متوجه شو) اوئې فرمائیل چه تاسو ځما نه پس دا لوئې د بې عقلو کار اوکړو
آیا د خپل رب د حکم (راتلو) نه وړاندې تاسو (داسې) جلد بازی اوکړه (زۀ خو
د احکامو راوړو د پاره تلې وم د دې انتظار خو به مو کړې وه) او (بیا حضرت
هارون علیه السلام طرف ته متوجه شو او د دینی حمایت په جوش کښې) ئې په
تلوار سره (د تورات) تختې (رخو) یو طرف ته کیښودې او په تلوار ئې په داسې
زور سره کیښودې چه لیدونکی به پرې شک کاوه چه دا خوئې اوغورځولې
او (لاسونه ئې خالی کړه) د خپل ورور (هارون علیه السلام) سر (یعنې وېښته)
ئې اونیول دې ئې خپل طرف ته راښکودو (چه تا ولې پوره انتظام اونه کړو
او چونکه دا ډیر غضب نه یو قسم له بې اختیاره شوې وۀ او غضب هم د دین
د پاره په دې وجه بې اختیاری ئې معتبر ولې شی، او په دې اجتهادی لغزش
بانډې اعتراض نه شی کیدې) هارون (علیه السلام) اوویئیل اې ځما د مور
ځویه (روره ما پخپل کوشش سره ډیر منع کړل لیکن) دې خلقو ما له
بې حقیقته اوګڼلو او (بلکه په نصیحت کولو) نژدې وه چه ما له ئې قتل
کړې وې نو ته په ما پورې (په سختئ کولو سره) دشمنان مه خندوه او ما له
(په سلوک کولو سره) د دې ظالمانو خلقو په ډله کښې مه شماره (چه د دوی سره
دې کوم ناخوښی والې دې هغه ما سره هم اوکړې) موسیٰ (علیه السلام الله تعالیٰ
ته دعا اوغوښتله او) اوئې ویئیل چه اې ځما ربه ځما خطا کانو له (اګرچه اجتهادی دی)
معاف کړې او ځما د رور (هم کوتاهیانې کومې چه تر د دې مشرکانو په باره
کښې د دوی په پاتې کولو شوی وی لکه چه د دې قول نه معلومیږی: مَا مَنَعَكَ
اِذْ رَاَيْتَهُمْ ضَلُّوْۤا اَنْ لَّا تَتَّبِعَنِ الاٰية) او مونږ دواړو له پخپل (خاص) رحمت
کښې داخل کړې او ته د ټولو رحم کوونکو نه زیات رحم کوونکې ئې (په دې وجه زمونږ

دَ دُعا دَ قبلید امید واریُو)۔

# معلومات او مسئلې

په اَوَلنی اَیت کښې چه کوم ارشاد فرمائی چه ،، زهٔ به واړوم دَ خپلو اٰیاتونو نه هغوخلقولره کوم چه تکبر کوی په زمکه کښې په نا حقه،،

په دے کښې دَ نا حقے نه اشاره دے طرف ته ده چه دَ تکبر کونکو په مقابله کښې تکبر کول حق دی، دغه بد او گناه نه دے، ځکه چه دغه صرف دَ صورت په اعتبار سره تکبر وی دَ حقیقت په اعتبار سره نه وی ځکه چه مشهوره ده : اَلتَّكَبُّرُ مَعَ الْمُتَكَبِّرِيْنَ تَوَاضُعٌ (مسائل السلوک)

او دَ تکبر کونکو یعنی لویو جوړیدونکو لره دَ خپلو اٰیاتونو نه دَ اړَ وَلو مطلب دادے | تکبر انسان لره دَ روغ فکر او دَ عُلُومِ اِلٰهِیَهٔ و نه محرومه کوی

چه دَ دوی نه دَ الله تعالیٰ په اٰیاتونو دَ پوهه کیدو او دَ دی نه دَ فائدَ اَغستو توفیق وَ اغستلے شی، او دَ الله تعالیٰ اٰیاتونه هم دلته عام مراد کیدے شی، چه په دے کښې نازل شوی اٰیاتونه دَ تورات، انجیل یا قرآن هم داخل دی او تکوینی اٰیاتونه (نښے) کوم چه په ټول زمکه اسمان او دَ دوی مخلوقات کښې خواره شوی دی، په دے وجه دَ اٰیت دَ مضمون نچوړ داشو چه تکبر یعنی ځان دَ نورونه لوئے او غوره گنړل داسے ناکاره او منحوس خصلت دے چه کوم سړے په دے کښې اخته شی دَ دهٔ عقل او روغ فهم نه وی، دے دَ الله تعالیٰ دَ اٰیاتونو دَ پوهیدو نه محرومه وی نو په دهٔ کښې دَ ه قرآن په اٰیاتونو دَ صحیح پوهه کیدو توفیق باقی پاتے کیږی او نه دَ الله تعالیٰ دَ قدرتونو په نښو کښے دَ غور او فکر کولو او په معرفت حاصلولو کښې دَ دهٔ ذهن چلیږی۔

په روح البیان کښے دی چه دَ دے نه معلومه شوه چه تکبر او لوئی داسے ناکاره خصلت دے چه دَ عُلُومِ اِلٰهِیَهٔ دَ پاره پرده جوړیګی، ځکه چه اِلٰهِیَه علومونه صرف دَ هغهٔ په رحمت سره حاصلیږی، او دَ الله تعالیٰ رحمت په تواضع سره متوجه کیږی۔ مولانا رومی قدس سرهٔ فرمائی : ؎

هر کجا پستی است آب آنجا رود — هر کجا مشکل جواب آنجا رود

(يعنې کوم ځائې چه خکته وي او په هغې طرف ته ځي او کوم ځائې چه مشکل وي حل کول او جواب کول د هغې ځائې کولے شي) -

په اولو دوه ؤوايا تونو کښې کومې ارشاد فرمائيلونه پس بيا د موسىٰ عليه السلام باقي قصه داسې فرمائي چه:

کله موسىٰ عليه السلام د تورات حاصلولو د پاره په طور کښې معتکف شو او په شروع کښې ورته د ديرشو شپو ورځو د اعتکاف حکم ؤو او د دې مطابق ئې خپل قوم ته وئيلي ؤو چه ديرش ورځې پس به واپس کيږم هلته ورته الله تعالىٰ د لسو ورځو ميعاد نور زيات کړو نو اسرائيلي قوم چه د دوي جلد بازي او نا پوهي د اول نه مشهوره وه، د اوخت هم دوي قسم قسم خبرې شروع کړې - د دوي په قوم کښې سامري نوم يو سړے وه چه په خپل قوم کښې لوئې او مشر منلے شو - مګر د کچه عقيدے سړے وه د هٔ موقع بيا موندہ دا حرکت ئې اوکړو چه د بني اسرائيلو سره د قوم د فرعون څهٔ کالي پاتې شوي ؤو دوي ته ئې اووئے چه دا کالي تاسو د فرعونيانو نه په سوال بانډې راغستي ؤو، او س هغه ټول غرق شو او کالي تاسو سره پاتې شو، دا ستاسو د پاره حلال نه دي ځکه چه د کفارو نه په جنګ کښې حاصل شوې مالِ غنيمت هم په دغه زمانه کښې د مسلمانانو د پاره حلال نه ؤو - بني اسرائيلو د هٔ د وينا مطابق ټول کالي راوړل دهٔ ته ئې جمع کړه - دهٔ د دې سرو سپينو نه د يو څخي يا غوا مجسمه جوړه کړه - او د جبرئيل امين د آس د خپو بنا وره چه دهٔ چرته ځکښې جمع کړے وه - په دے خاوره کښې الله تعالىٰ د ژوند خاصه ايخودے وه، د هٔ د دے سرو سپينو د ويلي کولو په وخت کښې دغه خاوره په دي کښې شامله کړه د دے دا اثر او شو چه د دغې غوا په مجسمه کښې د ژوند نښې پيدا شوے او د غوا آواز راوتل ترې شروع شو، دلته په ايت کښې د: عِجْلًا : په تفسير کښې ئې: جَسَدًا لَّهُ خُوَارٌ : اوفرمائيل دے طرف ته اشاره ده د سامري دا حيرا نوونکے شيطاني ايجاد چه مخامخ شو، نو دهٔ بني اسرائيلو ته د دے کفر طرف ته دعوت ورکول شروع کړه، چه دا خدائے دے،

موسیٰ علیه السلام خو د الله تعالیٰ سره د خبرو کولو د پاره کوه طور ته تلے دے او الله تعالیٰ (معاذ الله) پخپله دلته راغے، د موسیٰ علیه السلام نه هیر شو، بنی اسرائیلو خو به وړاندې هم د داسې خبره منله او په دے پیره خوئے داچالاکی هم او خو د دلـه نو د خلقو عقیده پرے زیاته شوه، او دغه غوالوه ئے خدائے او گڼلو عبادت ئے ورلره شروع کړو۔

په دریم ذکر شوی آیت کښے د دے مضمون بیان په لنډ طور سره راغلے دے۔ او په قرآن کریم کښے بل ځائے د دے زیات تفصیل ذکر دے۔

په څلورم آیت کښے د حضرت موسیٰ علیه السلام د پوهه کولو نه پس خپیما نه شوا او د توبے ذکر ئے دے، په دے کښے د: سُقِطَ فِيْٓ اَيْدِيْهِمْ: معنیٰ د عربی محاورے موافق د خپیمانه کیدو او شرمنده کیدو ده۔

په پنځم آیت کښے د دے واقعے تفصیل دے چه هرکله موسیٰ علیه السلام د کوه طور نه تورات راوړو واپس راغلو، او قوم ئے د خځی په عبادت کښے اخته اولیدو۔ نو اگرچه د قوم د دے گمراهئ خبر الله تعالیٰ موسیٰ علیه السلام ته په کوه طور کښے ورکړے وه۔ لیکن په آوریدو او په لیدو کښے فرق وی هرکله چه ئے دے خلقو لره اولیدل چه د غوا عبادت کوی نو غصه ئے انتها ته اورسیده۔

اول ئے قوم ته خطاب اوکړو او ئے فرمائیل: بِئْسَمَا خَلَفْتُمُوْنِيْ مِنْۢ بَعْدِيْ: یعنی تاسو ځما نه پس دا ډیره نامعقوله کار اوکړو: اَعَجِلْتُمْ اَمْرَ رَبِّكُمْ: آیا تاسو د خپل رب د حکم راتلو نه تلوار اوکړو۔ یعنی د الله تعالیٰ د کتاب تورات د راتلو انتظار خو به مونږ کړے وو۔ تاسو د هغے نه تلوار اوکړو دا گمراهی مو اختیار کړه۔ او بعض تفسیر لیکونکی د دے جملے دا مطلب ښائی چه آیا تاسو جلد بازی اوکړه دا مو غوښته کړے وه چه ځما مرگ واقع شوے دے د دے نه پس ئے حضرت هارون علیه السلام ته خطاب کړو چه ته خو ما خپل خلیفه جوړ کړے وے او تلے وم نو تا خلق د دے گمراهئ نه ولے نه منع کول د ته ئے لاس ور اچولی نو د تورات تختے ئے په لاسو کښے وے زر ئے هغه کیخو دے۔ دے لره قرآن کریم په دے الفاظو کښے بیان کړے ده،

وَاَلْقَى الْاَلْوَاحَ : دَ اِلْقَاء لغوی معنیٰ غورزول دی او: اَلْوَاحَ ، دَ لَوْح جمع ده چه معنیٰ ئې ده تختې - دلته دَ لفظ دَ اِلْقَاء نه دا شُبْهَه کیدے شی چه حضرت موسیٰ علیه السلام دَ غُصّې په حالت کښې دَ تورات دَ تختو بے ادبی اوکړه چه اُوئې غورزَولے -

لیکن دا ظاهره ده چه دَ تورات دَ تختو په بے ادبئ سره غورزَول لوئے ګناه ده او انبیاء علیهم السلام دَ ټولو ګناهونو نه معصوم دی، په دے وجه دَ ایت مراد دا دے، چه اصل مقصود دَ هارون علیه السلام دَ ږیرو لو دَ پاره لاس خالی کول وُو او دَ غصے په حالت کښے ئې په جلدئ سره هغه کیخودے چه لیدونکے دا سے اوګڼړی چه اُوئې غورزَولے، دے له قرآن کریم په طور دَ خبرداری دَ غورزَولو په لفظ سره تعبیر کړے دے - (بیان القرآن)

دَ دے نه پس په دے خیال چه هارون علیه السلام په خپلو فرضو دَ نیابت کښے کوتاهی کړے ده، دَ دهٔ دَ سَر ویښته ئې اونیول رائې ښکلو دو نو حضرت هارونؑ عرض اوکړو چه ځما قصور نه دے قوم ځما هیڅ خیال اونه کړو او ځما ئې هیڅ خبره نه آوُریده بلکه نزدے وَه چه زهٔ دوی قتل کړے وے په دے وجه ته ځما سره دا سے سلوک مه کوه چه په هغے ځما دشمنان خوشحالیږی، او ته ما دَ دے ګمراهانو سره مه ګڼړه - پس دَ حضرت موسیٰ علیه السلام غُصّه سړه شوه او الله تعالیٰ ته ئې دُعا اوکړه : چه

رَبِّ اغْفِرْ لِيْ وَلِاَخِيْ وَاَدْخِلْنَا فِيْ رَحْمَتِكَ وَاَنْتَ اَرْحَمُ الرَّاحِمِيْنَ = "یعنی اے ځما پروردِګاره مَا هم معاف کړے او ځما رور هم او موږ بخپل رحمت کښے داخل کړے او تهٔ دَ ټولو رحمت کوُنکو نه زیات رحم کوُونکے ئې".

په دے کښے دَ خپل رور هارون علیه السلام دَ پاره خوئې په دې بنا دَ مغفرت دُعا اوکړه دَ مغفرت چه شاید دَ دهٔ نه دَ قوم دَ ګمراهئ په منع کولو کښے څه کوتاهی شوی وی، او دَ ځان دَ پاره دُعا دَ مغفرت یا خوئې په دے بنا اوکړه چه په تلوارے تختئ دَ تورات کیخودل کوم لره چه قرآن کریم په غورزَولو سره تعبیر کړی دی په یوه غلطئ ئې خبردار کړے دے دَ دے نه ئې مغفرت طلب کول مقصود وُو - او یا دا چه دَ دُعا طریقه داده چه بل ته دعا کوے نو ځان به پکښے هم شاملوے

چه دا سے تر محسوسه نه شي چه کوم ندي دے د دُعا نه مُستغني دے يعني چه حاجت ئے ورته نيشتے -

إِنَّ الَّذِينَ اتَّخَذُوا الْعِجْلَ سَيَنَالُهُمْ غَضَبٌ مِّنْ

البته کومو خلقو چه سخي لره معبود جوړ کړو دوی ته به اُورسی غضب د دوی د

رَّبِّهِمْ وَذِلَّةٌ فِي الْحَيَوٰةِ الدُّنْيَا ۚ وَكَذَٰلِكَ نَجْزِي

ربّ او ذلّت د دنيا په ژوند کښے - او دغه سزا ورکوو موږ

الْمُفْتَرِينَ ﴿١٥٢﴾ وَالَّذِينَ عَمِلُوا السَّيِّئَاتِ ثُمَّ تَابُوا

دروغ جوړوونکو لره - او کومو خلقو چه اوکړو ناکاره کارونه بيائے توبه اُوويسته

مِنْ بَعْدِهَا وَآمَنُوا إِنَّ رَبَّكَ مِنْ بَعْدِهَا لَغَفُورٌ

د دے نه پس او ايمان ئے راوړو نو بے شکه ستا ربّ د توبے نه پس خامخا بخښونکے

رَّحِيمٌ ﴿١٥٣﴾ وَلَمَّا سَكَتَ عَنْ مُّوسَى الْغَضَبُ أَخَذَ

مهربان دے - او کله چه سړه شوه د موسیٰ غصّه نو ده را واغستلے

الْأَلْوَاحَ ۖ وَفِي نُسْخَتِهَا هُدًى وَّرَحْمَةٌ لِّلَّذِينَ

تختئ - او څه چه په دے کښے ليکلي وُو په دے کښے هدايت او رحمت وه د هغو د پاره

هُمْ لِرَبِّهِمْ يَرْهَبُونَ ﴿١٥٤﴾ وَاخْتَارَ مُوسَى قَوْمَهُ

څوک چه د خپل ربّ نه ويريږي - او غوره کړل موسیٰ د خپل قوم نه

سَبْعِينَ رَجُلًا لِّمِيقَاتِنَا ۚ فَلَمَّا أَخَذَتْهُمُ الرَّجْفَةُ

آويا سړي زمونږ د وعدے د وخت د راوستلو د پاره - بيا کله چه دوی لره زلزلے اُونيول

قَالَ رَبِّ لَوْ شِئْتَ اَهْلَكْتَهُمْ مِّنْ قَبْلُ وَ اِيَّايَ ؕ

نو اوئے ویئیل اے ځما ربه که تا غوښتے نو اوّل به دې هلاک کړی وُو دوی او ما لره -

اَتُهْلِكُنَا بِمَا فَعَلَ السُّفَهَآءُ مِنَّا ۚ اِنْ هِيَ اِلَّا فِتْنَتُكَ ؕ

آيا ته مونږ هلاکوے په هغه کار چه اوکړو زمونږ د قوم بے عقلانو - دا تول ستا آزمائیښت دے -

تُضِلُّ بِهَا مَنْ تَشَآءُ وَ تَهْدِيْ مَنْ تَشَآءُ ؕ اَنْتَ وَلِيُّنَا

ګمراه کوے په دے سره هغه څوک ته چه اوغواړے او هدايت کوے چاته چه اوغواړے - ته ئے زمونږ کارساز

فَاغْفِرْ لَنَا وَ ارْحَمْنَا وَ اَنْتَ خَيْرُ الْغٰفِرِيْنَ ﴿۱۵۵﴾ وَ

پس اوبخے مونږ لره او رحمت اوکړے په مونږ او ته د ټولو نه غوره بخونکے ئے - او

اكْتُبْ لَنَا فِيْ هٰذِهِ الدُّنْيَا حَسَنَةً وَّ فِي الْاٰخِرَةِ

اوليکه زمونږ د پاره په دے دنيا کښے خيګړه او په آخرت کښے

اِنَّا هُدْنَآ اِلَيْكَ ؕ قَالَ عَذَابِيْٓ اُصِيْبُ بِهٖ مَنْ اَشَآءُ ۚ

مونږ رجوع اوکړه تاته - اوئے فرمائیل عذاب ځما غورځوم دے لره په چا چه اوغواړم -

وَ رَحْمَتِيْ وَسِعَتْ كُلَّ شَيْءٍ ؕ فَسَاَكْتُبُهَا لِلَّذِيْنَ

او ځما رحمت شامل دے هر شی لره - پس اُو به ئے ليکم د هغو د پاره چه

يَتَّقُوْنَ وَ يُؤْتُوْنَ الزَّكٰوةَ وَ الَّذِيْنَ هُمْ

ويره لری او ورکوی زکوٰة او کوم چه زمونږ

بِاٰيٰتِنَا يُؤْمِنُوْنَ ﴿۱۵۶﴾ ۚ

په خبرو باندې يقين ساتي -

# لنډ تفسیر

ربیا دَ دے خَسِي دَ عبادت کوُنکو په باره کښے حق تعالیٰ موسیٰ علیه السلام ته اوفرمائیل چه) کوم خلقو چه دَ خَسِي عبادت کړے دے (که اوس هم توبه اُونه باسی نو) په دوی به ډیر زر دَ دوی دَ رب دَ طرف نه غضب او ذلت دَ دُنیا په دے ژوند کښے پرِیوُځي او (دا خو دَ دوی تخصیص نه دے) مونږ (خو) اِفتراء یعنی دروغ جوړَوُنکو ته داسے سزا ورکوُو (چه په دُنیا کښے مغضوب او ذلیله کیږی، اګرچه په څهٔ وجه سره کله دا ذلت ښکاره نه وی یا ورستے وی. لکه سامری چه توبه اونه کړه په دهٔ غضب او ذلت نازل شو چه قصه ئے په سورتِ طٰهٰ کښے ده: قَالَ فَاذْهَبْ فَاِنَّ لَکَ فِی الْحَیٰوةِ اَنْ تَقُوْلَ لَا مِسَاسَ الاٰیة:) او کوم خلقو چه دَ ګناه کارا وکړو (مثلاً دَ خَسِي عبادت دَ دوی نه اوشو مګر) بیا دوی دَ دے (ګناه هو نو) نه پس توبه اوکړی او (دغه کفر پریدی) ایمان راوړی ستا رب دَ دے توبے نه پس (دَ دوی) ګناه معاف کوونکے او (دَ دوی په حال) رحم کوونکے دے (اګرچه دَ توبے مکمل کیدو دَ پاره دَ: اُقْتُلُوْٓا اَنْفُسَکُمْ : هم حکم شوے وُه، ځکه چه اصل رحمت دَ اخرت دے، نو دَ توبه کوُونکو خطائي دغه شان معاف شوه) او کله چه (دَ هارون علیه السلام دَ اعذر ئے وا اُوریدو نو) دَ موسیٰ (علیه السلام) غصه سړه شوه نو دغه تختے ئے راوچتے کړے او دَ دے (تختو) په مضامینو کښے دَ هغو خلقو دَ پاره کوم چه دَ خپل ربّ نه ویریدل هدایت او رحمت وُه (مراد ترِے نه احکام دی چه په دی عمل اوکړی نو هدایت یافته به شی او رحمت به پراوشی)

او (کله چه دَ سِنې قصه ختمه شوه نو موسیٰ علیه السلام په اطمینان سره دَ تورات احکام واوُرَوَل، دَ دغو خلقو عادت شبهے او شکونه پیدا کوُل وُو نو په دے کښے ئے هم شبهه پیدا کړه. چه مونږ ته به څنګه معلومه شی چه دا دَ خدائے تعالیٰ احکام دی که مونږ ته الله تعالیٰ پخپله اووائي نو یقین به اوکړو. نو موسیٰ علیه السلام حق تعالیٰ ته عرض اوکړو و دَ هغے طرفه حکم اوشو چه په دوی کښے یو څو داسے سړی چه دوی ئے معتبر ګڼړی منتخب کړه او کوهِ طور له ئے راوَله مونږ به پخپله دوی ته اووایوُ چه دا زمونږ احکام دی،

او دَ دے راوستلو دَ پاره یو وخت مقرر کړے شو چنانچه موسیٰ (علیه السلام) اُویا سړی
پخپل قوم کښے زمونږ په مقرر وخت دَ راوستو دَ پاره منتخب کړل. (نو چه هلته اُو
رسیدل او دوی دَ الله تعالیٰ کلام واؤریدو نو اؤئے وئیل چه خدائے خبر دے چه
داڅوک خبرے کوی مونږ خو به خله یقین اوکړو چه په ډاګه دَ ګلیٔ پخپلو سترګو
سره ئے اُو وینو: لکه دا قول دَ الله تعالیٰ دے: لَنْ نُّؤْمِنَ لَكَ حَتّٰى نَرَى اللّٰهَ جَهْرَةً:
خدائے تعالیٰ دَ دے بے باکئ سزا ورکړه دَ لاندینه پر سخته زلزله شروع شوه
دَ برَه نه پرے دَ بجلئ داسے کړس اوشو چه ټول هلته ړیړے شو) پس کله چه
دوی لره زلزلے اونیول نو موسیٰ (علیه السلام) اُوویل و چه بنی اسرائیل
خو هسے هم چا هلان او بدګمانه دی داسے به اوګڼړی چه ته ئے بوتلل او
مړه ئے کړل نو اوویل و) عرض ئے اوکړو چه اے ځما پروردګاره (دا خو
ځما یقین دے چه دے خلقو لره محض سزا ورکول منظور دی خاص هلاکول
مقصود نه دی ځکه چه) که تا ته دا منظوره وے نو تا به دَ دے نه وړاندِ
دوی لره او ما لره هلاک کړی وے (ځکه چه دَ دوی دا وخت هلاکیدل
دَ بنی اسرائیلو د لاسه ځما هلاکیدل دی پس که تا ته دا منظور وے نو تا خو
وړاندِ هم داسے کولے شو مګر هرکله چه دِ داسے نه دی کړی نو معلومه شوه
چه دَ دوی هلاکول ستا مقصود نه دی ځکه چه په دے سره ځما هلاکت هم
دے، (سره دَ بدنامئ) خو ځما اُمید دے چه ته به ما بدنام نه کړے) او ته
به زمونږ نه دَ یو څو بے وقوفو په حرکت سره ټولو لره هلاک کوے (چه بے وقوفی
خو اوکړی دا خلق چه داسے ګستاخی اوکړی او دَ دے سره زه دَ بنی اسرائیلو دَ
لاسه هم هلاک شم، ستا نه ځما اُمید دے چه ته به داسے نه کوے، پس ثابته
شوه چه) دا واقعه (دَ زلزلے او کړس) محض ستا دَ طرف نه یو امتحان دے په داسے
امتحانا تو سره چا لره چه ته غواړے په ګمراهئ کښے اچوے (چه دَ الله تعالیٰ نه
شکایتونه او ناشکری اوکړی) او چا لره چه ته ئے غواړے په هدایت باندِ قائم
ساتے (چه دَ دے په حکمتونو او مصلحتونو پوهیږی پس زه ستا په فضل
او کرم سره ستا دَ حکیم والی علم لرم په دے وجه په دے امتحان کښے مطمئن
یم او) خاص ته ځما خبر اخستونکے ئے په مونږ مغفرت او رحمت اوفرمائے او ته

دَ تیرو معافي کوُنکو نه زیات معافي کو نکے ئے (بیس دَ دوی دا بے باکي هم معاف کړے، لکه چه دغه خلق صحیح سالم پورته شو، په سورتِ بقره کښے دَ دے تفصیل اوُ کو رئ) او (دَ دے دُعا سره دوی تفصیلي رحمت دَ پاره دا دُعا هم اوُکړه چه) زمونږ خلقو نوم په دنیا کښے دَ نیک حالي اوُ لیکه او (دغه شان) په آخرت کښے هم (ځکه چه) مونږ ستا طرف ته (په خلوص او طاعت سره) رجوع کوُو (الله تعالیٰ دَ موسیٰ عَلَیه السلام دعا قبوله کړه او) اوُئے فرمائیل چه (اے موسیٰ اوّل خو مطلقاً زما رحمت زما په غضب باندِ وړاندِ دے چنانچه) زهٔ خپل عذاب (او غضب) په هغو واقع کوم په چا چه غواړم (اگرچه دَ عذاب مستحق خو هر نا فرمان وی لیکن بیا هم په ټولو نه واقع کوُم بلکه په دوی کښے ئے په خاص خاصو خلقو واقع کوُم چه کوم ډیر سرکشه او ضد یان وی) او زما رحمت (دا سے عام دے چه) ټول شیو ته ئے راګیر کړی دی (سره دَ دے چه په دوی کښے ډیر مخلوق مثلاً سرکشه او عنادګر دَ دے مستحق نه وی، مګر په دوی هم یو قسم لهٔ رحمت دے اگرچه په دنیا کښے وی، پس کله چه زما رحمت دَ غیر مستحقینو دَ پاره هم عام دے) نو دَ غه رحمت دَ هغو خلقو په نوم خو (په کامل طور) به ئے ضرور اوُ لیکم کوم چه دَ وعدے مطابق دَ دے مستحق هم دی په دے وجه چه دوی اطاعت کوی نو) دَ خدائے تعالیٰ نه یرېږي (کوم چه دَ عملونو دَ زړهٔ نه دے) او زکوٰة ورکوی (کوم چه دَ عملونو دَ اندامونو نه دے) او کوم چه زمونږ په آیا تو نو ایمان راوړی (کوم چه دَ عقیدو نه دے، نو داسے خلق خو اوّل نه مستحق دَ رحمت دی اګر که تا درخواست هم نه وے کړے او اوُس خو تهٔ درخواست هم کوے: اِرْحَمْنَا وَاکْتُبْ لَنَا؛ پس مونږ دَ قبلید وزیرے درکوُو ځکه چه تهٔ خو داسے ئے او ستا په قوم کښے هم کوم چه دَ رحمت مستحق کیدل غواړی هغوی دِ داسے اوصاف اختیار کړی چه مستحق شی) -

# معلومات او مسئلے

دا دَ سورتِ اعراف نولسمه رکوع ده دَ دے په وړمبی آیت کښے دَ غَمی دَ پرستش کوُونکو او په دے دَ قائم پاتے کیدُ ونکو بنی اسرائیلو دَ بد انجام

ذکر دے چہ پہ آخرت کښے بہ دوی د الله تعالیٰ پہ غضب کښے اخته شی۔ چہ د دغے نه پس بہ ئے چرته د پناه ځائے نه وی۔ او پہ دُنیا کښے خو بہ د دوی ذلت اَو خواری نصیب شی۔

| دبعضو گناهو نوښتهٔ سزا | لکه د سامری او د دهٔ د ملګرو حال چه دے ۔چه دوی |
|---|---|
| پہ دنیا کښے هم ملا وېږی | د شخی دعبادت نه صحیح توبه او نه کړه نو الله تعالیٰ |

دوی پہ دنیا کښے هم خوارا و ذلیله کړل ۔ چہ دهٔ ته موسیٰ علیه السلام دا حکم ورکړو چه دے د ټولو خلقو نه جُدا اُوسی نه دِ دے د چا سره لاس لګوی او نه دِ څوک د دهٔ سره لاس لګوی چنانچه دے ټول عمر دغه شان د ځناورو سره ګرځید وے او انسان به دهٔ ته نزدے نه ورتلو ۔

پہ تفسیر قرطبی کښے پہ روایت د قتادهؓ ذکر دی چہ الله تعالیٰ پہ دهٔ دا عذاب مسلّط کړے وهٔ چہ کله بہ چا دهٔ لره لاس ورووړو یا به دهٔ چالره لاس وروړو نو فورًا به پہ دواړو وتبه راغله (قرطبی)

او پہ تفسیر روح البیان کښے دی چہ دا خاصیت د دهٔ پہ نسل کښے هم تر اُوسه پورے باقی دے ۔

د آیت پہ آخر کښے ارشاد فرمائی: وَكَذٰلِكَ نَجْزِي الْمُفْتَرِيْنَ: یعنی کوم خلق چہ پہ الله تعالیٰ باندِ دروغ جوړ وی دوی ته هم دا سے سزا ورکولے شی۔ سُفیان بن عُیینهؒ فرمائی چہ کوم خلق پہ دین کښے بدعت اختیار وی هغوی هم د دے افتراء علیٰ الله مجرمان ګیږی او د دے سزا مستحق شی۔ (مظهری)

امام مالکؒ پہ دے آیت دلیل نیولے دے فرمائی چہ پہ دین کښے د خپل طرف نه بدعاتو ایجاد کونکو دا سزا ده چہ پہ آخرت کښے بہ د الله تعالیٰ د غضب مستحق شی او پہ دُنیا کښے د ذلت۔ (قرطبی)

پہ دویم آیت کښے د هغو خلقو حال ذکر دے کوم چہ د موسیٰ علیه السلام د پوهه کولو نه پس د دے جُرم نه توبه اُوکړه او د توبے د پاره چہ کوم سخت شرط الله تعالیٰ لګولے وهٔ چہ دا ټول خلق دِ خپل مینځ کښے یو بل قتل کړی نو د دوی توبه به قبوله شی، دے خلقو دا حکم پځائے کړو نو موسیٰ علیه السلام دوی ته پہ حکم د الله تعالیٰ را اُوخو بنځل چہ ستاسو ټولو توبه قبوله شوه ۔ پہ قتلِ عام کښے

چه کوم خلق او وړلے شو هغه شهيدان شو او کوم چه باقي پاتے شو د هغوي مغفرت اوشو- په دے ايت کښے ارشاد فرمائي چه کوم خلق بد عملونه اوکړي، خواه که هر څو مره لويے گناه کفر او نا فرماني ئے کړې وي که هغوي د دے نه پس توبه اوکړي او ايمان برابر کړي يعني د ايمان په مقتضي خپل عملونه برابر کړي نو الله تعالى به د دے تولو لوره په خپل رحمت سره معاف کړي، په دے وجه انسان لره پکار دي چه کله ترڅه گناه اوشي، نو فورًا الله تو بے طرف ته رجوع اوکړي-

په دريم ايت کښے د دے بيان دے چه کله د موسى عليه السلام غُصّه سړه شوه نو د تورات تختئ چه په تلوارے ئے اېخودے وے بيا ئے راواُچتے کړے او د دې په نُسخه کښے د الله تعالى نه د يريدونکو د پاره هدايت او رحمت وه-

لفظ د: نُسخه: هغه ليکلو ته وئيلے شي کوم چه د څه کتاب وغيره نه نقل کړے شي، بعض روايتو نو کښے دي چه کله حضرت موسى عليه السلام د تورات تختئ په تلوارے کېخودے نو هغه ماتے شوے وے، بيا ورته الله تعالى په بل څه شي ليکلے شوے ورکړے دے ته نُسخه وئيلي شوي دي-

| د اوئيا بني اسرائيلو انتخاب او د دوي د هلاکت واقعه | په څلورم ايت کښے د يوے خاصے واقعے ذکر دے چه موسى عليه السلام کله د الله تعالى کتاب |
|---|---|

تورات راوړو بني اسرائيلو ته ئے ورکړو نو دوي د خپلے نا پوهئ او بهانو لټولو په وجه سره اُووے چه زمونږ به دا څنګه يقين راشي چه دا د الله تعالى کتاب دے ممکنه ده چه تا د خپل طرف نه ليکلے وي او راوړے دے وي- د دوي د اطمينان د پاره موسى عليه السلام دُعا اوکړه نو د الله تعالى د طرف نه دا ارشاد اُوشو چه د دے قوم منتخب سړي ته کوهِ طور لره راولہ نو مونږ به دوي ته خپل کلام واوړو وُچه د دوي يقين راشي- موسىٰ عليه السلام په دوي کښے اوئيا سړي منتخب کړه او کوهِ طور ته ئے بوتلل، د وعدے مطابق دوي پخپلو غوږونو سره د الله تعالى کلام واوريد و، مگر کله چه دا دليل هم پوره شو، نو اُوئے وئيل مونږ ته څه معلومه ده چه دا آواز د الله تعالى دے او که د بل چا، مونږ خو به هله يقين اوکړو چه کله په دا کم الله تعالى اُووينو، د دوي دا سوال چونکه د نا پوهئ او جهالت وه- نو

په دے ورته د الله تعالیٰ غضب متوجه شو د لاندې نه پرې زلزله راغله او د پاسه نه پرې د تند د کړکې اوشو ټول پرې بے هوشه پريوتل، او په ظاهره مړه شو، په سورتِ بقره کښې د: صاعقه: لفظ راغلے دے او دلته د: رجفه: د صاعقه معنیٰ د تند د کړکې دے او د رجفه معنیٰ زلزله ده - په دے کښې هیڅ لرے والے نیشته چه دواړه څیزونه پرې جمع شوی وی -

په هرحال دا خلق داسے پرېوتهٔ لکه چه مړهٔ وی - خواه حقیقةً مړه وی اوکه په ظاهر کښې مړهٔ په نظر راتلل - حضرت موسیٰ علیه السلام په دے واقعه سخت پریشانه شو - اوّل خو په دے چه دا خلق د خپل قوم منتخب خلق وُو دویم په دے وجه چه اوس به خپل قوم ته څهٔ جواب ورکوی هغوی به دا تهُمت اولګوی چه موسیٰ علیه السلام دا ټول چرته بوتلل قتل ئے کړل، او د دے تهُمت نه پس دا هم ښکاره خبره ده چه ما به قتل کړی په دے وجه الله جلّ شانهٔ ته ئے عرض اوکړو چه اے ځما پروردګاره زهٔ پوهیګم چه په دے واقعه کښې ستا مقصود د دوی هلاکول نه دی ځکه چه که دا مقصود وے نو د دے نه وړاندې چیرے واقعات وُو چه په هغے کښې دوی هلاکیدے شو، د فرعون سره به ډوب غرق کړی وُو - یا د سخي د عبادت په وخت کښې په دے د ټولو د وړاندې هلاک کړی وُو، اوکه تا غوښتے نو زهٔ به هم د دوی سره هلاک کړے وُم مګر تا داسے اُونه کړل، نو معلومه شوه چه دا وخت هم د دوی هلاکول مقصود نه دی بلکه سزاورکول او پوهه کول دی، او دا خنګه کیدے شی چه ته مونږ د یو څو بے وقوفو د کار په وجه سره هلاک کړے - دلته کښې ئے د خپل ځان هلاکول ځکه ذکر کړل چه د دے اوتیا کسانو دغه شانتے غائبانه هلاکت نتیجه داوه چه موسیٰ علیه السلام به د خپل قوم د لاسه قتل شی -

بیائے عرض اوکړو چه زهٔ پوهیګم چه دا محض ستا امتحان دے د کوم په ذریعه چه ته بعضو خلقو لره ګمراه کوے چه د الله تعالیٰ نه شکایت اوناشکری اوکړی - او بعضو لره په هدایت باندې قائم ساتے چه دوی د الله تعالیٰ حکمتونو او مصلحتونو لره اوپیژنی او مطمئن پرې پاتے شی -

زهٔ هم ستا په فضل سره ستا د حکیم والی علم لرم په دے وجه په دے امتحان کښے مطمئن یم، او هم تهٔ زموږ خبر گیری کوونکے یې - په موږ مغفرت او رحمت اوفرمایه - او تهٔ د ټولو معافی کوونکو نه زیات معافی کوونکے یې په دے وجه د دوی دا بے باکی هم معاف کړے چنانچه دغه ټول خلق صحیح سالم پورته شو۔

او بعضے تفسیر لیکونکی فرمائی چه دا اویا سړی د کوم ذکر چه په دے ایت کښے دے هغه نه دی کوم چه ﴿اَرِنَا اللّٰهَ جَهْرَةً﴾ درخواست کړے وه او دوی د تندر په ذریعه هلاک شوی وُو بلکه دا هغهٔ خلق وُو کوم چه پخپله د سخی په عبادت کښے شریک نه وُو خو قوم لره ئے د دے کار نه د منع کولو کوشش هم نه وه کړے، د دے په سزا کښے په دوی زلزله راغله او بے هوشه شو (والله تعالیٰ اعلم) په هر حال دا خلق د موسیٰ علیه السلام په دُعا سره ژوندی راپورته شو۔

په پنځم ایت کښے د حضرت موسیٰ علیه السلام د دے دُعا تکمله دا هم ذکر ده، ﴿وَاكْتُبْ لَنَا فِي هٰذِهِ الدُّنْيَا حَسَنَةً وَّ فِي الْاٰخِرَةِ اِنَّا هُدْنَآ اِلَيْكَ﴾ : "یعنی اے زموږ پروردگاره تهٔ زموږ د پاره په دے دُنیا کښے هم نیک حالی اولیکے او په اخرت کښے هم ځکه چه موږ ستا طرف ته په خلوص او اطاعت سره رجوع کړې"۔

د دے په جواب کښے الله تعالیٰ ارشاد فرمائی: ﴿عَذَابِيْٓ اُصِيْبُ بِهٖ مَنْ اَشَآءُ وَرَحْمَتِيْ وَسِعَتْ كُلَّ شَيْءٍ فَسَاَكْتُبُهَا لِلَّذِيْنَ يَتَّقُوْنَ وَيُؤْتُوْنَ الزَّكٰوةَ وَالَّذِيْنَ هُمْ بِاٰيٰتِنَا يُؤْمِنُوْنَ﴾ : "یعنی اے موسیٰ اول خو ځما رحمت مطلقاً ځما په غضب باندے وړمبے دے نو زهٔ خپل عذاب او غضب خو صرف په هغو واقع کوم په کوم چه غواړم اگر چه مستحق د عذاب هر نافرمان وی لیکن بیا هم په ټولو عذاب نه واقع کوم بلکه په دوی کښے په خاص خاص خلقو عذاب واقع کوم کوم چه انتهائی سرکشه او ناړامه وی، او ځما رحمت دا سے عام دے چه هر شے ئے راگیر کړے دے سره د دے چه په دوی کښے ډیر خلق مثلاً سرکشه او نافرمان د دے مستحق نه وی مگر په دوی هم یو قسم له رحمت دے اگر چه په دنیا کښے سهی پس کله چه ځما رحمت د غیر مستحقینو د پاره عام دے، نو دغه رحمت خو د هغو خلقو د پاره په کامل طور باندے به خامخا اُولیکم کوم چه د وعدے مطابق د دے

مستحق هم دی په وجه د دے چه اطاعت کوی، د خدائے تعالیٰ نه یریګی او زکوٰة هم ورکوی او کوم چه زمونږ په ایاتو ایمان راوړی، نو داخلق د اوّل نه مستحق د رحمت دی په دے وجه تاته د دُعاد قبلید و زیرے د ر کید ے شی -

د دے جواب په تقریر کښے د تفسیر لیکونکو حضراتو مختلف قولونه دی ځکه چه دلته په صافو لفظونو کښے د دُعاد قبلید و ذکر نیشتے - لکه څنګه چه په نورو موقعو کښے صاف فرمائیلی دی: قَدْ اُوْتِیْتَ سُؤْلَكَ یٰمُوْسٰی : یعنی اے موسیٰ ستا سوال پوره کړے شو او بل ځائے ارشاد دے: اُجِیْبَتْ دَّعْوَتُكُمَا : یعنی اے موسیٰ او هارون ع ستاسو دواړو دُعا قبوله شوه - دلته دغه شان څۀ وضاحت نیشتے - په دے وجه بعضو حضراتو د دے ایت مطلب دا مقرر کړے دے چه د موسیٰ علیه السلام دا درخواست د خپل اُمت په باره کښے خو قبول نه شو البته د اُمتِ محمدیؐ په حق کښے قبول کړے شو چه ذکر ئے په روستو ایت کښے په وضاحت سره راځی - مګر په تفسیر روح المعانی کښے ئے د دے احتمال لره ډیر لرے مقرر کړے دے - په دے وجه د جواب صحیح تقریر دا دے، چه د موسیٰ علیه السلام د دُعا دوه برخے وُو - یو دا چه په کومو خلقو عتاب او عذاب شوے دے هغوی ته معافی ورکړے شی او رحمت پرے او شی، دویم دا چه ځما د پاره او ځما د پوره قوم د پاره په دُنیا او اٰخرت کښے خیګړه اُو لیکے ملګرے د اوّلے دُعا جواب په دے ایت کښے ذکر دے او د دویمے دُعا جواب په دویم ایت کښے ذکر دے - د اوّل ایت نچوړ دا دے چه ځما عادت دا دے چه زۀ هر یو ګناه ګار لره نه عذابوم بلکه صرف هغو لره عذابوم کوم لره چه د په وجه د ډیرے سرکشئ، عذاب ورکول اوغوایم، په دے وجه دا خلق به هم عذاب نګړے شی ته بے فکره اُوسه، پاتے شو د رحمت درخواست نو ځما رحمت خو په هر شی باندِ خور او احاطه کوونکے دے، انسان وی او که غیر انسان، مؤمن وی او که کافر، فرمانبرداروی او که نافرمانه، بلکه کوموته چه په دُنیا کښے څۀ عذاب او تکلیف ورکولے شی هغه هم د رحمت نه خالی نه وی - کم نه کم دا چه په کوم مصیبت کښے اخته وی د دے نه لوئے مصیبت نه وی اخوا لے شوے،

حال دا دے چه الله تعالیٰ په دے هم قادر دے۔

استاذ محترم حضرت مولانا انورشاه صاحبؒ فرمائی چه د رحمت د فراخئ دا معنیٰ ده چه د رحمت په دائره کښې هرڅوک دننه دے په چا تنګه نه ده۔ د دے دا معنیٰ نه ده چه هر شے مرحوم دے۔ لکه ابلیس ملعون اووے چه زهٔ هم یو شے یم او هر شے مرحوم دے نو په دے وجه زهٔ هم مرحوم یم۔ د قرآن کریم په الفاظو کښې دے طرف ته اشاره موجود ده چه داسے ئے اونه فرمائیل چه په هرشي باندې به رحمت اوشي بلکه داسے ئے اوفرمائیل چه صفت د رحمت تنګي نه دے فراخه دے په چا چه الله تعالیٰ رحمت فرمائیل اوغواړی فرمائیلے شي۔ په قرآن کریم کښې د دے شهادت بل ځائے داسے راغلے دے: فَإِنْ كَذَّبُوكَ فَقُلْ رَّبُّكُمْ ذُو رَحْمَةٍ وَّاسِعَةٍ وَلَا يُرَدُّ بَأْسُهُ عَنِ الْقَوْمِ الْمُجْرِمِينَ: "یعنی که دا خلق تا دروغژن کوی نو دوی ته اُوفرمایه چه ستاسو پروردګار فراخه رحمت والا دے مګر د مجرمانو نه د هغهٔ عذاب څوک نه شي واپس کولے" په دے کښې ئے او خوده چه د رحمت فراخي د مجرمانو د عذاب لوس لا منافي نه ده، په مجرمانو عذاب راتلے شي۔

لنډه دا چه د موسیٰ علیه السلام دا دُعا د هغو خلقو په حق کښې بے د څهٔ شرط نه قبوله کړے شوه یعنی د مغفرت او معافۍ هم او د رحمت هم۔

او دویمه دُعا ئے کومه کښې چه د دُنیا او اخرت د مکملے خیګړے د دوی د پاره د لیکلو درخواست وُو۔ د دے متعلق ئے څو شرطونه اولګول۔ مطلب دا دے چه په دنیا کښې خو په هرمؤمن او کافر عام رحمت کیدے شي مګر اخرت کښې د فرق راوستلو مقام دے دلته د رحمت مستحق به صرف هغه خلق وی کوم چه څو شرطونه پوره کړی، اوّل دا چه دے تقویٰ او پرهیزګاری اختیار کړی یعنی شرعی واجبات ټول اداکړی او د ناجائزونه لرے اُوسی، دویم دا چه د خپلو مالونو نه د الله تعالیٰ د پاره زکوٰة اُوباسی، دریم دا چه زمونږ په ټولو آیاتو نو باندې بے د څهٔ استثناء او تاویل نه ایمان راوړی۔ دا موجوده خلق هم که دا صفتونه پوره په ځان کښې پیدا کړی نو د دوی د پاره

به هم د دُنیا او اخرت مکمله خیګړه اولیکلے شي۔

لیکن د دے نه په روستو ایت کښے ئے دے طرف ته اشاره اوکړه چه د دے صفتونو په جمع سره حاصلوونکي به هغه خلق وي کوم چه د دوینه پس په اخره زمانه کښے راتلونکي او د نبي اُمّي تابعداري به کوي او د دے په نتیجه کښے به دوي د مکمّلے فلاح او خیګړے مستحق وي۔

---

حضرت قتادهؒ فرمائي چه کله ایت: وَرَحْمَتِیْ وَسِعَتْ کُلَّ شَیْءٍ؛ نازل شو، نو ابلیس اُووے چه زه هم په دے رحمت کښے داخل یم۔ لیکن په وروستو جملو کښے ئے دا اُوخوده چه د اخرت د رحمت د پاره د ایمان وغیره شرطونه دي، چه دا ئے داوُریدل نو ابلیس نا اُمیده شو، مګر یهودو او نصاراؤ دعوه اوکړه چه په مونږ کښے خو دا صفتونه موجود دي یعني تقوی او زکوٰة ورکول او ایمان۔ مګر د دے نه پس چه کوم شرط په نبي اُمّي باندې د ایمان راوړو وبیان شو نو د دے نه هغه یهود او نصارا اُوتل کوم چه په نبي کریم صلے الله علیه وسلم باندې ایمان رانه وړو۔

مګر په دے نادره او عجیبه طریقه د بیان سره د حضرت موسیٰ علیه السلام د دعا د قبلیدو بیان هم اوشو۔ او د اُمّتِ محمّدي ﷺ د خاصو فضیلتونو ذکر هم اُوشو۔

---

اَلَّذِیْنَ یَتَّبِعُوْنَ الرَّسُوْلَ النَّبِیَّ الْاُمِّیَّ الَّذِیْ

هغه خلق کوم چه پیروي کوي د دے رسول چه نبي اُمّي دے

یَجِدُوْنَهٗ مَکْتُوْبًا عِنْدَهُمْ فِی التَّوْرٰىةِ وَالْاِنْجِیْلِ

کوم لره چه مومي دوي لیکلے شوے د خپل ځان سره په تورات او انجیل کښے۔

یَاْمُرُهُمْ بِالْمَعْرُوْفِ وَیَنْهٰهُمْ عَنِ الْمُنْکَرِ

دے حکم کوي دوي ته د نیک کار او منع کوي دوي لره د بد کار نه

وَيُحِلُّ لَهُمُ الطَّيِّبٰتِ وَيُحَرِّمُ عَلَيْهِمُ الْخَبٰٓئِثَ

او حلالوي دوی ته پاکې شيزونه او حراموي په دوی حرام شيزونه

وَيَضَعُ عَنْهُمْ اِصْرَهُمْ وَالْاَغْلٰلَ الَّتِيْ كَانَتْ عَلَيْهِمْ

او کوزوي د دوی نه د دوی بوج او هغه قيدونه چه په دوی باندې وو -

فَالَّذِيْنَ اٰمَنُوْا بِهٖ وَعَزَّرُوْهُ وَنَصَرُوْهُ وَاتَّبَعُوا

پس کوم خلق چه په ده ايمان راوړی او د ده ملګرتيا او کړي او د ده مدد او کړي او تابع شي

النُّوْرَ الَّذِيْٓ اُنْزِلَ مَعَهٗٓ اُولٰٓئِكَ هُمُ الْمُفْلِحُوْنَ ﴿۱۵۷﴾ ع ۱۹

د هغې نور چه د ده سره نازل شوې دې دغه خلق او رسيدل خپل مراد ته -

# لنډ تفسير

کوم خلق چه د داسې رسول نبي اُمي تابعداري کوي کوم چه دوی د ځان سره په تورات او انجيل کښې ليکلې مومي (د کوم صفتونه چه داهم دي چه) هغه دوی ته د نيکو کارونو حکم کوي او د بد و خبرونه ئې منع کوي او پاکيزه شيزونه د دوی د پاره حلالوي (اګر چه په وړاندې شريعتونو کښې حرام وو) او ګنده شيزونو لره (په دستور سره) په دوی حراموي او په دې خلقو چه کوم (په اولنو شريعتونو کښې) بوجونه او طوقونه (بار او په غاړه) وو (يعني سخت او ګران کارونه حکمونه چه دوی ئې پابند کړې وو) هغو لره لرې کوي (يعني داسې سخت حکمونه د ده په شريعت کښې منسوخ کيږي) پس کوم خلق چه په دې نبي ايمان راوړي او د ده ډله کوي او مدد ئې کوي او د دغې نور تابعداري کوي کوم چه د ده سره راليکلې شوې دې (يعني قرآن) داسې خلق پوره مراد موندونکي دي (چه د هميشه عذاب نه به نجات بيا موي) -

# معلومات او مسئلے

دخاتم النبیین محمد مصطفیٰ صلے الله علیه وسلّم او دَدوی دَاُمّت خاص صفتونه او فضیلتونه

په تیر ایت کښے دَموسیٰ علیه السلام دَدُعا په جواب کښے ارشاد شوے وَه چه هسے خو دَالله تعالیٰ رحمت په هرشی او هرسړی فراخه دے ستا موجوده اُمّت هم دَدے نه محرومه نه دے، لیکن دَ مکمّل نعمت او رحمت مستحق به هغه خلق وی کوم چه دَ ایمان او تقوی او زکوٰة وغیره خاص شرطونه پوره کړی۔

په دے ایت کښے ئے دَ دغو خلقو پته اُو خودله چه په دے شرطونو پوره ختونکی به کوم خلق وی آو اُوئے خودله چه دا به هغه خلق وی کوم چه دَ رسول اُمّی صلے الله علیه وسلّم تابعداری اوکړی۔ په دے ضمن کښے ئے دَ نبی کریم صلے الله علیه وسلّم یو څو خاص فضیلتونه او کمالات او علامات هم ذکر کړل په دوی ئے صرف دَ ایمان راوړلو نه بلکه دَ دهٔ دَتابعداری حکم ئے ورکړے دے۔ دَ دے نه معلومه شوه چه دَ اخرت دَکامیابی دَپاره دَ ایمان سره دَ شریعت او سنّت تابعداری ضروری ده۔

اَلرَّسُوْلَ النَّبِیَّ الْاُمِّیَّ: دَ لته دَرسول او نبی دَ دوه وَو لقبونو سره دَدوی یو دریم صفت اُمّی هم بیان شوے دے۔ دَ اُمّی لفظ معنیٰ ده اَنْ پړه کوم چه په لیکلو لوستلو باندِ نه پوهیګی۔ دَعربو عام قوم ته په قرآن کښے اُمّیین په دے وجه وئیلی شوی دی، چه په دوی کښے دَ لیکلو لوستلو رواج ډیر کم وَه۔ او اُمّی کیدل دَ یو انسان دَپاره څهٔ ښهٔ صفت نه دے بلکه دا یو عیب ګنړلے شی، مګر دَ نبی کریم صلے الله علیه وسلّم دَعلومو، معلوماتو او خصوصیتو او حالاتو او کمالاتو سره اُمّی کیدل دَدوی دَپاره لوئے صفت دَکمال جوړ شوے دے ځکه چه کهٔ علمی عملی اخلاقی کمالات دَ تعلیمیافته سړی نه ظاهر وی نو دغه دَدهٔ دَ تعلیم نتیجه وی۔ لیکن دَ یو محض اُمّی نه دَ داسے بیش بها علومو او بے مثله حقیقتونو او معلوماتو ښکاره کیدل دَ دهٔ یوه داسے واضحه معجزه ده چه دَ دینه دَ یو انتهائی درجے عنادګر او مخالف هم انکار نه شی کولے۔ خاص کر بیا کله چه دَدوی عمر شریف څلویښت کاله په مکّه مکرّمه کښے

دا سے تیرشو دَ تولو دَ ورانڊِ چه نهٔ ئے دَ چانه یو تکے لوستلے او نه اِیزده کړے دے تیک دَ څلو یښت کاله عمر په پوره کیدو باندِ یَک دم دَ دوئی په ژبے مبارکے باندِ هغهٔ کلام جاری شو دَ کوم دَ یو ے وړوکے شان ټکړے دَ مثل راوړو نه چه ټوله دُنیا عاجزه شوه - نو په دے حالاتو کښے دَ دوئی اُمّی والے دَ الله تعالیٰ دَ طرف نه په رسالت او دَ قرآن په کلام اِلٰهی کیدو یو ډیر لوئے شهادت دے

په دے وجه اُمّی والے اګرچه دَ نورو دَ پاره دَ تعریف قابل صفت نه دے مګر دَ نبی کریم صلے الله علیه وسلم دَ پاره ډیر لوئے دَ تعریف او کمال صفت دے - لکه دَ متکبر لفظ چه دَ عامو خلقو دَ پاره قابل تعریف صفت نه دے بلکه عیب دے مګر دَ الله تعالیٰ جلّ شانهٗ دَ پاره په خصوصیت سره دَ تعریف او مدح صفت دے -

په آیت کښے څلورم صفت دَ نبی کریم صلے الله علیه وسلم دا بیان شویدے چه دغه خلق تا لره په تورات او انجیل کښے لیکلے مومی - دلته دے خبرے ته نظر کول پکار دی چه قرآن کریم دا او نه فرمائیل چه ستا صفتونه او حالاتو لره لیکلی مومی بلکه دَ "یَجِدُوْنَهٗ" لفظ ئے اختیار کړو، چه معنیٰ ئے دا ده چه تا لره لیکلے مومی - په دے کښے اشاره دے خبرے طرف ته ده چه په تورات او انجیل کښے به دَ نبی کریم صلے الله علیه وسلم صفتونه په داسے تفصیل سره وی چه دَ دے کتل به داسے وی لکه چه پخپله نبی کریم صلے الله علیه وسلم لره اُووینی - او دَ تورات او انجیل تخصیص ئے دلته حُکه کړے دے چه بنی اسرائیل دَ دے دوؤ کتابونو قائل دی - ورنه دَ نبی کریم صلے الله علیه وسلم دَ حالاتو او صفاتو ذکر خو په زبور کښے هم موجود دے -

دَ ذکر شوی آیت اصل مخاطب موسیٰ علیه السلام دے چه په دے کښے ئے دهٔ ته خودلے ده، چه دَ دنیا او اخرت مکمله کامیابی ستا دَ اُمّت دَ هغو خلقو حصه ده کوم چه په نبی اُمّی خاتم الانبیاء صلے الله علیه وسلم ایمان راوړی تابعداری ئے اوکړی دَ کوم ذکر چه دوی په تورات او انجیل کښے لیکلے بیا مومی -

---

په تورات او انجيل کښے د نبي کريم صلى الله عليه وسلم صفتونه او نښے

موجوده تورات او انجيل د ډیر اَدلُونُ بدلون او ردّو بدل کولو په وجه د اعتماد قابل نه دی پاتے شوی، خو بیا هم د دے سره اوس په کښے داسے الفاظ موجود دی چه د نبي کريم صلى الله عليه وسلم پته ورکوی۔ او دومره خبره خو بالکل واضحه ده چه کله قرآن کريم دا اعلان اوکړو چه د خاتم الانبياء صلى الله عليه وسلم صفتونه او نښے په تورات او انجيل کښے ليکلے شوی دی۔ نو که دا خبره د واقعے نه خلاف وے نو د دغے زمانے د یهودو او نصارا وُ د پاره خو په د اسلام خلاف لویه وَسله په لاس ورغلے وه چه د دے په ذریعه بیا دوی قرآن دروغژن کولے شو چه په تورات او انجيل کښے خو چرته هم د نبي اُمّي د حالاتو ذکر نیشته، لیکن د دغے وخت یهودو او نصارا وُ د دے خلاف هیڅ اعلان اُو نه کړو، دا پخپله د دے ګواهي ده چه دغه وخت په تورات او انجيل کښے د نبي کريم صلى الله عليه وسلم صفتونه او نښے په واضح طور سره موجود وے وی کوم چه د دغو خلقو په زړو مهرا و لګا وُه۔

د خاتم الانبياء صلى الله عليه وسلم کوم صفتونه چه په تورات او انجيل کښے ليکلی وُو د دے څهٔ بیان خو په قرآن کريم کښے په حواله د تورات او انجيل راغلے دے، او څهٔ د احاديثو په روايتو نو کښے د هغو حضراتو نه نقل دی کوم چه اصلي تورات او انجيل ليدلے وُه او په دے کښے ئے د نبي کريم صلى الله عليه وسلم ذکر مبارک اولوستو او مسلمانان شو۔

بيهقي په دلائل النبوّت کښے نقل کړی دی چه حضرت انسؓ فرمائی چه يو يهودی هلک به د نبي کريم صلى الله عليه وسلم خدمت کولو دے اتفاقًا ناجوړه شو نو حضورؐ ئے د تپوس د پاره تشريف يوړو نو اُوئے ليد وچه پلار ئے سرته ولاړ دے وُه تورات ئے لوستلو۔ نبي کريم صلى الله عليه وسلم ورته اُووے چه اے يهودی زهٔ تا له پخدائے قسم درکوم کوم چه په موسى عليه السلام تورات نازل کړے دے چه آيا ته په تورات کښے زما حالات او صفتونه او زما د بنکاره کید و بیان مومے؟ هغهٔ انکار اوکړو نو ځوے ئے اووے یارسول اللهؐ دے غلط وائی په تورات کښے

مونږ ستا ذکر او ستا صفتونه مومو - او زهٔ ګواهي کوم چه دَ الله نه سِوا بل معبود نیشته او ته دَ الله رسول یې - نبي کریم صلے الله علیه وسلم صحابهٔ کرامو ته حکم اوکړو چه اوس دے مسلمان دے دَ مرګ نه پس دَ دهٔ کفن دفن مسلمانان اوکړي پلار ته دِ نه حواله کوي (مظهري)

او حضرت علي مرتضیٰ رضـ فرمائي چه دَ نبي کریم صلے الله علیه وسلم په ذمه دَ یو یهودي قرض وه دے راغے څهٔ قرض یې او غوښتلو حضورؐ او فرمائیل چه دا وخت ما سره هیڅ نیشته څهٔ مهلت راکړه، یهودي په سختئ سره مطالبه اوکړه او اویې وئیل چه زهٔ تا ترهغه وخته پورے نه پریږدم ترڅو چه ما قرض ادا نه کړے نبي کریم صلے الله علیه وسلم او فرمائیل چه دا ستا اختیار دے زهٔ به ستا سره ناست یم، نو نبي کریم صلے الله علیه وسلم هلته کیناستو او دَ ماسپخین مازیګر ماښام ماسختن او بیا دَ بلے ورځے دَ سحر مونځونه یې هلته اوکړل، صحابه کرامو چه دا حال او لید وسخت خفه او غُصه شو او پټ پټ یې په یهودي ډیرے ترخے تیرَولے چه دے نبي کریم صلے الله علیه وسلم پریږدي نبي کریم صلے الله علیه وسلم پرے پوهه شو او اصحابوؓ نه یې تپوس اوکړو چه دا څهٔ کوئ؟ نو هغوي او فرمائیل چه یارسول اللهؐ مونږ دا څنګه برداشت کولے شو چه یو یهودي دِ تا سره قید کړي، دوئ او فرمائیل چه "ما لره ما رب منع کړے دے چه په یو معاهد وغیره ظلم اوکړم" یهودي دا هرڅهٔ لیدل او اوریدل -

چه سحر شو نو یهودي اُووے: اَشْهَدُ اَنْ لَّآ اِلٰهَ اِلَّا اللهُ وَاَشْهَدُ اَنَّكَ رَسُوْلُ اللهِ: او دغه شان دغه یهودي مسلمان شو - او دهٔ او وئیل چه یارسول الله ما خپل نیم مال دَ الله په لاره کښے ورکړو - او په خدائے قسم دے چه ما دا وخت څهٔ چه اوکړل دَ دے مقصد صرف دا امتحان کول وُو چه په تورات کښے ستا کوم صفتونه خودلی شوی دی هغهٔ په تا کښے په صحیح طور سره موجود دی او که نه؟ ما په تورات کښے ستا متعلق دا الفاظ لوستلی دی:-

"محمد بن عبد الله دَ دهٔ پیدائش به په مکه کښے وي او هجرت به یې طیبه

طرف ته او ملک د دهٔ به شام وی نه به سخت مزاجه وی نه سخته خبره کوونکی نه په بازارونو کښې شور کوونکے، د فحش او بے حیائۍ نه به لرے وی"

اوس ما د دے ټولو صفتونو امتحان اوکړو او په تاکښې م صحیح بیا موندل په دے وجه گواهی کوم چه د الله نه سوا بل معبود نیشته او ته د الله رسول یې، او دا څما نیم مال دے ستا اختیار دے چه څهٔ رنګ غواړے خرچ ئے کړه او دا یهود دی ډیر مالدار وهٔ د دهٔ نیم مال هم یو ډیر لوئے دولت وهٔ - دے روایت لره مظهری په حواله د دلائل النبوت بیهقی نقل کړے دے -

او امام بغویؒ پخپل سند سره د کعب احبارؒ نه نقل کړے دے چه دوی فرمائی په تورات کښې د نبی کریم صلے الله علیه وسلم متعلق دا سے لیکلے شوی وی چه :

محمد د الله رسول او منتخب بنده دے نه سخت مزاج دے نه بے هوده گو، نه په بازارونو کښې شور کوونکے، د بدئ بدله په بدئ نهٔ ورکوی بلکه معافی کوی، پیدائش د دهٔ په مکه کښې او هجرت طیبه ته وی ملک د دهٔ به شام وی او اُمت به د دهٔ حمادین وی یعنی په راحت او تکلیفا دواړو حالتونو کښې به د الله تعالیٰ حمد او شکر ادا کوی، هر اوچت ځائے ته د ختو په وخت کښې به تکبیر وائی دوی به د نمر په سوری نظر ساتی چه د دے په ذریعه د وختونو پته اُو لګوی او خپل مونځونه په وخت اداکړی، دوی به په خپل لاندینو باندې لنګ اچوی او خپل لاسونه خپے به د اودس په ذریعه پاک صاف ساتی د دوی آذان کوونکے به په فضا کښې آواز پورته کوی په جهاد کښې به د دوی صفونه دا سے وی لکه د جماعت په مانځه کښې د شپے به د دوی آوازونه په ذکر او تلاوت کښې دا سے بنګیږی لکه د کبین مچۍ چه شور کوی (مظهری)

ابن سعد او ابن عساکر د حضرت سهل مولیٰ خیثمه نه په سند سره نقل کړے دے چه حضرت سهل فرمائی چه ما پخپله په انجیل کښې د محمد مصطفیٰ صلے

الله علیه وسلم دا صفتونه لوستلی دی: چه

"دے به نه پست قده وی او نه دراز قده سپین رنګ دوه زلفو والا به وی د ده د دواړو اوږو په مینځ کښے به د نبوّت مهر وی، صدقه به نه قبلوی په خر او اوښ به سوریږی، د بیزو وږی به پخپله لوشی، پیوند لګیدلے قمیص به استعمالوی او څوک چه داسے کوی هغه د تکبّر نه ویزاره وی دے به د اسمٰعیل علیه السلام په اولاد کښے وی، د ده نوم به احمدؐ وی"

او ابن سعد په طبقات کښے، دارمی پخپل مسند کښے، بیهقی په دلائل النبوّت کښے د حضرت عبدالله بن سلام نه روایت نقل کړے دے کوم چه د یهودو د ټولو نه لوئے عالم او د تورات ماهر مشهور وُه. دوی فرمائی چه په تورات کښے د نبی کریم صلے الله علیه وسلم متعلق دا الفاظ ذکر دی:

"اے نبی مونږ ته لیږلے ئے په ټولو امتونو باندې ګواه جوړ کړے، او نیک کارکونکو ته زیرے ورکونکے او بد کارکونکو لره ویره ورکونکے جوړ کړے ئے، او د اُمّیینو یعنی د عربو حفاظت کونکے جوړ کړے ته زما بنده او رسول ئے، ما ستا نوم، مُتَوَکِّل: ایخودے دے، نه ته سخت مزاجه ئے نه جګړه کوونکے نه په بازارونو کښے شور کوونکے د بدئ بدله په بدئ سره نه ورکوے بلکه معافی ، او درګذر کوے، الله تعالیٰ به ده لره تر هغه وخته پورے نه وفات کوی ترڅو پورے چه د ده په ذریعه کوږ قوم برابر نه کړی تر دے چه دوی د: لَآ اِلٰهَ اِلَّا اللهُ: قائل شی- او ړندے سترګے او سپړی، او کاڼه غوږونه د آوریدو قابل کړی، او بند زړونو لره اوُسپړی"

د دے په شان یو روایت په بخاری کښے په روایت د عبدالله بن عمرو بن عاصؓ هم ذکر دے۔

او د تیرو کتابونو د یولوئے ماهر عالم حضرت وهب بن منبهؒ نه بیهقی په دلائل النبوت کښے نقل کړے دے-چه:

"الله تعالیٰ په زبور کښے حضرت داؤد علیه السلام ته داوحی اوفرمائیله

چې، اے داؤدؑ ستا نه پس به یو نبی راشی چه نوم به ئے احمدؐ وی، زه به چرته کوم نه ناراضه نه شم او دوی به چرته هم نا فرمانی اونه کړی او زه به دوی ته ترلے وړاندې او روستو خطاګانے معاف کړم، د دوی امت امتِ مرحومه دے، ما دوی ته هغه نوافل ورکړی دی کوم چه ما انبیاؤ ته ورکړی وُو او په دوی ما هغه فرائض اچولی (یعنی لازم کړی) دی کوم چه ما په تیرو انبیاؤ لازم کړی وُو، تردے چه دوی به په محشر کښے هُما مخے ته داسے راشی چه د دوی نوُر به د انبیاء علیهم السلام د نوُر لیشان وی- اے داؤدؑ ما محمدؐ او د هغهٔ امت لره په ټولو امتونو فضیلت ورکړے دے، ما شپږ خیزونه دوی ته په خاص طور سره ورکړی دی کوم چه ما نورو امتونو ته نه دی ورکړی- اوّل دا چه په خطا او هیره به دوی نه شی عذابیدے- کوم ګناه چه دوی بغیر د قصد نه اوکړی که دوی د دے بخښنه غوښتنه اوغواړی نو زه به ئے معاف کړم، او کوم مال چه دوی د زړهٔ په خوشئ د الله تعالیٰ په لاره کښے خرچ کړی نو زه به په دُنیا کښے دوی لره د دغے نه ډیر زیات ورکړم، او کله چه په دوی څهٔ مصیبت راشی او دوی اِنَّا لِلّٰهِ وَاِنَّآ اِلَیۡهِ رٰجِعُوۡنَ اُووائی نو زه به په دوی دغه مصیبت لره صلوٰة رحمت او د جنت طرف ته هدایت جوړ کړم، دوی چه څهٔ دُعا کوی زه به ئے قبلوُم کله داسے چه څهٔ ئے غوښتلی وی هغه به ورکوُم او کله داسے چه دغه دُعا به د دوی د آخرت سامان جوړ کړم" (روح المعانی)-

په سوُو نو کښے یو څو روایتونه د تورات انجیل او زبور په حوالے سره نقل کړے شو، پوره روایتونه محدثینو په مُستقلو کتابونو کښے جمع کړی دی-

په تورات او انجیل کښے د خاتم الانبیاء صلے الله علیه وسلم او د دوی د اُمتِ مرحومه په خاصو فضیلتونو صفتونو او نښو نښانو په تفصیل باندِ عالمانو مستقل کتابونه لیکلی دی- په دے آخری دور کښے حضرت مولانا کیرانوی مهاجر مکی رحمة الله علیه په خپل کتاب "اظهار الحق" کښے دے لره په ډیر تفصیل او تشریح او تحقیق سره لیکلی دی- په دے کښے ئے د موجوده زمانے د بدل شوُو تورات او انجیل چه ډیر تحریفات پکښے شوی دی په دے کښے ئے هم د ډیرو

صفتو نو او فضیلتو نو موجود والے ثابت کړے دے - د دے د عربئ نه اردو ترجمه شائع شوے ده چه د لید وقابل ده -

په تید ایت کښے د نبی کریم صلے الله علیه وسلم د دے صفتو نو او نښو تفصلی بیان دے کوم چه په تورات او انجیل او زبور کښے لیکلے شوے وَه، په دے کښے د نبی کریم صلے الله علیه څهٔ زیاتی صفتو نه هم ذکر دی -

په دے کښے اوّلنے صفت "امر بالمعروف او نهی عن المنکر دے" د ؛معروف؛ لفظی معنیٰ اَشنا، او د ؛مُنکر؛ لغوی معنیٰ نااَشنا دے چه نه شی پیژندے، دلته د معروف نه مراد هغه نیک کار دے چه په اسلامی شریعت کښے پیژندلے شی - او د مُنکر نه مراد هغه ناکاره کار دے، چه په دین او شریعت کښے نهٔ شی پیژندے -

دلته د ښو کارو نو د معروف په لفظ سره او د بد وکارو نو نه د مُنکر په لفظ سره تعبیر کولو کښے دے طرف ته اشاره موندے شی چه په دین کښے نیک کار صرف هغه گڼړلے شی کوم چه د قرنِ اول په مسلمانانو کښے رائج وی، او پیژندے شی او کوم چه داسے نه وی هغے ته به مُنکر وئیلے شی - د دے نه معلومه شوه چه اصحابوؓ او تابعینوؒ چه کوم کار نیک نهٔ دے گڼړلے هغه خواه هرڅو مره چه نیک او ښهٔ معلومیګی خو د شریعت په رُو سره هغه نیک او ښهٔ ندے - په صحیح احادیثو کښے ئے ځکه هغو کارونو ته د کومو تعلیم چه نبی کریم صلے الله علیه وسلم او اصحابوؓ او تابعینوؒ د طرف نه نهٔ شی موندے هغوی ته محدثات الاُمور او بدعت نوما ئیلے دے ګمراهی ئے مقرر کړے ده، معنیٰ د ایت د دے جُملے داده چه نبی کریم صلےّ الله علیه وسلم خلقو ته د نیکو کارو نو حکم کوی او د بد و نه به منع کوی -

دا صفت اګرچه په ټولو انبیاؤ علیهم السلام کښے عام دے او بکار هم دے ځکه چه هر یو نبی او رسول د دے کار د پاره لیږلے شی چه خلقو ته د نیکو کارو نو طرف ته هدایت او کړی او د بد و کارو نو نه ئے منع کړی، لیکن دلته د نبی کریم صلے الله علیه وسلم د خصوصیاتو په موقع بانْدِ د دے بیا نولَ د دے خبر ورکوی چه نبی کریم صلے الله علیه وسلّم ته

په دے خاص صفت کښې د نورو انبياؤ عليهم السلام نه څۀ خاص امتياز او خصوصيت حاصل دے - او دغه اِمتياز په څو وجهو سره دے ، اوّل د دے کار خاص سليقه چه د هغې طبقې خلقو ته د دوی د حال په مناسبت سره پوهه ورکول يعنې کومے سره خبره د دوی ذهن ته پرېوځي او کړانه ورته معلومه نه شي ، د نبي کريم صلے الله عليه وسلم په تعليما تو کښې چه غور او کړے شي[۱] او به ليدے شي چه دوی ته الله تعالیٰ په دے کښې يو خاص او امتيازی سليقه ورکړے وه ، د عرب بدوان چه د اوښو او بيزو خړ ولو نه سِوا نور په هيڅ نه پوهيدل د دوی سره به ئے په داسے انداز خبرے کولے او باريک مضامين د علم به ئے ورته په داسے ساده الفاظو کښې بيانول چه دغه اَن پړه خلق به پرې هم پو هيدل او د قيصر او کِسریٰ او د نورو عجمي باد شاهانو او د دوی د رالېکلو شوو د علم خاوندانو سفيرانو سره به ئے د دوی د انداز مطابق خبرے کولے ، او بے د څۀ استثناء نه ټول به په دے خبرو متأثره کيدل ، بل د دوی د کلام خداداد مقبوليت او په زړونو کښې تاثير هم يو معجزانه انداز لرى - د لوئے نه لوئے دشمن چه به هم کله د دوی کلام آوريد و نو د متأثره کيدو نه بغير به نۀ پاتے کيدو -

بَره چه په حواله د تورات کوم صفتونه د نبي کريم صلے الله عليه وسلم بيان شوی وو - په دے کښې دا هم وو چه د دوی په ذريعه به الله تعالیٰ ړند و سترګو لره بينا او کړی و غوږونو لره آوريد ونکی جوړ کړی او بند زړونه به او سپړی - دا صفتونه شاهد دی د دے خصوصيت نتيجه وی چه نبي کريم صلے الله عليه وسلم ته الله تعالیٰ د امر بالمعروف او نهي عن المنکر د صفت امتيازی سليقه ورکړے وه -

دويم صفت دا بيان شوے دے چه نبي کريم صلے الله عليه وسلم به د خلقو د پاره پاکيزه او د خوښے څيزونه حلال کړی او ګنده څيزونو لره حرام ، مراد دا دے چه ډير پاکيزه او د خوښے څيزونه کوم چه په بني اسرائيلو باندې په طور د سزا حرام شوی وو نبي کريم صلے الله عليه وسلم به د هغې حرام والے ختم کړی - مثلاً د حلالو ځناورو وازګه وغيره کومه چه د بني اسرائيلو د

بد کارو به سزا کښې په دوی حرام کړی شوی وُو نبی کریم صلے الله علیه وسلم هغې لره حلال کړل - او په ګنده خبیز و نو کښې ویته او مردار ځناور، شراب او ټول حرام جانوران داخل دی او ټولو په حرامه ذریعه سره حاصله شوے امدنی هم مثلاً سُود، رشوت، جواری وغیره (سراج المنیر) او بعضو حضراتو بَدْ خو یونه او عادتونه هم په ګنده خبیزونو کښې شمار کړی دی -

دریم صفت دا بیان شوے دے: وَيَضَعُ عَنْهُمْ إِصْرَهُمْ وَالْأَغْلَالَ الَّتِي كَانَتْ عَلَيْهِمْ: یعنی نبی کریم صلے الله علیه وسلم به لرے کړی دَ خلقونه هغه بوج او بند کوم چه په دوی مسلّط وُه -

دَ: اِصْرٌ: دَ لفظ معنیٰ درونډ بار دے چه سړے دَ خوزیدو نه منع کړی او: اَغْلَالٌ: دَ غِلٌّ جمع ده هغو هتکړو ته غِلّ وئیلے شی دَ کوم په ذریعه چه دَ مجرم لاسونه دَ غَټې سره او تړلے شی او دے بالکل بے اختیاره شی -

دَ: اِصْر: او: اَغْلَال: یعنی درونډ بارا و قید نه مراد په دے ایت کښې هغه سخت او ګران احکام او واجبات دی کوم چه په اصل دین کښې مقصود نه وُو بلکه په بنی اسرائیلو په طور دَ سزا لازم کړی شوی وُو -، مثلاً چه کپړه ناپاکه شی نو په اُوبو سره وینځلو ئے دَ بنی اسرائیلو دَ پاره کافی نه وُو - بلکه واجب دا وُو چه ناپاک ځائے به ئے پرېکولو، او دَ کفارو سره به جهاد کښې چه به ورته کوم مالی په طور دَ غنیمت پلاس ورتللو هغه دوی لره حلال نه وُه بلکه دَ اسمان نه به اُور راتللو او هغهٔ به ئے سیزلو - دَ هفتے په ورځ ښکار کول دوی لره حرام وُو - دَ کوم اندام نه چه به څهٔ ګناه او شو دَ هغې اندام پرېکول واجب وُو - دَ چا قتل خواه قصداً وی او که خطاءً وی په دواړو صورتونو کښې قصاص یعنی دَ قاتل قتل کول واجب وُو دَ خُون بها ورکولو قانون نه وُه -

دا سخت او ګران احکام کوم چه په بنی اسرائیلو نافذ وُو په قرآن کښې ورته :اِصْرٌ: او: اَغْلَال: اوفرمائیل، او دا خبر ئے ورکړو چه نبی کریم صلے الله علیه وسلم به دا سخت احکام منسوخ کړی او اسان احکام به جاری کړی -

دے خبرے لره نبی کریم صلے الله علیه وسلم په یو حدیث کښې فرمائیلی ده چه مُا تاسو لره په یو آسان شریعت باندې پاتے کړل چه نه پکښې مشقت شته

نه د گمراهئ يره -

په يو حديث كښې ارشاد دے : "اَلدِّيْنُ يُسْرٌ" يعنى دين اسان دے؛ قرآن كريم فرمائى : "وَمَا جَعَلَ عَلَيْكُمْ فِي الدِّيْنِ مِنْ حَرَجٍ" يعنى الله تعالىٰ په تاسو د دين په معامله كښې څۀ تنگى نه ده راوستې "؛

د نبى اُمّى صلے الله عليه وسلم د خاصو كمالى صفتونو بيا نولو نه پس ارشاد فرمائى؛ "فَالَّذِيْنَ اٰمَنُوْا بِهٖ وَعَزَّرُوْهُ وَنَصَرُوْهُ وَاتَّبَعُوا النُّوْرَ الَّذِيْٓ اُنْزِلَ مَعَهٗٓ اُولٰٓئِكَ هُمُ الْمُفْلِحُوْنَ" : "يعنى په تورات او انجيل كښې د نبى اخرزمان د دا ضحو صفتونو او نښو خو دد انتيجه ده چه كوم خلق په دهٔ ايمان راوړى او د دهٔ تعظيم او مدد كوى او د هغې نُور تابعدارى كوى كوم چه د دهٔ سره نازل شوے دے يعنى قرآن عظيم نو دغه خلق مراد موند ونكى دى؛"

دلته د فلاح يعنى مراد موند و د پاره څلور شرطونه ذكر شو- اوّل په نبى كريم صلے الله عليه وسلم باندې ايمان، دويم د دوى عزت او تعظيم، دريم د دوى امداد څلورم د قرآن كريم تابعدارى -

د تعظيم او تكريم د پاره دلته لفظ د "عَزَّرُوْهُ" راوړے شوے دے چه د تعزير نه مشتق دے د تعزير معنى په شفقت سره د منع كولو حفاظت كول ده، حضرت عبد الله بن عباسؓ د "عَزَّرُوْهُ" معنىٰ د تعظيم او تكريم كولو خودلے ده- او مُبَرّد وائى چه د اعلىٰ درجې تعظيم په تعزير سره تعبير كولے شى -

مراد دا دے چه هغه خلق كوم چه د نبى كريم صلے الله عليه وسلم د عظمت او محبّت سره د دوى تائيد او حمايت او د مخالفينو په مقابله كښې د دوى مدد كوى دغه مكمّل مراد موندُونكى دى- په زمانه د نبوّت كښې خو دا تائيد او نصرت د دوى د ذات سره متعلق وُه او د دوى د وفات نه پس د دوى د شريعت او د دين تائيد او مدد د نبى كريم صلے الله عليه وسلمؐ تائيد او مدد كولو مصداق دے -

قرآن كريم لره په دے حيثيت كښې د نور نه تعبير كړے دے وجه دا ده چه لكه څنګه د نوُر په نوُروالى باندې د څهٔ دليل ضرورت نيشته نور بخپله د خپل وجود دليل دے، دغه شان قرآن كريم بخپله د خپل ځان د كلام ربانى

او حق کلام کیدو دلیل دے، چه د یو محض اُمّي د ژبے نه داسے اعلیٰ او ابلغ کلام راوځي چه د مثل راوړلو نه ئے ټوله دُنیا عاجزه شوه - دا پخپله د قرآن، د الله د کلام کیدو دلیل دے -

دا رنګ لکه څنګه چه نور پخپله هم روښانه وی او نورو تیرو لره هم رڼا کوی دغه شان قرآنِ کریم په تیرو نختې دُنیا لره د تیرو ونه را اوویستله رڼا ئے کړه -

**د قرآن سره د سنتو تابعداری هم فرض ده**

د دے آیت په شروع کښے ئے: يَتَّبِعُوْنَ الرَّسُوْلَ النَّبِيَّ الْاُمِّيَّ: فرمائیلی وو او په آخر کښے ئے: وَاتَّبَعُوا النُّوْرَ الَّذِيْٓ اُنْزِلَ مَعَهٗ: او فرمائیل -

په دے کښے په اوّل جمله کښے د نبی اُمّي د تابعداری حکم دے او په آخری جمله کښے د قرآن کریم د تابعداری -

د دے نه ثابته شوه چه د آخرت نجات د کتاب او سنّت دواړو په تابعداری باندے موقوف دے، ځکه چه د نبی اُمّي تابعداری د دهٔ د سنتو د تابعدارئ په ذریعه کیدے شي -

**د رسول صرف تابعداری کافی نده ادب، احترام او محبّت هم فرض دے**

او د دے دواړو جملو په مینځ کښے ئے: عَزَّرُوْهُ وَنَصَرُوْهُ: او فرمائیل دے طرف ته ئے اشاره اوکړه چه د نبی کریم صلی الله علیه وسلم د احکامو داسے تابعداری مقصود نه ده لکه چه د عامے دنیا د حکمونو تابعداری جبرًا او قهرًا کولے شي بلکه هغه تابعداری مقصود ده کومه چه د عظمت او محبّت نتیجه وی - یعني د نبی کریم صلی الله علیه وسلم عظمت او محبّت په زړه کښے دومره وی چه د دے په وجه د دهٔ د حکمونو په تابعدارئ مجبوره وی - ځکه چه اُمّت لره د خپل رسول سره مختلف قسم تعلقات وی، یو دا چه هغهٔ امیر او حاکم دے او امّت محکوم او رعیّت، دویم دا چه رسول محبوب دے او ټول اُمّت د دهٔ محبان -

یو دا چه رسول د خپلو علمی عملی اخلاقی کمالاتو په بنا باندے د عظمت خاوند دے او ټول اُمّت د دهٔ په مقابله کښے لاندے او عاجز دے -

زمونږ په نبي کريم صلے الله عليه وسلم کښې تهول شانونه په کمال درجه سره موندے شي - په دے وجه په اُمّت لازمه ده چه په هر شان حق ادا کړی، په حيثيت د رسول په دهٔ ايمان راوړی، په حيثيت د اميرا وحاکم د دهٔ د احکامو تابعداری اوکړی، په حيثيت د محبوب د دوی سره ډير محبّت اوساتي - او په حيثيت د کمالونو د نبوّت د دوی تعظيم او تکريم اوکړی -

د نبي کريم صلے الله عليه وسلم اطاعت او تابعداری خو هسے هم په اُمّت فرض پکار وه ځکه چه د انبياؤ د ليکلو مقصد د دے نه بغير نه پوره کيږی لیکن الله حق سبحانه تعالیٰ زمونږ د رسولِ مقبول صلے الله عليه وسلم په باره کښې صرف په دے بانديِ اِکتفا اُونه فرمائيله بلکه په اُمّت ئے د دوی تعظيم تکريم احترام او ادب هم لازم کړے دے او په قرآن کريم کښې ئے ځائے په ځائے د دے طريقے او آدبونه خودلی دی -

په دے آيت کښې خو ئے د: عَزَّرُوْهُ وَنَصَرُوْهُ: په الفاظو سره دے طرف ته اشاره کړے ده - او په يو بل آيت کښې هم: وَتُعَزِّرُوْهُ وَتُوَقِّرُوْهُ: راغلے دے او په څو آياتونو کښې ئے د دے خود نه کړے ده چه د نبي کريم صلّے الله عليه وسلّم په وړاندِ په داسے اُوچتا آواز سره خبرے نه کوی چه د دوی په آواز باندِ اُوچت شي: يَآيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا لَا تَرْفَعُوْٓا اَصْوَاتَكُمْ فَوْقَ صَوْتِ النَّبِيِّ: -

او يو بل ځائے ارشاد دے: يَآيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا لَا تُقَدِّمُوْا بَيْنَ يَدَيِ اللّٰهِ وَرَسُوْلِهٖ: "يعنى اے مسلمانانو! د الله او د هغهٔ د رسول نه مه وړاندِ کيږئ" يعنى په کوم مجلس کښې چه حضورؐ تشريف فرماوی او څهٔ معامله پيښه شي، نو د دوی نه وړاندِ څوک خبرے نهٔ کوی -

حضرت سهل بن عبدالله د دے آيت معنیٰ دا ښائی چه د دوی نه وړاندِ خبره نهٔ کوی او کله چه دوی خبره کوی نو ټول دِ په خاموشئ سره آوری -

د قرآن په يو آيت کښې ئے د دے خود نه کړے ده چه نبي کريم صلے الله عليه وسلم ته دِ د آواز کولو په وخت کښې د اَدب لحاظ ساتی داسے آواز دِ ورته

نۀ کوي لکه څنګه چه په خپل منځ کښې يو بل ته کوي: لَا تَجْعَلُوْا دُعَآءَ الرَّسُوْلِ بَيْنَكُمْ كَدُعَآءِ بَعْضِكُمْ بَعْضًا، د آيت په آخر کښې ئې د دې خبرې خبرداری ورکړے دے چه که څوک د دې خلاف د بې ادبۍ څۀ کار اوکړي نو ټول عملونه به ئې حبط او برباد شي -

دغه وجه ده چه اصحاب کرامؓ سره د دې چه هر وخت او په هر حال کښې به د نبي کريم صلے الله عليه وسلم سره شريک کار وُو، او په داسې حالت کښې د احترام او تعظيم د آدابو لحاظ ساتل ډير مشکل وي ليکن د دوی دا حال وُه چه د ذکر شوی آيت د نازليدو نه پس حضرت صديق اکبرؓ چه به کله د نبي کريم صلے الله عليه وسلم په خدمت کښې څۀ عرض کولو نو داسې خبرې به ئې کولې لکه څوک چه پټه خبره رورُو کوي- دغه حال د حضرت فاروق اعظمؓ هم وُه (شفاء)

حضرت عمرو بن عاصؓ فرمائي چه د نبي کريم صلے الله عليه وسلم نه زيات په دُنيا کښې څوک ما ته محبوب نه وُه، او زما دا حال وُه چه په هسکو سترګو به ما چرته دوی ته کتلے نه شو- او که څوک ما نه د هغوی د حُلیې مبارکې په باره کښې تپوس اوکړي نو زۀ ئې په بيانولو څکه قادر نه يم چه ما چرته دوی ته په هسک نظر کتلی نه دی -

ترمذي د حضرت انسؓ نه نقل کړي دي چه د اصحابؓ مجلس ته به کله نبي کريم صلے الله عليه وسلم تشريف راوړو نو ټولو به نظر وَنه خکته کړل صرف صديق اکبرؓ او فاروق اعظمؓ به دوی ته کتل، او نبي کريم صلے الله عليه وسلم به دوئ ته اوکتل تبسّم به ئې اوفرمائيلو -

عُروه بن مسعود لره مکې والو د جاسوس په طور مدينې منورې ته د مسلمانانو د حال معلومولو د پاره اوليګلو، دۀ چه صحابه کرامؓ لره د پتنګانو پشان په حضورؐ قربانيدونکي او وزاريدونکي اوليدل نو په واپسئ کښې ئې دا رپورټ اوکړو چه ما د کسرٰی او قيصر دربارونه هم ليدلي دي او د نجاشي بادشاه سره هم ملاؤ شوے يم مګر کوم حال چه ما د محمدؐ د اصحابوؓ اوليدو هغه ما چرته هم نه دے ليدلے - زما خيال دا دے چه تاسو خلق

به د دوی په مقابله کښې چرته هم کامیاب نه شي -

د حضرت مغیره بن شعبهؓ په حدیث کښې دي چه کله به دوی په کور کښې تشریف فرما وُو نو اصحابوؓ به د باهر نه آواز کول او حضورؐ لره رابلل بې ادبي گنړله دروازه به ئې هم صرف په نوکونو ټکوله چه زیات ټکا او شور اُونه شي -

د نبي کریم صلی الله علیه وسلم د وفات نه پس هم د اصحابوؓ او تابعینوؒ معمول داوه چه په مسجد نبوي کښې به اُوچت آواز سره خبرې کول خو پرېږده وعظ او تقریر به ئې هم په زیات اُوچت آواز سره نه خوښولو - د اکثرو حضراتو حال خو داوه چه کله به چا د نبي کریم صلی الله علیه وسلم نوم مبارک واغستو نو په چړ به شو او هیبت به پرې راغلو -

د دې تعظیم او عزت برکت وه چه دې حضراتو ته د نبوت د کمالاتو نه خاص حصه ملاؤ وه - او الله تعالیٰ دوی ته د انبیاؤ نه پس د ټولو نه اُوچت مقام ورکړو -

---

قُلْ يٰۤاَيُّهَا النَّاسُ اِنِّيْ رَسُوْلُ اللّٰهِ اِلَيْكُمْ جَمِيْعَا

ته ئې اووایه اې خلقو! زهٔ رسول یم د الله تاسو ټولو طرف ته

الَّذِيْ لَهٗ مُلْكُ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِۚ لَاۤ اِلٰهَ اِلَّا هُوَ

د چا چه حکومت دې په اسمانونو او په زمکه کښې - هیڅوک د عبادت لائق نشته د هغهٔ

يُحْيٖ وَيُمِيْتُ فَاٰمِنُوْا بِاللّٰهِ وَرَسُوْلِهِ النَّبِيِّ

نه سوا هغه ژوندي کوي او مړهٔ کوي - پس ایمان راوړئ په الله او د هغهٔ په رالیږلي شوي نبي

الْاُمِّيِّ الَّذِيْ يُؤْمِنُ بِاللّٰهِ وَكَلِمٰتِهٖ وَاتَّبِعُوْهُ

اُمّي باندې کوم چه یقین ساتي په الله باندې او د هغهٔ په ټولو کلامونو او د هغهٔ تابعداري کوئ

لَعَلَّكُمْ تَهْتَدُوْنَ ﴿۱۵۸﴾ وَمِنْ قَوْمِ مُوْسٰٓى اُمَّةٌ

چه تاسو لاربيا موميئ - اود موسیٰ په قوم کښې يوه ډله

يَّهْدُوْنَ بِالْحَقِّ وَبِهٖ يَعْدِلُوْنَ ﴿۱۵۹﴾

کومه چه لاربنائي د حق او د دے موافق انصاف کوی -

# لنډ تفسير

ته اُووايه چه اے (د دُنيا جهان) خلقو! زهٔ تاسو ټولو طرف ته د هغے الله د طرفه رالیږلے شوے (پیغمبر) یم د کوم چه حکومت دے په ټولو اسمانونو او زمکه کښې، د هغهٔ نه سوا څوک د عبادت لائق نيشته هغهٔ ژوند ورکوی او هغه مړګ ورکوی، په دے وجه په الله ایمان راوړئ او د هغهٔ په نبی اُمّی باندِ رهم ایمان راوړئ) کوم چه (پخپله هم) په الله او د هغهٔ په احکامو باندِ ایمان لری (يعنى هر کله چه سره د دومره لوئے مرتبے د دهٔ د الله او ټولو کتابونو او رسولانو باندِ د ایمان راوړو نه شرم نه کوی نو تاسو په الله او رسول باندِ د ایمان راوړو نه ولے انکار کوئ) او د دے (نبی) تابعداری کوئ د دے د پاره چه تاسو په (نيغه) لاره باندِ شئ او (اګرچه بعضو خلقو ستا مخالفت اوکړو ليکن) په قوم د موسیٰ کښې يو جماعت داسے هم دے چه د حق دين (يعنى اسلام) موافق (خلقو ته) هدايت هم کوی او د دے موافق (پخپلو او د نورو په معاملو کښې) انصاف هم کوی (مراد د دے نه عبد الله بن سلام وغيره دی) -

# معلومات او مسئلے

په دے ايت کښې د اسلام د اُصولی مسئلو نه د رسالت د مسئلے د يو اهم اړخ بيان دے چه زمونږ د رسول صلے الله عليه وسلم رسالت د دُنيا د ټولو پيريانو او بنی آدمو د پاره او په دوی کښې هم د قيامته پورے د راتلونکو نسلونو د پاره عام دے -

په دے ایت کښے نبی کریم صلے الله علیه وسلم ته د دے عام اعلان کولو حکم دے۔ چه ته خلقو ته اُووایه چه زهٔ تاسو ټولو ته رسول جوړ شوے رالیګلے شوے یم ځارالیکل اورسالت د تیرو پیغمبرانو په شان یو مخصوص قوم یا مخصوصے زمکے ته یا د مخصوص وخت د پاره نه دے۔ بلکه د ټولے دنیا د انسانانو د پاره د دنیا د هرے حصے، هر ملک، هرے آبادئ او موجوده او راتلونکو نسلو نو د پاره تر قیامته پورے عام دے او د انسانانو نه علاوه پیریان هم په دے کښے شریک دی۔

د نبی کریم صلے الله علیه وسلم نبوّت د ټول عالم د پاره تر قیامته پورې کې په دے وجه په دوی نبوّت ختم دے

دا اصل راز دے د مسئلے د ختمِ نبوّت۔ ځکه چه هرکله د نبی کریم صلے الله علیه وسلم نبوّت تر قیامته پورے د راتلونکو ټولو نسلونو د پاره عام دے نو بیا د چا بل رسول او نبی د راتلو نه ضرورت او نه څهٔ ګنجائش شته۔ او دا راز دے د اُمت محمّدی د دے خصوصیّت چه په دوی کښے د ارشاد نبوی مطابق همیشه یو دا سے جماعت قائم وی کوم چه په دین کښے د پیدا کیدونکو ټولو فتنو مقابله او په دینی معاملو کښے د پیدا کیدونکو ټولو رخنو بندیز کوی۔ د کتاب او سنّت نه په مطلب اَغستو او تفسیر کښے چه کومے غلطئ درج کیږی دا جماعت به هغهٔ هم لرے کوی۔ او د الله تعالیٰ خاص نصرت او امداد به د دے جماعت ته حاصل وی د کوم په سبب چه به دوی په ټولو غالب راځی ځکه چه په حقیقت کښے دا جماعت په خاص طور سره به د نبی کریم صلے الله علیه وسلم د رسالت په فرائضو اداکولو کښے د دوی قائمقام وی۔

امام رازیؒ د ایت: كُوْنُوْا مَعَ الصّٰدِقِيْنَ : لاندِ لیکی چه په دے ایت کښے دا اشاره موجوده ده چه په دے اُمت کښے به د صادقینو یو جماعت همیشه باقی وی ورنه دُنیا ته به ئے د صادقینو د ملګرتیا او صحبت حکم نه وه ورکړے۔ او د دے نه امام رازیؒ په هر دور کښے د اجماع اُمت حجّت والے شرعی ثابت کړے دے۔ ځکه چه د صادقینو د جماعت په موجود ګئ کښے په غلطه خبره یا ګمراهئ د ټولو اجماع او اتفاق نه شی کیدے۔

امام ابن کثیر فرمائی چه په دے ایت کښے د نبی کریم صلے الله علیه وسلم د خاتم النبیین او د اخری پیغمبر کیدو طرف ته اشاره ده - ځکه چه هرکله د دوی بعثت او رسالت تر قیامته پورے راتلونکو نسلونو د پاره او د پوره عالم د پاره عام شو نو اوس د بل نوی نبی او رسول ضرورت باقی پاتے نه شو، په دے وجه په اخره زمانه کښے چه عیسیٰ علیه السلام تشریف راوړی نو هغه به هم پخپل ځائے سره د دے چه نبی وی خو په شریعتِ محمدیؐ به عمل کوی - لکه چه د صحیح روایتونو د حدیث نه ثابته ده -

د نبی کریم صلے الله علیه وسلم په بعثت او رسالت د ټولے دُنیا او قیامته پورے په عام کیدو دا ایت هم ډیر واضح ثبوت دے - د دے نه علاوه د قرآن کریم ډیر ایاتونه په دے گواه دی مثلاً ارشاد دے: وَاُوْحِيَ اِلَيَّ هٰذَا الْقُرْاٰنُ لِاُنْذِرَكُمْ بِهٖ وَمَنْۢ بَلَغَ: یعنی دا قرآن په ما باندے په ذریعه د وحی رالیکلے شوے دے چه څه تاسو د الله تعالیٰ د عذاب نه اُویروم او هغو خلقو لره هم چا ته چه ځمانه پس دا قرآن اُورسی -

**د نبی کریم صلے الله علیه وسلم یو خو خصوصیات**

او ابنِ کثیر په حواله د مسند احمد په قوی سَنَد سره روایت کړے دے چه د تبوک د غزا په موقع باندے نبی کریم صلے الله علیه وسلم د تهجد په مانځه کښے مشغول وُه - صحابه کرامؓ سره یره پیدا شوه چه څوک دُشمن حمله اُونه کړی په دے وجه د دوی نه چاپیره شو - هرکله چه دوی د مانځه نه فارغ شو نو اُو ئے فرمائیل چه نن شپه پنځه خیزونه ما ته داسے راکړے شو چه ځمانه وړاندے یو رسول او نبی ته نه دی ورکړی شوی - اول دا چه ځما رسالت او نبوت د ټولے دُنیا د ټولو قومونو د پاره عام دے ' او ځما نه وړاندے چه څومره انبیاء راغلی دی د هغوی دعوت او بعثت صرف د خپل خپل قوم سره مخصوص وُه - دویم دا چه ما ته ځما د دشمن په مقابله کښے داسے رُعب راکړے شوے دے چه هغوی ځما نه د یوے میاشتے په مسافت باندے وی خو ځما رُعب به په هغوی خور ریګی - دریم دا چه ځما د پاره د کفارو نه حاصل شوے مالِ غنیمت حلال کړے شو، حال دا دے چه د تیرو امتونو د پاره حلال نه وُو- بلکه د دے استعمال

کول عظیم گناه گنړلے کیدو- د دوی د مالِ غنیمت صرف دا مصرف وه چه د اسمان نه به یو اور راغلو او هغه به ئے اوسیزلو- څلورم دا چه ځما د پاره ټوله زمکه ځمات او د پاکئ ذریعه جوړه شوه چه ځما مونځ نه د زمکے په هر ځائے کیږی د ځمات سره مخصوص نه دے- په خلاف د تیرو اُمتونو نه چه د دوی عبادت صرف د دوی د عبادت خانو سره مخصوص وه- پخپلو کورونو یا بیابان وغیره کښے ئے دوی مونځ نه کیدو- دا رنګ چه کله به اوبو باندِ قدرت نه وی د بیمارئ په وجه یا د اوبو نه موند و په وجه نو د اودس په ځائے په بناء د روسره تیمم کول د دے امت د پاره د اودس په ځائے او دریګی د تیرو امتونو د پاره دا اسانی نه وه- بیائے او فرمائیل چه د پنځم څیز خو هغه و تپوس نیشتے هغه پخپله خپل مثل دے هغه دا چه الله تعالیٰ خپل هر رسول ته یوه دُعا داسے د قبلیدو د پاره ورکړے ده چه هغے نه خلاف نه کیږی- او هر رسول او نبی خپله خپله دُعا د خپلو خاصو خاصو مقصد ونو د پاره استعمال کړه او هغه مقصد ئے حاصل شو- ما ته دا او وئیلے شو چه ته څۀ دُعا وکړه- ما خپله دُعا د اخرت د پاره محفوظ کړه- دغه دُعا به ستاسو او تر قیامته پورے چه کوم سړے د لَآ اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ ګواهی ورکوونکے وی په کار راشی-

دا رنګ د امام احمدؒ په یو روایت کښے د ابو موسیٰ اشعری نه نقل دی چه نبی کریم صلے الله علیه وسلم فرمائیلی دی چه کوم سړے ځما د مبعوث کیدو خبر شی خواه دے ځما په امت کښے وی او که یهودی یا نصرانی وی که دے په ما ایمان رانه وړی نو جهنم ته به ځی-

او په صحیح بخاری کښے د دے ایت لاندِ په روایت د ابو درداءؓ نقل کوی چه د ابوبکرؓ او عمرؓ رضی الله عنهما په مینځ کښے په څۀ خبره اختلاف راغے حضرت عمرؓ ناراضه شو او لاړ شو نو حضرت ابوبکرؓ پسے د رضا کولو د پاره لاړو مګر حضرت عمرؓ اونه منله تر دے چه کور ته اورسید و دروازه ئے په ځان پسے بنده کړه نو مجبوراً صدیق اکبرؓ واپس شو او د نبی کریم صلے الله علیه وسلم په خدمت کښے حاضر شو- بل خوا څۀ ساعت پس حضرت عمرؓ په دے خپلو کړو ستومانه شو او دے هم د کوره راؤوتلو د نبی کریم صلے الله علیه وسلم په خدمت کښے

راغے حاضر شو او خپله واقعه ئے عرض کړه - د ابو درداءؓ بیان دے چه په دے
نبی کریم صلے الله علیه وسلم ناراضه شو - هر کله چه حضرت صدیق اکبرؓ اولیدل
چه په حضرت عمرؓ باندِ عتاب کیږی نو عرض ئے اوکړو چه یا رسول الله زیات
قصور زما دے - نبی کریم صلے الله علیه وسلم او فرمائیل چه آیا ستاسو دومره
هم نه شوه کیدے چه زما یو ملګرے د خپلو ضرورونو نه محفوظ کړے آیا ته
نه پوهیګے چه کله ما په اذن د خدائے دا اُووے چه:
يَآ أَيُّهَا النَّاسُ إِنِّيْ رَسُوْلُ اللهِ إِلَيْكُمْ جَمِيْعًا: نو تاسو ټولو زه دروغژن
کړم صرف ابو بکرؓ وه چا چه په اول وار زما تصدیق اوکړو -
لنډه دا چه د دے آیت نه د نبی کریم صلے الله علیه وسلم د ټولو موجوده
او راتلونکو نسلونو د پاره او د هر ملک د هر حصے د اوسیدونکو د پاره
او د هر قوم او هرے برادرئ د پاره عام رسول کیدل ثابت شو - او دا چه
د دوی د بعثت نه پس کوم سړی په دوی ایمان رانه وړو، اګر چه د ے
د تیر شریعت او کتاب یا د څه ملت او مذهب پوره پوره تابعداری په
تقوٰی او احتیاط سره هم کوی خو دے به هر ګز نجات بیامونه موی -
د آیت په آخر کښے ئے او فرمائیل چه زه د هغه پاک ذات د طرف نه
رسول یم د چا په ملکیت کښے چه ټول آسمانونه او زمکه دی هغه ژوندی
کول کوی او هغه مړه کول کوی -
د دے نه پس ارشاد فرمائی: فَآمِنُوْا بِاللهِ وَرَسُوْلِهِ النَّبِيِّ الْأُمِّيِّ الَّذِيْ
يُؤْمِنُ بِاللهِ وَكَلِمٰتِهٖ وَاتَّبِعُوْهُ لَعَلَّكُمْ تَهْتَدُوْنَ:
یعنی هر کله چه دا خبره معلومه شوه چه نبی کریم صلے الله علیه وسلم
د ټولو قومونو د عالم د پاره رسول او نبی دے د دهٔ د تابعدارئ کولو نه
بغیر بله چاره نیشته نو ضروری ده چه ایمان راوړئ په الله او د هغهٔ په
رسول نبی امی کوم چه پخپله هم په الله او د هغهٔ په کلمو ایمان راوړی
او د دهٔ تابعداری اوکړئ چه تاسو په صحیح لاره قائم پاتے شئ -
د الله تعالیٰ د کلمو نه مراد د الله تعالیٰ کتابونه تورات، انجیل، قرآن وغیره
دی، د ایمان د حکم نه پس ئے بیا د تابعدارئ کولو زیاتی حکم ورکړو چه دے

طرف ته ئې اشاره کړې ده چه محض ایمان راوړل یا زباني تصدیق کول، د دوی د شریعت د تابعداری کولو نه بغیر د هدایت د پاره کافي نه دی۔

حضرت جُنید بغدادی فرمائی چه په مخلوق الله تعالیٰ طرف ته د رسیدو ټولې لارې بندې دی بغیر د هغې لارې نه کومه چه نبي کریم صلی الله علیه وسلم خودلې ده۔

**د حضرت موسیٰ علیه السلام په قوم کښې یو حق پرست جماعت**

په دویم ایت کښې ارشاد فرمائی: وَمِنْ قَوْمِ مُوْسٰٓی اُمَّةٌ یَّهْدُوْنَ بِالْحَقِّ وَبِهٖ یَعْدِلُوْنَ؛ یعنی د موسیٰ علیه السلام په قوم کښې یو جماعت داسې هم دې چه پخپله هم د حق تابعداری کوی او په خپلو جګړو او معاملو کښې هم فیصلې د حق موافق کوی۔

په تیرو ایاتونو کښې د حضرت موسیٰ علیه السلام د قوم د نا روا ګمراهۍ بیان وُه۔ په دې ایت کښې ئې اوخودله چه ټول قوم د بني اسرائیلو داسې نه دې بلکه په دوی کښې څه خلق بیشکه هم دی چه د حق تابعداری کوی او حق فیصلې کوی، دا هغه خلق دی کوم چه د تورات او انجیل په زمانه کښې د دې د هدایاتو موافق پوره عمل اوکړو۔ اوکله چه خاتم الانبیاء صلی الله علیه وسلم راغې نو د تورات او انجیل د خبر موافق ئې په دوی ایمان راوړو او د دوی تابعداری ئې اوکړه۔ د بني اسرائیلو د دې حق پرست جماعت ذکر هم په قرآن کښې بار بار راغلې دې۔ یو ځائې ارشاد دې:۔

مِنْ اَهْلِ الْكِتٰبِ اُمَّةٌ قَآئِمَةٌ یَّتْلُوْنَ اٰیٰتِ اللّٰهِ اٰنَآءَ الَّیْلِ وَهُمْ یَسْجُدُوْنَ؛ "یعنی په اهلِ کتابو کښې یو داسې جماعت هم شته چه په حق قائم دې د الله تعالیٰ ایاتونه ټوله شپه تلاوت کوی او سجدې کوی۔"

یو بل ځائې ئې ارشاد دې:۔

اَلَّذِیْنَ اٰتَیْنٰهُمُ الْكِتٰبَ مِنْ قَبْلِهٖ هُمْ بِهٖ یُؤْمِنُوْنَ: "یعنی هغه خلق کوم ته چه د نبي کریم صلی الله علیه وسلم نه وړاندې کتاب تورات او انجیل ورکړې شوی وُو دوی په نبي کریم صلی الله علیه وسلم باندې ایمان راوړی۔"

او ابن جریرؒ، ابن کثیرؒ وغیره د لته یوه عجیبه قصه نقل کړې ده

چه د دے جماعت نه هغه جماعت مراد دے کوم چه د بنی اسرائیلو د ګمراهو
بد عملو نو د انبیاؤ د قتل وغیره نه تنګ شو او د دوی نه جدا شو - د بنی اسرائیلو
د دولسو قبیلو نه یوه قبیله وه، کومه چه د خپل قوم نه تنګه شوه او دعائے اوکړه
چه یا الله مونږ د دے خلقو نه لرے چرته بل ځائے اباد کړے چه خپل دین په
ښه شان سره عمل اوکړو، الله تعالیٰ دوی لره خپل قدرتِ کامله سره د یونیم
کال په مسافت سره د مشرق بعید یو ے زمکے ته اورسول چه هلته دوی
خالص په عبادت کښے مشغول شو، او د نبی کریم صلے الله علیه وسلم د مبعوث
کیدو نه پس هم قدرت د دوی د مسلمانیدو داسامان اوکړو چه
د معراج په شپه جبرائیل امین نبی کریم صلے الله علیه وسلم لره دغے طرف ته
بوتلو دغو خلقو په دوی ایمان راوړو - دوی ورته د قرآن څه سورتونه
هم اوخودل، او د دوی نه ئے تپوس اوکړو چه آیا ستاسو سره د ناپ
تول څه انتظام شته او ستاسو د ژوند څه سامان دے؟ هغوی جواب
ورکړو چه مونږ په زمکه کښے غله کرو هرکله چه تیاره شی نو کټ ئے کړو
او هم هلته ئے ډیرے کړو هرسړے چه څومره ئے ضرورت وی د هغے
ځائے نه ځانله وړی د ناپ تول د سره څه ضرورت نیشته، دوی تر تپوس
اوکړو چه په تاسو کښے څوک دروغ هم وائی؟ عرض ئے اوکړو چه نا، ځکه
چه که څوک داسے اوکړی نو فوراً یو اور راشی او هغه اوسیزی، دوی
تر تپوس اوکړو چه ستاسو د ټولو دا کورونه یوشان ولے دی؟ عرض
ئے اوکړو داځکه چه چاته په بل باندے د څه لوئی یا برائی موقع ملاؤ نه شی
بیائے تر تپوس اوکړو چه تاسو د خپلو کورونو په مخ کښے خپل قبرونه ولے
جوړ کړی دی؟ عرض ئے اوکړو، داځکه چه مرګ مونږ ته هروخت یاد وی
بیا چه نبی کریم صلے الله علیه وسلم د معراج نه واپس مکے ته تشریف راوړو
نو دا آیت نازل شو: وَمِنْ قَوْمِ مُوسَىٰٓ أُمَّةٌ يَهْدُونَ بِالْحَقِّ وَبِهِ يَعْدِلُونَ؛
تفسیر قرطبی دے روایت لره اصل مقرر کړے دے او نور احتمالات ئے هم لیکلی
دی - ابن کثیر دے ته عجیبه قصه خو فرمائیلے ده مګر رد کړے ئے نه ده - البته
تفسیر قرطبی د دے د نقل کولو نه پس وئیلی دی چه غالباً دا روایت صحیح نه دے"

په هر حال د دے آیت نه دا معلومه شوه چه د حضرت موسیٰ علیه السلام په قوم کښے یو جماعت داسے دے کوم چه همیشه په حق قائم دے خواه دا هغه خلق وی کوم چه د نبی کریم صلے الله علیه وسلم د راتلو خبر بیا مونده وا و مسلمانان شو، یا دغه د بنی اسرائیلو دولسمه قبیله وی کومے لره چه الله تعالیٰ د زمکے په یوه خاصه حصه کښے آباد کړی وی چه د نورو رسائی ورته نیشتے - والله اعلم -

وَقَطَّعْنٰهُمُ اثْنَتَيْ عَشْرَةَ اَسْبَاطًا اُمَمًا ؕ وَاَوْحَيْنَآ

او جُدا جُدا کړل مونږ دوی لره د دولسو نیکونو په اولاد کښے لوئے لوئے جماعتونه - او حکم اولیږه

اِلٰى مُوْسٰۤى اِذِ اسْتَسْقٰىهُ قَوْمُهٗۤ اَنِ اضْرِبْ

مونږ موسیٰ ته کله چه اوبه اوغوښتے د ده نه خپل قوم چه او وَهه

بِّعَصَاكَ الْحَجَرَ ۚ فَانْۢبَجَسَتْ مِنْهُ اثْنَتَا عَشْرَةَ

خپله همسا په دے کانړی - نو جاری شوے د هغه نه دولس

عَيْنًا ؕ قَدْ عَلِمَ كُلُّ اُنَاسٍ مَّشْرَبَهُمْ ؕ وَظَلَّلْنَا

چینے - او پیژند وهرے قبیلے خپل گهٹ د ځان - او سورے کړه مونږ

عَلَيْهِمُ الْغَمَامَ وَاَنْزَلْنَا عَلَيْهِمُ الْمَنَّ وَالسَّلْوٰى ؕ

په دوی وریځ او نازل کړل مونږ په دوی مَنّ او سلویٰ -

كُلُوْا مِنْ طَيِّبٰتِ مَا رَزَقْنٰكُمْ ؕ وَمَا ظَلَمُوْنَا

خورئ پاک څیزونه کوم چه مونږ درکړی دی تاسو ته - او دوی زمونږ هیڅ تاوان

وَلٰكِنْ كَانُوْۤا اَنْفُسَهُمْ يَظْلِمُوْنَ ﴿۱۶۰﴾ وَاِذْ

او نه کړو ولیکن خپل نقصان ئے او کړو - او کله چه

قِيْلَ لَهُمُ اسْكُنُوْا هٰذِهِ الْقَرْيَةَ وَكُلُوْا مِنْهَا

حکم او شو دوی ته چه او سیږئ په دے ښار کښے او خورئ د دے نه د

حَيْثُ شِئْتُمْ وَقُوْلُوْا حِطَّةٌ وَّادْخُلُوا الْبَابَ

کوم ځائے نه چه غواړئ او وایئ چه مونږ ه اوبخښه او داخلیږئ په دروازه کښے

سُجَّدًا نَّغْفِرْ لَكُمْ خَطِيْٓـٰٔتِكُمْ ؕ سَنَزِيْدُ

سجده کوونکی لو اوبه بخښو مونږ ستاسو خطاګانے - البته زیات به ورکړو

الْمُحْسِنِيْنَ ﴿۱۶۱﴾ فَبَدَّلَ الَّذِيْنَ ظَلَمُوْا مِنْهُمْ

مونږ نیکی کوونکو ته - پس بدل کړو ظالمانو د دوی نه بل لفظ

قَوْلًا غَيْرَ الَّذِيْ قِيْلَ لَهُمْ فَاَرْسَلْنَا عَلَيْهِمْ

د هغے نه سوا کوم چه دوی ته ویلے شوے وو پس اولیږه مونږ په دوی

رِجْزًا مِّنَ السَّمَآءِ بِمَا كَانُوْا يَظْلِمُوْنَ ﴿۱۶۲﴾ ع

عذاب د اسمان نه په سبب د دوی د شرارت -

# لنډ تفسیر

او مونږ ریو انعام په بنی اسرائیلو دا او کړو چه د دوی د اصلاح او انتظام د پاره مو دوی لره په دولس خاندانونو کښے تقسیم کړل تول موجُود اجګا جماعت مقرر کړو او په هریو مو یو سردار د نګرانئ د پاره مقرر کړو چه ذکر ئے د سورتِ مائده په دریمه رکوع کښے دے : وَبَعَثْنَا مِنْهُمُ اثْنَيْ عَشَرَ نَقِيْبًا) او ریو انعام مو دا او کړو چه) مونږ موسیٰ (علیه السلام) ته حکم او کړو کله چه د دهٔ قوم د دهٔ نه اوبه او غوښتلے را او دوئ الله پاک ته

دُعا اوکړه دغه وخت داحکم اوشو) چه خپله داهُمسا په فلانی کټه اُو وَ هَه رااُوبه به ترِ رااوُځی) بس رسره ده وهلو) فوراً دَ هغے نه دولس چینے ردَد ے دولسو خاندانو نو په شمار) رااوُوَ تلے رچنانچه) هریوسړی دَ خپلو اُو بو نښلو موقع معلومه کړه او ردیو انعام موداوکړو چه) مونږ په دوی باندِ وَرِیځ سورے کوُونکے کړه او ردیوانعام مودا اوکړو چه دَغیبو نه) ترنجبین او مړزان مو ورته او رَسوَل را واجازت مُو ورته اوکړو چه) خورئ دَ پاکو څیزونو نه کوم چه مونږ تاسو ته درکړی دی رلیکن دغو خلقو په دے کښے هم یوه خبره دَ حکم خلاف اوکړه) او ربه دے سره) دوی زمونږ څهٔ نقصان او نه کړو، لیکن خپل نقصان ئے کَولو ردا دَ وادئ تیهه واقعات دی چه تفصیل ئے په سورتِ بقره کښے تیرشوے دے) او رهغه وخت یادکړه) کله چه دوی ته حکم اوُشو چه تاسو خلق دغے اٰبادئ ته لاړشئ هلته اوسئ او خورئ دَ دے رد څیزونو) نه کوم ځائے چه ستاسو خواهش وی او ر دا هم حکم اوشو چه کله دَ ننه ځئ نو) په ژبه سره دا وایئ چه توبه ده رتوبه ده) او ربه عاجزئ سره) خکته خکته ریعنی ټیټ ټیټ) په دروازه کښے داخلیږئ مونږ به ستاسو رتیرے) خطاګانے معاف کړو ردا خو به دَ ټولو دپاره وی او) کوم خلق چه نیکی کوی هغو ته به زیاتی په دے نور هم ورکړو پس بدلَه کړه دے ظالمانو یوه بله کلمه چه خلاف وه دَ هغه کلے دَ کومے ردَ ویلو چه دوی ته فرمائیلِ شوے وُه نو په دے وجه مونږ په دوی دَ آسمان نه یوا فت رااُولیږهٔ په دے وجه چه دوی حکم ضائع کَولو۔

---

# وَسْـَٔلْهُمْ عَنِ الْقَرْيَةِ الَّتِىْ كَانَتْ حَاضِرَةَ الْبَحْرِ ۘ

اوتپوس اوکړه دَ دوی نه دَ حال دَ هغه کلی چه وُه دَ دریاب په غاړه

# اِذْ يَعْدُوْنَ فِى السَّبْتِ اِذْ تَاْتِيْهِمْ حِيْتَانُهُمْ

کله چه زیاتے کاوُه دوی په حکم دَ هفتے کښے کله چه به راتلل دوی ته ماهیٔ

وقف لازم

يَوْمَ سَبْتِهِمْ شُرَّعًا وَّيَوْمَ لَا يَسْبِتُونَ لَا تَأْتِيهِمْ

په ورځ د هفتې د اوبو سر ته او کومه ورځ چه به هفته نه وه نه به را تلل

كَذَٰلِكَ نَبْلُوهُم بِمَا كَانُوا يَفْسُقُونَ ﴿١٦٣﴾ وَإِذْ

د غسې - موږ د دوی آزمائیښ اوکړه ځکه چه دوی نافرمانه وو - او کله چه

قَالَتْ أُمَّةٌ مِّنْهُمْ لِمَ تَعِظُونَ قَوْمًا اللَّهُ مُهْلِكُهُمْ

اُووے په دوی کښې یوے فریقے ولے نصیحت کوئ هغو خلقو ته چا لره چه الله غواړي چه هلاک

أَوْ مُعَذِّبُهُمْ عَذَابًا شَدِيدًا قَالُوا مَعْذِرَةً إِلَىٰ

کړي یا ئې په عذاب کړي سخت - دوی اُووے د الزام لرے کولو په غرض سره

رَبِّكُمْ وَلَعَلَّهُمْ يَتَّقُونَ ﴿١٦٤﴾ فَلَمَّا نَسُوا مَا

ستاسو د رب په وړاندې او د دے د پاره چه شائد که دوی اُویریږي - بیا چه کله هغوی هیر کړه هغه

ذُكِّرُوا بِهِ أَنجَيْنَا الَّذِينَ يَنْهَوْنَ عَنِ

چه دوی ته خو د لی شوی وو نو نجات ورکړو موږ هغو ته چه منع به ئې کوله د

السُّوءِ وَأَخَذْنَا الَّذِينَ ظَلَمُوا بِعَذَابٍ

بدئ نه او اُونیول موږ ګناه ګارو لره په ناکاره

بَئِيسٍ بِمَا كَانُوا يَفْسُقُونَ ﴿١٦٥﴾ فَلَمَّا عَتَوْا عَن مَّا

عذاب کښې په سبب د دوی د نافرمانئ - بیا کله چه زیات شو په هغه کار کښې چه

نُهُوا عَنْهُ قُلْنَا لَهُمْ كُونُوا قِرَدَةً خَاسِئِينَ ﴿١٦٦﴾

منع شوی وو ترې نو موږ حکم اوکړو چه شئ شادوګان ذلیل -

# لنډ تفسير

۹/۹

او ته دے ( د ځينو زمانے يهوديانو ) خلقو ته ( په طور د خبردارئ ) د دے کلی ( واله ) قوم چه د درياب ( شور ) په خواکښے آباد وُه ( او يهوديان په کښے اوسيدل ) پکو موچه د هفتے په ورځ ښکار کول منع وُو ) د هغے وخت د حال تپوس تِر او کړه کله چه دوی ( يعنی د دغه ځائے اوسيدونکو ) د هفتے ( متعلق کوم حکم وُه د دے ) په باره کښے ( د شرعی ) حد نه وتلی وُو هرکله چه به د دوی د هفتے په ورځ ( د درياب ) مهی ( د او ) بو نه سرونه با هرکول او ښکاره کيدل ( د درياب په سرسر به ) د دوی مخے ته به راتلل او کله چه به د هفتے ورځ نه وه نو دوی ته به مخامخ نه راتلل ( بلکه د دغه ځائے نه به چرته لرے تلل او وجه د دے داوه چه ) مونږ د دوی په دے شان سره ( سخت ) آزمائش کولو ( چه څوک په حکم ثابت قدم اوسی او کوم نهٔ او دا آزمائش ) په دے سبب سره ( وُه ) چه دوی ( د مخکښے نه ) حکم نه منلو ( په دے وجه په دا سے سخت حکم سره د دوی آزمائش اوشو او د حکم منونکو ازميښت ، نرمیَ ، توفيق او تائيدِ الٰهی سره ستړ لے وی ) او ( د هغے وخت د حال پتوس تِر اوکړه ) کله چه په دوی کښے يو ے ډلے ( کومے چه دوی ته نصيحت کولو او د اثر او نفع نه مايوسه شوی وُو ) دا سے خلقو ته چه اوس ئے لا هم نصيحت کولو او دو مره مايوسه شوی هم نه وُو لکه چه د : لَعَلَّهُمۡ يَتَّقُوۡنَ : نه معلوميګی ) دا سے اُو وے چه تاسو دا سے خلقو ته ولے نصيحت کوئ د کومو ( چه د قبول هيڅ اميد نيشته او د دے نه معلوميګی چه دوی ) لره چه الله تعالی بالکل هلاک کونکے دے يا ( که هلاک نه شی نو ) دوی لره ( په بل شان سره سخته سزا ورکونکے دے ( يعنی د دا سے خلقو سره ولے دماغ خورئ ) دوی جواب ورکړو چه ستاسو ( او خپل ) رب په وړاندِ د عذر جوړه ولو د پاره ( دوی ته نصيحت کوُو چه بيا د الله تعالی په وړاندِ او وايو چه يا الله مونږ خو دوی ته وئيلی وُو خپله غاړه مو آزاده کړے وَه مګر دوی نهٔ آوريدل نو مونږ معذور يُو ) او ( د دارنګ ) د دے د پاره چه شايد دوی اُو يريګی ( او عمل شروع کړی مګر هغوی کله عمل کولو ) پس ( را اخر ) هر کله چه دوی

دغه کار یا تے نه کرو دَ کوم چه دوی ته دَ پاتے کولو ویلی شوی وُو (یعنی خبره ئے اونه منله) نو مونږ هغو خلقو لره خوړ دَ عذاب نه) بچ کړل کو مو چه دَ دے بدے خبرے نه منع کوَ لو (خواه په مخه منع کوَل ئے کوَل اوکه دَ نا اُمیدئ دَ عذر په وجه قلار شو) او هغو خلقو لره کوموچه (په ذکر شوی حکم کښے) زیاتے کوَلو دوی لره (دَ دے حکم نه منلو په وجه سره) په یو سخت عذاب کښے اونیول یعنی کله چه دوی دَ کوم کار نه منع شوی وُو په هغے کښے دَ حد نه تیر شو (دا خو تفسیر شوَ هیرَ وَلو دَ هغے شی چه مَاذُکِّرُوْا بِهٖ) نو مونږ دوی ته (په قهر سره) اُو ویل چه تاسو ذلیل شادو کان جو شئ (دا تفسیر شو دَ عذاب بَئِیۡسٍ)

دَ دے ذکر شوو ایاتو نور واقعات هم په سورتِ بقره کښے په تفصیل او تشریح سره تیر شوی دی که ضرورت وی هلته ئے اوکورئ -

وَاِذۡ تَاَذَّنَ رَبُّكَ لَيَبۡعَثَنَّ عَلَيۡهِمۡ اِلٰى يَوۡمِ

او هغه وخت یاد کړه کله چه خبر ورکړے وو ستا ربّ چه خامخا به بیکلے شی په یهود وباندې ترقیامت دَ

الۡقِيٰمَةِ مَنۡ يَّسُوۡمُهُمۡ سُوۡٓءَ الۡعَذَابِ‌ؕ اِنَّ رَبَّكَ

ورځے پورے داسے سړے چه ورکوی دوی ته ناکاره عذاب - بے شکه ستا ربّ

لَسَرِيۡعُ الۡعِقَابِ‌‌ۖۚ وَاِنَّهٗ لَغَفُوۡرٌ رَّحِيۡمٌ ﴿۱۶۷﴾

ډیر زر عذاب ورکوونکے دے - او هغه بخنے والا مهربان دے

وَقَطَّعۡنٰهُمۡ فِى الۡاَرۡضِ اُمَمًا‌ ۚ مِنۡهُمُ الصّٰلِحُوۡنَ

او پریکړل مونږ دوی لره په ملک کښے فریقے فریقے - بعضے په دوی کښے نیکان

وَمِنۡهُمۡ دُوۡنَ ذٰلِكَ‌ وَبَلَوۡنٰهُمۡ بِالۡحَسَنٰتِ وَ

او بعضے بل شان دی - او مونږ دوی آزمائش اوکړو په ښیګړو سره او

السَّیِّاٰتِ لَعَلَّهُمْ یَرْجِعُوْنَ ﴿۱۶۸﴾ فَخَلَفَ مِنْۢ بَعْدِهِمْ

په بدو سره د دے دپاره چه دوی واپس شی - بیا د دوی نه روستو راغلل

خَلْفٌ وَّرِثُوا الْکِتٰبَ یَاْخُذُوْنَ عَرَضَ هٰذَا الْاَدْنٰی

ناخلفه چه وارثان جوړ شو د کتاب اخلی اسباب د دے دُنیا د ژوند

وَیَقُوْلُوْنَ سَیُغْفَرُ لَنَا ۚ وَاِنْ یَّاْتِهِمْ عَرَضٌ مِّثْلُهٗ

او وائی چه مونږ ته به معاف کړے شی - او که راشے اسباب د دوی مخے ته بیا راشی

یَاْخُذُوْهُ ؕ اَلَمْ یُؤْخَذْ عَلَیْهِمْ مِّیْثَاقُ الْکِتٰبِ

نو اخلی ئے - آیا د دوی نه په کتاب کښے عهد نه وُه اغستے شوے

اَنْ لَّا یَقُوْلُوْا عَلَی اللّٰهِ اِلَّا الْحَقَّ وَدَرَسُوْا مَا

چه نۀ به وائی په الله باندے سوا د رشتیا وُو نه او دوی لوستلی دی څۀ چه

فِیْهِ ؕ وَالدَّارُ الْاٰخِرَةُ خَیْرٌ لِّلَّذِیْنَ یَتَّقُوْنَ ؕ

په کښے لیکلی دی- او د آخرت کور غوره دے د یریدو نکو دپاره-

اَفَلَا تَعْقِلُوْنَ ﴿۱۶۹﴾

آیا تاسو نۀ پوهیږئ -

## لنډ تفسیر

او هغه وخت یاد ول په ردی چه کله ستا رب ر د انبیاؤ د بنی اسرائیلو په معرفت) د اخبر د او خوده چه هغۀ به په دے یهودو ر د دوی د بے باکو او ناروا نو په سزا کښے د قیامت رته نزدے) پورے داسے رخۀ نۀ څۀ) سړے خا مخا

مسلّط کولے شی کوم چه به دوی ته سختے سزا (د ذلت او خوارئ او محکومیت) تکلیف

رسَوی (چنانچه یهودیان د مودو نه د څهٔ نه څهٔ حکومت د حکم لاندِ مقهور دار روان

دی) بے شکه ستا رب واقعی (کله چه غواړی) چیره زر سزا ورکوی او بے شکه

هغه واقعی (که دوی واپس شی د گناه او نافرمانئ نه نو) لوئے مغفرت او لوئے

رحمت والا (رحم) دے او مونږ په دُنیا کینے د دوی جُدا جُدا ډلے جوړے کړے

(چنانچه) بعضے په دوی کښے نیک (صم) وُو او بعضے په دوی کښے بل شان ذو

(یعنی بَدان وُو) او مونږ (دے بدانو لره هم د خپلے مهربانئ او تربیت او اصلاح

د اسبابو جمع کولو نه چه ته مهمل نه دی پاتے کړی بلکه همیشه) مُونږ دوی لره په

خوشحالو (یعنی روغو صحّتو نو او مالدارو) او بد حالو (یعنی بیمارو او فقیرانو

کیدو) سره آزمائیلی دی چه شائید (رب ته) دوی سره) واپس شی (ځکه چه کله

په خوشحالو سره رغبت پیدا کیږی او کله په بَدْ حالو سره یره پیدا کیږی) دا

حال خو د دوی د پخوانو مشرانو شو) بیا د دغو تیرو مشرانو) نه پس داسے خلق

د دوی جا نشین شو چه کتاب (یعنی تورات) لره (خو) ئے د دوی نه حاصل

کړو (لیکن د دے سره حرام خوارهٔ داسے دی چه د کتاب د احکامو په عوض

کښے) د دے فانی دُنیا مال متاع (که ملاؤ شی نو بے تکلّفه هغے لره) اخلی او (بے

باکه خو دومره دی چه دے گناه لره سپک گنړی) وائی چه مونږ ته به خامخا

بخّانه اُوشی (ځکه چه مونږ: اَبْنَآءُ اللّٰهِ وَاَحِبَّآءُ اللّٰهِ؛ یو داسے گناه زمونږ

د مقبولیت په مقابله کښے هیڅ شے نه دے) حال دا دے چه (په خپلے بے باکئ او

سپک گنړلو د گناه دومره اِصرار کوونکی دی چه) که دوی ته (بیا) هم د غسے

(د دین خرڅولو په عوض کښے) مال متاع راشی نو (په دغه شان بے باکئ سره بیا)

هغے لره اخلی (او گناه سپک گنړل خو پخپله کفر دے چه د بخنے احتمال بِرِهم نیشتے

"نو یقین به بِرِ څهٔ اوشی" چنانچه وړاندِ دا ارشاد دے چه) آیا د دوی نه د

دے کتاب د دے مضمون عهد نه وُو اخستے شوے چه د خدائے طرف ته به

بغیر د حقے (او واقعی) خبرے نه د بلے څهٔ خبرے نسبت نه کوی (مطلب دا

دے چه کله څهٔ آسمانی کتاب لره منلے شی نو د هغے معنیٰ دا وی چه مونږ به

د دهٔ ټول مضامین منو) او (عهد ترِجم څهٔ اجمالی عهد نه دے اخستے شوے

چه احتمال په کښې وی چه شائد دا خاص مضمون به دوی ته په کتاب کښې معلوم نه وی. بلکه په تفصیل سره تر عهد اغستے شوے دے چنانچه) دوی په دے کتاب کښې چه څه (لیکلی) وُو دغه ئے اولوستلو (هم، چه په دے سره دغه احتمال هم ختم شو خو بیا هم دوی د داسے لوئے خبرے دعوه کوی چه سره د دے چه گناه لره سپک گنړی او د مغفرت عقیده لری کوم چه په الله تعالیٰ باندے محض تهمت دے) او (دوی دا تول قصه د دُنیا د پاره او کړه باقی) کور د آخرت د هغو خلقو د پاره (د دے دنیا نه) غوره دے کوم چه (د دے عقیدو او ناکاره کارونو نه) پرهیز کوی (اے یهودو) تاسو (په دے خبره) نه پوهیگئ -

# مَعلومات او مَسئلے

د ذکر شوو آیاتو نو نه په وړُمبو آیاتو نو کښې د موسیٰ علیه السلام پاتے قِصّه ذکر کولو نه پس د دهٔ د امّت (یهودو) د غلط کارو خلقو مذمّت او د دوی د بد انجام بیان راغلے دے - په دے آیاتو کښې هم د دوی د سزا او بَد انجام ذکر دے -

په اوّل آیت کښې د دوی د دوو سزاګانو بیان دے کومے چه په دنیا کښې په دوی مسلّطے کړے شوی دی - اول دا چه تر قیامته پورے به الله تعالیٰ په دوی خوک داسے سړے خامخا مسلّط ساتی کوم چه دوی ته سخته سزا ورکوی - او په ذلّت او خوارئ کښې ئے مبتلا ساتی - چنانچه د هغے وخت نه تر ننه پورے همیشه یهود هر ځائے مقهور او مغلوب او محکوم دی - نن صبا په اسرائیلی حکومت باندِ د دے شبُه ځکه نه شی کیدے چه پوهه خلق په دے پوهه دی چه په حقیقت کښې نن هم د اسرائیلو نه خپل څهٔ قوّت شته نه حکومت دا خو د رُوس او امریکے د اسلام دُشمنئ نتیجه ده او د اسلام خلاف یو سازش دے او اسرائیلی حکومت د دوی یوه چاؤنړئ ده چه دوی د اسلام خلاف قائمه کړے ده او نن هم اسرائیل د رُوس او امریکے محکوم او مقهور دی - په کومه ورځ او کوم وخت چه دا دواړه د دوی د امداد نه لاس واخلی نو په دغه ورځ به د اسرائیلو وجود د دُنیا نه ختمیدے شی -

په دويم ايت کښې په يهودو د يوې بلې سزا ذکر دے چه په دے دُنيا کښې دوی له ورکړے شوه- هغه دا چه دَ دوی ابادی دَ دُنيا په مختلفو حصو کښې خوره اوجُدا جُدا شوه- په يو ځائے يا يو مُلک کښې دوی په جمع نه دی پاتے ".

: وَقَطَّعْنٰهُمْ فِي الْأَرْضِ أُمَمًا : دَ دے هم دغه مطلب دے- قَطَّعْنَا : دَ مصدر تقطيع : نه مشتق دے چه معنیٰ ئے ده ټکړے ټکړے کول- او : أُمَمٌ : دَ اُمَّةٌ جمع ده چه معنیٰ ئے ده يو جماعت يا يوه فرقه- مطلب دا دے چه مونږ دَ يهودو قوم ټکړے ټکړے دَ زمکے په مختلفو حصو کښې خور کړے دے-

دَ دينه معلومه شوه چه دَ يو قوم په يو ځائے جمع کيدل او جيه يدل دَ خدائے تعالیٰ انعام او احسان دے- او په مختلفو ځايونو کښې دَ دوی خوريدل دَ الله تعالیٰ يو قسم لره عذاب دے- په مسلمانانو دَ الله تعالیٰ دا انعام هميشه راغلے دے او انشاء الله تعالیٰ چه تر قيامته پورے به وی. چه دوی کوم ځائے پاتے کيږی نو هلته دَ دوی يو زبردست اجتماعی قوّت پيدا شی- دَ مدينې طيبې نه دا سلسله شروع شوه او په مشرق او مغرب کښې هم پَنَّ غے اندازے سره په حيرانونکے طريقے سره خواره شو- مشرقِ بعيد پاکستان، اندونيشياء وغيره کښې مستقل حکومتونه دَ اسلام دَ دے نتيجه کښے جوړ شو- دَ دے په مقابله کښې دَ يهودو هميشه دا حال پاتے شوے دے چه په مختلفو ملکونو کښې خواره دی، حالانکه هرڅومره دی خو اقتدار او اختيار دَ دوی لاسونو له رانغے-

دَ يو څو کالونه دَ فلسطين په يوه حصه کښې دِ دَ دوی دا اجتماعی او مصنوعی اقتدار نه څوک نه دوکه کيږی- جمع کيدل دَ دوی خو په دے ځائے کښې په اخر زمانه کښې کيدل يکار دی- ځکه چه دَ رشتونی رسول صلے الله عليه وسلم په صحيحو احاديثو کښې دا خبر ورکړے شوے دے چه په اخر زمانه کښې به حضرت عيسیٰ عليه السلام نازليګی، نصاریٰ به قبول مسلمانان شی او دَ يهودو سره به جهاد او کړی دوی به قتل کړی- خدائی مجرم دَ وارنټ او پوليسو په ذريعه نه شی نيولے بلکه هغه دا سے تکوينی اسباب جمع کړی چه مجرم پخپلو خپو په زړکو نو کوششونه کوی او خپل قتل ګاه ته ځان رارسوی- دَ حضرت

عیسیٰ علیه السلام نزول به د شام په ملک دمشق کښې وی او د یهودو سره جنګ به هم د هغوی، چه عیسیٰ علیه السلام ته د رب ختمول اسان وی.
قدرت د دنیا په ټول عمر کښې خو یهودو دلره په مختلفو ملکو نو د دنیا کښې خواره او سامل د حکومت او بے قدری عذاب ئے ورته او څکاوه او په اخر زمانه کښې ئے د عیسیٰ علیه السلام د راسانئ د پاره دوی لره یچیډ قندهار کښې جمع کړل په دے وجه د جمع کیدل د دوی د دغے عذاب نه منافی نه دی۔
پاتے شو د دوی موجوده حکومت او د مصنوعی اقتدار قضیه پس دا یوه داسے دوکه ده په کومے چه د نن مهذب بے دنیا اګرچه رنګدار او ښائسته پرده خوره کړے ده لیکن د دنیا د سیاست نه خبردار انسان د یو منټ د پاره هم په دے سره نه شي دوکه کیدے، ځکه چه نن کومے ځمکے ته د اسرائیلو حکومت وائی هغه په حقیقت کښې د روس، امریکے او انګلینډ یوه شریکه چاؤنړی ده نور ئے هیڅ حقیقت هم نیشتے۔ دغه صرف د دے حکومتو نو په امداد سره ژوندے دے او وجود ئے صرف د دوی په تابع فرمان او سیدو کښې دے۔ ښکاره خبره ده چه دے حقیقی غلامئ ته د مجازی حکومت په نوم ورکولو سره د دے قوم ځه اقتدار نه شی حاصلیدے۔ قرآن کریم د دوی په باره کښې تر قیامته پورے چه د کومے رسوائی او خوارئ ذکر کړے دے هغه نن هم یچیډ ځائے په دستور سره قائمه ده۔ چه ذکر ئے د دے نه په وړومبی ایت کښې په دے الفاظو سره راغلے دے: وَإِذْ تَأَذَّنَ رَبُّكَ لَيَبْعَثَنَّ عَلَيْهِمْ إِلَىٰ يَوْمِ الْقِيَامَةِ مَن يَسُومُهُمْ سُوءَ الْعَذَابِ: یعنی کله چه ستا رب څخه اراده اوکړه چه په دے خلقو به چا داسے طاقت نره تر قیامته پورے مسلط ساتی چه دوی به په ناکاره عذاب سره عذابوی۔
لکه چه اول د سلیمان علیه السلام په لاسه بیا د بخت نصر په ذریعه او په اخر کښې د نبی کریم صلی الله علیه وسلم په لاسه سره او باقی ماندہ د حضرت فاروق اعظم په ذریعه د هر ځائے نه په ذلت او خوارئ سره د دوی وتل مشهور او معلوم دی او په تاریخ کښې منلے شوی خبره ده۔

دَ دے ایت دویمه جمله داده: مِنۡهُمُ الصّٰلِحُوۡنَ وَمِنۡهُمۡ دُوۡنَ ذٰلِكَ: یعنی په دوی کښې څهٔ خلق نیکان دی او څهٔ بل شان تے، مراد ترې کافران فاجران او بدکار خلق دی، مطلب دادے چه یهود ټول یو شان نه دی څهٔ په کښې نیک هم دی مراد دَدے نه هغه خلق دی چه دَ تورات په زمانه کښې دَ احکامو دَ تورات پوره پابند وُو، نه ئے ترې نافرمانی اوکړه او نه ئے په کښې تاویل او تحریف اوکړو

او دا هم کیدے شی چه دَدے نه مراد هغه حضرات وی کوم چه دَ قرآن دَ نزول نه پس دَ دهٔ تابع شو- او په نبی کریم صلے الله علیه وسلم ئے ایمان راوړو دَدے په مقابله کښې هغه خلق دی کوم چه دَ تورات دَ اسمانی کتاب منلو نه پس دَ دهٔ نه خلاف ورزی اوکړه یا ئے دَ دهٔ په احکامو کښې تحریف اوکړه وخپل اخرت ئے دَ دُنیا دَ گندهٔ څیزونو په بدله کښې خرڅ کړو-

دَ ایت په اخر کښې ارشاد دے: وَبَلَوۡنٰهُمۡ بِالۡحَسَنٰتِ وَالسَّیِّاٰتِ لَعَلَّهُمۡ یَرۡجِعُوۡنَ: یعنی مونږ په ښو بد و حالتو نو سره دَ دوی امتحان واغستو چه دوی دَ خپلو حرکتو نو نه واپس شی" دَ ښو حالتو نو نه مراد دوی لره دَ مال دولت ذخیرے او دَ عیش عشرت سامان ورکول دی، او دَ بد و حالتو نو نه مراد یا خو دَ ذلت او خوارئ هغه واقعات دی کوم چه په هر زمانه کښې په مختلفو صورتو نو سره دوی ته وړ پیښ شوی دی- او یا په څهٔ وخت کښې قحط او خواری چه په دوی راغلی وی هغه مراد وی- په هر حال مطلب دا دے چه دَ انسان دَ فرما نبردارئ یا سرکشئ دَ امتحان اَغستلو دوه طریقے دی دواړه استعمال کړے شوے- یوه دا چه انعامات او احسانات پرے اوشو چه دوی دَ احسان کونکی او انعام ورکونکی شکرگزارا و فرما نبردار کیږی او کرَنهٔ؛ دَ دویم دا چه دوی په مختلفو تکلیفو نو او پریشانو کښې اخته کړے شو چه امتحان ئے اوشی چه دوی خپل رب طرف رجوع کوی او دَ خپلو بد و عملونو نه توبه کوی او کرَنهٔ ؟ -

لیکن یهودی قوم په دے دواړو امتحانو نو کښې فیل شو-

هر کله چه الله تعالیٰ په دوی دَ نعمت دروازے او پرانستلے او په بانه دولتونو ئے ورکړل نو دوی اُوو ے: اِنَّ اللّٰهَ فَقِیۡرٌ وَّنَحۡنُ اَغۡنِیَآءُ: یعنی (معاذالله) الله تعالیٰ

فقیر دے او موږ غنیان، او کله چه ئې په خوارئ او ناداری سره وازمایل نو اوئې وئیل: يَدُ اللّٰهِ مَغْلُوْلَةٌ: یعنې د الله تعالیٰ لاس و نه تنګ شو۔

**فائدے**

د دے ایت نه یوه فائده خو دا حاصله شوه چه د یو قوم په یو ځائې کښې جمع کیدل د الله تعالیٰ نعمت دے۔ او د دوی خواره واره کیدل عذاب دے، دویمه فائده تر دا حاصله شوه چه د دے دُنیا راحت او تکلیف، غم او خوشحالی په حقیقت کښې د الله تعالیٰ د امتحان مختلفې پرچې دی، د کومو په ذریعه چه د دهٔ د ایمان او خداپرستئ آزمائیش کولے شی، نه د دے ځائې تکلیف څهٔ د زیاتے جړا فریاد شے دے او نه ئې راحت څهٔ د خوشحالیدو او مغروره کیدو سامان دے۔ په انجام د فکر کوونکی هوښیار د پاره دا دواړه څیزونه د توجه قابل نه دی:

نه شادی داد سامانے نه غم آورد نقصانے ‌ ‌ ‌ ‌ ‌ ‌ ‌ ‌ به پیش همت ما هرچه آمد بود مهمانے

(یعنې نه ئې په خوشحالی ما ته څه راحت او آرام ملاؤ شو او نه ئې په غم ما ته څهٔ نقصان اورسید و د دے دنیا غم او خوشحالی دواړه ځما د همت په وړاندې میلما نه دی)

په دریم ایت کښې ارشاد دے: فَخَلَفَ مِنْۢ بَعْدِهِمْ خَلْفٌ وَّرِثُوا الْكِتٰبَ يَاْخُذُوْنَ عَرَضَ هٰذَا الْاَدْنٰى وَيَقُوْلُوْنَ سَيُغْفَرُ لَنَا ۚ وَاِنْ يَّاْتِهِمْ عَرَضٌ مِّثْلُهٗ يَاْخُذُوْهُ: په دے کښې اوّلنے لفظ: خَلَفَ: د خلافت مصدر نه د ماضی صیغه ده چه معنیٰ ئې دهٔ قائمقام او خلیفه ګرځان شو۔ او دویم لفظ: خَلْفٌ: مصدر دے چه د قائمقام او خلیفه په معنیٰ کښې استعمالیګی۔ د مفرد او جمع دواړو د پاره یو شان وئیلے شی۔ لیکن: خَلْفٌ: په سکون د لام اکثر د بدخلیفه د پاره استعمالیګی چه د خپلو مشرانو د طریقے نه خلاف په بد و کښې اخته وی۔ او: خَلَفٌ: په فتحے د لام سره د دے په مقابله کښې نیک او قابل خلیفه ته وئیلے شی کوم چه د خپلو مشرانو په نقش قدم باندې ځی او د هغوی مقصد پوره کوی۔ د دے لفظ د اکثریت استعمال دغه شان دے کله کله د دے نه خلاف هم استعمال شوے دے۔

: وَرِثُوا الْكِتٰبَ: د وراثت نه مشتق دے هغه شے چه د مړی نه پس ژوندو ته ملاویګی، دے ته میراث یا وراثت وئیلے شی۔ معنیٰ دا ده چه د تورات کتاب دغو خلقو ته د خپلو مشرانو نه په وراثت کښې ملاؤ شو۔ یعنې د هغوی د مرګ نه

پس د دے خلقو لاس له راغے۔

لفظ د : عَرَض : د سامان د معنیٰ د پاره وئیلے شی کوم چه د نقد مال په بدل له کښې اغستے شی، او کله د مطلق مال په معنیٰ کښې هم استعمالیدے شی خواه نقد وی یا سامان - په تفسیر مظهری کښې دی چه دلته عامه معنیٰ مراد ده او دلته مال لره په لفظ د عرض سره په تعبیر کولو کښې دے طرف ته اشاره ده چه د دنیا مال که هر څومره وی نا پائید ار دے او عارضی دے ځکه چه د عَرَض لفظ د جوهر په مقابله کښې نا پائید ار شی د پاره مستعمل کیږی د کوم چه خپل څۀ مستقل وجود نه وی بلکه دے خپل وجود کښې د بل څۀ شی تابع وی په دے وجه د عارض لفظ د وریځې په معنیٰ کښې هم راځی ځکه چه د دے وجود قائم پاتے کیدونکے نه دے چیرته زر زائله او ختمیدی په قرآن کریم کښې هٰذَا عَارِضٌ مُّمْطِرُنَا: د دے معنیٰ د پاره راغلے دے۔

په هٰذَا الْاَدْنٰى : کښې لفظ د اَدْنٰى : د : دُنُوٌّ : په معنیٰ د نزدے نه هم مشتق وئیلے شی په دے صورت کښې د ادنیٰ اخیر نزدے به شی - د دے مؤنث دُنیا دے چه معنیٰ ئے د نزدے ده - د آخرت په مقابله کښې دا جهان انسان ته زیات نزدے دے په دے وجه دے ته اَدْنیٰ او دُنیا وائی - او بل احتمال دا هم دے چه دا لفظ : دَنَاءَةٌ : په معنیٰ د ذلت نه مشتق وی نو معنیٰ ئے ذلیل او حقیر به شی - دنیا او د دے ټول سامان په مقابله د آخرت کښې ذلیل او سپک دے په دے وجه دے ته دُنیا او ادنیٰ وائی -

معنیٰ د آیت دا ده چه د اول دور په یهودیانو کښې دوه قسمه خلق وُو څۀ نیکان صالحان د شریعت د تورات پابند - او څۀ نافرمان او ګناه کار وُو - مګر د دوی نه پس چه کوم خلق د دوی په نسل کښې د دوی خلیفه ګان او قائمقام او د تورات وارثان جوړ شو - دوی دا حرکت اختیار کړو چه د الله کتاب ئے د سوداګرئ مال جوړ کړو چه د غرض د خاوندانو نه به ئے رشوت اغستو د الله تعالیٰ کلام به ئے بدلولو او د دوی د مطلب موافق به ئے جوړولو -

: وَيَقُوْلُوْنَ سَيُغْفَرُ لَنَا : په دے د پاسه ئے زیات زړۀ ورتو بدا او کړو

چه دائے وئیل چه اګر که دا مونږ ګناه کړے دے مګر دا ګناه به زمونږ او بخلی شی الله تعالیٰ دَدوی په دے غلطئ باندِ په راتلونکے جمله کښے دوی ته دا سے خبر ورکړو چه: وَإِن يَأْتِهِمْ عَرَضٌ مِّثْلُهُ يَأْخُذُوهُ ؕ یعنی دَدوی حال دا دے چه که دوی ته هم دوی ته دَ کلام بدلولو په بدله کښے څۀ مال ملاو شی نو دوی او س هم مال اخلی او بدلون کوی - مطلب دا دے چه دَ الله تعالیٰ مغفرت او بخشش په ځائے او حق دے مګر دَ هغو خلقو دَپاره کوم چه په خپلو کړو ستومانه وی او آئنده دَ هغے دَپاتے کولو پوخ قصد او کړی چه دَ دے اصطلاحی نوم توبه ده۔

دا خلق بخپله جرم دَپاتے کیدو او بیا بیا کولو با وجود دَ بخانے اُمید کوی حال دا دے چه دا وخت که دوی ته پیسه ملاو شی نو په بدلولو کښے کوتاهی نه کوی۔ په ګناه دَپاتے کیدو او بیا بیا کولو با وجود دَ بخانے امید لرل ځان له دَ دوکے ورکولو نه سوا نور هیڅ حقیقت نه لری۔

آیا دَ دے خلقو نه په تورات کښے دا عهد نه وو اغستے شوے چه دوی به دَ دروغو نسبت الله تعالیٰ ته نه کوی بغیر دَ حقے خبرے نه او دے خلقو دا معاهده په تورات کښے لوستلے او نور ته وئیلے هم وه - دا تهوله دَ دوی دَ انجام فکر نه کوی دی۔ خبره دا ده چه دَ آخرت کور دَ پرهیزګارانو دَپاره ډیر غوره لا زوال دولت دے آیا دوی په دومره خبره هم نه پوهیږی۔

---

وَالَّذِينَ يُمَسِّكُونَ بِالْكِتَٰبِ وَأَقَامُوا الصَّلَوٰةَ ط

او کوم خلق چه بند او نیسی کتاب لره او قائم ساتی مانځه لره -

إِنَّا لَا نُضِيعُ أَجْرَ الْمُصْلِحِينَ ﴿١٧٠﴾ وَإِذْ نَتَقْنَا

بے شکه مونږ نه ضائع کوو ثواب دَ نیکی کوونکو - او څۀ وخت چه اوچت کړو مونږ

الْجَبَلَ فَوْقَهُمْ كَأَنَّهُ ظُلَّةٌ وَظَنُّوا أَنَّهُ وَاقِعٌ

غر دَپاسه دَ دوی ، په مثل دَ سائبان او او ګڼړیدل چه غورزیدونکے دے

بِهِمْ ۚ خُذُوْا مَآ اٰتَيْنٰكُمْ بِقُوَّةٍ وَّاذْكُرُوْا مَا

په دوی مونږ او وے چه اونیسئ کوم چه مونږ تاسو لره درکړی دی په طاقت سره او یاد کړئ

فِيْهِ لَعَلَّكُمْ تَتَّقُوْنَ ﴿١٧١﴾

څه چه په دے کښے دی چه تاسو ځان او ساتئ۔

# لنډ تفسیر

او (په دوی کښے) کوم خلق چه د کتاب (یعنی تورات) پابند دی (چه په دے کښے په نبی کریم صلے الله علیه وسلم د ایمان راوړو هم حکم دے پس پابندی دا ده چه مسلمانان شو) او (د عقیدو سره د نیکو عملو هم پابند وی ځکه چه) د موږ پابندی کوی مونږ د داسے خلقو چه ځپله (دغه شان) اصلاح کوی ثواب به ضائع نه کړو. او هغه وخت هم د یاد ولو قابل دے کله چه مونږ غر لره اوچت کړو د چت پشان په دوی (بنی اسرائیلو) د پاسه (په برابرئ سره) موزور نه کړو او د دوی یقین او شو چه اوس به په دوی باندے راوغورځیږی او (دغه وخت) مونږ او وے چه (زر) قبول کړئ کوم کتاب چه مونږ تاسو لره درکړے دے (یعنی تورات او) په مضبوطئ سره (سے قبول کړئ) او یاد کړئ کوم حکمونه چه په دے (کتاب) کښے دی چه په دے سره امید دے تاسو به متقیان جوړ شئ۔

# مَعلومَات اومَسَئلے

په تیر وایاتو نوکښے د یو عهد او میثاق ذکر وه کوم چه په خاص طور سره د بنی اسرائیلو د عالمانو نه اغستے شوے وه چه په دے کښے به څه تصرف او تغیر نه کوئ او د الله تعالیٰ طرف ته به بغیر د حقے او صحیح خبرے نه د بل شی نسبت نه کوئ۔ او دا خبره وړاندے بیان شوے وه چه د بنی اسرائیلو عالمانو وعده ماته کړے وه او د غرض د خاوندانو نه به ئے رشوتونه اغستل د تورات حکمونه

بهٔ بدلول او د دوی د غرض مطابق بدلې دوی ته خودل، او س دا ایت هم د دې مضمون مکمل کوونکے دے چه د بنی اسرائیلو عالمان ټول داسے نه دی - په دوی کښې بعضے هغه هم دی چاچه د تورات احکام په مضبوطئ سره اونیول او د ایمان سره د عمل هم پابند شوا و موږ ئے د پوره آدابو سره قائم کړو د داسے خلقو په باره کښے فرمائی چه الله تعالیٰ د خپل اصلاح کوونکو خلقو اجر نه ضائع کوی نو کوم خلق چه د ایمان او عمل دواړ و فرائض ادا کړل خپله اصلاح ئے اُوکړه نو د دوی اجر نه شی ضائع کیدے -

په دے ایت کښے څو فائدے د غور قابلے دی اوّل داچه د کتاب نه مراد په دے کښے هغهٔ کتاب دے د کوم ذکر چه وړاندې راغلے دے یعنی تورات، او داهم ممکنه ده چه هر یو اسمانی کتاب تورات، انجیل، قران ټول ترے نه مراد وی -

دویم داچه د دے ایت نه معلومه شوه چه د الله کتاب لره صرف د خپل ځان سره په احتیاط او تعظیم باندې په ایخودو هیڅ مقصد نه حاصلیږی بلکه د دے د احکامو پابندی غواړی - شاید چه دے طرف ته د اشارے کولو د پاره په دے ایت کښے د کتاب اَغستو یا لوستو ذکر نیشته - ورنه د: یَأْخُذُوْنَ، یا: یَقْرَءُوْنَ، لفظ به وه - دلته د: یُمَسِّکُوْنَ: لفظ اختیار کړے شو چه معنیٰ ئے ده، په مضبوطئ سره په پوره شان نیول یعنی د دے د احکامو تعمیل کول -

دریمه خبره د غور قابله داده چه دلته د تورات د احکامو د تعمیل او پابندئ ذکر وه او د تورات حکمونه په سوونو دی دلته ئے صرف د اقامت صلوٰة په ذکر اکتفاء اوکړه - په دے کښے اشاره ده دے خبرے طرف ته چه د کتاب الله په احکامو کښے د ټولو نه زیات اَهَم او غوره او اعلیٰ موږ دے دا د دې داچه د موږ پابندی د الله تعالیٰ د حکمونو د پابندئ خاص نښه او علامت هم دے - چه د دے په ذریعه د فرمانبردارا و نا فرمان پیژندل کیدے شی - او د دے په پابندئ کښے دا خاصیت هم دے چه کوم سړے د مانځه پابند شو د هٔ ته د الله تعالیٰ د نورو حکمونو پابندی هم اسانه شی او چا چه د مانځهٔ پابندی اُونهٔ کړه

دَ هغه نه دَ نورو احکامو پابندي هم نه شي کيدے. لکه چه په صحيح حديث کښې دَ نبي کريم صلے الله عليه وسلم ارشاد دے چه مونځ دَ دين ستن ده په دے ئې ابادي ولاړه ده چا چه دے ستنے لره قائمه کړه نو ده دين لره قائم کړه او چا چه دے لره اونړه ولړه نوګويا ده دَ ټول دين ابادئ لره اونړه وله۔

په دے وينا کښې دَ کتاب کښے د: وَالَّذِيْنَ يُمَسِّكُوْنَ بِالْكِتٰبِ: نه پس ئې: وَاَقَامُوا الصَّلٰوةَ: اُوفرمائيل دائے او خودَ له چه په کتاب سره تمسك کونکي او دَ دے پابندي کونکي په صرف هغه خلق ګڼلے شي کوم چه مونځ لره سره دَ خپلو آدابو او شرائطو په پابندئ سره آدا کوي - او کوم چه په مانځه کښے کوتاهي کوي هغهٔ هر څومره وظائف چه لولي يا مجاهدے کوي هغهٔ دَ الله تعالى په نزد هيڅ نه دے - اګرکه ورته نه کشف وکرامات هم ښکاره کيږي -

تر دے ځائے پورے دَ بني اسرائيلو دَ وعدے ماتولو او په تورات کښے په تحريف کولو باندِ دوي ته دَ خبردارکولو بيان وه - دَ دے نه پس په دويم ايت کښے دَ بني اسرائيلو دَ يو خاص عهد ذکر دے کوم چه دَ دوي نه دَ تورات دَ حکمونو دَ پابندئ کولو په وير ولو سره کو يا په زبردستئ اخستے وه چه ذکرئې په سورتِ بقره کښے هم راغلے دے -

په دے ايت کښے لفظ د: نَتَقْنَا: دَ: نَتْق: نه مشتق دے چه معنى ئې ده راښکول او اوچتول - په سورتِ بقره کښے دَ دے واقعے په ذکر کښے لفظ د: رَفَعْنَا: راغلے دے - په دے وجه دلته هم حضرت ابنِ عباس رض دَ: نَتَقْنَا: تفسير په: رَفَعْنَا: سره کړے دے -

او لفظ دَ: ظُلَّةٌ: د: ظِلَّةٌ (په معنىٰ دَ سورى) نه مشتق دے چه معنى ئې ده سائبان - مګر لفظ دَ سائبان په عرف کښے داسے څيز ته وئيلے شي دَ کوم سورے چه په سر باندے پروت مګر دے په څه ستنه باندِ قائم وي، او په دے واقعه کښے غر دَ دوي په سر باندِ معلق شوے وه دَ سائبان په صورت کښے نه وه په دے وجه ئې دے لره په حرف دَ تشبيه سره ذکر کړو -

معنى دَ ايت دا ده چه هغه وخت هم دَ يادَ ولو قابل دے کله چه مونږ دَ بني اسرائيلو په سرونو باندِ غر اوچت زوړند کړو چه دوي داسے او ګڼڵه

چه اوس به په مونږه غر راغورزیګي په دے حالت کښے دوی ته اُوویلے شو چه خُذُوْا مَآ اٰتَیْنٰکُمْ بِقُوَّةٍ: یعنی مضبوط اُونیسئ دے احکامو لره کوم چه مونږ تاسو لره درکړی دی - او یاد کړئ دَ تورات هدایتونو لره چه تاسو دَ بد عملونو اخلاقو نه منع شئ -

واقعه دَ دے داده چه کله دَ بنی اسرائیلو دَ خواهش او فرمائش مطابق حضرت موسیٰ علیه السلام دَ الله تعالیٰ نه کتاب او شریعت اُوغوښتلو او دَ حکم مطابق په دے سلسله کښے دَ څلویښتو شپو اعتکاف په کوه طور باندِ دَ کولو نه پس دَ الله تعالیٰ دا کتاب ملاؤ شو او بنی اسرائیلو ته ئے واؤرولو نو په دے کښے چه یو داسے احکام راغلل کوم چه دَ دوی دَ طبیعت او اسانو نه خلاف وو چه دا ئے واؤریدل نو انکار ئے اوکړو چه زمونږ نه خو په دے احکامو باندِ عمل نه شی کیدے - دغه وخت الله تعالیٰ جبرائیل امین ته حکم اوکړو هغوی کوه طور په دغے کلی باندِ زُوړند کړو په کوم کښے چه بنی اسرائیل آباد وُو - دَ دے رقبه په تاریخی روایتونو کښے درے مربع میله بیان شوے ده - دغه شان دے خلقو مرګ مخامخ اولید و نو ټول په سجده پریوتل او دَ تورات دَ حکمونو دَ پابندئ عهد ئے اوکړو، لیکن دَ دے باوجود ئے بیا هم بار بار خلاف ورزی کول -

په دین کښے جبر او اِکراه نیشته دَ دے صحیح مطلب او دَ شُبهے جواب

دلته دا خبره دَ غور کولو قابل ده چه دَ قرآن کریم عام اعلان دے: لَآ اِکْرَاهَ فِی الدِّیْنِ: یعنی په دین کښے جَبَر او اکراه نیشته چه چا لره په حق دین قبلولو مجبوره کړے شی - او دَ دے واقعے نه ظاهر یګی چه بنی اسرائیلو لره ئے په قبلولو باندِ مجبوره کړل

لیکن که لږ غور پرے اوشی نو فرق ښکاره دے چه غیر مسلم لره دَ اسلام په قبلولو چه ته او هیڅ کله هم نه دی مجبوره کړی شوی - لیکن کوم سړے چه مسلمان شی او دَ اسلامی عهد و میثاق پابند شی - دَ دے نه پس که دے دَ اسلام دَ احکامو خلاف ورزی اوکړی نو په دهٔ مخامخا جبر کولے شی، او دَ خلاف ورزئ په صورت کښے سزا ورکولے شی - په اسلامی تعزیراتو کښے چیرے سزا ګانے دَ داسے خلقو دَ پاره مقرر دی - دَ دے نه معلومه شوه چه دَ: لَآ اِکْرَاهَ فِی الدِّیْنِ:

تعلق د غیر مسلمو سره دے - چه دوی لره په جبر سره نه شی مسلما نولے
او د بنی اسرائیلو په دے واقعه کښې ئے چا لره په اسلام قبلولو سره نه دی مجبوره کړی
بلکه دے خلقو د مسلما نید و با وجود د تورات د حکمو نو د پا بندئ نه انکار او
کړو - په دے وجه په دوی جبر او اکراه کول او پا بند کول ئے د: لَآ اِکْرَاهَ فِی
الدِّیْنِ: نه خلاف نه دے -

وَاِذْ اَخَذَ رَبُّكَ مِنْۢ بَنِیْٓ اٰدَمَ مِنْ ظُهُوْرِهِمْ

او کله چه را او ویستل ستا رب د بنی ادم د شا ګا نو نه د دوی

ذُرِّیَّتَهُمْ وَ اَشْهَدَهُمْ عَلٰۤی اَنْفُسِهِمْ ۚ اَلَسْتُ بِرَبِّكُمْ ؕ

اولاد لره او اقرار ئے بیا او کړو د دوی پخپلو ځانو نو آیا زه ستا سو رب نه یم

قَالُوْا بَلٰی ۛۚ شَهِدْنَا ۛۚ اَنْ تَقُوْلُوْا یَوْمَ الْقِیٰمَةِ اِنَّا

او ئے ویل چه هائے، مونږ اقرار کړو - چه چرته او نه وایئ د قیامت په ورځ چه مونږ

كُنَّا عَنْ هٰذَا غٰفِلِیْنَ ﴿۱۷۲﴾ۙ اَوْ تَقُوْلُوْۤا اِنَّمَاۤ اَشْرَكَ

خو د دے نه خبر نه وو - یا دا او وایئ چه شرک خو را ویستلے وو

اٰبَآؤُنَا مِنْ قَبْلُ وَ كُنَّا ذُرِّیَّةً مِّنْۢ بَعْدِهِمْ ۚ

زمونږ پلار نیکه زمونږ نه وړاندے او مونږ خو ځغوی اولاد وو د دوی نه وروستو -

اَفَتُهْلِكُنَا بِمَا فَعَلَ الْمُبْطِلُوْنَ ﴿۱۷۳﴾ وَ كَذٰلِكَ

نو آیا ته هلاکوئے مونږ په هغه کار چه کړے دے ګمراهانو - او دا رنګې

نُفَصِّلُ الْاٰیٰتِ وَ لَعَلَّهُمْ یَرْجِعُوْنَ ﴿۱۷۴﴾

مونږ واضح بیانوؤ ایاتونه د دے دپاره چه دوی واپس شی -

# لنډ تفسیر

او (دوی ته د هغه وخت واقعه ذکر کړه) کله چې ستا رب (په عالم ارواح کښې د آدم علیه السلام د شا نه خو د دهٔ اولاد دلته او) د آدم د اولاد د شا نه د دوی اولاد لره راووېستل او (دوی لره موږ هغه ورکړه) د دوی نه موږ د دوی متعلق اقرار واغستو چه آیا زهٔ ستا سو رب نه یم ټولو په دغه خدائے ورکړی عقل سره د معاملے حقیقت او پېژندو) جواب ورکړو چه ولے نه یې رواقعي ته زموږ رب یې، الله تعالیٰ هلته چه څو مره ملائک او مخلوقات حاضر وو ټولو لره ګواهان کړل ټولو طرف ته یې او فرمائیل) موږ ټول (د دے واقعے) ګواهان جوړیږو (او دا اقرار او شهادت ټول)

د دے د پاره اوشو چه تاسو خلق (یعنې کوم چه په پاتے کولو د توحید او اختیارولو د شرک سزا بیا موږي) د قیامت په ورځ دا سے اُونه وایئ چه موږ خو د دے (توحید) نه محض ناخبره وو یا دا سے او وایئ چه (اصل) شرک خو زموږ مشرانو کړے وهٔ او موږ خو د دوی نه پس د دوی په نسل کښې راغلو (او عادت دا دے چه نسل په عقید او خیالاتو کښې د خپل اصل تابع وی په دے وجه موږ بے خطا یُو پس زموږ په کار یا نړ موږ لره سزا نهٔ شی را کید ے که دوی نولا زمیګی چه د دغو مشرانو په خطا به موږ اُونیوے شو) نو پس آیا د دغه غلطے لارے (را وېستونکو) والو په کار باندِ ته موږ په هلاکت کښې اچوے (د دے اقرار او ګواهئ نه پس تاسو عذر نهٔ شئ پیش کولے، بیا د دے نه پس د دے ټولو نه وعده واغستے شوه چه دا عهد به تاسو ته د پیغمبرانو په ذریعه سره دریاد وَلے شی نو دا سے او شوه. لکه چه دلته هم په اوّل کښې د: اِذْ اَخَذَ: د ترجمے نه معلومه شوه چه تاسو ته د دے واقعے د ذکر کولو حکم اُوشو) او (په آخر کښې هم دا یادګیر نه بیا دوباره کوی چه) موږ دغه شان (هرځل) آیاتونه صاف صاف بیا نوو (چه دوی ته د دے عهد کول معلوم شی) او د دے د پاره چه (د معلومیدو نه پس د شرک وغیره نه) دوی واپس شی -

# معلومات او مسئلې

**دَ عهد دَ اَلَسْتُ تفصيل او دَ دے تحقیق**

په دے ایا تو نو کښې دَ هغه عظیم الشان عالم گیر عهد و پیمان ذکر دے، کوم چه دَ خالق او مخلوق بنده او معبود په مینځ کښې هغه وخت او شو کله چه مخلوق لا دے جهان دَ کون او فساد ته راغلی هم نه وُو- کوم ته چه عَهد دَ اَزَلْ یا عهد دَ اَلَسْتُ وائی -

الله جلّ شا نهٔ دَ ټولو عالمونو خالق دے او مالک دے زمکه آسمانونه او دَ دوی په مینځ کښې او دَ دوی نه ما سِوا چه هرڅهٔ دی دَ دهٔ مخلوق او مِلک دی نه په دهٔ باندِ دَچا قانون چلیدے شی، او نه دَ دهٔ په څهٔ کار باندِ دَچا دَ څهٔ سوال کَولو حق شته -

لیکن دهٔ محض پخپل فضل وکرم سره دَ عالَم نظام داسے جوړ کړے دے چه دَ هرشی یو ضابطه او قانون دے - دَ قانون موافق دَ چلید ونکو دَ پاره هر قسم دَ همیشه همیشه راحت، او دَ خلاف وَرزی کوُنکو دَ پاره دَ هر قسم عذاب مقرر دے -

بیا خلاف ورزی کوُونکو چه ما نولوهِ دَ سزا ورکولو دَ پاره دَ دهٔ ذاتی احاطه کوُنکے علم کافی وُه- کوم چه دَ عالم یوه ذره قدرے تر هم باهر نه ده- او دَه ته بنکاره او پټ ټول عملونه او کارونه بلکه دَ زړه و نو پټے ارادے هم بالکل بنکاره دی- په دے وجه هیڅ ضرورت نه وُه چه نګران پرِ مقرر کړی، عملنامے اوُ لیکلے شی، عملونه تول کړے شی او ګواهان پرِ او دَرَ وَلے شی -

لیکن دهٔ خالص پخپل فضل وکرم سره دا هم او غوښتل چه چا له تر هغے وَخته پورے سزا ورنه کړی ترڅو چه لیکلے شوے ثبوت او دَ نا قابلِ انکار شهادتو نو په ذریعه دَ دهٔ جُرم دَ دهٔ په وړاندِ داسے بنکاره نه کړی چه دے پخپله هم دَ خپل ځان دَ مجرم کید و اقرار او کړی او خپل ځان دَ سزا مستحق اوګنړی -

د دې د پاره ئې د هر انسان سره د ده قول عمل لیکونکي ملائکې مقرر کړې: مَا يَلْفِظُ مِن قَوْلٍ إِلَّا لَدَيْهِ رَقِيبٌ عَتِيدٌ: یعني یو کلمه د انسان د ژبې نه نه وي وتلې چه په هغې د الله تعالی د طرف نه نګرانی کونکې فرښته مقرر نه وي- او فرمائي: كُلُّ صَغِيرٍ وَكَبِيرٍ مُّسْتَطَرٌ: یعني د انسان هر وړوکي اَو لوئ کار لیکلې شوې دې-

بیا به په محشر کښې میزان د عدل اودروي د انسان نیک او بد عملونه به تللې شي که د نیکو چا بړې دروند شو نو نجات به بیا موهی او که د ګناهونو او جرمونو چا بړې دروند شو نو په عذاب کښې به ګرفتار شي-

د دې نه علاوه هر کله چه د احکم الحاکمین عام دربار په محشر کښې قائم شي، نو په هر یو عمل باندې به ګواهان هم راغستې شي- بعضې مجرمان به ګواهان دروغژن کړي نو د ده لاسونه او خپې او نور تعلقات امونه او زمکه او مکان په کوم چه ئې دغه کار رونه کړي وي ګواهي به کوي- دا تول به د الله تعالی په حکم ګویا شي صحیح صحیح واقعات به بیان کړي، تر دې پورې چه مجرمانو ته به د انکار او دروغژن کولو هیڅ موقع پاتې نه شي، دوي به اعتراف او اقرار اوکړي: فَاعْتَرَفُوا بِذَنبِهِمْ فَسُحْقًا لِّأَصْحَابِ السَّعِيرِ:

بیا مُشفق او مهربان مالک د عدل او انصاف په دې نظام تا ئمولو اکتفا نه ده کړې، او د دنیا د حکومتو نو په شان ئې یو ضابطه او قانون دوي لره صرف نه دې بلکه د قانون سره سره ئې د تربیت یو نظام هم قائم کړې دې-

لکه چه بغیر د تشبیه نه یو مُشفق پلار د خپلو کورنو معاملاتو د درستوساتلو د پاره او خپل اهل و عیال ته د تهذیب او ادب خود لو د پاره څه کورني قانون او ضابطه جوړه وي، چه کوم سړې د دې خلاف اوکړي هغه ته به سزا ملاؤ شي مګر د ده شفقت او مهربانی دومره دې ته هم تیار وي چه څه داسې انتظام اوکړي چه د هغې په سبب به دوي کښې څوک د سزا مستحق نه شي- بلکه ټول د هغې ضابطې مطابق چلیږي- د بچي د پاره که سحر اسکول ته د تلو هدایت او د دې نه په خلاف کولو باندې سزا مقرر کړې ده، نو پلار سحر د دې هم فکر کوي چه بچې د دې کار د پاره د وخت نه وړاندې تیار شي-

د رَبُّ الْعٰلَمِينَ رحمت چه پخپل مخلوق باندې د مور او پلار د رحمت او شفقت نه

ډیر زیات دے- په دے وجه ده خپل کتاب محض د قانون او تعزیراتو کتاب نه دے جوړ کړے، بلکه یوه هدایت نامه ئے جوړه کړے ده- او د هر یو قانون سره ئے داسے طریقے هم خودلی دی چه د هغو په ذریعه په قانون باندِ عمل اسانیږی -

د دے پالونکی ربوبیتی نظام په تقاضے سره ئے خپل انبیاء را و لیګل او د دوی سره ئے اسمانی هدایت نامے را و لیګلے، د فرشتو یو ډیر لوے تعداد ئے د نیکو طرف ته د هدایت کولو او مدد کولو د پاره مقرر کړے -

د دے پالونکی تربیت کوونکی ربوبیتی نظام یوه تقاضا دا هم وه- چه هر قوم او هر فرد لره د غفلت نه د بیدارولو او د خپل رب کریم یادولو د پاره مختلف قسم سامان پیدا کړی، د زمکے اسمان په ټولو مخلوقاتو او د شپے ورځے په اد لون بدلون او بخپله د انسان د خپل وجود په کائناتو کښے د خان یادولو داسے نښے ایښودی دی چه که لږ شان د هوش نه کار واغستلے شی نو هیڅ وخت په هم خپل مالک هیر نه کړے شی: وَفِي الْأَرْضِ آيَاتٌ لِّلْمُوقِنِينَ، وَفِي أَنفُسِكُمْ ۚ أَفَلَا تُبْصِرُونَ: یعنی په زمکه کښے د یقین کوونکو د پاره ډیرے نښے دی، او بخپله ستاسو په وجود کښے هم، آیا بیا هم تاسو نه وینئ -

دغه شان غافل انسان لره د بیدارولو او په نیک عمل باندِ د لګولو د پاره یو داسے نظام ربُّ الْعٰلَمِین دا هم قائم کړے دے، چه د افرادو، جماعتونو، او قومونو نه په مختلفو اوقاتو او حالاتو کښے د خپلو انبیاؤ علیهم السلام په ذریعه عهد و پیمان واغستو دوی لره د قانون د پابندئ د پاره تیار کړل-

د قرآن مجید په ډیرو ایاتو کښے د ډیرو معاهدو او میثاقونو ذکر شوے دے، کوم چه د مختلفو جماعتونو نه په مختلفو وختونو او حالاتو کښے اغستے شوی دی- د انبیاؤ علیهم السلامو نه ئے عهد واغستو چه څه دوی ته د الله تعالیٰ د طرف نه د رسالت پیغام ملاؤ شی دوی به ئے خپلو خپلو امتونو ته خامخا رسوی په دے کښے به د دوئی د چا نه څه خطره او ملامت او سپکاوی فکر نه کوی- د الله تعا دے پاک جماعت د خپلے دے معاهدے پوره حق ادا کړو، د رسالت د پیغام په رسولو کښے ئے خپل هر څه قربان کړل -

دَغه شان دَ هر رسول او نبي دَ امت نه دَ دے معاهده واغستے شوه چه دوی به دَخپلو خپلو انبياؤ تابعداري کوی، بيا په خاص خاصو اهمو معاملو کښے په خصوصيت سره دَ دی پيپوره کولو کښے دَخپلو ټولو طاقتو نو صرف کولو عهد واغستے شوکوم چه ځنو پوره کړو او ځنو نه۔

په دے معاهدو کښے يوه اهمه معاهده هغهٔ ده کومه چه دَ ټولو انبياؤ عليهم السلامو نه ز مونږ دَ نبي کريم صلے الله عليه وسلم په باره کښے اغستے شوے ده چه ټول انبياء به دَ نبي اُمّي خاتم الانبياء صلے الله عليه وسلم تابعداري کوی۔ او که چرے موقع بيا موهي نو مدد به ئے کوی چه ذکر ئے په دے ايت کښے دے:۔

وَاِذْ اَخَذَ اللّٰهُ مِيْثَاقَ النَّبِيّٖنَ لَمَآ اٰتَيْتُكُمْ مِّنْ كِتٰبٍ وَّ حِكْمَةٍ؛

دا ټولے معاهدے او ميثاقونه دَ الله تعالیٰ دَ کامل رحمت مظاهر دی۔ او مقصد دَ دے دادے چه انسان چه ډير هيرژونکے دے اکثر ترخپل فرائض هير شي، نو دوی لره ئے باربار دَ دے معاهدو په ذريعه هوښيار کړل، چه دوی دَ دے په خلاف ورزئ کولو سره په هلاکت کښے پرے نه وځی۔

**دَ بيعت اغستو حقيقت** په انبياء عليهم السلامو او دَ دوی په نائبينو عالمانو او مشائخو کښے هم کوم دَ بيعت اغستو دستور چه دے، دغه هم دَ دے اِلٰهي سُنّت تابعداري ده۔ پخپله نبي کريم صلے الله عليه وسلّم په ډيرو معاملو کښے دَ اصحابو کرامو نه بيعت اغستے دے۔ چه په دی کښے دَ بيعتِ رضوان ذکر په قرآن شريف کښے په دے الفاظو سره موجود دے،؛ لَقَدْ رَضِيَ اللّٰهُ عَنِ الْمُؤْمِنِيْنَ اِذْ يُبَايِعُوْنَكَ تَحْتَ الشَّجَرَةِ؛ يعني الله تعالیٰ راضي شو دَ هغو خلقو نه چا چه دَ يو خاصے ونے لاندِ ستا په لاس و باندِ بيعت او کړو۔

دَ هجرت نه اوّل دَ مدينے دَ انصارو بيعتِ عقبه هُم دَ دے قسم دَ معاهدو نه دے۔

دَ ډيرو صحابه کرامو نه دَ ايمان او عملِ صالح په پابندئ باندِ بيعت واغستو په صوفيائے کرامو کښے چه کوم بيعت رواج دے هغه هم په ايمان او عمل صالح

په پابندۍ او ګناهونو نه په ځان ساتلو باندې عهد دے - او د غوالهی سُنتو او انبیاؤ د سُنّتو تابعداری ده - په دے وجه په دے کښې خاص برکتونه دی - چه انسان ته بیرته د ګناهونو نه د بچ کیدو او د شرعی حکمونو په ځائے کولو همت او توفیق زیاتیګی - د بیعت تحقیقت معلومید و نه دا هم واضحه شوه - چه لکه څنګه په عامو جاهلانو کښې د بیعت رواج دے چه د یو بزرګ په لاس کښې لاس کیږدی او دغه د نجات د پاره کافی ګنړی دا سراسر جهالت دے، بیعت د یوے معاهدے نوم دے د دے فائده هله حاصلیږی کله چه دے معاهدے له عملاً پوره کړے شی ورنه د وبال خطره ده -

د سورتِ اعراف په تیرو آیاتونو کښې د هغو معاهدو ذکر وُه کوم چه د بنی اسرائیلو نه د تورات د حکمونو د پابندۍ په سلسله کښې اغستے شوے دے، او په دے ذکرشوُو آیاتونو کښې د هغے عالمګیرے معاهدے بیان دے کومه چه د آدم علیه السلام د ټول اولاد نه دے دُنیا ته د راتلو نه هم وړاندې په ازل کښې اغستے شوے وه - کومه چه په عامو ژبو کښې د عهدِ اَلَسْتُ په نوم سره مشهوره ده -

وَاِذْ اَخَذَ رَبُّكَ مِنْۢ بَنِیْٓ اٰدَمَ مِنْ ظُهُوْرِهِمْ ذُرِّیَّتَهُمْ وَاَشْهَدَهُمْ عَلٰٓی اَنْفُسِهِمْ الآیة: په دے آیاتونو کښې د اولاد د آدم د پاره لفظ د ذُرّیّت استعمال شوے دے - امام راغب اصفهانیؒ فرمائی چه دا لفظ په اصل کښې د لفظ : ذَرَءَ : نه مشتق دے چه معنیٰ ئے ده پیدا کول - په قرآن کریم کښې څو ځایه دا لفظ د دے معنیٰ د پاره استعمال شوے دے : وَلَقَدْ ذَرَاْنَا لِجَهَنَّمَ كَثِیْرًا : وغیره - په دے وجه د ذرّیّت لفظی ترجمه مخلوق شوه - په دے لفظ سره اشاره اوشوه چه دا عهد د هغو ټولو خلقو د پاره عام او شامل دے - کوم چه د آدم علیه السلام په واسطه سره په دے دُنیا کښې پیدا کولے شی -

د حدیث په روایتونو کښې د دے عهد د ازل څه زیات تفصیلات راغلی دی -

امام مالکؒ، ابوداؤد، ترمذی او امام احمدؒ په روایت د مسلم بن یسارؓ

نقل کړے دے۔ چه څوکسانو د حضرت فاروق اعظمؓ نه د دے ایت د مطلب تپوس اوکړو و نو دوئی اوفرمائیل چه د نبی کریم صلے الله علیه وسلم نه د دے ایت د مطلب تپوس شوے وو نو د هغوی نه چه ما کوم جواب اوریدلے دے هغه دا دے چه :۔

"الله تعالیٰ اول آدم علیه السلام لره پیدا کړو بیائے خپل لاس د قدرت د هغهٔ په شا راخکو دو نو د هغهٔ د شا نه چه کوم انسانان پیدا کیدونکی وو هغه ترې راؤوتل نو اوئے فرمائیل چه دوی ما د جنت د پاره پیدا کړی دی او دوی به د جنت کارکوی، بیائے دویمه پیره د هغهٔ په شا خپل د قدرت لاس راخکو دل نو څو مره بدکرداره گناه گار انسانان چه د دهٔ په نسل کښے پیدا کیدونکی وو هغه ترې راؤوتل او اوئے فرمائیل چه دوی ما لره د دوزخ د پاره پیدا کړی دی او دوی به د دوزخ ته د تلو کارونه کوی۔

په اصحابوؓ کښے یو سړی عرض اوکړو یا رسول اللهؐ هرکله چه د وړاندِ نه جنتیان او دوزخیان مقرر شوی دی نو بیا د عمل کولو مقصد څهٔ دے؟ دوئیؐ اوفرمائیل چه هرکله الله تعالیٰ چالره د جنت د پاره پیدا کړے وی نو هغهٔ به عمل هم د جنتیانو کوی تر دے چه د دهٔ به خاتمه هم په یو داسے کار باندِ اوشی چه هغه به د جنتیانو کار وی۔ او هرکله چه الله تعالیٰ چالره د دوزخ د پاره پیدا کړے وی نو دے لګیا هم د دوزخیانو په کار کښے وی تر دے چه خاتمه بهٔ ئے هم په یو داسے کار اوشی چه د دوزخیانو کار به وی"

مطلب دا دے چه هرکله انسان ته معلومه نه ده چه دے په کومه طبقه کښے داخل دے نو دهٔ لره خپل طاقت نه او اختیارات په داسے کارونو کښے خرچ کول پکار دی کوم چه د جنتیانو کار دے او هم دا اُمید ساتل پکار دی چه دے به د دوی څنی وی ۔

او د امام احمدؒ په روایت کښے دا مضمون په روایت د حضرت ابو درداءؓ نقل دے ، په دے کښے دومره نوره زیاته ده چه اول وار کوم خلق د آدم علیه السلام د شا نه را اُوتل هغه د سپین رنګ وو کوم ته چه دے جنتیان اُووے ، او د دویم وار راوتونکی د تور رنګ وو کوم ته چه ئے دوزخیان اُووے ۔

او په ترمذی کښے دا مضمون په روایت د ابوهریرهؓ نقل دے - په دے کښے دا هم دی چه دغه شان تر قیامته پورے پیدا کیدونکی د آدم اولاد کوم چه په ظهور کښے راغلل په دوی کښے د هر یو په تندی یو خاص قسم چمک وُو -

او س غور طلب دا ده چه په دے احادیثو کښے خو ذرّیت لره د آدم علیه السلام د شانه د راایستلو ذکر دے - او د قرآن کریم په الفاظو کښے د بنی آدم یعنی د اولاد د آدم د شانه راویستل ذکر دی -

تطبیق د دے دا دے چه د آدم علیه السلام د شانه هغه خلق راوویستلے شو کوم چه بلا واسطے د آدم علیه السلام نه پیدا کیدونکی وُو بیا ئے د هغه د دغے نسل د شاګانو نه نور ولره او دغه شان پکوم ترتیب چه په دے دنیا کښے د آدم اولاد پیدا کیدونکے وُو په دغه ترتیب سره ګے د دوی د شاګانو نه راوویستل -

په حدیث کښے ټولو لره د آدم علیه السلام د شانه د راویستلو مطلب هم دا دے چه د آدم علیه السلام نه د دهٔ اولاد بیا د دغے اولاد نه د دوی اولاد ترتیب وار پیدا کړے شو -

په قرآن کریم کښے د ټول اولاد د آدمؑ نه د خپل ربّ والی په اقرار اغستو کښے دے طرف ته هم اشاره موندے شی چه دغه اولاد د آدمؑ کوم چه د دغه وخت د شاګانو نه راویستلے شو - صرف ارواحان نه وُو بلکه د روح او جسم یو داسے مرکب وُه کوم چه د جسم د ډیر وبا ریکو اجزاؤ نه جوړ شوے وُه ځکه چه د ربوبیت او تربیت ضرورت زیاده تر هغه ځائے وی کوم ځائے چه جسم او روح مرکب وی او کوم لره چه د یو حال نه بل حال ته ترقی کول وی د روحونو دا شان نه دے وی خو د اوّل نه تر آخره پورے په یو حال باندِ وی - د دے نه علاوه په ذکر شوو احادیثو کښے کوم چه د دوی رنګونه سپین او تور ذکر دی یا ئے د تندی چمک ذکر دے - د دے نه هم دا معلومیګی چه صرف روحونه یے د جسمونو نه نهٔ وُو - ورنه د روح خوځهٔ رنګ نه وی - دا صفتونه د جسم سره تعلق لری -

او په دے کښے څۀ تعجب نه شي کيدے چه تر قيامته پورے پيدا کيدونکي انسانان په يو ځائے کښے څنګه ځائے شو، ځکه چه د حضرت ابو درداءؓ په ذکر شوی حديث کښے د دے وضاحت هم دے چه د غه وخت کوم اولاد چه د آدم د شانه را ويستلے شو هغوی ميږی د وړو ميږو په شان وو او په کوم کښے چه دوی دنيا ته را تلل بلکه د وړو ميږو په شکل کښے وو۔ او په دے سائنسی دور کښے خو يو عام انسان ته هم په دے کښے څه تعجب او اشکال نه شي راتلے چه د ومره غټے جوثے والا انسان د ميږی په شکل کښے څنګه ښکاره شو نن خو ټول نظامِ شمسی د ايټم په يوه ذره کښے د ځائے کولو تجربے کيدے شي، او د فلم په ذريعه د لويو نه لوئے شے د يوے نقطے په مقدار کښے خودلے شي۔ نو الله تعالیٰ ته دا څۀ مشکل ده چه د د غه عهد او ميثاق په وخت کښے ئے ټولو بنی آدمو لره د وړو وړو ميږو په شکلونو کښے وجود ورکړی وی۔

| د عهد اَلَسْتُ متعلق څو سوالونه او جوابونه |
| --- |

د دے عهدِ ازل متعلق څو څيزونه نور قابلِ غور دی، اوّل دا چه عهد او اقرار کوم ځائے او څۀ وخت واغستے شو؟ — دوئيم دا چه هرکله اقرار په داسے حال کښے واغستلے شو چه د آدم عليه السلام نه سِوا بل انسان پيدا شوے هم نه وُو، نو دوی ته دا عقل او علم څنګه حاصل شو چه دوی الله تعالیٰ او پيژنی او د دۀ د ربّ والی اقرار اوکړی، ځکه چه د ربّ والی اقرار هغه کولے شي چا چه شان د تربيّت ليدلے وی او دا ليدل په دے دُنيا کښے د پيدا کيدو نه پس کيدے شي۔

اَوّلنے سوال چه دا عهد او اقرار کوم ځائے او په څۀ وخت کښے واغستے شو؟ د دے متعلق د قرآن تفسيرکوونکی حضرت عبدالله بن عباسؓ نه په قوی سند سره چه کوم روايت امام احمدؒ، نسائیؒ او حاکم نقل کړے دے هغه دا دے چه دا عهد او اقرار هغه وخت واغستے شو کله چه آدم عليه السلام د جنّت نه زمکے ته راکوز کړے شو، او مقام د دے اقرار وادی نعمان دے کوم چه د ميدانِ عرفات په نوم سره معلوم او مشهور دے (تفسير مظهری)۔

پاتے شو دويم سوال چه دا نوے مخلوق کوم ته چه لا تر اوسه عنصری وجود هم

پوره نه وه ورکړے شوے، هغهٔ څهٔ پوهیګی چه زمونږ څوک پید اکوونکے او پروردګار شته، په داسے حالت کښے دده نه تپوس کول هم یو قسم نا قابل برداشت تکلیف دے۔ او هغهٔ به جواب څهٔ ورکولے شی؟۔ ددے جواب دادے چه خالق کائنات چا چه پخپل کامل قدرت سره ټولو انسانانو لره دیو ے ذرے په صورت کښے پید اکړل دهغهٔ دپاره دا څهٔ مشکله ده چه هغهٔ ورلوه دغه وخت شعور، فهم او عقل هم په قدر د ضرورت ورکړے وی۔ او دا حقیقت دے چه الله جل شانهٔ په دے مختص شان وجود کښے دانسان ټول قوتونه جمع کړی وُو۔ چه په دی کښے د ټولو نه لوئے قوت دعقل او شعور دے۔

دانسان پخپل وجود کښے دالله جل شانهٔ دلوئیی او قدرت هغهٔ بے شماره نښے دی یکومو چه لږ شان غور کوونکے دالله تعالیٰ د پیژندنه ونه غافل نهٔ شی پاتے کیدے، د قرآن کریم ارشاد دے: وَ فِي الْاَرْضِ اٰيٰتٌ لِّلْمُوْقِنِيْنَ، وَ فِيْٓ اَنْفُسِكُمْ اَفَلَا تُبْصِرُوْنَ: یعنی په زمکه کښے دالله تعالیٰ نښے دی د پوهیدُونکو دپاره، او پخپله ستاسو په بدن کښے هم آیا بیا هم تاسو نه ګورئ۔

دلته یو دریم سوال دا هم پیدا کیدے شی، چه دا ازلی عهد و پیمان که هرڅو مره یقینی او صحیح ولے نه وی مګر کم نه کم دا خو ټولو ته معلومه ده چه دے دُنیا ته د راتلو نه پس دا عهد هیچا ته هم یاد نه دے۔ نو بیا دعهد فائده څهٔ شوه؟

ددے جواب دادے چه اول خو په دے نوع د بنی آدم کښے ډیر داسے افراد هم شته کومو چه دا اقرار کړے دے چه مونږ ته دغه عهد په پوره شان سره یاد دے۔ حضرت ذوالنون مصریؒ فرمائی چه دا عهد او میثاق ماته داسے یاد دے لکه چه کویا دا وخت ئے زهٔ اورم۔ او بعضو خو تردے پورے وئیلی دی چه ماته دا هم یاد دی چه څهٔ وخت دا اقرار اغستے شو نو ما خوا و شا ته کوم کوم خلق موجود وُو۔ البته دا ښکاره خبره ده چه داسے افراد د شاذ ونادرو په درجه کښے دی۔ په دے وجه د عامو خلقو د پوهیدو خبره دا ده چه ډیر کارونه داسے وی چه خاص اثر لری خواه هغه کار چاته یاد وی او که نه۔ بلکه خبر ئے ورته هم نه وی مګر هغه خپل اثر کوی،

دا عهد او اقرار هم داسې دے چه په اصل کښې دے اقرار د هر انسان په زړهٔ کښې د حق د معرفت تخم کرلے دے، کوم چه پکښې پرورش مومي خواه دے ترې خبر وي او که نهٔ - او د اد دے تخم کلونه او میوه ده چه د هر انسان په فطرت کښې د الله تعالیٰ محبت او عظمت موندے شي، خواه که د دے ظهور د بُت پرستئ او مخلوق پرستئ په غلطه پیرایه کښې وي - هغه څو بد نصیبه خلق د کومو فطرت چه مسخ شي د دوي د عقل ذائقه خرابه شي او خوږ تریخ نه پیژنی د دوي نه علاوه د دُنیا په اربونو انسانانو د الله تعالیٰ د خیال او عظمت نه خالی نه دي، بیا خواه په مادي خواهشاتو کښې اخته شي یا په یو ه ګمراه سوسائټئ کښې پریوځي او هیر ئې کړي -

د نبی کریم صلے الله علیه وسلم ارشاد دے: كُلُّ مَوْلُوْدٍ يُوْلَدُ عَلَى الْفِطْرَةِ: او په بعضو روایتونو کښې دي: عَلٰى هٰذِهِ الْمِلَّةِ: (بخاري او مسلم) یعني هر یو پیدا کیدونکے په دین فطرت یعنی اسلام باندې پیدا کیږي بیا د دهٔ مور او پلار دهٔ لره په نورو خیالاتو کښې اخته کوي -

او د صحیح مسلم په یو حدیث کښې دي چه نبی کریم صلے الله علیه وسلم فرمائیلي دي چه الله تعالیٰ فرمائي چه ما خپلو بندګانو لره حنیف یعنی د یو خدائے منونکی پیدا کړي دي - بیا شیطانان په دوي پسې شو او دوي لره ئې د صحیح لارے نه لرے بوتلل -

دغه شان خاص اثر لرونکي چې یو عملونه او خبرے دي چه په دے دُنیا کښې هم د انبیاؤ علیهم السلامو په تعلیم سره جاري دي چه د هغوا اثر دا دے چه که څوک په دے باندې پوهیږي او که نهٔ، او یاد دوي ئې او که نهٔ، خو هغوي په هر حال خپل کار کوي او خپل اثر ښکاره کوي -

مثلاً د یو بچي پیدا کیدو په وخت کښې د دهٔ په ښي غوږ کښې آذان او په کینړ غوږ کښې اقامت او تکبیر کول کوم سنت چه هر مسلمان پیژنی او الحمد لله چه په ټول عالم اسلام کښې جاري دي - اګرچه بچے نه د کلمو په معنا پوهیږي، او نه د لوئیدو نه پس د دهٔ یا دوي چه ما په غوږو نو کښې څهٔ الفاظ وئیلي شوي وو - د دے حکمت خو دا دے چه د دے په

ذریعه دغې ازلي اقرار ته توجه رسوي دغوکو نو په لاره بانیږ په زړه
کښې د ایمان تخم کرلې شي - او د دې دا اثر لیدلې شي چه د لوئید ونه پس اګرچه
دې د اسلام او اسلامیاتو نه هر څومره لرې وي مګر خپل ځان ته مسلمان وائي
او د مسلمانانو د فهرست نه وتل انتهائي بد ګنړي - دغه شان کوم خلق چه د
قرآن په ژبه بانیږ نه پوهیږي دوی ته هم د قرآن د تلاوت حکم شاید په دې
حکمت بانیږ مبني دې چه د دې نه هم کم نه کم دا پټه فائده ضرور رسي چه د
انسان په زړه کښې د ایمان نور تازه کیږي -

په دې وجه د آیت په آخر کښې ارشاد فرمائي: اَنْ تَقُوْلُوْا يَوْمَ الْقِيٰمَةِ اِنَّا كُنَّا
عَنْ هٰذَا غٰفِلِيْنَ : یعني دا اقرار مونږ ځکه اغستې دې چه تاسو د قیامت په ورځ
داسې او نه وایئ چه مونږ خو د دې نه ناخبره وُو، اشاره د دې خبرې طرف
ته ده چه د دې ازلي سوال جواب نه ستاسو په زړونو کښې د ایمان بنیاد
داسې قائم شي چه که لږ شان د غور او فکر نه کار واخلئ نو د الله جلّ شانه
د رب والي د اقرار نه بغیر بل څه چاره پاتې نه شي -

د دې نه پس په دویم آیت کښې ارشاد فرمائي: اَوْ تَقُوْلُوْٓا اِنَّمَآ اَشْرَكَ
اٰبَآؤُنَا مِنْ قَبْلُ وَكُنَّا ذُرِّيَّةً مِّنْۢ بَعْدِهِمْ اَفَتُهْلِكُنَا بِمَا فَعَلَ الْمُبْطِلُوْنَ : یعني دا
اقرار مونږ په دې وجه هم اغستې دې چه چرته تاسو د قیامت په ورځ
دا عذر او نه کړئ چه شرک او بت پرستي خو په اصل کښې زمونږ مشرانو اختیار
کړې وه او مونږ خو د دوی نه پس د دوی اولاد وُو، کره کوټه او صحیح
غلط راته نه وُه معلوم په دې وجه مشرانو چه څه کول مونږ هم هغه اختیار
کړل نو د مشرانو د جرم سزا مونږ له ولې راکولې شي - الله تعالیٰ اوخودله
چه د نورو د کار سزا تاسو ته نه ده درکړې شوې بلکه پخپله ستاسو د
غفلت سزا ده - ځکه چه د دې ازلي اقرار په انسان کښې د یو داسې عقل او بصیرت
تخم ورزولې وُه چه که د لږ غور او فکر نه دې کار اغستې وې نو دومره خبره
به دې معلومه کړې وه - هیڅ مشکله نه وَه چه دا د کټې بُت کوم لره چه پخپلو
لاسو تراشلې دې، یا اُور، او اوبه او وُنه یا څه انسان په دې کښې هیڅ شے هم
داسې نه دې چه دَ لره څوک انسان خپل پیدا کونکې او پروردګار یا حاجت روا

مشکل کشا او ګنړی -

په دریم ایت کښې دَ دے مضمون بیان داسے راغلے دے: وَكَذٰلِكَ نُفَصِّلُ الْاٰيٰتِ وَلَعَلَّهُمْ يَرْجِعُوْنَ: یعنی مونږ دغه شان خپلو نښنولره ښکاره ښکاره بیا نو، و چه خلق دَ غفلت اونا پوهئ نه رااوګرځی - مراد دا دے چه که ګڼ هم دَ الله په ایا تو نو کښې غوراوکړی نو دَ دے عهد ومیثاق طرف ته به رااوګرځی کوم چه په ازل کښې شوے وُه - یعنی دَ الله تعالیٰ دَ ربوالی اقرار به اوکړی - او دَ دے په نتیجه کښې به دَ هغهٔ عبادت لره لازم اوګنړی - او فرمانبرداری به اختیار کړی -

وَاتْلُ عَلَيْهِمْ نَبَاَ الَّذِيْٓ اٰتَيْنٰهُ اٰيٰتِنَا فَانْسَلَخَ

او واوروه دوی ته حال دَ هغے سړی چا لره چه ورکړی وُو مونږ خپل ایاتونه بیا هغه پاتے

مِنْهَا فَاَتْبَعَهُ الشَّيْطٰنُ فَكَانَ مِنَ الْغٰوِيْنَ ﴿۱۷۵﴾

کړل هغو لره بیا وروسته شو پسے شیطان نو شو دے دَ ګمراهانو نه -

وَلَوْ شِئْنَا لَرَفَعْنٰهُ بِهَا وَلٰكِنَّهٗٓ اَخْلَدَ اِلَى

او که مونږ غوښتلے نو پورته کړے به وُه پړ مونږ دَ دهٔ مرتبه لیکن دے او غورزیدو

الْاَرْضِ وَاتَّبَعَ هَوٰىهُ ج فَمَثَلُهٗ كَمَثَلِ الْكَلْبِ ج

زمکے ته او ورپسے شو دَ خپلو خواهشونو - نو دَ دهٔ حال داسے دے لکه سپے

اِنْ تَحْمِلْ عَلَيْهِ يَلْهَثْ اَوْ تَتْرُكْهُ يَلْهَثْ ط

په دهٔ که بوج اچوے نو هم ژبه کیږی او که پریدے ئے نو هم ژبه کیږی -

ذٰلِكَ مَثَلُ الْقَوْمِ الَّذِيْنَ كَذَّبُوْا بِاٰيٰتِنَا ج

دا مثال دے دَ هغه قوم چا چه دروغژن کړهٔ زمونږ ایاتو نه -

فَاقْصُصِ الْقَصَصَ لَعَلَّهُمْ يَتَفَكَّرُونَ ﴿١٧٦﴾

پس بیان کړه دا حال د دے د پاره چه دوی فکر او کړی۔

سَاءَ مَثَلًا الْقَوْمُ الَّذِينَ كَذَّبُوا بِآيَاتِنَا وَ

بد مثال دے د هغو خلقو چه دروغژن ئے کړل زمونږ آیاتونه او

أَنْفُسَهُمْ كَانُوا يَظْلِمُونَ ﴿١٧٧﴾

دوی خپل نقصان کولو۔

# لنډ تفسیر

او دے خلقو ته (د عبرت د پاره) د هغهٔ سړی حال واوروه چه دهٔ له مونږ خپل آیاتونه ورکړل (یعنی علم د احکامو مو ورکړو) بیا هغهٔ د دے (آیتونو) نه بالکل اُووتلو بیا شیطان په هغهٔ پسے اولګیدو پس هغهٔ په ګمراهو خلقو کښے داخل شو، او که مونږ غوښتلے نو دهٔ له به مونږ د دے آیاتونو (په مقتضا د عمل کولو) په برکت مرتبه اوچته کړے وه (یعنی که دهٔ په دغو آیاتونو عمل کولے چه د دے سره قضا و قدر تړلے شوے معلوم کاردے نو د دهٔ د قبولیت مرتبه به زیاته شوے وه) لیکن دے دُنیا طرف ته مائل شو او (د دے میلان په سبب) د خپل نفسانی خواهش پیروی ئے شروع کړه (او په آیاتونو او حکمونو ئے عمل پاتے کړو) پس (د آیاتونو په پاتے کولو چه کومه پریشانی او همیشه ذلت د دهٔ نصیب شو په دے اعتبار سره) د دهٔ حالت د سپی پشان شو چه که ته په دهٔ حمله کوے (او وئے اُوباسے) نو هم هو کیږی یا که دهٔ له (د دهٔ په حالت) پاتے کوے نو هم هو کیږی (په هیڅ حالت کښے هم دهٔ ته راحت نیشته، دغه شان دغه سړے په ذلت کښے خو د سپی پشان شو او په پریشانئ کښے د سپی په دے صفت کښے شریک شو، پس څه رنګ چه د دے سړی حالت شو) دا حالت (په عام طور) د هغے خلقو دے کوم چه زمونږ

ایاتونو لره (چه په توحید او رسالت دلالت کوی) دروغژن کړل (چه د حق واضح کېدو نه پس محض د خواهشاتو په سبب حق پاتې کوی) پس ته دے حال لره بیان کړه شاید دغه خلق (دا واؤری) څهٔ سوچ او کړی (په حقیقت کښې) د هغو خلقو حالت هم ناکاره دے کوم چه زمونږ ایاتونه (چه په توحید او رسالت دلالت کوی) دروغژن کوی او (په دے دروغژن کولو سره) دوی خپل نقصان کوی۔

# معلومات او مسئلے

په دے ذکر شوؤ ایاتونو کښې د بنی اسرائیلو یوه عبرتناکه قصه ذکر ده۔ چه په دے کښې د بنی اسرائیلو د یو لوئے عالِم او مشهور پیشوا د علم او معرفت په اعلیٰ معیار کېدو نه پس ناڅاپه ګمراه او مردود کېدو واقعه د اسبابو سره بیان شوے ده، په دے کښې ډیر عِبرتونه دی۔

او مناسبت د دے واقعے د تیرو ایاتونو سره دا دے چه په هغو کښې د عهد او میثاق ذکر وهٔ کوم چه په ازل کښې الله تعالیٰ د ټولو بنی آدمو نه او بیا په خاصو خاصو حالاتو کښې د خاصو خاصو قومونو یهودو او نصاراؤ وغیره نه اَخِستے شوی وُو۔ او په ذکر شوؤ ایاتونو کښې د دے هم ذکر راغلے وهٔ چه په عهد کونکو کښې ډیر خلق په دے عهد قائم پاتې نه شو، لکه یهود وو چه د حضرت خاتم الانبیاء صلے الله علیه وسلّم دے دُنیا ته د تشریف راوړو نه وړاندې د دوئ د راتلو انتظار کولو، او د دوئ صفتونه به ئے خلقو ته بیانول او تصدیق به ئے ورلره کولو مګر کله چه نبی کریم صلے الله علیه وسلم مبعوث شو نو د دُنیا د ذلیلو غرضونو په خاطر په دوئ د ایمان راوړو او تابعدارئ کولو نه واپس شو۔

**د بنی اسرائیلو د یو عالم او پیشوا د ګمراهۍ عبرتناکه واقعه**

په دے ایاتونو کښې نبی کریم صلے الله علیه وسلم ته حکم کیږی، چه ته خپل قوم ته دا واقعه واوروه په کومه کښې چه د بنی اسرائیلو د یو لوئے عالم او مشهور پیشوا دا سے حال چه د عروج نه پس زوال او د هدایت نه پس د ګمراهۍ ذکر دے۔ چه د لوئے علم او پوره معرفت حاصلیدو باوجود کله چه نفسانی غرضونو نه

په دۀ غالب شو نو دغه ټول علم او معرفت او مقبولیت ئې ختم شو او ذلیل او خوار شو۔

په قرآن کریم کښې د دے سړی نوم او تشخص ذکر نه دے، د تفسیر د اماما نو اصحابؓ او تابعینو نه په دے باره کښې مختلف روایتو نه ذکر دی، چه په دی کښې زیات مشهور او د جمهورو په نزد د اعتماد قابل روایت هغه دے کوم چه حضرت ابن مردویهؒ د حضرت عبد الله بن عباسؓ نه نقل کړے دے، چه د دے سړی نوم بلعم بن باعوراء دے، دے د شام د ملک بیت المقدس ته نزدے د کنعان او سیدونکے وُه، او په یو روایت کښې دی چه د بنی اسرائیلو نه وُه۔ د الله تعالیٰ د بعض کتابونو علم دۀ ته حاصل وُه۔ په قرآن کریم کښې چه کوم د دۀ په صفت کښې: اَلَّذِیۡۤ اٰتَیۡنٰهُ اٰیٰتِنَا: فرمائیلی دی د دے نه دے علم طرف ته اشاره ده۔

کله چه د فرعون د غرقیدو او مصر فتح کیدو نه پس حضرت موسیٰ علیه السلام او بنی اسرائیلو ته د جبارینو سره د جهاد کولو حکم ملاؤ شو او جبارینو اولیدل چه موسیٰ علیه السلام د ټولو بنی اسرائیلو د لښکر سره راورسید و، او د دوی د مقابل فرعون او د دۀ د قوم غرق کیدل دوی ته د وړاندې نه معلوم شوی وُو۔ نو د دوی سره فکر شو او جمع شو بلعم بن باعوراء له راغلل او او وئے وئیل چه موسیٰ علیه السلام سخت سړے دے او د دۀ سره ډیر لښکر دے او هغۀ د دے د پاره راغلے دے چه مونږ زمونږ د ملک نه اوباسی، ته الله تعالیٰ ته دا سے سوال اوکړه چه دے زمونږ د مقابلے نه واپس کړی۔ وجه دا وه چه بلعم بن باعوراء ته اسم اعظم معلوم وُه د دۀ چه به د دے په ذریعه کومه دُعا کوله هغه به قبلیده۔

بلعم او وے چه افسوس دے تاسو دا څه خبره کوئے هغۀ د الله نبی دے د هغۀ سره د الله تعالیٰ فرښتے دی زۀ د هغۀ خلاف بنسیره څنګه کولے شم حال دا دے چه د هغۀ د الله تعالیٰ سره چه کوم مقام دے هغۀ هم زۀ پیژنم که زۀ دا سے دُعا اوکړم نو زما دین دُنیا به دواړه تباه شی۔

دے خلقو ډیر منّت زاری اوکړو، نو بلعم اووے چه ښهٔ ده زهٔ به د خپل ربّ نه په دے معامله کښے معلومه کړم چه د داسے دُعا کولو اجازت شته او کهٔ نه - دهٔ د خپل معمول مطابق د معلومولو د پاره استخاره یا څهٔ عمل اوکړو په خواب کښے دهٔ ته اوخودے شو چه هرګز داسے اُونهٔ کړے - دهٔ قوم ته اُووئیل چه زهٔ د ښیرو کولو نه منع شوم - دغه وخت د جبّارینو قوم بلعم ته څهٔ لویه ډالۍ وړاندِ کړه چه په حقیقت کښے رشوت وه دهٔ ډالۍ قبوله کړه - نو بیا د قوم خلق په دهٔ پسے شو چه تهٔ خامخا دا کار اوکړه او بے حده زاری او منّتونه ئے اوکړو - او په یو روایت کښے دی - چه دهٔ له ښځے مشوره ورکړه چه دا رشوت قبول کړه او د دوی دا کار اوکړه - دغه وخت د ښځے رضا کولو او د مال محبّت دے ړوند کړے وه دهٔ د حضرت موسیٰ علیه السلام او د بنی اسرائیلو خلاف ښیرے شروع کړے -

دغه وخت د الله تعالیٰ د قدرت عجیبه کرِشمه دا ښکاره شوه چه دهٔ به کومے ښیرے د موسیٰ علیه السلام او د دهٔ د قوم د پاره کولے د دهٔ د ژبے نه به هغه الفاظ د ښیرو په ځیله د خپل قوم جبّارینو د پاره وتل هغوی چغے کړے چه تهٔ خو مونږ ته ښیرے کوے - بلعم جواب ورکړو چه دا ځما د اختیار نه بهر خبره ده ځما ژبه د دے نه په خلاف کولو قادره نه ده -

نتیجه دا شوه چه د دهٔ په قوم باندِ هم تباهی نازله شوه - او بلعم ته دا سزا ملاؤ شوه چه ژبه ئے راووتله په سینه زوړنده شوه - نو اوس دهٔ خپل قوم ته اُووے چه ځما خو دُنیا او آخرت تباه شو اوس ځما دُعا نه چلیږی - لیکن زهٔ تاسو ته یو تدبیر ښایم د کوم په ذریعه چه تاسو د موسیٰ علیه السلام په قوم باندِ غالب راتلے شئ -

هغه دا دهٔ چه تاسو خپلے ښائسته جینکۍ سنبال کړئ د بنی اسرائیلو لښکر ته ئے اولیږئ او دوی ته دا تاکید اوکړئ چه د بنی اسرائیلو خلق د دوی سره څهٔ کوی نو دوی د نه منع کوی بلکه کوی د - دا خلق مسافران دی او ډیره موده شوے ده چه د خپلو کورونو نه راوتلی دی - په دے

تدبیر سره ممکنه ده چه دغه خلق په حرام کارئ کښې اخته شي، او د الله تعالیٰ په نزد حرام کاري ډیر مبغوض شے دے، په کوم قوم کښې چه دا کار اوشي، په هغوی خامخا قهر او عذاب نازلیږي۔ دوی فتح مند کیدے نه شي۔

د بلعم په دے شیطاني چال دوی پوهه شو۔ په دے ئے عمل اوکړو۔ د بني اسرائیلو یو لوئے سړے په دے چال کښې ګیر شو، حضرت موسیٰ علیه السلام دهٔ لره منع کړو مګر دے منع نه شو او په دے شیطاني چال کښې اخته شو۔

د دے نتیجه دا شوه چه په بني اسرائیلو کښې سخت قسم طاعون خور شو چه په هغې باندې په یو ورځ کښې اویا زره اسرائیلي مړهٔ شو۔ تر دے چه کوم سړي دا کار کړے وهٔ دغه جوړے لره بني اسرائیلو قتل کړه او برسرِ عام ئے زوړند کړل چه ټول خلق ترې عبرت واخلي او توبه اوباسي۔ نو دغه وخت دا طاعون رفع شو۔

د قرآن کریم په ذکر شوا ایاتونو کښې د دے متعلق فرمائي: فَانْسَلَخَ مِنْهَا: یعني مونږ خپل ایاتونه او د دے علم او معرفت دے سړي له ورکړي وو لیکن دے د دے نه اووتلو۔ د انسلاخ لفظ په اصل کښې د څناور د څرمنې نه او د مار د خپل پټ نه وتلو ته وائي۔ دلته ئے د ایاتونو علم لره د جامے یا څرمنے سره تشبیه ورکړه دا ئے او خودله چه دا سړے د علم او معرفت نه بالکل جُدا شو، فَاَتْبَعَهُ الشَّیْطٰنُ: چه شیطان په دهٔ پسے شو۔ مطلب دا دے چه ترڅو پورے د ایاتونو علم او د الله تعالیٰ ذکر د دهٔ سره وو د شیطان قابو په دهٔ نه چلیدو، خو کله چه ترې دغه لاړل نو شیطان په دهٔ قابو بیاموندو۔ فَكَانَ مِنَ الْغٰوِيْنَ: یعني بیا دے د ګمراهانو نه شو۔ مطلب دا دے چه د شیطان په قابو کښې د راتلو نتیجه دا شوه چه دے په ګمراهانو کښې شامل شو۔

په دویم ایت کښې ارشاد فرمائي: وَلَوْ شِئْنَا لَرَفَعْنٰهُ بِهَا وَ لٰكِنَّهٗۤ اَخْلَدَ اِلَى الْاَرْضِ وَ اتَّبَعَ هَوٰىهُ: یعني که مونږ غوښتلے نو د دے ایاتونو په ذریعه به مونږ د دهٔ مرتبه اوچته کړے وه، لیکن هغه د دُنیا طرف ته مائل شو،

او په نفسانی خواهشاتو پسې شو- لفظ د: اَخْلَدَ: د اِخْلَادْ نه مشتق دے
چه معنیٰ ئې ده د یو شی طرفته میلان - یا یو ځائې لره لازم نیول- او د: اَرْض:
اصل معنیٰ زمکه ده، د دُنیا ټول هغه څیزونه چه دی هغه پخپله یا زمکه دی
یا د زمکے سره متعلق کور، جائیداد، زمکے، باغونه وغیره دی- یا د زمکے نه
پیدا کیدُونکی په کرونو څیزونه دی کوم چه د انسان د ژوند او عیش پر
دارمدار دے - په دے وجه لفظ د: اَرْض: ئې او وے پوره دنیائے تر
مراد کړے ده- په دے آیت کښے دے طرف ته اشاره او شوه چه د الله تعالیٰ
آیاتونه او د دے علم په اصل کښے د سربلندئ او ترقئ سبب دے- لیکن کوم
سړے چه د دے آیاتونو احترام او نه کړی او د دُنیا ذلیل خواهشونه د
الله تعالیٰ په آیاتونو مقدم او گڼړی د هغهٔ د پاره دا علم یو وبال جوړیگی-
د دے وبال ذکر په آیت کښے داسے شوے دے: فَمَثَلُهٗ كَمَثَلِ الْكَلْبِ
اِنْ تَحْمِلْ عَلَيْهِ يَلْهَثْ اَوْ تَتْرُكْهُ يَلْهَثْ: د لفظ د: لَهَثَ: اصل معنیٰ دا ده
چه ژبه را او باسی او په سختئ سره ساه اَخلی-
هر یو ژوندے سړے پخپل ژوند کښے دِیته محتاج دے چه د دننه گرمه او
زهرناکه هوا باهر را اُوباسی او د باهر نه تازه هوا د حلق او پوزے په
لاره باندِ دننه بوزی- په دے د ځاندار د ژوند مدار دے، او الله تعالیٰ
د هر ځاندار د پاره دا اَهَم کار داسے آسان کړے دے چه بے ارادے او بے
محنته د ده د دننه هَوَا باهر او د باهر هَوَا دننه د پوزے په سُورو یعنی په
سپیگمو دننه باهر کیږی- په دے کښے نه ده ته د څهٔ زور لگولو حاجت وی
او نه د څهٔ اختیاری عمل ضرورت وی- په قدرتی او فطری طور باندِ دا کار
مسلسل خود به خود کیږی-
په ځاندارو کښے صرف سپے داسے ځانور دے چه د خپل ساه په ننه او
باهر کولو کښے ورته د ژبے راویستلو زور لگولو او محنت کولو ضرورت وی
او د نورو ځانورانو دا حال صرف په هغه وخت وی کله چه په دوی څه حمله وشی
یا ستړی شی یا څه اتفاقی محنت په دوی پریوځی-
قرآن کریم د دے سړی مثال د سپی سره ورکړو وجه دا ده چه د خدائے

دَ حکم په خلاف ورزئی دهٔ ته داسزا ملاؤ شوې وه، چه ژبه ئې دَ خولې نه، امرتلې په سینه ذوړنده شوې وه او دے به په ځنه دَ سپی پشان څوکیده، خواه که څوک په دهٔ حمله کوی او که نهٔ کوی خو دے برابر څوکیدی۔

دَدے نه پس فرمائی: ذٰلِكَ مَثَلُ الْقَوْمِ الَّذِيْنَ كَذَّبُوْا بِاٰيٰتِنَا: یعنی دا مثال دے دَ هغو خلقو کوم چه زمونږ ایاتونه دروغژن کړل، حضرت ابن عباس رضی فرمائی چه مراد دَ دینه مکے والا دی چه داخواهشونه ئې همیشه کول چه دوی ته څوک لارخودونکے او هدایت کوونکے راشی کوم چه دوی لره دَ الله تعالیٰ اطاعت طرف ته رابلی او دَ اطاعت صحیح طریقے ورته اوښائی بیا چه کله لارخودونکے راغے او دَ داسے بنکاره نښنو سره راغے چه په رشتیا والی او حقوالی کښے ئے یوه ذره قدر هم دَ شك شبهے ځائے نه وهٔ نو دوی په دروغژن کولو او دَ الله تعالیٰ دَ ایاتونو نه په مخ اړولو شروع شو۔

او بعضے تفسیر لیکونکی حضرات فرمائی چه دَ دے نه مراد بنی اسرائیل دی کوم چه دَ نبی صلے الله علیه وسلم دَ بعثت نه وړاندِ دَ دوی علماء او اوخصوصیتونه برځے په تورات کښے لوستل او خلقو ته بهٔ ئې خودل او دَ دوی دَ تشریف راوړو انتظار ئې کولو۔ مګر کله چه دوی تشریف راوړو نو دَ ټولو نه زیات مخالفت او دشمنی ئې دَ غو خلقو اوکړه او دَ تورات دَ حکمونو نه داسے صاف اووتل لکه بلعم بن باعوراء چه وتلے وهٔ۔

دَ ایت په اخر کښے فرمائی: فَاقْصُصِ الْقَصَصَ لَعَلَّهُمْ يَتَفَكَّرُوْنَ: یعنی تهٔ دَ هغه سړی قصه دے خلقو ته واوروه شائد چه دوی څهٔ سوچ اوکړی او دَ دے واقعے نه عبرت واخلی۔

په دریم ایت کښے فرمائی چه دَ الله تعالیٰ ایاتونو لره دَ دروغژن کوونکو ناکاره حال دے او دا خلق پخپلو ځانونو باندِ ظلم کوی او کَ بل چا هیڅ نه شی ورانولے۔

په ذکر شوو ایاتونو کښے او په دے کښے په بیان شوے واقعه کښے دَ فکر دَ خاوندانو دَ پاره ډیرے فائدے او عبرتونه او نصیحتونه دی۔

اوّل دا چه چا سړی لره پخپل علم او فضل او پرهیزګاری او عبادت

بانډ ناز نه دی کول پکار، په حالاتو بد لیدو او ورانیدو کښې څۀ وخت نه ګنګی لکه د بلعم بن باعوراء حشر چه شو، د طاعت او عبادت سره په دے باندِ د الله تعالیٰ شکر پکار دے او د استقامت دُعا کول او په الله تعالیٰ توکّل کول پکار دی -

دویم دا چه د داسے موقعو او مقدمو نه هم سړی لره ځان ساتل پکار دی کوم ځائے چه د ه ته د څپل دین د خرابئ ویره وی خاص کر د مال او اهل و عیال محبّت لره د دے په بد انجام کښې همیشه د نظر لاندِ ساتل پکار دی -

دریم دا چه د فسادیانو او ګمراهانو خلقو سره تعلق او د دوی چالئ یا دعوت وغیره قبلولو نه هم ځان ساتل پکار دی بلعم په دے بلاء کښې د دوی د چالئ د قبلولو په سبب اخته شو -

څلورم دا چه بے حیائی او حرام کاری د پوره قوم د پاره د تباهئ او بربادئ سامان وی، کوم قوم چه ځانونو لره د بلاګانو او افتونو نه محفوظ ساتل غواړی په دوی لازم دی چه خپل قوم لره د بے حیائی د کارونو نه په پوره اهتمام سره منع کړی - ورنه د خدائے تعالیٰ عذاب لره دعوت ورکول دی -

پنځم دا چه د الله تعالیٰ د آیاتونو خلاف ورزی پخپله یو عذاب دے او د دے په وجه سره شیطان په ده غالب راشی په زرګونو خرابو کښې ئے اخته کوی - په دے وجه کوم سړی لره چه الله تعالیٰ علمِ دین ورکړے وی هغهٔ لره پکار دی چه قدر دئے او کړی - او د عمل د اصلاح د فکر نه هیڅ وخت فارغ نه وی -

---

مَنْ يَّهْدِ اللّٰهُ فَهُوَ الْمُهْتَدِىْۚ وَمَنْ يُّضْلِلْ

چا لره چه الله په لارے کړی هغه لاره موندی - او چا لره چه هغه ګمراه کړی

فَاُولٰٓئِكَ هُمُ الْخٰسِرُوْنَ ﴿۱۷۸﴾ وَلَقَدْ ذَرَاْنَا

پس هغهٔ دی په تاوان کښې - او موږ پیدا کړی دی

لِجَهَنَّمَ كَثِيرًا مِّنَ الْجِنِّ وَالْإِنسِ ۖ لَهُمْ قُلُوبٌ

د دوزخ د پاره ډېر پېريان او بني آدم - د دوی زړونه دی

لَّا يَفْقَهُونَ بِهَا وَلَهُمْ أَعْيُنٌ لَّا يُبْصِرُونَ

چه پوهه پکښې نيشته - او د دوی سترګې دی چه ليدل پکښې

بِهَا وَلَهُمْ آذَانٌ لَّا يَسْمَعُونَ بِهَا ۚ أُولَٰئِكَ

نيشته او د دوی غوږونه دی چه آورى پرې نه - دغه داسې دی

كَالْأَنْعَامِ بَلْ هُمْ أَضَلُّ ۚ أُولَٰئِكَ هُمُ الْغَافِلُونَ ﴿١٧٩﴾

لکه څاروی بلکه د دوی نه هم زيات بې لارې دی - دغه دی غافلان -

# لنډ تفسير

چا ته چه الله تعالى هدايت کوی پس هدايت موندونکی هغه وی او چا لره چه ګمراه کړی پس داسې خلق (هميشه) په تاوان کښې پرېوځي (ربيا د دوی نه د هدايت اُميد کول او په هدايت نه موندو سره ئې غمژن کيدل بيکاره دی) او (کله چه دغه خلق د خپلو موندلو قوتونو نه کار نه اخلی نو هدايت به د کومه بيا مومی، پس د دوی په نصيب کښې خو دوزخ دے او دے، چنانچه) موږ داسې ډېر پېريان او بنی آدمان دوزخ (کښې د اوسيدو) د پاره پيدا کړی دی د کومو چه (په نوم سره خو) زړونه (دی مګر) داسې دی په کومو سره چه (رښتيا خبرې لره) نه پوهيږی (چونکه اراده ئې هم نه کوی) او د کومو چه (په نوم سره خو) سترګې (دی مګر) داسې دی په کومو سره چه (د دليل نيولو په طور سره څه شے نه) نه ګوری او د کومو چه (په نوم سره خو) غوږونه (دی مګر) داسې دی په کومو سره چه (رښتيا خبره) نه آوری (غرض) دا خلق (د آخرت نه په بې فکره کيدو کښې) د څارويو په شان دی بلکه (په دے حيثيت سره چه څاروی د آخرت په فکر مکلف نه دی نو د دوی نه

متوجه کیدل بده خبره نده، او دوی ته خوکړ دے حکم دے بیا هم بے توجهی سوی پس په دے اعتبار سره) دا خلق ړکړ دے شاروُ نه هم) زیات بے لارے دی ځکه چه) دا خلق د سره د توجه ورکولو د آخرت نه) غافله دی ړ په خلاف د شاروُ نه لکه چه بره بیان شو)۔

# مَعلومَات او مَسئلے

د آول نی آیت مضمون دادے چه چا ته الله تعالیٰ د صحیح لارے هدایت اوکړی هُم هغه هدایت موند ونکے دے، او چا لره چه گمراه کړی نو هم هغهٔ په خساره او نقصان کښے پریوتونکے دے۔

دا مضمون د قرآن مجید په ځیر وا آیا تو نو کښے بار بار راغلے دے۔ په کومو کښے چه خود لی شوی دی چه هدایت او گمراهئ او هر خیر او شر بنهٔ او بد خالق صرف الله جلّ شانهٔ دے، د انسان مخے ته ئے بنهٔ بد ه صحیح او غلطه دواړه لارے ایخودے دی، او دوی ته ئے یو خاص قسم اختیار ورکړے دے۔ دے دغه خپل اختیار که په بنهٔ او صحیح لاره کښے خرچ کوی نو د ثواب او جنّت مستحق کیږی۔ که په بد ه او غلطه لاره کښے ئے خرچ کوی، نو عذاب او جهنّم ئے ځائے کیږی۔

دلته دا خبره هم د غوږ قابله ده چه هدایت موند ونکی ئے په صیغه د مفرد ذکر کړل او گمراهی ئے په صیغه د جمع ذکر کړه۔ په دے کښے اشاره دے خبرے طرف ته ده چه د هدایت لار صرف یو حق دین دے کوم چه د آدم علیه السلام نه شروع شوے ده، تر خاتم الانبیاء صلے الله علیه وسلم پورے د ټولو انبیاؤ علیهم السلام ولاړ پاتے شوے ده۔ اُصول د ټولو مشترک او یو دی۔ په دے وجه د حق پیروی کوونکی خواه په کومه زمانه کښے او د کوم نبی په اُمّت کښے او د کوم دین او مذهب سره چه تعلّق لری هغه ټول یو دی۔

او د گمراهئ په زرګونو لارے جدا جدا دی په دے وجه گمراهانو لره ئے په صیغه د جمع: فَاُولٰٓئِكَ هُمُ الْخٰسِرُوْنَ: اُوفرمائیل۔

دا رنګ په دے ایت کښے واخبره هم د غور کولو ده چه د ګمراهۍ اختیارونکو خوئے د سزا او بد انجام ذکر اوکړو چه دغه خلق په تاوان کښے پریوتونکی دی د دے په مقابله کښے ئے د هدایت موندونکو د څۀ خاص جزاء ذکر اُونه کړو بلکه صرف په دومره ویناځ اکتفاء اوکړه چه دغه هدایت موندونکی دی۔

په دے کښے اشاره ده دے خبرے طرف ته چه هدایت داسے عظیم الشان نعمت دے کوم چه د دنیا او دین په ټولو نعمتونو او راحتونو باندے حاوی دے۔ په دُنیا کښے پاک ژوند او په اخرت کښے د جنت لازواله نعمتونه ټول د هدایت سره تړلی شوی دی په دے لحاظ سره هدایت پخپله یو غټ نعمت او ډیر لوئے انعام دے۔ د کوم نه پس چه د دے نعمتونو د شمار لو ضرورت نیشتے، کوم چه د هدایت په صله کښے ملاویږی۔

د دے مثال داسے دے چه ککه د یو لوئے حکومت او سلطنت مالک چا ته داووائی چه ته زما مقرب ئے مونږ به ستا خبره منو او آورو۔ نو ښکاره ده چه په دے کښے ټول هغه نعمتونه راشی کوم چه هغه ته د مقربیت او منظوری په سبب ملاویدے شی...

دغه شان کله چه الله تعالیٰ چا ته د هدایت یافته خطاب ورکړو نو ده ته د دین او دُنیا ټول نعمتونه حاصل شو، په دے وجه ډیرو بزرګانو فرمائیلی دی چه د الله تعالیٰ ذکر او عبادت پخپله خپله جزاء او د الله تعالیٰ عظیم الشان بخښش دے کوم سړے چه د الله تعالیٰ په ذکر کښے مشغول وی دے دغه وخت د الله تعالیٰ نقد انعام مومی، اخرت او جنت خو بل نعمت دے۔ په دے سره د قرآن کریم د دے ایت مطلب هم معلومیږی په کوم کښے چه فرمائی: جَزَآءً مِّنْ رَّبِّكَ عَطَآءً ؛ چه یو شی ته ئے جزاء هم اوفرمائیله او عطاء هم، حال دا دے چه دواړه څیزونه جُدا جُدا دی جزاء د یو عمل معاوضه وی او عطاء بلا معاوضے وی۔

په دے کښے ئے د جزاء او عطاء حقیقت اوخودو چه کوم شے تاسو جزاء او د عمل معاوضه ګنړئ هغه هم په حقیقت کښے زمونږ عطاء او انعام دے ځکه چه د کوم عمل چه دا بدله ملاؤ شوه دغه عمل پخپله زمونږ انعام وه۔

په دویم ایت کښے هم د دے مضمون زیات وضاحت دے چه هدایت او ګمراهی دواړه د الله تعالیٰ په قبضهٔ قدرت کښے دی چا ته چه هدایت ملاؤ شو د ده نه

تول کاروندهٔ هدایت مناسب کیږی۔ ؎

خرد چون دفتر تلقین کشاید — زمن آن در وجود آید که باید

(عقل چه کله دَ تلقین کتاب اوسپړی نو معلومه شی چه هم هغه څه نه صادریږی
کوم چه په تقدیر کښې لیکلی وی او دَ الله تعالیٰ رضا وی)

او څوک چه په ګمراهئ کښې پریوتل دَ هغهٔ ټول کار بیا هم په دے انداز سره وی۔

په دے وجه فرمائی: وَلَقَدْ ذَرَأْنَا لِجَهَنَّمَ كَثِيرًا مِّنَ الْجِنِّ وَالْإِنسِ ۖ لَهُمْ قُلُوبٌ
لَّا يَفْقَهُونَ بِهَا وَلَهُمْ أَعْيُنٌ لَّا يُبْصِرُونَ بِهَا وَلَهُمْ آذَانٌ لَّا يَسْمَعُونَ بِهَا ۚ یعنی
مونږ دَ جهنم دَ پاره پیدا کړی دی ډیر ډیر پیریانو لره او بنی آدمو لره دَ کومو
چه ښے دادی چه دَ دوی سره دَ پوهیدو دَ پاره زړونه او دَ لیدو دَ پاره سترګے
او دَ آوریدو دَ پاره غوږونه هرڅهٔ موجود دی، کومو لره چه دوی صحیح استعمال
کړی نو نیغه لار به بیا مومی او نفع نقصان به او پیژنی، لیکن دَ دوی دا حال دے
چه نهٔ په زړونو سره په خبره پوهیږی او نه په سترګو سره دَ لیدو څیزونه
وینی او نهٔ په غوږونو سره دَ اوریدو څیزونه اوری۔

په دے کښې ئے دا اوخودہ چه اګرچه تقدیر الٰهی یو سِرِّ نَبَسته راز دے دَ کوم
چه هیچا ته په دے دنیا کښې علم نه شی کیدے، لیکن په ښینو سره دَ دے څهٔ انداز
لګولے شی۔ دَ دوزخیانو نښنه داده چه دوی دَ الله تعالیٰ ورکړی قوتونه په
صحیح کارونو کښې نه لګوی، دَ صحیح علم او معرفت دَ پاره چه الله تعالیٰ جل شانه
کوم عقل، سترګے او غوږونه ورکړی دی دا دوی په بے ځایه څیزونو کښې لګوی،
او اصل مقصد دَ کوم په ذریعه چه همیشه او لازوال راحت او دولت ملاؤ یکی
دَ هغے طرف ته خیال نه کوی۔

په آیت کښې دَ کافرانو نه دَ پوهیدو، لیدو، آوریدو نفی کومه چه دَ ظاهر خلاف ده په کوم حقیقت بانذیں مَبنی ده؟

په دے آیت کښې ئے دَ دے خلقو نه پوهه او لیدل او آوریدل ټول څیزونه بالکل نفی کړی دی چه دا دَ دوی نیشتے، نهٔ دوی
په څهٔ پوهیګی نهٔ څهٔ څیز وینی نهٔ څهٔ خبره اوری۔ حال دا دے چه واقعه
او مشاهده دا ده۔ چه دا خلق خو څهٔ پاګلان او لیونی نه دی چه په څهٔ نهٔ
پوهیګی او نه پړانده وی چه څهٔ نهٔ وینی او نه کانړهٔ وی چه څهٔ نهٔ آوری،

بلکه داسے لیدے شي چه د دُنیا په کارونو کښے خو دوی د اکثرو خلقونه زیات چالاک او هوښیار په نظر راځي۔

مګر خبره داده چه الله تعالیٰ د خپلو مخلوقاتو نه په هر یو مخلوق کښے د دهٔ د ضرورت مطابق او د دهٔ د ژوند د مقصد مناسب عقل او پوهه ایخودلے ده. کوم څیزونو ته چه مونږ بے عقله بے حِسه او بے شعوره وایو او ګنړو ئے، په حقیقت کښے هغه هم حِس او اِدراک عقل او شعور لری. البته دا څیزونه په دوی کښے په هغه مقدار سره دی کوم مقدار چه د دوی د ژوند مقصد پوره کولو د پاره کافی وی. د ټولو نه کم عقل شعور او حِس په جمادا تو یعنی خاوره او کاڼه وغیره کښے دے۔ کوم چه نهٔ غټیږی او نه د خپل ځائے نه څه حرکت و تګ او تلل کولے شی. دغه دومره لږ دے چه په دوی کښے د ژوند نښے معلومول هم ډیر ګران دی، د دوی نه څهٔ لږ زیات په بناتاتو کښے دے د کوموَ د وجود په مقصد کښے چه غټیدل او ترقی کول داخل دی د دے په مناسب ئے عقل او ادراک دوی لره ورکړو۔ د دینه پس د حیواناتو نمبر دے د کوموَ د وجود په مقصد کښے چه زیاتیدل هم داخل دی ګرځیدل او تلل هم او په ګرځید واو تللو سره خپل خوراک حاصلول هم۔ او د ضرر رسوونکو او هلاکوونکو څیزونو نه ځان ساتل او تختیدل هم، او نسل پیدا کول هم۔ په دے وجه دوی ته چه کوم عقل او شعور ملاؤ شوے دے هغه د نورو نه زیات دے مګر دومره دے په کوم سره چه دوی د خپل خوراک سکاک او دهٔ کیدو ویخید و انتظام او کړی او د دُشمن نه ځان بچ کړی۔ د ټولو نه پس د انسان نمبر دے د کوم د وجود مقصد چه د دے ټولو څیزونو نه وړاندے دا دے چه خپل پیدا کوونکی او پالونکی لره او پیژنی د هغهٔ د مرضئ مطابق او چلیږی د هغهٔ د ناخوښه څیزونو نه ځان اُوساتی د ټول مخلوقات په حقیقتونو باندِ نظر واچوی او کار تر و اخلی، او د هر شی نتیجه او انجام او پیژنی، کرهٔ کوټه او ښهٔ بد او پیژنی، د بدو نه ځان او ساتی او ښو لره اختیار کړی. د دے انسانی نوع دا خصوصیت دے چه دهٔ ته د ترقئ کولو لوئے میدان ملاؤ دے کوم چه نورو نوعو ته حاصل نه دے۔ ډے چه کله ترقی کوی نو د فرښتو د صف نه هم وړاندِ مقام مومی - د دهٔ دا خصوصیت دے چه د دهٔ

په عملونو او کارونو باندې جزا او سزا ده، په دې وجه ده ته عقل او شعور د نورو قسمونو د مخلوقاتو نه زیات ملاؤ دې - چه دې د ناسو حیواناتو د سطحې نه اوچت شي د خپل وجود د مقصد په مناسبو کارونو کښې لګیا شي - د الله تعالیٰ ورکړې عقل او شعور او د ده ورکړې نظر او آورېدل د هغه په کار کښې او لګوي -

هر کله چه دا حقیقت معلوم شو نو د یو انسان پوهه، لیدل او آورېدل د نورو جانورانو د پوهې، لیدلو او آورېدلو نه مختلف پکار دي - که چرې ده هم صرف په دغو څیزونو کښې د خپل عقل، لیدو او آورېدو طاقتونه اولګول پکو مو کښې چه نور جانوران لګوي، او کوم کار چه د انسان د پاره خاص وه چه د هر شي په نتیجه او انجام باندې نظر ساتي او د بد و نه بچ شي او نیکۍ اختیار کړي دې ته ئې خیال او نه کړو نو ده ته سره د عقله بې عقله د لیدو ړوند، او د آورېدو نه کوڼ وئیلې شي، په دې وجه قرآن کریم بل ځائې داسې خلقو ته: صُمٌّ بُكْمٌ عُمْيٌ: یعني کاڼه چاړه کان او ړانده وئیلی دي -

په دې کښې د دې بیان نیشته چه دې د خپل خوراک سکاک او سید و اوده کیدلو و بچید و ضرورتونو نه پیژني یا دا چه د دې متعلق څیزونو له وینې آورې نه - بلکه بخپله قرآن کریم د دې خلقو په باره کښې یو ځائې فرمائي: يَعْلَمُوْنَ ظَاهِرًا مِّنَ الْحَيٰوةِ الدُّنْيَا وَهُمْ عَنِ الْاٰخِرَةِ هُمْ غٰفِلُوْنَ: یعني دا خلق د دُنیا ظاهري ژوند له بنه پیژني مګر د آخرت نه غافله او جاهله دي - او د فرعون او هامان او د دوی د قومونو په باره کښې فرمائي: وَكَانُوْا مُسْتَبْصِرِيْنَ: یعني دا خلق ډیر روشن خیاله وو مګر چونکه د دوی پوهه او نظر صرف دومره وه لکه څومره چه د عامو ځناورانو وي چه د خپل تن بدن خدمت اوکړي، د روح د خدمت او د ده د راحت متعلق ئې نه سوچ کولو او نه لیدل، په دې وجه که دوی په دې معاشیاتو او عمرانیاتو (یعني د ژوند تیرولو او اوسیدو په کارونو) کښې څومره هم ترقي او کړي سپوږمۍ او مریخ ته اورسي، په مصنوعي سیارو سره د دُنیا فضا ډکه کړي،

لیکن دا تول خدمت صرف د تن بدن د ځاینې او د کیدو دے - د دے نه وړاندې
هیڅ نه دے کوم چه روح لره د دائمی آرام او راحت سامان جوړ شي - په دے وجه
ورته قرآن کریم ړوند او کوڼ وائي او په دے آیت کښې ئے د دوی پوهه لیدل او
آورېدل نشت کړي دي - مطلب دا دے چه دے خلقو لره کومه پوهه چه پکار وه
هغه پوهه ئے او نه شوه کوم لیدل چه ورلره پکار وُو هغه ئے او نه کړل کوم
آورېدل چه ورلره پکار وُو هغه ئے وانه آورېدل ، او په څه چه دوی پوهه
شوا و څه چه دوی وا آورېدل او څه چه دوی اولیدل هغه د عامو حیواناتو
د سطحې څیز ونه وُو - په کوم کښې چه خر اَس غوائي بیزو تول شریک دي -

په دے وجه د ذکر شوی آیت په آخر کښې فرمائي د دے خلقو په باره کښې
: اُولٰٓئِكَ كَالْاَنْعَامِ : چه دا خلق د څاروُو په شان دي چه صرف د بدن د
موجوده ځاینې په خدمت کښې لګیدلی دي - د وڅا او کیدو د دوی آخري
معراج دے - بیا فرمائي : بَلْ هُمْ اَضَلُّ : بلکه دا خلق د څاروُو او څنا ورونه
هم زیات بے وقوفه دي - وجه دا ده چه څاروی د شرعی احکامو مکلف
نه دي د هغوی د پاره جزا او سزا نیشته - د دوی مقصد که صرف د موجوده
ژوند او د دے ځاینې د برابرولو پوره وي نو صحیح ده - مګر انسان خو
به د خپلو عملونو حساب کتاب ورکوی او جزا او سزا به مومی په دے وجه
د ده دا کار ونه خپل مقصد کنړل د څاروُو نه زیات بے وقوفی ده - د دے
نه علاوه څاروے د خپل مالک پوره خدمت کوی او نا فرمانه انسان د
خپل رب او مالک په خدمت کښې کوتاهي کوی په دے وجه دے د څاروُو
نه زیات بے وقوفه او غافل مقرر شو ځکه فرمائي : اُولٰٓئِكَ هُمُ الْغٰفِلُوْنَ : -

وَلِلّٰهِ الْاَسْمَآءُ الْحُسْنٰى فَادْعُوْهُ بِهَا ۪ وَذَرُوا الَّذِيْنَ

او د الله تعالی د پاره دي تول غوره نومونه پس هغهٔ لره بلئ په هغو سره او پرېږدئ هغو لره چه کوم

يُلْحِدُوْنَ فِيْٓ اَسْمَآئِهٖ ؕ سَيُجْزَوْنَ مَا كَانُوْا يَعْمَلُوْنَ ﴿۱۸۰﴾

کوږ والے راوُباسي د هغه په نومونو کښې - دوی به بدله بیا مومی د خپلو کړو -

# لنډ تفسير

(او غوره غوره (مخصوص) نومونه الله پاک لره دي (خاص) پس په دے نومونو سره الله لره يادوئ او (نورو لره دا نومونه مه ورکوئ بلکه) دداسے خلقو سره تعلق هم مه ساتئ کوم چه په دے (ذکر شوو) نومونو کښے کوږ والے راولي (داسے چه غير و ته هم دغو نومونسبت کوي لکه چه دغه خلق دوي ته په عقيده سره معبود او اِله وائي) دے خلقو ته به د دي د کړو ضرور سزا ملاؤ شي -

# معلومات او مسئلے

په تير واياتو نوکښے د دوزخيانو ذکر وؤ - کوم چه خپل عقل او حواس د الله تعالیٰ د نښنو ليدو او آوريدو او پوهيدو کښے خرچ نه کړل او د آخرت د هميشه او لازوال ژوند د پاره ئے څۀ سامان جمع نه کړو چه نتيجه ئے دا شوه چه دوي خدائے ورکړي عقل او بصيرت لره ضائع کړو د الله تعالیٰ د ذکر په ذريعه د خپل نفس د اصلاح او کاميابئ نه غافله شو، او د ځاروو نه زيات په ګمراهئ او بے وقوفئ کښے اخته شو -

په ذکر شوي ايت کښے د دے مرض علاج او د دره دوائي خوډ لے شوے ده چه هغه د الله تعالیٰ نه دعا او د الله تعالیٰ د ذکر ډير کول دي -

فرمائي: وَلِلّٰهِ الْاَسْمَآءُ الْحُسْنٰى فَادْعُوْهُ بِهَا ؛ يعني د الله تعالیٰ د پاره دي غوره نومونه پس تاسو بلئ هغۀ لره په دے نومونو سره -

**د اسمآءِ حسنیٰ تشريح** د ښو نومونه مراد هغه نومونه دي کوم چه د کمالي صفتونو په اعلیٰ درجه باندے دلالت کوونکي وي - او ښکاره خبره ده چه د څۀ کمال اعلیٰ درجه د کومے نه چه بره څۀ درجه نه وي هغه صرف خالق کائنات جل وعلیٰ شانه ته حاصله ده د ده نه علاوه بل يو مخلوق ته دا مقام نه شي حاصليدے - ځکه چه د هر يو کامل نه بل سړے اکمل او د فاضل نه بل افضل کيدے شي؛ وَفَوْقَ كُلِّ ذِيْ عِلْمٍ عَلِيْمٌ ؛ دا مطلب دے چه د هر خاوند د علم نه د پاسه بل عالم کيدے شي -

په دې وجه په دې آیت کښې دا سې عبارت اختیار کړې شو د کوم نه چه معلومه ده چه دا اسماء حُسنیٰ صرف د الله پاک خصوصیت دې نورو ته حاصل نه دی: فَادْعُوْهُ بِهَا: یعنې هر کله چه دا معلومه شوه چه د الله تعالیٰ د پاره اسماءِ حُسنیٰ دی او دغه نومونه د ده د ذات سره خاص دی. نو لازمه شوه چه الله تعالیٰ لره بلئ او په دغو اسماءِ حسنیٰ سره ئې بلئ۔

آواز کول یا بلل د دُعا ترجمه ده او د دُعا لفظ په قرآن کریم کښې په دوو معنو سره استعمالیږي. یو د الله په ذکر د ده په حمد وثنا تسبیح او پاکئ او لوئې سره. دویم د حاجتونو او مشکلاتو په وخت کښې د الله تعالیٰ نه خپل حاجت غوښتل، او د مصیبتونو او آفتونو نه د خلاصي او د مشکلاتو د آسانئ درخواست کول۔

په دې آیت کښې د: فَادْعُوْهُ بِهَا: لفظ دواړو معنو لره شامل دې نو معنیٰ د آیت دا شوه چه د حمد ثنا او تسبیح لائق هم صرف د هغه پاک ذات دې. او د مشکلاتو او مصیبتونو نه خلاصے او حاجتونه پوره کول هم صرف د هغهٔ په قبضه کښې دی. په دې وجه چه حمد وثنا کوئ نو د هغهٔ کوئ او که د حاجتونو پوره کیدو یا مشکلاتو لرې کیدو د پاره غوښتنه کوئ نو هغهٔ نه ئې کوئ۔

او د غوښتنې طریقه ئې هم دا او خوده چه په دغو اسماء حسنیٰ سره ورته آواز کوئ کوم چه د الله تعالیٰ د پاره ثابت دی۔

**د دُعا بعضې آداب**

په دې وجه د دې آیت نه دوه هدایتونه اُمت ته ملاؤ شو یو دا چه د الله تعالیٰ نه سوا هیڅ ذات د حقیقي حمد وثنا یا د مشکلاتو لرې کولو او حاجتونو پوره کولو د پاره د بلنې او آواز کولو لائق نه دے، دویم دا چه د دې بلنې د پاره هم هر څوک آزاد نه دے چه کوم الفاظ غواړي اختیار کړي، بلکه الله تعالیٰ خپل فضل وکرم سره مونږ ته هغه الفاظ هم او خودل کوم چه د هغهٔ د شان سره لائق دی. او مونږ ئې پابند کړو چه په دغو الفاظو سره هغه او بلو، د خپل ځان نه نور الفاظ جوړ نه کړو ځکه چه د انسان طاقت نیشته چه د هغهٔ د شان سره

مناسب الفاظ جوړ کړی۔

بخاري او مسلم د حضرت ابو هريرهؓ نه روايت کړے دے چه نبي کريم صلے الله عليه وسلم فرمائيلی دی چه د الله تعالیٰ يو کم سل نوموونه دی کوم سړے چه دا ياد کړی دے به جنت ته داخل شي دا يو کم سل نوموونه ترمذی او حاکم په تفصيل سره خودلی دی۔

د الله تعالیٰ دا يو کم سل نوموونه چه اولولی او د کوم مقصد د پاره دُعا اوکړی قبوله به شي۔ د الله تعالیٰ وعده ده: اُدْعُوْنِيْٓ اَسْتَجِبْ لَكُمْ: يعنی تاسو مالره بلئ زهٔ به ستاسو دُعا قبلوم۔ د حاجتو نو او مشکلاتو د پاره د دُعا نه لوئے څهٔ تدبير داسے نيشتے چه د څهٔ ضرر ويره پکښے نه وی او نفع ئے يقينی وی، د خپلو حاجتو نو د پاره د الله تعالیٰ جل شانهٔ په دُعا کولو کښے د څهٔ نقصان خو هډو احتمال شته نه، او يوه نفع نقد ده چه دُعا يو عبادت دے د دے ثواب د دهٔ په عملنامه کښے ليکلے شي۔ په حديث شريف کښے دی: اَلدُّعَآءُ مُخُّ الْعِبَادَةِ: يعنی دُعا کول د عبادت مغز دے۔ او د کوم مقصد د پاره چه دهٔ دُعا کړے ده اکثر خو هغه مقصد بعينه پوره شي۔ او کله داسے هم اوشي چه کوم شي لره دهٔ خپل مقصد جوړ کړے وهٔ هغه د دهٔ په حق کښے مُفيد نه وهٔ الله تعالیٰ پخپل فضل سره د دهٔ دُعا بل طرف ته اوګرځوی کوم چه د دهٔ د پاره مُفيد وی۔ او په حمد وثنا سره د الله تعالیٰ ذکر کول د ايمان غذا ده، چه په نتيجه کښے ئے د انسان رغبت او محبت د الله تعالیٰ جل شانهٔ سره تړلے کيږی، او د دُنيا تکليفو نه که ورته راهُم شي نو ډير سپک او آسان شي۔

په دے وجه د بخاريؒ مسلمؒ، ترمذيؒ او نسائیؒ په صحيح احاديثو کښے راغلی دی چه نبي کريم صلے الله عليه وسلم فرمائيلی دی چه کوم سړی ته څهٔ غم يا بے آرامی يا څهٔ مهم مخے ته راشي، دهٔ لره پکار دی چه دا کلمے اولولی نو ټول مشکلات به ئے آسان شي۔ هغه کلمے دا دی:۔

لَآ اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ الْعَظِيْمُ الْحَلِيْمُ، لَآ اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ رَبُّ الْعَرْشِ الْعَظِيْمِ
لَآ اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ رَبُّ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ وَرَبُّ الْعَرْشِ الْكَرِيْمِ

او په مستدرک حاکم کښے په روايت د انسؓ ذکر دی چه نبي کريم صلے الله عليه

دَ سلّم حضرت فاطمه زهرا ؓ ته او فرمائیل چه تا لره څهٔ شے منع کوُنکے دے چه ته
ځما وصیّت واورے او په دے عمل اوکړے، هغه وصیّت دا دے چه سحر او ماښام
دا دُعا کوه :-

:یَا حَیُّ یَا قَیُّوْمُ بِرَحْمَتِكَ اَسْتَغِیْثُ اَصْلِحْ لِیْ شَاْنِیْ کُلَّهٗ وَ لَا تَكِلْنِیْ اِلٰی نَفْسِیْ طَرْفَةَ عَیْنٍ :

دا دُعا هم دَ ټولو حاجتونو او مشکلاتو دَ پاره بے مثله دُعا ده -
لنډه دا ده چه دَ ذکر شوی ایت په دے جمله کښے دوه هدایتونه
اُمّت ته ورکړے شو، یو دا چه حمد وثنا او دَ مشکلاتو او حاجتونو دَ پاره
صرف الله تعالیٰ لره بلئ مخلوقات لره نهٔ - دوېم دا چه هغهٔ لره هم په هغو
نومونو سره بلئ کوم چه دَ الله تعالیٰ جلّ شانهٔ دَ پاره ثابت دی - دَ هغے
الفاظ بدلوئ مه -

دَ ایت په وړاندِ جمله کښے دَ دے متعلق ارشاد فرمائی : وَ ذَرُوا الَّذِیْنَ
یُلْحِدُوْنَ فِیْۤ اَسْمَآئِهٖ سَیُجْزَوْنَ مَا کَانُوْا یَعْمَلُوْنَ : یعنی پریږدئ هغو خلقو
لره کوم چه دَ الله تعالیٰ په نومونو کښے الحاد یعنی کوږ والے کوی، دوی ته به دَ
دوی دَ کړیدو بدله ملاؤ شی - دَ الحاد معنیٰ په لغت کښے میلان او دَ درمیانه
لارے نه دَ یوطرف ته کیدو ده، په دے وجه دَ قبر لحد ته لحد وائی ځکه چه هغهٔ
دَ درمیان نه یو طرف ته وی - په قرآن کریم کښے لفظ دَ الحاد دَ قرآن کریم صحیح
معنیٰ پاتے کول اخوا دیخوا تاؤ ویلو نه او دَ بدلولو په معنیٰ کښے راځی -
په دے ایت کښے نبی کریم صلے الله علیه وسلم ته دا هدایت شوے دے، چه
ته دَ دا سے خلقو سره تعلق هم پاتے کړه کوم چه دَ الله تعالیٰ په اسماء حُسنیٰ کښے
دَ الحاد یعنی کجروئ نه کار اخلی -

| دَ الله تعالیٰ په نومونو کښے دَ کجروئ ممانعت او دَ دے مختلف صورتونه | دَ الله تعالیٰ په نومونو کښے تحریف یعنی دَ اَدلون بدلون او کجروی یعنی کږ وَلو مختلف صورتونه |
|---|---|

کیدے شی، هغه ټول دَ دے ایت په مضمون کښے داخل دی -
اَوّل دا چه دَ الله تعالیٰ دَ پاره هغه نوم استعمال کړی کوم چه په قرآن او
حدیث کښے دَ الله تعالیٰ جلّ شانهٔ دَ پاره ثابت نه وی - دَ علمائے حق اتفاق دے

چه د الله تعالیٰ په نوم او صفتو نو کښې د چا د اختیار نښتي چه څه غواړي نوم ورلره کیږدي یا یو کوم صفت سره چه غواړي د هغهٔ حمد وثنا کوي- بلکه صرف هغهٔ الفاظ ضروري دي کوم چه په قرآن او حدیثو کښې د الله تعالیٰ د پاره په طور د نوم یا صفت ذکر شوي دي، مثلاً الله تعالیٰ ته کریم ویلې شي سخي نه شي ویلې، نور ویلې شي ابیض نه شي ویلې- شافي ویلې شي طبیب نه شي ویلې- ځکه چه دا نور الفاظ منقول نه دي اګرچه د دے الفاظو هم معنیٰ دي-

دویم صورت د الحاد په اسماؤ کښې دا دے چه د الله تعالیٰ کوم نومونه په قرآن او سنت سره ثابت دي په هغوي کښې یو نوم لره نامناسب ګڼړل او یا ترې کول دا بے ادبي ده-

چا سړي لره د الله تعالیٰ په خاص نوم سره مسمیٰ کول یا مخاطب کول جائز نه دي

دریم صورت دا دے چه د الله تعالیٰ په خاصو نومونو سره څوک بل سړے مسمیٰ یا مخاطب کړي- مګر په دے کښې دا تفصیل دے چه په اسماء حسنیٰ کښې بعض نومونه دا سې دي کوم لره چه په قرآن او حدیث کښې د نورو خلقو د پاره هم استعمال شوي دي- او بعض هغه دي کوم لره چه سوا د الله تعالیٰ نه د بل چا د پاره استعمالول په قرآن او حدیث سره ثابت نه دي نو د کومو نومونو استعمال چه د غیر الله د پاره په قرآن او حدیث سره ثابت دے هغه نومونه د نورو د پاره هم استعمالیدے شي لکه، رحیم، رشید، علي، کریم عزیز وغیره- او په اسماء حسنیٰ کښې هغه نومونه کوم چه د غیر الله د پاره استعمالول په قرآن او حدیث سره ثابت نه دي هغهٔ صرف د الله تعالیٰ د پاره خاص دي، دغه د غیر الله د پاره استعمالول په ذکر شوي الحاد کښې داخل او ناجائز او حرام دي مثلاً رحمان، سبحان، رزاق، خالق، غفار، قدوس وغیره-

بیا د دے مخصوصو نومونو لره د غیر الله د پاره استعمالول که څهٔ په غلطه عقیدهٔ سره وي چه دهٔ لره خالق یا رازق او ګڼړي په دے الفاظو سره خطاب کوي نو بیا خو دا سے ویئیل کفر دے، او که عقیده ئې غلطه نه وي محض په بے فکرئ یا بے پوهئ سره چا ته، خالق، رازق، یا رحمٰن، سبحان او وائي نو دا اګرچه کفر نه دے

مګر مشرکانه الفاظ دی په دے وجه سخت ګناه دے۔

افسوس دے چه نن صبا عام مسلمانان په دے غلطئ کښے اخته دی څهٔ خلق خو هغه دی چا چه اسلامی نومونه ایخودل پاتے کړی دی، په صورت او سیرت سره خو دوی لره د وړاندې نه هم مسلمان ګڼړل مشکل وُو د نوم نه به پته لګیده او س نوی نومونه په انګریزی طرز باندے ایخودل شروع شو۔ د جینکو نومونه د اسلام د طرز نه خلاف د خدیجے عائشے فاطمے، په ځائے نسیم، شمیم، شهناز، نجمه، پروین شروع شو۔ او د دے نه زیاته افسوسناکه خبره داده چه د کومو خلقو اسلامی نومونه دی، عبدالرحمان عبدالخالق عبدالرزاق عبدالغفار، عبد القدوس وغیره دی په دے کښے د اسانئ د پاره دا غلط طریقه اختیار کړے شوه چه صرف اخری لفظ د ټول نوم په ځائے بللے شی رحمان خالق رزاق غفار ورته وائی۔ او د دے نه زیاته د غضب خبره داده چه: قدرت الله: ته الله صاحب او قدرت خدا: ته خدا صاحب وائی دا ټول ناجائز او حرام او ګناه کبیره دے څو پیرے چه دا لفظ ویلے کیږی دومره پیرے ګناه کبیره کیږی او اوریدونکی هم د ګناه نه خالی نه وی۔

دا بے خونده او بے فائدے داسے ګناه ده کوم لره چه زمونږ په زرګونو رونړه شپه او ورځ کوی او هیڅ فکر نه کوی چه د دے لږ شان حرکت څومره خطرناک انجام دے، د کوم طرف ته چه د ذکر شوی ایت په اخری جمله خبرداری فرمائیلے شوے دے: سَيُجْزَوْنَ مَا كَانُوا يَعْمَلُونَ: یعنی دوی ته به د خپلو کړو بدله ورکړے شی۔ د دغے بدلے تعین نه دے شوے نو د دے اِبهام اشاره سخت عذاب طرف ته ده۔

په کومو ګناهونو کښے چه څهٔ دنیوی فائده یا خوند او راحت دے، په دے کښے خو څوک دا هم ویلے شی چه زهٔ د خپل خواهش یا ضرورت نه مجبوره وُم۔ مګر افسوس دادے چه د نن مسلمانان په داسے ډیرو فضولو ګناهونو کښے د خپل جهالت یا غفلت په وجه اخته په نظر راځی په کومو کښے نه د دُنیا څه فائده نه څهٔ راحت او خوند وی۔ وجه داده چه حلال او حرام او جائز او ناجائز ته هډو ګوری نه۔ نعوذ بالله منها۔

وَمِمَّنْ خَلَقْنَآ اُمَّةٌ يَّهْدُوْنَ بِالْحَقِّ وَبِهٖ يَعْدِلُوْنَ ﴿۱۸۱﴾

او د هغو خلقو نه کوم لره چه مونږ پیدا کړی دی یو جماعت دے چه لارښائی رښتونے او د دے موافق انصاف کوی

وَالَّذِيْنَ كَذَّبُوْا بِاٰيٰتِنَا سَنَسْتَدْرِجُهُمْ مِّنْ حَيْثُ

او چا چه دروغژن کړل زمونږ ایاتونه لره مونږ به دوی لره ورو ورو نیسو د داسے ځائے نه د کوم نه

لَا يَعْلَمُوْنَ ﴿۱۸۲﴾ وَاُمْلِيْ لَهُمْ ۚ اِنَّ كَيْدِيْ مَتِيْنٌ ﴿۱۸۳﴾

چه به دوی خبر هم نه وی - او مونږ دوی لره مهلت ورکوو بے شکه زمونږ تدبیر پوخ دے -

اَوَلَمْ يَتَفَكَّرُوْا ۜ مَا بِصَاحِبِهِمْ مِّنْ جِنَّةٍ ۭ اِنْ

آیا دوی فکر او نه کړو - چه د دوی په ملګری کښے هیڅ هم لیونتوب نیشته - دے خو

هُوَ اِلَّا نَذِيْرٌ مُّبِيْنٌ ﴿۱۸۴﴾ اَوَلَمْ يَنْظُرُوْا فِيْ مَلَكُوْتِ

یره وُنکے دے ښکاره - آیا دوی نظر نه کوی حکومت د

السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ وَمَا خَلَقَ اللّٰهُ مِنْ شَيْءٍ ۙ

آسمانونو او زمکے ته او څه چه پیدا کړی دی الله د هر شی نه

وَّاَنْ عَسٰٓى اَنْ يَّكُوْنَ قَدِ اقْتَرَبَ اَجَلُهُمْ ۚ

او په دے کښے چه شاید نزدے راغلے وی د دوی وخت (وعده)

فَبِاَيِّ حَدِيْثٍۭ بَعْدَهٗ يُؤْمِنُوْنَ ﴿۱۸۵﴾

پس د دے نه نو دوی پکومه خبره ایمان راوړی

# لنډ تفسير

او زموږ په مخلوق کښې يوه جماعت (په دې کښې) داسې هم دې کوم چه د حق (دين يعنې اسلام) موافق (خلقو ته) هدايت (هم) کوي او د دې موافق (پخپله او د نورو په معاملاتو کښې) انصاف هم کوي او کوم خلق چه زموږ آيات نه دروغژن کوي موږ هغه دوی لږه لږه (جهنم طرف ته) بيايو په دې طور سره چه دوی ته خبر هم نه وي او (په دنيا کښې د عذاب نازلولو په وجه) دوی ته مهلت ورکوو بې شکه زما تدبير ډير مضبوط دې، آيا دې خلقو په دې خبره کښې غور او نه کړو چه د دوی د چا سره معامله ده په ده يوه ذره هم ليونتوب نيشتې دې خو صرف يو صاف صاف (د عذاب نه) يره ورکونکې دې (کوم چه دا د پيغمبر کار دې) او آيا دې خلقو غور او نه کړو د آسمانو او زمکې په عالم کښې او (دا رنګې) په نورو څيزونو کښې کوم لره چه الله تعالىٰ پيدا کړي دي، (د دې د پاره چه دوی ته په دليل سره د توحيد علم حاصل شوې وې) او په دې خبره کښې (ئې هم غور او نه کړو) چه ممکنه ده چه د دوی اَجَل نزدې راغلې وې (چه د عذاب دا احتمال نيږدې او د دې نه ئې د بچ کيدو فکر کولې او په دې فکر سره به ورته حق دين ملاوُ شوې وُه، او د اَجَل د نزدې والي خو هروخت دې، او هر کله چه د قرآن پشان په مؤثر کلام سره د دوی فکر په حرکت کښې رانغې نو) بيا د قرآن نه پس په کومه خبره به دا خلق ايمان راوړي.

# معلومات او مسئلې

په تيرو آياتونو کښې د دوزخيانو حالات او صفتونه او د دوی د ګمراهئ دا سبب بيان شوې وُه چه دوی د خدائې ورکړي عقل او بصيرت او فطري قوتونو نه د دوی اصلي کار وانه غستو، او ضائع ئې کړو، بيائې د دوی د مرض علاج د الله تعالىٰ په نومونو او د ذکر الله په ذريعه سره خود لې وُه د ذکر شوو آياتونو په اوّلني آيت کښې د دوی په مقابله کښې د ايماندارو او د حق د خاوندانو ذکر دې کوم چه د خدائې ورکړي عقل نه کار واغستو

معیې لارې اختیار کړه، ارشاد دے: وَمِمَّنْ خَلَقْنَآ اُمَّةٌ یَّهْدُوْنَ بِالْحَقِّ وَبِهٖ یَعْدِلُوْنَ؛ یعنې کوم مخلقولو چه مونږ پیدا کړي دي په دوی کښې یو اُمّت داسے دے کوم چه د حق موافق هدایت کوی یعنې خلقو ته د صراطِ مستقیم طرف ته لار ښائي او کله چه د دوی په خپل مینځ کښې څۀ جګړه یا مقدمه راپیښه شي نو د خپلو جګړو فیصله هم په حق یعنې د الله تعالیٰ د قانون ماتحت کوی۔

د تفسیر امام ابن جریرؒ بخپل سند سره نقل کوی چه نبي کریم صلے الله علیه وسلم دے آیت لره تلاوت کړو ارشاد ئے او فرمایه، چه دا امّت د کوم ذکر چه په دے آیت کښې دے ځما امّت دے کوم چه به د خپلو ټولو جګړو فیصلے د حق او انصاف یعنې د الله تعالیٰ د قانون مطابق کوی او د ورکړې راکړې په ټولو معاملو کښې به حق او انصاف مخې ته کدی۔

او د عبد بن حُمید په یو روایت کښې دی چه نبي کریم صلے الله علیه وسلم اصحابو کرامو ته خطاب او فرمایه چه دا آیت ستاسو په حق کښې راغلے دے او ستاسو نه وړاندے هم یو امّت ته دا صفتونه ورکړے شوی دی، بیا ئے دا آیت تلاوت او فرمایه: وَمِنْ قَوْمِ مُوْسٰٓی اُمَّةٌ یَّهْدُوْنَ بِالْحَقِّ وَبِهٖ یَعْدِلُوْنَ؛ مراد دا دے چه د حضرت موسیٰ علیه السلام په امّت کښې هم یو جماعت دا صفتونه لرل۔ چه خلقو ته به لار خودو کښې او د خپل مینځ د جګړو په فیصله کولو کښې به ئے د حق یعنې د الله تعالیٰ د شریعت مکمّل تابعداری کوله، او امّت محمدی ته هم الله تعالیٰ په دے صفتونو کښې خصوصي امتیاز بخلے دے۔

بخوړ د دے دوه خصلتو نه دی۔ یو دا چه د نورو خلقو په مشرئ کولو او لار خودلو یا مشوره ورکولو کښې د شریعت تابعداری کوی، دویم دا چه که څۀ جګړه بخپل مینځ کښې راپیښه شي نو د هغې فیصله د شریعت د قانون په مطابق کوی۔

چه غور پرې او شي نو هم دا دوه خصلتو نه دی چه د یو قوم د خیر او ښۀ والی او دُنیا او آخرت د کامیابۍ ضمانت ورکولے شي، چه په صلح او جنګ دوستۍ او دشمنۍ هر حالت کښے د دوی نصب العین حق او انصاف وی،

خپلو دوستانو او ملګرو ته چه کومه د کار خوده نه کوی په هغې کښې هم د حق تابعداری وی. او د دشمنانو او مقابلو په جګړو کښې هم د حق په وړاندې خپل ټول خواهشونه او خیالات پاتې کړی چه د دې څخه دې حق پرستی.

د اُمتِ محمدیؐ په نورو امتونو باندې د غور والی او اوچتوالی راز او د دوی د امتیاز نښه هم دا حق پرستی ده چه د دوی خپل ټول ژوند د حق تابع کړو د کوم جماعت یا پارټۍ مشری او رهنمائی چه ئې او کړه نو هغه ئې هم خالصه د حق د تقاضو مطابق او کړه خپلو ذاتی خواهشاتو او خاندانی یا قومی رسمونو له ئې مطلق په دې کښې دخل ورنه کړو، او د خپل مینځ په جګړو کښې ئې هم همیشه د حق په وړاندې سر خکته کړو، د اصحابؓ او تابعینو پوره تاریخ د دې آئینه دار دې.

او د کله نه چه په دې امت کښې په دې دواړو خصلتو نو کښې خلل او نقصان راغلې دې د هغه وخت نه د دوی تنزّل او غورزیدل شروع شو،

ډیر د غم او د افسوس مقام دې چه نن دغه حق پرست امت خالص هوا پرست جوړ شوې دې. پارټۍ او جماعتونه پکښې جوړیګی خو هغه هم خالص د نفسانی غرضو نو او د دنیا د رذیلې او ذلیلې نفع په بنیادونو جوړیګی، یو بل ته چه د کوموکارونو د یا بندۍ طرف ته دعوت ورکولې شی هغه هم خالص د نفسانی خواهشونو یا خاندانی رسمونو وی. که څوک د دوی خلاف کوی نو ټول ئې مقابلې ته تیار وی، لیکن د حق او شریعت مطابق د چلید و نهٔ چرې ته معاهده کیږی، او نهٔ د دې د تابعداری کولو څوک چاته وائی او نه د دې په خلاف ورزی کیدو د چا په تندی باندې غوټه راځی،

دغه شان د خپل مینځ په جګړو کښې او په مقدمو کښې د دنیا د یو څو وُرځو د ځینې نفع په خاطر د الله تعالی قانون پاتې کوی د شیطانی قوانینو په ذریعه په فیصله کولو راضی دی.

د دې دغه بد انجام دې چه هر ځائې په هر ملک کښې لیدې شی چه دا امت هر ځائې ذلیل او خوار ښکاری، الاماشاء الله، دوی د حق نه واړوه،

حق دَ دوی دَ نصرت او امداد نه مخ واړوي ولو -

دَ حق پرستئ په ځائے هوا پرستي اختيار شوه هر سړے دَ خپلے دنيوی نفع په حاصلولو کښے مشغول شو که نور ټول قوم او ملت تباه کيږی نو نه ورته څوک ګوری او نه ئے څوک آوری - که دَ ټول امت فلاح او ترقی غواړی نو دَ دينه سوا بله چاره نيشته چه دا قرآنی اصول په مضبوطئ سره اونيوے شی پخپله هم په دے عمل اوشی او نورو لره هم دَ دے دَ پابندولو کوشش اوکړے شی -

په دويم آيت کښے دَ دے شبهے جواب دے چه هر کله دَ قومی ترقئ مدار حق پرستی او دَ حق او انصاف پيروی ده، نو دا نور غير مسلم قومونه کوم چه دَ حق نه سراسر لرے دی هغوی وَلے په دنيا کښے داسے په ترقئ او خوشحالئ دی، جواب دا دے: وَالَّذِيْنَ كَذَّبُوْا بِاٰيٰتِنَا سَنَسْتَدْرِجُهُمْ مِّنْ حَيْثُ لَا يَعْلَمُوْنَ: يعنی مونږ دَ خپلو آيا تو نو درو غږن کونکو لره دَ خپل حکمت او رحمت په بنا سره فورًا نه نيسو بلکه رو رو په مزه مزه ئے نيسو دَ کوم چه دوی ته خبر هم نه وی، په دے وجه په دنيا کښے دَ کافرانو او فاجرانو په مالدارئ يا عزت او مرتبے سره مه دوکه کيږئ، ځکه چه دغه په حقيقت کښے دَ دوی دَ پاره دَ څه خيګړے سامان نه دے، بلکه دَ الله تعالیٰ دَ طرف نه استدراج دے - دَ استدراج معنیٰ په رورو مزه مزه سره دَ څه کار کول دی - دَ قرآن او سُنت په اصطلاح کښے استدراج دے ته وئيلے شی چه دَ بنده په ګناه باندِ په دُنيا کښے څهٔ تکليف او مصيبت رانه شی بلکه څومره چه دے په ګناه کښے زياتيګی دُنيا وی ساز و سامان ئے نور سِوا کيږی چه دَ دے انجام دا وی چه دے پخپله بد عملئ هډو خبر نه وی او دَ غفلت نه نه بئيد اريګی، او خپل بد عملو نه دهٔ ته بَدْ نه ښکاری چه دے ترِ دَ واپس کيدو فکر او کړی -

دَ انسان دا حالت دَ هغه لا علاجه مريض په شان دے کوم چه بيمارئ لره شفاء او زهرو لره ترياق اوګڼړی استعمالوی ئے، چه دَ دے نتيجه داوی چه کله خو په دُنيا کښے داسے ناڅاپه په عذاب کښے اونيوے شی او کله ترمرګه پورے دا سلسله چليږی، او بالآخر مرګ دَ دهٔ دَ مستئ

ادبے هوشئ خاتمه اوکړی- او د همیشه عذاب د ده په برخه شی

قرآن کریم په مختلفو سورتونو او اياتونو کښے د دے استدراج ذکر فرمائلے دے، ارشاد دے: فَلَمَّا نَسُوْا مَا ذُكِّرُوْا بِهٖ فَتَحْنَا عَلَيْهِمْ اَبْوَابَ كُلِّ شَيْءٍ حَتّٰۤى اِذَا فَرِحُوْا بِمَاۤ اُوْتُوْۤا اَخَذْنٰهُمْ بَغْتَةً فَاِذَا هُمْ مُّبْلِسُوْنَ: یعنی کله چه دغو خلقو هغه شے هیر کړو کوم چه دوی ته یاد کړے شوے وه نومونږ په دوی د هر شے دروازے پرانستلے تر دے چه دوی پخپل ملاؤ شوی نعمت او دولت باندِ مغرور شو نو مونږ دوی لره ناڅاپه په عذاب کښے اونیول نو دوی د خلاصی نه نااُمید شو۔

دا استدراج د کفارو سره هم کیږی او د ګناهګارو مسلمانانو سره هم په دے وجه اصحابوا وتیرو صالحانو ته به کله د دنیا دولت او نعمت الله تعالیٰ ورکړو نو د ډیرے یرے په وجه به د استدراج نه یریدل چه هسے نه د دنیا دا دولت زمونږ د پاره استدراج نه وی۔

په دریم ایت کښے د دے استدراج بیان دے: وَاُمْلِيْ لَهُمْ اِنَّ كَيْدِيْ مَتِيْنٌ: یعنی زهٔ دے ګناهګارانو ته مهلت ورکوم، زما تدبیر ډیر مضبوط دے۔

په څلورم ایت کښے د کفارو د دے عبث خیال تردید دے چه معاذ الله نبی کریم صلے الله علیه وسلم په لیونتوب کښے رنځور دے فرمائی: اَوَلَمْ يَتَفَكَّرُوْا مَا بِصَاحِبِهِمْ مِّنْ جِنَّةٍ اِنْ هُوَ اِلَّا نَذِيْرٌ مُّبِيْنٌ: یعنی آیا دے خلقو غور او فکر اُونه کړو چه د دوی د چا سره پیښه ده په ده باندِ یوه ذره هم لیونتوب نیشته، د ده عقل او حکمت ته خود تولے دُنیا عاقلان او حاکمان حیران دی د ده په باره کښے خود لیونتوب ګمان کول پخپله لیونتوب دے، نبی کریم صلے الله علیه وسلم خو صاف صاف حقیقتونه بیا نوُ نکے د اخرت او د خدائے د عذاب نه یروُنکے دے۔

په پنځم ایت کښے ئے دوی ته د دوه څیزونو طرف ته د فکر کولو دعوت ورکړے دے، اوّل د الله تعالیٰ په مخلوقاتو آسمان او زمکه او د دے په مینځ کښے د بے شماره جوړ و شوو عجائباتو کښے غور او فکر کول۔ دویم پخپله مُودهٔ

دَ عمر او دَ فرصت دَ عمل بانډې نظر کول -

دَ قدرت په جوړو شوو څیزونو کښې په لویو شان عقل او پوهې سره چه غور او فکر اوشي نو دَ معمولي عقل والا انسان هم دَ الله تعالیٰ دَ قدرت دَ شان معرفت حاصلولې شي - او لا زیاتر نظر کونکی ته خو دَ عالم ذرّه ذرّه دَ قادر مطلق او حکیم مطلق حمد وثنا دَ ویونکې په نظر راځي - چه دَ دے نه پس په الله تعالیٰ ایمان راوړل یو فطري خواهش جوړ شي -

او دَ خپل عمر په موده کښې خو دَ غور او فکر دا نتیجه ده چه کله انسان په دے پوهه شي چه دَ مرګ وخت معلوم نه دے چه کله به راځي نو دَ ضروري کارونو په پوره کولو کښې دَ غفلت نه واپس شي، او په تلوارے سره کار کوي، دَ مرګ نه غفلت انسان لره په ټولو خرافاتو او ګناهونو کښې اخته کوي - او دَ مرګ راتلل هغه شے دے کوم چه انسان لره دَ ډیر ګناهونو نه ځان ساتلو ته تیاروي په دے وجه نبي کریم صلی الله علیه وسلم فرمائي: اَکْثِرُوْا ذِکْرَهَا ذِمِ اللَّذَّاتِ الْمَوْتِ: یعنې تاسو هغه شے ډیر یاد وئ کوم چه ټولو خوندونو لره ختم کونکے دے یعنی مرګ -

په دے وجه په ذکر شوی ایت کښې فرمائي: اَوَ لَمْ يَنْظُرُوْا فِيْ مَلَكُوْتِ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ وَمَا خَلَقَ اللّٰهُ مِنْ شَيْءٍ وَّاَنْ عَسٰٓى اَنْ يَّكُوْنَ قَدِ اقْتَرَبَ اَجَلُهُمْ: لفظ دَ: مَلَكُوْت: دَ ملک په معنیٰ کښې دَ مبالغې دَ پاره ویئلے شي، دَ دے معنیٰ ده: عظیم ملک: معنیٰ دَ ایت دا ده چه آیا دے منکرانو دَ الله تعالیٰ په لوئے ملک کښې غور او نه کړو کوم چه په اسمانونو او زمکو او بے شمار څیزونو بانډې محیط دے - او آیا په دے کے نظر او نه کړو چه داکیدے شي چه دَ دوی مرګ نزدے وي دَ کوم نه پس چه به دَ ایمان او عمل فرصت ختم شي -

دَ ایت په اخر کښې فرمائي: فَبِاَيِّ حَدِيْثٍ ۢ بَعْدَهٗ يُؤْمِنُوْنَ: یعنی کوم خلق چه دَ قرآن کریم په داسے واضحو ښېنو بانډې هم ایمان نه راوړي هغوی به نور په څۀ شي بانډې ایمان راوړي -

مَنْ يُّضْلِلِ اللّٰهُ فَلَا هَادِيَ لَهٗ ؕ وَيَذَرُهُمْ فِيْ طُغْيَانِهِمْ

چا لره چه الله گمراه کړی هغه ته هیڅوک نیشتے لار ښودونکے - او الله پریږدی دوی لره د دوی په شرارت

يَعْمَهُوْنَ ﴿۱۸۶﴾ يَسْـَٔلُوْنَكَ عَنِ السَّاعَةِ اَيَّانَ مُرْسٰهَا ؕ

کښے سرګردان - ستا نه تپوس کوی د قیامت چه کله به وی د دے د قائمیدو وخت -

قُلْ اِنَّمَا عِلْمُهَا عِنْدَ رَبِّيْ ۚ لَا يُجَلِّيْهَا لِوَقْتِهَا اِلَّا هُوَ ؕ

ته اووایه چه د دے خبر صرف زما د رب سره دے - هغه به ښکاره کوی د ه لره د د ه په وخت -

ثَقُلَتْ فِي السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ ؕ لَا تَاْتِيْكُمْ اِلَّا بَغْتَةً ؕ

هغه ډیره دروند خبره ده په آسمانونو او په زمکه باندے - کله چه په تاسو راشی نو بے خبره به راشی -

يَسْـَٔلُوْنَكَ كَاَنَّكَ حَفِيٌّ عَنْهَا ؕ قُلْ اِنَّمَا عِلْمُهَا

ستا نه داسے تپوس کوی لکه چه ته د دے په تلاش کښے یے - ته اووایه چه د دے خبر خاص

عِنْدَ اللّٰهِ وَلٰكِنَّ اَكْثَرَ النَّاسِ لَا يَعْلَمُوْنَ ﴿۱۸۷﴾

د الله سره دے لیکن اکثر خلق نه پوهیږی -

وقف لازم
وقف منزل

# لنډ تفسیر

چا لره چه الله گمراه کړی هغهٔ لره څوک نه شی په لار کولے (نو بیا غم یے بے فائدے

دے) او الله تعالیٰ دوی لره د دوی په گمراهئ کښے سرگردانه پاتے کوی (چه به

یو وار د ټولو لره پوره سزا ورکړی) خلق ستا نه د قیامت متعلق تپوس کوی

چه د دے واقع کیدل به کله وی ته اووایه چه د دے (دا) علم (چه کله به

واقع کیږی) صرف زما د رب سره دے (بل هیچا ته د دے خبر نیشته) په خپل

وخت باندے به د ه لره سوا د الله تعالیٰ نه بل هیڅوک ظاهر نکړے شی

راوهغه ظاهر ول به داوی چه دهٔ لره به واقع کړی. دغه وخت به تحول خبر شی دَ دے نه وړاندې خوځے هسے دَ خودلو دَپاره نه ظاهر وی ځکه چه) دغه به په آسمانونو او زمکه ډیره دَرنه ورځ وی (په دے وجه) دغه به تاسو باندې محض ناخاپه (په بے خبرئ کښے) راپریوځی (دَ دے دَپاره چه هغهٔ لکه څنګه په جسمونو باندې دوی لره په متغیرا وکړی دَځکه کو لوکښے در نه ده دغا شان په زړونو باندې هم دَ دے درونو والی اثر وی، او چه دَ اول نه او خودے شی نو دا خبره به یکښے بیا نه وی، او تپوس هم دَ دوی په معمولی طور باندې نه دے بلکه) دوی ستا نه داسے (په اصرارا ومبالغه سره) تپوس کوی چه لکه ګویا دَ دے تا تحقیق کړے وی (او دَ تحقیق نه پس تهٔ دَ دے نه پوره خبر شوے ئې) تهٔ او وایه چه دَ دے علم (مذکور) خاص دَ الله تعالیٰ سره دے لیکن اکثر خلق (په دے خبره) نهٔ پوهیږی (چه بعض علمونه الله تعالیٰ دَ خپلو غیبو په خزانو دَ علم کښے پټ ایخو دی دی، پیغمبرانو ته ئے هم په تفصیل سره اطلاع نه ده ورکړے پس دَ دے په علم نه لرلو سره دوی دا ګنړی چه دے معاذالله نبی نه دے داسے چه دا علم دَ نبوت سره لازم دے او کله چه لازم نیشتے نو ملزوم هم نیشته حالانکه اول مقدمه محض غلط ده) .

# مَعلومَات او مَسئلے

دَ دے نه په وړاندې آیاتونو کښے دَ کفارو او منکرانو دَ ضد او ناړاضی او په ښکاره آیاتونو دَ قدرت دَ ایمان نه راوړو ذکر وُه دا مضمون دَ نبی کریم صلے الله علیه وسلم دَپاره دَ اُمت او عام مخلوق سره دَ ډیر شفقت او رحمت په بنا باندې دَ ډیر غم او خفګان سبب کیدے شو. په دے وجه دَ ذکر شوُو دریوُو آیاتونو نه په اوّلنی آیت کښے دوئ ته دَ تسلیٔ دَپاره ارشاد فرمائی چه :

"چا لره الله تعالیٰ ګمراه کړی هغهٔ لره هیڅوک نه شی په لاره کولے او الله تعالیٰ داسے خلقو لره په ګمراهئ کښے سرګردانه پاتے کوی"

مطلب دا دے چه دَ دے خلقو په ناړاضئ او دَ حق نه په مخ اړولو او نه قبلولو تهٔ خفه کیږه مهٔ. ځکه چه ستا منصبی فرض دومره دَے چه حقه خبره

صافه صافه په اثرناک انداز کښې اُورسوے او هغهٔ تا پوره کړه - ستا ذمواري
ختمه شوه، او س دچا مَنَل یا نهٔ منل دا یو تقدیری کار دے چه په دے کښې
ستا دخل نیشتے، بیا تهٔ غمګین وَلے یې -

د دے سورت په مضامینو کښې ورے مضامین ډیر اهم دی توحید رسالت
آخرت - او دا درے څیزونه د ایمان او اسلام اصل بنیادونه دی، په دے
کښې د توحید او رسالت مضمون په تیرو آیاتونو کښې په تفصیل سره راغلے دے
د ذکر شوو آیاتونو آخری دوه آیاتونه د مضمون د آخرت او قیامت په
بیان کښې دی، چه د دوی د نزول یو خاص واقعه ده - کومه چه د تفسیر
امام ابن جریر او عبد بن حُمید په روایت د قتاده نقل کړے ده چه د
مکے قریشو د نبی کریم صلے الله علیه وسلم نه په طور د تو تو او مسخرو تپوس
اوکړو چه تهٔ د قیامت د راتلو خبرونه ورکوے او خلق ترینه وے کړه تهٔ
رشتونے یې نو تیک وخت اُوښایه چه قیامت به په کوم کال او کوم تاریخ
بانډ راځی، چه مونږ د دے د راتلونه اول څهٔ تیارے اوکړو. زمونږ او
ستا په مینځ کښې چه کوم د رشته دارئ تعلّقات دی د هغو تقاضه داده چه
که تهٔ په عام طور سره خلقو ته خو دل نه غواړے نو کم نه کم مونږ ته خو
ئے اُوښایه، په دے بانډ دا آیت نازل شو:

یَسْئَلُوْنَکَ عَنِ السَّاعَةِ الآیة ،

په دے کښې لفظ د السّاعة: په عربی لغت کښې لږ دے شان زمانے ته وئیلے
شی چه خاص حد ئے د لغت په اعتبار سره نیشتے، او د نجومیانو په اصطلاح
کښې د شپے او ورځے په څلیریشتو حصّو کښې د یوے حصّے نوم: ساعة: دے
چه په اردو کښے ورته گهنټه وئیلے شی - او د قرآن کریم په اصطلاح کښې دا
لفظ هغې ورځے ته وئیلے شی کومه چه به د ټول مخلوقات د مرګ ورځ وی
او هغې ورځے ته هم یکومه کښے چه ټول مخلوقات دوباره ژوندی شی د
رب العٰلمین په دربار کښې حاضر شی -

د اَیَّانَ: معنیٰ کله او د: مُرْسٰی: معنی د اُودریدو او قائمید و ده -
لَا یُجَلِّیْهَا: د تجلیه نه مشتق دے چه معنیٰ ئے ده پرانستل او ظاهر وَل -

د: بَغۡتَةً: معنیٰ ناڅاپه ، د: حَفِيٌّ معنیٰ حضرت عبد الله بن عباس رضی د عالم او باخبر بیان کړے ده ، او په اصل کښے هغه سړی ته حفی وئیلے شی کوم چه په سوالاتو کولو سره د یوے معاملے پوره تحقیق اوکړی -

مطلب د ایت دا دے چه دا خلق ستاسو نه د قیامت په باره کښے سوال کوی چه دغه به کله راځی، ته دوی ته او وایه چه د دے د تعین صحیح علم صرف زما د رب سره دے نه د ورا نړ نه بل چا ته معلوم دے ، او عین په وخت باندے به هم اول چا ته معلوم نه وی کله چه مقرر وخت راشی نو یخپله به الله تعالیٰ دۀ لره ظاهر کړی هیڅ واسطه به په درمیان کښے نه وی - دا حادثه د قیامت به اسمانونو او زمکه باندے ډیره درنه واقعه به وی چه دی به ټکړے ټکړے شی وابه لوَزي - په دے وجه د حکمت تقاضا داده چه دا سے سخته واقعه د وړاندے نه ظاهر نه کړی ، ورنه د یقین کوونکو ژوند به تریخ شی او منکرانو ته به زیاته د ټوقو او مسخرو موقع ملاو شی، په دے وجه ئے او فرمائیل چه : لَا تَأۡتِيكُمۡ إِلَّا بَغۡتَةً : یعنی قیامت به تاسو ته ناڅاپه راځی -

د بخاری او مسلم په حدیث کښے په روایت د حضرت ابو هریره رض نقل دی چه نبی کریم صلے الله علیه وسلم د قیامت د ناڅاپه راتلو متعلق دا بیان فرمائیلے دے چه خلق به په خپل کاروبار کښے مشغول وی یو سړی به کاهک ته د خرڅولو د پاره د کپړے تان سپړ دے وی او دوی به لا معامله نه وی ختمه کړی چه قیامت به قائم شی، یو سړے به خپلے اوښے ته د لوشلو د پاره ورغلے وی او لا کا به ئے نه وی کړے چه قیامت به قائم شی ، یو سړے به د خپل حوض مرمت کوی او لا فارغ شوے به نه وی چه قیامت به قائم شی، یو سړے به د خوراک نمړئ خولے ته اوچته کړی او لا خولے ته کړے به ئے نه وی چه قیامت به قائم شی (روح المعانی)

مقصد د دے دا دے چه لکه څنګه د سړی شخصی مرګ تاریخ او وخت په پټه ساتلو کښے لوئے حکمتونه دی د غه شان قیامت چه د ټول عالم اجتماعی مرګ دے دے لره هم په پټه ساتلو کښے لوئے حکمتونه دی - اول خو داده چه د یقین کوونکو د پاره به په دے صورت کښے ژوند ګران او د دُنیا کارونه مشکل شی او منکرانو ته به د اوکړی میعاد په اوریدو باندے د ټوقو او مسخرو د پاره بهانه ملاو شی

او د دوی په سرکشئ کښې به نوره اضافه اوشی -
په دے وجه د حکمت په تقاضا سره د دے تاریخ ئے پټ اوساتلو چه خلق د دے د هیبت ناکو واقعاتو نه همیشه په یره کښې وی - او دا یره انسان لره د جرمونه د بیرته ساتلو د ټولو نه زیات اثرناک علاج دے - په دے وجه په دے "یا تونوسره ئے دا خوده نه اوکړه چه هر کله دا یقینی خبره ده چه قیامت به یوه ورځ راځی او د رب العلمین په وړاندې به د ټولو پیشی وی د دوی د ټول عمر د لوئے واړه، ښه بد ټولو عملونو جائزه به اخستے شی - چه د دے په نتیجه کښې به یا د جنت دا ندازے نه باهر او لازوال نعمتو نه ملا ویګی او یا به معاذ الله د جهنم هغه سخت عذاب وی د کوم چه په تصور سره ترخیې اوبه کیږی - نو بیا یو هوښیار لره داسے کول نه دی پکار چه د عمل د فرصت وخت لره په دے بحثو نو کښې ضائع کړی چه دا واقعه به کله او په کوم سن او په کوم تاریخ وی - بلکه د عقل تقاضا دا ده چه د عمر فرصت لره غنیمت اوګنړی د هغې ورځې د پاره په تیاری کښې مشغول شی - د رب العلمین د احکامو د خلاف ورزئ نه داسے اویریږی لکه د اور نه چه هر یو انسان یریږی -

د آیت په آخر کښې بیا د دے خلقو سوال دوباره کوی فرمائی: -
: يَسْئَلُوْنَكَ كَاَنَّكَ حَفِيٌّ عَنْهَا : اول سوال خو د دے خبرے متعلق وه چه هر کله داسے آهمه واقعه کیدونکے ده نو مونږ ته د دے پوره پوره صحیح تاریخ او وخت. علم پکار دے - چه د دے جواب ورکړے شو چه دا سوال د بے عقلئ او بے وقوفئ نه پیدا شوے دے د عقل تقاضا خو دا ده چه د دے د مقرر وخت نه هیڅوک خبر نه شی چه هر یو عمل کوونکے هر وخت د آخرت د عذاب نه ویریګی نیک عمل اختیار د لو او بد و عملونو نه د بیرته اوسیدو کار ته پوره توجه ورکړی -
او د دے دویم سوال منشاء د دغو خلقو دا ګنړل دی چه نبی کریم صلے الله علیه وسلم ته خامخا د قیامت صحیح تاریخ او وخت معلوم دے او دوی د الله تعالیٰ نه تحقیق کړے دے د دے علم ئے خامخا حاصل کړے دے

مگر دوی ئے پہ هیڅ وجه سره نه بنائی، په دے وجه د نبیانو لئ او رشته داری واسطئے ورته وړاندې کړه او سوال ئے ترا وکړو چه مونږ ته د قیامت پوره پته او ښایه، د دے سوال په جواب کښے ارشاد اوشو :-

قُلْ اِنَّمَا عِلْمُهَا عِنْدَ اللّٰهِ وَلٰكِنَّ اَكْثَرَ النَّاسِ لَا يَعْلَمُوْنَ :

یعنی ته خلقو ته اوښایه چه حقیقت دا دے چه د قیامت د صحیح تاریخ سوا د الله جل شانهٔ هیڅ فرښتے یا نبی ته هم علم نیشته لیکن ډیر خلق د دے حقیقت نه ناخبره دی چه ډیر علمونه الله تعالی جل شانهٔ صرف د خپل ځان د پاره محفوظ ایږدی د کوم چه هیڅ فرښتے یا نبی ته هم پته نه وی، خلق د خپل جهالت نه دا گنړی چه د قیامت د تاریخ علم د نبوت او رسالت د پاره لازمی دے او بیا د دے دا نتیجه را اوباسی چه هرکله نبی کریم صلے الله علیه وسلم ته د دے پوره علم نیشته نو دا علامت د دے دے چه معاذالله دوی نبی نه دی. مگر برہ معلومه شوه چه دا خیال د سره غلط دے -

لنډه دا چه دا سے سوالات کوونکی ډیر بے وقوفه او بے خبره دی نهٔ دوی ته د مسئلے حقیقت معلوم دے نهٔ د دے حکمت او نهٔ د سوال کولو طریقه -

هاں نبی کریم صلے الله علیه وسلم ته د قیامت د ځنو نښنو علم ورکړے شوے وه او دا چه هغهٔ اوس نز دے دے، دے لره نبی کریم صلے الله علیه وسلم په ډیر صحیح احادیثو کښے په واضح طور سره بیان کړی دی - ارشاد فرمائی چه ځما راتلل او قیامت دواړه داسے نزدے دی لکه د لاس دوه گوتے (ترمذی)

او په بعضو اسلامی کتابونو کښے چه ئے د دُنیا عمر اُوۂ زره کلونه خودلے دے دا څهٔ د نبی کریم صلے الله علیه وسلم حدیث نه دے، بلکه د اسرائیلی روایتونو نه را اخستے شوے مضمون دے -

د طبقات الارض عالمانو چه کوم د نوی تحقیقاتو نه د دُنیا عمر په لاکونو کلونه خودلے دے دا نهٔ د څهٔ قرآنی ایت سره ټکر خوری

اونه د خه حدیث سره - په اسلامي روایتو نو کښې داسې کچه او بې سنده خبرې داخلې لو مقصد شاید د اسلام خلاف بدګماني پیدا کول وي - د کوموترديد چه پخپله په صحیح احادیثو کښې موجود دے، په یو صحیح حدیث کښې پخپله نبي کريم صلے الله علیه وسلم خپل امت ته ارشاد فرمائي چه ستاسو مثال د تیرو امتونو په مقابله کښې داسې دے لکه د تورغوائي په بدن باندې یو سپین ویښته وي، د دے نه هرسړے په بنه شان سره اندازه لګولے شي چه د نبي کريم صلے الله علیه وسلم په نظر کښې د دُنیا عمر څومره او کړ دے چه د هغې اندازه لګول هم ګران دي - په دے وجه حافظ ابن حزم اندلسي فرمائي چه زمونږ عقیده دا ده چه د دنیا د عمر هیڅوک یوه اندازه نه شي لګولے د دے صحیح علم صرف پیدا کوونکي ته دے (مراغي)

---

قُلْ لَّآ اَمْلِكُ لِنَفْسِيْ نَفْعًا وَّلَا ضَرًّا اِلَّا مَا شَآءَ

ته او وایه چه زه مالک نه یم د خپل ځان دپاره د نفع او نه د نقصان مګر کوم چه الله

اللّٰهُ ؕ وَلَوْ كُنْتُ اَعْلَمُ الْغَيْبَ لَاسْتَكْثَرْتُ مِنَ

اوغواړي - او که زه پوهیدے د غیبو په خبره نو ډیرے خیګړے به

الْخَيْرِ ۚ وَمَا مَسَّنِيَ السُّوْٓءُ ۚ اِنْ اَنَا اِلَّا نَذِيْرٌ وَّ

مع

م حاصلے کړے وے - او ما ته به نقصان چرته نه وه رسیدلے - زه خو صرف ډیروه او

بَشِيْرٌ لِّقَوْمٍ يُّؤْمِنُوْنَ ﴿۱۸۸﴾ ع هُوَ الَّذِيْ خَلَقَكُمْ

ع ۲۳ ۱۳

خوشخبري آوروونکے یم ایماندارو خلقو ته - هغه دے چا چه تاسو لره پیدا کړل

مِّنْ نَّفْسٍ وَّاحِدَةٍ وَّجَعَلَ مِنْهَا زَوْجَهَا

د یو نفس نه او وې ډه نه یې جوړه کړه د ده جوړه

لِيَسْكُنَ إِلَيْهَا ۖ فَلَمَّا تَغَشَّاهَا حَمَلَتْ حَمْلًا خَفِيفًا

چه ددے سره آرام اونیسی - بیا کله چه سړی ښځے لره ېته کړه حمل ئے اخیولو سپک حمل

فَمَرَّتْ بِهِ ۖ فَلَمَّا أَثْقَلَت دَّعَوَا اللَّهَ رَبَّهُمَا لَئِنْ

نو گرځید دے ورسره - بیا چه کله دَرُنه شوه نو دواړو وبللو الله خپل رب لره چه که تا

آتَيْتَنَا صَالِحًا لَّنَكُونَنَّ مِنَ الشَّاكِرِينَ ﴿١٨٩﴾ فَلَمَّا

راکړو مونږ ته روغ جوړ نیک نو مونږ به ستا شکر ادا کړو - بیا چه هر کله

آتَاهُمَا صَالِحًا جَعَلَا لَهُ شُرَكَاءَ فِيمَا آتَاهُمَا ۚ فَتَعَالَى

دوی لره ئے ورکړو روغ جوړ نیک نو جوړ ئے کړو هغهٔ لره شریک په دے ورکړی شی کښے - پس الله لوئے

اللَّهُ عَمَّا يُشْرِكُونَ ﴿١٩٠﴾ أَيُشْرِكُونَ مَا لَا يَخْلُقُ شَيْئًا وَ

دے دَ دوی دَ شریک جوړولو نه - آیا شریک جوړوی هغه لره چه نه شی پیدا کولے یو شے هم او

هُمْ يُخْلَقُونَ ﴿١٩١﴾ وَلَا يَسْتَطِيعُونَ لَهُمْ نَصْرًا وَّ

دوی پخپله پیدا شوی دی - او نه دَ دوی مدد کولے شی او

لَا أَنفُسَهُمْ يَنصُرُونَ ﴿١٩٢﴾ وَإِن تَدْعُوهُمْ إِلَى

نه خپل مدد کولے شی - او که تاسو دوی لره را اوبلئ لارے

الْهُدَىٰ لَا يَتَّبِعُوكُمْ ۚ سَوَاءٌ عَلَيْكُمْ أَدَعَوْتُمُوهُمْ

ته نو نه ځی ستاسو په بلنه باندے - برابر ده تاسو لره که دوی لره بلئ

أَمْ أَنتُمْ صَامِتُونَ ﴿١٩٣﴾

او که چپ اوسئ -

# لنډ تفسیر

ته ووایه چه زه په خپله د خپل خاص ذات د پاره (هم لا څه کوے چه د بل د پاره) د څۀ نفع (تکوینی حاصلولو) اختیار نه لرم او نه د څۀ ضرر (تکوینی دفع کولو اختیار لرم) مګر دومره ده چه څومره خدائے تعالیٰ غوښتلی وی (چه ما له ره اختیار را کړی، او به کوم کار کښې چه ئے اختیار نه دے را کړے په دے کښې بعض وخت نفع فوت کیږی او ضرر واقع کیږی یوه مقدمه خو دا شوه) او (بله مقدمه دا ده چه) که ما د غیب خبرے (د اختیاری امورو متعلق) پیژندے نو ما به (د خپل ځان د پاره) ډیرے نفعے حاصلولے او هیڅ ضرر به په ما نه واقع کیدو (ځکه چه د علم غیب په سبب به معلومیده چه فلانے کار یقیناً ځما د پاره نافع دے نو هغه به م اختیارولو او فلانے کار ځما د پاره یقیناً مُضر دے د هغے نه به م ځان ساتلو او اوس چونکه علم غیب نیشتے په دے وجه بعض وخت د نفع مند علم را نه وی چه هغۀ اختیار کړم دغه شان د مضر علم را نه وی چه ځان ترے او ساتم بلکه کله په عکس سره نافع ته مضر او مضر ته نافع وایم - د دلیل حاصل دا شو چه د علم غیب د پاره د نفع او ضرر مالک کیدل لازم وُو، دا مقدمه په ذکر کښې ورستۍ ده، او لازم ئے نیشته او دا مقدمه په ذکر کښې ومبیٔ ده، چه ملزوم یعنی علم غیب نیشته - چه دا مطلوب هم وے - غرض دا دے چه زه د دا سے کارونو علم نه لرم) زه خو محض (شرعی حکمونو نه خایم د ثواب) زیرے ورکوونکے او (د عذاب نه) یره ورکوونکے یم هغو خلقو له کوم چه ایمان لری (لنډه دا چه د نبوّت اصل مقصد د تکوینی کارونو احاطه کول نه دی، په دے وجه د دغے کارونو علم چه په هغے کښې تعین د قیامت هم داخل دے نبی ته ملاویدل ضروری نه دی البته د نبوّت اصل مقصود د شرعی کارونو علم پوهیدل دی پس هغه ما ته حاصل دے) دغه الله دا سے (قادر او منعم) دے چا چه تاسو له د یو تن نه (یعنی آدم علیه السلام نه) پیدا کړی او د دهٔ نه ئے د دهٔ جوړه جوړه کړه (مراد حوّا ده چه کیفیت ئے د سورت نساء د تفسیر په شروع کښې

تیرشوے دے) دَ دے دَ پاره چه هغه دَ دے جوړے سره اُلفت حاصل کړی (پس کله چه هغه خالق هم دے او محسن هم نو عبادت دَ هغهٔ حق دے) بیا روړاندِ دَ دوی اولاد زیات شوا و په دوی کښے هم ښځه خاوند جوړ شو لیکن په دوی کښے دَ بعضو دا حالت شو چه) کله چه خاوند بی بی ته نزدے شو نو دَ دے حمل شو (کوم چه اوّل اول) سپک شان (وَه) پس هغے په دغے لره (په کیني کښے) اغستے (بے تکلیفه) گرځیده راگرځیده بیا چه کله هغه (حامله دَ دے حمل زیاتید ونه) دَرُنه شوه (او دَ دواړو ښځے خاوند یقین اوُ شو چه حمل دے) نو (دغه وخت دوی ته قسم قسم احتمالات او وهمونه شروع شو، لکه چه په بعض حمل کښے خطرے راځی په دے وجه) دواړو ښځے خاوند الله ته چه دَ دوی مالک دے دُعا اوکړه چه که تا مونږ ته صحیح سالم اولاد راکړو نو مونږ به ښهٔ شکر گذاری اوکړو (لکه چه عام عادت دے چه دَ مصیبت په وخت کښے دَ الله تعالیٰ سره لوئے لوئے وعدے کوَلے شی) پس کله چه الله تعالیٰ دے دواړو لره صحیح سالم اولاد ورکړو نو دَ الله تعالیٰ په ورکړی شوی شی کښے دغو دواړو الله تعالیٰ لره شریک مقرر کړو (په مختلف طور سره چا په عقیده سره چه دا اولاد فلانی ژوندی یا مړی راکړے دے، چا په عمل سره چه دَ دهٔ په نوم سره ئے نذرونیاز وَرکړو، یائے بچے بوتلو او تندے ئے ورلره دَ دهٔ په وړاندے اولګاوَه، یا په قول سره چه دَ دهٔ په بندګئ ئے ورلره نوم کیخودو، لکه عبدالشمس یا بندهٔ علی وغیره، یعنی دا حق دَ خدائے وَه چه مُنعم او خالق او قادر او محسن دے او دے لره صرف کړے وَ نورو معبودانو دَ پاره) پس الله تعالیٰ پاک دے دَ دوی دَ شرک نه (تر دے پورے خو دَ الله تعالیٰ صفتونه ذکر وُو، چه دَ دے مقتضیٰ دا دهٔ چه دَ عبادت مستحق هغه دے وړاندِ دَ باطلو خدایانو دَ نقصانونو ذکر دے چه مقتضیٰ ئے دا ده چه دوی دَ عبادت مستحق نه دی پس فرمائی چه) آیا داسے لره دَ الله تعالیٰ سره شریکوئ چه څهٔ شی لره نه شی پیدا کوَلے او (بلکه) دوی پخپله جوړ شوی دی (چنانچه ظاهره ده چه بت پرست پخپله دوی لره تراشی - او دَ څهٔ شی

جوړ ول خو لویه خبره ده) دغه (خو داسے عاجز دی چه د دے نه اسان کار هم نه شي کولے مثلاً) دویته د هیڅ قسم نه مدد رهم) نه شی ورکولے او ر د دے نه زیاته داده چه) دغه خو خپل هم مدد نه شی کولے (که څۀ حاثه دوی ته داپیښه شی مثلاً څوک ئے ما توی) او ر د دے نه هم زیاته واوړئ چه) که تاسو دوی ته د څۀ خبرے د خودلو د پاره آواز کوئ نو ستاسو په وینا نه چلیږی (د دے دوه مطلبه کیدے شی یو دا چه تاسو دوی ته آواز کوئ چه دوی تاسو ته څۀ خبره اوښائی نو ستاسو وینا نۀ شی پوره کولے یعنې نۀ شی خودلے، او دویمه د دے نه زیاته دا چه که تاسو دوی ته آواز کوئ چه را شئ چه مونږ تا ته خودنه اوکړو نو ستاسو په وینا نه شی چلیدے یعنې ستاسو په خودلے شوے خبره باندې عمل نه شی کولے په هر حال) ستاسو په اعتبار سره دواړه کارونه برابر دی خواه که تاسو دوی ته آواز کوئ (خو هم ئے نۀ آوری) او که تاسو چپ پاتے کیږئ (نو بیا خو نۀ آوریدل بنکاره خبره ده، لنډه دا ده چه کوم کار د تولو نه زیات اسان دے چه د څۀ خودنے د پاره آواز کول او آوریدل، نو دوی خو د دے نه عاجز دی نو کوم کار چه د دے نه مشکل دے چه خپل حفاظت اوکړي- او بیا کوم چه د دے نه زیات مشکل چه د نورو امداد کول دی، او بیا کوم د دے ټولو نه چه کوم ډیر سخت دے چه د څۀ شی پیدا کول، نو د دے نه خو په درجۀ اولیٰ زیات عاجزه دی، بیا داسے عاجز محتاج کله د معبود جوړیدو لائق کیدے شی-

# معلومات او مسئلے

په اوّلنی ایت کښے د مشرکانو او عوامو د دے غلطے عقیدے رَد دے کومه چه دے خلقو د پیغمبرانو علیهم السلام په باره کښے قائمه کړے وه چه دوی غیبدان وی د دوی علم د الله تعالیٰ پشان د ټولو کائناتو په ذره ذره حاوی وی- د دے نه دا چه دوی د هر نفع او نقصان مالکان وی چا ته چه غواړی نفع یا نقصان رسولے شی-

او د دے عقیدے په سبب دوی د رسول الله صلی الله علیه وسلم نه د
قیامت د معین تاریخ خود لو مطالبه کوله چه ذکر ئے د دے نه په اول ایت
کښے تیر شوے دے۔

په دے ایت کښے ئے د دوی د دے مشرکانه عقیدے تردید اوکړو او وئے
خود له چه علمِ غیب او د ټولو کائناتو د ذرے ذرے علمِ محیط صرف د
الله جل شانهٔ خاص صفت دے۔ په دے کښے چا مخلوق لره شریک مقرر ول
کول خواه فرښته وی یا نبی او رسول عظیم شرک دے او لوئے ظلم دے
دغه شان د هر یے نفع نقصان مالک والے صرف د الله تعالیٰ خاص صفت دے
په دے کښے چا لره شریک کول هم شرک دے۔ د کوم د ختمولو د پاره
چه قرآنِ کریم نازل شو او نبی کریم صلی الله علیه وسلم مبعوث شو،

قرآن کریم په بے شماره ایاتو نو کښے بار بار دے لره واضحه کړے ده چه
علمِ غیب او علمِ محیط د کوم نه چه یوه ذره هم پټه نه وی دا صرف د
الله تعالیٰ جل شانهٔ خاص صفت دے دغه شان د مطلق قدرت چه هر نفع نقصان
ئے په قبضه کښے وی دا هم خاص صفت دے د الله تعالیٰ جل شانهٔ۔ په دے
صفتونو کښے غیر الله لره شریکول شرک دے۔

په دے ایت کښے نبی کریم صلی الله علیه وسلم ته حکم ورکړے شوے دے
چه ته د دے اعلان اوکړه چه زهٔ د خپل نفس د پاره هم د نفع نقصان
مالک نه یم۔ نو نورو ته د نفع نقصان رسولو څه ذکر دے۔

دغه شان ئے دا هم اعلان اوکړه چه زهٔ په غیبو عالم نه یم چه د هر شی علم
ما د پاره ضروری وی۔ او که ما ته د غیبو علم وے نو ما به د نفع هر یو
شی لره ضرور حاصلولو او هیڅ نفع به ما د لاس نه نه وه فوت شوے
او د هر نقصانی څیز نه به همیشه محفوظ وم، او هیڅ کله به ما ته څهٔ
نقصان نه وو رسیدلے، حال دا دے چه دا دواړه خبرے نیشتے۔ ډیر
کارونه داسے دی چه نبی کریم صلی الله علیه وسلم ئے حاصلول غوښتل
مګر حاصل نه شو، او ډیر تکلیفونه او ضررونه داسے دی د کومو نه چه
نبی کریم صلی الله علیه وسلم د بچکیدو اراده اوکړه مګر هغه تکلیف او ضرر

ورته اُورسیدو۔ د حدیبیې د غزا په موقع باندې دوی د صحابه کرامو سره احرام اُوتړلو د عمرې اراده ئې اوکړه د حرم حد ونو ته اُورسیدل مګر حرم ته داخله او د عمرې ادائیګی دغه وخت اُونه شوه۔ ټولو احرام مات کړو اوواپس شو۔

دغه شان د اُحد په غزا کښې نبي کریم صلی الله علیه وسلم ته زخم اُورسیدو او مسلمانانو عارضي شکست اوخوړ، دغه شان نور ډیر واقعات دي چه د نبي کریم صلی الله علیه وسلم په ژوند کښې معلوم او مشهور دي۔

شاید د داسې واقعاتو د ظاهرولو مقصد هم داوي چه خلقو ته عملاً داخبره واضحه کړې شي چه انبیاء علیهم السلام اګر چه د الله تعالیٰ په نزد د ټول مخلوق نه زیات غوره او مقبول دي مګر هغوی بیا هم د خدائي علم او قدرت مالکان نه دي، چه هسې نه خلق په دې غلط فهمئ کښې اخته نه شي لکه څنګه چه عیسایان او نصرانیان اخته شوي دي۔ چه خپلو رسولانو لره ئې د خدائي مالکان ګنړلي دي او په شرک کښې اخته شوي دي۔

دې آیت داهم واضحه کړه چه انبیاء علیهم السلام نه قادرِ مطلق وي نه عالم الغیب، بلکه دوی ته د علم او قدرت دومره حصه حاصلیږي څومره چه د الله تعالیٰ د طرف نه دوی ته ورکولې شي۔

هاں په دې کښې شک او شبه نیشته چه کومه حصه د علم دوی ته ورکولې شي هغه د ټول مخلوقات نه زیاته وي او خاص بیا زمونږ نبي کریم صلی الله علیه وسلم ته د اولینو او اخرینو علم ورکړې شوې وه۔ یعنې ټولو انبیاؤ علیهم السلام ته چه څومره علم ورکړې شوې وه هغه ټول او د دې نه زیات نورهم دوی ته ورکړې شوې وه، او د دې ورکړي شوي علم مطابق دوی د زرګونو غیبو د خبرو خبر ورنه ورکړي دي۔ چه رښتونوالې ئې هرخاص وعام لیدلې دې۔ په دې وجه داخو ویلې شي چه نبي کریم صلی الله علیه وسلم ته د زرګونو لاکونو غیبو د خبرو علم ورکړې شوې وه، خو دې ته په اصطلاح د قرآن کښې علمِ غیب نه شي ویلې او په دې وجه نبي کریم صلی الله علیه وسلم ته عالم الغیب نه شي ویلې۔

دا ایت په اخر کښې ارشاد فرمائي: اِنْ اَنَا اِلَّا نَذِيْرٌ وَّ بَشِيْرٌ لِّقَوْمٍ يُّؤْمِنُوْنَ: يعني نبي کریم صلی الله علیه وسلم دِ　داهم اعلان اوکړي چه زما منصبي فرض دا دی چه خه بد کاروته دَ عذاب ویره ورکړم او نیکو خلقوته دَ لوئې ثواب خوشخبري ورکړم -

په دویم ایت کښې دَ توحید دَ عقیدې ذکر وو کومه چه دَ اسلام دَ ټولو بنیادي لویه عقیده ده، او دَ دې سره دَ شرک دَ باطل والي بیان څه قدرې په تفصیل سره راغلې دے -

دَ ایت په شروع کښې الله تعالی دَ خپل کامل قدرت یَو نښنه دَ حضرت ادم او حوا علیهما السلام دَ پیدائیش دا سې بیان کړې ده: هُوَ الَّذِيْ خَلَقَكُمْ مِّنْ نَّفْسٍ وَّاحِدَةٍ وَّ جَعَلَ مِنْهَا زَوْجَهَا لِيَسْكُنَ اِلَيْهَا: یعني دَ الله تعالی شان دا دے چا چه ټولو بني ادمو لره دَ یو ذات ادم نه پیدا کړل، او دَ ده نه ئې دَ ده بي بي حضرت حوا پیدا کړه　دَ دې مقصد دا وُه چه حضرت ادم ته دَ خپل هم جنس او همدم په ذریعه سکون حاصل شي -

دَ الله تعالی دَ دې عجیبه کاریګرئ تقاضا دا وه چه ټول اولاد دَ ادم همیشه دَ ده شکر کڼ اروی ، او چا مخلوق لره ئې دَ ده سره دَ ده په کاملو صفتونو کښې نه شریکول ، مګر غفلت کوونکی انسان دَ دے نه معامله په خلاف اوکړه چه بیان ئې دَ دے ایت په دویمه جمله او روستو یل ایت کښې دا سې فرمائي :-

فَلَمَّا تَغَشّٰهَا حَمَلَتْ حَمْلًا خَفِيْفًا فَمَرَّتْ بِهٖ ۚ فَلَمَّآ اَثْقَلَتْ دَّعَوَا اللّٰهَ رَبَّهُمَا لَئِنْ اٰتَيْتَنَا صَالِحًا لَّنَكُوْنَنَّ مِنَ الشّٰكِرِيْنَ ۝ فَلَمَّآ اٰتٰهُمَا صَالِحًا جَعَلَا لَهٗ شُرَكَآءَ فِيْمَآ اٰتٰهُمَا ۚ فَتَعٰلَى اللّٰهُ عَمَّا يُشْرِكُوْنَ ۝

یعني دَ ادم اولاد دَ خپل غفلت او ناشکرئ په وجه په دے معامله کښې دا سې کار اوکړو چه کله دَ نرا و مادے په خلط کید وسره حمل شه نو په شروع شروع کښې چه حمل درون نه وُه بنځه به په ازادئ سره ګرځیده راګرځیده ، بیا چه کله الله تعالی پخپل کامل قدرت سره په دریو تیرو د ننه دَ دغ حمل تربیت اوکړو دے ئې لوئې کړو او پېټې ئې محسوس شو نو اوس مورو پلار په فکر کښې شو او دا ویره پیدا شوه چه دَ دے

حمل نه به ځنګه اولاد پيدا کيږي، ځکه چه بعض وخت د انسان د کيډه ے نه عجيبه عجيبه قسم مخلوق هم پيدا کيږي، او بعض وخت په بدن نا قِصه بچے هم پيدا کيږي، ړوند، يا کونړ، يا چاړا، يا په لاسو خپو معذور. د دے ډيرے په وجه مور و پلار دا دُعا کانړ کوَلے چه يا الله موږ ته صحيح سالم بچے را کړے، که صحيح سالم بچے پيدا شو نو موږ به شکر گذار شو۔

ليکن هر کله چه الله تعالیٰ د دوی دُعا کانړ واوريدے او صحيح سالم بچے ئے ورکړو نو اوس د شکر گزارئ په ځائے په شرک کښے اخته شو۔ او دا اولاد د دوی په شرک کښے د اخته کيدو سبب جوړ شو چه د دے مختلف صورتو نه کيدے شي کله خو عقيده فاسده شي داسے گنړي چه دا ځوئے چا ولي يا بزرگ را کړے دے کله داسے وي چه عملاً دے بچي لره د چا ژوندي يا مړ بزرگ طرف ته منسوب کړي او د دهٔ په نوم نذرونياز ورکوي، يا بچے بوزي او هغهٔ ته ئے سر په ز مکه کړي، او کله د بچي په نوم ايخودو کښے مشرکانه انداز اختيار وي، عبد اللات، عبد العزٰى، يا عبد الشمس يا بندهٔ علي وغيره نوموَنه ورلره کړي چه په دے سره داسے گنړلے شي چه دا بچے د الله تعالیٰ په ځائے د دے بتانو يا بزرګانو پيدا کړے شوے دے۔ دا ټولے مشرکانه عقيدے او عملونه دي کوم چه د الله تعالیٰ د نعمت په مقابله کښے د شکر په ځائے د ناشکرئ مختلف صورتونه دي۔

د دريم ايت په اٰخر کښے د دے خلقو د بے لارے کيدو او گُمراه کيدو وبنکاره کولو د پاره فرمائي: فَتَعٰلَى اللّٰهُ عَمَّا يُشۡرِكُوۡنَ: يعني پاک دے الله تعالیٰ د دے شرک نه کوم چه دے خلقو اختيار کړے دے

د ذکر شوُو اٰياتونو د دے تفسير نه دا خبره واضحه شوه چه د دے اٰيت په اوّل جمله کښے ئے د حضرت آدم او حوآء ذکرا و کړو د آدم اولاد ته ئے د دي د تابعدارئ او شکر گزاري تعليم ورکړے دے، او په اٰخري جملو کښے ورستو راتلوُنکي د اولاد د آدم د گمراهئ او گُمراه کيدو بيان شوے دے چه دوی په ځائے د شکر گزارئ شرک اختيار کړو۔

د دے نه معلومه شوه چه د شرک اختيارولو نکو د معاملے تعلق د حضرت

آدم او حواء علیهما السلام سره مطلق نیشتے، دَ کوم په سبب چه دَ حضرت آدم په پاک دامنئ باندِ شبهه راځی - بلکه دَ دے تعلق دَ ورو ستورا تلونکی نسل دَ عمل سره دے، او دا تفسیر کوم چه مونږ اختیار کړے دے په تفسیر دُرِ منثور کښے په روایت دَ ابن المنذر او ابن ابی حاتم دَ قرآن دَ تفسیر کوونکی حضرت عبد الله ابن عباسؓ نه نقل دے -

دَ ترمذی او حاکم په روایتونو کښے چه یو قصه دَ حضرت آدم علیه السلام او حواءؓ او دَ شیطان دَ فریب ورکولو ذکر دے ته بعضِ اسرائیلی روایت وائی او نا قابلِ اعتماد ئے گنړی - لیکن ډیرو محدثینو دَ دے توثیق هم کړے دے نو که دغه قصے لره په دے ذکر شوی تفسیر باندِ صحیح هم اُومنلے شی نو بیا هم دَ آیت په تفسیر کښے څه اشکال او شبهه باقی نه پاتے کیږی -

دَ دے ایت نه څو احکام او فائدے حاصلے شوے :-

اوّل دا چه الله تعالیٰ دَ ښځے او سړی جوړه همجنس جوړه کړه چه طبعی موافقت او پوره اُلفت ئے دَ یو بل سره حاصل شی او دَ ښځے خاوند زوند په کوم کښے چه دَ دُنیا دَ آبادئ فائدے دی هغه په پوره طور سره سرانجام شی -

دویم دا چه دَ ښځے خاوند په ژوند کښے چه څومره حقونه او ذمواری په دواړو ښځه خاوند پریوځی، دَ دے ټولو نچوړ او اصل مقصد سکون دے - دَ دُنیا په نوی معاشرت او نوؤ رسمونو کښے چه کوم څیزونه سکون برباد وونکی دی - دغه دَ ښځے خاوند دَ تعلق تو بنیادی دشمنان دی - او ننن په مهذب دُنیا کښے کوم چه کورنئ ژوند تریخ بنکاری او هر خلور طرفته دَ طلاقونو بزمار دے - دَ دے دَ ټولو نه لوئے سبب دا دے چه په معاشرت کښے دا سے څیزونه غوره گنړلے شوی دی کوم چه دَ کورنئ ژوند سکون لره سراسر بربادوونکی دی - دَ ښځے دَ ازادئ په نوم چه دَ بے پردگئ او بے حیائئ کوم طوفان په دنیا باندِ خوریږی دے لره دَ کورنئ سکون په بربادولو کښے لوئے دخل دے - او تجربه گواه ده چه څومره څومره

بے پردگئی او بے حیائی په بنځو کښے زیاتیګی په دے رفتار سره کور نی ژوند سکون او اطمینان ختمیګی۔

دریم داچه د بچو داسے نومونه ایخودل د کوم نه چه مشرکانه مطلب اغستے شی، خواه که د نوم ایخودونکو نیت دانړوی خو بیا هم د مشرکانه رسم په سبب لوئے ګناه دے۔ لکه عبدالشمس، عبدالعزٰی وغیره نوم ایخودل شو۔

څلورم داچه د بچو په نوم ایخودو کښے هم د شکوادا کولو طریقه داده چه د دوی نومونه د الله او د رسول په نومونو پورے کیخودے شی۔ په دے وجه نبی کریم صلے الله علیه وسلم عبدالرحمان، عبدالله وغیره نومونه ډیر زیات خوښ کړی دی۔

افسوس دے چه نن په مسلمانانو کښے دا معمولی پاتے اسلامی رسم هم ختمیږی، اول خو نوم غیر اسلامی ایخودے شی۔ او که چه مور و پلار اسلامی نوم کیږدی هم نو هغه د انګریزئ مخففو حروفو ته واړول شی ختم کړے شی۔ په سیرت او صورت سره خو د چا مسلمان ګڼړل د اول نه ګران شوی وُو او د نومونو دے طرز د اسلام اخری نښنه هم رخصت کړه۔ الله تعالیٰ دِ موږ لره د دین پوهه او د اسلام سره محبت را کړی۔ امین۔

| اِنَّ الَّذِيْنَ تَدْعُوْنَ مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ عِبَادٌ |
|---|
| کوم لره چه تاسو بلئ د الله نه سوا هغهٔ بندګان دی |
| اَمْثَالُكُمْ فَادْعُوْهُمْ فَلْيَسْتَجِيْبُوْا لَكُمْ |
| ستاسو په شان۔ پس او بلئ دوی لره پس پکار دی چه دوی قبول کړی بلنه ستاسو |
| اِنْ كُنْتُمْ صٰدِقِيْنَ ﴿۱۹۴﴾ اَلَهُمْ اَرْجُلٌ |
| که تاسو رشتونی یئ۔ آیا د دوی ښپے شته |

يَّمْشُوْنَ بِهَآ ۡ اَمْ لَهُمْ اَيْدٍ يَّبْطِشُوْنَ بِهَآ ۡ

پکو موچه ځي - یا د دوی لاسونه دي پرکو موچه نیسي -

اَمْ لَهُمْ اَعْيُنٌ يُّبْصِرُوْنَ بِهَآ ۡ اَمْ لَهُمْ

یا د دوی سترګے دي پرکومو چه وینی - یا د دوی

اٰذَانٌ يَّسْمَعُوْنَ بِهَا ؕ قُلِ ادْعُوْا شُرَكَآءَكُمْ

غوږونه دي پکو موچه آوري - ته اُووایه چه را اوبلئ خپلو شریکانو لره

ثُمَّ كِيْدُوْنِ فَلَا تُنْظِرُوْنِ ﴿۱۹۵﴾ اِنَّ وَلِـۧیَ اللّٰهُ

بیا بدئ اوکړئ ځما په حق کښے او ما ته مهلت مه راکوئ - ځما حمایت کوونکے الله دے

الَّذِيْ نَزَّلَ الْكِتٰبَ ۖ وَهُوَ يَتَوَلَّى الصّٰلِحِيْنَ ﴿۱۹۶﴾

کوم چه نازل کړے دے کتاب - او هغه حمایت کوی د نیکو بندګانو -

وَالَّذِيْنَ تَدْعُوْنَ مِنْ دُوْنِهٖ لَا يَسْتَطِيْعُوْنَ

او چا لره چه تاسو بلئ د هغه نه سوا هغه نه شي کولے

نَصْرَكُمْ وَلَآ اَنْفُسَهُمْ يَنْصُرُوْنَ ﴿۱۹۷﴾ وَاِنْ

ستاسو مدد - او نه خپل ځان هیڅ کولے شي - او که تاسو

تَدْعُوْهُمْ اِلَى الْهُدٰى لَا يَسْمَعُوْا ؕ وَتَرٰىهُمْ

دوی لره اوبلئ لارے ته نو هیڅ نه آوري - او ته وینے دوی لره

يَنْظُرُوْنَ اِلَيْكَ وَهُمْ لَا يُبْصِرُوْنَ ﴿۱۹۸﴾

چه تا ته ګوري خو دوی هیڅ نه وینی -

# لنډ تفسير

وغرض) واقعي تاسو چه خدائے پاتے کوئے او د کومو عبادت چه کوئے دغه هم ستاسو پشان (د الله تعالیٰ مملوک) بندګان دي (یعنے ستاسو نه زیات نه دي خواه که کټ شوی وی) پس (مونږ خو به تاسو لره رشتونی هله اوګڼو چه تاسو (خو) دوی لره را اوبلئ (او) بیا دوی لره پکار دی چه ستاسو خبره اومنی که تاسو (د دوی په عقیده د خدائی کیښے) رشتونی یئ (او دغه عاجزان خو ستاسو وینا منل لا څه کوے د خبرے منلو آلات هم دوی ته نصیب نه دي اوګورئ) آیا د دوی خپے شته په کومو چه دوی ځي یا د دوی لاسونه شته په کومو چه څه شي لره اونیسی، یا د دوی سترګے شته په کومو چه دوی اووینی، یا د دوی غوږګونه شته پکومو چه دوی واوری (نو هرکله چه په دوی کښے د کار طاقتونه نیشته نو څه کار به ترے څنګه صادر شی او) ته (ردا هم) اووایه چه (څنګه دوی خپلو عقید تمندو ته د نفع رسولو نه عاجزه دي دغه شان خپلو مخالفو ته ضرر هم نه شی رسولے، لکه چه تاسو وایئ چه زمونږ د بتانو بے ادبي مه کوئ ورنه دوی به په تاسو څه آفت نازل کړی راویستلے دے دے لره په لباب کښے د عبد الرزاق نه د دے قول د الله تعالیٰ لاند : وَيُخَوِّفُونَكَ بِالَّذِينَ مِن دُونِهِ : او که تاسو اګنړئ چه دغه ماته ضرر رسولے شی نو) تاسو (خپل ارمان اوباسئ او) خپلو ټولو شریکانو لره رااوبلئ بیا (ټول یو شئ) ماته د ضرر رسولو تدبیر اوکړئ بیا (کله چه تدبیر برابر کړئ نو) ماته یوه ذره مهلت مه راکوئ (بلکه فورًا ئے اوکړئ ګورو چه څه کیږی او ورے به اوشی ځکه چه دغه شریکان خو محض مهمل څیزونه شو تاسو که څه لا سونه چپے وهئ خو تاسو ځما څکه څه نه شئ کولے چه) یقینًا ځما مدد ګار د الله تعالیٰ دے (د) کوم (چه د مدد ګارئ ښکاره ثبوت دا دے) چه (ځغه په ما باندِ) دا کتاب (مبارک د دواړو جهانو د خیر جمع کونکے) نازل کړو (او که ځما مدد ګار او ملګرے نه وے نو دومره لوئے نعمت به ئے ولے راکولو) او (د دے خاص دلیل نه علاوه په یوه عامه قاعده سره هم د ځغه

مددګاري معلومه ده، هغه قاعده داده چه) هغه (په عام طور سره) د نیکو بندګانو
مددګوي (او انبیاء خو په دغو نیکو بندګانو کښې کامل افراد دي او زهٔ بهٔ یم نو ځما به هم
ځامخا مددګار وي، غرض دا چه تاسو د چا د ضرر نه یا ویرېږئ هغه عاجزان دي، او کوم
چه ما د ضرر نه بچ کوي هغه قادر دے، بیا یره د څهٔ ده) او د ګو یا د دوي عاجزي
بره په بلیغ انداز کښې بیان شوه لیکن هلته دا بیان وه چه دوي غیر ته څهٔ نفع یا
نقصان نهٔ شي رسولے او مقصود دا خبره داده چه دوي مستحق د عبادت نهٔ دي په
دے وجه وړاندې بیان د عجز مقصودًا بیانوي چه) تاسو چه خدائے پاتے کوئ
او د چا بل کوم عبادت کوئ هغوي رستاسو د دشمن په مقابله کښې لکه چه زهٔ یم)
مدد نه شي کولے ستاسو او نه (د خپل دشمن په مقابله کښې لکه چه زهٔ یم) خپل مدد
کولے شي او رمن د کول خو لویه خبره ده) دوي ته (خو) که څوک د خبرے
خودلو د پاره اواز او کړي نو هغې لره (خو هم) نه آوري (د دے هم دغه بره
ذکر شوے دواړه معنے کیدے شي) او (لکه څنګه چه د دوي سره د آؤریدو
الهٔ نیشتے دغه شان ورسره د لید واله هم نیشتے، او د دوي په تصویرونو
کښې چه کومے سترګے جوړې ولے شي هغه محض د نوم وي د کار نه وي چنانچه)
دغو (بتانو) لره ته وینے چه ګو یا دوي تا ته ګوري (ځکه چه شکل خو د سترګو
پشان جوړ دے) او هغوي (په واقع کښې) هیڅ هم نه ویني (ځکه چه په حقیقت
کښې دغه سترګے نه دي. دغه شان نور ځپے او لاسونه ئے هم د کار نه دي نو پس د
واسے عاجزانو نه څهٔ ویرېدل کوئ؟ -

# معلومات او مسئلے

: إِنَّ وَلِيِّۦَ اللَّهُ الَّذِي نَزَّلَ الْكِتَٰبَ ۖ وَهُوَ يَتَوَلَّى الصَّٰلِحِينَ: دلته د ولي معنی ده
محافظ او مددګار، او د: کِتَاب: نه مراد قرآن او د: صالحین: نه مراد په قول
د ابن عباس هغه خلق دي کوم چه د الله تعالی سره چا لره نه برابروي په دې کښې
د انبیاء علیهم السلام نه واخله تر عامو نیکو مسلمانانو پورے قول داخل دي -
او معنی د ایت داده چه ځما ستاسو په مخالفت څکه پرواه نیشته چه ځما محافظ
او مددګار الله تعالی دے چا چه په ما قرآن نازل کړے دے -

دلته ئې د الله تعالىٰ په دې دوو صفتونو کښې د قرآن نازلول په خصوصيت سره ځکه ذکر کړل - چه تاسو کوم ځما په مخالفت او دشمنۍ باندې آماده يئ د دې وجه د قرآن تعليم او دعوت دې کوم چه زهٔ تاسو ته درکوم، نو چا چه په ما دا قرآن نازل کړې دې هغه ځما مددګار او محافظ دے په دې وجه ځما سره په وَلې فکر وى؟

د دې نه پس په آخرى جمله کښې ئې عامه ضابطه او خوده چه د انبياؤ عليهم السلام خو لوئې شان دے د عامو صالحانو او نيکانو مسلمانانو هم الله تعالىٰ وَلى او کفيل دے، د دوى مدد کوى په دې وجه دوى ته د څهٔ دُشمن د مخالفت او دُشمنۍ ضرر نه شى رسيدے - اکثر اوقات خو په دنيا کښې په دوى باندې غالب کولے شى، او که څهٔ وخت په تقاضا د حکمت غالب هم نه شى نو بيا هم د دوى په اصل مقصد کښې څهٔ خلل نه پريوځى، دوى په ظاهر کښې د ناکامه کيد وسره د اصل مقصد په لحاظ کامياب وى - ځکه چه د مؤمن صالح اصل مقصد په هر کار کښې د الله تعالىٰ راضى کول او د هغهٔ حکم منل وى - که دے په دنيا کښې په څهٔ وجه سره ناکامه هم شى خو د الله تعالىٰ د رضا اصل مقصد بيا هم دهٔ ته حاصل وى او دے کامياب وى - والله تعالىٰ اعلم بالصواب -

---

خُذِ الْعَفْوَ وَأْمُرْ بِالْعُرْفِ وَأَعْرِضْ عَنِ الْجٰهِلِيْنَ ﴿۱۹۹﴾

درګذر عادت کړه او حکم کوه د نيک کار او ډډه کوه د جاهلانو نه -

وَإِمَّا يَنْزَغَنَّكَ مِنَ الشَّيْطٰنِ نَزْغٌ فَاسْتَعِذْ

او که راڅوړ وى تا لره د شيطان چيړل نو پناه غواړه

بِاللّٰهِ ۭ اِنَّهٗ سَمِيْعٌ عَلِيْمٌ ﴿۲۰۰﴾ اِنَّ الَّذِيْنَ اتَّقَوْا

د الله نه - هغهٔ دے آوريدونکے پوهه - د چا په زړهٔ کښې چه ويره وى -

إِذَا مَسَّهُمْ طَٰٓئِفٌ مِّنَ الشَّيْطَٰنِ تَذَكَّرُوا فَإِذَا

کله چه اورسی دوی ته شیطانان نو دوی ته را یاد شی نو بیا دغه

هُم مُّبْصِرُونَ ﴿۲۰۱﴾ وَإِخْوَٰنُهُمْ يَمُدُّونَهُمْ فِي

وخت دوی ته سوچ راشی او کوم چه د شیطانانو رو لړه دی هغه دوی لره راکاږی

الْغَيِّ ثُمَّ لَا يُقْصِرُونَ ﴿۲۰۲﴾

ګمراهئ ته بیا دوی کمے نه کوی۔

# لنډ تفسير

(د خلقو سره دا سے سلوک کوه چه د دوی د عملونو او اخلاقونه) سرسری (په نظر کېښے چه کوم) سلوک (معقول او مناسب معلوم وی هغې) لره قبلوه (د دیخ او حقیقت تلاشی ئے مه کوه بلکه په ظاهری نظر کښے په سرسری طور سره چه کوم کار د چا سره ښهٔ وی هغهٔ په ښهٔ والی حمل کوه - د باطن حال الله تعالیٰ ته سپاره څکه چه پوره اخلاص او د قبولیت شرطونه جمع کول د خاصو خاصانو حصه ده، حاصل دا دے چه د خلقو سره په ډوند تیر ولو کښے اسانی ساتئ سختی مه کوئے، دا سلوک په ښو کارو نو کښے دے) او (کوم کار چه په ظاهر نظر کښے هم بد وی په دے کښے دا سے سلوک سا ته چه په دے باب کښے) د نیک کار تعلیم کوه (او ډیر مه ور پسے کیږه) او کچرے (اتفاقاً د دوی په جهالت) تا ته څهٔ وسوسه د شیطان د طرف نه (د غصے) راشی (چه په دے کښے احتمال وی چه څهٔ خبره د مصلحت خلاف صادره شی) نو په دا سے حالت کښے فوراً د الله تعالیٰ نه پناه غواړه بے شکه هغهٔ ښهٔ آورید ونکے ښهٔ پوهید ونکے دے (ستا پناه غوښتل آوری ستا په مقصود پوهه دے هغهٔ به تا لره د دے نه پناه درکړی، او لکه څنګه چه پناه غوښتل او الله تعالیٰ ته

توجه کول ستا دَ پاره فائده ده، دغه شان دَ تولو خدائے نه یریدونکو خلقو دَ پاره هم نفع ده چنانچه) یقیناً (دا خبره ده چه) کوم خلق دَ خدائے نه ویریګی کله چه دوی ته څهٔ خطره دَ شیطان دَ طرف نه (دَ غصے یا دَ یو بل کار) راشی نو هغوی (فوراً دَ خدائے) په یادَ ولوګیږي شروع شی (لکه اَعوذ بالله او دُعا اوکړی دَ خدائے تعالیٰ لوئی او عذاب او ثواب یاد کړی) پس یکدم دَ دوی سترګے اوغړیګی (او حقیقت دَ کار دوی ته ښکاره شی چه په دے سره دغه خطره اثر اُونه کړی) او (دَ دوی برخلاف) کوم چه دَ شیطانانو تابعداری هغوی (شیطانان) دوی لره ګمراهئ ته راکاږی پس دغه (تابعداران دَ ګمراهئ نه) نهٔ واپس کیږی (نه دوی اَعوذ بالله وائی او نه محفوظ کیږی پس دغه مشرکان خو دَ شیطانانو تابعداری دوی کله واپس کیږی، په دے وجه دَ دوی په غم او غصه کیږي پریوتل بے کاره دی)۔

# مَعلومات او مَسئلے

**دَ قرآنی اخلاقو یوه جامعه هدایت نامه**

په ذکر شوو آیاتو کښے دَ قرآنی غوره اخلاقو یوه جامعه هدایت نامه ده۔ دَ کوم په ذریعه چه ئے دَ نبی کریم صلے الله علیه وسلم تربیت اوکړو او دهٔ ته ئے په تولو اولینو او آخرینو کښے دَ صاحب دَ خُلقِ عظیم (یعنی دَ لویو اخلاقو دَ مالک) خطاب ورکړو۔

په تیرو آیاتو کښے دَ اسلام دَ دُشمنانو دَ ناپوهو او بد اخلاقو دَ ذکر کولو نه پس په دے آیاتو کښے دَ دے په مقابله کښے نبی کریم صلے الله علیه وسلم ته دَ غوره اخلاقو هدایت ورکړے شوے دے۔ چه دَ دے درے جُملے دی اوله جُمله: خُذِ الْعَفْوَ ده۔ دَ عربی لغت په اعتبار سره دَ لفظ دَ عَفْو ډیرے معنے کیدے شی او په دے موقع دَ هرے یوے معنے ګنجائش شته۔ په دے وجه دَ تفسیر دَ عالمانو مختلفو دَ لو مختلفے معنے اخستے دی۔ جمهورو تفسیر لیکونکو چه کومے معنے لره اختیار کړے ده هغه دا ده چه: عَفْو: وئیلے شی هر داسے کار ته کوم چه په آسانئ سره بغیر دَ څهٔ

تکلیف او مشقت نه اوشي - نو معنیٰ د دے جملے دا شوه چه ته قبلوه هغه شے کوم
چه خلق په اسانئ سره کولے شي، یعني په شرعي واجباتو کښے د خلقو نه د اوچت
معیار مطالبه مه کوه، بلکه څومره چه دوي په اسانئ سره کولے شي هم هغه
ته قبلوه، مثلاً د مونځ اصل حقیقت خو دا دے چه بنده د ټولے دُنیا نه قطع شي
او په یکسوئي سره د خپل رب په وړاندِ لاس په نامه کیږدي داسے او دریږي چه د
حمد وثنا سره خپل عضو نه بلا واسطے د الله تعالیٰ په دربار کښے پخپله پیش کوي
چه گویا دے دا وخت نیغ په نیغه د الله جل شانهٗ سره مخاطب دے - د دے چه
کومے نښے د خشوع او عاجزئ ادب او احترام پکار دي ظاهره ده چه په لاکونو
مونځ کوونکو کښے به چرته یو د الله بنده ته نصیب وي - عام خلق دے درجے
لره نه شي رسیدے - نو دے ایت نبي کریم صلے الله علیه وسلم ته دا تعلیم ورکړو
چه ته د دے خلقو نه د دے اعلیٰ معیار مطالبه مه کوه ، بلکه کومه درجه چه
دوي په اسانئ سره حاصلولے شي هغه قبلوه - دغه شان نور عبادتونه زکوٰة
روژه، حج او عام معاملاتو او معاشرت په شرعي واجباتو کښے چه کوم خلق پوره
پوره حق نه شي ادا کولے د دوي نه سرسري اطاعت او فرمانبرداري قبلوه -

په صحیح بخاري کښے په روایت د عبد الله بن زبیرؓ پخپله د نبي کریم صلے الله علیه
وسلم نه دا معنے نقل شوي دي -

او په یو روایت کښے دي چه نبي کریم صلے الله علیه وسلم د دے ایت په نازلیدو
باندِ او فرمائیل چه ما ته الله تعالیٰ د خلقو په عملونو او اخلاقو کښے د سرسري
اطاعت قبلولو حکم راکړے دے، ما قصد کړے دے چه تر څو پورے زه په دے
خلقو کښے یم داسے عمل به کوم - (ابن کثیر)

د تفسیر د امامانو یوې لوئې جماعت حضرت عبد الله بن عمرؓ، عبد الله بن زبیرؓ
صدیقه عائشهؓ او مجاهدؒ وغیره د دے جملے هم دا معنیٰ مقرر کړے ده -

دویمه معنیٰ د : عَفو : معافي او درگزر هم راځي - د تفسیر د عالمانو یو
جماعت دلته دا معنیٰ مراد اخستے ده، د دے جملے ئے دا مطلب مقرر کړے دے
چه ته د گناهگارانو خطا کارانو گناه او قصور معاف کوه -

د تفسیر امام ابن جریر طبري نقل کړے دے چه کله دا ایت نازل شو

نو نبي کریم صلی الله علیه وسلم د جبرائیل امین نه د دې ایت د مطلب تپوس
او کړو، جبرائیل امین د الله تعالیٰ نه د تپوس کو لو نه پس دا مطلب او خودو
چه په دې ایت کښې تا ته دا حکم درکړې شوې دې چه کوم سړې په تا ظلم
کوی ته هغه معاف کوه، او څوک چه تا لره څۀ درنه کړی ته په هغۀ بخشش
کوه - او څوک چه ستا سره تعلق قطع کوی ته د دۀ سره هم تعلقات جوړ وه -

دلته ابن مردویهؒ په روایت د سعد بن عباده نقل کړې دې چه د اُحُد
په غزا کښې چه هر کله د نبي کریم صلی الله علیه وسلم تره حضرت حمزهؓ شهید
کړې شو او په ډیره بې دردۍ سره د دۀ اندامونه پریکړې شوا و د
لاش بې حرمتي ئې او شوه، نو نبي کریم صلی الله علیه وسلم چه لاش لره په
دې هیئت کښې او لید و او وئې فرمائیل چه کومو خلقو د حمزهؓ سره
دا سې معامله کړې ده زۀ به د هغوی کا اویا کسانو سره دا سې معامله
کوم په دې باندې دا ایت نازل شو چه کوم چه ئې دۀ ته او خودله چه ستا
دا مقام نه دې، ستا د شان مناسب دا ده چه د عفو درګذر نه کار
اخلې -

د دې مضمون تائید د دې حدیث نه هم کیږی کوم چه امام احمدؒ
د عقبه بن عامرؓ په روایت سره نقل کړې دې چه دۀ ته نبي کریم صلی الله
علیه وسلم د کومو خوا اخلاقو تعلیم ورکړو هغه دا دو چه کوم سړې
په تا ظلم او کړی هغه معاف کوه څوک چه ستا سره تعلق قطع کوی ته
ورسره جوړ وه کوم چه تا محروم کوی ته ورته بخشش کوه -

او بیهقی په روایت د علی مرتضیٰ نقل کړې دې چه نبي کریم صلی الله
علیه وسلم دۀ ته او فرمائیل چه زۀ تا ته د اوّلینو او اخرینو اخلاقو
نه غوره اخلاق بنایم، هغه دا چه کوم سړې تا محرومه کړی ته په
هغۀ بخشش کوه، کوم چه په تا ظلم او کړی ته هغه معاف کوه، څوک چه
درسره تعلق پریکوی ته ورسره جوړ وه -

د لفظ د : عَفو؛ په اوّل او دویمه معنیٰ کښې اګرچه فرق دې لیکن نچوړ
د دواړو یو دې، چه د خلقو په عملونو او اخلاقو کښې سرسری اطاعت او

فرمانبرداری قبلوه، زیات تجسس او لټون مه کوه، او ددوی نه د اعلیٰ معیار د فرمانبرداری مطالبه مه کوه - او د دوی په خطاګانو او قصورباندې درګذر کوه د ظلم بدله مه اخله، چنانچه د نبی کریم صلی الله علیه وسلم اعمال او اخلاق همیشه په دې سانچه کښې جوړ شوی وو، چه د دې پوره مظاهره هغه وخت اوشوه څه وخت چه مکه فتح شوه، او جانی دشمنان د دوی په قبضه کښې راغلل نو ټول ئې آزاد کړل اوئې فرمائيل چه ستا سو د ظلمونو بدله اخستل خوشه کوے مونږ تاسو ستا سو په تیرو معاملو باندې ملامته کوو هم نه -

دویمه جمله د دے هدایت نامے: وَأْمُرْ بِالْعُرْفِ: ده - عُرف په معنیٰ د معروف هر هغه او غوره کار ته وئیلے شی، مطلب دا دے چه کوم خلق ستا سره بدی او ظلم او کړی ته دوی نه بدله مه اخله، بلکه معافی کوه، مګر د دے سره دوی ته د نیک کار هدایت هم کوه، ګویا د بدئ بدله په نیکئ سره د ظلم بدله صرف په انصاف سره نه بلکه په احسان سره ورکوه -

دریمه جمله: وَأَعْرِضْ عَنِ الْجٰهِلِيْنَ، ده چه معنیٰ ئے دا ده چه د جاهلانو نه ته ځان څنګ ته کوه - مطلب دا دے چه د ظلم بدله پریږده ته د دوی سره د خیر خواهئ او همدردئ معامله کوه، او په نرمئ سره دوی ته حقه خبره ښایه، مګر ډیر جاهلان به داسے هم وی کوم چه په دے شریفانه معامله سره په دوی اثر نه کیږی، د دے باوجود په جهالت او سختئ سره مخے ته راځی، نو د داسے خلقو سره ستا معامله داسے پکار ده چه د دوی زړه ازاروونکے او جاهلانه خبرے په تا څه اثر اونه کړی او د دوی پشان سختے خبرے ورته اونه کړے بلکه د دوی نه ځان څنګ ته کوه -

د تفسیر امام ابن کثیر فرمائی چه د څنګ ته کولو هم دا مطلب دے چه د دوی د بدئ جواب په بدئ سره ورنه کړے، دا معنیٰ نه ده چه دوی ته هدایت کول پاتے کړے چه دا وظیفه د رسالت د شان سره لائقه نه ده -

په صحیح بخاری کښې دلته یوه واقعه د حضرت عبد الله بن عباس نه نقل شوے ده - چه د حضرت فاروق اعظم د خلافت په زمانه کښې عیینه ابن حصین مدینے ته راغے او د خپل وراره حر ابن قیس میلمه شو،

حضرت حُر بن قیس رض په هغو اهلِ علمو حضراتو کښې وه، کوم چه به د حضرت فاروقِ اعظم رض په مجلس د مشاورت کښې شریکیدو، عیینه خپل وراره حُر بن قیس ته اُووے، چه ته امیر المؤمنین ته نزدے یې ځما د پاره د هغهٔ نه د ملاقات څهٔ وخت واخله، حُر بن قیس رض فاروق اعظم رض ته درخواست اوکړو چه ځما تره عیینه ستاسره ملاویدل غواړی، دوی ورله اجازت ورکړو-

مگر عیینه چه د فاروقِ اعظم رض مجلس ته اُورسید و نو ډیرے غیر مهذبه او غلطے خبرے یې اوکړے چه نهٔ ته مونږ ته زمونږ پوره حق راکوے اونهٔ زمونږ سره انصاف کوے، فاروقِ اعظم رض لره په دے بانډ غصه ورغله، نو حُر بن قیس رض عرض اوکړو چه امیر المؤمنین الله تعالیٰ فرمائیلی دی: خُذِ الْعَفْوَ وَأْمُرْ بِالْعُرْفِ وَأَعْرِضْ عَنِ الْجٰهِلِيْنَ: او دا سړے هم د جاهلانو نه دے، د دے ایت په آؤریدو سره د فاروقِ اعظم رض ټوله غصه ختمه شوه، او دهٔ ته یې هیڅ اُونه وے، د حضرت فاروقِ اعظم رض دا عادت معروف او مشهور وُو، چه: كَانَ وَقَّافًا عِنْدَ كِتَابِ اللهِ عَزَّ وَجَلَّ: یعنی د کتاب الله احکامو ته به یې سر خکته کولو-

دا ایت د مکارمِ اخلاقو د پاره یو جامع ایت دے، بعض علماؤ د دے بچو پړ دا بیان کړے دے چه خلق دوه قسمه دی، یو محسن یعنی ښهٔ کارکوونکی، دویم بدکار ظالمان، دے ایت د دواړو طبقو سره د ښو اخلاقو ساتلو دا هدایت کړے دے چه د نیکو کارکوونکو ظاهری نیکی قبلوئ په زیات لټون او تلاش کښې مه پریوځئ- او د نیکئ د اعلیٰ معیار د دوی نه مطالبه مه کوئ بلکه څو مره چه دوی په اسانئ سره کولے شی دغه کافی ګنړئ- او د بدکارو په معامله کښې یې دا هدایت کړے دے چه دوی ته نیک کار ښایئ او د نیکئ لار ورته برابرَوئ نوکه دوی یې قبلوی نه او په خپله ګمراهئ او غلطئ باندِ اړه وی او جاهلانه خبرے درسره کوی نو ته ډه تېرکوئ، او د دوی د جاهلانه خبرو جواب مه ورکوئ، په دے طرز سره دا امید دے چه دوی څهٔ وخت پوهه شی او د خپلے غلطئ نه واپس شی-

په دويمه ايت کښې ارشاد فرمائي :-

"وَاِمَّا يَنْزَغَنَّكَ مِنَ الشَّيْطٰنِ نَزْغٌ فَاسْتَعِذْ بِاللّٰهِ اِنَّهٗ سَمِيْعٌ عَلِيْمٌ" يعنى که تا ته د شيطان د طرف نه څۀ وسوسه راشي نو د الله تعالیٰ نه پناه غواړه هغۀ آورېدونکے پوهه دے"

په حقيقت کښې دا ايت هم د اوّلنى ايت د مضمون مکمّل کوونکے دے ځکه چه په دے کښې کوم هدايت ورکړے شوے دے چه د ظلم کوونکوا و جاهلانو د خطاګانو نه درګزر کوئ د دوى د بدئ جواب په بدئ سره مه ورکوئ دا خبره د انسانى طبيعت د پاره د تولونه زيات ګرانه او سخته ده او خاص کر شيطان په داسے موقعو کښې ښۀ او نيک بنده لره هم غُصّه ورولى د جنګ جګړے د پاره ئے تيار وى ، په دے وجه په دے بل ايت کښې د دے تلقين اُوشو چه که په داسے د بے صبرئ په موقعو کښې د غصے جذبات زيات راپاريږى نو پوهه شئ چه دا د شيطان د طرف نه ده - او علاج ئے دا دے چه د الله تعالیٰ نه پناه غواړئ -

په حديث شريف کښې دى چه دوه سړى د نبى کريم صلے الله عليه وسلم په وړاندې په جګړه وُو، او يو به پکښې د غُصّے نه بے قابو کيدو، دوئ چه اوليد ونو اُوئے فرمائيل چه ما ته يوه داسے کلمه معلومه ده چه که دا سړے دغه کلمه اُووائى نو د دۀ دا په اشتعال (جوش) کښې راتلل به ختم شى، اُوئے فرمائيل هغه کلمه داده : اَعُوْذُ بِاللّٰهِ مِنَ الشَّيْطٰنِ الرَّجِيْمِ : دے سړى چه د نبى کريم صلے الله عليه وسلم نه واوريده نو فوراً ئے اُووے نو ټول غصّه او جوش ئے يکدم ختم شو-

**عجيبه فائده** د تفسير امام ابن کثير رحمه الله يو عجيبه خبره دا ليکلے ده چه په ټول قرآن کښې درے ايا تونه د ښو او غوره اخلاقو د تعليم د پاره جامع راغلى دى او د درے وارو په اخر کښې د شيطان نه د پناه غوښتلو ذکر دے- يو خو دا د سورت اعراف ايت دے دويم د سورت مؤمنون دا ايت دے : اِدْفَعْ بِالَّتِىْ هِىَ اَحْسَنُ السَّيِّئَةَ نَحْنُ اَعْلَمُ بِمَا يَصِفُوْنَ ۝ وَقُلْ رَّبِّ اَعُوْذُ بِكَ مِنْ هَمَزٰتِ الشَّيٰطِيْنِ ۝ وَاَعُوْذُ بِكَ رَبِّ اَنْ يَّحْضُرُوْنِ ؛

(المؤمنون ۹۶) یعنی دفع کوه بدی په نیکئ سره موږ ته ښه معلوم دی
داخلق چه څهٔ وائی او ته داسے دُعا کوه چه اے ځما پروردګاره زهٔ ستا پناه
غواړم د شیطانانو د دباؤ نه او اے ځما پروردګاره زهٔ ستا پناه غواړم
د دے خبرے نه چه شیطانان ما ته راجمع شی۔

دریم ایت د سورتِ حٰمٓ سجده دا دے: وَلَا تَسْتَوِی الْحَسَنَةُ وَلَا السَّيِّئَةُ
اِدْفَعْ بِالَّتِیْ هِیَ اَحْسَنُ فَاِذَا الَّذِیْ بَیْنَكَ وَبَیْنَهٗ عَدَاوَةٌ كَاَنَّهٗ وَلِیٌّ حَمِیْمٌ
وَمَا یُلَقّٰهَآ اِلَّا الَّذِیْنَ صَبَرُوْا ۚ وَمَا یُلَقّٰهَآ اِلَّا ذُوْ حَظٍّ عَظِیْمٍ ۝ وَاِمَّا یَنْزَغَنَّكَ مِنَ
الشَّیْطٰنِ نَزْغٌ فَاسْتَعِذْ بِاللّٰهِ ؕ اِنَّهٗ هُوَ السَّمِیْعُ الْعَلِیْمُ ۝ ۔

یعنی نیکی او بدی برابر نه وی ته په نیک سلوک سره دفع کوه بیا به یکدم
ستا او د کوم سړی په مینځ کښے چه دشمنی وه هغه به داسے شی لکه څوک چه ډیر
مخلص دوست وی، او دا خبره هغو خلقو ته نصیب کیږی کوم چه مستقل
مزاج وی او دا خبر هغهٔ ته نصیب کیږی کوم چه ډیر نصیب دار وی
او که تا ته د شیطان د طرف نه څهٔ وسوسه راشی نو د الله پناه غواړه
بے شکه هغهٔ ښهٔ آوریدونکے او ښهٔ پوهیدونکے دے۔

په دے دریے وارو آیاتو نو کښے ئے د غصه وروستونکو سره د عفو
درګزر او د بدئ په ځائے د نیکئ کولو د هدایت سره سره د شیطان نه
د پناه غوښتلو هدایت کړے دے۔ د دینه معلومیګی چه د شیطان
د خلقو د جګړو سره خاصه دلچسپی ده، کوم ځائے چه د جګړے څهٔ
موقع راپیدا کی شیطانان ئے خپل د ښکار ځائے جوړوی او د لویو لویو
بزرګانو او صبرناک بندګا ته غصه وروَلی د حد نه ئے ورتیروی۔

د دے علاج دا دے چه کله په غصه کښے بے قابو کیږی نو پوهه دِ شی
چه شیطان په ما باندِ غالب کیږی نو د الله تعالیٰ طرف ته دِ رجوع کوی
پناه دِ تر غواړی پس د مکارم اخلاقو مکمّل والے به ئے او شی۔ په دے
وجه روستو په دریم او څلورم ایت کښے هم د شیطان نه د پناه غوښتلو
هدایت ورکړے شوے دے۔

وَاِذَا لَمْ تَاْتِهِمْ بِاٰيَةٍ قَالُوْا لَوْلَا اجْتَبَيْتَهَا ؕ قُلْ اِنَّمَآ

او کله چه ته را نه وړې دوی ته ښه نو وائي ولې دې خوښه نه کړه د خپل طرف نه. ته او وایه

اَتَّبِعُ مَا يُوْحٰٓى اِلَىَّ مِنْ رَّبِّىْ ۚ هٰذَا بَصَآئِرُ مِنْ رَّبِّكُمْ

چه زه خو چلیږم په هغې کوم چه حکم راشي ما ته زما د رب د طرف نه. دا خو د پوهې خبرې دي ستاسو د رب د طرف نه

وَهُدًى وَّرَحْمَةٌ لِّقَوْمٍ يُّؤْمِنُوْنَ ﴿۲۰۳﴾ وَاِذَا

او هدایت او رحمت دے هغو خلقو له چه مؤمنان دي او کله چه

قُرِئَ الْقُرْاٰنُ فَاسْتَمِعُوْا لَهٗ وَاَنْصِتُوْا لَعَلَّكُمْ

قرآن لوستلے شي نو دے ته غوږ کيږدئ او چپ اوسئ چه په تاسو

تُرْحَمُوْنَ ﴿۲۰۴﴾

رحم او شي۔

# خلاصهٔ تفسير

او کله چه ته (دوی ته) د دوی د فرمائشي معجزو نه کوم فرمائش چه دوی په وجه د عناد کړے وي، هغه معجزه د دوی په وړاندے ظاهره نه کړے (په وجه د دے چه الله تعالیٰ دغه معجزه په مقتضای حکمت پیدا نه کړي نو دغه خلق رسالت د رسالت نفي کولو په قصد) وائي چه ته (که نبي ئے نو) معجزه ولے ربنکاره ته نه را وړے، ته او وایه چه (زما کار معجزے په خپل اختیار راوړل نه دي بلکه زما اصلي کار دا دے چه) زه د هغے تابعداري کوم کوم چه په ما باندے زما د رب د طرف نه حکم لیږلے شوے دے (په دے کښے تبلیغ هم راغے، البته د نبوت د اثبات د پاره نفسِ معجزه ضروري ده پس هغه واقع شوے ده چنانچه په دے کښے د ټولو نه لویه معجزه یو دا قرآن دے

د کوم چه داشان دے چه) دا ربخپل ځائے کو یا ډیر دلیلونه دی ستاسو د رب
د طرف نه رغلکه چه مثلاً دے هر مقدار سورت مثلاً یو معجزه ده نو په دے حساب
سره ټول مجموعه قرآن څو مره دلیلونه شو او د دے دا دلیل والے خو عام
دے) او رپاتے شوه د دے نفع په عمل سره نو هغه خاص ده د مننونکو د
پاره چنانچه دا ) هدایت او رحمت دے هغو خلقو لره کوم چه رپه دے) ایمان
لری او رته دوی ته دا هم او وایه چه) هر کله قرآن لوستلے شی (مثلاً نبی
کریم صلے الله علیه وسلم د دے تبلیغ فرمائی) نو د دے طرف ته غوږ کو نه
کدئ او چپ اوسئ ر د دے د پاره چه د دے معجزه کیدل او د دے د تعلیم
ښه والے ستاسو په پوهه کښے راشی چه په دے سره) امید دے چه په تاسو
رحمت اوشی (نوے یا زیاتی) -

# معلومات او مسئلے

په ذکر شوو ایاتو نو کښے د نبی کریم صلے الله علیه وسلم د برحق
رسول کیدو ثبوت او په دوی باندے د مخالفینو د شبهو جواب او د دے
په ضمن کښے د خو شرعی حکمو نو ذکر فرمائیلے شوے دے -

د رسالت د ثبوت د پاره ټولو انبیاؤ علیهم السلام ته معجزے ورکولے
شی، سید الانبیاء صلے الله علیه وسلم ته په دے مناسبت سره دومره
معجزے ورکړے شوی دی کومے چه د تیرو انبیاؤ د معجزو نه ډیرے زیاتے
هم دی او واضحه هم -

د نبی کریم صلے الله علیه وسلم معجزے کومے چه په قرآن مجید او صحیح
روایتو نو د حدیث سره ثابتے دی د دوی شمار ډیر دے - عالمانو په دے
مستقل کتابونه لیکلی دی - علامه سیوطیؒ کتاب "خصائص کبریٰ" په دوه
غټو جلدونو کښے په دے موضوع لیکلے شوے مشهور کتاب دے -

مګر د نبی کریم صلے الله علیه وسلم د بے شماره معجزو ښکاره کیدو سره
بیا هم مخالفین د خپل ضد او نا پوهئ نه منع نه شو او د خپل طرف نه به دئ
د نا پوهئ او ضد په وجه د نوو نوو معجزو ښکاره کولو مطالبے کولے - چه

ذکو موذکر په دے سورت کښې اوّل هم راغلے دے۔

دَ ذکر شوو دوَ آیاتو نو نه په اوّل آیت کښې دوی ته یو اُصولی جواب ورکړے شوے دے چه دَ هغې نچوړ دا دے چه دَ پیغمبر معجزه دَ دهٔ دَ رسالت یو شهادت او ثبوت وی، او کله چه دَ مدعی دعوه په څهٔ معتبر شهادت سره ثابته شی او مخالف فریق پرِ څهٔ جرح هم نه وی کړی، نو دهٔ ته دَ دُنیا په یو عدالت کښې هم دا حق نه شی ورکولے چه دے دَ مُدّعی نه دَ دے مطالبه او کړی چه دَ فلانو فلانو خاصو خلقو شهادت پیش کړی نو مونږ به اُومنو، په موجوده شهادت باندِ دَ څهٔ جرح پیش کولو نه بغیر مونږ دا نه منو۔ په دے وجه دَ ډیرو واضحو معجزو دَ لیدو نه پس دَ مخالفینو دا وَیْنا چه فلانئ قسم خاص معجزه اُوښایه نو مونږ به تا رسول اُومَنو، دا یوه دَ عناد او ضد مطالبه ده چه یو عدالت ئے هم صحیح نه تسلیم کوی۔

چنانچه په اوّلنی آیت کښې ارشاد فرمائی چه کله تهٔ دَ دے خلقو مقرر کړے شوے څهٔ خاص معجزه اُونهٔ ښائے نو دوی ستا دَ رسالت نه دَ انکار کولو دَ پاره وائی چه تا فلانئ معجزه وَلے اُونه خوده، نو تهٔ دوی لره دا جواب ورکړه چه زما کار پخپل اختیار سره معجزے خودل نه دی، بلکه زما اصلی کار دا دے چه زهٔ دَ هغو حکمونو تابعداری او کړم کوم چه په ما باندِ زما دَ ربّ دَ طرف نه په ذریعه دَ وحیٔ را لیږلے شی، چه په هغوی کښې تبلیغ هم شامل دے، په دے وجه زهٔ پخپل اصلی کار کښې مشغول یم او دَ رسالت دَ پاره دغه نورے معجزے هم پوره دی کومے چه تا سو ته او خلقو ته مخامخ خودَلے شوی دی، دَ دغو دَ لیدو نه پس دَ څهٔ خاص معجزے مطالبه یوه دَ عناد مطالبه ده دَ منلو قابله نه ده۔

او کومے معجزے چه خودَلے شوے دی په دی کښې قرآن پخپله یو عظیمه معجزه ده، کوم چه ټولے دنیا ته دَ خپل بلکه دَ خپل یو ورکوتی شان سورت دَ مثل راوړو چیلنج ورکړو، او ټوله دُنیا سره دَ پوره کوشش نه دَ دے دَ مثل راوړو نه عاجزه شوه۔ کومه چه ډیره واضحه نښه ده دَ دے خبرے چه قرآن دَ چا بشر کلام نه دے بلکه دَ الله جلّ شانهٔ بے مثله کلام دے۔

په دے وجه فرمائی: هٰذَا بَصَآئِرُ مِنْ رَّبِّكُمْ ؛ یعنی دا قرآن ستاسو د رب د طرف نه د ډیرو د لیلو نو او معجز و مجموعه ده ۔ چه په دے کښے معمولی فکر کوونکی ته هم دا یقین حاصلیګی چه دا د الله جل شانهٗ کلام دے ۔ د چا مخلوق په دے کښے هیڅ دخل نیشته ۔ د دے نه پس فرمائی: وَهُدًى وَّرَحْمَةٌ لِّقَوْمٍ يُّؤْمِنُوْنَ ؛ یعنی دا قرآن د حق دلیل خو د ټول جهان د پاره دے ۔ مګر مقصد ته د رسوونکے او د الله تعالیٰ د رحمت مستحق جوړوونکے صرف د هغو خلقو د پاره دے کوم چه په دهٔ باندې ایمان راوړی ۔

په دویم ایت کښے ئے او خودله چه قرآن مجید د مؤمنانو د پاره رحمت دے مګر د دے رحمت نه د فائدے حاصلو لو د پاره څهٔ شرطونه او آداب دی کوم لره چه ئے په عام خطاب کولو سره دا سے ذکرا و فرمائیل ؛ وَاِذَا قُرِئَ الْقُرْاٰنُ فَاسْتَمِعُوْا لَهٗ وَاَنْصِتُوْا ؛ یعنی هر کله چه قرآن لوستلے شی نو تاسو دے ته غوږ کوئ ایږدئ او چپ اوسئ ۔

د دے ایت په شانِ نزول کښے روایتونه مختلف دی چه دا حکم د مانځه د قرأت په باره کښے راغلے دے یا د خطبے یا د مطلق قرأت د قرآن خواه مونځ یا خطبه وی یا بل حالت ۔ لیکن د جمهورو تفسیر لیکونکو په نزد صحیح دا ده چه څنګه د ایت الفاظ عام دی دغه شان ئے حکم هم ټولو حالاتو لره عام دے بغیر د خاصو استثنائی موقعو نه ۔

په دے وجه حنفیانو په دے ایت سره د دے خبرے دلیل نیولے دے چه په امام پسے مقتدی یا نو لره قرأت نه دی کول پکار ۔ او کومو فقهاؤ چه مقتدی ته د فاتحے لوستلو هدایت کړے دے ، په دوی کښے هم بعضو دا رعایت ساتلے دے چه د امام د سکتے په وخت کښے دِ فاتحه لولی ۔ دلته د دے بحث موقع نیشته ۔ په دے بحث باندې عالمانو مستقل کتابونه لوئے وارهٔ ډیر لیکلی دی هغه دِ او کتلے شی ۔

اصل مضمون د ایت دادے چه قرآن کریم د کومو خلقو د پاره رحمت مقرر شو ، د دے شرط دادے چه دوی د قرآن ادب او احترام او پیژنی او عمل پرې اوکړی ۔ او لوئے ادب د قرآن دادے چه کله دے لوستلے شی

نو آؤریدو نکے دِ ورته غوږ کیدی او چپ دِ اوسی -

په غوږ ایخودو کښے دا هم داخل دی چه دے لره واوری، او دا هم چه دے په احکامو عمل کو لو جد وجهد کوی، (مظهری وقرطبی)

دَ ایت په آخر کښے ئے لَعَلَّكُمْ تُرْحَمُوْنَ: او فرمائیل دے طرف ته ئے اشاره اوکړه چه دَ قرآن رحمت کیدل دَ دے دَ ذکر شو و آدابو په پوره کولو بانڊے موقوف دی -

دَ قرآن دَ تلاوت په وخت کښے دَ چپ کیدو او آوریدو متعلق یو څو ضروری مسئلے

دَ دے په مقابله کښے دا یکپله ښکاره خبره ده چه که چا دَ دے خلاف ورزی اوکړه او دَ قرآن بے حرمتی ئے اوکړه نو دغه به دَ رحمت په ځائے دَ قهر او غضب مستحق وی -

په مانځه کښے دَننه خو قرآن طرف ته غوږ ایخودل او چپ کیدل په عام طور سره مسلمانا نو ته معلوم دی، اگر چه په عمل کښے کوتاهی کوی چه بعضے خلقو ته خو دا هم پته نه وی چه امام کوم سورت لوستلے دے په دوی لازم ده چه دوی دَ قرآن عظمت او پیژنی او دَ آوریدو طرف ته خیال ساتی- دَ جُمُعے دَ خطبے وغیره هم شرعاً دا حکم دے - دَ دے ایت نه علاوه دَ نبی کریم صلے الله علیه وسلم ارشاد په خاص طور سره دَ خطبے متعلق دا راغلے دے: چه

: اِذَا خَرَجَ الْاِمَامُ فَلَاصَلٰوةَ وَلَاکَلَامَ : یعنی هر کله چه امام دَ خطبے دَ پاره راووځی نو نه مونځ شته نه خبرے -

او په یو حدیث کښے دا هم دی چه دغه وخت به یو سړے بل ته دَ نصیحت په طور هم چپ شه نه وائی، (په لاس اشاره که ضروری وه نو او دِ کړی) غرض دَ خطبے په دوران کښے دَ هٔ قِسم خبرے، تسبیح، درود، یا مونځ وغیره جائز نه دی -

فقهاؤ فرمائیلی دی چه کوم حکم دَ جُمُعے دَ خطبے دے هغه دَ اخترونو دَ خطبے او دَ نکاح وغیره دَ خطبو هم دے، چه دغه وخت غوږ ایخودل او چپ اوسیدل واجب دی -

البته د مانځه او خطبې نه علاوه په عامو حالاتو کښې څوک چا ته تلاوت کوي نو په نورو خلقو باندې چپ او سیدل او ده ته غوږ ایښودل واجب دي او که نه؛ په دې کښې د فقهاؤ قولونه مختلف دي. بعضې حضراتو په دې صورت کښې هم غوږ ایښودل او خاموش پاتې کیدل واجب او د دې خلاف کول ګناه مقرر کړې دې. او په دې وجه ئې په داسې ځائې کښې کوم ځائې چه خلق پخپلو کارونو کښې مشغول وي یا آرام کوي په اوچت آواز قرآن لوستل جائز نه دي ګڼړلي. او کوم سړې چه په داسې موقعو کښې قرآن په اوچت آواز لولي ده ته ئې ګناهګار وئیلي دي. په خلاصة الفتاوی وغیره کښې داسې لیکلي دي.

لیکن بعضو نورو فقهاؤ دا تفصیل فرمائیلې دې. چه غوږ ایښودل او آوریدل صرف په هغو ځایونو کښې واجب دي کوم ځائې چه قرآن د آوړولو د پاره لوستلې شي لکه په مونځ خطبه وغیره کښې. او که یو سړې چا ته تلاوت کوي یا څوک سبق په یو مکان کښې خپل خپل تلاوت کوي نو د بل آواز ته غوږ ایښودل او خاموش کیدل واجب نه دي، ځکه چه د صحیح احادیثو نه ثابته ده چه نبي کریم صلے الله علیه وسلم به د شپې په مانځه کښې په جهري سره قرأت فرمائیلو او پاکې بیبیانې به دغه وخت اوده وې، بعضې وخت به د حجرې نه باهر هم د نبي کریم صلے الله علیه وسلم آواز آوریدې شو.

او د بخاري او مسلم په یو حدیث کښې دي چه نبي کریم صلے الله علیه وسلم په یو سفر کښې د شپې د پړاؤ اچولو نه پس سحر او فرمائیل چه ما خپل د سفر اشعري ملګو ولره د دوي د تلاوت په آواز د نوسره د شپې په تیرې کښې پیژندل چه د دوي خیمې کوم طرف ته او کوم ځائې دي. اګرچه د ورځې ما ته د دوي د قیام ځائې معلوم نه وو.

په دې واقعه کښې هم نبي کریم صلے الله علیه وسلم دغو اشعري حضراتو لره د دې نه منع نه کړل چه په اوچت آواز موږ لې قرآن کولو، او نه ئې خوب کوونکو ته هدایت او فرمایه چه کله قرآن لوستلې شي نو تاسو ټول کیناځئ او قرآن آورئ.

په دې قسم روایتو نوسره فقهاؤ د مانځه نه باهر د تلاوت په معامله کښې

څهٔ ګنجائش ورکړے دے، لیکن غوره او مناسب دَ ټولو په نزد دا ده چه دَ
مانځه نه با هر هم کله چه دَ یو طرف نه دَ تلاوت آواز راشی نو غوږ کیښودے شی او چُپ دِ شی، او په دے وجه په داسے موقعو کښے کوم ځائے چه خلق په خواب یا چل کارو بار کښے مشغول وی دَ قرآن تلاوت په اوچت آواز سره کول مناسب نه دی۔

دَ دے نه دَ هغو حضراتو غلطی معلومه شوه کوم چه دَ قرآن دَ تلاوت په وخت کښے دیډیو په داسے مجلسونو کښے چالو کوی کوم ځائے چه خلق دَ دے آوریدو طرف ته متوجّه نه وی۔ دغه شان دَ جماتونو نه دَ شپے په لاؤډ سپیکر ونو کښے تلاوت دَ قرآن کول په اوچت آواز سره چه دَ اُوده کیدونکو په خواب یا دَ کار کوونکو په کار کښے خلل راشی درُست نه دی۔

علامه ابن همامؒ لیکلی دی چه څهٔ وخت امام په مانځه کښے یا خطیب په خطبه کښے څهٔ مضمون دَ جنّت او دوزخ متعلق لولی نو دغه وخت دَ جنّت دُعا یا دَ دوزخ نه پناه غوښتل هم جائز نه دی۔ ځکه چه دَ دے آیت په بنا سره دَ الله تعالیٰ دَ رحمت وعده دَ هغې چا دَ پاره ده کوم چه دَ قرآن دَ تلاوت په وخت کښے خاموش وی، او څوک چه خاموش نه وی دَ هغهٔ سره وعده نیشته۔ البته په نفل مونځونو کښے دَ داسے آیاتونو دَ تلاوت نه پس پټه دُعا غوښتل په حدیث سره ثابته ده او ثواب ئے دے (مظهری)

وَاذْكُرْ رَّبَّكَ فِىْ نَفْسِكَ تَضَرُّعًا وَّ خِيْفَةً

او یاد وه خپل ربّ لره په خپل زړهٔ کښے په عاجزئ او په ویره سره

وَّدُوْنَ الْجَهْرِ مِنَ الْقَوْلِ بِالْغُدُوِّ وَالْاٰصَالِ

او په داسے آواز سره چه دَ چغې وهلو نه کم وی دَ سحر په وخت او دَ ماښام په وخت

وَلَا تَكُنْ مِّنَ الْغٰفِلِيْنَ ﴿۲۰۵﴾ اِنَّ الَّذِيْنَ عِنْدَ

او مه کیږه بے خبره ۔ بے شکه کوم چه ستا ربّ ته

رَبِّكَ لَا يَسْتَكْبِرُوْنَ عَنْ عِبَادَتِهٖ وَ

نزدے دی هغوی تکبر نه کوی د هغهٔ د بندګئ کولو نه او

وَيُسَبِّحُوْنَهٗ وَلَهٗ يَسْجُدُوْنَ ۩ ﴿۲۰۶﴾ ع السجدة

یادوی د هغهٔ پاک ذات او هغهٔ ته سجده کوی -

# لنډ تفسیر

او ته هر سړی ته دا هم او وایه چه) اے بنده خپل رب لره یادوه (په قرآن یا په تسبیح وغیره سره خواه) په خپل زړهٔ کښے (یعنی په دوو آواز سره په عاجزئ سره او (خواه) د چغې د آواز په نسبت په کم آواز سره (هم په دے عاجزئ او ویرے سره) سحر او ماښام (یعنی همیشه) او (د همیشه مطلب دا دے چه) په غفلت کونکو کښے شمار نه شے (چه د کوموذکرونو امر در ته شوے دے هغه هم پاتے کړے) یقیناً کوم (ملائک) چه ستا رب ته نزدے (مقرب) دی هغه د دهٔ د عبادت نه (چه اصل پکښے عقیده ده) تکبر نه کوی او د هغهٔ پاکی بیانوی (کوم چه د ژبے عبادت دے) او هغهٔ ته سجده کوی (کوم چه د اندامونو عمل دے) -

# معلومات او مسئلے

د دے نه په وړاندِ ایاتونو کښے د قرآن کریم د اوریدو ذکر او د دے د آدابو بیان وو، په دے دوو ایاتونو کښے د جمهورو په نزد مطلق د الله تعالیٰ د ذکر حکم او د دے د آدابو بیان دے چه د قرآن تلاوت پکښے هم شامل دے۔ او د حضرت عبدالله بن عباسؓ په نزد په دے کښے هم د ذکر نه مراد قرآن دے، او کوم آداب چه په دے کښے بیان شوی دی دغه هم د قرآن د تلاوت سره متعلق دی - لیکن دا څهٔ اختلاف نه دے ځکه چه علاوه د قرآن نه د نورو ذکرونو هم د ټولو په نزد دا حکم او دا آداب دی -

لنده وداده چه په دے ایت کښے انسان ته د الله تعالیٰ د یاد او د ذکر حکم دے او د دے سره د دے د وختونو او آدابونو بیان دے

د پټ او جهری ذکر حکمونه

اول لنے ادب د ذکر د پټ او په اوچت آواز سره د کولو متعلق دے په دے باره کښے قرآن کریم په دے ایت کښے دوه قسمه اختیار ورکړے شوے دے، د پټ ذکر او د جهری۔

د ذکر خفی یعنی پټ ذکر متعلق فرمائی: وَاذْكُرْ رَّبَّكَ فِيْ نَفْسِكَ: یعنی خپل رب یا د وه په خپل زړه کښے۔ د دے هم دوه صورتونه دی یو دا چه بغیر د ژبے د حرکت نه صرف په زړه کښے فکر او خیال د الله تعالیٰ د ذات او صفاتو کوه چه ذکر قلبی یا تفکر ورته وئیلے شی۔ دویم دا چه د دے سره ژبه هم خوزوی او ورو ورو د الله تعالیٰ نومونه اخلی د ټولو نه غوره او افضل صورت دا دے چه کوم ذکر کوی د هغے د مطلب په زړه کښے هم تصور روی او په ژبه سره ئے هم اداکوی ځکه چه په دے صورت کښے ژبه هم د زړه سره په ذکر کښے شریک شی، او که صرف په زړه کښے په ذکر مشغول وی په ژبه حرف نه اداکوی نو دا هم لوئے ثواب دے، او د ټولو نه کم درجه د دے ده چه صرف په ژبه ذکر وی او زړه خالی او غافل وی داسے ذکر ته مولانا رومیؒ فرمائی: ؎

برزبان تسبیح ودردل گاؤ خر      این چنین تسبیح کے دارد اثر

او مقصد د مولانا رومیؒ دا دے چه د غافل زړه په ذکر کولو سره د ذکر آثار او برکتونه کامل نه شی حاصلیدے۔ د دے نه انکار نیشته چه دا صرف زبانی ذکر هم د ثواب او فائدے نه خالی نه دے۔ ځکه چه بعضے اوقات دا زبانی ذکر د زړه د ذکر ذریعه او سبب جوړیګی، په ژبه سره په وئیلو وئیلو زړه هم متأثره کیږی، او کم نه کم یوا ندام خو په ذکر کښے مشغول دے نو دغه هم د ثواب نه خالی نه دے۔ په دے وجه کومو خلقوته چه په ذکر او تسبیح کښے دِ جَمعِی او استحضار نه وی حصول دے هم داسے ذکر په بے فائدے گنړلو نه پاتے کوی جاری دِ ساتی او د استحضار یعنی د زړه د حضوری کوشش دِ کوی۔

دویمه طریقه د ذکر ئې په دې آیت کښې وا ورخودله: وَدُوْنَ الْجَهْرِ مِنَ الْقَوْلِ؛
یعنې د چغې د آواز په نسبت په کم آواز سره - یعنې د الله تعالیٰ په ذکر کښې مشغولیدونکي
ته دا هم اختیار دې چه په آواز سره ذکر اوکړي مګر د دې ادب دا دې چه ډیرې
په زوره چغې نه اوباسي، په درمیانه آواز سره ذکر کوي، چه د ادب او احترام
لحاظ پکښې ساتلې وي، ډیر په زوره سره ذکر او تلاوت کول د دې نښه وي
چه د مخاطب ادب او احترام د ده په زړه کښې نیشتې - د کومې هستۍ ادب او احترام
او رُعب چه د انسان په زړه کښې وي د هغه په مخ کښې طبعي طور سره انسان ډیر په
زوره خبرې نشي کولې په دې وجه عام ذکر الله وي یا د قرآن تلاوت
کله چه په زوره کولې شي نو د دې رعایت ساتل پکار دي چه د ضرورت نه زیات
آواز اوچت نه وي-

لنډه دا ده چه د دې آیت نه د ذکر الله او تلاوت د قرآن درې طریقې حاصلې
شوې، یوه دا چه صرف په زړه سره ذکر وي یعنې د قرآن او ذکر په معنو
په تصوّر او فکر سره اکتفا کوي ژبه بالکل نه خوزوي، دویم دا چه د دې
سره ژبه هم خوزوي مګر آواز نه اوچتوي چه بل ئې واوري دا دواړه
طریقې د ذکر د الله تعالیٰ په دې ارشاد: وَاذْكُرْ رَّبَّكَ فِيْ نَفْسِكَ: کښې داخلې
دي - او دریمه طریقه دا ده چه د زړه د حضور او فکر سره د ژبې حرکت
هم وي او آواز هم مګر د دې طریقې د پاره ادب دا دې چه آواز ډېره
زیات نه اوچتوي، د درمیانه درجې نه نه سِوا کیږي دا طریقه د قرآن
د ارشاد: وَدُوْنَ الْجَهْرِ مِنَ الْقَوْلِ؛ نه حاصله ده -

د قرآن کریم یو بل آیت د دې زیات وضاحت په دې الفاظو کښې فرمائیلې
دې: وَلَا تَجْهَرْ بِصَلَاتِكَ وَلَا تُخَافِتْ بِهَا وَابْتَغِ بَيْنَ ذٰلِكَ سَبِيْلًا: په
دې کښې نبي کریم صلی الله علیه وسلم ته حکم دې چه پخپله قرأت کښې مه
زیات جهر کوه او مه بالکل پټوله بلکه د جهر او اخفاء درمیانۍ حالت
کښې چلیږه -

د مانځه د قرأت متعلق نبي کریم صلی الله علیه وسلم حضرت ابوبکر صدیق رض
فاروق اعظم رض ته دا هدایت فرمائیلې وُه -

په صحیح حدیث کښې دي چه یو وار نبي کریم صلی الله علیه وسلم د شپې په اخر کښې د کوره راووتلو د حضرت ابوبکر صدیق مکان ته اُورسید و نو اُوئې لیدو چه دے په مانځه کښې مشغول وه مګر تلاوت ئې ورو ورو کولو، بیا د حضرت عمر بن خطاب مکان ته اُورسید و نو اُوئې لید وچه ډیر په اُوچت آواز سره تلاوت کوی هرکله چه سحر شو نو دا دواړه حضرات په خدمت کښې حاضر شو۔ نو حضورؐ صدیق اکبرؓ ته ئې اوفرمائیل چه زه د شپې ستا خوا ته ورغلم نو تا ډیر په ورو آواز سره تلاوت کولو۔ صدیق عرض اوکړو چه یا رسول اللهؐ ما چه کوم ذات ته آورولو نو هغه اَوْ رید و د پاره دغه کافي وه۔ دغه شان فاروق اعظمؓ ته ئې اوفرمائیل چه تا په اُوچت آواز سره تلاوت کولو، هغهٔ عرض اوکړو چه په قرأت کښې د جهر کولو نه ځما مقصد دا وه چه خواب را لره نه راځي او شیطان اوتختي، نبي کریم صلی الله علیه وسلم دا فیصله اوفرمائیله چه صدیق اکبر ته ئې دا هدایت اوکړو چه لږ آواز اُوچتوه او فاروق اعظمؓ ته دا چه لږ آواز خکته کوه (ابوداؤد)

په ترمذی کښې روایت دے چه د حضرت عائشهؓ نه د نبي کریم صلی الله علیه وسلم د تلاوت په باره کښې بعضے حضرا تو تپوس اوکړو چه په زوره به ئې کولو که په پټه؟ دوئیؓ اوفرمائیل چه کله په زوره کله په پټه دواړه قسمه تلاوت به ئې فرمائیلو۔

د شپې په نفلو مونځو نو کښې او د مانځه نه په باهر تلاوت کښې بعضو حضراتو جهر غوره کړے دے بعضو پټه، دغسے امام اعظم ابوحنیفهؒ فرمائي چه د تلاوت کوونکی خوښه ده ځنګه چه غواړی تلاوت دے کوی البته په آواز سره په تلاوت کولو کښې څو شرطونه د ټولو په نزد ضروری دی، اول دا چه نوم نمائیش او ریا پکښې نه وی، دویم آواز ئې د نورو خلقو د پاره تکلیف نه وی، د بل سړی په مانځه تلاوت یا آرام کښې خلل نه اچوی۔ او کوم ځائے چه د نوم نمائش او ریاویره وی، یا د نورو خلقو په کار یا آرام کښې د خلل ویره وی نو بیا د ټولو په نزد ورو وئیل غوره او بهتر دی۔

اوکوم حکم چه د قرآن د تلاوت دے هغه د نورو ذکرونو او تسبیحاتو دے چه په رُوا او په زوره دواړه قسمه جائز دی - په دے شرط چه آواز دومره اُوچت نه وی کوم چه د خشوع او خضوع او ادب خلاف وی، دارنګ د دهٔ په آواز سره د نورو خلقو په کار یا آرام کښے خلل نه راځی -

او دا فیصله چه په سِرًّا او جهرًا کښے کوم افضل دے، د خلقو او حالاتو په اعتبار سره مختلف دهٔ - د بعضو خلقو د پاره جهر غوره دے د بعضو د پاره په پټه - دارنګ بعض وخت جهر غوره وی بعضِ وخت پټ (مظهری، روح البیان وغیره)

دویم ادب د تلاوت او د ذکر دا دے چه په عاجزۍ او په زارۍ سره ذکر اوکړے شی، کومه نتیجه چه د دے وی چه انسان ته د الله تعالیٰ لوئی او جلال حاضر شی او کوم ذکر چه کوی د دے په معنیٰ او مطلب باندِ د دهٔ نظر وی -

دریم ادب ئے د دے ایت په لفظ: خِیْفَه: سره خودلے شوے دے چه د ذکر او تلاوت په وخت کښے په انسان هیبت او ویره غالبه پکار ده یره د دے چه مونږ د الله تعالیٰ د عبادت او عظمت حق نه شو ادا کولے ممکنه ده چه زمونږ نه څهٔ بے ادبی اوشی، دارنګ خپل ګناهونه ګانته راولاندِ او د الله تعالیٰ د عذاب نه یره، دارنګ د انجام او خاتمے ویره چه معلومه نه ده زمونږ خاتمه په څهٔ حال کیدونکے ده؟ بهرحال ذکر او تلاوت داسے پکار دے لکه هیبت زده ویریدونکے چه کوی،

دا آدابو د دُعا د دے سورتِ اعراف په شروع کښے هم په یو ایت کښے داسے راغلی دی: اُدْعُوْا رَبَّكُمْ تَضَرُّعًا وَّ خُفْيَةً: په دے کښے د: خِیْفَة: په ځائے د: خُفْيَةً: لفظ راغلے دے چه د دے معنیٰ ده په رُو آواز سره ذکر کول - ګویا د ذکر او تلاوت یو ادب دا هم دے چه په رو او غلی آواز سره اُوشی - لیکن د دے ایت د دے معنیٰ هم واضحه کړه چه اګرچه په آواز سره ذکر کول منع نه دی مګر شرط دا دے چه د ضرورت نه زیات آواز اُوچت نه کړی - دارنګ دومره ئے په چغو نه کوی چه خشوع او خضوع او زاری عاجزی

پکښې ختمه شي -

د آیت په اخر کښې ئې د ذکر او تلاوت وختونه او خود ل چه سحر او ماښام پکار دے - د دے دا معنیٰ هم کیدے شي چه کم نه کم په شپه ورځ کښې دوه پیرے سحر او ماښام د الله تعالیٰ په ذکر کښې مشغولیدل پکار دي - او دا هم کیدے شي چه سحر او ماښام ئې او وے مراد ترِ نه د شپے او ورځے ټول وختونه وي، لکه مشرق او مغرب وئیلو نه ټوله دنیا مراد کولے شي - په دے صورت کښې به معنیٰ د آیت دا شي چه په انسان لازمه ده چه همیشه په هر حالت کښې د ذکر او تلاوت پابند وي، حضرت عائشهؓ فرمائي چه نبي کریم صلے الله علیه وسلم به په هر وخت او هر حال کښې د الله تعالیٰ په ذکر کښې مشغول وُو -

د آیت په اخر کښې فرمائي: وَلَا تَكُنْ مِّنَ الْغٰفِلِيْنَ: یعنی د الله تعالیٰ یادمه پاتے کوه او په غفلت کوونکو کښې مهٔ شاملیږه چه دا ډیره لویه خساره او تاوان دے -

په بل آیت کښې د خلقو د عبرت او نصیحت د پاره د الله تعالیٰ د مقربو مخصوص حال بیان شوے دے - چه کوم خلق د الله تعالیٰ سره دي هغوی د دهٔ د عبادت نه تکبر نه کوي - د الله تعالیٰ سره د کیدو نه مراد د الله تعالیٰ مقبول کیدل دي چه په دے کښې ټول فرښتے او ټول انبیاء علیهم السلام او صالحان د اُمت شامل دي - او د تکبر کولو مطلب دا دے چه ځپل ځان لوئے گنړلو سره د هغهٔ په عبادتونو کښې کمے نه کوي بلکه ځپل ځان عاجز او محتاج گنړي همیشه د الله تعالیٰ په یادو او عبادت کښې مشغول ګډا و تسبیح کوي - او الله تعالیٰ ته سجده کوي -

د دے نه دا هم معلومه شوه چه کوم خلقو ته د همیشه عبادت او خدائے یادولو توفیق وي نو دا د دے نښنه ده چه دے هر وخت د الله تعالیٰ سره دے - او د الله تعالیٰ ملګرتیا ورته حاصل ده -

| د سجدے بعضے فضیلتونه او حکمونه | دلته د مانځه د عبادت نه صرف د سجدے ذکر ځکه اوشو چه د مانځه په ټولو ارکانو کښې سجدے ته |
|---|---|

خاص فضیلت حاصل دے -

په صحیح مسلم کښې دی چه یو سړی حضرت ثوبان رضی الله عنه ته اُووے چه ما ته څۀ داسے عمل اوښایه چه په هغې سره زۀ جنت ته لاړ شم حضرت ثوبانؓ خاموش شو، دۀ بیا سوال اوکړو، بیا هم خاموش شو، چه دریم ځل ئے سوال اوکړو نو هغوئی اُووے چه ما دا سوال د نبی کریم صلے الله علیه وسلم نه کړے وۀ - هغوی ما ته دا وصیت فرمائیلے وۀ چه ډیرے سجدے کوه ځکه چه کله ته یو سجده کوے نو د هغې په وجه سره الله تعالیٰ ستا یو درجه زیاتوی او یو ګناه د معاف کوی. دا سړے وائی چه د حضرت ثوبانؓ نه پس ما د حضرت ابو درداءؓ نه دا سوال اوکړو هغوی هم دا جواب راکړو.

او په صحیح مسلم کښې په روایت د حضرت ابوهریره نقل دی چه نبی کریم صلے الله علیه وسلم فرمائیلی دی چه بنده خپل رب ته د ټولو نه نزدے هغه وخت وی کله چه بنده په سجده کښې وی - په دے وجه تاسو د سجدے په حالت کښې ښۀ دُعا کوئ چه په دے حالت کښې د قبلید و امید ډیر زیات دے -

پوهه شه چه یوائې سجده څۀ معلوم عبادت نه دے په دے وجه د امام اعظم ابوحنیفهؒ په نزد د ډیرو سجدو نه مراد دا دے چه نفلونه ډیر کوه څوموره چه نفلونه زیات وی سجدے به زیاتے وی -

لیکن که یو سړے یوائې سجده کوی او دُعا کوی نو په دے کښې هم څۀ باک نیشته - او په سجده کښې د دُعا کولو هدایت د نفلی مونځونو د پاره خاص دے په فرضو کښې نیشته -

سورت اعراف ختم شو د دے سورت اخری ایت د سجدے ایت دے په صحیح مسلم کښې په روایت د حضرت ابوهریره رضی الله عنه نقل دی چه هر کله د ادم یو څوئی څۀ ایت د سجدے اولولی او بیا د تلاوت سجده کوی نو شیطان چغې وهی ځاړی او تختی او وائی چه هائے افسوس دے انسان ته د سجدے کولو حکم ملاؤ شو

اوده او منلو سجده ئے او کړه نو دوئ ځائے جنت شو، او ما ته د سجدے
کولو حکم او شو نو ما نافرمانی او کړه نو ځائے دوزخ شو۔

# سورتِ اعراف ختم شو

وَالْحَمْدُ لِلّٰهِ رَبِّ الْعٰلَمِيْنَ

# سُوْرَةُ الْاَنْفَالِ

سُوْرَةُ الْاَنْفَالِ مَدَنِيَّةٌ وَّهِيَ خَمْسٌ وَّسَبْعُوْنَ اٰيَةً وَّعَشْرُ رُكُوْعَاتٍ

سورتِ انفال په مدينه کښې نازل شوې ده کښې پنځه اويا آيا تونه او لس رکوع گانې دي

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ ○

شروع کوم د الله په نوم سره چه بے حده مهربان نهايت رحم والا دے

يَسْـَٔلُوْنَكَ عَنِ الْاَنْفَالِ ۭ قُلِ الْاَنْفَالُ لِلّٰهِ وَالرَّسُوْلِ ۚ

تپوس کوی ستا نه د حکم د غنیمت - ته او وايه چه مال د غنیمت د الله دے او د رسول

فَاتَّقُوا اللّٰهَ وَاَصْلِحُوْا ذَاتَ بَيْنِكُمْ ۠ وَاَطِيْعُوا اللّٰهَ

پس ويره کوئ د الله نه او صلح کوئ په خپل مينځ کښې او حکم منئ د الله پاک

وَرَسُوْلَهٗٓ اِنْ كُنْتُمْ مُّؤْمِنِيْنَ ①

او د هغهٔ د رسول که ايمان لرئ -

## دَ سُوْرَتْ مَضْمُوْنُوْنه

سورت انفال کوم چه د وخت شروع کيږي دا مدنی سورت دے د دے نه وړاندې سورت

يعنی سورتِ اعراف کښې د مشرکانو او اهلِ کتاب و د جهل ناروغئ ، کفر او فساد ذکر او د دے متعلقه بحثونو بيان وه -

په دے سورت کښې زيات تر مضمونونه د بدر د غزا په موقع باندې

دهغو خلقو د بد انجام، ناکامۍ او شکست، او د هغو په مقابله کښې د مسلمانانو د کامیابۍ او فتوحاتو سره تعلق لري، کوم چه د مسلمانانو د پاره احسان او انعام او د کافرانو د پاره عذاب او انتقام وُه۔

او چونکه د دے انعام د ټولو نه لویه وجه د مسلمانانو خلوص او للهیّت او د یو بل سره اتفاق دے، نو دا اخلاص او اتفاق نتیجه ده د الله تعالیٰ او د هغهٔ د رسول صلی الله علیه وسلم د مکملے فرمانبردارۍ۔ په دے وجه د سورت په شروع کښې ئے د تقوی او د الله تعالیٰ د حکم منلو او د الله تعالیٰ د ذکر او د توکّل وغیره تعلیم ورکړے شوے۔

# لنډ تفسير

دا خلق ستا نه د غنیمتو نو د حکم تپوس کوي ته اُو فرمایه چه دا غنیمتونه د الله تعالیٰ (یعني دغه د الله تعالیٰ ملکیّت دے د هغهٔ حق دے چه کوم د دے متعلق څهٔ حکم غواړي هغه اوکړي) او د رسول دي (په دے معنیٰ چه هغه د الله تعالیٰ حکم بیا موي او هغهٔ پکښې نافذ کړي. حاصل دا دے چه د غنیمتونو د مالونو په باره کښې ستا سو رائے او تجویز له هیڅ دخل نیشته بلکه د دے فیصله به په شرعي حکم باندې وي،) نو تاسو (د دنیا حرص مه کوئ د آخرت طلب کوئ دا سے چه) د الله تعالیٰ نه یره کوئ او پخپل مینځ کښې د تعلقاتو اصلاح کوئ (چه ستاسو په مینځ کښې بغض او حسد پاتے نه شي) او د الله تعالیٰ او د هغهٔ د رسول حکم منئ که تاسو ایمانداریئ۔

# معلومات او مسئلے

دا آیت د بدر په غزا کښې د پیښیے شوے یو واقعے سره تعلق لري د آیت د مفصّل تفسیر نه وړاندې دغه واقعه مخے ته راولئ نو به تفسیر پوهیدل به آسان شي۔

واقعه دا ده چه د بدر غزا کومه چه د کفر او اسلام د ټولو نه اوله لړائي وَه په دے کښې چه کله مسلمانانو فتح بیاموندہ او د غنیمت څهٔ مال ئے په لاس

راغی۔ نو دَ اصحابو کرامؓ په مینځ کښې دَ دې تقسیم متعلق یو داسې واقعه را پیښه شوه کومه چه دَ اخلاص او اتفاق دَ دغې مقام سره نه بنایېده په کوم کښې چه دَ اصحابو کرامؓ پوره ژوند برابر شوے وَه۔ په دې وجه ئې دَ تولو نه اول په ایت کښې دَ دې فیصله اوفرمائیله چه دَ دې پاک ټولی په زړونو کښې دَ صدق اخلاص او اتفاق او قربانئ نه سوا څۀ پاتې نه شي۔

دَ دې واقعې تفصیل دَ بدر په غزا کښې دَ شریک حضرت عبادهؓ ژبانی په مسند احمد، ترمذی، ابن ماجه، مستدرک، حاکم وغیره کښې داسې نقل دې چه دَ حضرت عباده بن صامتؓ نه چا په دې ایت کښې دَ لفظ دَ : اَنفال: دَ مطلب تپوس اوکړو۔ نو دوئ اوفرمائیل چه دا ایت خو زمونږ یعنی دَ اصحابو دَ بدر په باره کښې نازل شوے دَے چه واقعه ئې داوه چه دَ غنیمت دَ مال دَ تقسیم په باره کښې زمونږ په مینځ کښې څۀ اختلاف پیدا شوے وَه۔ کوم چه زمونږ په اخلاقو باندې بد اثر واچولو، الله تعالیٰ دَ دې ایت په ذریعه دَ غنیمت مالونه زمونږ دَ لاسو نه واغستل نبی کریم صلے الله علیه وسلم ته ئې اوسپارل او نبی کریم صلے الله علیه وسلم په ټولو حاضرینو دَ بدر باندې برابر برابر تقسیم کړل۔

صورت داسې را پیښ شوے وَه چه مونږ ټول دَ نبی کریم صلے الله علیه وسلم سره دَ بدر غزا ته اوتلو او دَ دواړو ډلو په مینځ کښې دَ زبردست جنګ نه پس الله تعالیٰ دشمن له شکست ورکړو۔ نو اوس زمونږ لښکر درې حصې شو څۀ خلق په دشمن پسې لاړل چه دوی واپس نه شي څۀ خلق دَ کفارو دَ پاتې کړی مال په جمع کولو کښې اولګیدل، څۀ خلق دَ نبی کریم صلے الله علیه وسلم نه چاپیره جمع شو چه ترڅو پټ دشمن په نبی کریم صلے الله علیه وسلم حمله اونه کړی۔ هر کله چه جنګ ختم شو او دَ شپې هر سړے خپل خپل دَ آرام ځائے ته راورسیدو، نو کوم خلقو چه دَ غنیمت مال جمع کړے وو هغوی اووے چه دا مال خو مونږ جمع کړے دے په دې وجه په دې کښې زمونږ نه سوا دَ بل چا هیڅ حصه نیشته۔ اوکوم خلق چه په دشمن پسې تلی وُو هغوی اووے چه تاسو خلق زمونږ نه زیات دَ دې حقدار نه یئ ځکه چه دشمن مونږه په شا تختولے وَه او تاسو ته دا موقع مونږ په لاس درکړه چه په بے فکرئ سره

تا سودا مال جمع کړو، او کوم خلق چه د نبی کریم صلے الله علیه وسلم نه د حفاظت د پاره چاپیره شوی وُو- هغوی اووے چه که موننږ غو بنتلے نو موننږ به هم د غنیمت د مال جمع کولو کښے ستاسو سره شریک شوی وُو، لیکن د نبی کریم صلے الله علیه وسلم حفاظت کوم چه د جهاد د ټولو نه اهم کار وه موننږ په دے کښے مشغول وُو- په دے وجه موننږ هم د دے مستحق یُو -

د اصحاب بدر کوامو دا خبرے اترے نبی کریم صلے الله علیه وسلم ته اور سیدے نو په دے باندے دا ذکر شوے ایت نازل شو کوم چه واضحه کړه چه دا مال د الله تعالیٰ دے د دے هیڅوک مالک او حقدار نیشته، پغیر د هغه نه کوم لره چه نبی کریم صلے الله علیه وسلم ورکړی- نبی کریم صلے الله علیه وسلم د الله تعالیٰ د ارشاد مطابق دغه مال په ټولو شریکانو د جهاد برابر برابر تقسیم کړو (ابن کثیر) - او ټول د الله تعالیٰ او رسول په دے فیصله راضی شو او د دوی د شان خلاف چه د دوی کوم صورتِ حال جوړ شوے وُو په هغے باندے ټول خپما نه شو -

او په مسند احمد کښے د دے ایت د شانِ نزول یو بل واقعه د حضرت سعد بن ابی وقاص هم نقل ده - هغهٔ فرمائی چه د بدر په جهاد کښے زما رور عمیرٌ شهید شو، ما د دهٔ په مقابله کښے د مشرکینو نه سعید بن العاص لره قتل کړو، او د هغهٔ نه م توره واغسته د نبی کریم صلے الله علیه وسلم په خدمت کښے حاضر شوم- ما غو بنتله چه دا توره ماته ملاؤ شی مګر نبی کریم صلے الله علیه وسلم حکم او کړو چه دا د غنیمت په مال کښے جمع کړه زهٔ په حکم منلو مجبور وُم مګر زما زړه په دے سره سخت دردید و، چه زما رور شهید شو او ما د هغهٔ مقابله کښے یو دشمن مړ کړو د هغهٔ توره م حاصله کړه هغه هم زما نه واغستے شوه مګر سره د دے م د حکم تعمیل اوکړو او په مال د غنیمت کښے د جمع کولو د پاره روان شوم، نو لا لرے نه وُم تلے چه په نبی کریم صلے الله علیه وسلم د سورتِ انفال دا ایت نازل شو او زهٔ ئے راؤ بللم دا توره ئے ماته عنایت او فرمائیله په بعضو روایتونو کښے دا هم ده چه حضرت سعد نبی کریم صلے الله علیه وسلم ته عرض هم کړے وُه چه دا توره دِ ماته راکړے شی مګر دوئی او فرمائیل

چه نهٔ دا ځما شي دے چه ځان لره ئے ورکړم او نهٔ ستا مِلک دے دا به پوره مال دَ غنیمت کښے جمع کړه۔ دَ دے چه الله تعالیٰ څهٔ فیصله او فرمائی هغسے به کیږی۔ (ابن کثیر، مظهری)۔

په دے ټولو کښے هیڅ لرے والے نیشته چه دا دواړه واقعے را پیښے شوے وی او دَ دواړو په جواب کښے دا آیت نازل شوے وی۔

## دَ آیت پوره تفسیر داد ے

په دے کښے لفظ دَ اَنفال: دَ نفل جمع ده چه معنیٰ ئے ده فضل او انعام‘۔ نفل مونځ، روژه، صدقے ته هم نفل ځکه وائی۔ چه دا دَ چا په ذمه لازم او واجب نه وی کوونکے ئے پخپله خوشئ سره کوی۔ دَ قرآن او سنت په اصطلاح کښے لفظ دَ نفل او انفال دَ غنیمت مال ته هم وئیلے شی کوم چه دَ کفارو نه دَ جهاد په وخت کښے حاصلیږی۔ مګر په قرآن کریم کښے دَ دے معنیٰ دَ پاره درے لفظونه استعمال شوی دی، اَنفَال، غَنِیمَة، فَیْ۔ لفظ دَ انفال خو په دے آیت کښے ذکر دے۔ او لفظ دَ: غَنِیمَة: او دَ هغے تفصیل دَ دے سورت په یو څلویښتم آیت کښے را تلونکے دے۔ او لفظ دَ: فَیْ: او دَ دے متعلقه تفسیر په سورت حشر کښے بیان شوے دے: وَمَآ اَفَآءَ اللّٰهُ الآیة: او دَ دے درے واړو معنے په لږ لږ فرق سره مختلفے دی۔ دَ معمولی او لږ فرق والی په وجه سره بعض وخت یو لفظ دَ بل په ځائے مطلق دَ مال دَ غنیمت دَ پاره هم استعمالولے شی،۔

غَنِیمَة: په عام طور سره هغه مال ته وئیلے شی کوم چه دَ جنګ او جهاد په ذریعه دَ مخالف فریق نه حاصل شی، او فَیْ: هغه مال ته وئیلے شی کوم چه په غیر دَ جنګ او جګړے نه دَ کفارو نه ملاؤ شی۔ خواه هغوی او تختی او مال پاتے کړی، یا په رضامندئ سره ئے ورکول قبول کړی۔ او دَ نَفَل: او: اَنفَال: لفظ اکثر هغه انعام ته وئیلے شی کوم چه دَ جهاد امیر چا خاص مجاهد ته دَ دهٔ دَ کارګزارئ په صِله کښے علاوه دَ حصے دَ غنیمت نه په طور دَ انعام ورکړے شی۔ دا معنیٰ په تفسیر ابن جریر کښے دَ حضرت عبدالله بن عباسؓ نه نقل شوے ده (ابن کثیر)

او کله مطلق مال غنیمت ته نفل او انفال وئیلے شی۔ په دے آیت کښے اکثر و

تفسير ليکونکو داعامه معنیٰ اغستے ده - په صحيح بخاری کښې د حضرت عبد الله بن عباسؓ نه داعامه معنیٰ نقل شوے ده - او حقيقت دادے چه دالفظ د عام اوخاص دواړو معنو د پاره وئيلے شی، په دے وجه څه اختلاف نيشتے - او د دے بهترينه تشريح او تحقيق حغه دے کوم چه امام ابوعبيدؒ پخپل کتاب الاموال کښې ذکر کړے دے، دے فرمائی چه په اصل لغت کښې نفل وائی فضل او انعام ته او په دے امت مرحومه باندِ د الله تعالیٰ دا فضل او خصوصی انعام دے چه د جهاد او قتال په ذريعه کوم مالونه د کفارو نه حاصل شی دغه ئے د مسلمانانو د پاره حلال کړی دی - ورنه په تيرو اُمتونو کښې دا دستور نه وُو - بلکه د غنيمت د مال د پاره قانون داوه چه دغه د چا د پاره حلال نه وُو - ټول مالونه د غنيمت به ئے يو ځائے ته جمع کول او د آسمان نه به په قدرتی طور سره يو اُور (بجلی) راتلو، او هغه به ئے سوزولو او اسيرے کولو به ئے - دغه به د دغے جهاد د الله تعالیٰ په نزد د قبليدو نښه وه - او که دغه د غنيمت مال به اُور او نه سوزولو نو دا نښه د دے وه چه دغه جهاد د الله تعالیٰ په نزد مقبول نه دے په دے وجه به ئے دغه د غنيمت مال مردود او منحوس گڼړلو او دغه به چيچا نه استعمالولو -

د نبی کريم صلے الله عليه وسلم نه په روايت د حضرت جابرؓ په بخاری او مسلم کښې نقل دی چه دوئ فرمائيلی دی چه ما ته پنځه څيزونه داسے راکړے شوی دی چه ما نه وړاندِ يو پيغمبر او د دوی امت ته نهٔ وُو ورکړے شوی - په دغو پنځو څيزونو کښې يو دادے چه: اُحِلَّتْ لِیَ الْغَنَائِمَ وَ لَمْ تَحِلَّ لِاَحَدٍ قَبْلِي: يعنی ما د پاره د غنيمت مالونه حلال کړے شوی دی حال دادے چه ما نه وړاندِ د چا د پاره نه وُو حلال -

په ذکر شوی ايت کښې د انفال حکم داخود لے شوے دے چه د دغه د الله تعالیٰ او د رسول دی - معنیٰ د دے داده چه اصل ملکيت خو د الله تعالیٰ دے او تصرف کوونکے په دے کښې د الله تعالیٰ رسول دے کوم چه د الله تعالیٰ د حکم مطابق ئے پخپل صوابديد سره په دوی تقسيموی -

په دے وجه د تفسیر د اماما نو یوه ډله چه په دوی کښې عبد الله بن عباسؓ مجاهدؒ، عکرمهؒ، سُدّیؒ وغیره داخل دی دا فرمائی چه دا حکم په اول د اسلام کښې وُه. کله چه د غنیمتو نو د تقسیم هغه قانون نه وُه نازل شوے کوم چه د دے سورت په پنځمه رکوع کښې راروان دے ځکه چه په دے کښې پوره مال د غنیمت لره ئے د نبی کریم صلے الله علیه وسلم په رضا یعنی صوابدید باندې پاتے کړے دے چه څنګه غواړی تصرف پکښې کوی. او وړاندې چه کوم تفصیلی حکمونه راغلی دی په هغے کښې دا دی چه د ټول مال د غنیمت پنځمه حِصّه دِ په بیت المال کښې د عامو مسلمانانو د ضرورتونو د پاره محفوظه کړی او څلور حصے دِ په جهاد کښې په شریکو خلقو د یو خاص قانون لاندې تقسیم کړے شی، کوم چه تفصیل ئے په صحیحو احادیثو کښې ذکر دے. دے تفصیلی بیان د سورت انفال اوّلنۍ آیت منسوخ کړو.

او بعضے حضرات فرمائی چه دلته څهٔ ناسخ منسوخ نیشته بلکه د اجمال او تفصیل فرق دے. د سورتِ انفال په اوّلنۍ آیت کښې اجمال دے او په یو څلو یښتم آیت کښې د دے تفصیل دے. البته مال د: فَیٔ: د کوم حکمونه چه په سورتِ حشر کښې بیان شوی دی هغه پوره په پوره د نبی کریم صلے الله علیه وسلم په تصرف کښې دے. دوی چه د خپل صوابدید مطابق څنګه غواړی عمل دِ پرے کوی. په دے وجه ئے هلته د احکامو بیانولو نه پس دا ارشاد فرمائیلے دے: وَمَآ اٰتٰىكُمُ الرَّسُوْلُ فَخُذُوْهُ وَمَا نَهٰىكُمْ عَنْهُ فَانْتَهُوْا: یعنی څهٔ چه تاسو لره فرمونږ رسول درکوی هغه اخلئ او کوم لره چه منع کوی د هغے نه ځان ساتئ.

د دے تفصیل نه معلومه شوه چه مال د غنیمت هغه دے کوم چه د جنګ او جهاد په ذریعه په لاس راشی، او مال د: فَیٔ: هغه دے کوم چه بغیر د جنګ او جهاد نه په لاس راشی، او لفظ د: انفال: د دواړو د پاره عام هم وئیلے شی، او خاص هغه انعام ته هم وئیلے شی کوم چه

يو غازي ته د جهاد امير ورکوي -

په دے سلسله کښے غازيانو ته د انعام ورکولو څلور صورتونه د نبي کريم صلے الله عليه وسلم د زمانے نه رائج دي - يو داچه دا اعلان اوکړي چه کوم سړے چا مخالف لره قتل کړي نو د قتل شوي سپاهي نه چه کوم سامان په لاس ورشي د غه د هغه دے چا چه دے قتل کړے وي د غه سامان په مال غنيمت کښے جمع کولے هم نه شي - دويم داچه د لوئے لښکر نه يوه ډله جدا کړي يو طرف ته ئے د جهاد د پاره اوليږي او دا حکم ورته اوکړي چه د دغے طرف نه کوم د غنيمت مال حاصل شي هغه به د دغے خاصے ډلے وي کومه چه هلته تلے ده، صرف دومره به وي چه د دغے مال نه به پنځمه حصه د بيت المال د پاره لرے کولے شي - دريم داچه پنځمه حصه کومه چه په بيت المال کښے جمع کولے شي په دے کښے څه خاص غازي لره د هغه په اعلیٰ کارګزارئ سره په صله کښے ورکولے شي د امير د صوابديد مطابق - څلورم داچه د پوره مال د غنيمت نه څه حصه جدا کړي او خدمت کوونکو خلقو ته ئے په طور د انعام ورکوي، کوم چه د مجاهدينو د اسونو وغيره حفاظت کوي او د دوي سره په کارونو کښے مدد کوي (ابن کثير)

د آيت د مضمون نچوړ دا شو چه نبي کريم صلے الله عليه وسلم ته خطاب کوي فرمائي چه خلق ستا نه د انفالو متعلق تپوس کوي ته دوي ته اووايه چه انفال ټول د الله تعالیٰ دي او د هغه د رسول، يعني پخپله څوک د دے حقدار يا مالک دے د الله تعالیٰ په حکم سره د هغه رسول چه څه فيصله اوکړي هغه به نافذ وي.

د دے آيت په آخري جمله کښے ارشاد فرمائي ؛ فَاتَّقُوا اللّٰهَ وَاَصْلِحُوْا ذَاتَ بَيْنِكُمْ وَاَطِيْعُوا اللّٰهَ وَرَسُوْلَهٗٓ اِنْ كُنْتُمْ مُّؤْمِنِيْنَ ؛ چه په

د خلقو په مينځ کښے د اتفاق او اتحاد بنياد په تقوىٰ او وېرې د الله تعالیٰ نه په فيره بانډے دے

دے کښے اصحابو کرامو ؓ ته خطاب کوي فرمائي چه د الله تعالیٰ نه يره کوئے او پخپل مينځ کښے تعلقات برابرساتئ - په دے کښے اشاره هغه واقعے طرف ته ده کومه چه د بدر په غزا کښے د غنيمت د مال د تقسيم په باره کښے د اصحابو کرامو په مينځ کښے رابيښه شوے وه - چه په هغے کښے د يو بل سره

دَ دُوړانیځ او خفګان پېره پیدا شوې وه - الله تعالیٰ دَ غنیمت دَ تقسیم معامله پخپله دَ دې آیت په ذریعه فیصله کړه - او س ئې دَ دوی دَ زړونو دَ اصلاح او دَ یو بل سره دَ تعلقاتو بنه کولو تدبیر او خودو چه مرکزی نقطه پکښې تقوی او دَ خدائې نه ېره ده -

تجربه ګواه ده چه کله تقوی او دَ خدائې ېره او دَ آخرت وېره غالبه شی نو لوئې لوئې جګړې په منټو نو کښې ختمیږی دَ یو بل نه دَ نفرت غرونه ګرد جو ړشی دَ الوزی دَ تقوی دارو حال په قول دَ مولانا رومیؒ داسې شی : ؎

خود چه جائے جنگ وجدل نیک و بد　　کین الم از صلحها هم میرمد

یعنی دَ داسې خلقو دَ پاره دَ جنګ جګړو سره خَم کاروی دوی ته خو دومره فرصت هم نه وی چه دَ خلقو اصلاح او درستی پکښې او کړی، ځکه دَ چا زړهٔ چه دَ الله تعالیٰ په محبت پېره او یادو کښې مشغول وی هغهٔ ته دَ نورمخلوق سره دَ تعلقاتو زیاتولو فرصت نه وی - ؎

بسودائے جانان زجان مشتغل　　بذکر حبیب از جهان مشتغل

ریعنی دَ دوست او حبیب په ذکر کښې دَ ځان نه ناخبره وی او دَ حبیب په یادو کښې دَ دنیا نه ناخبره وی -

په دې وجه په دې آیت کښې ئې دَ تقوی تدبیر او خودو ؛ أَصْلِحُوا ذَاتَ بَيْنِكُمْ : یعنی په ذریعه دَ تقوی دَ خپلو تعلقاتو اصلاح او کړی دَ دې زیاته تشریح ئې داسې او فرمائیله : وَأَطِيعُوا اللَّهَ وَرَسُولَهُ إِنْ كُنْتُمْ مُؤْمِنِينَ : یعنی دَ الله تعالیٰ او رسول مکرّم فرما نبرداری دِ وی که تاسو مؤمنان یئ - یعنی دَ ایمان تقاضا ده فرما نبرداری او دَ فرما نبرداری نتیجه ده تقوی ۰ او کله چه خلقو ته دا خیز ونه حاصل شی نو دَ دوی په مینځ کښې به جګړې خود بخود ختم شی او دَ دشمنئ په ځائې به په زړونو کښې الفت او محبت پیدا شی -

إِنَّمَا الْمُؤْمِنُونَ الَّذِينَ إِذَا ذُكِرَ اللَّهُ وَجِلَتْ

ایمان دار هغهٔ دی چه کله ورته نوم دریاد کړې شی دَ الله نو او ویریګی

قُلُوْبُهُمْ وَاِذَا تُلِيَتْ عَلَيْهِمْ اٰيٰتُهٗ زَادَتْهُمْ

د دوی زړونه او کله چه او لوستلے شي په دوی د هغه کلام نو زیاتشي د دوی

اِيْمَانًا وَّعَلٰى رَبِّهِمْ يَتَوَكَّلُوْنَ ۝۲ الَّذِيْنَ

ایمان او دوی پخپل رب باندې توکّل ساتي - هغه خلق کوم چه

يُقِيْمُوْنَ الصَّلٰوةَ وَمِمَّا رَزَقْنٰهُمْ يُنْفِقُوْنَ ۝۳

قائم ساتي مانځه لره او مونږ چه دوی لره کوم رزق ورکړے د هغے نه خرچ کوي

اُولٰٓئِكَ هُمُ الْمُؤْمِنُوْنَ حَقًّا ؕ لَهُمْ دَرَجٰتٌ

دغه دي رشتوني ایماندار ان - د دوی د پاره درجے دي

عِنْدَ رَبِّهِمْ وَمَغْفِرَةٌ وَّرِزْقٌ كَرِيْمٌ ۝۴

د خپل رب سره او معافي او رزق د عزت دے -

# لنډ تفسير

(پس) ایماندار خو هغه خلق دي چه کله (د دوی په مخ کښې) د الله تعالیٰ ذکر راشي نو (د هغهٔ لوئي ورته راویاد شي) د دوی زړونه اُویریکي او کله چه د الله تعالیٰ آیاتونه لوستلے شي دوی ته نو دغه آیاتونه د دوی ایمان لره نور زیات (مضبوط) کوي او دغه خلق پخپل رب توکّل کوي (او) کوم چه مونځ قائم ساتي او مونږ چه دوی لره څهٔ ورکړي دي د هغے نه دوی خرچ کوي (بس) رشتوني ایماندار دا خلق دي د دوی د پاره لوئے درجے دي د دوی د رب سره او (د دوی د پاره) مغفرت دے او د عزت رزق دے -

# معلومات او مسائل

## دَمؤمن خاص صفتونه

په ذکر شوو آیاتونو کښې دَ هغو خاصو صفتونو بیان دے کوم چه په هر مؤمن کښې پکار دی، په دے کښې اشاره ده چه هر مؤمن دِ خپلو ظاهری او باطنی حالاتو او صفتونو جائزه اخلی، کر دا صفتونه په ده کښې موجود وی نو دَ الله تعالیٰ شکر دِ ادا کړی چه هغهٔ ده لره دَ مؤمنانو صفتونه ورکړی دی، او که په ده کښے څهٔ صفت موجود نه وی یا وی مګر ضعیف او کمزورے وی نو دَ دے دَ حاصلولو یا قوی کولو فکر دِ شروع کړی۔

## اَوّلنے صفت دَ خدائے ویره

اَوّلنے صفت ئے دا بیان کړو: اَلَّذِيْنَ اِذَا ذُكِرَ اللّٰهُ وَجِلَتْ قُلُوْبُهُمْ: یعنی کله چه دَ دوی په وړاندِ دَ الله تعالیٰ ذکر اوشی نو دَ دوی زړونه اُویریګی مطلب دا دے چه دَ الله تعالیٰ لوئی او محبّت دَ دوی په زړونو کښے ځائے شو ے او څک وی چه دَ دے یوه تقاضا هیبت او ویره ده - دَ قرآن کریم په یو بل آیت کښے دَ دے ذکر کوی دَ محبّت خاوندانو ته زیرے ورکوی۔ : وَبَشِّرِ الْمُخْبِتِيْنَ الَّذِيْنَ اِذَا ذُكِرَ اللّٰهُ وَجِلَتْ قُلُوْبُهُمْ: یعنی خوشخبری ورکړه هغو تواضع کوُونکو نرم خویه خلقو ته دَ کوم زړونه چه یرَیګی کله چه دَ دوی په وړاندِ دَ الله تعالیٰ ذکر او کړے شی - په دے دواړو آیاتونو کښے دَ الله تعالیٰ دَ ذکر او یادو دَ یوے خاصے تقاضا ذکر دے یعنی هیبَت او ویره - او په بل آیت کښے ئے دَ الله تعالیٰ دَ ذکر دا خاصیّت هم بیان کړے دے چه په دے سره زړهٔ مطمئن کیږی: اَلَا بِذِكْرِ اللّٰهِ تَطْمَئِنُّ الْقُلُوْبُ: یعنی خاص دَ الله تعالیٰ په یادو سره زړونه مطمئن کیږی۔

دَ دے نه معلومه شوه چه په دے آیت کښے دَ کومے ویرے او هیبت ذکر دے هغه دَ زړهٔ دَ سکون او اطمینان خلاف نه دے۔ لکه دَ دَرِنده یا دُشمن ویره چه دَ زړهٔ سکون برباد وی - دَ الله تعالیٰ دَ ذکر سره

په زړه کښې پیدا کیدو نکې وېره ذ دې نه بالکل مختلفه ده او په دې وجه دلته لفظ د وېرې استعمال نه شو بلکه په لفظ دَ : وَجِلَ: سره ئې تعبیر اوکړو- چه دَ دې ترجمه مطلق وېره نه ده بلکه هغه هیبت دے کوم چه دَ مشرانو دَ لوئې شان په وجه په زړهٔ کښې پیدا کیږی - بعضې تفسیر لیکو نکی فرمائی چه دلته دَ الله تعالیٰ دَ ذکر او یادونه مراد دا دے چه څوک یو بنده دَ څهٔ گناه کولو اراده کوله، چه په دې حال کښې دهٔ ته خدائے یاد شو نو دے دَ الله تعالیٰ دَ عذاب نه اُویریدو او دَ گناه نه واپس شو په دې صورت کښې دَ وېرې نه مراد دَ عذاب نه ویره ده (بحر محیط)

## دویم صفت په ایمان کښې ترقی

دَ مؤمن دویم صفت ئې دا اوخودهٔ چه کله دَ دهٔ په مخ کښې دَ الله تعالیٰ ایاتونه تلاوت کولے شی نو دَ دهٔ ایمان زیاتیګی - دَ ایمان زیاتید و دا سې معنیٰ چه په هغې دَ ټولو عالمانو تفسیر لیکونکو او محدثینو اتفاق دے دا ده - چه دَ ایمان په قوت او کیفیت او نُور کښې ترقی کیږی۔ او دا تجربه شوې او لیدَ لے شوے ده چه په نیکو عملونو سره په ایمان کښې قوت او دا سې سینه سپړدیدل پیدا کیږی چه نیک عملونه بیا دَ دهٔ عادت جوړ شی چه په پاتے کولو ئې بیا دهٔ ته تکلیف وی او دَ گناه نه دَ دهٔ طبعی نفرت پیدا شی چه بیا ورته نهٔ نزدې کیږی۔ دَ ایمان دې مقام لره ئې په حدیث کښې دَ حلاوتِ ایمان په لفظ سره تعبیر فرمائیلے دے - چه دے لره چا دا سې نظم کړے دے : ؎

وَاِذَا حَلَّتِ الْحَلَاوَةُ قَلْبًا نَشَطَتْ فِی الْعِبَادَةِ الْاَعْضَاءُ

(یعنی کله چه په زړهٔ کښې خوږ والے دَ ایمان ځائے اُونیسی نو دَ دهٔ لاس خپے او ټول اندامونه په عبادت کښې راحت او مزه محسوسوی۔

په دې وجه بخو ړ دَ ایت دَ مضمون دا شو، چه په کامل مؤمن کښې دا صفت پکار دے چه کله دَ دهٔ په مخ کښې دَ الله تعالیٰ ایاتونه لوستلے شی نو دَ دهٔ په ایمان کښې رڼا او ترقی راځی او نیکو کارونو ته ئې مینه زیاته شی - دَ دې نه دا هم معلومه شوه چه څنګه عام مسلمان قرآن لولی

آو آوري، چه نهٔ ورسره دَ قرآن دَ ادب او احترام څهٔ اهتمام وي نهٔ دَ الله جلّ شانهٔ عظمت تصوري دا سے تلاوت مقصود او اعلیٰ نتیجو لره پیدا کوُنکے نه دے، اګرچه دَ ثواب نه ... هم خالي نهٔ وي -

## دریم صفت په الله توکّل

دریم صفت ئے دَ مؤمن دا بیان کړے دے چه دے په الله تعالیٰ توکّل کوي، دَ توکّل معنیٰ اعتماد او بَرَوَسه ده، مطلب دا دے چه په خپلو ټولو کارونو او حالاتو کښے دَ دهٔ مکمل اعتماد او بَرَوَسه صرف په ذات یَوُ دَ الله تعالیٰ جلّ شانهٔ باندِ وي - په صحیح حدیث کښے نبي کریم صلے الله علیه وسلم فرمائي چه دَ دے معنیٰ دا نه ده چه دَ خپلو ضروریاتو دَ پاره مادي اسباب او تدبیرُونه پاتے کړے شي، بلکه مطلب دا دے چه مادي اسبابو او آلاتو لره دَ اصل کامیابئ دَ پاره کافي نه ګنړي بلکه په قدر دَ قدرت او همّت مادي اسباب او تدبیرونه هم کوي او دَ دوي دَ استعمال نه پس معامله الله تعالیٰ ته سپاري او دا سے ګنړي چه دَ اسبابو پیدا کوُنکے هم هغه دے او دَ دے اسبابو دَ فائده ورپیدا کوونکے هم هغهٔ دے، کیږي به هغهٔ چه الله ئے غواړي -

په یو حدیث کښے فرمائي: اَجْمِلُوْا فِي الطَّلَبِ وَتَوَكَّلُوْا عَلَيْهِ، یعني دَ رزق او خپلو حاجتونو دَ حاصلو لو دَ پاره دَ متوسّطِ درجے طلب او دَ مادي اسبابو په ذریعه کوشش کوه بیا معامله الله تعالیٰ ته سپاره خپل زړهٔ او دماغ صرف په مادي تدبیرونو او اسبابو کښے ګیر کړے مه ساته -

## څلورم صِفت دَ مانځهٔ قائمول

څلورم صفت ئے دَ مؤمن قائم ساتل دَ مانځهٔ خودلي دي په دے کښے دا خبره دَ یاد ساتلو قابله ده چه دلته ئے دَ مانځهٔ کولُ نه دي وئیلي بلکه دَ مانځهٔ قائم ساتل ئے وئیلي دي - دَ اقامت لفظي معنیٰ دَ څهٔ شي نیغ اوُدَرَوَلُ دي - مراد دَ مانځهٔ قائمولو نه دا دے چه مونځ دَ پوره شرطونو او آدابو سره دا سے ادا کوي څنګه چه نبي کریم صلے الله علیه وسلم په خپل قول او عمل

سره خود لے ده- که د آدابو او شرائطو کوتاهی پکښې اوشوه نو هغې ته مونځ کول
نو ویلے شی مګر مونځ قائمول ورته نه شی ویلے، په قرآن کریم کښې چه د مانځه
کومے فائدے او برکتونه ذکر شوی دی او فرمائیلی ئے دی: اِنَّ الصَّلٰوةَ
تَنْهٰی عَنِ الْفَحْشَآءِ وَالْمُنْكَرِ: یعنی مونځ د بے حیائی او هرګناه نه منع کول کوی
دا په مونځ قائم ساتلو باندې موقوف دی. کله چه د مونځ په آدابونو کښې کوتاهی
اوشی، نو اګرچه د فتوے په رُو سره د دهٔ مونځ ته جائز ویلے شی. مګر د مونځ
په برکتونو کښې به د کوتاهئ په مقدار فرق را ځي، او په بعضو صورتونو
کښې خو په کُلی طور سره د دغې برکتونو نه محرومی وی -

## پنځم صفت د الله په لاره کښې خرچ کول

پنځم صفت د مؤمن دا بیان شوے دے چه الله تعالیٰ د دهٔ
لره کوم رزق ورکړے وی دے د هغې نه د الله تعالیٰ په لاره کښې خرچ کوی
دا د الله تعالیٰ په لاره کښې خرچ کول عام دی، ټولو صدقو او خیراتونو،
او وقف او صلهٔ رحمی لره چه زکوٰة صدقه فطر وغیر شرعی واجبات
پکښې هم داخل دی او نفلی صدقے او بخششونه هم او د میلمنو دوستانو
مشرانو مالی خدمتونه هم -

د مؤمن د دے پنځه صفتونو بیانولو نه پس ارشاد فرمائی: اُولٰٓئِكَ
هُمُ الْمُؤْمِنُوْنَ حَقًّا: یعنی داسے خلق رشتونی مؤمنان دی د کوموچه
ظاهر او باطن یو شان او زړهٔ او ژبه متفق وی- ورنه په چا کښې چه
دا صفتونه نهٔ وی هغه په ژبه خو: اَشْهَدُ اَنْ لَّآ اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ وَاَشْهَدُ اَنَّ مُحَمَّدًا
رَّسُوْلُ اللّٰهِ: وائی مګر د دوی په زړونو کښې نه د توحید رنګ او نه د
رسول اطاعت وی- د دوی عملونه د دوی د وینا رد کوی- په دے ایت کښې
دے طرف ته هم اشاره ده چه د هر حق یو حقیقت وی هر کله چه دغه
حاصل نهٔ وی حق نهٔ حاصلیږی -

یو سړی د حسن بصری رح نه تپوس اوکړو چه اے ابوسعید آیا ته
مؤمن ئے؟ نو دوی او فرمائیل چه روره ایمان دوه قسمه دے. ستا
د سوال مطلب که دا وی چه زهٔ په الله او د هغهٔ په فرښتو، کتابونو او

رسولانو او جنت او دوزخ او قیامت او حساب کتاب ایمان لرم نو جواب دا دے چه بے شکه زه مؤمن یم- او که ستا د سوال مطلب دا وی چه زه هغه مؤمن کامل یم د کوم ذکر چه د سورتِ انفال په ایت کښې دے نو ما ته نهٔ ده معلومه چه زهٔ په دغو کښې داخل یم او که نه- د سورتِ انفال د ایت نه هغه ایت مراد دے کوم چه اوس تا سو واؤریدو-

په ذکر شوی ایت کښې د رشتونی مؤمن د صفتو نو او ښېګړو نه لږ پس ارشاد فرمائی: لَهُمْ دَرَجٰتٌ عِنْدَ رَبِّهِمْ وَمَغْفِرَةٌ وَّرِزْقٌ كَرِيْمٌ؛ په دے کښې د رشتونی مؤمن د پاره د درے څیزو وعدهٔ او فرمائیله- یو اوُچتے درجے، دویم مغفرت، دریم د عزت رزق-

په تفسیر بحرِ محیط کښې دی چه د دے نه په وړاندې ایاتو نو کښې د رشتونی مؤمن کوم صفتو نه بیان شوی دی هغه درے قسمه دی، یو هغه چه تعلق ئے د زړهٔ او باطن سره دے، لکه ایمان، د خدائے ویره، په الله توکل، دویم هغه چه تعلق ئے د جسم او عمل سره دے لکه مونځ وغیره، دریم هغه چه تعلق ئے د انسان د مال سره دے لکه د الله تعالیٰ په لاره کښې خرچ کول-

د دے درے واړو قسمو نو په مقابله کښې د درے انعامونو ذکر راغلے دے، اوچتے درجے، د زړهٔ او باطنی صفتو نو په مقابله کښې، او مغفرت د هغو عملونو په مقابله کښې چه د انسان د ظاهر بدن سره تعلق لری لکه مونځ روژه وغیره لکه چه په حدیث کښې راغلی دی چه مونځ د ګناهونو کفاره دلا- او رزق کریم د الله په لاره کښې د خرچ کولو په مقابله کښې راغلے دے چه څهٔ ئے خرچ کړل د هغهٔ نه ډیر غوره او زیات به دهٔ ته په اخرت کښې ملاویږی-

---

كَمَآ اَخْرَجَكَ رَبُّكَ مِنْۢ بَيْتِكَ بِالْحَقِّ ص

لکه چه او ویستلو تا لره ستا رب ستا د کور نه د حق کار د پاره

وَإِنَّ فَرِيقًا مِّنَ الْمُؤْمِنِينَ لَكَٰرِهُونَ ﴿٥﴾

او یوه ډله د ایماندارو خټخے راضي نه وه -

يُجَادِلُونَكَ فِي الْحَقِّ بَعْدَ مَا تَبَيَّنَ كَأَنَّمَا

دوی ستاسره جګړه کوله په حقه خبره کښے د هغې د ظاهریدو نه پس ګویا دوی

يُسَاقُونَ إِلَى الْمَوْتِ وَهُمْ يَنظُرُونَ ﴿٦﴾

راخکودے کیږي د مرګ طرف ته او دوی ګوري وینی -

# لنډ تفسير

رد غنیمت د مال د خلقو په رضا نه تقسیمیدل بلکه د الله د طرف نه د دے تقسیمیدل اګرچه بعضو خلقو ته طبعًا ګران وُو مګر د ډیر مصلحتونو په وجه سره د اخیر او غوره دی - او دا معامله که د طبیعتونو نه خلاف ده مګر ډیر مصلحتونه پکښے دا سے دی) لکه چه ستا رب ستا د کور (او کلي) نه د مصلحت په بنا سره تا لره (بدر طرف ته) روان کړو او د مسلمانانو یوے ډلے (د خپل شمار او سامان د کموالي په وجه سره طبعًا) دے لره ګرانه ګنړله دوی په دے مصلحت (په کار) کښے (یعنی د جهاد او د لښکر د مقابلے په معامله کښے) پس د دے نتیجه د هغے ظهور شوے وه (د خپل بچاؤ د پاره په طور د مشورے) ستا سره دا سے جګړه کوله چه ګویا څوک دوی مرګ طرف ته راکاږي او دوی (مرګ لره ګویا) وینی (مګر اخر انجام د دے هم ښه شو چه اسلام غالب او کفر مغلوب شو) -

# معلومات او مسئلے

د سورت په شروع کښے دا بیان شوی دی چه د سورت انفال ډیر مضمونونه په ... مشرکانو او کافرانو باندے د عذاب او انتقام او په مسلمانانو

د احسان او انعام متعلق دي، او د دې په ضمن کښې د دواړو فريقو د پاره د عبرت او نصيحت احکام بيان شوي دي - او په دې معاملو کښې د ټولونه اول له او د ټولونه اهمه واقعه د بدر غزا وه - چه په دې کښې د ډير ساز و سامان شمار او قوت باوجود مشرکانو ته د جاني او مالي نقصانونو سره شکست او مسلمانانو ته سره د هر قسم کموالي او بې ساماني لويه فتح نصيب شوه - په دې صورت کښې د بدر د واقعې تفصيلي بيان دے چه د ذکر شوو آياتونو نه شروع کيږي -

په اولنۍ ايت کښې د دې خبرې ذکر دے چه د بعضو مسلمانانو د بدر په موقع جهاد کول خوښ نه وُو - مګر الله تعالیٰ د خپل خاص فرمان په ذريعه خپل رسول صلے الله عليه وسلم ته د جهاد حکم ورکړو نو ناخوښونکي هم ورسره شو - د دې خبرې د بيانولو د پاره چه قرآن کريم کوم الفاظ اختيار کړي دي هغه په خو قسمه د غور قابل دي -

اول دا چه د ايت شروع د: كَمَآ اَخْرَجَكَ رَبُّكَ: نه کيږي - په دې کښې لفظ د: كَمَا: يو داسې لفظ دے چه د تشبيه د پاره استعمالولے شي، نو غور طلب خبره دا ده چه دلته تشبيه د څهٔ شي سره ده - تفسير کوونکي حضرات د دې مختلف توجيهات بيان فرمائي د تفسير امام ابوحيان دغه شان پنځلس اقوال نقل کړي دي - په دې کښې زيات نزدې درې احتمالونه دي -

اول دا چه د دې تشبيه نه مقصد دا بيانول دي چه لکه څنګه د بدر د غزا د غنيمت د مال د تقسيم په وخت کښې د اصحابو کرامو په مينځ اختلاف رائے شوے وهٔ، بيا د الله تعالیٰ د حکم لاندې ټولو ستا د حکم تعميل اوکړو او د دې برکتونه او ښې نتيجې مخې ته راغلے - دغه شان د دې جهاد په شروع کښې د څهٔ خلقو د طرفه د ناخوښۍ اظهار اوشو بيا د الله تعالیٰ د حکم لاندې ټولو فرمانبرداري اوکړه او د دې غوره نتيجې او غوره فائدے اوُليدے شوے - د دې توجيه نسبت فراء، او مبرّد طرف ته دے - (بحر محيط) او دے لره ئے په بيان القرآن کښې ترجيح ورکړې ده لکه چه د لنډ تفسير نه معلومه شوه -

دویم احتمال دادے چه په تیرو ایاتو نو کښے د رشتو نو مؤمنانو د پاره په اخرت کښه اُوچتے درجے او د مغفرت او د عزتمند رزق وعده شوے وه۔ په دے ایاتو نو کښے دَ دغے وعدے دَ یقیني کیدو ذکر داسے اوکړو چه دَ اخرت وعده اګرچه اوس دَ سترګو نه پناه ده، مګر دَ الله تعالیٰ کومه وعده دَ نصرت او فتح چه دَ بدر په غزا کښے سترګو اُولیده دَ دے نه عبرت واخلئ او یقین اوکړئ چه څنګه دا وعده په دنیا کښے پوره شوه۔ دغه شان دَ اخرت وعده/به هم خامخا پوره شي (قرطبي بحواله نحاس)

دریم احتمال هغهٔ دے کوم چه ابو حیّانؒ دَ تفسیر لیکو نکو دَ یګڅلسوا قوالو دَ نقل کولو نه پس لیکلے دے چه، ما تر په دے کښے په یو قول با ندِ اطمینا ن نه وه۔ یوه ورځ ما په دے ایت کښے غور او فکر کو لو چه اُوده شوم نو ما په خوب کښے او لید ل چه زهٔ چرته ځم او یو سړے ما سره دے زهٔ دَ دے ایت متعلق دَ دهٔ سره بحث کوم او دا ورته وایم چه ما ته چرته داسے مشکل نه دے راپیښ شوے لکه دَ دے ایت په الفاظو کښے چه راپیښ شو، داسے معلومیګی چه دلته څهٔ لفظ محذوف دے، بیا یکدم په خوب کښے ما په زړهٔ کښے را غلل چه دلته لفظ: نَصَرَکَ: محذوف دے۔ دے لره پخپله ما هم خوښی کړه او دَ کوم سړی سره چه م بحث کا وَه هغهٔ هم خوښ کړ و۔ دَ بیدارید و نه پس م پرِ غور اوکړو نو ما اشکال ختم شو۔ ځکه چه په دے صورت کښے: کَمَا: دَ تشبیه دَ پاره نه دے بلکه دَ بیان دَ سبب دَ پاره استعمال شوے دے۔ او معنیٰ دَ ایت دا شوه چه په غزا دَ بدر کښے دَ الله جلّ شانهٗ دَ طرفه چه کوم خاص نصرت او امداد ستاسو شوے وَه دَ هغے سبب دا وَه چه په دے جهاد کښے چه تا څهٔ اوکړل هغه پخپل خواهش او دائے سره نه دی بلکه خالص دَ الله دَ امر او حکم تابع دِ اوکړو۔ دَ دهٔ په حکم سره تهٔ دَ خپل کور نه او وتلے او دَ حق دَ اطاعت دا نتیجه وی او داسے کیږی چه دَ الله تعالیٰ امداد او نصرت دَ هغهٔ ملګرے کیږی۔

په هر حال دَ ایت په دے جمله کښے دا درے واړه احتمالو نه شته۔ او صحیح دی، دَ دے نه پس په دے نظر واچوئ چه قرآن کریم دَ دے جهاد دَ پاره

دَ نبی کریم صلے الله علیه وسلم پخپله وتل ذکو نه کړهٔ بلکه داځے بیان کړل چه
الله تعالیٰ تهٔ اُو ویستلے۔ په دے کښے اشاره ده دَ نبی کریم صلے الله علیه وسلم
کمالِ بندګئ او اطاعت ته، چه ستا فعل یعنی کار په حقیقت کښے دَ الله تعالیٰ فعل
دے، کوم چه ستا په اندامونو سره صادریګی۔ لکه په یو حدیث قدُسی کښے
نبی کریم صلے الله علیه وسلم فرمائی چه کله یو بنده په بندګئ او فرمانبردارئ
سره الله تعالیٰ ته نزدیکت حاصل کړی نو الله تعالیٰ دَ دهٔ په باره کښے دا فرمائی
چه زهٔ دَ دهٔ سترګے شم دے چه څه وینی ځما په ذریعه وینی، زهٔ دَ دهٔ غوګونه
شم دے چه څهٔ آوری ځما په ذریعه آوری، زهٔ دَ دهٔ لاس او ښپے جوړ شم
دے چه څهٔ نیسی ځما په ذریعه نیسی کوم طرف ته چه ځی ځما په ذریعه ځی، دَ
دے پخو ړ دا دے چه دَ الله تعالیٰ خاص نصرت او امداد دَ دهٔ سره شی کوم
کارونه چه په ظاهره دَ دهٔ دَ سترګو غوګونو یا لاسونو خپو نه کیږی په حقیقت
کښے په هغے کښے دَ الله تعالیٰ قدرت کار فرماوی۔ ؎

رشتهٔ درګردنم افګنده دوست ميبرد هر جا که خاطر خواه اوست

لندن ه داره چه په لفظ دَ اَخْرَجَكَ : ئے دے طرف ته اشاره اوکړه
چه دَ نبی کریم صلے الله علیه وسلم دَ جهاد دَ پاره وتل په حقیقت کښے دَ
الله تعالیٰ وتل وُو کوم چه ستا دَ ذات نه ظاهر شوه۔

دلته دا خبره هم دَ نظر قابله ده چه: اَخْرَجَكَ رَبُّكَ: ئے اوفرمائیل
چه په دے کښے ئے دَ الله جل شانهٔ ذکر په صفت دَ ربّ سره اوکړو، دے
طرف ته ئے اشاره اوکړه چه دَ دے جهاد دَ پاره ستا ویستل په شان دَ
ربوبیّت سره او دَ تربیّت په تقاضا سره وُو۔ ځکه چه دَ دے په ذریعه
دَ مظلوم او مقهور و مسلمانانو دَ پاره فتحیاب
کیدل او دَ مغرورو او ظالمانو کفارو دَ پاره اوّل دَ عذاب مظاهره کول وُو۔

دَ : مِنْ بَيْتِكَ : معنیٰ ده : ستا دَ کور نه : مطلب دا شو چه اوویستلو
تا لره ستا ربّ ستا دَ کور نه۔ دَ جمهورو تفسیر لیکونکو په نزد دَ دے
کور نه مراد دَ مدینے طیبے کور یا پخپله مدینه طیبه ده۔ په کوم کښے چه
دَ هجرت نه پس تهٔ مقیم شوے، ځکه چه واقعه دَ بدر دَ هجرت په دویم

کال راپیښ شوه۔ دَ دے سره لفظ دَ: بِالْحَقِّ: ئے ورسره زیات کړو دلئے اوخوده چه دا تول کارروائی دَ حق حق کولو او باطل باطل کولو دَ پاره اوشوه۔ دَ نورو حکومتونو پشان دَ ملک گیرئ هوس یا دَ بادشاهانو غصه دَ دے سبب وَو۔

دَ آیت په آخر کښے ئے اوفرمائیل: وَاِنَّ فَرِیْقًا مِّنَ الْمُؤْمِنِیْنَ لَکٰرِهُوْنَ: یعنی یوے ډلے دَ مسلمانانو دے جهاد له کران گڼړلو او ناخوښ ئے وه۔ اصحابو کرامو ته دا گرانی ځکه او ولے راپیښه شوه۔ په دے دَ پوهیدو دَ پاره ددارنګ په راتلونکو نورو آیاتو نو دَ پوهیدو دَ پاره دَ بدر دَ غزا ابتدائی حالات او اسباب وړاندِ معلومول مناسب دی۔ نو اوّل دَ بدر دَ غزا یوه واقعه واورئ۔

دَ ابن عقبه او ابن عامر دَ بیان مطابق دا واقعه داده چه نبی کریم صلی الله علیه وسلم ته په مدینه طیبه کښے دا خبر ملاؤ شو چه ابوسفیان دَ یوے تجارتی قافلے سره دَ شام نه دَ تجارت مال راغستے دے او مکے طرف ته راروان دے، او په دے تجارت کښے دَ مکے ټول قریش شریک دی۔ دَ ابن عقبه دَ بیان مطابق دَ مکے یو قریشی سړے یا ښځه باقی نه وه پاتے چه په دے کښے ئے حصه نه وه، که دَ چا سره یو مثقال (یعنی څلور نیمے ماشے) سرزر هم وو نو هغهٔ په دے کښے خپله حصه اچولے وه۔ دَ دے قافلے دَ ټولے سرمائے متعلق دَ ابنِ عقبه روایت دادے چه پنځوس زره دیناره وه۔ دینار دَ سرو زرو سکه ده چه څلور نیمے ماشے وی دَ سرو دَ موجوده بازار قیمت په حساب سره دَ یو دینار قیمت دوه پنځوس روپے او دَ ټولے سرمائے قیمت شپږ ویشت لاکه روپے جوړیګی، او دا هم دَ نن نه بلکه دَ نن نه څوارلس سوه کاله مخکښے شپږ ویشت لاکه روپئ دی چه نن دَ شپږ ویشت کروړه نه هم زیات حیثیت لری۔ دَ دے تجارتی قافلے دَ حفاظت او کاروبار دَ پاره دَ قریشو اویا ځوانان او سرداران وُو۔ دَ دے نه معلومه شوه چه دا تجارتی قافله په حقیقت کښے دَ مکے دَ قریشو یوه تجارتی کمپنی وه۔

بغوی په روایت دَ ابن عباسؓ وغیره نقل کړی دی چه په دے قافله کښے دَ قریشو څلویښت سواره دَ قریشو دَ سردارانو نه وُو چه پکښے عمرو بن العاص مخرمه بن نوفل په خاص طور سره دَ ذکر قابل دی۔ او دا هم

معلومه وه چه د قریشو د تهولو نه لوئے طاقت د دوی دا تجارت او تجارتی سرمایه وه، د کوم په زور سره چه دوی نبی کریم صلی الله علیه وسلم او د ده ملګرو له تنګ کړل په مکه پریښودو ته مجبوره کړی وُو - دا وخت هرکله چه نبی کریم صلی الله علیه وسلم ته د شام د سفر نه د واپسی خبر د دے قافلے ملاؤ شو نو د دوی ذائے دا مقرر شو چه دا وخت د دے قافلے د مقابلے کولو او د قریشو د طاقت ماتولو موقع ده - ذا صحابو کرامو سره ئے مشوره اوکړه نو د رمضان میاشت وه او د وړاندے نه د څه جنګی تیاری نه وه بعضو حضراتو خو د چستئ او همت اظهار اوکړو مګر بعضو څه اړتنګ دوتنګ اوکړو د دوی هم په تهولو باندے د دے جهاد شرکت لازم نه کړو بلکه دا حکم ئے اوکړو چه د کوم خلقو سره سوارلئ موجود دے دی هغه د زمونږ سره ځی - د غه وخت ډیر خلق د جهاد د تلو نه پاتے شو او کوم خلقو چه تلل غوښتل او د هغوی سوارلئ په بانډو کښے وے هغوی اجازت اوغوښتلو چه مونږ خپلے سوارلئ راولو - او ستا سو سره روان شو مګر وخت د دومره انتظار نه وُو په دے وجه حکم اوشو چه د کوم خلقو سره سوارلئ موجودے دی او دوی تلل غواړی جهاد ته صرف هغه خلق د روان شی - د باهر نه د سوارلو راغوښتلو وخت نیشته، په دے وجه د دوی سره په تلو لکو خلقو کښے هم لږ خلق تیار شو، او د کوم حضراتو چه دے جهاد ته د تللو اراده نه وه د هغے سبب هم دا وُه چه دوی د تهولو په ذمه د جهاد شرکت نه وُو واجب کړے - او د دے خلقو دا هم اطمینان وُو چه دا خو تجارتی قافله ده څه جنګی لښکر نه دے چه د مقابلے د پاره ئے نبی کریم صلی الله علیه وسلم ته د ډیر لښکر او مجاهدینو ضرورت دے - په دے وجه د اصحابو کرامو ډیرلوئے جماعت په دے جهاد کښے شریک نه شو -

نبی کریم صلی الله علیه وسلم چه کله بیر سُقیا ته اورسید و نو قیس بن صعصعه رض ته ئے حکم اوکړو چه لښکر شمار کړی نو هغوی د شمارلو نه پس خبر ورکړو چه د دے شوه [۳۱۳] دیارلس کسان دی - نبی کریم صلی الله علیه وسلم چه وا ؤریدل نو خوشحاله شو او وئے فرمائیل چه دا تعداد د اصحابو د طالوت دے په دے وجه فال نیک د فتح او کامیابئ دے

دَ اصحابو کرامو سره تلل اوځيا اوبنان وو دَ هر وو دريو سړو دَ پاره يو اوښ وه. دوی به پرې په وار وار سوريدل پخپله دَ نبي کريم صلے الله عليه وسلم سره هم دوه حضرات په يو اوښ کښې شريک وو ابو لبابهؓ او حضرت عليؓ کله چه به دَ دوی وار دَ پياده تلو راغلو نو دے حضراتو به عرض کاوه چه تهٔ سوريهٔ مونږ به ستا دَ پاره پياده ځو. خو دَ رحمة للعلمين دَ طرف نه به دا جواب ملاويدو چه نهٔ تاسو ځما نه زيات قوی يئ او نه زهٔ دَ آخرت دَ ثواب نه بے حاجته يم چه دَ خپل ثواب موقع تاسو له درکړم په دے وجه پخپل وار به حضورؐ هم پياده تللو۔

بل طرف ته يو سړے دَ شام دَ ملک مشهور مقام عينِ زرقا ته او رسيد و دَ قافلے سالار ابوسفيان ته ئے دا خبر اورساوه چه نبي کريم صلے الله عليه وسلم دَ دے قافلے په انتظار کښې دے په تاسو پسے به درپسے کيږی۔ ابوسفيان احتياطی تدبير ونه اختيار کړل، هر کله چه دا قافله دَ حجاز په حدونو کښے داخله شوه نو يو هوښيار او چابک ست سړے ضمضم بن عمرو ئے شل مثقاله سره يعنی تقريباً دوه زره روپۓ مزدوری ورکړه په دے ئے راضی کړو چه دے په تيز رفتاره اوښه باندِ سورشی او دَ زر نه زر مکے ته خبر اورسوی چه دَ دوی قافلے ته دَ اصحابؓ نه خطره ده۔

ضمضم بن عمرو دَ هغے زمانے دَ خاص رسم مطابق دَ خطرے دَ اعلان کولو دَ پاره دَ خپلے اوښے يو غوږ پريکړو او خپلے کپړے ئے دَ وړاندِ او روستو نه څيرے کړے او اُلته کجاوه ئے دَ اوښے په شا باندِ کيخوده۔ دا نښه په هغه زمانه کښې دَ خطرے گنټی گڼړلے شوه۔ کله چه هغهٔ په دے شان سره مکے ته داخل شو۔ نو په ټوله مکه کښې شور زوږ خور شو او ټول قريش دَ ملاوغت دَ پاره تيار شو، کوم خلق چه دَ دے جنگ دَ پاره وتلے شو پخپله او وتل او کوم چه په څهٔ وجه سره معذور وو هغوی پخپل ځائے بل دَ جنگ دَ پاره تيار کړو، او صرف په درے ورځو کښې دا لښکر په پوره ساز و سامان سره تيار شو۔

په دوی کښې چه کوم خلق دَ دے جنگ دَ شرکت نه وړاندِ وروستو کيدل،

هغوی ته به دے خلقو د شک په نظر سره کتل، او د مسلمانانو هم خیال به ئے کولو، په دے وجه دا سے خلق به ئے په خاص طور سره جنګ ته د وتلو د پاره مجبوره کول، کوم خلق چه په دا مکه مسلمانان وو او لا تر اوسه ئے د خپلو عذرونو په وجه لا هجرت نه وو کړے بلکه په مکه کښے پاتے وو دوی او د بنو هاشم په خاندان کښے چه په چا هم دا ګمان وو چه دے د مسلمانانو سره همدردی ساتی دوی لره ئے هم د دے جنګ د پاره په وتلو مجبوره کول، په دغه مجبورو خلقو کښے د نبی کریم صلے الله علیه وسلم تره حضرت عباسؓ او د ابو طالب دوه ځامن طالب او عقیل هم وو۔

دغه شان په دے لښکر کښے زرتنه ځوانان دوه سوه آسونه او شپږ سوه اوښان او سندرے ویونکے وینځے وو، دوی نغارے واغستے د بدر طرف ته روان شو په هر منزل به لس لس اوښان د دے خلقو د خوراک د پاره ذبح کیدل،

بل طرف ته نبی کریم صلے الله علیه وسلم صرف د یو تجارتی قافلے د مقابلے په اندازه سره تیاری اوکړه په دولسم د رمضان د خالی په ورځ د مدینے طیبے نه اووتل او د یو څو منزله تللو نه پس چه بدر ته نزدے اورسیدل نو دوه تنه سړی ئے وړاندې او لیږل چه د ابو سفیان د قافلے خبر راوړی (مظهری)

مخبرانو دا خبر راوړو چه د ابو سفیان قافله د نبی کریم صلے الله علیه وسلم د تعاقب ( روړیسے کیدلو ) نه خبر شوے ده د دریاب په غاړه غاړه تیره شوه، او د هغوی د حفاظت او د مسلمانانو د مقابلے د پاره د مکے مکرمے نه د زرو تنو ځوانانو لښکر د جنګ د پاره راروان دے۔ (ابن کثیر)

ظاهره خبره ده چه دے خبر د حالاتو نقشه بدله کړه دغه وخت نبی کریم صلے الله علیه وسلم د خپلو ملګرو اصحابو کرامؓ سره مشوره اوفرمائیله چه د دے راتلونکی لښکر سره جنګ کوو او کنه۔ حضرت ابو ایوب انصاریؓ او بعضو نورو حضراتو عرض اوکړو چه په مونږ کښے د دوی د مقابلے طاقت نیشته، او نه مونږ په دے قصد سره راغلی یو، په دے خبره حضرت صدیق

اکبرؓ پاسیدو او دَ حکم منلو دَ پاره ئے مخلص ځان پیش کړو، بیا فاروقِ اعظمؓ پاسیدو او دغه شان دَ حکم منلو او جهاد دَ پاره دَ خپل ځان پیش کولو اظهار ئے اوکړو، په دے باندِ حضرت مقدادؓ پاسیدو او عرض ئے اوکړو چه :-

یارسول الله تاته چه دَ الله تعالیٰ دَ طرفه څهٔ حکم ملاؤ دے ته هغه جاری کړه مونږ ستاسره یُو، په خدائے قسم دے مونږ به تا ته هغه جواب درنه کړو کوم چه بنی اسرائیلو موسیٰ علیه السلام ته ورکړے وه : اِذۡهَبۡ اَنۡتَ وَرَبُّكَ فَقَاتِلَاۤ اِنَّا هٰهُنَا قٰعِدُوۡنَ : یعنی ته او ستا ربّ لاړ شئ جنګ اوکړئ مونږ به دلته ناست یُو: قسم دے په هغه ذات کوم چه تهٔ دَ حق دین سره رالیګلے ئے که تهٔ مونږ دَ حبشو ملک کښے دَ برک الغماد مقام پورے هم بیائے نو مونږ به ستاسره دَ جنګ دَ پاره ځو۔

نبی کریم صلے الله علیه وسلم خوشحاله شو او دهٔ ته ئے دعاګانے اوکړے مګر تراوسه پورے دَ انصارو دَ طرف نه دَ موافقت څهٔ آواز پورته نه شو، او دا احتمال وُو، چه انصارو حضراتو کوم معاهده دَ نبی کریم صلے الله علیه وسلم سره دَ نصرت او امداد کړے وه هغه دَ مدینے دَ ننه وه دَ مدینے نه باهر دَ امداد کولو دوی پابند نه دی ۔ په دے وجه حضورؐ بیا مجمع ته خطاب اوکړو اوُ ئے فرمائیل چه خلقو مشوره راکړئ جنګ کوُو او که نهٔ ۔ دَ دے خطاب دَ خبرے مخ انصارو طرف ته وه ۔ حضرت سعد بن معاذؓ انصاری پوهه شو۔ او عرض ئے اوکړو چه یا رسول الله آیا تاسو زمونږ نه تپوس کوئ حضورؐ اوفرمائیل چه هاں، سعد بن معاذؓ عرض اوکړو :

یارسول الله! مونږ به تا ایمان راوړے او دَ دے شهادت مو کړے دے چه تاسو څهٔ فرمائیئ هغه حق دی او مونږ ستاسو سره عهد وپیمان کړے دے چه په هر حال کښے به ستا فرمانبرداری کوُو په دے وجه تاته چه دَ الله تعالیٰ نه څهٔ حکم ملاؤ شوے دے هغه

جاری کړئ، قسم دے په هغه ذات چا چه تهٔ د حق دین سره را لیږلے ئے که تهٔ مونږ دریاب ته بیائے نو مونږ به ستا سره دریاب ته ننوځو په مونږ کښے به یو سړے هم ستا نه وروستو پاتے نه شی مونږ ته دا هیڅ ګران نه ده چه که تهٔ مونږ صبا هم د دشمن سره جنګوے زمونږ اُمید دے چه الله تعالیٰ به تا ته زمونږ د کار هغه حالات اوښائی چه ستا سترګے به پرے یخے شی۔ مونږ د الله تعالیٰ په نوم چه کوم خوا غواړے بیا یه۔"

نبی کریم صلے الله علیه وسلم چه دا واؤریده نو ډیر خوشحاله شو او قافلے ته ئے حکم اوکړو چه د الله تعالیٰ په نوم بانډِ روان شئ۔ او دا خوشخبری ئے ورته واؤروله چه ما سره الله تعالیٰ داوعده فرمائیلے ده چه په دے دواړو ډلو کښے به په یوه ډله زمونږ غلبه وی۔ د دواړو ډلو نه مراد یوه د ابوسفیانؓ تجارتی قافله او دویمه دا دمکے نه راتلونکے لښکر دے۔ بیائے اوفرمائیل چه په خدائے قسم زهٔ ګویا پخپلو سترګو سره د مشرکانو د قتل ځائے وینم دا پوره واقعه د تفسیر ابن کثیر او مظهری نه اغستے شوے ده۔

د واقعے د تفصیل اؤریدو نه پس دے ذکر شوو آیاتونو ته اوګورئ، په اوّل آیت کښے چه دا ارشاد فرمائی: وَاِنَّ فَرِيْقًا مِّنَ الْمُؤْمِنِيْنَ لَكٰرِهُوْنَ؛ یعنی یوے ډلے د مسلمانانو دے جهاد لره ګران ګڼړلو۔ په دے سره اشاره هغے حال طرف ته ده کوم چه د اصحابو کرامؓ نه د مشورے اغستو په وخت کښے ظاهر شو چه دوی د جهاد نه پست همتی ښکاره کړه۔

او د دے واقعے بیان په بل آیت کښے دے؛ يُجَادِلُوْنَكَ فِي الْحَقِّ بَعْدَمَا تَبَيَّنَ كَاَنَّمَا يُسَاقُوْنَ اِلَى الْمَوْتِ وَهُمْ يَنْظُرُوْنَ؛ یعنی دا خلق ستا سره په حقه معامله کښے جګړه او اختلاف کوی ګویا دوی لره مرګ طرف ته راښکوے شی کوم لره چه دوی پخپلو سترګو سره وینی۔

اصحابو کرامؓ اګرچه د حکم نه څهٔ تجاوز نه وه کړے بلکه د مشورے په جواب کښے ئے د خپل ضُعف او کم همتئ اظهار کړے وه۔ مګر د رسول د ملګرو نه د دا سے رائے ظاهریدل هم د دوی د اوچت مقام په اعتبار سره د الله تعالیٰ په

نزد ناخوښه وه- په دے وجه د ناراضګۍ په الفاظو سره ئے دے لره بیان کړه -

وَاِذْ يَعِدُكُمُ اللّٰهُ اِحْدَى الطَّآئِفَتَيْنِ اَنَّهَا

او کوم وخت چه ستاسو سره وعده کوله الله په دوو ډلونه به یوه ستاسو په

لَكُمْ وَتَوَدُّوْنَ اَنَّ غَيْرَ ذَاتِ الشَّوْكَةِ

لاس درشي او تاسو غوښتل چه یکومه کښے ازغے نیشتے دغه

تَكُوْنُ لَكُمْ وَيُرِيْدُ اللّٰهُ اَنْ يُّحِقَّ الْحَقَّ

ستاسو په لاس درشي او الله تعالیٰ غوښتل چه رشتیا کړي رشتیا ؤ لره

بِكَلِمٰتِهٖ وَيَقْطَعَ دَابِرَ الْكٰفِرِيْنَ ﴿۷﴾ لِيُحِقَّ

په خپلو کلمو سره او پرې کړي ذیلے د کافرانو - د دې د پاره چه رشتیا کړي

الْحَقَّ وَيُبْطِلَ الْبَاطِلَ وَلَوْ كَرِهَ الْمُجْرِمُوْنَ ﴿۸﴾ ج

رشتیاؤ لره او دروغ کړي دروغو لره اګرچه ناراضه وي مجرمان -

اِذْ تَسْتَغِيْثُوْنَ رَبَّكُمْ فَاسْتَجَابَ لَكُمْ اَنِّيْ

کله چه تاسو فریاد کولو خپل رب ته نو هغهٔ اورسید وستاسو فریاد ته چه زهٔ

مُمِدُّكُمْ بِاَلْفٍ مِّنَ الْمَلٰٓئِكَةِ مُرْدِفِيْنَ ﴿۹﴾

به ستاسو مدد دراولیږم زر فرشتے پرلپسے را تلونکے -

وَمَا جَعَلَهُ اللّٰهُ اِلَّا بُشْرٰى وَلِتَطْمَئِنَّ بِهٖ قُلُوْبُكُمْ

او دا خو الله فقط خوشخبري درکړه او چه مطمئن شي په دے ستاسو زړونه -

وَمَا النَّصْرُ إِلَّا مِنْ عِندِ اللَّهِ ۚ إِنَّ اللَّهَ عَزِيزٌ حَكِيمٌ ﴿١٠﴾

ع ۱۵

او مدد نه دے مګر د الله د طرف نه دے - بے شکه الله زورآور دے حکمت والا -

# لنډ تفسير

او تاسو خلق هغه وخت یاد کړئ کله چه الله تعالیٰ تاسو سره د هغو دوه ووډلو (یعني تجارتي قافلے یا لښکر) نه د یوے (ډلے) وعده کوله چه دغه (ډله) به ستاسو لاس لره راشي (یعني مغلوب به شي دا وعده د مسلمانانو سره په واسطه د نبي کریم صلے الله علیه وسلم په ذریعه د وحي شوے وه) او تاسو به دے خواهش کښے وئے چه بے وسلے ډله (یعني تجارتي قافله) ستاسو لاس لره راشي او الله ته دا منظوره وه چه ځپلو حکمونو سره د حق حقوالے (عملاً ورلره غلبه ورکړي) ثابت کړي او ورد او ورته منظوره وه) چه د دے کافرانو بنیاد پریکړي چه د حق حقوالے او د باطل باطلوالے (عملاً) ثابت کړي اګرچه دا مجرمان خلق (یعني مغلوب شوي کافران دے لره خومره) ناخوښه کوي، هغه وخت یاد کړه هرکله چه تاسو خپل رب ته (چه خپل کموالے د شمارا او لږ والے د سامانونو ولیدو او فریاد موکړلو نو الله تعالیٰ ستاسو فریاد واورید ورا او وعده ئے اوکړه) چه ستاسو به په زرو فرښتو سره مدد اوکړم کوم چه به پرلپسے رارواني وي او الله تعالیٰ دا مدد صرف د دے (حکمت) د پاره اوکړو چه (تاسو ته د غلبے موندو زیرے وي او چه ستاسو زړونو ته قرار راشي (یعني د انسان تسلّي به طبعي طور سره په اسبابو او سامان سره کیږي په دے وجه هغه هم جمع کړے شو او ربه واقع کښے خو) نصرت (او غلبه) صرف د الله تعالیٰ د طرف نه ده کوم چه زبردست حکمت والا دے -

# معلومات او مسئلے

په ذکر شوو آیاتونو کښے د بدر د غزا واقعه او په دے کښے چه کوم د

الله تعالیٰ د طرف نه د نصرت او امداد مخصوص انعامونه په مسلمانانو باندِ شوی وُو د هغې بیان دے۔

په اول او دویم ایت کښې دا بیان شوے دے چه څۀ وخت نبی کریم صلے الله علیه وسلم او اصحابو کرامو ته دا اطلاع ملاؤ شوه چه د قریشو یو لوئے لښکر د خپلې تجارتی قافلې د حفاظت د پاره د مکے نه راوتلے دے نو اوس د مسلمانانو په وړاندِ دوه جماعتونه وُو یو تجارتی قافله چه په روایتونو کښې ورته عِیر وئیلے شوے دے او دویم دا مسلح فوج چه د مکے نه راروان وُه چه په روایتونو کښې ورته نفیر وئیلے شوے دے۔ په دے ایت کښې دا اوخودے چه دا وخت الله تعالیٰ د خپل رسول صلے الله علیه وسلم او د دۀ په واسطه د ټولو مسلمانانو سره دا وعده اوفرمائیله چه په دے دواړو ډلو کښې په یوه ډله به ستاسو مکمل قبضه راشی چه د دوی متعلق تاسو څۀ غواړئ کولے به شئ۔

اوس دا ظاهره ده چه په تجارتی قافله قبضه اسانه وه او ډیره پکښې نه وه او په مسلح فوج باندِ مشکله او د خطرونه ډکه۔ په دے وجه دے غیرواضحه وعدے لره چه واؤریدله نو د ډیرو اصحابو کرامو آرزو او خواهش دا شو چه هغه ډله په کومه چه د مسلمانانو د قبضے الله تعالیٰ وعده کړے ده دغه بے وسلے تجارتی قافله دِ شی۔ لیکن د نبی کریم صلے الله علیه وسلم او د ډیرو مشرانو اصحابو کرامو د الله تعالیٰ په اشاره باندِ دا اراده شوه چه په مسلح فوج باندِ چه قبضه اوشی نو دا غوره ده۔

په دے ایت کښې په قافله قبضه غوښتونکو مسلمانانو لره خبردار کړی دی چه تاسو ته خو د خپلے اسانئ او بے ډیرے کیدو په وجه دا غوره وه چه په بے وسلے قافله باندِ ستاسو قبضه راشی مګر د الله تعالیٰ اراده دا وَه چه د اسلام اصل مقصد حاصل شی یعنی د حق حق کیدل واضحه شی او د کافرانو زیلے پریکړے شی او ظاهره ده چه دا کار هغه وخت کیدے شو چه په مسلح فوج سره مقابله او په دوی د مسلمانانو مکمل قبضه او غلبه وی۔

پنځوم دا دے چه مسلمانانو لره په دے خبرول دی چه تاسو کوم صورت

غوره کړو دغه چې د کم همتئ او آرام طلبئ او وقتي فائدے شے وه او الله تعالیٰ
چه کومه اراده او فرمائیله داد لوئے همت او او چتو مقصد ونو او مکملو او په
همیشه فائد و باندې مشتمل وه - بیا په دویم ایت کښې دے لره زیاته واضح
کوی چه د الله د قدرت د قبضے نه خو هیڅ شے باهر نه وه - که هغه غوښتلے
نو په تجارتي قافله به د مسلمانانو غلبه او قبضه شوے وه - مګر هغه د
نبي کریم صلے الله علیه وسلم او اصحابو د شان مناسب دا او ګڼړله چه د مسلح
فوج سره مقابله اوشی او په دوی قبضه اوشی چه د حق حق والے او د باطل
باطلوالے ښکاره شی -

دلته دا خبره د غور کولو قابله ده چه الله تعالیٰ خو پوهه او خبردار
او د هر کار د اول او اخر نه با خبره دے د هغه د طرف نه په دے
غیر واضحه وعده کښې څه مصلحت وه چه په دے دواړو ډلو کښے
به په یوه ډله د مسلمانانو قبضه اوشی - دغو ترے یوه متعین کولے شو
او فرمائیلے شو چه په فلانئ ډله به قبضه اوشی -

د دے غیر واضحه کولو الله تعالیٰ پوهه دے خو وجه ئے دا معلومیګی
چه په دے کښے د اصحابو کرامو امتحان اغستل وو - چه اسان کار خوښوی
او که مشکل، او د دوی اخلاقي تربیت کول هم وو د کوم په ذریعه چه
ئے دوی ته عالي همتی د لویو مقصد ونو د پاره جد وجهد او د خطرو نه
نه ویریدل او خودل -

په دریم او څلورم ایاتونو کښے د هغې واقعے بیان دے کوم چه د مسلح
فوج سره د مقابلے مقرر کیدو نه پس مخ ته راغله - چه نبي کریم صلے الله علیه
وسلم هر کله دا اولیدل چه د دوی په مقابل کښې صرف درے سوه دیارلس او
هغه هم اکثر بے وسلے دی او په مقابله کښې تقریبًا د زرو تنو ځوانانو باوسله
لښکر دے نو د الله جل شانه په دربار کښې د نصرت او امداد د دعا د پاره
لاسونه اوچت کړل دوی به دعا غوښتله او اصحابو کرامو به امین ویل-

حضرت عبد الله بن عباس رض د نبي کریم صلے الله علیه وسلم د دعا دا
کلمے نقل کړي دي :-

"یا الله څما سره چه کومه وعده تا فرمائیلې ده هغه زر پوره کړې یاالله که د مسلمانانو دا لږ شان جماعت فنا شو نو بیا به په زمکه کښې څوک ستا عبادت کوونکے هم پاتې نه شي - ځکه چه ټوله زمکه د شرک او کفر نه ډکه ده دا یو څو مسلمانان دي کوم چه صحیح عبادت کوونکي دي"۔

نبي کریم صلے الله علیه وسلم برابر دغه شان په زارۍ او عاجزۍ سره په دعا کښې مشغول وه تر دې چه څادر د دوی د اوګو مبارکو نه راوغوړید و حضرت صدیق اکبرؓ رااوړاندې شو او څادر ئې په دوی برابر کړو او عرض ئې اوکړو یا رسول اللهؐ تاسو زیات فکر مه کوئ الله تعالیٰ به ستاسو دعا ضرور قبوله کړي او خپله وعده به پوره کړي۔

په آیت کښې د "اِذْ تَسْتَغِيْثُوْنَ رَبَّكُمْ" د الفاظو نه دا واقعه مراد ده چه د دې معنیٰ دا ده چه هغه وخت د یادولو قابل دے کله چه تاسو خپل رب ته فریاد کولو او مدد مطلب کولو دا استغاثه څو اګر چه د نبي کریم صلے الله علیه وسلم د طرفه شوې وه مګر ټولو اصحابو به پرآمین وئیلو په دې وجه ئې ټول جماعت ته نسبت اوشو۔

د دې نه پس د دې دعا د قبولیت بیان داسې فرمائي: "فَاسْتَجَابَ لَكُمْ اَنِّيْ مُمِدُّكُمْ بِاَلْفٍ مِّنَ الْمَلٰٓئِكَةِ مُرْدِفِيْنَ": یعنی الله تعالیٰ جل شأنه ستاسو فریاد واورید او اوا ئې فرمائیل چه په زرو فرښتو سره به ستاسو مدد اوکړم کوم چه به په یو بل پسې د قطار په صورت کښې رارواني وي۔

فرښتو له چه الله تعالیٰ کوم بے مثله قوت او طاقت ورکړے دے د هغې اندازه د هغې واقعې نه کیدې کومه چه د لوط علیه السلام په قوم د زمکے اړولو کولو په وخت کښې پیښه شوه چه جبرئیل امین د خپل وزر په ذریعه دا اړولے کړه - د داسې بے مثاله طاقت والا فرښتو د دومره لوئې تعداد د مقابلے د پاره د لیګلو ضرورت نه وو یوه هم کافي وه، مګر الله تعالیٰ د خپلو بندګانو د فطرت نه واقف دے چه دوی

په تعداد د دوی سره هم مقابله کیږي- په دے وجه د مقابل فریق د شمار مطابق ئے د فرښتو د شمار د لیګلو وعده او فرمائیله چه د دوی زړونه پوره مطمئن شي-

په ځلورم ایت کښے هم دا مضمون ارشاد فرمائي: وَمَا جَعَلَهُ اللّٰهُ اِلَّا بُشْرٰى وَلِتَطْمَئِنَّ بِهٖ قُلُوْبُكُمْ: یعنی الله تعالیٰ دا صرف د دے د پاره او کړل چه تاسو ته خوشخبري ملاؤ شي او ستاسو زړونه مطمئن شي،-

د بدر په غزا کښے چه کومے فرښتے الله تعالیٰ د امداد د پاره راولیګلے د دوی شمار دلته زر ذکر دے او په سورت ال عمران کښے درے زره او پنځه زره ذکر شوی دی- د دے سبب په اصل کښے درے مختلفے وعدے دی کومے چه په مختلفو حالاتو کښے شوے وے- اول وعده د زرو فرښتو اوشوه چه سبب ئے د نبي کریم صلے الله علیه وسلم دعا او د عامو مسلمانانو فریاد وه- دویمه وعده کومه چه د درے زره فرښتو د سورت ال عمران اول کښے ذکر شوے ده دا هغه وخت شوے وه کله چه مسلمانانو ته دا خبر ملاؤ شو چه د قریشو د لښکر د پاره نور کمک راروان دے- په روح المعاني کښے د ابن ابي شیبه او ابن المنذر وغیره نه په روایت د شعبي نقل دے چه مسلمانانو ته د بدر په ورځ دا خبر اورسید وچه کرز بن جابر محاربي د مشرکانو د امداد د پاره کمک راروان کړے دے- په دے خبر سره په مسلمانانو کښے پریشاني پیدا شوه نو په دے د ال عمران ایت: اَلَنْ يَّكْفِيَكُمْ اَنْ يُّمِدَّكُمْ رَبُّكُمْ بِثَلٰثَةِ اٰلٰفٍ مِّنَ الْمَلٰٓئِكَةِ مُنْزَلِيْنَ: نازل شو چه په دے کښے د درے زره فرښتو د امداد د پاره د اسمان نه د نازلولو وعده ذکر شوه-

او دریمه وعده د پنځه زرو په دے شرط پورے تړلے شوے وه چه که مخالف فریق په یو وار حمله اوکړه نو د پنځه زره فرښتو مدد به دا اولیګلے شي- دغه د ال عمران د ذکر شوی ایت نه پس په ایت کښے دا سے ذکر ده: بَلٰٓى اِنْ تَصْبِرُوْا وَتَتَّقُوْا وَيَاْتُوْكُمْ مِّنْ فَوْرِهِمْ هٰذَا يُمْدِدْكُمْ رَبُّكُمْ بِخَمْسَةِ اٰلٰفٍ مِّنَ الْمَلٰٓئِكَةِ مُسَوِّمِيْنَ: یعنی که تاسو ثابت قدم پاتے شوے

او په تقوىٰ قائم پاتې شوئے او مقابل لښکر په تاسو په يو وار حمله اوکړه نو ستاسو رب به ستاسو امداد په پنځه زره ملائکو اوکړي چه خاص نښنو سره يعنې خاص وردۍ کښې به وي -

بعض حضرات مفسرين فرمائي چه په دے وعده کښې درے شرطونه وُو يو ثابت قدمي دويم تقوىٰ دريم د مخالف فريق په يو وار حمله' اولني دوه شرطونه خو په صحابه کرامو کښې موجود وُو او په دے ميدان کښې د اوّل نه تر اخره پورے په دوى کښے څۀ فرق رانغے، مګر دريم شرط چه په يو وار به دوى د دشمن حمله کول وُو واقع نه شو په دے وجه د پنځه زره ملائکو د لښکر نوبت رانغے -

نو په دے وجه معامله په يو زر او په درے زره کښې پاتې شوه په کوم کښې چه داحتمال هم دے چه د درے زرو نه مراد دا شو چه يو زر کومے چه مخکښې ليږلے شوے وے د دے سره ئے دوه زره نورے شاملے کړے درے زره ئے کړے او دا هم احتمال دے چه دا درے زره د دغو زرو نه علاوه وي -

دلته دا خبره هم د نظر قابله ده چه په دے درے ائياتونو کښې د ملائکو د درے جماعتونو د ليږلو وعده ده او د هر جماعت سره د يو خاص صفت ذکر دے، د سورتِ انفال په ائيت کښې په کوم کښې چه د زرو وعده ده - په دے کښې خو د دے ملائکو په صفت کښې : مُرْدِفِيْنَ : راغلي دي چه معنیٰ ئے ده په يو بل پسے ' په دے کښې شايد دے طرف ته اوّل اشاره کړے ده چه په دے فرښتو پسے نورے هم راتلونکې دي - او د سورتِ الِ عمران په اوّل ائيت کښې د ملائکو صفت : مُنْزَلِيْنَ : فرمائيلے دے - يعنې دا فرښتے به د اسمان نه نازليږي - په دے کښې اشاره خاص اهميت طرف ته ده - چه په زمکه کښې کومے فرښتے د اوّل نه موجودے دي د دوى نه د کار اغستو په ځائے په خاص اهتمام سره دا فرښتے د اسمان نه د دے کار د پاره ليږلے شي - او د ال عمران په دويم ائيت کښې چه د پنځو زرو ذکر دے په دے کښې د ملائکو صفت : مُسَوِّمِيْنَ : ارشاد فرمائيلے دے چه دغه به په يو خاص لباس او نښنو سره وي - لکه چه د حديث په روايتونو کښې دي چه په بدر کښې د فرښتو پټکې سپين او په حُنين کښې د راغلو فرښتو پټکې سُرۀ وُو -

دا ایت په اخر کښې ارشاد فرمائی : وَمَا النَّصْرُ اِلَّا مِنْ عِنْدِ اللّٰهِ ؕ اِنَّ اللّٰهَ عَزِيزٌ حَكِيمٌ ۔ په دې کښې مسلمانانو ته خطاب فرمائیلې دې چه کوم مدد هم د کوم ځائې نه ملاویګی خواه په ظاهري صورت سره وی یا په پټ انداز سره قبول د الله تعالیٰ د طرف نه دې ۔ د هغهٔ په قبضه کښې دې، د فرښتو مدد هم د دهٔ د فرمان تابع دې ۔ په دې وجه ستاسو نظر صرف د هغهٔ ذات وحده لاشریک لهٔ طرف ته پکار دې ځکه چه هغه لوئې قدرت والا حکمت والا دې ۔

---

اِذْ يُغَشِّيكُمُ النُّعَاسَ اَمَنَةً مِّنْهُ وَيُنَزِّلُ عَلَيْكُمْ

کوم وخت چه اوغورزوله هغهٔ په تاسو پړکالی د خپل طرف نه د تسکین د پاره او نازلے کړے په تاسو

مِّنَ السَّمَآءِ مَآءً لِّيُطَهِّرَكُمْ بِهٖ وَيُذْهِبَ عَنْكُمْ

د اسمان نه اوُبه چه په هغې سره تاسو پاک کړی او لرے کړی ستا سو نه

رِجْزَ الشَّيْطٰنِ وَلِيَرْبِطَ عَلٰى قُلُوْبِكُمْ وَيُثَبِّتَ

د شیطان پلیتی او مضبوط کړی ستاسو زړهٔ د نه او ثابت کړی په

بِهِ الْاَقْدَامَ ⑪ اِذْ يُوْحِيْ رَبُّكَ اِلَى الْمَلٰٓئِكَةِ

دے سره ستاسو قدمونه ۔ کله چه حکم اولیګه ستا رب ملائکو ته چه

اَنِّيْ مَعَكُمْ فَثَبِّتُوا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا ؕ سَاُلْقِيْ فِيْ

زهٔ ستاسو سره یم پس تاسو ثابت کړئ زړونه د مسلمانانو ۔ زهٔ به اوُغورزوم په

قُلُوْبِ الَّذِيْنَ كَفَرُوا الرُّعْبَ فَاضْرِبُوْا فَوْقَ

زړونو د کافرانو کښې رُعب (ویره) پس وهئ په

الْاَعْنَاقِ وَاضْرِبُوْا مِنْهُمْ كُلَّ بَنَانٍ ﴿۱۲﴾ ذٰلِكَ بِاَنَّهُمْ

څټونو او پریکړئ دَ دوی بند و نه - دا په دے وجه دی چه دوی

شَآقُّوا اللّٰهَ وَرَسُوْلَهٗ ۚ وَمَنْ يُّشَاقِقِ اللّٰهَ وَرَسُوْلَهٗ

مخالف شو دَ الله او دَ هغهٔ دَ رسول او څوک چه مخالف شو دَ الله او دَ هغهٔ دَ رسول

فَاِنَّ اللّٰهَ شَدِيْدُ الْعِقَابِ ﴿۱۳﴾ ذٰلِكُمْ فَذُوْقُوْهُ

نو بے شکه دَ الله عذاب سخت دے - دا څوتا سو او څکئ

وَاَنَّ لِلْكٰفِرِيْنَ عَذَابَ النَّارِ ﴿۱۴﴾

او پوهه شئ چه دَ کافرانو دَپاره دے عذاب دَ دوزخ

# لنډ تفسير

هغه وخت یاد کړئ کله چه الله تعالیٰ په تاسو پرکالی راوستلو دَ خپل طرف نه دَ آرام درکولو دَپاره او په تاسو باندِ دَ آسمان نه اوبه اورولے چه دَ دے اوبو په ذریعه تاسو لره (دَ بے اودسئ یا بے غسله کیدو دَ حالت نه) پاک کړی او (چه دَ دے په ذریعه) ستاسو نه شیطانی وسوسه دفع کړی او (چه) ستاسو زړونو لره مضبوط کړی او (چه) ستاسو ښپے کلکے کړی (یعنی په شګو کښے نه ننوځی) هغه وخت لره یاد کړئ کله چه ستا رب (دغو) فرښتو ته (کومے چه دَ امداد دَپاره نازلے شوے وے) حکم ورکولو چه زهٔ ستاسو سره یم نو تاسو دَ ایماندارو همت زیاتوئ زهٔ اوس دَ کفارو په زړونو کښے رعب اچوم پس تاسو دَ کفارو څټونو لره (په نیزو) وهئ او دَ دوی بند و نه بند و نه وهئ دا دَ دے خبرے سزا ده چه دوی دَ الله او دَ هغهٔ دَ رسول مخالفت کړے دے او څوک چه دَ الله او دَ هغهٔ دَ رسول مخالفت کوی نو الله تعالیٰ (دهٔ ته) سخته سزا ورکوونکے دے رخواه په دُنیا کښے په څهٔ حکمت سره یا په

اخرت کښې یا په دواړو کښې، پس (بالفعل) دا سزا او خکئ او پوهه شئ چه د کافرانو د پاره د دوزخ عذاب مقرر دے۔

# معلومات او مسئلے

د سورتِ انفال د شروع نه د الله تعالیٰ د هغو انعامونو بیان روان دے کوم چه په فرمانبردارو بندګانو باندې شوی وُو۔ د بدر د غزا واقعات هم د دے سلسلے کړئ دی، په بدر کښې چه کوم انعامونه د حق تعالیٰ د طرف نه شوی وُو، په هغوی اولنے انعام خو پخپله د دے جهاد د پاره د مسلمانانو وتل دی چه بیان ئے په ایت: اِذْ اَخْرَجَكَ رَبُّكَ: کښې شوے دے، دویم انعام د فرښتو د مدد وعده ده چه ذکر ئے په ایت: اِذْ يَعِدُكُمُ اللّٰهُ: کښې راغلے دے، دریم انعام د دُعا قبلول او د مدد وعده کیدل دی، چه ذکر ئے په ایت: اِذْ تَسْتَغِيْثُوْنَ رَبَّكُمْ: کښې شوے دے، د ذکر شوُو ایاتونو نه پس اولنی ایت کښې د څلورم انعام ذکر دے، په کوم کښې چه د مسلمانانو د پاره د دوو نعمتونو ذکر دے، یو په تولو د خوب غالب کیدل د پریشانئ او ستړی والی لرے کیدل، دویم د باران په ذریعه د دوی د پاره اوبه پیدا کول او میدانِ جنګ د دوی د پاره کلکول او د دشمن د پاره پکښې خټې جوړول۔

تفصیل د دے واقعے دا دے چه کوم وخت د کفر او اسلام دا اولنے جنګ مقرر شو نو د مکے د کافرانو لښکر اول اورسید و په یو داسے مقام ئے پړاؤ اُوغورزولو کوم چه په اُوچت ځائے وه اُوبه ورته نزدے وے نبی کریم صلی الله علیه وسلم او اصحاب کرام چه دے ځائے ته اورسیدل نو په لاندې حصه د میدان کښې ورته ځائے ملاؤ شو، قرآن کریم د دے میدانِ جنګ نقشه د دے سورت په دوه څلویښتم ایت کښې داسے رابنکودے وه: اِذْ اَنْتُمْ بِالْعُدْوَةِ الدُّنْيَا وَهُمْ بِالْعُدْوَةِ الْقُصْوٰى: چه د دے بیان به په تفصیل سره رو ستو راشی۔

کوم ځائے ته چه اورسیدل او نبی کریم صلی الله علیه وسلم اول قیام

او فرمایه، د دغې مقام نه واقفکار حضرت خباب بن منذر رض ده لوره په جنګي اعتبار سره نامناسب او ګڼړلو عرض ئې اوکړو چه یا رسول الله کوم مقام چه تاسو اختیار کړو دا د الله تعالیٰ په حکم سره دے چه په دے کښې مونږ ته هیڅ اختیار نیشته، یا محض د رائے او مصلحت په بنا مُو اختیار کړے دے، دوی ارشاد او فرمایه چه نا دا د خدائے پاک څۀ حکم نه دے په دے کښې ادل بدل کیدے شي. پس حضرت خباب رض عرض اوکړو چه بیا خو غوره ده چه د دے مقام نه وړاندې د مکے د سردارانو مقام ته نزدے د اوبو یو مقام دے په هغې قبضه اوشي هلته به مونږ ته اوبه ډیرے ملاویګي. نبي کریم صلی الله علیه وسلم د ده مشوره قبوله کړه او هلته لاړل په اوبو ئې قبضه اوکړه یو حوض ئې د اوبو د پاره جوړ کړو او د اوبو ذخیره ئې پکښې جمع کړه.

د دے نه پس چه بے غمه شو نو حضرت سعد بن معاذ عرض اوکړو یا رسول الله ځما خیال دا دے چه مونږ تاسو لوره په محفوظ ځائے کښې چرته یو سائبان جوړ کړو چه تاسو پکښې اوسئ او ستاسو سوارلئ هم ستاسو په خوا کښې وی.

منشاء د دے داده چه مونږ به د دشمن په مقابله کښې جهاد کوو که الله تعالیٰ مونږ ته فتح نصیب کړه نو خو دا مقصد دے او که خدائے مه کړه څۀ بله صورت پیښ شي نو تاسو به پخپله سوارلئ سواره شئ او د هغو اصحابو سره به لاړ شئ ملاؤ شئ کوم چه په مدینه طیبه کښې پاتې شوی دی ځکه چه ځما ګمان دا دے چه دغه خلق هم په جان نثارۍ او ستاسو سره په محبت کښې زمونږ نه کم نه دی. او که دوی ته ستاسو د راوتلو په وخت کښې دا خیال وے چه ستاسو به د دے یا وسله لښکر سره مقابله وی، نو په دوی کښې به یو هم روستو نه وُو پاتې شوے تاسو به مدینے ته لاړ شئ نو هغوی به ستاسو ملګری شي. نبي کریم صلی الله علیه وسلم ده ته په دے جانبازانه پیشکش دعاګانے اوکړے او یو مختصر شان سائبان ئې د دوی د پاره جوړ کړو چه په هغې کښې د نبي کریم

صلی الله علیه وسلم او حضرت صدیق اکبرؓ نه سوا یل څوک نه وُو - حضرت
معاذ په دروازه د حفاظت د پاره توره په لاس ولاړ وُه -

د جنګ اوله شپه وه د درے سوه دیارلس بے سامانه خلقو مقابله
د ځان نه د درے چنده زیاتو یعنی یو زر با وسله فوج سره وه - د میدانِ
جنګ هم ښهٔ مقام د هغوی په قبضه کښے وُه لاندِ حصّه او هغه هم سخته
شګلنه چه تلل په کښے ګران وُو د مسلمانانو په قبضه کښے وه - طبعی پریشانی
او فکر د تلو سره وُه - د بعضو خلقو په زړونو کښے خو شیطان دا وسوسے
اچول شروع کړه چه تاسو ځانته په حقه وایئ ، او دا وخت هم په
ځائے د آرام کولو د تهجد په مانځه کښے مشغول یئ ، مګر حال دا دے
چه دشمن په هر حیثیت سره په تاسو غالب او ستاسو نه زیات دے
په دے حالاتو کښے الله تعالیٰ په مسلمانانو یو خاص قسم خواب مسلّط
کړو چه هر یو مسلمان خواه که اراده ئے د اوُده کیدو وُه او که نه وه
بے اختیاره اوده شو -

د حدیث حافظ ابو یعلیٰ نقل کړی دی چه حضرت علی مرتضیٰؓ فرمائی
چه د بدر د غزا په دے شپه باندِ په مونږ کښے څوک داسے باقی نه وُه
چه اوُده شوے نه وُو - صرف نبی کریم صلی الله علیه وسلم ټوله شپه
بیدار وُه تر سحره پورے په تهجد کښے مشغول وُه -

او ابنِ کثیر په صحیح حواله سره نقل کړی دی چه نبی کریم صلی الله
علیه وسلم په دے شپه کښے کله چه په خپل تمبو کښے د تهجد په
مانځه کښے مشغول وه دوی ته هم څهٔ قدرے پرکالی راغله مګر فورًا
په خندا سره بیدار شو او ئے فرمائیل اے ابوبکرؓ خوشخبری واوُره
دا دے جبرئیل علیه السلام د چیرګئ خواته ولاړ دے او دائے اوُوے
د خپل تمبو نه باهر په راوُوتلو دا آیت ئے تلاوت کولو: سَيُهْزَمُ
الْجَمْعُ وَيُوَلُّونَ الدُّبُرَ ؛ یعنی چیرزر به د دشمن لښکر شکست اوُخوری
او شا به کړی او به تختی - په بعضو روایتونو کښے دی چه دوی بهر ته
دا او وتل مختلفو ځایونو ته ئے اشاره اوکړه او ئے فرمائیل چه دغه ځائے

دا بوجهل د قتل دے او دغه د فلانی او دغه د فلانی- او بیا هم تهیک د غسے اوشو ه (تفسیر مظهری)

او کله څنګه چه د بدر په غزا کښے د ستړی والی او پریشانۍ لرے کولو د پاره الله تعالیٰ په ټولو صحابو کرامو خاص قسم خواب مسلط کړو. دغه شان د اُحد په غزا کښے هم دا سے واقعه اوشوه-

سفیان ثوریؒ په روایت د حضرت عبد الله بن مسعودؓ نقل کړے دے چه د جنګ په حالت کښے خواب د الله تعالیٰ د طرف نه د امن او اطمینان نښه وی، او په موځ کښے خواب د شیطان د طرفه وی- (ابن کثیر)

دویم نعمت مسلمانانو ته په دے شپه کښے دا ملاؤ شو چه باران اُوشو کوم چه د میدان جنګ نقشه بالکل بدله کړه- د قریشو لشکر چه په کومه ځائے قبضه کړے وه هلته باران ډیر تیز اوشو او میدان کښے ئے خټے جوړے کړے چه تلل پکښے ګران شو، او کوم ځائے چه نبی کریم صلے الله علیه وسلم او اصحاب مُقیم وه هلته د شګو په وجه تلل ګران وُو دلته باران لګ اُشو شګے ئے کلکے کړے میدان ئے هموار کړو-

په ذکر شوی ایت کښے د دے دواړو نعمتونو ذکر د ے خواب او باران کوم چه د جنګ د میدان نقشه بدله کړه هغه شیطانی وَسْوَسے ئے او وینځلے کومے چه په بعضو کمزورو خلقو کښے راپیدا شوے وے چه مونږ سره د دے چه په حق باندے یُو مقهور او مغلوب په نظر راځو- او دشمن سره د دے چه په باطل دے خو بیا هم په قوت او شوکت او اطمینان کښے دی-

په ذکر شوی ایت کښے فرمائی چه هغه وخت یاد کړئ کله چه الله تعالیٰ په تاسو خواب راوستو د ارام درکولو د پاره او په تاسو ئے اوبه اُوَرَوَلے چه تاسو پرے پاک کړی او ستا سو نه شیطانی وسوسه لرے کړی او ستا سو زړونه مضبوط کړی او ستا سو خپے کلکے کړی-

په دویم ایت کښے د پنځم انعام ذکر دے کوم چه د بدر د غزا په دے میدان د جنګ کښے په مسلمانانو باندے شوے وه، هغه دا چه الله تعالیٰ کومے فرښتے د مسلمانانو د امداد د پاره لیګلے وے هغوی ته ئے خطاب اوکړو او وُئے فرمائیل

چه زۀ ستاسو سره يم تاسو دَ ايمان اَو همّت زيا تونى زۀ اوس دَ كفارو په زړونو كښے رُعب اَچوم پس تاسو دَ كفارو څټونو لره هم او ترے را اَچوئى او دَ دوى بند و نه بند و نه وهئ -

په دے كښے فرښتو ته دوه كارونه اُوسپارلے شو يو دا چه دَ مسلمانانو همّت زيات كړئ، دا دا سے هم كيدے شى چه فرښتے ميدان ته راشى دَ دوى ډله زيا ته كړى اَو دَ دوى سره يو ځائے شى په جنګ كښے حصّه واخلى، او دا سے هم چه په خپل تصرّف سره دَ مسلمانانو زړونه مضبوط كړى، او په دوى كښے قوّت پيدا كړى- دوېم كار دوى ته دا هم اُوسپارلے شو چه فرښتے بخپله په جنګ كښے حصّه واخلى او په كفارو حمله اَوكړى- دَ دے آيت نه دا خبره ښكاره ده چه فرښتو دواړه كارونه اَوكړل- دَ مسلمانانو په زړونو كښے ئے تصرّف اَوكړو همّت او قوّت ئے ورلره زيات كړو او په جنګ كښے ئے حصّه هم واخسته- او دَ دے تائيد دَ څو روايتونو دَ حديث نه هم كيدى كوم چه تفسير دُرِّ منثور او مظهرى كښے په تفصيل سره بيان شويدى- او دَ ملائكو دَ جنګ په ستركو ليد لى شهادتونه دَ اصحابو كرامو نه ئے نقل كړى دى-

په دريم آيت كښے دا ارشاد فرمائى، چه په دے دَ كفر او اسلام په جنګ كښے چه څۀ اَوشو دَ دے سبب دا وَه چه دے كفارو دَ الله تعالىٰ او دَ هغهٔ دَ رسول صلے الله عليه وسلم مخالفت اَوكړو- او څوک چه دَ الله او دَ هغهٔ دَ رسول مخالفت كوى دَ هغهٔ دَ پاره دَ الله تعالىٰ عذاب دَ سختونه سخت وى- دَ دينه معلومه شوه چه دَ بدر په غزا كښے يو طرف ته خو په مسلمانانو انعامات نازل شو، فتح او نصرت دوئ ته حاصل شو- بل طرف ته په كفارو دَ مسلمانانو دَ لاسه عذاب نازل شو دَ دوى لره دَ بدو عملونو لګه شان سزائے ورکړه- او دَ دے نه زيا ته سزا په آخرت كښے ورکيد ونکے ده كومے لره چه ئے په څلورم آيت كښے اوفرمائيله: ذٰلِكُمْ فَذُوقُوهُ وَأَنَّ لِلْكَافِرِينَ عَذَابَ النَّارِ-

يعنى دا زمونږ لګ شان عذاب دے دا اَوڅكئ او پوهه شئ چه دَ دے نه پس كافرانو لره دَ دوزخ عذاب را تلونكے دے كوم چه زيات سخت او كُد او دَ قياس نه باهر دے-

يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُوٓا۟ إِذَا لَقِيتُمُ ٱلَّذِينَ كَفَرُوا۟

اے ایماندارو! کله چه مخامخ شئ تاسو د کافرانو سره

زَحْفًا فَلَا تُوَلُّوهُمُ ٱلْأَدْبَارَ ﴿١٥﴾ وَمَن يُوَلِّهِمْ

په میدان د جنګ کښے نو مه گرځوئ دوی ته شا - او څوک چه دوی ته شا کړی

يَوْمَئِذٍ دُبُرَهُۥٓ إِلَّا مُتَحَرِّفًا لِّقِتَالٍ أَوْ مُتَحَيِّزًا

په دغه ورځ مګر دا چه هنر کوی په جنګ کښے یا ملا وېکی د

إِلَىٰ فِئَةٍ فَقَدْ بَآءَ بِغَضَبٍ مِّنَ ٱللَّهِ وَمَأْوَىٰهُ

فوج سره پس دغه اخته شو د الله په غضب او د ده ځائے

جَهَنَّمُ ۖ وَبِئْسَ ٱلْمَصِيرُ ﴿١٦﴾ فَلَمْ تَقْتُلُوهُمْ وَ

دوزخ دے - او دغه بد ځائے د ورتلو دے - پس تاسو دوی لره نه دی قتل کړی

لَٰكِنَّ ٱللَّهَ قَتَلَهُمْ ۚ وَمَا رَمَيْتَ إِذْ رَمَيْتَ

لیکن الله دوی لره قتل کړل - او تا نه دی ویشتلی خاورے کله چه دې ویشتلے وے

وَلَٰكِنَّ ٱللَّهَ رَمَىٰ ۚ وَلِيُبْلِىَ ٱلْمُؤْمِنِينَ مِنْهُ

لیکن الله او ویشتلے - او چه او کړی په ایماندارو د خپل طرف نه

بَلَآءً حَسَنًا ۚ إِنَّ ٱللَّهَ سَمِيعٌ عَلِيمٌ ﴿١٧﴾ ذَٰلِكُمْ

ښه احسان - بے شکه الله دے آورېدونکے پوهېدونکے - دا خو اوشوه او پوهه شئ

وَأَنَّ ٱللَّهَ مُوهِنُ كَيْدِ ٱلْكَٰفِرِينَ ﴿١٨﴾ إِن

چه الله سُست کوونکے دے د تدبیر د کافرانو - که چرے

تَسْتَفْتِحُوْا فَقَدْ جَآءَكُمُ الْفَتْحُ ۚ وَاِنْ تَنْتَهُوْا

تاسو غوښتې فیصله نو اُورسیده تاسو ته فیصله - او که واپس شوئ

فَهُوَ خَيْرٌ لَّكُمْ ۚ وَاِنْ تَعُوْدُوْا نَعُدْ ۚ وَلَنْ تُغْنِيَ

نو ستاسو د پاره غوره ده او که بیا دا سے کوئ نو مونږ به هم بیا داسے اوکړو - او پکار به نه ځي

عَنْكُمْ فِئَتُكُمْ شَيْـًٔا وَّلَوْ كَثُرَتْ ۙ وَاَنَّ

ستاسو، ستاسو ډله، اګر چه ډیره شی او یو هم شئ

اللّٰهَ مَعَ الْمُؤْمِنِيْنَ ﴿۱۹﴾

چه الله د ایمان دارو سره دے -

ع ۲ / ۹ / ۱۶

# لنډ تفسیر

اے ایمان دارو! کله چه د کافرانو سره (په جهاد کښے) دوه په دوه مقابل شئ نو دوی ته شا مه کرځوئ (یعنی د جهاد نه مه تختئ) او کوم سړے چه د دوی نه په دے موقع (یعنی د مقابلے په وخت کښے) شا اوکرځوی مګر هاں کوم چه د جنګ د پاره پینترا بدلوی یا کوم چه خپلے ډلے ته د پناه اغستو د پاره راځي هغه تر مستثنیٰ دے باقی بل څوک چه داسے اوکړی هغه به د الله په غضب کښے راشی او د ده ځائے به دوزخ وی او هغه ډیر ناکاره ځائے دے (فَلَمْ تَقْتُلُوْهُمْ الایة کښے هم یو قصے طرف ته اشاره ده هغه دا چه دوی د بدر په ورځ یو موټے خاورے کافرانو طرف ته او ویشتلے چه ذرے ئے د ټولو په سترګو کښے پریوتلے او دوی شکست او خوړ او د فرشتو د امداد د پاره راتلل بره ذکر شوی دی په دے بانډے په طور د تفریع فرمائي چه کله داسے عجیبه واقعات اوشو کوم چه بالکل ستا د اختیار نه خارج دی) پس (د دے نه معلومه شوه چه د حقیقی تاثیر په مرتبه کښے) تاسو دے (کافرانو) لره قتل نه کړل لیکن (هاں په دے مرتبه کښے)

الله تعالیٰ (بے شکه) دوی لره قتل کړل (یعنی حقیقي اثر کونکے ده غه قدرت دے) او
(ده غه شان ده حقیقي تاثیر په مرتبه کښې) تا ده خاورو موټے (ده دوی طرف ته) نه وه ولېږلے
لیکن (رښان په دے مرتبه کښې) الله تعالیٰ (رواقعي) ده غه اچولے وے او (سره ده دے چه
حقیقي اثر کونکے ده حق تعالیٰ قدرت دے بیا کومے نښے ده قتل وغیره چه قدرت په بنده باندې
مرتب او ظاهر نو په دے کښې حکمت دا دے چه) ده دے ده پاره چه مسلمانانو ته ده خپل
طرف نه (ده دوی ده عمل) ښه اجر ورکړي (او اجر ملاویدل ده الله ده سنتو موافق
موقوف دی په دے چه فعل ده ده په قصد او اختیار سره صادر شي) بے شکه الله
تعالیٰ (ده دے مؤمنانو خبرو لره) ښه آوریدونکے او (ده دوی په کارونو او
په حالاتو) ښه پوهیدونکے دے (دا خبرے ده فریاد او کارونه ده جنګ او
حالاتو ده پریشانۍ وغیره کښې چه کوم تکلیف دوی ته راپیښ شو مونږ ده دے ټول
خبرو پوهه په دے به دوی لره جزا ورکړو) یوه خبره خو دا شوه او بله خبره دا ده
چه الله تعالیٰ ده کافرانو تدبیر کمزورے کولو لره (او زیاته کمزوري هغه وخت ښکاره
کیږي کله چه ده خپل برابر والا یا ده ځان نه ده کمزوري ده لاسه مغلوب شي، او دا هم
موقوفه ده په دے باندې چه دغه نښے ده مؤمنانو ده لاسه ظاهرے شي ورنه
دا به ئے ویلے شو چه تدبیر خو زمونږ قوي وو لیکن ده زیات قوي په وړاندې
چه ده الله تدبیر دے او نه چلیدل، نو په دے سره به راتلونکی ده مسلمانانو په
مقابله کښې ده دوی حوصله نه لاندې کیږي ځکه چه دوی لره خو ئے ضعیف ګڼلي)
که تاسو خلق فیصله غواړئ نو دغه فیصله خو تاسو ته موجوده شوه (چه
کوم حق وو هغوی غلبه بیا موندله) او که (راوس ده حق زیات واضح کیدو نه
پس ده نبي کریم صلی الله علیه وسلم ده مخالفت نه) واپس شوئے نو دا ستاسو
ده پاره ډیره ښه ده او که (راوس هم نه واپس کیږئ بلکه) تاسو بیا دغه کار
اوکړئ (یعنی مخالفت) نو مونږ به هم بیا دغه کار اوکړو (یعنی تاسو لره
مغلوب کول او مسلمانانو لره غالب کول) او (که تاسو پخپله ځله مغروره
یئ چه اوس به دا پیره ډیر زیات جمع کړو نو یاد ساتئ چه) ستاسو ځله به
ستاسو هیڅ په کار رانه شي اګر چه هر څو مره زیاته وي او دا واقعي خبره دا ده
چه الله تعالیٰ (په اصل کښې) ده ایماندارو سره (یعنی ده دوی مددګار) دے

دا کرچه دَ خهٔ عارضی په وجه سره څهٔ وخت دَ دوی غلبه بنکاره نهٔ شی لیکن اصل محل دَ غلبې هم دوی دی چه ورسره مقابله کول خپل نقصان کول دی) -

# معلومات او مسئلې

دَ ذکر شوو ایاتونو نه په اولو دوؤ ایاتونو کښې دَ اسلام یو جنګی قانون خودلے شوے دے، په اولنی ایت کښې دَ لفظ دَ: زَحْفًا: نه مراد دَ دواړو لښکرو مقابل کیدل او ګډ وډ کیدل دی، معنی داده چه دَ داسے جنګ نه پس شا کول او دَ میدان نه تختیدل دَ مسلمانانو دَ پاره جائز نه دی۔

په دویم ایت کښې دَ دے حکم نه دَ یو ے استثناء ذکر دے او په ناجائزه دَ تختیدونکو دَ سخت عذاب بیان دے۔

استثناء په دوه وُو حالتونو کښې ده: اِلَّا مُتَحَرِّفًا لِّقِتَالٍ اَوْ مُتَحَيِّزًا اِلٰى فِئَةٍ: یعنی دَ جنګ په وخت کښې شا کول صرف په دوه وُو حالتونو کښې جائز دی یو دا چه دَ میدان نه شا کول محض دَ یو جنګی چال په طور بانديې دشمن ته دَ خودَلو دَ پاره وی حقیقةً ئے دَ میدان نه تښتګ کیدل نه وی مقصد۔ بلکه خپل مخالف په یو غفلت کښې اچول او په یو وار پرې حمله کول ئے مقصد وی۔ دا معنیٰ ده دَ مُتَحَرِّفًا لِّقِتَالٍ: ځکه چه دَ تحرّف معنیٰ یو طرف ته مائل کیدل دی (روح المعانی)

دویم استثنائی حالت پرکوم کښې چه میدان نه دَ شا کولو اجازت دے دا دے چه دَ خپل موجوده لښکر دَ کمزورئی احساس اوکړی په دے وجه شا ته شی چه دَ مجاهدینو زیات کمک حاصل کړی، بیا حمله اوکړی، دَ: اَوْ مُتَحَيِّزًا اِلٰى فِئَةٍ: دا معنیٰ ده۔ ځکه چه دَ تحیز لفظی معنیٰ پیوست کیدل او یو ځائے کیدل دی او دَ: فِئَةٍ: معنیٰ جماعت دے۔ مطلب دا دے چه دَ خپل جماعت سره ملاؤ شی قوت حاصل کړی او بیا حمله اوکړی نو په دے نیّت سره که میدان پریږدی نو دا جائز دی۔

دَ دے استثناء ذکر کولو نه پس دَ هغو خلقو دَ سزا ذکر دے چا چه دَ دے استثنائی حالاتو نه بغیر په ناجائز طور سره میدان پریښو دو یا ئے شا کړه ارشاد دے: فَقَدْ بَآءَ بِغَضَبٍ مِّنَ اللّٰهِ وَمَاْوٰىهُ جَهَنَّمُ وَبِئْسَ الْمَصِيْرُ: یعنی

د میدان نه تختید وکړی د الله تعالیٰ د غضب سره واپس کیږی او د دوی ځائے دوزخ
دے او دغه ډیر ناکاره ځائے دے۔

په دے دواړو آیاتو کښے دا حکم معلوم شو چه مخالف فریق که هر څومره
په زیات شمار طاقت او شوکت کښے وی خو مسلمانانو لره د دوی د مقابله کښے
شا کول حرام دی۔ په غیر د دوؤ استثنائی صورتونو نه چه ذکر ئے او شو۔

دا آیاتونه په غزا د بدر کښے نازل شوی دی، هغه وخت دا حکم عام وو چه
خواه که د هر څومره لوئے شمار سره مقابله وی او دوی ئے په مقابله کښے ډیر کم هم
وی خو بیا هم شا کول او میدان پریخودل جائز نه دی۔ د بدر په میدان کښے دا
صورت وو چه د درے سوه دیارلسو په مقابله کښے درے چنده یعنی زر تنه وو۔ بیا
وروستو د کمی حکمونه د سورت انفال په آیت (۶۵) او (۶۶) کښے نازل شو۔ په آیت
(۶۵) کښے شلو مسلمانانو ته د دوه سوه کافرانو و سلو مسلمانانو ته د زرو کافرانو
په مقابله کښے د جهاد کولو حکم دے او په آیت (۶۶) کښے د زیات کموالی دا قانون
نازل شو: اَلْـٰٔنَ خَفَّفَ اللّٰهُ عَنْكُمْ وَعَلِمَ اَنَّ فِيْكُمْ ضَعْفًا ۚ فَاِنْ يَّكُنْ مِّنْكُمْ
مِّائَةٌ صَابِرَةٌ يَّغْلِبُوْا مِائَتَيْنِ الآیة: یعنی اوس الله ستاسو د پاره اسانی
اوکړه او ستاسو کمزوری ئے اولیده نو دا قانون ئے جاری کړو چه که مسلمانان
سل تنه ثابت قدم وی نو په دوه سوه کفارو به غلبه مومی۔ په دے کښے
ئے اشاره اوکړه چه د خپل ځان نه د دوچند تعداد پورے خو د مسلمانانو
د غالب کیدو امید دے په دے وجه شا کول جائز نه دی۔ البته که
د مخالف فریق تعداد د دوچند نه هم زیات شی نو په داسے حالت کښے د
میدان پریخودل جائز دی۔

حضرت عبد الله بن عباس رض فرمائی چه کوم سړے یوائے د درے تنو د
مقابلے نه او تختید و دے تختید لے نه دے هاں کوم چه د دوه تنو د مقابلے
نه او تختید و دے تختید وکړے دے۔ یعنی گناه کبیره ئے اوکړه (روح البیان)
اوس دا حکم تر قیامته پورے باقی دے۔

د جمهور امت او څلورو امامانو په نزد شرعی حکم دا دے چه تر څو
پورے د مخالف فریق تعداد د دوچند نه زیات نه وی تر هغه وخته

پورے د میدان نه تختیدل حرام او ګناه کبیره ده -

په صحیحینو کښې په روایت د حضرت ابو هریرهؓ نقل دي چه نبي کریم صلی الله علیه وسلم اووه کارونو لره د انسان د پاره هلاکوونکي فرمائیلي دي په دے کښې ئے د میدان جنګ نه تختیدل هم شمار کړي دي - او د حنین د غزا په واقعه کښې د اصحابوؓ ابتدائي روستو کیدل لو ته قرآن کریم یو شیطاني لغزش وئیلے دے کوم چه د دوي د لوئے ګناه کیدو دلیل دے - ارشاد فرمائي: إِنَّمَا اسْتَزَلَّهُمُ الشَّيْطَانُ : -

او د ترمذي او ابوداؤد په یو روایت کښې چه کومه قصه د حضرت عبد الله بن عمرؓ نقل ده چه یو وار د جنګ نه او تختیدو او په مدینه کښې ئے پناه واغسته او د نبي کریم صلی الله علیه وسلم په خدمت کښې حاضر شو او د جرم اقرار ئے اوکړو چه زه د میدان جنګ نه تختیدونکے مجرم شوم، نبي کریم صلی الله علیه وسلم په ځائے د ناراضه کیدو هغوئ لره تسلي ورکړه او اوئے فرمائیل: بَلْ أَنْتُمُ الْعَكَّارُونَ وَأَنَا فِئَتُكُمْ : یعني ته تختیدونکے نه ئے بلکه کمک حاصلوونکے ئے او دوباره حمله کوونکے یئے او زه ستا کمک یم - په دے کښې نبي کریم صلی الله علیه وسلم دے حقیقت لره واضحه کړو چه د دے خلقو تختیدل او په مدینه کښې پناه اغستل په دغه استثناء کښې داخل دي کوم کښې چه د کمک حاصلولو د پاره د میدان پریخودو اجازت دے - حضرت عبد الله بن عمرؓ ته چه د الله تعالی نه د یرے او هیبت او عظمت کوم خاص مقام حاصل وه، په دغے بنا باندے د دغے ظاهري پښا کیدو نه هم اویریدو، او خپل ځان ئے د مجرم په حیثیت سره د نبي کریم صلی الله علیه وسلم په خدمت کښې پیش کړو -

په دریم ایت کښې د بدر د غزا د باقي واقعے بیانولو سره مسلمانانو ته د دے هدایت کړے دے چه د بدر د غزا په معجزانه فتح کښې د ډیرو په لکو سره او د قوت په ضعف سره مغلوب کیدل د خپل کوشش او عمل نتیجه مه ګڼړئ بلکه د هغه پاک ذات د طرف نه ئے ګڼړئ د کوم نصرت او امداد چه د جنګ دا نقشه بدله کړه -

کومه واقعه چه په دے ایت کښې بیان شوه د دے تفصیل ابن جریرؒ طبري

او بیهقی وغیره دَ حضرت عبد الله ابن عباسؓ وغیره نه دا نقل کړے ده چه دَ
بدر دَ جنګ په ورځ کله چه دَ مکے نه دَ زرو ځوانانو لښکر دَ ډیرې دَ شان نه
میدان ته راغے نو دَ مسلمانانو په کموالی او کمزورئ او خپل ډیروالی او قوت فخر
کوونکی په متکبرانه انداز کښے راغے، دغه وخت نبی کریم صلے الله علیه وسلم
دُعا اُوکړه چه یا الله دا استاد دوغړن کونکی قریش په فخر او تکبر سره راروان
دی، تاچه کومه وعده دَ فتح ځما سره کړے ده دے لره ډیره زر پوره کړے
(روح البیان) نو جبرئیل امین نازل شو او عرض ئے اوکړو چه تهٔ یو موټے
دَ خاورو واخله او دشمن طرف ته ئے وراوُنوله۔ دوی داسے اوکړو۔ او ابن
ابی حاتم په روایت دَ ابن زید نقل کړے دے چه نبی کریم صلے الله علیه وسلم
درے پیرے دَ خاورو او شګو موټی ډک کړل یو موټے ئے دَ لښکر ښئ جانب
او بل کینړ جانب او بل مخامخ ته وراوُنوستل چه نتیجه ئے دا شوه چه
دغه یو یا درے موټی خاورے قدرت په معجزانه انداز کښے داسے خورے
کړے چه دَ مخالف لښکر یو سړے هم داسے پاتے نه شو چه سترګو او مخ
ته ئے دغه خاورے او شګے نه وے رسیدلے، چه دَ دے په اثر سره په ټول
لښکر کښے یو افراتفری خوره شوه او مسلمانان ورپسے شو او ملائک
ورسره هم په جنګ کښے شریک وُه۔ (مظهری، روح)

آخر څهٔ خلق دَ مخالف فریق قتل شو څهٔ ګرفتار شو او باقی او تختیدل
او میدان دَ مسلمانانو په لاس کښے راغے۔

بالکل دَ مایوسئ او نا اُمیدئ په وخت کښے دا عظیمه فتح مسلمانانو ته
حاصله شوه دَ میدان جنګ نه واپس راغلل پخپل مینځ کښے خبرے
شروع شوے اصحابو کرامؓ خپلے خپلے کارنامے یو بل ته بیانول شروع
کړل په دے دا آیت نازل شو: فَلَمْ تَقْتُلُوْهُمْ وَلٰكِنَّ اللّٰهَ قَتَلَهُمْ؛ چه
په دے کښے ئے دا هدایت دوی ته اوکړو چه پخپل کوشش او کار باندے ناز
مه کوئ دا څهٔ چه اوشو دا صرف ستاسو دَ محنت او کوشش نتیجه نه ده
بلکه خالص دَ الله تعالیٰ دَ نصرت او امداد میوه ده کوم دشمنان چه ستاسو
په لاس قتل شو دوی لره په حقیقت کښے تاسو نه دی قتل کړی بلکه الله تعالیٰ

قتل کړی دی۔

دَ غه شان نبی کریم صلے الله علیه وسلم ته خطاب کوی ارشاد فرمائی، چه
: وَمَا رَمَيْتَ اِذْ رَمَيْتَ وَ لٰكِنَّ اللّٰهَ رَمٰى : یعنی دغه موټے دَ شګو چه تا اُو ویشتلو
دا په حقیقت کښې تا نه دے ویشتلے بلکه الله تعالیٰ ویشتلے دے۔ مطلب دا دے
چه دَ ویشتلو دا نتیجه چه دَ دشمن دَ لښکر دَ هر سړی سترګو ته اُو رسیدے
او ټول ئے کړه وړه کړل دا ستا دَ ویشتلو اثر نه وُه بلکه الله تعالیٰ پخپل
کامل قدرت سره دا صورت پیدا کړو: ؎

مارمیت اذ رمیت گفت حق    کار ما برکارها دارد سبق

(یعنی الله تعالیٰ اوفرمائیل چه دغه شګے کومے چه تا ویشتلی دی دا تا
نه دی ویشتلے بلکه ځما کار په ټولو کارونو باندِ وړاندِ وی) ۔

چه غور پرې اوشی نو دَ مسلمانانو دَ پاره دَ جهاد دَ فتح او کامیابیٔ نه زیات
قیمتی دا هدایت وُه کوم چه دَ دوی ذهنونو لره دَ اسبابو نه اوګرځا وُه
دَ اسبابو دَ پیدا کوونکی سره ئے اوتړل ۔ او دَ دے په ذریعه ئے دَ دغه
فخر او تکبر دَ خرابیٔ نه اوساتل دَ کوم په نشه کښې چه په عام طور سره
فتح موندونکی قومونه مبتلا کیږی ۔ او دَ دے نه پس ئے دا او خودَ ه
چه فتح او شکست ځما دَ حکم تابع دی او زمونږ فتح او نصرت دَ هغو خلقو
سره وی کوم چه فرمانبردار وی = وَلِيُبْلِيَ الْمُؤْمِنِينَ مِنْهُ بَلَآءً حَسَنًا : یعنی
دا عظیمه فتح مونږ ځکه ورکړه چه مؤمنانو ته دَ دوی دَ محنت پوره صله ملاؤ
شی ۔ دَ : بَلَآء : لفظی معنیٰ امتحان دہ او دَ الله تعالیٰ امتحان کله په مصیبت
او مشقت کښې په اخته کولو سره وی ۔ او کله په راحت او دولت ورکولو سره ۔۔
بَلَآءً حَسَنًا : هغهٔ امتحان ته وئیلے شی چه راحت ، دولت او فتح او نصرت ورکړی
اَخلی ئے ۔ چه دا خلق دے لره زمونږ انعام ګنړی شکرګزاری کوی یا خپل ذاتی
قابلیت ئے ګنړی په فخر او ناز پرے کوی ے خپل عمل بربادوی ۔ ځکه چه
دَ الله تعالیٰ په دربار کښے دَ فخر او ناز هیڅ ګنجائش نیشتے ، په قول دَ مولانا رومیؒ ؎

فہم و خاطر تیز کردن نیست راه    جز شکسته می نگیرد فضلِ شاه

(په فخر او ناز لاره نه شی موندے دَ بادشاه فضل غور نه یدلی او چتو ی .)

په شپږم آیت کښې ذکر دے چه مقابله کښې ذکر دے فتح یو بله فائده ئې دا او خود ده چه: ذٰلِكُمْ وَاَنَّ اللّٰهَ مُوْهِنُ كَيْدِ الْكٰفِرِيْنَ: یعنې دا فتح او نصرت په دے وجه هم مسلمانانو لره ورکړے شو چه ددے په ذریعه د کافرانو تدبیرونه ناکام او ناکاره کړی چه په دے سره دغه کافران پوهه شی چه د الله تعالیٰ مدد د دوی سره نه دے او هیڅ تدبیر بغیر د الله تعالیٰ د مدد نه نه شی کامیابیدے:

په پنځم آیت کښې شکست خوړلو قریشو کافرانو ته خطاب او یو واقعے طرف ته اشاره ده کومه چه د قریشو لښکر د مسلمانانو د مقابلې د پاره د مکے نه د راوتلو په وخت کښې راپیښه شوے وه۔

هغه دا چه کله د قریشو کافرانو لښکر د مسلمانانو د مقابلې د پاره تیار شو نو د مکے نه د راوتلو نه وړاندې د لښکر سردار ابوجهل وغیره د بیت الله پرده او نیوه دعا ئے غوښتلے او عجیبه خبره دا وه چه په دے دعا کښې دوی د خپلے فتح د دعا کولو په ځائے په عامو الفاظو کښې داسے دعا اوغوښتله:

یا الله په دواړو لښکرو نو کښې چه کوم اعلیٰ او افضل دے او په دواړو ډلو کښې چه کومه زیاته په هدایت باندې ده او په دواړو پارټو کښې چه کومه زیاته شریفه او کریمه ده او چه دواړو کښې چه کوم دین افضل او غوره دے هغوی لره فتح ورکړے (مظهری)

دے بے وقوف داسے گنړله چه د مسلمانانو په مقابله کښې مونږ اعلیٰ او افضل او زیات په هدایت یو په دے وجه دا دعا زمونږ په حق کښې ده، او د دے دعا په ذریعه دوی غوښتل چه د حق او باطل فیصله اوشی۔ او کله چه مونږ فتح بیاموموُ نو دا گویا د الله د طرف نه فیصله وی چه مونږ په حقه یو۔

مگر دوی د دینه نه وُو خبر چه په دے دعا کښې دوی په حقیقت کښې ځان ته ښیرے او مسلمانانو ته دعا کوی۔ د جنگ انجام چه مخے ته راغے نو الله تعالیٰ دوی ته او خوده: اِنْ تَسْتَفْتِحُوْا فَقَدْ جَآءَكُمُ الْفَتْحُ: یعنی که تاسو خدائی فیصله غواړئ نو هغه ښکاره شوه چه حق فتح مند شو او باطل شکست او خوړ: وَاِنْ تَنْتَهُوْا فَهُوَ خَيْرٌ لَّكُمْ: او که تاسو اوس هم

دَ خپل کفر او عناد نه واپس شوئے نو ستاسو دَ پاره غوره ده؛ وَاِنْ تَعُوْدُوْا نَعُدْ: او که تاسو بیا خپل شرارت او جنګ طرف ته واپس شوئے نو موږ به هم دَ مسلمانانو امداد طرف ته واپس شو؛ وَلَنْ تُغْنِيَ عَنْكُمْ فِئَتُكُمْ شَيْئًا وَّلَوْ كَثُرَتْ: یعنې ستاجماعت او ډله که هرڅومره زیاته شي خو دَ الله تعالیٰ دَ نصرت په مقابله کښې ستاسو په هیڅ کار نه شي راتلے؛ وَاَنَّ اللّٰهَ مَعَ الْمُؤْمِنِيْنَ: یعنې یو جماعت او ډله ستاسو په کار نه شي راتلے کله چه قادر مطلق الله تعالیٰ دَ مسلمانانو سره ملګرے دے۔

---

يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْٓا اَطِيْعُوا اللّٰهَ وَرَسُوْلَهٗ وَلَا

اے ایمان دارو! حکم منئ دَ الله او دَ هغهٔ دَ رسول او

تَوَلَّوْا عَنْهُ وَاَنْتُمْ تَسْمَعُوْنَ ﴿۲۰﴾ وَلَا تَكُوْنُوْا

دَ دهٔ نه مخ مه اړوئ او دا اورئ دے او دَ هغو پشان مه

كَالَّذِيْنَ قَالُوْا سَمِعْنَا وَهُمْ لَا يَسْمَعُوْنَ ﴿۲۱﴾

کیږئ کوم چه اُووے موږ واورېده او دوی اَورې نه۔

اِنَّ شَرَّ الدَّوَآبِّ عِنْدَ اللّٰهِ الصُّمُّ الْبُكْمُ الَّذِيْنَ

بے شکه په ټولو ژوندارانو کښې دَ الله په نزد ناکاره هغه کوڼي ګونګيان دي کوم چه

لَا يَعْقِلُوْنَ ﴿۲۲﴾ وَلَوْ عَلِمَ اللّٰهُ فِيْهِمْ خَيْرًا

نه پوهیږي۔ او که الله ته معلوم وے په دوی کښې څهٔ خیر

لَّاَسْمَعَهُمْ ؕ وَلَوْ اَسْمَعَهُمْ لَتَوَلَّوْا وَّهُمْ

نو دوی به ئے آورېدو نکی کړی وو۔ او که دوی له اوس آورېدونکي کړي نو خامخا به تختي

مُّعۡرِضُوۡنَ ﴿۲۳﴾ يٰۤاَيُّهَا الَّذِيۡنَ اٰمَنُوا اسۡتَجِيۡبُوۡا

مخ اړوونکي - اے ایمان دارو حکم منئ د

لِلّٰهِ وَلِلرَّسُوۡلِ اِذَا دَعَاكُمۡ لِمَا يُحۡيِيۡكُمۡ ۚ

الله او د رسول کوم وخت چه تاسو اوبلي هغې کار ته چه ستاسو ژوندي کېږي

وَاعۡلَمُوۡۤا اَنَّ اللّٰهَ يَحُوۡلُ بَيۡنَ الۡمَرۡءِ وَقَلۡبِهٖ

او پوه شئ چه الله بندوي د بنده نه د ده زړه لره

وَاَنَّهٗۤ اِلَيۡهِ تُحۡشَرُوۡنَ ﴿۲۴﴾

او دا چه هغهٔ ته به تاسو جمع شئ -

# لنډ تفسير

اے ایماندارو د الله خبره منئ او د هغه د رسول او د دے خبرے منلو نه مخ مهٔ اړوئ او تاسو (په عقیده سره) خو آورئ (یعنې لکه څنګه چه مو په آورېدو عقیده ده او آورئ ئے نو د غسے عمل هم کوئ) او تاسو په حکم نه منلو کېږئ د هغو خلقو پشان مه کیږئ چه دعوه خو کوي چه مونږ واورېده (لکه کفار چه مطلق د آورېدو او منافقین د آورېدو سره د عقیدے دعوه کوونکي وو) حال دا دے چه دوي هیڅ آوري (اوري) نه (ځکه چه نه پرے پوهیږي او نهٔ پرے عقیده شته ځکه چه فائده په عقیده سره آورېدو کښے ده سره د عمل نه او کله چه عمل اونه شو نو په بعضو وجهو کښے مشابه د دے شوه چه لکه په عقیده سره ئے آورېدلي نه وي کوم چه تاسو هم سخت بد ګنړئ) بے شکه (دا خبره ضروري ده چه په عقیده سره آورېدو نکے او عمل نه کونکے او بے د عقیدے آورېدونکے چه د نهٔ آورېدونکي په مثل دے په بدو والي کښے خوئے فرق څه نشته ځکه چه کافر او ګناه ګار برابر نه دي

چنانچه) بد ترین په مخلوقاتو کښې د الله په نزد هغه خلق دي کوم چه د حق خبرې
لره په عقیده سره د آورېدو نه) کاڼه دي او د حق خبرې ویلو نه) ګون
ګان دي (او) کوم چه د په حقه خبره) پوه ذره نه پوهیږي او سره د عقیدې
د کومو چه په عمل کښې کوتاهي کیږي هغوی بد تر نه دي اګرچه بد دي
پس بد کېدل هم نه دي پکار او د کومو حال چه ذکر شو چه دوی په
عقیده سره نه آوري وجه ئې داده چه په دوی کښې د یوې لوئې خوبۍ کموالے
دے او هغه خوبي د حق طلب دے ځکه چه اعتقاد پیدا کیږي د طلب
او تلاش نه اګرچه دا وخت د دوی عقیده خو نه وي مګر کم نه کم تردد خو
وي پس د دې تردد او طلب په برکت سره حق واضح کیږي او دغه تردد
عقیده جوړیږي پکومه چه د آوریدو نفع مند کېدل موقوف دي پس
په دې کښې دا خوبي نیشته چنانچه) که چرې الله تعالیٰ په دوی کښې څه
خوبي لیدے (مراد دا دے چه که په دوی کښې دا ذکر شوې خوبي وے
ځکه چه د خوبۍ د وجود په وخت کښې د الله تعالیٰ د علم تعلق لازم دے
پس لازم ئې او وے ملزوم ئې تړ مراد کړو، او څه خوبي ئې ځکه او وے
چه کله دا سې خوبي نیشته چه مدار د نجات پرې وي نو کو یا هیڅ خوبي
هم نیشته، یعنې که په دوی کښې طلب د حق وے) نو (الله تعالیٰ به) دوی
ته (د عقیدې سره) د آوریدو توفیق ورکړے وے (لکه چه ذکر شو
چه د طلب نه عقیده پیدا کیږي) او که چرې (الله تعالیٰ) دوی ته او س
(په موجوده حالت کښې چه په دوی کښې د حق طلب نیشته) آورَ ونکي کړي
(لکه چه کله کله په ظاهره غوږ کو نو سره آوري هم) نو خامخا به دوی
مخ اړه ولے وه بے مخي به ئې کو له (یعنې داسې نه ده چه د غور او فکر نه پس، په
وجه د ښکاره کېدو د غلطۍ ئې مخ اړه ولے وي، ځکه چه دلته د غلطۍ نوم
نښه هم نیشته بلکه غضب خو دا دے چه دے خواهش و توجه هم نه کوي
(د) اے ایمان اوو (مومنو) چه کوم برہ تاسو ته د فرمانبردارۍ حکم کړے ئې
نو یا د ساتۍ په دے کښې ستاسو فائده ده چه دغه همیشه ژوند دے
هر کله چه خبره داده نو) تاسو د الله تعالیٰ او د رسول خبرې لره په ځائے

کوئے هرکله چه رسول ردکوم ارشاد چه دخدائے ارشاد دے) تاسو لره تاسو
ته د ژوند بخښلو خیزا یږ خ ته (یعنې د دین طرف ته چه په دے سره د همیشه
ژوند حاصلیږی) رابلی (نو په داسے حالت کښے چه هرشان سره ستاسو
فائده ده هیڅ وجه نیشته چه تاسو عمل نه کوئ) او (د دے متعلق دوه
خبرے نورهم) یادکړئ (یوه خبره داده) چه الله تعالی آړ جوړیګی
د بنده او د ده د زړه په مینځ کښے (په دوه وڼو طریقو سره یوه طریقه
داده چه د مؤمن زړه ته د طاعت په برکت سره کفر او ګناه نه راپریږدی
دویمه طریقه داده چه د کافر زړه ته د مخالفت په کم بختئ سره
ایمان او طاعت نه راپریږدی، د دے نه معلومه شوه چه په طاعت
همیشوالے لوئے نفع مند شے دے او په مخالفت همیشوالے ډیر بد
او ضرر رسوونکے شے دے) او (دویمه خبره داورئ چه) بے
شکه تاسو به ټول د خدائے خوا ته جمع کړے شئ (دغه وخت به په
طاعت جزا او په مخالفت سزا وی، په دے سره هم د طاعت نفع مند
کیدل او د مخالفت ضررناک کیدل ثابت شو) -

## معلومات او مسئلے

د بدر غزا د کوم واقعه چه په تیر وا یا تونو کښے څه قدر ے په تفصیل
سره بیان شوے ده په دے کښے د مسلمانانو او کافرانو دواړو د پاره
د حکمت او عبرت ډیر سبقونه دی د کوم طرف ته چه د قصے په درمیان
جملو کښے خبرداړے ورکړے شوے دے -

مثلاً په تیر وا یا تونو کښے د مکے د مشرکانو د شکست او ذلت د واقعے
بیانولو نه پس ارشاد فرمائیلے وه : ذٰلِكَ بِاَنَّهُمْ شَآقُّوا اللّٰهَ وَرَسُوْلَهٗ ؛
یعنې د هرقسم قوت او سامان باوجود د مکے د مشرکانو د شکست اصل سبب
د الله او د هغه د رسول مخالفت وه - په دے کښے د هغو خلقو د پاره د
عبرت یوه تازیانه ده کوم چه د زمکے او آسمان د خالق او مالک د کامل قدرت
او غیبی قوت نه قطع نظر کوی صرف په مادی قوتونو باندے بهروسه کوی،

یا د الله تعالیٰ د نافرمانو با وجود د هغهٔ د امداد او د نصرت په غلطو آرزوګانو سره ځان ته دوکه ورکوي۔

په ذکر شوو آیاتونو کښې د دې مسئلې دویم رخ مسلمانانو ته بیانوي چه د دې نجو هدا دے چه مسلمانانو ته سره د کموالي د شمار او بې سامانۍ دا عظیم فتح صرف د الله جل شانه په نصرت او امداد سره حاصله شوه، او دا نصرت او امداد نتیجه ده د دوی د فرمانبردارۍ د حق نو په دے اطاعت باندې په مضبوطۍ سره د قائم پاتې کېدو د پاره مسلمانانو ته حکم ورکړے شو: يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا أَطِيعُوا اللهَ وَرَسُولَهُ: یعنی اے ایمان دارو د الله او د هغهٔ د رسول صلی الله علیه وسلم فرمانبرداری اختیار کړئ او په دے په مضبوطۍ سره قائم اوسئ۔ بیا د دے مضمون د زیات تاکید د پاره فرمائي: وَلَا تَوَلَّوْا عَنْهُ وَأَنتُمْ تَسْمَعُونَ: یعنی د قرآن او د حق کلمې د آورېدو با وجود د فرمانبردارۍ نه مخ مه اړوئ۔

د آورېدو نه مراد د حقې خبرے آورېدل دي او د آورېدو څلور درجې دي۔ یوه دا چه څوک آواز صرف په غوږونو سره آوري مګر نه پرې د پوهې کوشش کوي او نه پرے پوهیږي او نه پرې اعتقاد او اعتماد وکړي او نه پرې عمل اوکړي۔ او دویم دا چه په غوږونو سره ئے واوري هم مګر نه پرے عقیده راولي او نه عمل پرې اوکړي۔ دریم دا چه واوري هم او پوهه پرې هم شي او عقیده او اعتماد پرې هم اوکړي مګر عمل پرې اونه کړي۔ څلورم دا چه واوري هم پوهه پرې هم شي اعتماد پرې هم اوکړي او عمل پرې هم۔

دا ښکاره خبره ده چه د آورېدو اصل مقصد پوره شان په څلورمه درجه سره حاصلیږي۔ کوم چه د کاملو مؤمنانو مقام دے او په اولنو درے درجو کښې آورېدل ناقص او نامکمل دي، کوم ته چه په یو حیثیت سره نهٔ آورېدل هم وئیلے شي لکه چه په راتلونکو آیاتونو کښې راځي۔ او دریمه درجه یکومه کښې چه حق آورېدل، پوهېدل اعتقاد کول خو موجود دي مګر عمل نیشته، په دے کښې اګر چه د آورېدو اصل مقصد پوره نه دے مګر اعتقاد هم یو خاص اهمیت لري په دے وجه دغه هم بے کاره نه دے"

دا درجه د ګناه ګارو مسلمانانو ده - او دویمه درجه چه په هغې کښې صرف اورېدل او پوهېدل دی نه عقیده شته نه عمل، دا د منافقانو درجه ده، چه قرآن اوری هم او پوهېګی پرې هم او په ظاهر کښې د اعتقاد او عمل دعوه هم ده مګر په حقیقت کښې د عقیدې او عمل نه خالی وی - او اوله درجه د عامو مشرکانو او کفارو ده کوم چه د حق کلمه او د قرآن آیاتونه په غوږو نو سره خو واورېدل مګر چه ته ئې د پوهېدو او غور کولو طرف خیال نه دے کړے -

په ذکر شوی آیت کښې مسلمانانو ته خطاب دے چه تاسو خلق حقه خبره خو اورئ، یعنې اورېدل، پوهېدل اعتقاد ستاسو د طرف نه موجود دی مګر ورانې په دے عمل هم پوره کوئ د فرمانبرداری نه څه مه اړوئ چه د اورېدو اصل مقصد مکمل شی -

په دویم آیت کښې د دے مضمون د زیات تاکید د پاره ارشاد فرمائی: وَلَا تَكُوْنُوْا كَالَّذِيْنَ قَالُوْا سَمِعْنَا وَهُمْ لَا يَسْمَعُوْنَ: یعنې تاسو د هغو خلقو پشان مه کیږئ کوم چه وائی داسے چه مونږ واورېدل مګر په حقیقت کښې دوی هیڅ نه وی اورېدلی، د دے خلقو نه مراد عام کفار دی کوم چه د اورېدو دعوه کوی د اعتقاد نه کوی، او منافقان هم دی کوم چه د اورېدو سره د پوهېدو او عقیدے هم دعوه کوی مګر حقیقت دادے چه د غور او فکر او صحیح پوهے نه دا دواړه محروم دی په دے وجه د دوی اورېدل د نه اورېدو په حکم کښې دی - مسلمانانو لره ئې د دے خلقو سره د مشابهت کېدو نه منع کړل -

په دریم آیت کښې د دے خلقو سخت ناکاروالے دے - کوم چه حقه خبره په غور او فکر سره نه اوری او قبلوی ئې نه - داسے خلقو لره ئې د څناورو نه هم زیات بد تر مقرر کړی دی ارشاد فرمائی: اِنَّ شَرَّ الدَّوَآبِّ عِنْدَ اللّٰهِ الصُّمُّ الْبُكْمُ الَّذِيْنَ لَا يَعْقِلُوْنَ:

لفظ د: دوآبّ: د دابة جمع ده د اصل لغت په اعتبار سره هر په زمکه تلونکو ته دابة وائی، مګر په عرف او په محاوره کښې صرف چوپایه جانورانو ته دابة وائی - معنی د آیت دا شوه چه د ټولو نه بد ترین ځاروی د الله تعالی په نزد هغه دی کوم چه د حق اورېدو نه کانړه او د قبلولو نه ئې چاړ ګنګان دی

او په کنړو چاړاګانو کښې که څهٔ عقل وی نو هغوی هم په اشاروسره د خپل زړهٔ خبره وښیلے شی او د نورو په خبره پوهیګی خو دا خلق د کوړکیدو او چاړاګانو کیدو سره بے عقله هم دی او دا بنکاره خبره ده چه کوم کونړ چاړا د عقل نه هم خالی وی د هغه د پوهه کولو هیڅ لار نیشتے۔

په دے ایت کښے الله تعالیٰ دا واضحه کړه چه انسان لره کوم چه په: اَحْسَنِ تَقْوِیْمٍ: سره پیدا شوے دے او اشرف المخلوقات او مخدوم کائنات ئے جوړ کړے دے، دا ټول انعامات صرف د حق په فرمانبرداری کښے منحصر دی، کله چه انسان د حقے خبرے منلو ته اوریدلو او پوهیدلو نه ګرځي او که نو دا ټول انعامات د دهٔ نه واغستے شی او دے د ځناورو نه هم زیات بد ترشی۔

په تفسیر روح البیان کښے دی چه انسان د خپل اصلی پیدائش په اعتبار سره د ټولو جانورانو نه افضل او اعلیٰ دے او د فرشتو نه په کمه درجه کښے دے، لیکن کله چه دے پخپل کوشش او عمل او په طاعت د حق کښے جد وجهد کوی نو د فرشتو نه هم اعلیٰ او اشرف شی - او که دهٔ د حق د اطاعت نه مخ واړاوهٔ نو بیا دے: اسفل سافلین: ته لاړشی او د ځناورو نه زیات بد ترشی۔

په څلورم ایت کښے ارشاد دے: وَلَوْ عَلِمَ اللّٰهُ فِیْهِمْ خَیْرًا لَّاَسْمَعَهُمْ وَلَوْ اَسْمَعَهُمْ لَتَوَلَّوْا وَّ هُمْ مُّعْرِضُوْنَ: یعنی که الله تعالیٰ په دوی کښے څهٔ ښهٔ والے لیدے نو دوی لره به ئے د عقیدے سره د اوریدو توفیق ورکړے وو او که دوی ته په موجوده حالت کښے چه په دوی کښے د حق طلب نیشتے حقه خبره واورَوی نو دوی به خامخا روګردانی او کړی په بے مخۍ کولو سره۔

د ښهٔ والی نه مراد دلته: طلب د حق دے: چه د طلب په ذریعه د فکرا و پوهے دروازے پرانستلے کیږی او په دے سره د اعتقاد او عمل توفیق پیدا کیږی، او په کوم کښے چه طلب د حق نه وی، ګویا په دهٔ کښے څهٔ ښهٔ والے نیشتے معنیٰ داده چه که په دوی کښے څهٔ ښهٔ والے موجود وے نو ظاهره ده چه دغه به د الله تعالیٰ په علم کښے وه۔ کله چه د الله تعالیٰ په علم کښے په دوی کښے څهٔ

بنهٔ والے نیشتے، نو معلومه شوه چه دوی په حقیقت کښے دَ عربنهٔ والی نه محرومه دی، او دَ دغے محرومئ په حالت کښے که دوی ته دَ غور تدبر او عقیدے دَ حق دعوت ورکړے شي، نو دوی به ئے هرګز قبول نه کړی، بلکه مخ به تړ واړوی او په تختی تړ- یعنی دَ دوی داخ اَړ ول به په دے بنا نه وی چه په دین کښے دوی ته دَ اعتراض څه خبره په نظر راغله، په دے وجه نه منی، بلکه حقیقت دا دے چه دوی حقے خبرے ته فکر او نه کړو-

په دے تقریر سره دَ غه منطقی شبُهَ هم رفع شوه کومه چه دَ اهلِ علمو په زړه ونو کښے ازغے کیږی چه دا دَ قیاس شکل اوّل دے چه حدِ اوسط تړ حذف شي نو نتیجه غلطه وُځی، جواب دا دے چه دلته په حقیقت کښے حدِ اوسط مکرر نه دے، ځکه چه دَ اوّلی : لَاَسْمَعَهُمْ : مفهوم جُدا دے- دَ دویم : اَسْمَعَهُمْ : جُدا دے، په اول کښے سماع دَ قبول او دَ فائدے مراد ده دَ دویم نه صرف سماع -

په پنځم ایت کښے بیا اهلِ ایما نو ته خطاب کوی دَ الله او رسول دَ احکامو دَ تعمیل او اطاعت حکم ئے په یو خاص انداز کښے ورکړے دے، چه الله او دَ هغهٔ رسول صلے الله علیه وسلم تاسو ته دَ کوم شي دعوت درکوی په دوی کښے دَ الله او دَ رسول خپله څهٔ فائده نیشتے بلکه ټول احکام ستاسو دَ فائدے دَ پاره تاسو ته درکوی -

ارشاد فرمائی: اِسْتَجِیْبُوْا لِلّٰهِ وَلِلرَّسُوْلِ اِذَا دَعَاکُمْ لِمَا یُحْیِیْکُمْ : یعنی خبره اُومنئ دَ الله او دَ رسول هرکله چه رسول تاسو لره دَ داسے شي طرف ته رابلی کوم چه تاسو لره ژوند درکوونکے دے-

دغه ژوند دَ کوم ذکر چه په دے ایت کښے دے څهٔ دے؟ په دے کښے ډیر احتمالات دی په دے وجه دَ تفسیر عالما نو مختلفے خبرے اختیار کړی دی سُدّیٰ وائی چه دغه حیات بخښ شے ایمان دے ځکه چه کافر مړ دے- قتادهٔ فرمائی چه قرآن دے بیکوم کښے چه دَ دنیا او اخرت ژندگی او کامیابی ده- مجاهدُ فرمائی، چه دغه حق دے- ابنِ اسحاق فرمائی چه مراد دَ دینه جهاد دے، دَ کوم په ذریعه چه الله تعالیٰ مسلمانا نو ته عزت ورکړو - او دا ټول احتمالات

پخپل خپل ځائے صحیح دی، په دوی کښې هیڅ تضاد نیشته، او مراد دادے چه ایمان یا قرآن یا تابعداری د حق وغیره داسے څیزونه دی چه کومو سره چه د انسان زړه ژوندے کیږی - او د زړه ژوند دادے چه د بنده او الله تعالیٰ په مینځ کښې د کوم غفلت او خواهشاتو پردے حائلې دی هغه د مینځ نه لرے شی او د پردو تیاره لرے شی د معرفت نور په زړه کښې ځائے اونیسی -

ترمذی او نسائی په روایت د حضرت ابوهریره نقل کړے دے چه نبی کریم صلے الله علیه وسلم یوه ورځ اُبَیّ ابن کعبؓ را اوغوښتلو، اُبَیّ ابن کعبؓ مونځ کولو زر زر ئے مونځ پوره کړو حاضر شو، دوی اوفرمائیل چه ځما په رابللو زر ولے رانغلے - اُبَیّ ابن کعب عرض اوکړو چه زهٔ په مانځه کښې وم - دوی اوفرمائیل چه آیا تا د الله تعالیٰ دا ارشاد نه دے آوریدلے: اِسْتَجِيْبُوْا لِلّٰهِ وَلِلرَّسُوْلِ الآية:

اُبَیّ ابن کعبؓ عرض اوکړو چه ائینده به د دے اطاعت کوم که په حالت د مانځه کښې یم هم تا سو را اوبلئ فوراً به حاضریږم -

د دے حدیث په بنا بعض فقهاء فرمائی چه د رسول د حکم په اطاعت سره چه کوم یو کار هم په مانځه کښې اوکړی په دے سره په مانځه کښې خلل نه راځی، او بعض فرمائی چه اګر که د مانځه نه په خلاف کارونو سره په مانځه کښې خلل راځی او ماتیږی او بیائے قضا کول لازمیږی لیکن کول هم دا پکار دی چه کله نبی کریم صلے الله علیه وسلم چا لره را اوبلی او هغهٔ په مانځه کښې هم وی خو مونځ به ماتوی او د حکم تعمیل به کوی -

دا صورت خو صرف د نبی کریم صلے الله علیه وسلم سره خاص دے - لیکن نور داسے کارونه په کومو کښې چه په تاخیر کیدو سره د سخت نقصان خطره وی دغه وخت هم مونځ ماتول او بیائے قضا کول پکار دی، لکه څوک په مانځه کښې دا اووینی چه ړوند سړے کوهی یا کندے ته نزدے شوے دے ورغورزیګی نو فوراً د مانځهٔ ماتول او د دهٔ بچ کول پکار دی -

د آیت په آخر کښې ارشاد فرمائی: وَاعْلَمُوْٓا اَنَّ اللّٰهَ يَحُوْلُ بَيْنَ الْمَرْءِ وَقَلْبِهٖ: یعنی په دے خبره پوهه شئ چه الله تعالیٰ حائل کیږی د سړی او د دهٔ د زړهٔ په مینځ کښې،

د دے جملے دوه معنے کیدے شی او په دواړو کښے عظیم حکمت او نصیحت دے کوم چه هر انسان له هر وخت یاد ساتل پکار دی۔

یوه معنیٰ خو دا کیدے شی چه کله د خهٔ نیک کار کولو یا د گناه نه د بچکیدو موقع راشی نو دغه فوراً کوه وخت پکښے مه اړوه۔ او دے فرصت د وخت له غنیمت اوگنړه ځکه چه بعضِ وخت د سړی د ارادے په مینځ کښے د تل رت تقدیر حائل کیږی او دے پخپله اراده کښے نه کامیابیګی۔ خهٔ بیماری راشی یا مرګ راشی یا خهٔ داسے شغل را پیښی شی چه دغے کار ته فرصت ملاؤ نه شی۔ په دے وجه انسان له پکار دی چه فرصت د عمر او فرصت د وخت له غنیمت اوگنړی د نن کار صبا ته نه پاتے کوی ځکه معلومه نه ده چه صبا څهٔ کیږی: ؎

من نمی گویم زیان کن یا بفکر سود باش ای ز فرصت بے خبر در هرچه باشی زود باش

(یعنی زهٔ دانه وایم چه تاوان کوه یا د نفع فکر کوه خو اے د فرصت د وخت نه بے خبره فرصت له غنیمت اوگنړه او هر څه چه کوے خو نی الحال ئے کوه)۔

او دویم مطلب د دے جملے دا کیدے شی چه په دے کښے د الله تعالیٰ د خپل بنده سره نهایت نزدے والے خودلے دے. لکه په بل ایت کښے: نَحْنُ اَقْرَبُ اِلَيْهِ مِنْ حَبْلِ الْوَرِيْدِ: "الله تعالیٰ انسان ته د مرئی د رګونو نه هم د زیات نزدے والی بیان دے۔

مطلب دا دے چه د انسان زړهٔ هر وخت د الله تعالیٰ په خاص تصرف کښے دے کله چه دے د یو بنده د بد محفوظ کول او غواړی نو د دهٔ د زړهٔ او د گناهونو په مینځ کښے حائل شی۔ او کله چه د چا بد بختی په تقدیر کښے وی نو د دهٔ د زړهٔ او د نیکو کارونو په مینځ کښے حائل شی۔ په دے وجه نبی کریم صلی الله علیه وسلم به اکثر پخپلو دعاګانو کښے دا دعا غوښتله: يَا مُقَلِّبَ الْقُلُوْبِ ثَبِّتْ قَلْبِىْ عَلٰى دِيْنِكَ: یعنی اے د زړونو اړوونکیه ځما زړهٔ پخپل دین ثابت او قائم اولرے۔

نچوړ د دے هم هغه دے چه د الله او د رسول په احکاموعملو کښے وخت مه اړوه او فرصت له غنیمت اوګنړه فوراً ئے کوه معلومه نه ده چه بیا په زړهٔ کښے د نیکئ جذبه او مینه باقی پاتے کیږی او که نهٔ۔

وَاتَّقُوا فِتْنَةً لَّا تُصِيبَنَّ الَّذِينَ ظَلَمُوا مِنكُمْ

او ځان ساتئ د هغې فساد نه چه نه پريوځي په تاسو کښې خاص په

خَاصَّةً ۚ وَاعْلَمُوا أَنَّ اللَّهَ شَدِيدُ الْعِقَابِ ﴿٢٥﴾ وَ

ظالمانو باندې - او پوهه شئ چه د الله عذاب سخت دے - او

اذْكُرُوا إِذْ أَنتُمْ قَلِيلٌ مُّسْتَضْعَفُونَ فِي الْأَرْضِ

ياد کړئ کوم وخت چه تاسو لږ وئ کمزوري کنړلي شوي په زمکه کښې

تَخَافُونَ أَن يَتَخَطَّفَكُمُ النَّاسُ فَآوَاكُمْ

ويريدئ چه او به تختوي تاسو لره خلق بيا هغۀ تاسو لره ځائے درکړو

وَأَيَّدَكُم بِنَصْرِهِ وَرَزَقَكُم مِّنَ الطَّيِّبَاتِ

او قوت ئې درکړو تاسو لره پخپل مدد سره او رزق ئې درکړو تاسو لره پاکو څيزونو

لَعَلَّكُمْ تَشْكُرُونَ ﴿٢٦﴾ يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا

چه تاسو شکر اوباسئ - اے ايمان دارو !

لَا تَخُونُوا اللَّهَ وَالرَّسُولَ وَتَخُونُوا أَمَانَاتِكُمْ

خيانت مه کوئ د الله سره او د رسول سره او خيانت مه کوئ پخپل مينځ کښې په آمانتونو

وَأَنتُمْ تَعْلَمُونَ ﴿٢٧﴾ وَاعْلَمُوا أَنَّمَا أَمْوَالُكُمْ

او تاسو پوهيږئ - او پوهه شئ چه بے شکه ستاسو مالونه

وَأَوْلَادُكُمْ فِتْنَةٌ ۙ وَأَنَّ اللَّهَ عِندَهُ أَجْرٌ عَظِيمٌ ﴿٢٨﴾ ع

ع ٣ ٩ ١٧

او اولاد په خرابۍ کښې اچونکي دي - او دا چه د الله سره لوئے ثواب دے -

# لنډ تفسير

او (ځنګه چه په تاسو د خپلې اصلاح په باره کښې طاعت واجب دے دغه شان دا هم په واجب طاعت کښې داخل ده چه په قدر د طاقت د نورو په اصلاح کښې په طريقه د امر بالمعروف او نهي عن المنكر (په لاس، ژبه، يا د کوم د اختلاط يا نفرت په زړه کښې کومه چه آخري درجه ده) کوشش کوئ ورنه که خلط ورسره ساتئ نو د دغو بدو عملونو وبال لکه ځنګه چه په دغو کوونکو باندې واقع کيږي داسے په څه درجه کښې به په دے خلط ورسره ساتونکو باندې هم واقع شي هرکله چه داخبره ده نو) تاسو د داسے وبال نه ځان ساتئ کوم چه خاص په هغو خلقو باندې نه واقع کيږي کوم چه په تاسو کښې دغه ګناهونه کوي (بلکه کوم خلق چه دغه ګناهونه کيدل وينى او څه پروا نه وائي هغوي به هم په دوي کښې شريک وي او د دے نه بچ کيدل دادي چه خوشامد مه کوئ) او په دے پوهه شئ چه الله تعالىٰ سخته سزا ورکوونکے دے (د دهٔ د سزانه يره کوي خوشامد مه کوئ) او (په دے غرض سره چه د نعمتونو په ياد ولو سره د نعمت ورکوونکي د طاعت شوق پيدا کيږي، د خدائے تعالىٰ نعمتونو لره او خاص کړ) دے حالت لره ياد کړئ کله چه تاسو (په يو وخت کښې يعني د هجرت نه وړاندې په شمار کښې هم) لږ وئ (او د قوت په اعتبار سره هم) په زمکه (د مکے) کښې کمزور ګڼړلے شوے (او د چيرے کمزورئ نه) په دے ډيره کښې وئ چه تاسو لره (مخالف) خلق او نه تختوي پس (په داسے حالت کښې) الله تعالىٰ تاسو لره (په مدينه کښې په اطمينان سره) د اوسيدو ځائے درکړو او تاسو لره ئے پخپل مدد سره قوت درکړو (په سامان سره هم او د مردم شمارئ په زياتوالو سره هم چه په دے سره کم والے کمزورى او ويره ټول ختم شو) او (صرف دا نه ده چه ستاسو کمزورى او مصيبت ئے لرے کړو بلکه د اعلىٰ درجے خوشحالئ ئے هم درکړه چه په دشمنانو ئے تاسو لره غلبه درکړه په جهاد و فتوحاتو سره) تاسو لره ئے اعلىٰ خيزونه درکړل چه (د دے نعمتونو) شکر اوکړئ (او لوئے شکر دادے چه اطاعت اوکړئ) اے ايماندارو (مونږ د مخالفت او معصيت نه

په دے وجه ممانعت کوؤ چه د الله او رسول په تاسو باندے څهٔ حقوق دی چه نفع ئے تاسو ته رارسی او په معصیت سره په دے حقونو کښے خلل پریوځی، چه په دے سره په واقع کښے ستاسو خپلے نفع ته نقصان رسی هرکله چه خبره داده نو) تاسو د الله او د رسول په حقونو کښے خلل مه غورځوئ او (په اعتبار د انجام د دے مضمون ته داسے وئیلے شی چه تاسو) پخپلو د حفاظت په جوګه څیز ونو کښے (چه دغه ستاسو نفع دی کوم چه په عملونو باندے مرتب کیږی) خلل مه اچوئ او تاسو خو د دے ضرر لره) پیژنئ او (اکثرو وختونو کښے د مال او اولاد محبت په طاعت کښے خلل کیږی په دے وجه تاسو لره خبر ورکړے شی چه) تاسو په دے خبره باندے پوهه شئ چه ستاسو مالونه او ستاسو اولاد د یو امتحان څیز دے (چه اوګورو چه څوک د دی محبت لره ترجیح ورکوی او څوک د الله تعالیٰ محبت لره ترجیح ورکوی پس تاسو د دی محبت لره ترجیح مه ورکوئ) او (که د دوی نفعو ته ګوری نو تاسو) په دے خبره باندے هم پوهه شئ چه د الله تعالیٰ سره (د هغو خلقو د پاره کوم چه د الله تعالیٰ محبت لره ترجیح ورکوی) ډیر لوئے اجر (موجود) دے (چه د هغوی په وړاندے دا فانی نفع هیڅ هم نه دی) -

## معلومات او مسئلے

قرآن کریم د بدر د غزا څهٔ تفصیلات او په دے کښے په مسلمانانو باندے د خپلو انعامونو د ذکر کولو نه پس د دے نه حاصلے شوے نتیجے او د دغو په مناسبت سره مسلمانانو ته څهٔ د پند و نصیحت ارشادات بیان کړی دی چه سلسله ئے د: يَٰٓأَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا اسْتَجِيبُوا لِلَّهِ وَلِلرَّسُولِ: نه شروع شوے ده- د دے سلسلے دا ایاتونه دی کوم چه بره لیکلے شوی دی-

د دے نه په اولنی ایت کښے د داسے ګناه نه د بچکید و په خاص طور سره هدایت شوے دے د کوم چه سخت عذاب صرف په ګناه ګارو باندے نه پریوځی بلکه کوم خلقو چه ګناه نه وی کړی هغوی پکښے هم اخته کیږی-

دغه ګناه کوم یو دے، په دے کښے د تفسیر د عالمانو خبرے مختلفے دی بعضے حضرات فرمائی چه دا ګناه امر بالمعروف او نهی عن المنکر یعنی خلقو د نیکو

کارونو هدایت او دَ بد وکارونو نه دَ منع کولو جد وجهد پاتے کول دی۔
حضرت عبد الله بن عباسؓ فرمائی چه الله تعالیٰ مسلمانانو ته دَ دے حکم کړے دے چه څهٔ جرم او ګناه لره پخپل ماحول کښے مه پاتے کوئ ځکه چه که دوی داسے اونه کړی یعنی جرم او ګناه وینی او سره دَ قدرت نئے نهٔ منع کوی نو الله تعالیٰ به په دے ټولو باندې خپل عام عذاب نازل کړی چه نهٔ به ترے ګناه ګار بچ شی او نه بے ګناه۔
او دَ بے ګناه نه مراد دلته هغه خلق دی کوم چه په اصل ګناه کښے دَ دوی سره شریک نه وی مګر دَ امر بالمعروف دَ پاتے کولو ګناه ګار خو دوی هم دی۔ په دے وجه دلته دا شبهٔ کول نه دی پکار چه دَ یو دَ ګناه عذاب په بل باندې اچول بے انصافی او دَ قرآن دَ فیصلے: لَا تَزِرُ وَازِرَةٌ وِّزْرَ أُخْرىٰ: نه خلاف ده۔ ځکه چه دلته ګناه ګار په خپل اصل ګناه کښے او بے ګناه دَ امر بالمعروف پاتے کولو په ګناه کښے اونیوَلے شو۔ دَ یو ګناه په بل باندې نه ده اچوَلے شوے۔
امام بغوی په شرح السنة او معالم کښے په روایت دَ حضرت عبد الله بن مسعودؓ او صدیقے عائشےؓ دا روایت نقل کړے دے چه نبی کریم صلے الله علیه وسلم فرمائیلی دی چه الله تعالیٰ دَ یو خاص جماعت دَ ګناه عذاب په عامو خلقو نه اچوی ترڅو چه داسے صورت پیدا نه شی چه دوی پخپل ماحول کښے ګناه کیدل وینی او دوی ته دا قدرت هم وی چه دغه منع کوَلے شی او دَ دے باوجود دوی دغه منع نه کړی، نو دغه وخت دَ الله تعالیٰ عذاب دے ټولو لره راګیروی۔
او په ترمذیؒ او ابوداؤدؒ وغیره کښے په صحیح سند سره نقل دی چه حضرت ابوبکر صدیقؓ پخپله یوه خطبه کښے اوفرمائیل چه ما دَ نبی کریم صلے الله علیه وسلم نه آوُریدلی دی چه دوی فرمائیل کله چه خلق چا ظالم لره او وینی او دَ ظلم نه دَ دهٔ لاس منع نه کړی نو نزدے ده چه الله تعالیٰ په دے ټولو خپل عذاب عام را اولیږی۔
په صحیح بخاری کښے دَ حضرت نعمان بن بشیرؓ په روایت سره نقل دے

چه نبی کریم صلے الله علیه وسلم فرمائیلی دی چه کوم خلق دَ الله تعالیٰ دَ قانون مانوونکی مهمان دی او کوم خلق چه دوی وینی او خوشامد ئے کوی یعنی سره دَ قدرت نه دوی لره دَ ګناه نه نهٔ منع کوی دَ دے دواړه طبقو مثال داسے دے لکه په بحری جهاز کښے چه دوه طبقے وی او دَ لاندِ طبقے والا برہ راشی دَ خپل ضرورت دَ پاره اُوبه اَخلی او په دے باندِ برے طبقے والا تکلیف محسوس کړی۔ لاندِ طبقے والا چه دا او وینی نو دا صورت اختیار کړی چه دَ کشتئ په لاندِ طبقه کښے سُوری او کړی اُوبه حاصلے کړی، او دَ برہ طبقے خلق دا وینی او منع ئے نه کړی، ښو ښکاره خبره ده چه ټوله کشتئ به دَ اُوبو ډکه شی او چه لاندِ طبقے والا غرقیږی نو دَ برے هغه ترِے نه شی بچ کید ے۔

دَ دے روایتونو په بنا باندِ ډیرو تفسیر کوونکو حضراتو دا مقرر کړے ده چه په دے ایت کښے دَ فتنے نه مراد دا ګناه دے یعنی امر بالمعروف او نهی عن المنکر پاتے کول۔

او په تفسیر مظهری کښے دی چه دَ دے ګناه نه مراد دَ جهاد پاتے کولو ګناه دے، او خصوصاً هغه وخت کله چه دَ مؤمنانو امیر دَ جهاد دعوت عامو مسلمانانو ته ورکړی، او دَ اسلامی شعائرو حفاظت په غیر دَ دے نه نهٔ شی کید ے، ځکه چه دغه وخت دَ جهاد دَ پاتے کولو وبال صرف په پاتے کوونکو دَ جهاد نه دے بلکه په ټولو مسلمانانو پریوځی، دَ کفارو دَ غلبے په سبب بنځے، بچی، بوډا کمان او ډیر بے ګناه مسلمانان قتل او لوټ کیږی بدنونه او مالونه ئے په خطره کښے شی، په دے صورت کښے دَ عذاب نه مراد دَ دُنیا مصیبتونه او تکلیفونه وی۔

او قرینه دَ دے تفسیر دا ده چه په تیر والا یاتونو کښے هم په جهاد پاتے کوونکو باندِ ملامت شوے دے: وَإِنَّ فَرِيقًا مِّنَ الْمُؤْمِنِينَ لَكَارِهُونَ: او يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا إِذَا لَقِيتُمُ الَّذِينَ كَفَرُوا زَحْفًا فَلَا تُوَلُّوهُمُ الْأَدْبَارَ: وغیره تیر ایاتونه په دے بیان کښے راغلی دی۔

او دَ اُحد په غزا کښے کله چه دَ یو څو مسلمانانو نه لغزش اُوشو چه دَ کښتا دَ

حفاظت ئے پاتے کړ و لا نډ راغلل، نو دَ دوی دَ مصیبت وبال صرف په غلطی کوُنکو نه بلکه په ټول لښکر دَ اسلام با ندې پریوتلو، تر دے چه پخپله په نبی کریم صلی الله علیه وسلم هم زخم راغلو۔

په دویم آیت کښے هم دَ الله تعالیٰ اطاعت لره دَ اسانولو او دَ ترغیب وَرْکولو دَ پاره مسلمانانو ته دَ دوی دَ تیرے بد حالئ کمزورئ او بیا په دے باندې دَ خپل فضل او انعام په سبب دَ حالا بدلولو او دوی لره دَ قوّت او طاقت او اطمینان ورکولو ذکر کړے دے۔ ارشاد فرمائی:

وَاذْكُرُوْٓا اِذْ اَنْتُمْ قَلِيْلٌ مُّسْتَضْعَفُوْنَ فِي الْاَرْضِ تَخَافُوْنَ اَنْ يَّتَخَطَّفَكُمُ النَّاسُ فَاٰوٰىكُمْ وَاَيَّدَكُمْ بِنَصْرِهٖ وَرَزَقَكُمْ مِّنَ الطَّيِّبٰتِ لَعَلَّكُمْ تَشْكُرُوْنَ ۝

"یعنی اے مسلمانانو خپل هغه حال یاد کړئ کوم چه مخکښے دَ هجرت نه په مکه معظمه کښے وه چه په شمار کښے هم کم وئے او په قوّت کښے هم هر وخت در سره دا ویره وه چه خلق یعنی دشمنان به تاسو په پنجو کښے او تختوی الله تعالیٰ درلره په مدینه منوره کښے ځائے درکړو دیر غوره او ستاسو تائید او مدد ئے اوکړو او په دشمنانو فتح او عظیم مالونه او نعمتونه ئے درکړه"۔ دَ آیت په آخر کښے فرمائی: لَعَلَّكُمْ تَشْكُرُوْنَ: یعنی ستاسو دَ حالاتو بدلولو او دَ الٰهی دَ انعاماتو مقصد دا دے چه تاسو شکر کنار بنده کان جوړ شئ۔ او دا خو ښکاره خبره ده چه شکر گزاری دَ هغهٔ دَ حکمونو په منلو کښے ده۔

په دریم آیت کښے مسلمانانو ته دا حکم ورکړے شوے دے چه دَ الله تعالیٰ په حقونو کښے یا په خپل مینځ کښے دَ بنده گانو په حقونو کښے خیانت مه کوئ چه حق نه اداکوئ یا پکښے کوتاهی کوئ، دَ آیت په آخر کښے ئے: وَاَنْتُمْ تَعْلَمُوْنَ: او فرمائیل دائے او خوده چه تاسو دَ خیانت بد والی او وبال پیژنئ او بیائے هم کوئ نو دا هوښیارتوب نه دے۔ او چونکه دَ الله او دَ بنده گانو دَ حقونو دَ اداکولو نه دَ غفلت او کوتاهی سبب په عام طور سره دَ انسان مال او اولاد وی په دے وجه په دے دَ خبردارکولو دَ پاره فرمائی: وَاعْلَمُوْٓا اَنَّمَآ اَمْوَالُكُمْ وَاَوْلَادُكُمْ فِتْنَةٌ ۙ وَّاَنَّ اللّٰهَ عِنْدَهٗٓ اَجْرٌ عَظِيْمٌ: یعنی دا خبره او منئ

چه ستاسو مال او اولاد ستاسو د پاره فتنه ده -

د فتنې معنیٰ امتحان هم راځي او عذاب هم، او دا سې څیزونو ته هم فتنه وئیلې شي کوم چه د عذاب سبب جوړ شي - د قرآن کریم په مختلفو آیاتونو کښې د دې دریے واړه معنو د پاره لفظ د فتنې استعمال شوے دے - دلته د دریے واړه معنو ګنجایش شته - بعض وخت مال او اولاد چپله د انسان د پاره په دنیا کښې هم وبالِ جان جوړ شي، او د دوی په سبب سړه په غفلت او ګناه کښې اخته شي د عذاب سبب جوړ یږي ل خوځې بالکل ښکاره خبره ده - اوّل دا چه د مال او اولاد په ذریعه ستاسو امتحان اغستل مقصود دی چه دا څیزونه زمونږ انعامات دی تاسو د انعام په اغستو شکر ګزار جوړ یږئ او طاعت ګزار یا ناشکره او نافرمانه دویمه او دریمه معنیٰ دا هم کیدے شي چه که د مال او اولاد په محبت کښې اخته شوئ الله تعالیٰ موں ناراضه کړو نو دا مال او اولاد به ستاسو د پاره عذاب جوړ شي بعضِ وخت په دنیا کښې دا څیزونه انسان له په سخت مصیبت کښې اخته کوی، او په دنیا کښې مال او اولاد له دے عذاب ګڼړی او که دا سے او نه شي نو دا خو لازمی خبره ده چه په دنیا کښې کوم مال د الله تعالیٰ د حکم نه خلاف ګټلے یا خرچ کړے وی دغه مال خو به په آخرت کښې د ده د پاره مارانړ ګرمان او په اور کښې د داغونو ورکولو ذریعه جوړ یګی - لکه چه په قرآن کښې په ډیرو آیاتونو کښې او د حدیث په بے شماره روایتونو کښې د دے وضاحتونه موجود دی، او دریمه معنیٰ دا چه دا څیزونه تول په د عذاب سبب جوړ شي، دا خو ظاهره ده چه کله دا څیزونه د الله تعالیٰ نه غفلت او د ده د حکمونو نه د خلاف ورزئ سبب جوړ شي نو د عذاب سبب شو -

د آیت په آخر کښې فرمائي: وَاَنَّ اللّٰهَ عِنْدَهٗٓ اَجْرٌ عَظِيْمٌ : یعنې په دے هم پوهه شئ چه کوم سړے د الله تعالیٰ او د رسول د احکامو په پوره کولو کښې د مال او اولاد د محبت نه مغلوب نه وی د هغهٔ د پاره د الله تعالیٰ سره ډیر لوئے اجر دے -

دَ دے آیت مضمون خو تولو مسلمانانو لره عام او شامل دے مگر دَ دے دَ نزول واقعه دَ اکثرو تفسیر لیکونکو په نزد دَ حضرت ابو لبابهؓ قصه ده کومه چه په غزاء دَ بنی قریظو کښے پیښه شوه چه نبی کریم صلے الله علیه وسلم او اصحابو کرامو دَ بنی قریظه د قلعه یو نیشت ورځے محاصره جاری اوساتله نو په دے باندے دوی تنګ شو دَ وطن پریخودو او شام ته دَ تلو درخواست ئے اوکړو، خو حضورؐ دَ دوی دَ شرارتونو په وجه باندے دا قبول نه کړو بلکه دا ارشاد ئے اوفرمایه چه دَ صلح صرف یو صورت دے چه سعد بن معاذؓ ستاسو په باره کښے څه فیصله اوکړی په هغے باندے راضی شئ - دوی درخواست اوکړو چه دَ سعد بن معاذؓ په ځائے دِ ابو لبابهؓ ته دا کار او سپارلے شی ځکه چه دَ ابو لبابهؓ اهل وعیال او جائداد په بنی قریظو کښے وُو - دَ دوی دا خیال وُه چه دے به زمونږ په باره کښے رعایت اوکړی، حضورؐ دَ دوی په درخواست باندے ابو لبابهؓ او لیګلو، دَ بنی قریظه تول بنځے او سړی دَ ده نه چاپیره شو او په چغو شو او ټپوس ئے ترا اوکړو چه که مونږ دَ نبی کریم صلے الله علیه وسلم په حکم راکوز شو نو آیا دوی به زمونږ په معامله کښے څه نرمی اوکړی؟ ابو لبابهؓ ته معلومه وه چه دَ دوی په معامله کښے دَ نرمۍ رائے نیشته نو دوی څه دَ دے خلقو په چغو فریاد او څه دَ خپل اهل و عیال په محبت سره متأثره شو او خپل لاس ئے دَ توره پشان په مرۍ باندے راښکو دلو په اشاره ئے دوی ته اوخودله چه ټول به حلال کړی - ګویا په دے شان سره ئے دَ نبی کریم صلے الله علیه وسلم راز په ډاګه کړو -

دَ مال او اولاد په محبت کښے خوئے دا کار اوکړو مګر فوراً پوهه شو چه ما دَ نبی کریم صلے الله علیه وسلم سره خیانت اوکړو - هرکله چه دَ دغه ځائے نه واپس شو نو دومره ستومانه شو چه دَ حضورؐ په خدمت کښے دَ حاضریدو په ځائے نیغ جُمات ته اورسید و او دَ جُمات په یوے ستنے پورے ئے ځان اُو تړلو او قسم ئے اوخوړو چه ترڅو پورے ځما توبه قبوله نه شی هم دَغسے به تړلے یم خواه که په دے حالت کښے رَ مړک هم راشی، نو اُووه ورځے دَغه شان تړلے ولاړ وُه، ښځے او بچو به ئے ساتنه کوله دَ انسانی ضرورت او

دَمانځه په وخت به ئے سپږه دلوا وبیا به ئے تهلو خوراک سکاک به ئے نه کولو تردے چه بے هوشي راتلل پرې شروع شو -

نبي کریم صلے الله علیه وسلم ته چه هرکله اوّل وارد دے اطّلاع ملاؤ شوه نو اوئے فرمائیل چه که دے اوّل ځما خواله راغلے وے نو ما به ورله استغفار کړے وه او توبه به ئے قبوله شوے وه - اوس چه هغهٔ داکار اوکړو نو نو دَ توبے دَ نازلیدو پورے به اوس انتظار کول وی -

چنانچه اووه ورځے پس دَ شپے په اخره کښے دا ایا تونه دَ توبے قبلیدو نازل شو، بعض حضرا تو ورته خوشخبری اورسوله او دَدهٔ پرا نستل ئے غوښتل خو دهٔ اووے چه ترڅو پورے ئے پخپله نبي کریم صلے الله علیه وسلم ما اونه سپړی زهٔ سپږه دل نه خوښوم - چنانچه هرکله دَ سحر مانځه ته حضورؐ تشریف راوړه نو پخپلو مبارکو لاسو ئے اوسپږه دلو پهٔ ذکر شوی ایت کښے چه کوم دَ خیانت کولو او دَ مال او دَ اولاد دَ محبت نه دَ مغلوب کید وممانعت راغلے دے دَ دے اصل سبب دا واقعه ده - والله تعالیٰ اعلم -

يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا إِن تَتَّقُوا اللَّهَ يَجْعَل لَّكُمْ

اے ایما ندارو! که تاسو ویریږئ دَ الله نه نو او به کړی په تاسو کښے

فُرْقَانًا وَيُكَفِّرْ عَنكُمْ سَيِّئَاتِكُمْ وَيَغْفِرْ لَكُمْ

فیصله او لرے به کړی ستاسو نه ستاسو گناهونه او تاسو به اُوبخي

وَاللَّهُ ذُو الْفَضْلِ الْعَظِيمِ ﴿٢٩﴾ وَإِذْ يَمْكُرُ بِكَ

او دَ الله فضل لوئے دے - او کله چه فریب کولو

الَّذِينَ كَفَرُوا لِيُثْبِتُوكَ أَوْ يَقْتُلُوكَ أَوْ

کافرانو چه تا لره قید کړی یا قتل کړی تا لره او دیا

يُخْرِجُوْكَ ۭ وَيَمْكُرُوْنَ وَيَمْكُرُ اللّٰهُ ۭ وَاللّٰهُ

اوباسي تا لره - او دوی هم تدبير كول او الله هم تدبير كولو - او دَ الله

خَيْرُ الْمٰكِرِيْنَ ﴿٣٠﴾ وَاِذَا تُتْلٰى عَلَيْهِمْ اٰيٰتُنَا

تدبير دَ ټولو نه غوره دے - او كله چه اولوستلے شي په دوی زموږ ايا تو نه

قَالُوْا قَدْ سَمِعْنَا لَوْ نَشَآءُ لَقُلْنَا مِثْلَ هٰذَآ ۙ اِنْ

نو وائي موږ واورېدل كه موږ او غواړو نو موږ به هم او وايو دا سے - دا خو نه دی

هٰذَآ اِلَّآ اَسَاطِيْرُ الْاَوَّلِيْنَ ﴿٣١﴾ وَاِذْ قَالُوا اللّٰهُمَّ

مگر حالات دَ پخوا نو خلقو دی - او كله چه دوی او وے چه يا الله

اِنْ كَانَ هٰذَا هُوَ الْحَقَّ مِنْ عِنْدِكَ فَاَمْطِرْ

كه دا دين حق وی ستا دَ طرف نه نو اوورَوه

عَلَيْنَا حِجَارَةً مِّنَ السَّمَآءِ اَوِ ائْتِنَا بِعَذَابٍ

په موږ كانړی دَ اسمان نه يا راولَه په موږ څهٔ عذاب

اَلِيْمٍ ﴿٣٢﴾ وَمَا كَانَ اللّٰهُ لِيُعَذِّبَهُمْ وَاَنْتَ

دردناک - او الله هرگز نه عذابوی هغولره چه تهٔ

فِيْهِمْ ۭ وَمَا كَانَ اللّٰهُ مُعَذِّبَهُمْ وَهُمْ يَسْتَغْفِرُوْنَ ﴿٣٣﴾

په هغو كښې يې - او هرگز الله نه عذابوی هغو لره ترڅو چه هغوی معافي غواړی -

# لنډ تفسير

(او) اے ايماندارو دَ فرمانبردارئ نور بركتونه واورئ هغه دا چه) كه تاسو

دَ الله تعالیٰ نه اوبېرېږئ (خبردار شئ) نو الله تعالیٰ به تاسو لره یو دَ فیصلې شی
درکړی (په دې هدایت او نور دَ زړهٔ، پکوم سره چه په حق او باطل کښې علمی
فیصله کیدے شي، او غلبه په دشمن او نجات دَ آخرت پکوم سره چه په حق
او باطل کښې عملی فیصله کیدے شي تول راغلل) او ستا سو نه به ستا سو گناه
لرې کړی او تاسو لره به اوبخښی او الله تعالیٰ لوئے فضل والا دے (او خدائے
خبر چه پخپل فضل سره به نور څهٔ درکړی کوم چه په قیاس او گمان کښې هم
نه راځی) او (اے محمد صلی الله علیه وسلم دَ مسلمانانو په وړاندې دَ پاره
دَ انعام یادَ ولو) هغه واقعه هم را یاده کړه کله چه کافرانو خلقو ستا
په نسبت (ناکاره ناکاره) تدبیرونه سوچ کول چه (آیا) تا لره قید کړی
یا تا لره قتل کړی یا تا لره دَ وطن نه اوباسی، او دوی خو خپل تدبیرونه
کول او الله خپل تدبیر (دَ دوی دَ تدبیرونو دَ دفع کولو دَ پاره) کول او
دَ ټولو نه زیات محکم تدبیر کوونکے الله تعالیٰ دے (چه دَ هغهٔ په وړاندې دَ
دوی ټول تدبیرونه بےکاره ثابت شو او تهٔ بالکل محفوظ پاتے شوے
او صحیح سالم مدینے ته اورسیدے، چونکه ستا په دے شان سره بچ کیدل
دَ مؤمنانو په حق کښې دَ نیک بختیا دَ بے انتها دروازو پرانستلو کنجی ده په
دے وجه دَ دے واقعے دَ ذکر کولو حکم ئے اوفرمائیلو) او (دَ دے کفارو
دا حالت دے چه) کله دوی ته زمونږ آیاتونه لوستلے شي نو وائی چه مونږ
واورید ل (او ویدل، دا خو څهٔ معجزه نه ده څکه چه) که مونږ اراده اوکړو
نو دَ دے په شان به مونږ هم (ووایو پس) دا (قرآن) خو (دَ الله تعالیٰ
کلام او معجزه وغیره) هیڅ نه دے صرف بے سنده خبرے دی چه دَ تیرو
خلقو نه نقل راروانے دی (چه تیرو امتونو هم دا دعوے دَ توحید او پیغمبر
راتلو وغیره کړی دی دَ هغوی هغه مضمونونه تهٔ نقل کوے) او (دَ دے
نه زیات دَ ذکر قابل هغه حالت دے) کله چه دے خلقو په خپل دے
جهل مرکب کښې دَ زیات سختوالی او کلکوالی ظاهرولو په خاطر دا هم) او وے چه یا الله
که دا قرآن واقعی ستا دَ طرف نه وی نو په مونږ باندې (دَ دے دَ نه منلو په
وجه سره) دَ آسمان نه کانړی راووروه یا په مونږ څهٔ (بل) دردناک عذاب

واقع کړه (چه خارق عادت د کافرو د پاره په شان وي او کله چه دا سې عذاب واقع نه شو نو بچپل حقوالى ناز کوی) او (دا سې نه کېږي چه سره د دوى د درو غژن کولو بيا هم عذاب د څه خاصو ذکر شو و موانعو په وجه نه نازلیږی د دغو موانعو بيان دا دے چه) الله تعالىٰ دا سې نه کوی چه په دوى کښې ته موجود ئې او دوى لره (دا سې) عذاب ورکړى او (دا رنګ) الله تعالىٰ دوى لره (دا سې) عذاب نهٔ ورکوی په کوم حالت کښې چه دوى استغفار هم کوی (اګر چه دغه په اخرت کښې په وجه د نشتوالى د ايمان به نفع نه ورکوی ليکن بيا هم نيک عمل دے په دنيا کښې خو کفا رو ته نفع ورکوله شى- مطلب دا دے چه د دے خارق عادت عذا بونو نه دوه کارونه مانع دی يو د نبى کريم صلے الله عليه وسلم په مکه کښې يا په دنيا کښې تشريف لرل، او دويم د دے خلقو بچپل طواف وغيره کښې: غُفْرَانَكَ: وئيل، کوم چه پس د هجرت او پس د وفات نه هم باقى دى، او يو مانع په احاديثو کښې دے چه د حضور ﷺ په امت کښې د چا امتى کيدل په دنيا کښې دا مانع سره د چا د استغفار نه کولو هم باقى دے پس دا کارونه فى نفسه مانع شو، اګر چه کله کله سره د دے مانع نه هم څه عذاب خارق د څهٔ عارضى مصلحت په وجه واقع شى لکه په زمکه کښې ننو تل يا صورت بد ليدل (يعنى قذف او مسخ) وغيره چه قيامت ته نزدے واقع کيدل په حديثو کښې ذکر دى)-

## معلومات او مسئلے

په تيرايت کښې د دے ذکر وه چه د انسان د پاره مال او اولاد يوه فتنه يعنى د ازمائش شے دے ځکه چه د دے څيزونو په محبت کښې په اخته کيدو سره انسان په عام طور سره د خدائے تعالىٰ او اخرت نه غافله کيږى حال دا دے چه د دے عظيم نعمت تقاضا دا وه چه دے د الله تعالىٰ د احسان په وجه د هغهٔ طرف ته زيات راوګرځى-

د ذکر شو و ايا تونو په اوّلنى ايت کښې د دغے مضمون تکمله ده په دے کښې فرمائى چه کوم سړے عقل لره په طبيعت باندې غالب او لرى او په دے

آزمائیښت کښې ثابت قدم پاتې شي، او د الله تعالیٰ فرمانبرداري او محبت په ټولو څيزونو باندې وړاندې کړي، کوم ته چه د قرآن او شريعت په اصطلاح کښې تقوٰي وائي نو ده ته د دې په صله کښې درې څيزونه ورکيدې شي فرقان، د ګناهونو کفاره، مغفرت

فرقان او فرق دواړه مصدرونه په يوه معنیٰ دي - په محاورا تو کښې فرقان هغه څيز ته وئيلې شي کوم چه په دوه څيزونو کښې واضح فرق او جدائي راولي، په دې وجه فيصلې ته فرقان وائي ځکه چه دا په حق او ناحق کښې فرق ښکاره کوي - د الله تعالیٰ مدد ته هم فرقان وئيلې شي ځکه چه د دې په ذريعه د حق خاوندانو ته فتح او د دوي مخالف ته شکست ورکړې شي د حق او باطل فرق واضح شي - په قرآن کريم کښې د دې معنیٰ د پاره د بدر غزا ته يوم الفرقان وئيلې شوې دۀ -

په دې آيت کښې د تقوٰي اختيارونکو ته "د فرقان ورکولو" اکثرو تفسير ليکونکو اصحابو په نزد دا مطلب دې چه د الله تعالیٰ نصرت او امداد او حفاظت د دوي سره وي هيڅ دشمن دوي ته ضرر نه شي رسولې او په ټولو مقصدونو کښې کاميابي د دوي ملګرې وي ؛ ؎

هر که ترسد از حق و تقوٰی گزید ترسد از وے جن و انس و هر که دید

رڅوک چه د خدائے نه ويريږي او تقوٰي اختيار کړي د دۀ نه بيا پيريان بني آدم او هر څوک چه ئې ويني ټول ترې ويريږي) -

په تفسير مظهري کښې دي چه په دې کښې دې خبرې طرف ته اشاره ده چه په تيره واقعه کښې چه د حضرت ابولبابهؓ نه د خپل اهل وعيال د حفاظت په خاطر کوم لغزش شوې وۀ، هغه په دې وجه هم خطا وۀ چه د اهل وعيال د حفاظت هم صحيح لار دا وه، چه د الله تعالیٰ او د هغه د رسول صلے الله عليه وسلم مکمل اطاعت ئې اختيار کړې وې، نو ټول مال او اولاد به ئې د الله تعالیٰ په حفاظت کښې راغلي وۀ -

او بعضې تفسير ليکونکي فرمائي چه د فرقان نه مراد په دې آيت کښې هغه عقل او پوهه ده د کوم په ذريعه چه د حق او باطل کره او کوټه فرق

اسان شي، نو معنیٰ دا شوه چه تقوای اختیاروونکو ته الله تعالیٰ داسې پوهه
او عقل ورکړي چه دوئ ته په ښه بد کښې فیصله کول اسان شي -
دویم شے کوم چه د تقوای په صله کښې ورکولے شي د: گناهونو کفاره: دده
یعنی کومے خطاګانے او لغزشونه چه د دوئ نه شوي وي په دنیا کښې د
هغو کفاره او بدل اوکړولے شي - یعنی دوئ ته د داسې نیکو عملونو توفیق ورکړے شي
کوم چه د دوئ په ټولو لغزشونو باندې غالب شي -
دریم شے کوم چه د تقوای په صله کښې ملاویګي هغه د اخرت مغفرت: او
د ټولو گناهونو خطاګانو معافي ده -
د ایت په اخر کښې ارشاد فرمائي: وَاللّٰهُ ذُو الْفَضْلِ الْعَظِيْمِ: یعنی الله تعالیٰ
د لوئے فضل او احسان مالک دے - په دے کښې دے طرف ته اشاره اوکړه
چه د عمل جزا خو د عمل په تول باندې وي - دلته هم د تقوای چه کومه نیکه جزا
درے څیزونه ذکر دي دغه خو د جزا او بدلے په طور دي، مګر الله تعالیٰ
لوئے فضل او احسان والا دے د هغهٔ عطا او بخشش په وزن او پیمانے پورے
تړلی نه دي- او د هغهٔ د احسان او انعام هیڅوک اندازه نه شي کولے، په
دے وجه د تقوای اختیاروونکو د پاره پکار دي چه د الله تعالیٰ د فضل او
انعام د دے درے څیزونو نه علاوه نور هم ډیر امید ونه لري-
په دویم ایت کښې د الله تعالیٰ د یو خاص انعام او احسان ذکر دے کوم
چه په نبي کریم صلی الله علیه وسلم او صحابو کرامو بلکه په ټوله دنیا باندې شوے
دے، چه د هجرت نه اول کله چه نبي کریم صلی الله علیه وسلم د کفارو په ګیره
کښې وه او دغو د دوي د قید کولو یا قتل کولو مشورے کولے نو الله تعالیٰ
د دوي ناپاکے ارادے په خاؤرو کښې ملاؤ کړے او نبي کریم صلی الله علیه
وسلم ئے په خیر وعافیت سره مدینے منورے ته اورسولو-
د کوم واقعه چه تفسیر ابن کثیر او مظهري په روایت د محمد بن اسحاق
او امام احمدؒ او ابن جریرؒ وغیره داسې نقل کړے ده، چه هر کله د مدینے
منورے نه د راتلونکو انصارو مسلمانانو کیدل په مکه کښې مشهور شو
نو د مکے د قریشو سره دا فکر شو، چه ترا وسه خو د دوئ معامله صرف د

مکے پورے محدود وہ چه دلته دَ هرقسم طاقت زمونږ په لاس کښې دے . او اُوس چه هرکله په مدینه منوره کښې دَ اسلام خوریدل شروع شو، او ډیرو اصحابو کرامؓ هجرت اوکړو مدینې ته اورسیدل نو اوس دَ دوی یو مرکز مدینه طیّبه قائم شو چه هلته دوی دَ هرقسم قوّت زمونږ خلاف جمع کولے شی او بیا په مونږ حمله کولے شی، او دوی ته دا احساس هم اُوشو چه ترا وسه پورے خو یو څو اصحابو کرامؓ هجرت کړے دے مدینې ته رسیدلی دی او س دا هم قوی امکان دے چه محمّد (صلے الله علیه وسلم) هم هلته لاړ شی . په دے وجه دَ مکے سردارانو دَ مشورے دَ پاره په دارالندوه کښې یو خاص مجلس طلب کړو . دارالندوه دَ مسجد حرام سره متصل دَ قصی بن کلاب مکان وُه کوم لره چه دے خلقو په قومی مسئلو کښې دَ مشورے او مجلس کولو دَ پاره مخصوص کړے وه، او دغه ئے او س دَ اسلام په زمانه کښې په مسجد حرام کښې داخل کړے دے . وئیلے شی چه موجوده باب الزیادات دغه ځائے وه کوم ته چه به ئے دارالندوه وئیلو .

دَ عادت مطابق دَ دے اهم مشورے دَ پاره دَ قریشو سرداران په دار الندوه کښې جمع شو چه په دوی کښې ابوجهل، نضر بن حارث، عتبه، شیبه اُمیه بن خلف، ابوسفیان وغیره دَ قریشو ټول نومَوری سری شامل شو، او دَ نبی کریم صلے الله علیه وسلم او اسلام دَ زیا تید ونکی قوّت دَ مقابلے دَ پاره تدبیرونه زیر غور راغلل .

اوس دَ مشورے مجلس شروع کید وچه ابلیس لعین دَ یو بوډا عربی شیخ په صورت کښې دَ دارالندوے دروازے لره راغلو او دریدو خلقو ترې تپوس اوکړو چه ته څوک ئے وَلے راغلے ئے؟ دهٔ اووے چه زهٔ دَ نجد اوسید ونکے یم ماته معلومه شوه چه تاسو خلق یو اهم مشوره کوئے نو دَ قومی همدردئ په بنا ځهٔ هم حاضر شوم، چه ممکنه ده څهٔ فائده منده مشوره زهٔ هم درکړم .

چه دائے واورید نو دے ئے دننه راوغوښتلو او مشوره شروع شوه نو دَ سهیلی دَ روایت مطابق ابوالبختری ابن هشام دا مشوره پیش کړه چه دے یعنی نبی کریم صلے الله علیه وسلم دِ دَ اُو سپنے په زنځیرونو

کښې قید کړے شی او د مکان دروازه دور پسے بند کړے شی او دے پکښې پاتے کړے شی تر دے پورے چه معاذ الله د دے پڅپله ځپل مرګ مړ شی شیخ نجدی ابلیس لعین چه دا واؤریدل نو اوئے وئیل چه دا رائے صحیح نه ده ځکه چه که تاسو دا سے اوکړه نو معامله به پټه پاتے نه شی بلکه د دے خبر به لرے لرے ته اورسی او دده د اصحابو او ملګرو به دوی د ځان قربانو لو کارنامے خوستا سو د وړاندے دی چیره ممکنه ده چه دغه خلق جمع شی په تاسو حمله اوکړی او خپل قیدی ستاسو نه آزاد کړی تو لو اووے چه د شیخ نجدی خبره صحیح ده۔ د دینه پس ابو الاسود دا رائے پیش کړه چه دے د دمکے نه او و یستلے شی بهر دے لاړ شی چه څهٔ غواړی هغه دِ کوی زمونږ ښار به د دوی د فساد نه په امن شی او مونږ به د جنګ جګړو نه په آمان شو۔

شیخ نجدی چه دا واؤریدل نو اوئے وئیل چه دا رائے هم صحیح نه ده۔ آیا تاسو ته معلومه نه ده چه دے څومره خوږ ژبانه دے خلق چه د دهٔ خبرے آوری نو عاشقان کیږی پر۔ که دے د غسے آزاد پریږدو دے شو نو ډیر زر به خپل یو طاقتور جماعت جوړ کړی او په تاسو به حمله اوکړی شکست به درکړی اوس ابوجهل اووے چه کوم د کولو کار دے هغهٔ به تاسو کښے د چا په خیال کښے رانغے ځما په خیال کښے یوه خبره راغلے ده هغه دا چه مونږ د عربو د ټولو قبیلو نه د هرے یوے قبیلے یو یو سړے را واخلو او هر یو لره یوه تېره کارکوؤنکے توره ورکړو او دا ټول خلق په یو وار په دهٔ حمله اوکړی او قتل ئے کړی، مونږ به په دے طریقه سره د دهٔ د فساد نه خلاص شو۔ اوس پاتے شوه د دهٔ د قبیلے بنو عبد مناف مطالبه چه د دهٔ د قتل په سبب به په مونږ نه کوی۔ پس په داسے صورت کښے چه قتل یو سړی نه وی کړے بلکه د هرے قبیلے یو یو سړی کړے وی نو د قصاص یعنی د نفس په بدله د نفس مطالبه خو باقی نه پاتے کیږی صرف د خون بنها یا دیت د مال مطالبه به پاتے شی هغه به مونږ ټولے قبیلے جمع کړو او دوی لره به ئے ورکړو او د دهٔ نه به بے فکره شو۔

شیخ نجدی ابلیس لعین چه دا واؤریده نو اوئے وئیل چه بس رائے هم دا ده

اوکړے نه سوایل خیز کا کونیشته، ټول مجلس دارائے قبوله کړه او په دے نن شپه ئے دخپل دے ناپاکه ارادے پوره کولو تیارے اوکړو۔

مګر د پیغمبرانو غیبی طاقت دے جاهلانو ته څهٔ معلوم وه، بل طرف ته جبرئیل امین د دے مشورے د ټول حال نه نبی کریم صلے الله علیه وسلم خبر کړو او دا تدبیر ئے ورته اوخودو چه نن به ته پخپله بستره آرام نه فرمائے او اوس الله تعالیٰ تا ته د مکے نه د هجرت کولو اجازت فرمائیلے دے۔

اخوا د مشورے مطابق سره د مابنامه د قریشو ځوانانو د نبی کریم صلے الله علیه وسلم د مکان نه ګیره واچوله، نبی کریم صلے الله علیه وسلم چه دا اُولیدل نو حضرت علی مرتضیٰ رض ته ئے حکم اوکړو چه نن شپه د نبی کریم صلے الله علیه و سلم په بستره آرام اوفرمائی، او دا خوشخبری ئے ورلره ورکړه چه په دے کښے اګر چه ستا د نفس خطره ده مګر دشمن ستا هیڅ نه شی کولے۔

حضرت علی رض د دے کار د پاره خپل ځان پیش کړو او د دوی په بستره باندے څملا ستو، مګر اوس مشکل دا وه چه نبی کریم صلے الله علیه وسلم د دے ګیرے نه څنګه اوځی - دے مشکل لره الله تعالیٰ د یو معجزے په ذریعه حل کړو هغه دا سے چه نبی کریم صلے الله علیه وسلم د الله تعالیٰ په حکم په یو موټی کښے خاورے راواغستے باهر ئے تشریف راوړو او ګیره اچونکو چه د دوی په باره کښے څهٔ خبرے کولے د هغے جواب ئے ورکړو مګر الله تعالیٰ د دوی نظرونه او فکرونه د دوی د طرف نه واړول چه هیچا هم دوی اونه لیدل او حال دا وه چه دوی د هر یو په سر خاورے اچولے او ټلو د دوی د تشریف وړلو نه پس یو د لارے تلونکی د دے خلقو نه تپوس اوکړو چه دلته څهٔ ته ولاړیئ نو دوی اُووے چه د محمد (صلے الله علیه وسلم) په انتظار کښے، هغهٔ ورته اووے چه دا تاسو په څهٔ خیال کښے یئ هغه خو د دے ځائے نه وتلے او تلے دے او ستاسو د هر یو په سر ئے خاورے اچولے دی، د دے خلقو چه په خپلو خپلو سرونو لاسونه کیخودل نو معلومه شوه ورته چه د هر یو په سر خاورے پرتے دی۔

حضرت علی کرم الله وجهه د دوی په بستره پروت وه خو دے خلقو او پیژندو

چه دا محمد (صلی الله علیه وسلم) نه دے، په دے وجه ئې دے ده د قتل اراده اُونه کړه۔ د سحر پورے د کېرے اچو لو نه پس دا خلق ناکامه او نامراده واپس شو۔ دا شپه او په دے کښې د نبی کریم صلی الله علیه وسلم د پاره خپل ځان په خطره کښې اچول د حضرت علی مرتضیٰ رض د خاصو فضیلتونو څخه دی۔

د قریشو سردارانو چه کومے درے رائے د نبی کریم صلی الله علیه وسلم متعلق پیش کړے وے دے درے واړه ولوه قرآن کریم په دے آیت کښې ذکر کړی دی

: وَاِذْ يَمْكُرُ بِكَ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا لِيُثْبِتُوْكَ اَوْ يَقْتُلُوْكَ اَوْ يُخْرِجُوْكَ : یعنی هغه وخت د یاد ولو قابل دے کله چه کافرانو ستا خلاف تدبیر ونه کول چه قید کړی تا لره یا قتل کړی تا لره یا د وطن نه اُویاسی۔

مگر الله تعالیٰ د دوی ټول تدبیرونه خاورے کړل په دے وجه د آیت په آخر کښې فرمائی : وَاللّٰهُ خَيْرُ الْمَاكِرِيْنَ : یعنی الله تعالیٰ غوره تدبیر کُونکے دے کوم چه په ټولو تدبیرونو غالب راځی، لکه چه په دے واقعه کښې اولیدے شو۔

د لفظ د : مکر: معنیٰ د عربی لغت په اعتبار سره دا ده چه په حیله او تدبیر سره خپل مقابل دشمن د هغهٔ د اراده نه منع کړی، بیا که دا کار په څهٔ نیک مقصد سره اُوشی نو دا مکر محمود او ښهٔ دے او که په څه بد مقصد سره اوشی نو مذموم او ناکاره دے۔ په دے وجه دا لفظ د انسان د پاره هم وئیلے شی او د الله تعالیٰ د پاره هم۔ مگر د الله تعالیٰ د پاره صرف په داسے ماحول کښې دے استعمالیږی کوم ځائې چه په کلام کښې د وړاندې او روستو بیان په ذریعه د مذموم مکر شبهٔ نه وی (مظهری) (لکه دلته چه دے)۔

دلته دا خبره د نظر کولو قابل ده چه د آیت په آخر کښې کوم الفاظ ارشاد شوی دی هغه په صیغه د مضارع دی کوم چه په حال موجوده او راتلونکے دواړو زمانو دلالت کوی، ارشاد فرمائی . وَيَمْكُرُوْنَ وَيَمْكُرُ اللّٰهُ : یعنی دغه خلق د ایماندارو د ضرر رسولو تدبیرونه کوی او الله تعالیٰ د دوی د ناکامه کولو تدبیرونه کوی۔ په دے کښې اشاره ده چه دا کار د کفارو د همیشه په مخه د کولو شے دے چه مسلمانانو ته به ضررونه رسوی۔ دغه شان دالله

تعالیٰ نصرت او امداد هم هیشه د رشتو نو مسلمانانو نه د دوی تدبیر و نه دفع کوی۔

په یو دیرشم او دوه دیرشم ایا تو نو کښې د دغه دارالندوې د یو شریک نضر بن حارث

دغه عجیبه خبرې او په درې دیرشم ایت کښې ئے جواب ذکر دے۔ نضر بن حارث تجارت

پیشه سړے وه په مختلفو ملکو نو په سفرونو کښې ئے د یهودو او نصاراؤ کتابونه

او د دوی عبادتونه بار بار لیدلی وو په دے وجه هرکله چه دهٔ په قرآن مجید

کښې د تیرو امتونو حالات واؤ ریدل نو او ئے وئیل: قَدْ سَمِعْنَا لَوْ نَشَآءُ لَقُلْنَا

مِثْلَ هٰذَآ اِنْ هٰذَآ اِلَّآ اَسَاطِيْرُ الْاَوَّلِيْنَ: یعنی دا خبرے خو موږ آؤریدلے دی که موږ

او غواړو نو هم داسے وئیلے شو دا خو د وړاندې خلقو قصے دی۔ او کله چه بعضو

اصحابو ؓ دے لاجوابه کړو چه که تهٔ داسے کلام وئیلے شے نو بیا وائے وَلے نه؟ او هرکله

چه قرآن د حق او باطل فیصله په دے مقرر کړے ده او ټولے دنیا ته ئے چیلنج

کړے دے چه که خلاف کوُنکی رشتونی وی نو د قرآن کریم د یوَ وړ کو ټي

شان سورت مثال دِ پیش کړی او په خلاف کښې د ځان او مال او اولاد

قربانی کوُنکو ټولو په جمع هم د یو وړکو ټي شان سورت مقابله او نه کړے شوه

نو اوس دا وئینا چه که موږ او غواړو نو هم داسے کلام وئیلے شو یوه داسے

خبره ده چه خوک غیرتمند سړے ئے نه شی کولے۔ بیا کله چه نضر بن حارث ته

اصحابو کرامو ؓ د قرآن حق والے بیان کړو۔ نو ټیپل من هب بانیِ د پوخ والی خودلو

د پاره ئے او وے: اَللّٰهُمَّ اِنْ كَانَ هٰذَا هُوَ الْحَقَّ مِنْ عِنْدِكَ فَاَمْطِرْ عَلَيْنَا حِجَارَةً

مِّنَ السَّمَآءِ اَوِ ائْتِنَا بِعَذَابٍ اَلِيْمٍ: یعنی اے الله که دا قرآن ستا د طرف نه

حق وی نو په موږ کانړی را اُوَوَروه یا بل سخت عذاب نازل کړه۔

قرآن کریم ټیپله د دے جواب ورکړو۔ اوّل ئے ارشاد او فرمایه: وَمَا كَانَ اللّٰهُ

لِيُعَذِّبَهُمْ وَاَنْتَ فِيْهِمْ: یعنی الله تعالیٰ داسے نه کوی چه تهٔ په مکه کښې

ئے او په دوی عذاب نازل کړی۔ ځکه چه اوّل خو د ټولو انبیاؤ علیهم السلام

سره د الله تعالیٰ دستور دا دے چه په کوم کلی کښې دوی موجود وی په دوی

تر هغه وخته پورے عذاب نه نازلوی ترڅو چه خپلو پیغمبرانو لره د هغه ځائے

نه اُونه باسی۔ لکه د حضرت هود علیه السلام صالح علیه السلام او لوط علیه

السلام په واقعاتو کښې چه او لیدے شو۔ چه ترڅو پورے دغه حضرات په

کلی کښې وُو عذاب نه راتلو کله چه دوی د هغه ځائے نه او وېستلے شو نو عذاب راغے ـ خصوصاً سید الانبیاء لره ئے د رحمة للعلمین لقب ورکړے دے او را لیږلے ئے دے نو د دوی په یو کلی کښې موجود کیدل او عذاب په هغوی راتلل د دوی د شان نه خلاف وَه ـ

د جواب خلاصه دا شو چه تاسو خو د قرآن او اسلام د مخالفت په وجه د دے مستحق یئ چه په تاسو کښې اُو وَرَوَلے شی مګر د نبی کریم صلے الله علیه وسلم په مکه کښې موجود والے د دے نه مانع دے ـ

امام ابن جریرؒ فرمائی چه د آیت دا حصه هغه وخت نازل شوه کله چه دوی په مکه مکرمه کښې موجود وُو ـ بیا د مدینے منورے د هجرت نه پس د ائیت دویمه حصه دا نازل شوه: وَمَا كَانَ اللّٰهُ مُعَذِّبَهُمْ وَهُمْ يَسْتَغْفِرُوْنَ ؞ یعنی الله تعالیٰ په دوی عذاب نه نازلوی ترڅو چه دوی استغفار کوی مراد د د ینه دا دے چه ستا مدینے منورے ته د تلو نه پس اګر چه د عام عذاب دا مانع لرے شو چه ستا هلته موجود والے وه مګر دا وخت هم یو مانع د عذاب موجود دے چه څه یر کمزوری مسلمانان کوم چه هجرت ئے نه شو کولے په مکه کښې پاتے شوی وُو او هغوی د الله تعالیٰ استغفار غوښتلو د دوی په خاطر په مکے والو عذاب نازل نه کړے شو ـ

بیا چه کله دوی تهولو حضراتو هجرت او کړو او مدینے منورے ته اُو رسیدل نو د روستو ائیت دا جمله نازل شوه: وَمَا لَهُمْ اَلَّا يُعَذِّبَهُمُ اللّٰهُ وَهُمْ يَصُدُّوْنَ عَنِ الْمَسْجِدِ الْحَرَامِ ؞ یعنی دا څنګه کیدے شی چه الله تعالیٰ دوی لره عذاب ورنه کړی حال دا دے چه دوی خلقو لره په مسجد حرام کښې د عبادت نه منع کوی ـ؟

مطلب دا دے چه اوس دواړه مانع ختم شو نه خو نبی کریم صلے الله علیه وسلم په مکه کښې شته او نه استغفار کوونکی مسلمانان په مکه کښې باقی دی نو اوس د عذاب راتلو څه بندیز باقی پاتے نه شو ـ خاص کر د دوی د عذاب په مستحق کیدو کښې پخپله د اسلام د مخالفت نه علاوه د دے جرم هم اضافه او شوه چه دوی پخپله خو د عبادت قابل نه وُو او کوم

مسلمانان چه د عبادت عمرے او طواف د پاره مسجد حرام ته تلل غواړی هغوی
لره منع کوی، نو اوس د دوی مستحق کیدل د عذاب بالکل مکمّل شو چنانچه
د فتح مکے په ذریعه په دوی عذاب نازل کړے شو۔

مسجد حرام ته د داخلیدو نه د منع کولو واقعه په غزا د حدیبیۂ کښے مخته
راغلے وه۔ کله چه نبی کریم صلے الله علیه وسلم د اصحابو سره د عمرے اراده کړے
وه تشریف ئے یوړو او د مکے مشرکانو دوی مکے ته د داخلیدو نه منع
کړل، او دوی لره او ټولو صحابه کرامو لره ئے په احرام پرانستلو او واپس
کیدلو باندِ مجبوره کړل، دا واقعه د سنه ۶ هجری ده د دے نه پس په
سنه ۸ هجری کښے دوه کاله پس مکه مکرمه فتح شوه۔ دغه شان په دوی
د مسلمانانو د لاسه د الله تعالیٰ عذاب نازل شو۔

د ابن جریر د دے تفسیر مدار په دے        دے چه مانع د عذاب ستا
په مکه کښے پاتے کیدل مقرر شی۔ او بعضے حضرات فرمائی چه د نبی کریم صلے
الله علیه وسلم په دُنیا کښے موجود کیدل د عذاب نه مانع دی تر څو
چه تاسو په دنیا کښے تشریف فرمایئ ستا په قوم عذاب نه شی راتلے
او وجه د دے ظاهره ده چه ستا حال د نورو پیغمبرانو پشان نهٔ دے
چه هغوی خاص خاص مقامونو یا قبیلو ته را لیګلی شوی وو کله چه
به د هغهٔ ځائے نه او وتل چه ته بل مقام ته به لاړل نو په دغے قوم
به عذاب راتلو په خلاف د سردار د انبیاؤ صلے الله علیه وسلم چه د
دوی نبوّت او رسالت د ټول عالم د پاره او تر قیامته پورے عام
او شامل دے. ټوله دنیا د دوی مقام د را لیګلو او دائره د رسالت ده
تر څو پورے چه ته د دنیا په کومه حصه کښے موجود یئ ستا په قوم
عذاب نه شی راتلے۔

د دے تفسیر به مطلب دا شی چه د مکے والو د کارونو تقاضا خو دا وه
چه په دوی کانړی اووریدلے شی مګر دوه څیزونه د دے عذاب نه
مانع شو یو د نبی کریم صلے الله علیه وسلم په دنیا کښے تشریف فرما کیدل
دویم د مکے والو استغفار کول ځکه چه دے خلقو به د شرک او کفر باوجود

پخپل طواف وغیره کښې: غُفْرَانَكَ غُفْرَانَكَ؛ وئیلو او د الله تعالیٰ نه به ئے مغفرت طلب کولو - د دوی دا استغفار د کفر او شرک سره اګرچه په اخرت کښې نفع نه ورکوی مګر په دُنیا کښې د دے دا نفع دوی ته ملاؤ شوه چه په دُنیا کښې د عذاب نه بچ شو - الله تعالیٰ د چا عمل ضائع کوی نه - کفارا و مشرکان که څهٔ نیک عمل کوی نو بدله د دوی ته په دنیا کښې ورکولے شی -

د دے نه پس چه کوم دا ارشاد فرمائی چه دا څنګه کیدے شی چه الله تعالیٰ دوی له عذاب ورنه کړی حال دا دے چه دا خلق مسلمانانو له د مسجد حرام نه منع کوی (د عبادت نه) د دے مطلب په دے صورت کښې به دا شی چه په دنیا کښې په نهٔ عذابیدو دا خلق نه مغروره کیږی او نه دے مطمئن کیږی چه کوم نور مونږ مجرمان نه یُو یا په مونږ به عذاب نه وی، که په د عذاب نه په دنیا کښې بچ شی نو د اخرت د عذاب نه خو په هیڅ شان نه شی بچ کیدے - په دے تفسیر به مَا لَهُمْ اَلَّا یُعَذِّبَهُمْ کښې د عذاب نه د اخرت عذاب مراد وی -

د ذکر شوی ایت نه څو فائدے حاصلے شوے اوّل دا چه په کوم کلی کښې خلق استغفار کوی د الله تعالیٰ دستور دا دے چه په هغو عذاب نه نازلوی

دویم دا چه د نبی کریم صلی الله علیه په موجودګئ کښې د دوی په اُمت که مسلمان وی او که کافر عذاب نه راځی او مراد د دے نه عام عذاب دے چه ټول قوم پرے تباه کیږی، دا سے عذاب به نهٔ راځی لکه په قوم د نوح، قوم د لوط، قوم د شعیب وغیره چه راغلے وه چه د دوی نوم نشان پرے ورک شو په لږ و ډیرو افرادو عذاب راتلل د دے نه منافی نه دی لکه چه پخپله نبی کریم صلی الله علیه وسلم ارشاد فرمائیلے دے چه زما په اُمت کښې به خسف او مسخ عذاب راشی، د خسف معنیٰ ده په زمکه کښې ننوتل. او د مسخ معنیٰ ده صورت بدلیدل شادو یا خنزیر وغیره جوړیدل، د دے نه مراد دا دے چه په بعضو بعضو افرادو د اُمت به داسے عذاب هم راځی -

د نبی کریم صلی الله علیه وسلم په دنیا کښې موجودګیدل تر قیامته پورے باقی دی ځکه چه د دوی رسالت تر قیامته پورے دے دویم نبی کریم صلی الله علیه وسلّم دا وخت هم ژوندے دے، اګرچه د دغے ژوندانه صورت

د دې ښې ژوند نه مختلف دے۔ او دا بحث لغو او فضول دے چه په دے دواړو ژوندونو کښې فرق څهٔ دے ځکه چه نهٔ په دے باندې د اُمت څهٔ دینی یا دنیوی کار موقوف دے۔ او نهٔ پخپله نبی کریم صلے الله علیه وسلم او اصحابو دا سے فضول او بے ضرورته بحثونو له غوږه کړی دی، بلکه منع ئے ترې فرمائیلے ده،

لنډه دا چه د نبی کریم صلے الله علیه وسلم پخپله روضه کښې ژوند او د دوی د رسالت تر قیامته پورے قائم پاتے کیدل د دې د لیل دے چه دوی تر قیامته پورے په دنیا کښے موجود دی، په دے وجه دا اُمت به تر قیامته پورے د عام عذاب نه په امن وی۔

وَمَا لَهُمْ اَلَّا يُعَذِّبَهُمُ اللّٰهُ وَهُمْ يَصُدُّوْنَ

او په دوی کښے څهٔ خبره ده چه الله به پرعذاب رانهٔ ولی او دوی خو منع کوی

عَنِ الْمَسْجِدِ الْحَرَامِ وَمَا كَانُوْٓا اَوْلِيَآءَهٗ ؕ اِنْ

د مسجد حرام نه او دوی د دهٔ اختیارمند نهٔ دی۔ د دهٔ

اَوْلِيَآؤُهٗٓ اِلَّا الْمُتَّقُوْنَ وَلٰكِنَّ اَكْثَرَهُمْ لَا

اختیارمند خو څوک دی کوم چه پرهیزګار دی۔ لیکن په دوی کښے اکثرو ته د دے

يَعْلَمُوْنَ ﴿۳۴﴾ وَمَا كَانَ صَلَاتُهُمْ عِنْدَ الْبَيْتِ

خبر نیشتے۔ او د دوی مونځ نهٔ وهٔ د کعبے سره مګر

اِلَّا مُكَآءً وَّتَصْدِيَةً ؕ فَذُوْقُوا الْعَذَابَ بِمَا

شپیلی وهل او لاسونه پړقول۔ پس او څکئ عذاب په

كُنْتُمْ تَكْفُرُوْنَ ﴿۳۵﴾ اِنَّ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا يُنْفِقُوْنَ

بدله د خپل کفر کښے۔ بے شکه کوم خلق چه کافران دی دوی خرچ کوی

أَمْوَالَهُمْ لِيَصُدُّوا عَنْ سَبِيلِ اللَّهِ ۚ فَسَيُنْفِقُونَهَا

خپل مالونه چه بند کړی د الله د لار ے نه - پس اوس به نور خرچ کوی

ثُمَّ تَكُونُ عَلَيْهِمْ حَسْرَةً ثُمَّ يُغْلَبُونَ ۗ وَالَّذِينَ

بیا به آخر وی دغه په دوی باندې افسوس او آخر به مغلوب شی - او کوم چه

كَفَرُوا إِلَىٰ جَهَنَّمَ يُحْشَرُونَ ﴿٣٦﴾ لِيَمِيزَ اللَّهُ الْخَبِيثَ

کافران دی دوی به دوزخ طرف ته راوشړلے شی - چه جدا کړی الله نا پاکو لره

مِنَ الطَّيِّبِ وَيَجْعَلَ الْخَبِيثَ بَعْضَهُ عَلَىٰ بَعْضٍ

د پاکو نه او کړی نا پاکو لره په یو بل د پاسه

فَيَرْكُمَهُ جَمِيعًا فَيَجْعَلَهُ فِي جَهَنَّمَ ۚ أُولَٰئِكَ

پس ډیرے به کړی یو ځائے بیا به او غورزوی دوی په دوزخ کښے - دغه خلق دی

هُمُ الْخَاسِرُونَ ﴿٣٧﴾ قُلْ لِلَّذِينَ كَفَرُوا إِنْ يَنْتَهُوا

په نقصان کښے ته او وایه کافرانو ته چه که دوی منع شو

يُغْفَرْ لَهُمْ مَا قَدْ سَلَفَ وَإِنْ يَعُودُوا فَقَدْ مَضَتْ

نو معاف به شی دوی ته څهٔ چه شوی دی - او که بیا دغه کار او کړی نو جوړ شوے

سُنَّتُ الْأَوَّلِينَ ﴿٣٨﴾

ده لار د تیرو خلقو - -

## لنډ تفسیر

او ژړ د دے موانعو په سبب بالکل د عذاب نازلیدو نه مطمئن کیږی

ځکه لکه څنګه چه په ذکر شوو کارونو کښې عذاب مانع دے دغه شان د دوی
کارونه هم مقتضی د عذاب دی پس د مانع اثر دا دے چه عذاب خارق به نه راځي
البته نفس عذاب به د مقتضی په وجه ظاهرېږي چه د غیر خارق په شکل کښې به
وی پس د مقتضی بیان فرمائی چه) د دوی څه حق دے چه دوی لره به الله تعالیٰ
(بالکل معمولی) سزا (هم) نه ورکوی حال دا دے چه (د دوی دغه حرکتونه مقتضی
د سزا دی مثلاً) دوی خلق (نبی کریم صلی الله علیه وسلم او مسلمانان) مسجد حرام
ته د تللو نه او په دے کښې د مونځ کولو او طواف کولو) نه منع کوی (لکه په
حدیبیه کښې چه ئے حقیقةً منع کړل او د مکے د قیام په زمانه کښې حکماً چه دومره
ئے تنګ کړل چه هجرت ته جوړ شو) حال دا دے چه دغه خلق د دے جمات متولی
(جوړیدو هم لائق) نه دی (او د عبادت کوونکو بندول خو لا پرېږده چه
د دوی د بندولو حق خو متولی ته هم نیشتے) د دے متولیان (جوړیدل)
خو سوا د متقیانو نه (چه هغوی مؤمنان دی) بل هیڅوک هم نیشتے لیکن
په دوی کښې اکثر خلق (د خپلے نالایقۍ) علم نه لری (خواه د سره ئے علم
نه وی یا وی خو عمل پرے او نه کړی نو دغه علم پشان د نه علم شو غرض
کوم چه رشتونی مونځ کوونکی وو هغوی لره خو ئے دغه شان منع کړل) او
(بچیلے ئے د جمات څنګه حق ادا کړو او په دے کښې ئے څنګه مونځونه او کړل
چه بیان ئے دا دے چه) د دوی مونځ په خانه کعبه (مسجد حرام) کښې صرف
دا وو شپیلی وهل او لاسونه پړقول (یعنې پړکائے د مانځه د دوی دا
نامعقول حرکتونه وو) پس (د دے حرکتونو په وجه به په دوی څه نه
څه عذاب اګرچه معمولی او عادی وی نازل شی دوی ته به او وئیلے شی چه)
اوس د دے عذاب مزه او څکئ د خپل کفر په سبب (د کوم چه یو اثر هغه
قول دے: لَوْ نَشَآءُ الخ: او یو اثر ئے هغه قول دے: اِنْ کَانَ هٰذَا الخ: او
یو اثر ئے هغه فعل دے: یَصُدُّوْنَ الخ: او یو اثر ئے هغه فعل دے: مُکَآءً
وَّتَصْدِیَةً الخ: چنانچه په ډیرو غزاګانو کښې په دوی دا سزا واقع شوه
بلکه چه د دے سورة په دویمه رکوع کښې هم دی: ذٰلِکُمْ فَذُوْقُوْهُ الخ:
یعنی ذٰلِکَ بِاَنَّهُمْ شَآقُّوا الخ: تر دے ځائے پورے خو د دے خلقو د خبرو

او د بد نی عملونو ذکر وه وړاندی د دوی د مالی عملونو بیان دے چه) بے شکه دا کافران خلق خپلو مالونو لره د دے د پاره خرچ کوی چه د الله تعالیٰ د لارے نه (یعنی د دین نه خلقو لره) منع کړی (چنانچه د نبی کریم صلے الله علیه وسلم د مقابلے او مخالفت د پاره سامان جمع کولو کښے بنکاره خبره ده چه کوم خرچ کید و په دغے کښے هم دا غرض وه) پس دا خلق خو خپلو مالونو لره (د دے غرض د پاره) خرچ کوی (مګر) بیا (چه په آخر کښے د ناکامی نتیجه اووینی) دغه مال به د دوی په حق کښے د افسوس باعث شی (چه هسے مال خرچ شو او) بیا (آخر) به مغلوب کړے شی (چه د مال ضائع کولو د افسوس سره به ئے دا بل افسوس د مغلوب کیدو جمع شی) او (دا سزا او افسوس او مغلوب کیدل خو د دوی په دنیا کښے دی باقی د آخرت سزا جُدا ده د هغے بیان دا دے چه) کافرانو خلقو لره به دوزخ طرف ته (د بوتلو د پاره په قیامت کښے) جمع کړے شی چه الله تعالیٰ ناپاکو (خلقو) لره د پاکو (خلقو) نه جدا کړی (ځکه چه دوزخیان به دوزخ طرف ته بوتلے شی نو جنتیان د دوی نه جُدا کړے شی) او (د دوی نه به ئے جدا کړی) ناپاکو لره به د یو بل سره یو ځائے کړی یعنی ټول به پیوست کړی بیا به ئے یو ځائے) دوی ټولو لره جهنم ته واچوی خاص دا سے خلق په پوره تاوان کښے دی (چه د دے ځه انتها نیشتے، اے محمد صلے الله علیه وسلم) ته دے کافرانو ته او وایه چه که دا خلق (د خپل کفر نه) واپس شی (او اسلام قبول کړی) نو د دوی ټول گناهونه کوم چه (د اسلام نه) وړاندے شوی دی ټول معاف کړے شی (دا حکم خو د حالت د اسلام شو) او که بیا خپل دغه (د کفر) په عادت باتے شو نو (دوی ته واوره وه چه) د تیرو کافرانو په حق کښے (زمونږ) قانون نافذ شوے دے (چه په دنیا کښے هلاکت او په آخر ت کښے عذاب دے دغه به ستاسو د پاره وی، چنانچه په قتل سره هلاک هم شو او د غیره کفارو د عرب هلاک ذمی کیدل هم دی تاسو پوهه شئ) ۔

---

# معلومات او مسائل

په تیر والیا تو نو کښې داخو ذکر شوے وه چه د مکے مشرکان د خپل کفر او انکار په وجه اګرچه د دے مستحق دی چه په دوی اسمانی عذاب راشی لیکن د نبی کریم صلی الله علیه وسلم په مکه کښې موجودوالے د عام عذاب راتلو نه مانع دے، او د هجرت نه پس د هغو ضعیفانو مسلمانانو په وجه سره دا سے عذاب نه شی راتلے کوم چه په مکه کښې اوسی استغفار کوی۔

په ذکر شوو والیاتو نو کښې دا بیان دے چه د نبی کریم صلی الله علیه وسلم یا کمزورو مسلمانانو په رعایت سره که په دُنیا کښې د دوی نه عذاب منع شو نو دا خلق د دا سے نه ګنړی چه دوی د عذاب مستحق نه دی بلکه د دوی د عذاب مستحق والے خو بنکاره دے۔ او علاوه د کفر او انکار نه خو نور هم د دوی دا سے جهونه دی د کوموپه وجه چه په دوی عذاب راتلل پکار دی۔ په دے دواړو والیاتو نو کښې د دوی در سے جرمونه شمار شوی دی۔

اوّل دا چه دا خلق خو پخپله په مسجد حرام کښې د عبادت کولو قابل نه دی او کوم مسلمانان چه هلته د عبادت موغ طواف وغیره د پاره ځی دوی لره منع کوی، په دے کښې د حدیبیځ واقعے ته اشاره ده کومه چه په سنه ۶ کښې نبی کریم صلی الله علیه وسلم د اصحابو کرامو سره د عمرے ادا کولو د پاره مکے مکرمے ته رسیدلی وو او د مکے مشرکانو دوی منع کړل په واپس کیدو ئے مجبوره کړل۔

دویم جرم دا فرمائی چه دا بے وقوفه دا سے ګنړی او وائی چه مونږ د مسجد حرام مُتَوَلِّیان یو چالره چه غواړو د راتلو اجازت به ورکوو او چالره چه غواړو نه به ورکوو۔

د دوی دا خیال د دوو غلط فهمو نتیجه وه، اوّل دا چه خپل ځانونه ئے د مسجد حرام متولیان ګنړل حال دا دے چه یو کافر هم د جمات متولی نه شی کیدے۔ دویم دا چه متولّی ته دا حق دے چه چا لره غواړی

جمات ته د داتلو نه منع کړي حال دا دے چه جمات د خدائے کور دے دۀ ته د داتلو نه د منع کولو د هيچا حق نيشته، بغير د دا سے خاصو صورتونو نه پکو موکيږي چه د جمات بے حرمتي يا نور و موذئ کونکو ته د تکليف يره وی. لکه نبي کريم صلے الله عليه وسلم فرمائي چه جماتو نه او ساتئ د ورهو بچو نه د کومو نه چه د پليتئ وېره وی. او د پاګلانو نه او د يو بل سره د جګړو نه - د وړه وبچو نه هغه بچي مراد دي چه د کومو نه د پليتئ يره وی- او د پاګلانو نه د پليتئ هم ويره ده او موذئ کونکو ته د آزار د سولو هم، او په جنګ جګړو کښے د جمات بے حرمتي هم ده او موذئ کونکو ته د آزار د رسيد ويره هم -

د دے حديث په روسره متولي د جمات ته خودا حق شته چه دا سے وارۀ بچي او پاګلان جمات ته نۀ پريږدي او جنګ جګړے هم په جمات کښے نه پريږدي، ليکن بغير د دا سے صورتونو نه يو مسلمان لره د جمات نه د منع کولو حق د هيچا نيشته نه متولي د جمات ته نه بل ته -

د قرآن کريم په ذکر شوی ايت کښے ئے صرف د اول خبرے په بيانولو اکتفا اوکړه چه دا خلق به د جمات متوليان څنګه اومنلے شي- هرکله چه اصول دا دی چه د جمات متولي صرف متقي مسلمان کيدے شي- د دے نه معلومه شوه چه د جمات متولي مسلمان ديندار پرهيزګار پکار دے او بعضے تفسير ليکونکي حضرات د: إِنْ أَوْلِيَآءُهُ: ضمير الله تعالی طرف ته راجع کوی دا معنی ليکي چه د الله ولي صرف متقيان پرهيزګاران خلق کيدے شي -

د دے تفسير مطابق د ايت نه دا نتيجه اووتله چه کوم خلق د شريعت او سنت خلاف عمل کولو با وجود د ولي الله کيد و دعوه کوی هغه دروغژن دی، او خوک چه دا سے خلقو لره ولي الله ګڼړي هغوی په دوکه کښے دي -

دريم جرم د دے خلقو ئے دا او خودو چه د کفر او شرک ګندګي خو هسے هم په دوی وه ليکن د دوی عملونه او کارونه خو د عامے انساني سطح نه هم غورزيدلي دي- ځکه چه دا خلق څه کوم کار ته چه موذئ وائي هغه بغير

دَ دے نه نور څه نه دی چه په دے کښے څۀ په خولو شپیلی وهی او څۀ خو لاسونه پړقوی۔ اودا خو ښکاره خبره ده چه په چا کښے لږ شان هم څه عقل او پوهه وی نودا سے کارونو لره عبادت او موځ خو څۀ کوے صحیح انسانی کار هم نه ګڼړی۔ په دے وجه دَ ایت په اخر کښے ارشاد فرمائی: فَذُوقُوا الْعَذَابَ بِمَا كُنتُمْ تَكْفُرُونَ: یعنی ستاسو دَ کفر او جُرمونو انجام دا دے چه اوس دَ الله تعالیٰ عذاب او څکئ۔ دَ عذاب نه دلته دَ اخرت عذاب هم مراد کیدے شی او دَ دُنیا هم، کوم چه په غزا دَ بدر کښے دَ مسلمانانو په لاسونو په دوی نازل شو۔

دَ دے نه پس په شپږ دیرشم ایت کښے دَ مکے دَ کافرانو دَ یو بل واقعه بیان دے پکومه کښے چه دوی دَ اسلام او مسلمانانو خلاف دَ قوّت جمع کو لو دَ پاره عظیم مال جمع کړو او بیائے هغه دَ حق دین او مسلمانانو دَ ورکولو دَ پاره خرچ کړو مګر انجام دا شو چه هغه مال هم دَ لاسه لاړ او دَ مقصد حاصلولو په ځائے بچپله خوار او ذلیل شو۔

واقعه دَ دے په روایت دَ محمد بن اسحاق دَ حضرت عبد الله بن عباس نه دا نقل ده چه دَ بدر په غزا کښے شکست خورده زخم زده پاتے لږ ډیر دَ مکے کافران کله چه هلته واپس مکے ته اورسیدل۔ نو دَ کومو خلقو پلاران ځامن چه په دے جنګ کښے مړه شوی وُو هغوی دَ تجارتی قافلے امیر ابو سفیان ته راغلل او اُوئے وئیل چه تاته معلومه ده چه دا جنګ ستا دَ قافلے دَ حفاظت دَ پاره شوے دے چه په نتیجه کښے ئے دا دومره جانی او مالی نقصانونه اُوشو نو تهٔ اوس دَ دغے تجارتی سامان نه زمونږ مدد او کړه چه مونږ دَ مسلمانانو نه خپل بدل واخلو۔ نو هغو منظوره کړه او ډیر لوئے رقم ئے ترے ورکړو چه دوی دَ بدر دَ بدل اغستو دَ پاره دَ اُحد په غزا کښے خرچ کړو او دَ هغے هم انجام دا شو چه دوی مغلوب شو او دَ شکست خوړلو دَ غم سره ئے دَ مال ضائع کیدو غم نور هم زیات شو۔

قرآن کریم په دے ایت کښے دَ دے واقعے پیخیدو نه اوّل نبی کریم صلی الله

علیه وسلم ته دَ دے دَ انجام خبر ورکړو ارشاد فرمائی" کوم خلق چه کافران دی خپل مالونه دَ دے کار دَ پاره خرچ کول غواړی چه خلقو لره دَ الله تعالیٰ دَ دین نه منع کړی، پس دَ دے انجام به داشی چه دوی به خپل مالونه هم خرچ کړی او بیا به دَ مال په خرچ کولو افسوس کوی او انجام کار به دوی مغلوب شی. چنانچه په غزا دَ اُحد کښے هم دَغسے اوشوه - چه جمع کړے مال ئے هم خرچ کړو او مغلوب هم شو.

او بغوی وغیره بعضو تفسیر لیکو نکو دَ دے ایت مضمون پخپله دَ بدر په غزا بانِ او دَ دے په خرچو نو بانِدِ حمل کړے دے چه په بدر کښے دَ زرو ځوانانو کوم لښکر دَ مسلمانانو مقابلے لره تلے وه دَ دوی دَ خوراک سکاک وغیره ټول اخراجات دَ مکے دولسو سردارانو پخپله ذمه بانِدِ اَغستی وُو - چه په دوی کښے ابوجهل، عتبه، شیبه وغیره شامل وُو. ظاهره ده چه دَ زرو تنو دَ تلو راتلو خوراک سکاک وغیره اخراجا تو بانِدِ ډیرلوئے رقم خرچ کیږی نو دے خلقو ته دَ خپل شکست سره پخپل مال ضائع کید وهم سخت افسوس اوشو (مظهری)

دَ ایت په اخر کښے دَ اٰخرت په اعتبار سره دَ دے خلقو دَ بد انجام بیان دے: وَالَّذِيْنَ كَفَرُوْٓا اِلٰى جَهَنَّمَ يُحْشَرُوْنَ: یعنی کوم خلق چه کافران دی دوی به جهنم ته را ټول کړے شی.

په ذکر شوو ایاتو نو کښے دَ حق دین نه دَ منع کولو دَ پاره دَ مال خرچ کولو چه کوم بد انجام ذکر شوے دے - په دغے کښے دَ نن هغه کفار هم داخل دی کوم چه خلقو لره دَ اسلام نه دَ منع کولو او دَ خپل باطل دین طرف ته په دعوت ورکولو بانِدِ په لکونو روپئ دَ شفاخانو، مدرسو او صدقو خیراتو نو په عنوان سره خرچ کوی - دَ غه شان هغه ګمراه خلق هم په دے کښے داخل دی کوم چه دَ اسلام په مجموعی عقید و کښے شبهے او وهمونه پیدا کوی او دَ دے خلاف خلقو ته دعوت ورکوی او خپل مالونه خرچ کوی، لیکن الله تعالیٰ دَ خپل دین حفاظت کوی او په ډیر وسو قعو کښے دا لیدلے شوے هم ده چه دَ غه خلق سره دَ دے چه

ډیر مالونه خرچ کړی او بیخیله مقصد کښې کامیاب نه شي۔

په اووه دیرشم ایت کښې د ذکر شوو واقعو دغه نتیجو بیان دے چه بیخو ښه ئے دا دے چه کوم خیل مالونه کفارو د اسلام خلاف استعمال کړل او بیا دوی ته افسوس او خیمانی اوشوه د دے فائده دا ده چه:

لِيَمِيزَ اللَّهُ الْخَبِيثَ مِنَ الطَّيِّبِ: یعنی چه الله تعالیٰ پرکنده شي او پاک شي کښې فرق ښکاره کړی۔ لفظ د خبیث او طیّب دوه مقابل لفظونه دی لفظ د خبیث ناپاک گنده او حرام شي ته ویلے شي۔ او طیّب د دے په مقابله کښے پاک صاف او حلال ته ویلے شي۔ دلته د دے دواړو لفظونو نه د کفارو مالونه خبیث او د مسلمانانو مالونه طیبه هم مراد کیدے شي۔ په دے صورت کښې مطلب دا دے چه کفارو کوم عظیم مال خرچ کړو د غه مال خبیث او ناپاک وه د دے به دا نتیجه دا حاصله شوه چه مال هم لاړو او ځانونه ئے هم لاړل۔ د دے په مقابله کښې مسلمانانو ډیر لږ مال خرچ کړو مگر دغه مال پاک او حلال وه د دے خرچ کونکی کامیاب شو او نور مال د غنیمت هم په لاس ورا غلو د دے نه پس ارشاد فرمائی۔

وَيَجْعَلَ الْخَبِيثَ بَعْضَهُ عَلَىٰ بَعْضٍ فَيَرْكُمَهُ جَمِيعًا فَيَجْعَلَهُ فِي جَهَنَّمَ ۚ أُولَٰئِكَ هُمُ الْخَاسِرُونَ: یعنی الله تعالیٰ جمع کوی یو خبیث د بل خبیث سره بیا به دغه ټول جمع کړی په جهنم کښې دا خلق په تاوان کښې پریوتونکی دی۔

مطلب دا دے چه څنگه په دنیا کښې مقناطیس او سپینه راکاږی، کهربا گیاه لوره راکاږی، او د نوی سائنس په تجربو کښې خو د ټولے دنیا نظام د یو بل په کشش باندې قائم دے، دغه شان په عملونو او اخلاقو کښې هم کشش دے یو بد عمل بل بد عمل لوره او ښه عمل بل ښه عمل لوره راکاږی خبیث مال بل خبیث مال لوره راکاږی او بیا دا خبیث مال اثر هم خبیث پیدا کوی۔ د دے نتیجه دا ده چه الله تعالیٰ به په اخرت کښې ټول خبیث مالونه په جهنم کښې جمع کړی۔ او دا مال والا به په خساره کښې پریوځی۔

او ډیرو تفسیر لیکونکو حضراتو دلته د خبیث او طیّب عامه معنیٰ مراد کړے ده یعنی پاک او ناپاک۔ د پاک نه مؤمن او د ناپاک نه کافر مراد دے،

په دے صورت کښے به مطلب داوی چه د ذکرشوو حالاتو په ذریعه الله تعالیٰ داغواړی چه پاک او ناپاک یعنی مؤمن او کافر کښے فرق او کړی او مؤمنان جنت کښے او کافران ټول په دوزخ کښے جمع کړی۔

په آخره دیرشم آیت د کفارو د پاره بیا یو مربیانه خطاب دے په کوم کښے چه ترغیب هم دے او ترهیب هم، ترغیب د دے دے چه که دوی د دغو ټولو بدو کارونو نه اوس هم توبه کړی او ایمان راوړی نو تیر ګناهونه به ئے معاف کړے شی، او ترهیب دا چه که دوی اوس هم واپس نه شی نو پوهه شئ چه د دوی د پاره الله تعالیٰ له خهٔ نوے قانون جوړول نه را پیښیږی د تیرے زمانے د کافرانو د پاره چه کوم قانون جاری شوے دے دغه به په دوی هم جاری وی۔ چه په دنیا کښے هلاک او برباد شی او په آخرت کښے به د عذاب مستحق شی۔

وَقٰتِلُوْهُمْ حَتّٰى لَا تَكُوْنَ فِتْنَةٌ وَّيَكُوْنَ

او جنګ کوئ د دوی سره ترهغے پورے چه پاتے نه شی فساد او شی

الدِّيْنُ كُلُّهٗ لِلّٰهِ فَاِنِ انْتَهَوْا فَاِنَّ اللّٰهَ بِمَا يَعْمَلُوْنَ

حکم ټول د الله۔ بیا که دوی منع شو نو الله د دوی کار

بَصِيْرٌ ﴿۳۹﴾ وَاِنْ تَوَلَّوْا فَاعْلَمُوْٓا اَنَّ اللّٰهَ مَوْلٰىكُمْ ط

وینی۔ او که دوی او نه منل نو پوهه شئ چه الله ستاسو مدد ګار دے

نِعْمَ الْمَوْلٰى وَنِعْمَ النَّصِيْرُ ﴿۴۰﴾

خهٔ ښهٔ حمایت کوونکے دے او خهٔ ښهٔ مددګار دے۔

## لنډ تفسیر

او که بیا د دوی د کافر پاتے کیدو په صورت کښے اے مسلمانانو! تاسو د دوی

(کافرانو د عربو) سره تر هغه وخته پورې جنګ کوئ چه په دوی کښې د عقیدې فساد (یعنی شرک) پاتې نه شي او (د الله) دین (خالص) دالله شي (او د چا د دین خالص د الله د پاره کیدل موقوف دی په قبول د اسلام نو حاصل دا شو چه شرک پاتې کړی اسلام اختیار کړی، لنډه دا چه که اسلام نه راوړی نو د دوی سره جنګ کوئ تر څو چه اسلام رانه وړي ځکه چه د عربو د کافرانو نه جزیه نه شي اخستې) بیا که دوی (د کفر نه) واپس شي نو (د دوی نه ظاهري اسلام قبول کړئ د زړه حال ئې مه لټوئ ځکه چه) که دوی په زړه سره ایمان را نه وړی نو) الله تعالیٰ د دوی عملونو لره بنه (یعنی رهغه په ورسره بخپله پوهه شي ستاسو پرڅه) او که چرې (د اسلام نه) روګردانی اوکړی نو (د الله نوم اخلئ د دوی د مقابلې نه مه وپس کیږئ او) یقین ساتئ چه الله تعالیٰ (د دوی په مقابله کښې ستاسو ملګرې دې هغه ډیر ښه ملګرې دې او ډیر ښه مددګار دې (پس هغه به ستاسو ملګرتیا او مدد اوکړی)۔

# معلومات او مسئلې

دا د سورت انفال یو کم څلویښتم آیت دې په دې کښې دوه لفظونه د غور قابل دی یو لفظ د: فتنې: بل د: دین: دا دوا ړه لفظونه د عربي لغت په اعتبار سره د څو معنو د پاره استعمالیږی۔

د تفسیر د اماما نو اصحابو تا بعینو نه دلته دوه معنې نقل دی یوه دا چه د: فتنې: نه مراد کفر او شرک او د دین نه مراد دین اسلام واخستې شي۔ د حضرت عبد الله بن عباسؓ نه دا تفسیر نقل دې، په دې تفسیر بانډې د آیت معنیٰ به دا شي چه مسلمانانو لره د کفارو سره جنګ تر هغه وخته پورې جاري ساتل پکار دی تر څو چه کفر ختم شي د هغه په ځائې اسلام راشي د اسلام نه سوا بل دین او مذهب پاتې نه شي۔ په دې صورت کښې دا حکم به صرف د اهل مکه او عربو د پاره خاص وی، ځکه چه جزیرة العرب د اسلام د پاره کور دې،

په دے کښې چه د اسلام نه سوا بل دين پاتې شي نو د اسلام د پاره خطره ده، باقي په نوره دنيا کښې نورو دينو نه او مذهبو نه قائم پاتې کيدے شي لکه چه د قرآن کريم نورا آياتو نه او د حديثو روايتو نه په دے باندې ګواه دی۔

او دويم تفسير کوم چه د حضرت عبد الله بن عمرؓ وغيره نه نقل دے هغه دا دے چه د فتنې نه مراد دلته هغه آزار او عذاب او مصيبت دے د کوم سلسله چه د مکې د کافرانو د طرف نه په مسلمانانو هميشه جاري پاتې شوے دے۔ ترڅو چه دوی په مکه کښې وو نو هر وخت د دوی په آزار او مصيبت کښې تختې وو۔ بيا چه ئے مدينې طيبې ته هجرت اوکړو نو په يو يو مسلمان پسے به کيدل قتل او لوټ کول به ئے، او چه مدينې ته اورسيدل نو په پوره مدينه باندې بيا هم د دوی حملے جاري اوے۔

او د دے په مقابل کښې د دين معنیٰ غلبه او قوت دے، په دے صورت کښې تفسير د آيت دا شو چه مسلمانانو لره ترهغې د کفارو سره جنګ بکار دے ترڅو چه د دے ظلمونو نه مسلمانان محفوظ نه شي۔ او دين د اسلام غالب نه شي، چه د مسلمانانو د حفاظت قابل شي۔ د حضرت عبد الله ابن عمرؓ د يو بے واقعې نه هم د دے تفسير تائيد کيږي، واقعه دا ده چه کله د مکې د امير حضرت عبد الله بن زبير په مقابله کښې حجاج بن يوسف فوج راوغوښتلو او دواړه طرف ته د مسلمانانو ټوليے د مسلمانانو په مقابله کښې چليدے نو دوه سړی عبد الله بن عمرؓ ته حاضر شو او اوئے وئيل چه دا وخت مسلمانان په کوم مصيبت کښې اخته دی ته ئے وينې حال دا دے چه ته د عمر بن خطابؓ ځوئې ئې چه دا سے فتنې په هيڅ حال هغه نه شو ے برداشت کولے څه سبب دے چه ته د دے فتنې ختمولو د پاره ميدان ته نه راځې، نو عبد الله بن عمرؓ اوفرمائيل چه سبب دا دے چه الله تعالیٰ د يو مسلمان وينې بيول حرام کړی دی، نو دے دواړو ورته عرض اوکړو چه آيا ته د قرآن دا آيت نه لولې: قَاتِلُوْهُمْ حَتّٰى لَا تَكُوْنَ فِتْنَةٌ وَّيَكُوْنَ الدِّيْنُ الخ: يعنې جنګ کوے ترڅو چه فتنه پاتې نه شي۔ عبد الله بن عمرؓ اوفرمائيل چه بے شکه زه د ا

آیت لولم او په دے عمل هم کوم مونږ کړے آیت مطابق د کفارو سره جنګ جاری او ساتلو تر دے چه فتنه ختمه شوه او غلبه د اسلام او شوه او تا سو خلق د اغواږئ چه اوس مونږ د یو بل سره جنګ او کړو فتنه بیا پیدا کړو او غلبه د غیر الله او د حق دین خلاف اوشی - مطلب دا وه چه د جهاد او قتال حکم د کافرانو په مقابله کښے وه هغه مونږ اوکړو او کوو ئے، تر دے چه دغه فتنه ختمه شوه - د مسلمانانو خانه جنګی په دے قیاس کول صحیح نه دی - بلکه د مسلمانانو د خانه جنګئ په وخت کښے خو د نبی کریم صلے الله علیه وسلم هدایات دادی چه په دے کښے ناست د ولاړ نه غوره دے -

بعضو کړے دے تفسیر دا دے چه په مسلمانانو د اسلام د دشمنانو خلاف جهاد او قتال تر هغه وخته پورے واجب دے ترڅو پورے چه په مسلمانانو د دوی د ظلمونو فتنه ختم نه شی او اسلام ته په ټولو دینونو غلبه حاصله نه شی - او دا صورت به صرف قیامت ته نزدے وی - په دے وجه د جهاد حکم تر قیامته پورے جاری او باقی دے -

د اسلام د دشمنانو خلاف د جهاد او قتال په نتیجه کښے دوه صورتونه پیدا کیدے شی، یو دا چه دوی په مسلمانانو د زورزیاتی نه منع شی خواه دا سے چه په اسلامی برادرئ کښے شامل شی مسلمانان شی یا دا سے چه په خپل مذهب د پاتے کیدو سره په مسلمانانو زورزیاتے بند کړی او د فرمانبردارئ معاهده اوکړی -

دویم دا چه دوی په دے دواړو صورتونو کښے یو هم قبول نه کړی او په مقابله قایم پاتے شی - په راتلونکی آیت کښے د دے دواړو صورتونو حکمونه ذکر دی - ارشاد فرمائی: فَاِنِ انْتَهَوْا فَاِنَّ اللّٰهَ بِمَا یَعْمَلُوْنَ بَصِیْرٌ: یعنی که دوی واپس شو نو الله تعالی د دوی عملونه بنهٔ وینی -

د دغو مطابق به ورسره معامله او فرمائی چه د دے حاصل دا دے چه که دوی منع شو نو د دوی خلاف د جهاد بند کړے شی - په دے صورت کښے دا خطره مسلمانانو ته کیدے شوه چه دا د کفارو د طرفه د صلح معاهده یا د

مسلمانيږ واظهار ئې دېره ممکنه ده چه محض جنګي چال وي يا دوکه وي - په داسې
صورت کښې جنګ بندول د مسلمانانو د پاره مُضر کيدے شي - نو د دے جواب ئې په
دے الفاظو کښې ورکړو چه مسلمانان خو د ظاهري عملونو پابند دي د پټو رازونو
عالم خو صرف الله دے، نو چه دوي د اسلام اظهار اوکړي يا معاهده د صلح اوکړي
نو مسلمانان په دے مجبوره دي چه جهاد بند کړي - پاتے شوه دا خبره چه دوي
پخپله صلح يا ايمان کښې رښتوني دي که دوکه ده دغه الله تعالىٰ ښه ويني - که دوي
داسے اوکړي نو بد انتظام به ئې اوشي -

که د صلح يا د اسلام د اظهار نه پس په دوي لاس اوچت کړے شو نو جهاد کوونکي
به مجرمان شي - لکه چه د صحيح بخاري او مسلم په يو حديث کښې د نبي کريم صلے الله
عليه وسلم ارشاد دے چه ماته د دے حکم شوے دے چه د اسلام د دشمنانو
سره جنګ کوم تر دے چه دوي کلمه د لَآ اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ مُحَمَّدٌ رَّسُوْلُ اللّٰهِ قبوله کړي
او مونځ قائم کړي او زکوٰة ادا کړي او کله چه دوي داسے اوکړي نو د دوي
وينه او مال ټول به محفوظ شي، په غير د دے چه د اسلامي قانون لاندې دوي
له د څه جُرم په بدله کښې سزا ورکړے شي - او د دوي د زړونو حال او
حساب به په الله تعالىٰ وي - چه دوي په رښتيا سره اسلام قبول کړے دے
او که په نفاق سره -

دويم يو حديث کوم چه ابوداؤد د څو صحابو کرامو په روايت سره
نقل کړے دے، دا دے چه نبي کريم صلے الله عليه وسلم فرمائيلي دي چه
کوم سړے په چا معاهد يعني په هغه چا چه د اسلامي حکومت د وفا
دارئ معاهده ئې کړي وي څوک ظلم اوکړي يا ورته نقصان اورسوي يا د
ده نه څه داسے کار واخلي چه د ده د طاقت نه زيات وي يا تر څه شے په زور
واخلي نو زه به د قيامت په ورځ د دغه مسلمان خلاف د مُعاهِد مدد کوم -
او مکلو تيا به ئې کوم -

د قرآن مجيد ذکر شوي ايت او د حديثو روايتونو په ظاهره مسلمانانو
لره په يوه سياسي خطره کښې اخته کړل چه د لويو نه لوئې دشمن د اسلام
کله چه د دوي په زد کښې راشي او محض د ځان بچ کولو د پاره د اسلام کلمه

اُو وائي، نو په مسلمانانو ئې لازمه کړه چه فوراً خپل لاس اُو نيسي دَغه شان خو دوی په هيڅ دشمن قابو هم نه شي موندے، مګر الله تعالیٰ دَدوی پټ رازونه پخپله ذمه واغستل په معجزانه انداز ئې دا سے اوخوده چه په عملي طور سره خو مسلمانانو ته په يو ميدان جنګ کښې دا سے آزمائش رانه شو، البته دَ صلح په حالت کښې په سوُلو منافقان پيدا شو کوم چه دَ دوکے ورکولو دَپاره خپل ځان مسلمان ظاهر کړو، او په ظاهره ئې مونځ روژه هم اداکړل، په دوی کښې دَ بعضو کم اصلو خودا مقصد وُه چه دَ مسلمانانو نه څۀ فائدے حاصلے کړی او دَ دشمنۍ کولو باوجود دَ دوی دَ انتقام يعنی بدل اغستو نه محفوظ شي- او بعضے هغه هم وُو کوم چه دَ سياسي مقصد دَپاره دَ مسلمانانو دَ راز معلومولو او دَ مخالفينو سره دَ ساز باز کولو دَپاره داسے کول- مګر دَ الله تعالیٰ قانون دَ دے تولو په باره کښې مسلمانانو ته دا هدايت ورکړو چه دَ دوی سره دِ دَ مسلمانانو په شان معامله کوی ترڅو چه پخپله دَ دوی دَ طرف نه اسلام دشمنی او دَ معاهدے خلاف ورزی ثابته نه شي-

دَ قرآن دا تعليم خو په هغه صورت کښې وُه کله چه دَ اسلام دشمنان دَ خپلے دشمنۍ نه دَ واپس کيدو اقرار او معاهده اوکړی-

او دويم صورت دادے چه دوی پخپل ضد او ناراضۍ قائم وی دَ دوی په باره کښې حکم دَ دے نه پس په ايت کښې راځي :- ارشاد دے چه:

: وَإِنْ تَوَلَّوْا فَاعْلَمُوا أَنَّ اللَّهَ مَوْلَاكُمْ نِعْمَ الْمَوْلَىٰ وَنِعْمَ النَّصِيرُ:

يعنی که هغوی خبره نه مَنی نو تاسو پوهه شئ چه الله تعالیٰ ستاسو مددګار حمايتي دے او هغه ډير ښۀ حمايتي او ډير ښۀ مددګار دے-

دَ دے مطلب دادے چه که دوی دَ خپل ظلم، زياتی، کفر او شرک نه واپس نه شي نو دَ مسلمانانو په ذمه هغه حکم دے کوم چه بره ذکر شو چه دَ دوی سره جنګ جاری ساتئ- او جهاد او قتال چونکه لوئے لښکر او ډيره اسلحه او ساز و سامان عادةً غواړی او دا خيز و نۀ عام طور سره مسلمانانو ته ډير کم حاصل وُو په دے وجه

داکید ے شوه چه مسلمانانو ته دَ قتال حکم کړان معلوم شی یا دَ وی دَ خپل کموالی دَ شمار او کموالی دَ سامان په وجه سره دا محسوسه کړی چه مونږ په جنګ کښې نه شو کامیابید ے - په دے وجه دَ دے علاج ئے داسے اوکړو چه مسلمانانو ته ئے اوخودو چه اګر که تعداد او سامان دَ دغو خلقو سره دَ مسلمانانو نه زیات هم وی، مګر دوی به دَ الله تعالیٰ غیبی نصرت او حمایت دَ کومه نه راوړی کوم چه مسلمانانو ته حاصل دے کوم چه دوی په هرهیدان کښې دَ خپل ځان سره وینی اَوا اُوئے فرمائیل چه هسے خوامداد او حمایت په دُنیا کښې هر فریق دَ ځۀ نه ځۀ چا نه حاصلوی مګر مدار دَ دغے مدد کوُنکی په قوّت او طاقت او علم او تجربه باندِ وی او دا ظاهره ده چه دَ الله تعالیٰ دَ قوّت او طاقت او علم نه زیات ځۀ چه برابر هم ټول جهان ته نه شی حاصلیدے، ځکه چه هغۀ دَ ټولو نه غوره او لوئے حمایتی او مدد ګار دے -

# نهمه پاره ختمه شوه

: وَالْحَمْدُ لِلّٰهِ رَبِّ الْعٰلَمِیْنَ :

کاتب ومترجم: ابوحسین سواتی

۲۶ر شعبان ۱۴۰۹ھ بمطابق ۴ر اپریل ۱۹۸۹ء

